# توضیحات

د پښتو شرح

# مشکوٰۃ شریف

تالیف

حضرت مولانا فضل محمد یوسفزئی صاحب دامت برکاتهم
استاذ حدیث جامعة علوم اسلامية بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه

مولانا محمد فیض الهادي "حقاني"
سابق مدرس مدرسه تعلیم القرآن والحدیث
چارسده روډ پشاور

مکتبة الاصلاح
محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

# توضيحات مشكوة شريف

پښتو شرح

## (جلد پنځم)

الشيخ حضرت مولانا فضل محمد يوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذ حديث جامعة علوم اسلامية بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه:
مولوي فيض الهادی حقاني

### د توضيحات پښتو شرح مشکوة خصوصيات:

- په اول جلد کې د اصول حديث يوه مفيده مقدمه
- په متن باندې اعراب
- په ټيبل کې تحت السطور بامفهومه ترجمه
- هر حديث ته مناسب عنوان ورکول
- د مشکوة المصابيح د احاديثو تخريج د صحاح سته وغيره کتابونو نه کول
- د مشکوة المصابيح د مشکلو لغاتو حل کول
- په شرحه کې هر يو ځای ته مناسب عنوان ورکول
- د ائمه اربعو د مذاهبو بيان
- د مذاهبو دلائل بيانول
- د احنافو د مذهب د ترجيح وجوهات بيانول
- په شرح کې د مرقاة او د اشعة اللمعات د عباراتو حوالې ورکول
- د کتاب د هرې صفحې په سر د کتاب او باب خودنه
- د هر کتاب په اول کې د ضروري مباحثو بيان
- بين القوسين په اضافي قيودا تو سره مزيد وضاحت کول
- د مشکلو ابحاثو د سوال او جواب په ذريعه حل کول
- د جديد او قديم بعضې مسائلو استنباط
- په آحاديثو کې د تعارض په صورت کې بهترين مطابقت راوستل
- په اتم جلد کې د مشکوة المصابيح د حديثو د راويانو مفصل حالات

مکتبة الاصلاح
محله جنگی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

## درخواست

د الله تعالیٰ په فضل وکرم سره د کمپوزنګ نظرثاني او تصحیح نه علاوه د چهاپ کولو او جلد سازئي په ټولو مرحلو کښې د ډیر احتیاط نه کار اخستلې شوی دی خو بیا هم انسان کمزوری دی۔
که ددې احتیاط باوجود هم څه غلطي په نظر درشي نو اطلاع راکړئ ان شاء الله په راتلونکي چهاپ کښې به ئې تصحیح اوکړو۔


دکتاب نوم: توضیحات مشکوٰة شریف

مؤلف: الشیخ حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

ترجمه: مولوي فیض الهادي حقاني

کمپوزنګ: مولوي فیض الهادي حقاني

ناشر: مکتبة الاصلاح محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797


### د ملاویدو پتی:

| پاکستان | افغانستان |
|---|---|
| شبقدر | جلال آباد |
| اکوړه خټک | کابل |
| صوابی | خوست |
| شیوه اډه | ګردیز |
| مردان | غزنی |
| مینګوره | قندهار |
| تیمرګره | کوندوز |
| باجوړ | کنړ |
| ټل هنګو | مزار شریف |
| دوآبه | لغمان |
| ډیره اسماعیل خان | |
| بلوچستان | |
| چمن | |

نَضَّرَ اللهُ اِمْرَأً سَمِعَ مَقَالَتِيْ فَحَفِظَهَا وَوَعَاهَا وَاَدَّاهَا (الحديث طبراني)

# انتساب

زه دا خپل محنت خپل مادرِ علمي او د عِلم عالَمي مركز

جامعة العلوم الاسلامية بنوري ټاؤن طرف ته منسوبوم

چې ددې د شفقت په سیورې کې

بنده د محدث العصر حضرت اقدس حضرت مولانا محمد یوسف البنوري رَحِمَهُ اللهُ

او صدر مدرس حضرت اقدس حضرت مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللهُ نه

د احادیثو مقدسو سند حاصل کړو.

فضل محمد يوسف زئي

روزِ محشر هر کسے با خویش دارد توشهٔ
من نیز حاضر میشوم توضیح مشکوة در بغل

وَ مِنْ مَّذْهَبِيْ حُبُّ النَّبِيِّ وَ كَلَامِهٖ
وَ لِلنَّاسِ فِيْمَا يَعْشَقُوْنَ مَذَاهِبُ

بسم الله الرحمن الرحيم

كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ

اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ

اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله المتوحد بجلال ذاته المتفرد بکمال صفاته أحمده تعالی علی جلیل نعمائه اللهم لك الحمد کما ینبغی لجلال وجهك وعظیم سلطانك ولك الشکر علی جزیل عطائك وکثیر آلائك. والصلوة والسلام الاتمان الاکملان علی رسلك وأنبیائك خصوصًا علی سیدالرّسل وهادی السبل وخاصة أصفیائك جیش الأنبیاء والمرسلین وخاتم النبیین محمدبن عبدالله رسول الله وحبیب الله صلوات الله وسلامه علیه سیدالمرسلین وعلی آله واصحابه وأزواجه وذریاته أجمعین.

أمابعد! د الله تعالی لاک لاک شکر دي چې هغه ماعاجز او کمزوری بنده ته توفیق راکړو او خاص په فضل وکرم خپل سره ئې د مشکوة د جلد اول د کتاب الصلوة پورې د توضیحات شرح مشکوة د یو جلد تکمیل (پوره والې) راباندې وکړو.

د توضیحات شرح مشکوة د جلد اول د پوره کیدو نه پس ما مناسب اوګنړل چې د مشکوة د دویم جلد د کتاب النکاح نه هم یو جلد منظرعام ته راویستل پکاردی، بعضې ملګرو هم مشوره راکړه چې دمشکوة د دویم جلد د شرحې ډیر ضرورت دې ځکه چې په دغه حصه باندې په اُردو ژبه کې زیات کار نه دې شوې ماته په دې کال کې بیا په جامعة العلوم الاسلامیه بنوری ټاؤن کې د مشکوة د ویم جلد سبق ملاؤ شوې دې نو زما دپاره هم په دې حصه باندې کارکول آسان دې او دعامو طلباؤ او دمدرسینو حضراتو دپاره هم په دې کې فائده ده، په دې وجه ماد ډیر مصروفیاتو باوجود نن د چارشنبې په ورځ مې په تاریخ ۸ ذی قعده ۱۴۲۲ سحر وختی ددې مبارک کار شروع وکړه.

د الله تعالی نه په ډیره عاجزئ سره دعا غواړم چې دمشکوة جلد اول او جلد ثانی د دواړو د شرحې په پوره والی کې زما مدد اوفرمائی او کوم څه چې لیکم هغې ته عام او خاص قبولیت ورکړی.

امین امین لا أرضی بواحدة حتی أضمّ الیها ألفین امینًا

ربناتقبل مناً انك أنت السمیع العلیم وتب علینا انك أنت التّواب الرّحیم

د چهارشنبې ورځ/ذی قعده ۱۴۲۲ھ

بمطابق ۲۳ جنوری ۲۰۰۲ء

# ددې کتاب متعلق څه خبرې

د توضیحات شرح مشکوۃ متعلق ټول تفصیلات په ړومبی جلد کې راغلې دی دلته یو څو خبرو ته په طور د یاد دهانئ اشاره کوم،ماپه دې شرح کې دا طرز اختیارکړې دې چې ټولو نه اول مې د مشکوۃ شریف مکمل احادیث مې سره د اعراب لیکلې دی، بیا مې دهغې مکمل ترجمه لیکلې ده او دهغې نه پس مې د توضیح په عنوان سره لغوی او فقهی تشریح کړې ده، په فقهی مذاهبو بیانولو کې مې ددې خیال ساتلې دې چې مباحث نه ډیر اوږده وی او نه ډیر مختصر،بلکه د اعتدال مې پوره پوره خیال ساتلې دې او ډیر شاذ قول مې نه تذکره کړې ده او نه مې د جمهورو د أقوالو نه جدا د بل چا په تفرد باندې خپل مسلک قائم کړې دې.

په حدیث کې که تشریح او توضیح ضرورت نه وی نوما حدیث لیکلې او صرف ترجمه مې لیکلې ده په دې وجه په دې شرح کې د مشکوۃ شریف په ټولو احادیثو باندې مشتمل د مشکوۃ شریف پوره نسخه لیکلې شوې ده، په دې سره علماء او طلباؤ نه علاوه عام خلق هم په آسانئ سره فائده اخستلې شی.

ما چې د کومو شروحاتو نه ددې شرح په لیکلو کې استفاده کړې ده دهغې نوم مې هم لیکلې دې هغه د هر یو حوالې دپاره کافی دې د توضیحات جلد اول په عرض حال کې دې هغه د هر یوې حوالې دپاره کافی دې د توضیحات جلد اول په عرض حال کې ددغې شروحاتو نومونه کتلې شئ د جدا جدا حواله جاتو په هر ځائې کښې اهتمام نه دې کړې شوې،اګرچې اکثرحواله جات د تشریحاتو په ضمن کې هم ورکړې شوې دی.

ما چې په ۱۴۱۷ھ کې کله دمشکوۃ شریف دویمه حصه لوستل شروع کړې وو نو په هغه کال چې ما روزانه څومره سبق ښودلې وو دهغې تاریخ مې د اسلامی میاشت او کال په حوالې سره لیکلې وو، ما هم هغسې تاریخونه اولیکل په دې سره به دهر مدرس دپاره دا آسانی وی چې هغه د درسی نصاب په خودلو کې کوم رفتار سره روان دې، او په کومه ورځ چې هغه کوم ځائې وائی په دغه تاریخ باندې دهغه منزل په کوم مقام کې پکار دې؟

د مشکوۃ دویمه حصه هم چونکه د شوال نه شروع کیږی او په رجب کې ختمیږی نو په دې کې هم د اولنئ حصې په شان د شوال نه تاریخونه لیکلې شوې دی.

ما په فقهی مذاهبو بیانولو کې دا طرز اختیار کړې دې چې اول مې هغه مذاهب ذکر کړې دی د کومو چې تقلید کولې شی بیامې هم په دغه ترتیب سره دهغوی دلائل ذکر کړې دی اوبیامې د احنافو مسلک ته ترجیح ورکړې ده او دنورو حضراتو د دلائلو جوابات مې ورکړې دې دا ډیره

آسانه طريقه ده ما دهيڅ تعصب نه کار نه دې اخستې البته د احناف فقهاؤ عظيمه لاره مې نه ده پرېښودلې.

ما چې دمشکوة په اوله حصه کې په احاديثو مبارکه باندې په کوم انداز سره تحقيقي او فقهي بحث کړې دې دغه شان ما دمشکوة په دويمه حصه کې د کتاب النکاح نه تر آخره پورې هم دغه طرز اختيار کړې دې چې داسې اونه شي چې په اوله حصه کې ډېر تفصيل وی او په دويمه حصه کې تفصيل نه وی.

ما په دې شرح کې ډېر کوشش کړې دې چې د يو مدرس دپاره د تدريس ترحده پورې دا شرح مناسب او مفيد ثابته شی، او هغه د تدريس ضروريات په دې سره پوره شي. البته په ټولو طبيعتونو باندې ددې محيط کيدل ممکن نه دی ځکه مشهوره مقوله ده چې خوبنه خپله خپله،نصيب خپل خپل.

ما دطلباؤ دپاره ددې شرحې په آسان او مفيد جوړلو کې پوره کوشش کړې دې الله تعالى دې زما عاجزه بنده دا کمزورې کوشش قبول کړی او دې لره دې د قصدًا او خطاً دواړو قسمو غلطيانو نه پاک کړی او تکميل ته دې اورسوی او ددې عاجز بنده د هرجوړ د بخښنې ذريعه دې جوړه کړی. آمين يا رب العالمين.

وذلك في ذات الاله وان يشأ يبارك على أو صال شِلو ممزّعِ

وصلى الله على نبيه الكريم

# فهرست

# كتاب النِّكَاح

## اَلْفَصْلُ الأوّل

**قال الله تعالى: فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاء مَثْنَى وَثُلاَثَ وَرُبَاعَ (النساء . ٣)**

نکاح من وجهٍ عبادت دی او من وجه معامله ده په دې وجه د عباداتو او معاملاتو نه پس ذکر کړې شوه د نکاح لفظ په لغت کې ضم او یو ځای کیدو ته وائي او ثقب سُوري ته یې هم وائي په نکاح کې دواړه مفهومه موجود دي شاعر ساحر ابو طیب وائي.

**اَنْسَاعُهَا مَمْغُوطَةٌ وَخِفَافُهَا مَنْكُوحَةٌ وَطَرِيقُهَا عَذْرَاءُ**

په دې شعر کې د منکوحة لفظ د زخم او سوري په معنی سره ک استعمال شوی دی.

د نکاح اصطلاحي تعریف په عربي الفاظو کې د فقهاء کرامو په نزد داسې دی **اَلنِّكَاحُ هُوَ عَقْدٌ وُضِعَ لِتَمْلِيكِ الْمُتْعَةِ بِالْاُنْثٰى قَصْدًا**

په پښتو کې د نکاح تعریف داسې کیدی شي، نکاح د هغه عقد او معاهدې نوم دی چې د سړي او ښځې په مینځ کې ځای نیسي چې په هغې سره د دې دواړو ترمینځه د زوجیت تعلقات قائمیږي.

لغوي او اصطلاحي معانې نژدې نژدې دي ځکه چې په عقد کې ضم یو ځای کیدل هم دي او وطي کې ثقب هم دی، د شوافعو په نزد نکاح په عقد کې حقیقت دی او په وطي کې مجاز دی، او د احنافو امامانو په نزد نکاح په وطي کې حقیقت دی او په عقد کې مجاز دی، د بعضو فقهاو په نزد نکاح په وطي او عقد کې مشترک ده په قرینې او مقام سره د یوې معنی تعین او امتیاز راځي.

په دې کې د ټولو فقهاو اتفاق دی چې نکاح یو مسنون شرعي طریقه ده، البته په دې کې اختلاف دی چې آیا نکاح د معاملاتو د قبیلې نه ده او که د عباداتو د قبیلې نه ده؟ د شوافعو په نزد نکاح د معاملاتو د اقسامو نه یو قسم دی چې د باقي عقودو او فسوخو په شان یو رضاکارانه عقد دی همدا وجه ده چې دهغوی په نزد طرفین یعني ښځه او خاوند چې څنګه هم راضي شي دا عقد به مکمل شي د څه مقرر مقدار مهر پابندي نیشته البته د مهر په نوم سره څه نا څه کول پکار دي. (میاں بیوی راضی کیا کرے گا قاضی)

دارنګه دلته دا بحث هم دی چې د شوافعو په نزد **(تخلي بالعبادة النافلة)** د نکاح نه افضل ده په دې مدعا باندې هغه حضرات دا دلیل پیش کوي چې حضرت یحیی عَلَيْهِ السَّلَام ته الله تعالی **(سیدا وحصورا)** فرمایلی دی او "حصور" هغه وي چې واده نه کوي او مسلسل په عبادت کې لګیدلی وي. (المرقات ۲۶۱/۶)

امام ابوحنیفه رحمه الله په خپل ژورنظر او د شرعي نقطه نظر په بنیاد باندې فرمائي چې په نکاح باندې د نوع انساني دارومدار دی. دا د انسان د توالد او تناسل ذریعه ده. دا د دوو کسانو په خپل مینځ کې څه ذاتي تړون یا صرف شخصي او طبعي خواهش نه دی بلکه دا عمل د انساني معاشرې

وجود، دهغې تشکیل، دهغې د بقاء او دهغې د ترقۍ بنیادي ستن ده، همدا وجه ده چې د آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ د پیدائش نه واخله د شریعت محمدیه پورې په ټولو انساني مذاهبو او شریعتونو کې نکاح مسلسل رارروانه ده هیڅ یو شریعت داسې نه دی راغلی چې ددې عمل نکاح نه خالي پاتې وي، اګر چې په بعضو شریعتونو کې په بعضو عباداتو کې تغیراو بدلون راتلو مګر د شرائطو او ضوابطو بدلیدل پرېږده د نفس نکاح وجود په هر مذهب کې وو هیڅ یو آسماني مذهب دا اجازت کله هم نه دی ورکړی چې بغیر د عقد او نکاح او بغیر دمعاهدې او معاقدې نه دې سړی او ښځه جنسي تعلق قائموي.

**نکاح ولې ضروري ده ؟** په انسان کې دوه قوتونه په ښکاره طور باندې موجود دي چې دهغې په افراط او تفریط اودهغې په بې قاعدګۍ سره انسان تباکیږي اوبرباد کیږي (۱) قوت غضبیه (۲) قوت شهوانیه قوت غضبیه کې افراط او زیاتی تَهَوُّرْ او ظلم دی او په دې کې تفریط، کمی جُبُنُ او بزدلي ده اوپه دې کې توسط او اعتدال، شجاعت دی چې شرعًا مطلوب او مقصود دی. قوت شهویة کې افراط، فسق، فجور او زنا ده، او په دې تفریط خمود او جمود او نامردي ده، او ددې وسط عفت دی کوم چې مطلوب او مقصود دی، په نکاح کې د انسان همدا دوه بنیادي قوتونه په قابو کې راتلو سره کنټرولیږي او د انسان په ژوند کې د اعتدال لاره پیدا کیږي، مثلاً د ښځې او خاوند رشته کې یوځای کیدو سره د سړي تعلقاتو کې وسعت پیدا کیږي څوک دده سخر جوړشي، څوک یې خواښې، څوک اوخې (دخورخاوند) اوڅوک اوخې (دښځې ورور) قسماقسم رشتې (خپلولۍ) پیدا شي او ترلږې لږې پورې رشته خوره شي په دې سره د سړي دغصې موقعې کمې شي، نوپه قوت غضبیه کې اعتدال راځي.

* دارنګه یو کس مثلاً کمزوری دی دهغه منفرد قوت د نشت برابر دی د ښځې او خاوند رشتې جوړیدو سره هغه ته افرادي قوت حاصلیږي د نوې رشتې (خپلوۍ) د طرفنه دهغه پشتي او مدد نصرت کیږي نو هغه ته حوصله ملاویږي او د بزدلۍ نه بچ کیږي اوس دا سړی نه ظالم پاتې کیږي او نه مظلوم بلکې ددې په مینځ کې د بهادرۍ په مطلوب مقام باندې قائم پاتې کیږي.

* دارنګه نکاح قوت شهوانیه په اعتدال باندې راولي مثلاً د شهوت پوره کولو دپاره کله صحیح او جائز محل سړې ته ملاو شي نو دفسق او فجور او حیوانیت نه محفوظ شي، حضرت مولانا مفتي محمد شفیع رحمه الله به فرمایل که چیرې د څوارلسو کالو جینۍ او د پنځلسو کالو هلک د نکاح پابند جوړ کړی شي نو ډیر حده پورې به د زنا وجود ختم شي.

دارنګه ډیرې مودې پورې په عدم نکاح سره چې په مخصوص اندام کې کوم مراووالی، خمود، جمود او نامردي پیدا کیږي په صحیح نکاح سره سړی ددې مصیبت نه محفوظ پاتې کیږي.

* جالینوس لیکلي دي چې د انسان کوم اندام چې کله د هغه د تخلیقي عمل نه ډیر وخته پورې منع کړی شي نو هغه خپل تخلیقي عمل پرېږدي او بیکاره شي، ددینه معلومه شوه چې په نکاح کولو سره سړی په

خپل اصلي صفت اعتدال او عفت باندې قائم پاتې کيږي، نه فسق او فجور او زنا کې اخته کيږي او نه نامردي ښکار کيږي، خلاصه دا چې په نکاح سره جنسي کيفيت کې مکمل سکون راځي.

☆ د نکاح په فوائدو کې يې دا ليکلي دي چې په دې سره د انسان په ارادو او حوصلو کې اوچتوالی راځي، خاوند جوړيدو نه پس سړی سوچ کوي چې خپله يې وګټم او پخپله يې هم وخورم او په ښځه او بچو يې هم اوخوروم په دې سره په انسان کې ښه صفات مثلاً همت، سخاوت، عزيمت او جرات راځي، دا رنګه نکاح کول والا د مجاهدو عادي شي ځکه چې د پوره کورنۍ ژوند د هغه په سر باندې راپريوځي، په دې سره هغه د سستۍ او لاپرواهۍ او د غفلت په شان د بدو صفاتو نه بچ کيږي.

☆ دا رنګه نکاح کول د صالح اولاد واحده ذريعه ده، او په صالح اولاد کې د د نيا لوی لوی فوائد موجود دي، دا رنګه د سخت مزاج والا سړي کې نرمي راځي، د ښځې د فرمائشونو په اوريدو سره په مزاج کې اعتدال راځي. د قوم نمائنده او مشر چې کله کورته راشي نو ښځه هغه د هنيا او کورکمانو راوړلو د پاره بازارته زغلوي دا ځي او پخپله سامان اخلي او راوړي يې په دې سره د ده په ژوند کې عاجزي راځي او غرور او تکبر نه بچ کيږي او د ده روحاني اصلاح کيږي. دا رنګه د مرزا مظهر جان جانان رحمه الله د مزاج نه د حال هر واقف سړی خبر دی چې د هغه څومره نازک طبيعت وو او د هغه ښځه ذومره بد اخلاقه وه څومره چې د هغه مزاج نازک وو هغه به فرمايل چې الله تعالی زما د اصلاح د پاره ماله داسې ښځه راکړې ده.

دې بيشماره فائدو ته په کتو سره امام ابوحنيفه رحمه الله به فرمايل چې نکاح کول د نفلي عباداتو نه افضل ده، او د محمد عربي ﷺ سنت نکاح د حضرت يحيی عليه السلام د عدم نکاح نه ډيرې درجې افضل او قابل د عمل ده، که حضرت يحيی عليه السلام نکاح نه وې کړې نو محمد عربي ﷺ څو نکاح ګانې کړې وې، که چيرې حضرت يحيي عليه السلام د نکاح ترغيب خپل امت ته نه وو ورکړی نو محمد عربي ﷺ بار بار د نکاح ترغيب ورکړی دی کوم چې د رجال قال او رجال حال د پاره لويه لار ده. (المرقات ۲۶۱/۶)

د علماو نه مې اوريدلې دي چې بايزيد بسطامي رحمه الله فرمائيل چې زما مقام د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه اوچت وو مګر هغه زما نه مخکښې لاړو په دې وجه چې هغه واده کړی وو او ما واده نه دی کړی.

**نکاح کله ضروري کيږي** د احنافو په مسلک کې نکاح هغه وخت فرض کيږي هر کله چې د نکاح نه کيدو په صورت کې د جنسي خواهش د وجې نه په زنا کې د مبتلا کيدو يقين وي، او په حق مهر ادا کولو باندې دې قادر وي، همدا مطلب دی د فقهاء کرامو د دې جملې **وعند التوقان فرض** يعني د دوه طاقتونو په موجودګۍ کې نکاح فرض کيږي. ها کچرې په دې صورت کې په ښځه باندې د ظلم کولو يره وي نو بيا فرض نه ده. نکاح هغه وخت واجبيږي کله چې د جنسي خواهش غلبه وي مګر په زنا کې د پريوتلو يقين نه وي صرف خطره وي او په حق مهر او نان نفقه باندې سړی قادر وي او په ښځه باندې د ظلم څه خطره نه وي. په پاسنو صورتونو کې چې کله اعتدال وي نو بيا نکاح سنت مؤکده شي، د اعتدال مطلب دا دی چې د

جنسي خواهش غلبه نه وي او نان نفقه باندې سړی قادر وي. په عامو وختونو کې نکاح د احنافو په نزد باندې هم مباح ده ځنګه چې د شوافو په نزد نکاح مطلقًا مباح ده، په دې صورت کې شريعت مطهره د نکاح ډير ترغيب ورکړی دی دا يې نيم ايمان ګرځولې ده، او د صالح مستقبل ضامن ئې خودلې ده. نکاح په هغه وخت کې مکروه کيږي کله چې په ښځه باندې د ظلم کولو خطره وي چې مزاج دومره سخت وي چې که چيرې نکاح مې وکړه نو د ظلم خطره ده. نکاح هغه وخت حراميږي هرکله چې د نکاح کولو نه پس د بد مزاجۍ په وجه په ښځه باندې ظلم کول يقيني وي. د برنو صورتونو په رڼا کې هر سړی د ا فيصله کولی شي چې په کومو حالاتو کې نکاح کول فرض ده، او په کومو حالاتو کې واجب يا سنت يا مستحب ده، او په کومو حالاتو کې نکاح نه کول ضروري کيږي. (المرقات ۲۶۱/۶)

**د نکاح مستحبات**: په راتلو نکو احاديثو کې د نکاح ټول مستحبات به راشي مګر په ابتداء کې د يو څو مستحباتو ذکر کوم چې په ټولو مباحثو باندې رڼا پريوځي.

☆ مستحب د ادی چې سړی خپله مخطوبه منسوبه ښځه ووينې دواړه طرفونو ته ټول احوالو ته وکتلی شي ځکه چې د ا د ټول عمر سودا ده.

☆ دا هم مستحب دي چې ښځه په عمر کې کمه وي په شان او شوکت کې کمه وي او په مال کې هم کمه وي دې د پاره چې خاوند نه غلام جوړ نه کړي.

☆ دا هم مستحب دي چې ښځه په ښائست کې د خاوند نه زياته وي په سنجيدګۍ او حلم او ادب او وقار او تحمل کې د خاوند نه زياته وي او پيغله وي.

☆ او دا هم مستحب دي چې نکاح ښکاره وي د دواړو طرفونو نه مشران حضرات په کولاو مقام يا مسجد کې د پروګرام په مجلس کې شريک وي.

نکاح په ايجاب او قبول سره منعقد کيږي چې پکې دواړه صيغې د ماضي وي، يا يوه صيغه د مستقبل يعني حال وي، دوه سړيَ ګواهان وي، يا يو سړی او دوه ښځې په طور د ګواه وي، ددې نه علاوه نور بيکاره شرطونه دي.

**د نکاح قسمونه**: په عربو کې د جاهليت په دور کې به اته قسمه نکاح ګانې وې، اسلام په دې کې صرف يو قسم لره جائز وګرځوله او باقي ټول ئې رد کړې. (۱) **عامه نکاح** دا هغه نکاح ده چې نن صبا په مسلمانانو کې رواج ده. په عربو کې چې به کله دا نکاح په خاندان کې وه نو د جينۍ پلار به د جينۍ په حق کې به دا دُعا کوله چې الله تعالی دې تا په دې کورنۍ کې خوشاله ساتي ستا اولاد دې خور شي، الله تعالی دې تا ته هلکان درکړي او عزت او عظمت سره دې تا اوساتي،. او کچرې جينۍ به په بل خاندان کې واده کيده نو پلار به يې دا دُعا کوله چې الله تعالی دې تا خوشاله ساتي ستا او به دې خوږې وي الله تعالی دې تا ته هلکان نه درکوي، ځکه چې په دې سره به زمونږ د شمنان زيات شي، ته د خپل خاوند عزت کوه او د سخرګنۍ خدمت کوه او دهغوی د عزيزانو رشته دارانو قدر کوه. دا نکاح په عربو کې د عامو شريفانو نکاح وه او د

دې نوم نكاح الشرفاء هم و ( **۲) نكاحِ استبضاع** ښځه به چې كله د حيض نه پاكه شوه نو خاوند به ويل چې فلاني سردار ته لاړه شه جماع ورسره وكړه دې دپاره چې شريف بهادر بچي پيدا شي ښځې به داسې كار كوه او د حمل ښكاره كيدو پورې به ئې د خپل خاوند سره جماع نه كوله. ( **۳) نكاح د تعين او نامزدګۍ** ښځې به نوبت په نوبت د لسو سړو سره جماع كوله كله چې به هلك پيدا شو نو دې ښځې به هغه ټول راغوښتل هيڅ يو به د راتلو نه انكار نه كولو بيا به دې ښځې هغوی ته وويل چې تاسو ما سره څه كړي دي هغه تاسو ته معلوم دي اې فلانيه دا هلک ستا نه دی هغه سړي به ددې نه انكار نه شو كولی او هغه هلک به په دې نامزدګۍ او تعين سره د هغه سړي كيدو. ( **۴) نكاح الرايات** دا به د بازاري او فاحشو ښځو نكاح وه په دوي كې به هرې ښځې د خپل كور دپاسه جهنډه لګولې وه او كوم سړې چې به زنا كول غوښتل نو هغه ته به معلومه وه هغه به ورته راتلو، كله به چې بچي پيدا شو نو دا خلق به قيافه شناس لره راغلل نو هغه به كتلو سره فيصله كوله چې دا ماشوم د فلاني سړي په شان دی لهذا همدا د هغه بچی دی. ( **۵) نكاح الخدن** دا به د يارانې پټه نكاح وه په دې كې به د دوستۍ او يارانې په طور په پټه زنا وه اسلام د پته **((ولا متخذات اخدان))** (سورة النسـاء ۲۵) وئيلو سره رد فرمائيلې ده. (الكاشف ۲۳۵/۶)

( **۶) نكاحِ متعه**: دا به وقتي سازشي نكاح وه (يعني څه وخت دپاره) چې كوم سړی به كوم ښار يا كلي ته تلو نو هلته د پاتې كيدو او سامان سمبالولو او د خپل جنسي خواهش پوره كولو په غرض به ئې بغير د څه ګواه نه په څه پيسو وركولو باندې به يې كومې ښځې سره نكاح كوله او هغې سره به پاتې كيدو، نن صبا د شيعه ګانو او د روافضو په نزد ددې پوره انتظام او سهوليات موجود دي اسلام دې لره ناجائزه وګرځوله.

( **۷) نكاحِ البدل** د جاهليت په زمانه به يو كس بل ته وويل چې تا زما دپاره د خپلې ښځې نه جدا شه زه به ستا دپاره د خپلې ښځې نه جدا شم دا به د هغوی په نزد د نكاح يو صورت وو، اسلام دا منع كړه، مګر نن صبا په بې غيرتو دنيادارو كې دا رواج په وقتي طور باندې په نائټ كلبونو كې كيږي.

( **۸) نكاحِ شغار** دا د دوه جينكو د تبادلې په صورت كې ده چې په مينځ كې به يې مهر نه وو مثلاً يو كس به بل كس ته وويل چې دا زما لور ده دا ته په خپله نكاح كې د خپلې لور په عوض كې قبوله كړه هغه به په جواب كې وويل چې ته زما لور د خپلې لور په عوض كې قبوله كړه او د دوی دواړو ترمينځه به مهر نه وو. شغر او شغار د سپي د متيازو كولو په وخت كې خپې اوچتولو ته وايي، ګويا دلته هم يو سړي بل سړي ته وويل چې زه ستا د لور او ته زما د لور خپه اوچته كړه او همدا زمونږ د دواړو مهر دی اسلام دا منع كړه. (بحواله رسومِ جاهليت)

## ځوانانو ته د نکاح کولو حکم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا مَعْشَرَ | | | | | |
| حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عنه وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل .. اى ټولګيه | | | | | |
| الشَّبَابِ | مَنِ | اسْتَطَاعَ | مِنْكُمُ | الْبَاءَةَ | |
| د ځوانانو! په تاسو کې چې څوک د ښځې د حقوقو (د کوروالي، د ښځې بچو د نان نفقې وغيره) | | | | | |
| فَلْيَتَزَوَّجْ | فَإِنَّهُ | أَغَضُّ | لِلْبَصَرِ | وَأَحْصَنُ | لِلْفَرْجِ |
| طاقت لري، هغه له پکار دی چې هغه نکاح وکړي، ځکه چې نکاح کول نظر ډير ښکته کوي او شرمګاه | | | | | |
| وَمَنْ | لَمْ | يَسْتَطِعْ | فَعَلَيْهِ | بِالصَّوْمِ | |
| ډيره محفوظ کوي او کوم سړي چه د نکاح (جماع) د لوازماتو طاقت نه لري هغه له پکار دی چې هغه | | | | | |
| فَإِنَّهُ | لَهُ | وِجَاءٌ» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1] | | |
| روژې ونيسي ځکه چې روژه نيول هغه ته د خصي کولو فائده ورکوي. | | | | | |

صَدَقَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهم صل عليه وعلي اله واصحابه اجمعين.

**توضيح : يا مَعْشَرَ الشَّبَابِ**: معشر هغه جماعت ته ويلى کيږي چې په څه خاص وصف باندې مشتمل وي مثلاً معشر الرجال د سړو جماعت، معشر النساء د ښځو جماعت، معشر الجن د پيريانو جماعت، معشر الشيوخ د بوډاګانو جماعت، او معشر الشباب د ځوانانو جماعت ته ويلى کيږي.

**شباب**: جمع ده ددې مفرد شاب دی شبان او شببة هم جمع راځي ځوان ته وائي، د ځوانۍ آخري عمر او آخري حد کې د فقهاء کرامو اختلاف دی: د شوافعو حضراتو په نزد د ځوانۍ آخري عمر ديرش کاله دی، د احنافو امامانو په نزد يو سړي ته د څلويښتو کالو پورې ځوان ويلى شي او د بلوغت د وخت نه ځواني شروع کيږي.

**البائة : اي مؤنة البائة**، دا کلمه په څلورو لغتونو باندې ويلى شي (۱) **بَاءَةٌ**: په دې کې مد هم دی او تا هم ده (۲) **بَاءٌ**: په دې کې مد خو شته مګر په آخر کې يې تاء نشته دی (۳) **باهة**: په دې کې مد نشته مګر په

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۱۲ رقم الحديث ۵۰۶۶ ومسلم في ۲/۱۰۱۸ رقم الحديث (۱۴۰۰-۱) و أبوداؤد في السنن ۲/۵۳۸ رقم الحديث ۲۰۳۶، والترمذي في ۳/۳۹۲ رقم الحديث ۱۴۴۵،والنسائي ۴/۱۷۰ رقم الحديث ۲۲۴۲،وابن ماجه ۱/۵۹۲ رقم الحديث ۱۸۴۵ والدارمي في ۲/۱۷۷ رقم الحديث ۲۱۶۵، وأحمد في المسند ۱/۴۳۲.

آخر کې يې يوه هاءاوتاءده.(۴) باۀ: په دې کې مد نشته مګرپه آخر کې يې هاء موجوده ده. باه او رمباهات د جماع او د نکاح په معنی سره دی، خو په اصل کې د همزې سره مباءة د مکان (ځای) ورکولو په معنې سره دی ځکه چې کوم کس نکاح کوي نو هغه ښځې ته ځای او مکان ورکوي، باه قوتِ باه ته هم ويلی شي، اوس دا کتل دي چې دلته په حديث کې د دې لفظ څه معنی ده او څه مراد دی.(المرقات ۲۶۲/۶)

د احاديثو شارحينو کې علامه طيبی رحمه الله فرمايي چې د دې لفظ نه جماع او نکاح دواړه مراد دي، او جماع مراد اخستل راجح دی خو په دې صورت کې به مضاف محذوف وي، يعنې مؤنة الجماع واسباب الجماع، د دې محذوف په دې وجه ضرورت دی چې روستو ومن لم يستطع جمله راغلې ده د دې عطف په "باءة" باندې صحيح نه دی ځکه چې معنی به يې داشي چې کوم څوک چې په تاسو کې د جماع طاقت نه لري نو هغه دې روژې ونيسي دا معنی خو غلطه ده ځکه چې جماع باندې قادر نه دی نو هغه ته د شهوت د کنټرول کولو د پاره د روژې نيولو څه ضرورت دی هغه خو مخکې نه په جماع قادر نه د ها که چيرې د "باءة" په لفظ سره نکاح مراد شي نو بيا به عطف صحيح شي.(الکاشف ۲۳۵/۶ المرقات ۲۶۲/۶)

د مسلم شريف شارح علامه محمد بن خليفه متوفی ۸۲۸هجری د مسلم شريف په شرحه اُبیّ کې فرمايې چې الباءة د نکاح په معنی سره دی د جماع معنی ترې مراد اخستل غلط دي ځکه چې په دې صورت کې ومن لم يستطع مفهوم به غلط شی، يعنې د چا چې د جماع طاقت نه وي هغه دې روژې ونيسي دا غلط دی د دې وجې نه نکاح مراد ده، د علامه اُبي تشريح زياته بهتره او اسانه ده.

**اغض:** ستر کې لاندې ساتلو په معنی سره دی يعنې په نکاح کولو سره انسان د غلط نظربازئ نه بچ شی.(المرقات ۲۶۲/۶)

**واحصن للفرج** : د شرم ګاه د حفاظت او د سړي د پاکدامن کيدو په معنی سره دی، په نکاح کولو سره سړی د حرام کارۍ نه محفوظ کيږی. دلته نبی کريم ﷺ د نکاح دوه فائدې خودلې دي: يو داچه په نکاح سره سړی د غلط نظربازۍ نه بچ کيږي، او دويم دا چې د حرام کارۍ نه بچ کيږي.(المرقات ۲۶۲/۶)

**ومن لم يستطع** : د دې جملې عطف د دې نه مخکې من استطاع جمله باندې دی او باءة د نکاح په معنی دی نو بيا به معنی صحيح شي، او که چيرې باءة د جماع په معنی واغستلی شي لکه څنګه چې د علامه طيبي رايه ده، نو بيا به مضاف محذوف کولی شي، د دې د پاره چې معنی صحيح شي

**يعني مؤنة الباءة أي أسباب الجماع** .(المرقات ۶/۲۶۲)

**وجاء**: دخصيتينو ټکولو ته وجاء وايي، ددې نه مراد شهوت ماتول دي ځکه چې خصيتين دشهوت مرکز دی.( المرقات ۶/۶۲۶)

**فعليه بالصوم** : على د لزوم او رکوب په مفهوم سره استعمال شوی دی چې په هغې سره دېته اشاره شوې ده چې په يوې يا دوه روژو سره دا مقصد نه حاصليږي بلکه په مسلسل روژو نيولو سره به دامقصد حاصليږي، ځکه په روژو نيولو دانسان په رګونو کښې د وينې منډې وهل بند شي او شيطان ددې وينې په لارو باندې داخليږی نو دهغه ننوتل په بدن باندې بند شي چې په هغې سره دمستۍ لارې بندې شي، کنه نو په روژو سره سړی نه خصي کيږي صرف شهوت کنټرول شي.

د ځناورو دخصي کولو په باره کې شوافع حضرات فرمائی چې د ماکول اللحم وړو ځاروو خصي کول جائز دي د لويو ځاروو خصي کول جائز نه دي. او د حرامو ځناورو خصي کول مطلقًا جائز دي.

د احنافو په نزد د ځناورو دخصي کولو ذکر خو شته مګر زيات تفصيل نشته دی.

## دتبتل ممانعت

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ: رَدَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عُثْمَانَ ابْنِ مَظْعُونٍ |
| او حضرت سعد بن ابی وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چه رسول کريم ﷺ منع کړی وو عثمان بن معظمون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| التَّبَتُّلَ وَلَوْ أَذِنَ لَهُ لَا خْتَصَيْنَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| دتبتل (يعنې دنکاح د ترک کولو) نه که چيرې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دتبتل اجازت ورکولی نو مونږ به خصي کيدو. |

**توضيح** : **التبتل** : د ښځو نه انقطاع او نکاح نه کولو ته تبتل وايي.(المرقات ۶/۶۲۶)

امرء القيس وايي :

**تضئ الظلام بالعشی کأنها منارة ممسی راهب متبتل**

محبوبه دشپې تياره داسې روښانه کوي ځنګه چې يو راهب د دنيا په پريخودلو سره د رڼا مناره وي.

حضرت مريم ته بتول د دنيا پريخودلو په وجه سره وايي، او حضرت فاطمه رضی الله عنها ته بتول ياخو په دې وجه وايي چې هغوی دنيا پريخودلې وه، يا په دې وجه چې هغه د امت د ښځو نه په

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۱۷ رقم الحديث ۵۰۷۳ ومسلم في ۲/۱۰۲۰ رقم الحديث (۶.۱۴۵۲) والترمذي في السنن ۳/۳۹۴ رقم الحديث ۱۰۸۳ والنسائي في ۶/۵۸ رقم الحديث ۳۲۱۳ وابن ماجه ۲/۵۹۳ رقم الحديث ۱۸۴۸ والدارمي في ۲/۱۷۸ رقم الحديث ۲۱۶۷ وأحمد في المسند ۱/۱۷۵

حسب او نسب، د دين او درجې په اعتبار سره ځانله او ممتاز وه. تبتل رهبانيت دی کوم چې د نصاراو په نزد باندې اعلی عبادت دی دهغوی په نزد د دنيا لذتونه او د ښځو سره نکاح او اختلاط نه ځان ساتل تقوی ده. اګر چې پخپله راهب په نورو ټولو ګناهونو کې ککړ وي چا څه بنه ويلي دي.

وَالْوَطُ مِنْ رَاهِبٍ يَدَّعِي بِأَنَّ النِّسَاءَ عَلَيْهِ حَرَام

خو اسلام د نسل پيدا کول، په کثرت سره اولاد او په ښځو بچوکې اوسيدل افضل ګرځولی دی، بايزيد بسطامي رحمه الله شايد فرمايلي دي چې زما درجه دامام احمدبن حنبل نه لويه وه خو زما نه په مقام کې مخکې لاړلو ځکه چې دهغه بچي او ښځه وه، او زه مجرد وم.

بهرحال په نکاح کې دامت دډيروالي راز پټ دی او په دې سره دبقاء جهاد دپاره افراد مهيا کيږي چې ډير ضروري دی، حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ترک نکاح دنبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه مطالبه کړې وه چې دښځو او بچو دجګړو او لانجو نه ځان فارغولو سره به عبادت کوم، خو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه مطالبه مسترد کړه چې په دغه وجه باندې حضرت سعدبن ابی وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې که چيرې تاسو حضرت عثمان ته دترک نکاح اجازت ورکړې وی نو مونږ به په تبتل کې مخکې تلو سره خپل ځان خصي کړی وو، دې دپاره چې دشهوت ماده ختمه شي. حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا کلام دمبالغې په طور باندې وفرمايلو حقيقةً د خصي کولو اراده يې نه وه نه يې دا مقصد وو، ځکه اسلام کې دا ناجائز دی.

## د ديندارہ ښځې سره نکاح کول بهتر دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې يوې ښځې سره د څلورو |
| "تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ: لِمَالِهَا وَلِحَسَبِهَا |
| څيزونو په وجه سره نکاح کولی شي دهغې دمال په وجه او حسب په وجه سره د هغې حسن او |
| وَلِجَمَالِهَا وَلِدِينِهَا فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تربت يداك" (صَحِيح)[1] |
| جمال، او دهغې ديندارئ، لهذا ديندارہ ښځه خپل مطلوب او ګرځوئ ستا لاس ونه دې په خاوره ککړ شي. |

**توضيح : ولحسبها:** دسړي دخپل ذات او دپلار نيکه خاندان کې شرعًا يا عرفًا چې کوم ښه صفات

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۳۲ رقم الحديث ۵۰۹۰ ومسلم في ۲/۱۰۸۶ رقم الحديث(۵۳-۱۴۶۶) وابوداؤد في السنن ۲/۵۳۹ رقم الحديث ۲۰۴۷ والنسائي في ۶/۶۸ رقم الحديث ۳۲۳۰ وابن ماجه في ۱/۵۹۷ رقم الحديث ۱۸۵۸ والدارمي في ۲/۱۷۹ رقم الحديث ۲۱۷۰ واحمد في المسند ۲/۴۲۸

وي دهغې نوم حسب نسب دی، دحسب لفظ بالخصوص دښځې دخاندان نسب باره کې استعمالیږي، دخاندان نسبي رفعت او د عظمت اثرپه اولاد باندې پریوځي، دانسان دا فطري خواهش وي چې هغه داسې ښځې سره نکاح وکړي چې دخاندان په اعتبارسره اوچته وي او باعزته اوباحیثیته وي چې دهغه په اولادکې دا خصوصیات راشي، بعضې خلق غواړي چې دهغه نکاح د ښې مالدارې ښځې سره اوشی. ډیر زیات خلق داخواهش هم کوي چې دهغه نکاح حسینې او جمیلې ښځې سره وشي، څه دینداره خلق داغواړي چې دهغه ښځه دې نیکه اودینداره اوشریفه وي۔

خلاصه داچه عام طورباندې خلق دنکاح په باره کې ددې څلورو څیزونو خاص خیال ساتي، اسلام دا ترجیحات مسترد نه کړل بلکې په هغې کې یې د دینداری او نیکۍ صفت لره په نورو صفتونو باندې ترجیح ورکړه، شریعت دینداری ته په دې وجه ترجیح ورکړه چې په دې کې دانسان د دنیا ښیګړه ده اوپه آخرت کې هم ښیګړه ده، ځکه چې دینداری کې بقاء ده، باقي دري څیزونه عارضي اوزوال پذیر دي، لهذا د دین او دیانت او دعقل والو ته پکار دي چې دهغوی په مخکې دین په ټولو مقدم وي کوم چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دهغوی دپاره منتخب کړی دی. (المرقات ۶/۶۲۶)

**فاظفر**: ظفر هغه کامیابۍ ته وایې چې دکامیابۍ آخري درجه او دخوښۍ آخري منزل وي، چې په هغې دفوائد جلیلو حصول وي، دا امر ارشادي دی، دین ته اولیت ورکړی شو دباقي ترجیحاتو نفې مقصود نه ده. (المرقات ۶/۶۲۶)

**تربت یداک**: دا کلمه واضع دبددعائي دپاره وضع کړې ده خوعرب یې په خپلو محاوراتو کې په نورو معانو سره هم استعمالوي، مثلاً د انکار دپاره، د تنبیه دپاره، د چا په یو کارباندې راوچتولو دپاره، او دتعجب دپاره هم استعمالیږی، دلته بد دعائي مقصود نه ده بلکې راوچتول مقصود دي چې هغې ته ترغیب هم ویلی شي په پښتو کې ددې دپاره داسې تعبیر مناسب دی: تاواني به شي که داسې دې ونه کړل، په عربي کې پوره جمله داسې جوړیږي **تربت یداک ان لم تفعل ما آمرتک**. (الکاشف ۶/۲۳۷)

## نیک بخته ښځه په دنیاکښې بهترین دولت دی

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الدُّنْيَا كُلُّهَا |
| اوحضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې د الله تعالی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل پوره دنیا |

مَتَاعٌ وَخَيْرُ مَتَاعِ الدُّنْيَا الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ». رَوَاهُ مُسلم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

یوه متاع ده او د دنیا بهترین متاع نیک بخته ښځه ده. (مسلم)

**توضیح**: متاع: د دنیا هغه قلیل او کثیر ساز او سامان دی د کوم نه چې فائده او چتولی شي هغې ته متاع ویلی شي، په مختصر الفاظو کښې داسې ووایه چې متاع هغه څیز دی په کوم سره چې لږه شان عارضي فائده او چتولی شي او بیا ختمه شي. (الکاشف ۶/۲۳۷)

امام لغت شیخ اصمعي رحمه الله په باره کې ویلی شي چې د دې درې څیزونو یعني متاع، تبارک، او د رقیم د حقیقت معلومولو تالاش وو چې د دې دریو الفاظو اصلي مفهوم او حقیقت څه دی نو هغه کلو ته طرفته اووتلو دې د پاره چې د صحرانشینو عرب فصحاو نه د دې حقیقت معلوم کړي، هر کله چې هغه په کلو کې یوې علاقې ته ورسیدلو نو هغوی و کتل چې په هغه ځای کې یوه جینۍ لوښي وینځي چې د هغې سره د لوښو وینځلو د پاره یوه خیرنه او غوړوالي نه ګنده کپړه وه، اصمعي دا منظر کتلو چې یو سپی راغلو او همدا ګنده کپړه یې وتختوله او د غر څوکې ته وتختیدلو. دې جینۍ د فریاد په انداز کې خپلې مور ته داسې آواز او کړو **یاأمّاه جآء الرّقیم وأخذ المتاع وتبارک إلی الجبل** اصمعي چې کله دا درې واړه مقاصد په یوه جمله کې واوریدل نو ډیر خوشحاله شو.

مطلب دا دی چې د متاع حقیقت دا شوړې او د لوښو وینځلو ګنده کپړې ته وایي. په سورة کهف کې چې د کوم رقیم لفظ راغلی دی د دینه مراد سپی دی، او په قرآن کې چرته چې د تبارک لفظ راغلی دی د هغې نه د الله تعالی اوچتوالی او عظمت مراد دی، د نیکې ښځې باره کې په دې وجه د متا لفظ استعمال شوی دی چې دا مفتوکښې چوکیداره ده د خاوند خدمتګاره ده د دینه او وفادار نسل پیدا کونکې ده او غمرازه ده، خیرخواه مشوره کاره ده، او همدا بهترین روزګار دی.

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خَيْرُ نِسَاءٍ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل بهترینې ښځې چه په

رکبن الْإِبِلَ صَالِحُ نِسَاءِ قُرَيْشٍ أَحْنَاهُ عَلَى وَلَدٍ فِي صِغَرِهِ

اوښانو سوریدو والا ښځو کښې د قریشو دي چه په وړو ماشومانو بچوباندې شفیقې وي او د خپل

وَأَرْعَاهُ عَلَى زَوْجٍ فِي ذَاتِ يَدِهِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

خاوند او د هغه د مال کوم چې د هغې په قبضه کې وی ډیر زیات حفاظت کوي. (بخاری و مسلم)

---

(1) اخرجه في صحيحه ۲/۱۰۹۰ رقم الحديث(۱۴۶۸،۶۴) والنسائي في ۶/۱۹۵۹ رقم الحديث۳۲۳۲ وأحمد في المسند ۲/۱۶۸

(2) اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۲۵ رقم الحديث۵۰۸۲ ومسلم في (۴/۱۹۵۹) وأحمد في المسند ۲/۲۶۹

**توضیح** : رکبن الابل : ددې نه دعربو ښځې مراد دي ځکه په اوښانو باندې سوريدل دعربو دښځو عادت او دهغوی خصوصیت دی دا دهغوی تعریف دی.(المرقات ۶/۲۶۶)

**احناه علی ولد:** حنا یحنو دنصر ینصر نه دشفقت په معنی سره دی، ولدیې نکز راوړی دی دې دپاره چې عموم راشي، چې دچا کوم ولد وي که خپل وي یا دسابقه ښځې نه وي چې دهغې په تربیت کې وي په هر یو باندې شفقت کونکې دي.(المرقات ۶/۲۶۶)
حانه هغه ښځه چې یتیم بچی وپالي کنه نو حانه نه ده، یا که یتیمان پریږدي نکاح وکړي نو بیا هم حانه نه ده، په دې حدیث کې عرب او بالخصوص دقریشو دښځو تعریف دی.
اوس سوال دلته دادی چې احناه کې ضمیر د مذکر ولې راوړلی شو هرکله چې ضمیر په ظاهر کې ښځو ته راجع کیږي؟ ددې جواب دادی چې دمذکرضمیر الصنف طرف ته راجع کیږي مراد هذا الصنف دی، یا **من یرکب الابل** طرفته راجع کیږي چې دکلام په مفهوم کې موجود دی هم دغه شان د ارعاء ضمیر مور طرفته راجع کیږي چې دکلام په مفهوم کې دی.(المرقات ۶/۲۶۶)

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا تَرَكْتُ |
| او حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه مانه ده پریخې |
| بَعْدِي فِتْنَةً أَضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ من النِّسَاء» متفق علیه.[۱] |
| روستو یوه فتنه چې دسړو په حق کې د ښځو دفتنې نه زیاته ضرر رسونکې وي.(بخاری ومسلم) |

**توضیح** : **فتنة اضر**: ښځو لره که چیرې دهغوی جبلي او تخلیقي فطرت، یا څه ظاهري شریعت قابو نه کړي او دا فطري اوشرعي څیزونه ددې اصلاح ونه کړي نو ښځې عین فساد دی او دسړو په حق کې دا دټولو نه لویه ضرر رسونکې فتنه ده، اول خو په دې وجه چې په عام طور باندې دسړو طبیعتونه ښځو طرفته مائل وي، دویم دا چې سړي زیاتر د ښځو د خواهشات پوره کولو پابند وي او دښځې ټوله سرمایه داده چې هغه سړی د دنیا زیب او زینت طرفته مائله کوي او د دنیا په محبت کیې ګرفتار وي، او د دنیا محبت د هرې بدۍ اوفتنې جرړه ده. لهذا ښځه دفساد ذریعه نه ده بلکه عین فساد دی.(المرقات ۶/۲۶۷،۲۶۶)
په دنیاکې دټولو نه اول قتل قابیل دښځې د وجې نه کړی وو او هغه یې هم خپل رور وژلی وو، په قرآن کریم کې الله تعالی (زین للناس حب الشهوات من النساء) (سورة ال عمران ۱۴) الخ کې یې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۳۷ رقم الحديث۵۰۹۶ ومسلم في ۴/۲۰۹۷ رقم الحديث(۲۷۴۰.۹۰)والترمذي في السنن ۵/۹۵ رقم الحديث۲۷۸۰ وابن ماجه في ۲/۱۳۲۵ رقم الحديث ۳۹۹۸ وأحمد في المسند ۵/۲۰۰

ښځې دنفس د شهواتو ګرځولو سره په ټولو شهواتو کښې اول ذکر کړې. خلاصه دا چې ښځه که چيرې نيکه وي نو دحوا لور ده، او ځوره ده، او که مفسده وي نو دشيطان تروروده.نبی عَلَيْهِالسَّلَامُ دښځو دې فتنې سره د بعدی لګولو سره اشاره وفرمايله چې ددوی فتنه به زما د انتقال نه پس ډيريږي.

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «إِنَّ الدُّنْيَا |
| او حضرت ابوسعيد الخدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دنيا خوږه او ښنه |
| حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ وَإِنَّ اللهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا فَيَنْظُرُ كَيْفَ تَعْمَلُونَ |
| (نظرلره جذب کونکې) ده او چونکې الله تعالی تاسو ددې دنيا خليفه جوړکړي يې په دې وجه هروخت ګوري |
| فَاتَّقُوا الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ فَإِنَّ أَوَّلَ فِتْنَةِ بَنِي إِسْرَائِيلَ |
| چې ته په دې دنيا کې څنګه عمل کوې، لهذا ددنيا نه بچ شئ او دښځو (دفتنې) نه بچ شئ ځکه د بنی اسرائيلو |
| كَانَتْ فِي النِّسَاءِ». رَوَاهُ مُسلم. |
| دتباهی ذريعه دټولو نه اول فتنه دښځو په صورت کې وه.(مسلم) [1] |

**توضيح** : **حلوة خضرة** : يعنې خوږه ښنه جاذبِ نظر ده، خوږ څيزلره طبيعت غواړي او ښين څيز هم په نظر کې تاويږي او راتاويږي دغه شان دنيا هم په دواړو سترګو کې ډيره ښه لګي.(المرقات ۲۶۷/۶) **والله مستخلفكم** : يعني الله تعالى تاسو په دې دنياکې خپل خليفه ګان جوړکړي يې تاسو خليفه ګان يې، اصل مالک الله تعالی دی ته صرف نائب او د وکيل په طور باندې په دې کې اوسيږې.(المرقات ۲۶۷/۶)

**فاتقوا الدنيا** : يعني په دنيا باندې د دوکې يو جال دی په دې کې ګيرنه شي دنيا فاني او ناپائداره ده خپله بيړه په دې خطرناک سمندرکې غرقه نه کړئ.(المرقات ۲۶۷/۶)

| | |
|---|---|
| يار ناپائيدار دوست مدار | دوستی رانه شائيد ايں غدار |
| دنيا تخادعنی کأنی لستُ اعرف حالها | مدت الی يمينها فقطعتها وشمالها |
| منع الاله حرامها وانا اجتنبت حلالها | فرأيتها محتاجة فوهبت جملتها لها |

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۹۸/۴ رقم الحديث(۹۹:۲۷۴۲) والترمذي في السنن ۴۱۹/۴ رقم الحديث۲۱۹۱ وابن ماجه في ۱۳۲۵/۲ رقم الحديث ۴۰۰۰ واحمدفي المسند۲۲/۳ .

او د ښځو د مکر او فریب نه بچ شئ دا ډیرې مکارې، دوکه بازې، او وران کارې دي ((ان کیدکن عظیم)) (المرقات ۲۶۷/۶) دهغوی کردار دی، تا به هلاک کړي.

**فان اول فتنة بنی اسرائیل** : په دې حدیث کې په بنی اسرائیلوباندې د ښځو دوجې نه چې کومه فتنه راغلې وه ددې مصداق دوه واقعې دي.(المرقات ۲۶۷/۶)

**حکایت** :(۱) حضرت موسی علیه السلام بنی اسرائیل دځان سره واخستل دجهاد په غرض سره دشام علاقې جبارون (د عمالقو وغیره) سره دمقابلې دپاره ووتل، په دې قوم کې دبلعم بن باعورا په نوم باندې یو مستجاب الدعوات سړی اوسیدو قوم هغه ته وویل چې دموسی علیه السلام خلاف بددعائي وکړه دې دپاره چې د خپلو لښکرو سره واپس لاړشي، هغه وویل چې هغه پیغمبر دی که بددعائي وکړم نو هلاک به شم. هغه خلقو دښځو اوتحفو په ذریعې سره هغه ته په بددعائي کولو باندې تیار کړو، بلعم په خپل خر باندې سوریدو سره د بد دعائي دپاره ووتلو خر ورته ګویا کیدو سره وویل!اې نادانه بلعمه! په تادې افسوس وي چرته روان یې دخپل ځان سره ما هم هلاکوې؟ ته ما مخکې بوځې او فرشتې ما شاته راکاږي، بلعم دخر نه راکوز شو او پیدل روان شو او لاړلو په یو مقام باندې یې بد دعائي وکړه بد دعائي الټه شوه اوس هغه خپل قوم ته بددعائي کوي قوم بلعم ته وویلل چې داڅه کوې؟ هغه ورته وویل چې بې اختیاره مې دژبې نه ستاسو دپاره بد دعائي اوځی، په دې سره دبلعم بد دعائي بهر راوتله او په سینه یې زوړنده شوه. بلعم قوم ته وویل چې زما خو دنیا او آخرت تباه شول اوس تاسو دموسی اودهغه د لښکر د منع کولو دپاره خپلې ښائسته ښځې سینګارکړې لښکرته دننه ورپرېږدئ او ښځو ته ووائي چې دهر سپاهي هر خواهش پوره کړي.

نودا ښځې لاړلې او د اسلام په لښکر کې فتنه خورول شروع کړل خوچا هم هغوی طرفته نه کتل خو زمزم نوم یو سردار د یوې ښځې سره زنا وکړه چې دهغې په نتیجه کې په بنی اسرائیلو کښې یوه وبا خوره شوه چې په هغې اویا زره فوجیان مړه شول. حضرت موسی علیه السلام ددې ګناه دتلاش دپاره سړي ولیږل، یو سړي زمزم او د هغه سره پردی ښځه قتل کړه نوبیا عذاب ختم شو، په دې حدیث کې دې فتنې طرفته اشاره ده.(المرقات ۲۶۷/۶)

**حکایت** :(۲) دویمه قصه داسې راپیښه شوه چې په بنی اسرائیلو کې عامیل نوم یو سړي خپل تره او د تره ځوی په دې وجه مړه کړل چې دهغه لور یا د ښځې سره نکاح وکړي، په سورت بقره کې هغه اوږده قصه ددې واقعې متعلق ده،کیدی شي په دې حدیث کې دې قصې طرفته اشاره وي.(المرقات ۲۶۷/۶)

## په درې څیزونو کې نحوست

﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الشُّؤْمُ فِي الْمَرْأَةِ وَالدَّارِ وَالْفَرَسِ».

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل په ښځه، کور او اس کې نحوست وي

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ: "الشُّؤْمُ فِي ثَلَاثَةٍ: فِي الْمَرْأَةِ

او په یو روایت کې داسې دي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل نحوست په درې څیزونو کې وي

والمسكن وَالدَّابَّةِ" (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

مکان کې، او څناورو کې. (بخاري ومسلم)

**توضیح**: **الشؤم**: شوم بدفالۍ نحوست او بې برکتۍ ته وايې دا د **يُمن** برکت ضد دی. (المرقات ۲۶۹/۶)

**سوال**: دا حدیث دهغه ټولو احادیثو معارض دی په کوم کې چې دبدفالۍ، نحوست نفی شوې ده، بلکې **الطیرة شرک** فرمایلی شوې دي.؟

**اولنی جواب**: د دې سوال څو جوابونه دي: اول جواب دا دی چې دا کلام د فرض او تقدیر په طور دی چې فرض کړه که چیرې نحوست وی نو په دې درې څیزونو کې به وی مگر نحوست نشته دی په دې وجه په دې دریو کې هم نشته دی.

**دویم جواب**: دا چه پخپله ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې نحوست تشریح او توضیح کې فرمایې چې د ښځې نحوست دادی چې بداخلاقه وي، او د اس نحوست دا دی چې سرکشه وي سوریدو ته ځان نه پریږدي، د کور نحوست دادی چې تنگ وي. نو دلته په حدیث کې بدفالي نه بلکې بدي مراد ده. بعضو ویلي دي چې منحوسه هغه ښځه ده چې شنډه وي، دکور نحوست دادی چه ددې گاونډیان بیکاره وي، او د اس نحوست دادی چې په دې جهاد ونه کړی شي.

**دریم جواب**: دادی چې واقعي الله تعالی په درې څیزونو کې دنحوست خاصیت ایخودلی دی دا تاثیر بالخاصه دی په دې وجه دا درې څیزونه د بدفالۍ او د طیرې دعامو احادیثو نه مستثنی دي. **ومن عام الا وقد خص عنه البعض**. (المرقات ۲۶۹/۶)

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۳۷ رقم الحديث۵۹۳ ومسلم في ۴/۱۷۴۵ رقم الحديث(۲۲۲۵.۱۱۵) وأبوداؤد في السنن ۴/۲۳۷ رقم الحديث۳۹۲۲ والترمذي في ۵/۱۱۶ رقم الحديث۲۸۲۴ والنسائي في ۶/۲۲۰ رقم الحديث۳۵۶۹ ومالک في المؤطا ۲/۹۷۲ رقم الحديث۲۲ من كتاب الاستئذان.

## دخپلې دنکاح دپاره جینۍ ښځې ته ترجیح ورکړه

﴿۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ: قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ فَلَمَّا قَفَلْنَا كُنَّا

اوحضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یو جهاد کې مونږد نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ سره یوځای وو نو مونږد (جهاد نه) واپس شو

قَرِيبًا مِنَ الْمَدِينَةِ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ

او مدینې ته نزدې ورسیدو نو ما عرض وکړو چې ای دالله رسوله! زما نوی واده شوې دی (که ستا حکم وي

بعرس قَالَ: «تَزَوَّجْتَ؟» قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ:

نو زه به مخکې لاړشم دې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې تا نکاح کړې ده؟ ما عرض وکړو اوجی! نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ تپوس وکړو

«أَبِكْرٌ أَمْ ثَيِّبٌ؟» قُلْتُ: بَلْ ثَيِّبٌ قَالَ: «فَهَلَّا بِكْرًا

چه جینۍ سره که کونډې سره؟ ما عرض اوکړو کونډې سره نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائیل چه تا جینۍ سره ولې ونه کړه

تلاعبها وتلاعبك». فَلَمَّا قَدِمنَا لِنَدْخُلَ فَقَالَ:

دې دپاره چې تا هغې سره او هغې د تا سره لوبې کولې مدینې ته مونږټول خپلو کورونو ته د تللو اراده وکړه نبی

«أَمْهِلُوا حَتَّى نَدْخُلَ لَيْلًا أَيْ عشاء لكي

عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائیل اوس صبر وکړئ مونږد شپې کورونو ته داخل شو دې دپاره چې د کومې ښځې ویښته گډ وډ وي

تمتشط الشعثة وتستحد المغيبة»[۱]

هغه گومنز کولو سره برابر کړي او هغه ښځه چې د کومې خاوند موجود نه وو هغه خپل زیاتي ویښته صفا کړي.

**توضیح**: **في غزوة**: ددې نه مراد غزوه تبوک ده **قفلنا** د میدانِ جهاد او غزوې نه واپس کورته راتلو ته قفل وایي. (المرقات ۶/۲۶۹)

**تلاعبها وتلاعبک**: په دې جمله کې د ښځې او خاوند دپاره دلوبو او د حقوق زوجیت طرفته اشاره وکړې شوه، حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دباکرې سره دنکاح ترغیب ورکړو. (المرقات ۶/۲۷۰)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې معقوله وجه دا وخودله چې زما اته خویندې دي که چیرې ما دجینۍ سره

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۴۲ رقم الحديث۵۲۴۸ ومسلم في ۲/۱۰۸۸ رقم الحديث(۱۴۶۶،۵۷) وأبوداؤد في السنن ۳/۵۴۰ رقم الحديث۲۰۴۸ والنسائي في ۶/۶۵ رقم الحديث۳۲۲۶ وابن ماجه في ۱/۵۹۸ رقم الحديث۱۸۶۰ والدارمي في ۲/۱۹۷ رقم الحديث۲۲۱۶

واده کړی وی نو هغه به هم ددوی سره جینۍ وه، ما وغوښتل چې یوې ثیبې کونډې تجربه کارې ښځې سره واده وکړم دې دپاره چې هغه ددوی مور جوړیدو سره تربیت وکړي.
ندخل لیلا: دلته دا سوال دی چې په دویم حدیث کې د شپې په وخت د داخلیدو نه منع راغلې ده او دلته دشپې د دخول دپاره دانتظار حکم ورکړی شو او دا خو تعارض دی؟ ددې جواب دادی چې د شپې داخلیدل هغه وخت منع دي چې مخکې نه دشپې د راتلو اطلاع نه وي او د ښځې دتزین او آرائش نه بغیر سمدست کورته ننوځي، هلته ښځه خیرنه خچنه ګنده ناسته وي په دې سره ډیر او تعلقاتو ته سخت نقصان رسیږي، نودا منع دی او دلته دشپې د داخلیدو نه مخکې ښځو ته اطلاع شوې وه هغوی ته دتیارۍ او آرائش اوزیبائش موقع ملاو شوې وه نودا جائز دی، ځکه دا صورت ددې منع شوې صورت نه جدا دی. (المرقات ۶/۲۷۰)

**لکي تمتشط**: امتشاط ګومنزولو ته وایي **الشعثة** خوَرو ویښتو والا ښځې ته وایې، کله چې ډیر وخته پورې خاوند د کور نه غائب وي، نو ښځه عمومًا د ویښتو جوړولو نه غافله وي هم دا شعثه ده. (المرقات ۶/۲۷۰)

**تستحد المغیبة**: دا د استحداد او حدید نه دی د وسپنې استعمالولو په معنی سره راځي **المغیبة** هغه ښځې ته وایې چې د چا خاوند د ډیرې مودې نه غائب وي په میم باندې پیش دی.
اوس دلته اول سوال دادی چې دلته د ښځې دپاره د چړې استعمال خودلی شوی دی دا څنګه ده؟ ددې جواب دادی چې د ښځې دپاره د چړې استعمال نامناسب دی او نه ښځې ددې استعمال په صحیح طریقې سره کولی شي، دلته د استحداد لفظ د ویښتو د ازالې دپاره کنایه ده خو که په نوره سره وي یا په بال صفا وغیره سره وي.
د ښځو دپاره اصل طریقه لتف یعني د ویښتو ویستل دي خو دا لفظ د قباحت په وجه سره ظاهر نه کړی شو نو د استحداد لفظ استعمال شو. همدا وجه ده چې دلته د **المغیبة** لفظ راغلی دی ددې نه مخکې د **الشعثة** لفظ راغلی دی حالانکه هغه ګومنزونکې خورو ویښتو والا ښځه هم المغیبة ده دهغې خاوند غائب وو، خو دلته د نامه نه لاندې اوږدو ویښتو ذکر پریخودلی شو هغه یې د مغیبة په نوم سره یاده کړه دې دپاره چې د ښځو په پټو مسائلو باندې ممکن حد پورې پرده واچولی شي نو د **المغیبة** لفظ په حقیقت کې د نامه نه لاندې ویښتو د اوږدیدو نه کنایه ده، ددې ذکر په وجه د قباحت پریخودلی شو، او الشعثة کې قباحت نه وو په دې وجه ددې ذکر وکړی شو دې ته د المغیبة ویلو ضرورت نه وو. د سړو دپاره د نامه نه لاندې ویښته صفا کولو دپاره د اُسترې (چاړې) استعمالول زیات بهتر او باعث د قوت منۍ دی، او د ښځو دپاره نتف یعني ویستل زیات بهتر دي. (المرقات ۶/۲۷۰)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## هغه درې سړی چې دهغوی به الله ضرور مدد کوي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ثَلَاثَةٌ |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه راوی دی چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم او فرمائيل درې سړی داسې دی |
| حَقٌّ عَلَى اللهِ عَوْنُهُمْ: الْمُكَاتَبُ الَّذِي يُرِيدُ |
| چه دهغوی مدد په الله تعالی باندې واجب دی يو خو مکاتب دی چه دخپل بدل کتاب د اداء کولو اراده لري |
| الْأَدَاءَ وَالنَّاكِحُ الَّذِي يُرِيدُ الْعَفَافَ وَالْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللهِ". |
| دویم هغه نکاح کونکی سړی چې دحرام کارۍ نه دبچ کیدو نیت لري او دریم د الله تعالی په لاره کې جهاد کونکی. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه (حسن)[۱] |
| روایت کړې دې ترمذی او نسائی او ابن ماجه (دا حدیث حسن دی) |

**توضيح** : حق على الله : لفظ د حق یې په دې وجه اختیار کړو چې راتلونکي درې کارونه د انسان دپاره ډېر سخت او ګران دي چې دانسان ملا ماتوي، که چیرې الله تعالی خصوصی مهربانی او مدد ونه فرمايي نو هيڅ يو سړی دې لره دا شي پوره کولی. **المکاتب** : مکاتب هغه غلام ته وايې چې دهغه مالک هغه ته ويلي وي چې ته دومره پیسې وګټې او ماته يې راکړې نو ته به آزاد شې، دې رقم ته بدل کتابت وايې ددې په آزادولو سره غلام آزادیږي خو که یوه روپۍ هم باقي وي نو مکاتب به غلام وي داسې غلام ته زکوة ورکول هم جائز دي او الله تعالی په خپل ځان باندې داحسان او اکرام په طور باندې دهغه مدد کول واجب فرمايلي دي. (المرقات ۲۷۱/۶، ۲۷۰)

دغه شان ناکح دی او دغه شان مجاهد فی سبیل الله دی ځکه چې ناکح پاکدامني غواړي او مجاهد خو دالله تعالی د دین او چتوالي دپاره دځان بازي لګوي، په دې وجه الله تعالی دهغه مدد کوي دا بې غرضه خلق دي.

**د** بند ځې دولی دپاره يو ضروري هدايت

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا خَطَبَ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم و فرمایل کله چې تاسو ته څوک |

---

(۱) أخرجه البخاري الترمذي في السنن ۱۵۷/٤رقم الحديث۱٦۵۵ والنسائي في ٦/٦۱ رقم الحديث۳۲۱۷ وابن ماجه في ۸٤۱/۲ رقم الحديث۲۵۸۱

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَيْكُمْ | مَنْ | تَرْضَوْنَ | دِينَهُ | وَخُلُقَهُ | فَزَوِّجُوهُ | إِنْ | لَا تَفْعَلُوهُ |

سړی د نکاح پیغام را ولیږي او ته مطمئن یې د هغه سړی د دینداری او د اخلاقو نه نو (هغه پیغام منظور کولو سره)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَكُنْ | فِتْنَةٌ | فِي | الْأَرْضِ | وَفَسَادٌ | عَرِيضٌ» | رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ [1] | |

د هغه سره نکاح وکړئ او که داسې ونه کړئ نو په زمکه کې به فتنه او فساد خور شي

**توضیح : فَزَوِّجُوهُ**: یعني یو نیک سیرته او نیک صورته سړي د نکاح پیغام درکړو نو د جینۍ اولیاو ته پکار دي چې د هغه په پیغام باندې عمل کولو سره جینۍ هغه ته په نکاح کې ورکړي او بیکاره شرطونه ونه لګوي څنګه چې د دنیا د خلقو عادت دی چې هغوی اهل ثروت او مالداره خلق لټوي او ښو اخلاقو او دینداری ته نه ګوري، بیا قسم قسم شرطونه لګوي په دې وجه د مرضی رشته زر نه ملاویږي، نو جینۍ د مرګه پورې په کور کې ناسته وي بلکه چې د سړو او د ښځو په دواړو کې داسې رکاوټونه رائحي نو زنا به عامه شي، او د دې په نتیجه کې به جنګ جګړې به وي او اوږدې اوږدې دشمنۍ او فسادونه به شروع شي. په حدیث کې خطاب د ښځې اولیاو ته دی کله کله په پیغام رد کولو سره په خپل مینځ کې بغض او حسد، عناد او فساد او د دشمنۍ میدان هم ګرم شي. د دې حدیث په وجه امام مالک رحمه الله

وایي چې د نکاح د پیغام د راتلو نه پس صرف دین ته کتل پکار دي د دې نه علاوه په کفو کې به شرافت او خانداني نسب ته نه شي کتلی، خو جمهور علماء کرام وایي چې کفاءت د پاره د څلورو څیزونو ضرورت دی : (۱) دین (۲) حریت (۳) نسب او حسب (۴) حرفت او پیشه (المرقات ۲۷۱/۶ و الکاشف ۲۴۴/۶)

## زیات بچي راوړونکې ښځې سره نکاح کوئ

﴿۱۲﴾ وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَزَوَّجُوا

حضرت معقل بن یسار رضي الله عنه فرمایي چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي داسې زنانو سره نکاح کوئ چې خپلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْوَدُودَ | الْوَلُودَ | فَإِنِّي | مُكَاثِرٌ | بِكُمُ | الْأُمَمَ» |

خاوندانو سره مینه کونکې او زیات بچي راوړونکي وي ځکه چې زه به ستاسو څکه چې زه به ستاسو په ډیروالي

(1) أخرجه البخاري الترمذي في السنن ۳/۳۹٤ رقم الحديث ۱۰۸٤ وابن ماجه في ۱/٦۳۲ رقم الحديث ۱۹٦۷

| رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ [1] |
|---|
| په نورو امتونو فخر كوم. (ابوداود، نسائي) |

**توضيح** : الولود الودود: زنانه كه چيرته ډير بچي راوړي خو چې د خاوند سره مينه كوونكي نه وي نو دا هم د زړه د اطمينان سبب نه ګرځي اوسترګو ته نه پريوځي، او كه اولاديې نه وي، شنډه وي نو بيا هم د نكاح مقصد او مطلب فوت كيږي، نو داهم سبب د اطمينان نه ګرځي. خو كه چرته دا دواړه صفتونه په يوه زنانه كي راجمع شي نو هغې ته رغبت هم كيږي او خاوند ته ګرانه هم وي.

**سوال**: دا پته به څه رنګه لګي چې فلانكۍ مينه كوونكې ده او فلانكۍ مينه كوونكې نه ده او څوك زيات ماشومان پيدا كوونكې ده او څوك نه ده؟

**جواب**: د دې آسان جواب دا دى چې د هرې زنانه د خاندان او د هغې د رشته دارانو نه پته لګي چې د دې خاندان جينكۍ څنګه دي. (المرقات ۶/۲۷۲)

**فإني مكاثر بكم**: دا جمله د ماقبل دپاره علت ده. (**مكاثر اي مفاخر**) يعنې د نورو امتونو په مقابله كې به زه ستاسو په ډيروالي فخر كوم چې زما منونكي زيات دي. كله چې تاسو زيات يئ نو زه به په مقابله كې په هغوي باندې غالب شم. په دې حديث كې ډيروالي د اولاد ته ترغيب دى نو دا خبره سراسر غلطه ده چې (بچے دو ہی اچھے) يعنې ماشومان دوه ښه دي. كه په ډيروالي د اولاد د خلقو اعتراض د دې وجې نه وي چې دا ماشومان به بيا په معاشره باندې بوج شي نو دا حقيقت نظر انداز كول نه دي پكار چې د نن دا ماشومان به صبا له د معاشرې د ترقۍ ذريعه وي، او كه چرته ماشومان كمول غواړئ نو ميدان جهاد پرانيزئ چې څنګه ماشومان غټيږي نو ميدان جهاد كې به شهيدان كيږي. د الله تعالى رضا او د دين ترقي به حاصليږي. په دې كې دين هم دى او دنيا هم. او كه د باطل پرستو او كافرانو اعتراض په دې وي چې د مسلمانانو زيات ماشومان پيدا كيږي، نو د هغې جواب دا دى چې تاسو سوزځئ سوزځئ او مسلمانان به هم داسې زياتيږي، تاسو كه دواياني ايجاد كوئ او ناجائز خانداني منصوبې جوړوئ نو د مسلمانانو غيرتمند او د شرم او حيا نه ډك ځوانان به ستاسو منصوبې په خاورو كې ملاووي او زيات نه زيات ماشومان به پيدا كوي. (المرقات ۶/۲۷۲)

---

[1] أخرجه البخاري أبوداؤد في السنن ۲/۶٤۲ رقم الحديث۲۰۵۰ والنسائي في ٦/٦٥ رقم الحديث۳۲۲۷

## ناواده کړې سره نکاح زياته بهتره ده

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَالِمِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ عُوَيْمِ بْنِ سَاعِدَةَ الْأَنْصَارِيِّ عَنْ أَبِيهِ |
| حضرت عبد الرحمن بن سالم بن عويم بن ساعده انصاري د خپل پلار سالم نه او هغه د عبد الرحمن |
| عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عَلَيْكُمْ بِالْأَبْكَارِ |
| د نيکه يعني د عتبه تابعي نه نقل کوي چې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمائيلي دي چې تاسو لره ناواده کړې |
| فَإِنَّهُنَّ أَعْذَبُ أَفْوَاهًا وَأَنْتَقُ أَرْحَامًا وَأَرْضَى بِالْيَسِيرِ». |
| زنانو سره نکاح کول پکار دي ځکه چه دوی خوږه خله لري او زيات بچي راوړونکي او په لږ څه راضي کيدونکي دي |
| رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه مُرْسلاً [1] |
| روايت کړې دې ابن ماجه په طريقه د ارسال |

**توضيح** : **اعذب افواها**: په عربي ژبه کې کله هم چې د محبوبې د خولې د لاړو صفت بيانولی شي نو د هغې دپاره د اعذب لفظ ذکرکوي. دلته کې د خولې ذکر کولو نه لاړې مراد اخستل شوې دي. ساحر شاعر د محبوبې د خولې لاړې په خوږوالي کې د شاتو نه هم زياتې ښودلې دي.

**مظلومة القد في تشبيهه غصناً ظلومة الريق في تشبيهه ضرباً**

ضرب شاتو ته ويلی شي.

**اعذب افواها**: يا خو د ژبې او د خبرو د خوږوالي نه کنايه ده ځکه چې ناواده کړې جينۍ د شرم او حيا د وجې نه په ژبه بدې ردې نه وايي او بل مخکې يې بل خاوند سره هم واسطه نه وي راغلې.

وہ لب کہ جیسے ہو شاخ گلاب پہ غنچہ جو بات بھی نہ کرے با کمال لگتا ہے.

او يا خو په حقيقت کې د پيغلتوب د وجې نه د پيغلې لاړې خوږې وي لکه څنګه چې مونږه مخکې وويله چې ذکر د خولې يې کړی دی او مراد يې ترې لاړې اخستې دي.

په دې حديث کې د پيغلې بل يو خصوصيت هم بيان کړی شوی دی چې پيغله د پيغلتوب د وجې نه زيات ماشومان پيدا کوي.

**والتق ارحاما**: التق د اوسع په معنی سره دی. اي اکثر اولاداً. يعني په بچي دانه کې د قوت او ګرموالي د زيات مقدار د وجې نه نطفه زر قبلوي او بچي زيات پيدا کوي. ناتق هغه زنانه ته وايي چې اولاد يې زيات وي.

---

(1) أخرجه ابن ماجه في ۱/۵۹۸ رقم الحديث۱۸۶۱

شاعر حماسي فرمائي.

ابى لهم ان يعرفوا الضيم انهم     بنو ناتق كانت كثيرا عيالها

یعني د کثیر الاولاد زنانو ډیر زیات زامن دي، هغوی ظلم او ذلت نه پیژني.
نتق په عربي ژبه کې د ویشتلو په معنی سره راځي نو مطلب دا شو چې دا زنانه مسلسل ماشومان پیداکوي.(المرقات ۲۷۲/۶)

**وارضى باليسير**: په دي جمله کې د پیغلې دریم خصوصیت دا بیان کړی شوی دی چې ناواده کړې له چې څومره حصه هم ورکړی شي نو هغه پرې راضي کیږي . که کور والی وي یا سامان یا خوراک یا خبرې اترې وي، ځکه چې مخکې یې بل خاوند نه وي تیر شوی، نو په لږ او ډیر هر څه باندې راضي کیږي. په خلاف د واده کړې زنانه نه چې د هغې مخکې خاوند هم تیر شوی وي نو بیادا نوی خاوند په هر څه کې تلي.دا حدیث او د دې نه مخکې حدیث د معقل په خپل مینځ کې د مضمون او مطلب په اعتبار سره په عجیبه انداز سره تړلی شوې دي. اولني حدیث کې د مینه ناکې ښځې تذکره وه. او کومه زنانه چې مینه ناکه وي نو د هغې ژبه او الفاظ ډیر خواږه وي نو په دې دویم حدیث کې یې د دې خبرې تذکره وکړه. دا خو د زنانه ظاهري صفت شو او په (ارضى باليسير) سره یې د دې قناعت او صبر ذکر کړو نو دا د دې زنانه باطني صفت شو کوم چې دې دویم حدیث کې ذکر دی. او په کوم انسان کې چې د زړه او خولې صفتونه راجمع شول نو دا کامیاب انسان دی. شاعر فرمایي.( المرقات ۲۷۲/۶)

لسان الفتى نصف ونصف فؤاده     فلم يبق الا صورة اللحم والدم

## الفصل الثالث

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې نبي کریم ﷺ فرمائیلې دي چې (ای انسانه) تا د نکاح |
| «لَمْ تَرَ لِلْمُتَحَابِّينَ مثل النِّكَاحِ». رَوَاهُ ابْن مَاجَه. |
| په شان داسې یو څیز هم نه دی لیدلی چې د دوو محبت کوونکو په مینځ کې مینه زیاته کړي.(ابن ماجه) |

**للمتحابين**: یعني د نکاح دوجې نه د ښځې او خاوند مینه دومره زیاته شي چې په یو بل کې فناه شي او بیا د دوو کسو د مینې دوجې نه دوه ځانه انو نه یو بل سره داسې یوځای شي چې ته به وایې که د وینې رشته یې ده. په یو بل باندې قربانیږي.دویم مطلب دا دی چې مخکې دواړو کې پاکه مینه وه نو د نکاح د وجې نه هغه مینه نوره هم داسې زیاته شي چې داسې مینه به چاهم نه وي لیدلې او نه

به يې اوريدلې وي. د دې وجه داده چې دنكاح نه بغير مينه ناقصه ده او په نكاح كې كوروالى هم دى چې د مينې تكميل ورسره راځي. (المرقات ۶/۲۷۳)

## آزادو زنانو سره د نكاح كولو فضيلت

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَرَادَ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې كو كس ددې خبرې خواهشمند وي

أَنْ يَلْقَى اللهَ طَاهِرًا مطهراً فليتزوج الْحَرَائِرَ». رَوَاهُ ابْن [illegible][1]

چې دا پاك او صفا حالت كې الله تعالى سره ملاو شي نو داسې انسان له پكار دي چې د ازادو زنانو سره نكاح وكړي.

**فليتزوج الحرائر:** وجه داده چې په وينزه كې هغه خصوصيات نشته كوم چې په ازادو كې وي. د دې غلط اثر په خاوند باندې هم كيږي او بياد دې ناكاره عادتونه او كم همتي په اولاد كې هم پيدا شي. وينزه په خپله هم د ادب او تهذيب نه خالي وي نو اولاد يې هم بې تربيته او بد تهذيبه غټ شي. د دې په ځاى د ازادې زنانه د اوچتو صفاتو اثر په خپل خاوند او اولاد باندې پريوځي نو هغوى پاك صفاوي، ځكه چې د ازادو په شان تربيت او طريقه په وينزو كې چرته ملاو يږي. نچوړ د خبرې دا شو چې اسلام خپلو تابعدارانو لره په شكل د يو كامل انسان او كامل صفاتو كې ليدل غواړي او دغه صفات په ازادو كې ملاويږي په وينزو كې نه ملاويږي. (المرقات ۶/۲۷۴، ۲۷۳)

## د نيك بختې ښځې خصوصيت

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ يَقُولُ: «مَا «مَا اسْتَفَادَ الْمُؤْمِنُ

او حضرت ابو امامهؓ فرمايې چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې مومن بنده چې دتقوى نه

بَعْدَ تَقْوَى اللهِ خَيْرًا لَهُ مِنْ زَوْجَةٍ صَالِحَةٍ إِنْ أَمَرَهَا

پس كوم بهترين څيز ځان دپاره خوښوي نو هغه نيك بخته ښځه ده. دا داسې ښځې دى چه كه چرته خاوند ديته حكم

أَطَاعَتْهُ وَإِنْ نَظَرَ إِلَيْهَا سرته وَإِن أقسم عَلَيْهِ

كوي نو هغه يې مني او كله چه ورته گورې نو د خاوند زړه خوشحالوي. كله چه خاوند دې لره قسم وركړي نو قسم ورله

أَبَرَّتْهُ وَإِنْ غَابَ عَنْهَا نَصَحَتْهُ فِي نَفْسِهَا وَمَاله». روى ابن مَاجَه

پوره كوي او كله چې ئې خاوند موجود نوى او چې كلله دې خاوند موجود نوي نو دا دخپل ځان او (دخاوند دمال) خيال ساتي.

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في ۱/۵۹۷ رقم الحديث ۱۸۶۲

| | | |
|---|---|---|
| الْأَحَادِيث | الثَّلَاثَة | (حسن)[1] |
| پورتني درې واړه احاديث ابن ماجه نقل کړي دي. | | |

**بعد تقوی الله:** يعنې د ديندارۍ او تقوی نه بعد بهترين څيز نيکه بي بي ده. چې د مفتو خدمت ګاره ده . په خاوند خفه کيدونکې او د خاوند منونکې ده. د خاوند د ټولو احساساتو حفاظت کونکې ده چې پکښې د دنيا او اخرت فائده ده. په دې حديث کې لفظ د ""تقوی الله"" د الله تعالی ويره او دين اسلام په دوو حصو کې تقسيم کړي دي. نيمه حصه د نيکې ښځې سره نکاح کول دي او باقي نيمه ددې نه علاوه دي. د دې حديث مضمون د راروان حديث د مضمون په شان دی چې نکاح کول نيم دين دی. احياء العلوم کې امام غزالي (رحمه الله) فرمايې چې انسان لره عام طور باندې تباه کونکې دوه څيزونه دي: يو ګيډه ده او بله شرمګاه ده. د نکاح سره د شرمګاه مسئله حل شي. په دې حديث کې يې د نيکې بي بي وضاحت کړی دی. چې خلاصه يې داده چې ښځه که نيکه وي نو د خاوند منونکې او د خاوند اشارو ته لبيک ويونکې وي . که خاوندموجود نه وي نو هم د خپل خاوند خيرخواهي لټوي او که چرته ښځه خرابه وي نو بيا خوتباهي اوبربادي ده. (المرقات ۲۷۴/۶)

**اقسم عليها:** د دې جملې مطلب دادی چې که چيرې خاوند د خپلې ښځې متعلق قسم وخوري چې دا کار به نه کوي يا به يې کوي نو نيکه بي بي د خپل خاوند دقسم ښه پوره پوره خيال ساتي. (المرقات ۲۷۴/۶)

## نکاح کول نيم دين دی

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې کوم انسان چې کوم |
| فَقَدِ اسْتَكْمَلَ نِصْفَ الدِّينِ فَلْيَتَّقِ اللهَ فِي النِّصْفِ الْبَاقِي» (اخرجه البيهقي) |
| انسان نکاح وکړه نو ده خپل نيم دين محفوظ کړو. ده لره پکار دي چې په باقي نيم دين کې د الله تعالی نه ويرېږي. |

**توضيح : نصف الدين:** يعنې په انسان کې دوه قوتونه او څيزونه داسې دي چې د هغې د وجې نه په پوره دين کې د فساد راتللو احتمال دی: يو د ګيډې د شهوت طاقت دی او دويم د شرمګاه د شهوت طاقت دی. د ګيډې شهوت د شرمګاه د شهوت نيم دی نو په نکاح سره د شرمګاه د شهوت نه

(۱) أخرجه البخاري ابن ماجه ۵۹۶/۰ رقم الحديث ۱۸۵۷

حفاظت کیږي نو ځکه د نیم دین حفاظت په نکاح سره وشو. او د باقي نیم دین حفاظت په نورو نیکو اعمالو او عباداتو سره کول پکار دي چې ایمان مکمل شي. (المرقات ۲۷۵/۶، ۲۷۴)

## کومه نکاح د برکت نه ډکه وي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾وَعَن عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ أَعْظَمَ النِّكَاحِ بَرَكَةً |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې بیشکه زیات برکت والا نکاح |
| بَرَكَةً أَيْسَرُهُ مُؤْنَةً». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيّ فِي شعب الإِيمَان بَاب النّظر |
| هغه ده چې د مشقت په اعتبار سره اسانه وي. دا دواړه روایتونه امام بیهقي رحمة الله علیه په شعب الایمان |
| إِلَى المخطوبة وَبَيَان العورات (صَحِيح) |
| باب النظر الى المخطوبة وبیان العورات کې رانقل کړي دي. |

**توضیح**: **ایسرهٔ مؤنةً**: یعني اسانه او کم خرچه نکاح هغه ده چې د ښځې مهر پکې کم وي او د نکاح په وخت کې په خاوند باندي ناجائزه شرائط ونه لګولی شي او د خاوند نه د هغه د وس طاقت نه زیات د مال او اسبابو مطالبه ونه کړی شي. د جهیز بوج په ښځه باندي رانه شي او د نورو رواجونو او بدعاتو نه نکاح پاکه وي. (المرقات ۲۷۵/۶)

په کومو علاقو کې چې د مهر په نوم خرڅولو سره مور پلار کوم مال حاصلوي نو د ظلم او حرامې ګټې نه علاوه دا ډیره د بې غیرتۍ خبره هم ده. د داسې علاقو د عالمانو دا ذمه داري جوړیږي چې په خپله هم د دې ظلم نه بند شي او عوام هم په وعظ او نصیحت سره د دې ظلم نه منع کړي.

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

# باب النظر الی المخطوبة و بیان العورات

## مخطوبې ته د کتلو او د ستر پټولو بیان

**المخطوبة:** خطب **مخاطبه او تخاطب** یو بل سره د خبرو کولو په معنې سره راځي. خطبه د وعظ او نصیحت خبرو ته او خِطبه د نکاح پیغام ته ویلی شي. دلته د دې نه هم د نکاح پیغام مراد دی.

عورات د عورت جمع ده. عورت په اصل او حقیقت کې د انسان شرمګاه او پټو ځایونو ته وایې. دا د عَارٌ نه مشتق دی ځکه چې د دې اندامونو ښکاره کیدو سره انسان شرم محسوسوي. د دې وجې نه د دې لفظ استعمال د پټو ځایونو د پاره کیږي. (الکاشف ۲۵۰/۶)

**النظر الی المخطوبة:** مخطوبه هغه زنانه ته وایې چې چالره د نکاح پیغام ورکړی شوی وي. چې په اردو کې ورته منسوبه وائي.

د نکاح نه مخکې د جینۍ لیدل جائز دي او که ناجائز نو په دې کې د فقهاو اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف:** د اهل ظواهرو په نیز مخطوبې ته کتل په یو صورت کې هم جائز نه دي. د امام مالک په نزد په یو قول کې مطلقا ناجائز دی او بل قول کې دا دي چې که د ښځې اجازت وي نو جائز دی او بغیر د اجازت نه منع دی. جمهور فقهاو او عامو عالمانو فرمایلي دي چې مخطوبې ته کتل مطلقا جائز دي که د هغې اجازت وي او که نه وي.

**دلائل:** اهل ظواهر د مشکات شریف په ص ۲۶۹ باندې د حضرت علي رضي الله عنه د روایت نه استدلال کړی دی په هغې کې دا سې الفاظ دي چې "**یا علي لاتتبع النظرة النظرة**" اهل ظواهر فرمایي چې د دې نه مطلقًا د کتلو ممانعت ثابتیږي. جمهورو د ګڼو احادیثو نه دلیل نیولی دی. په زیر بحث مسئله کښې په صفحه ۲۶۸ کې د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه صفا دا الفاظ راغلي دي چې "**فانظر الیها**" هم په دغه صفحه کې په فصل ثاني کې د حضرت جابر رضي الله عنه او مغیره بن شعبه رضي الله عنه نه هم روایت دی چې پکې مخطوبې ته د کتلو حکم او تاکید کړی شوی دی نو دا بیا څه رنګه ممنوع کیدلی شي. دا رنګ دا د تمامي زندګۍ مسئله ده نو ځکه پوره تسلي پکار ده. (المرقات ۲۷۶/۶)

**جواب:** اهل ظواهرو چې د حضرت علي رضي الله عنه د کوم روایت نه استدلال کړی دی نو هغه استدلال غلط دی ځکه چې د دغه حدیث تعلق د پردو جینکو ته د بد نظرۍ متعلق دی او زمونږ بحث په مخطوبه کې دی. البته د اختلاف نه د بچ کیدلو د پاره یوه تکړه او تجربه کاره زنانه د غې جینۍ پسې لیږل پکار دي. هغه به یې په تسلۍ سره او ګوري او حالت به بیان کړي. خو دا خبره یاد ساتل پکار

دي چې مخطوبې ته د کتلو کوم اجازت دی نو دا صرف مخ او لاسونو د حده پورې دی. ټول اندامونه به نه ګوري او بار بار کتل هم ممنوع دي. (المرقات ۲۸۳/۶)

## مخطوبې ته کتل مستحب دي

## الفصل الاول

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنِّي | | | | | |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې یو کس د نبي صلى الله عليه وسلم خدمت کې عرض وکړو چې زه د | | | | | |
| تَزَوَّجْتُ | امْرَأَةً | مِنَ | الْأَنْصَارِ | قَالَ | «فَانْظُرْ إِلَيْهَا |
| یوې انصاریه ښځې سره نکاح کول غواړم (نو ستاسو څه رایه ده؟) نبي عليه السلام او فرمائیل که اوئې ګورې | | | | | |
| فَإِنَّ | فِي | أَعْيُنِ | الْأَنْصَارِ | شَيْئًا». | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| که اوئې ګورې (نو دا به غوره وی) ځکه چې (د بعضو) انصارو زنانو په سترګو کې فرق وي. | | | | | |

**فان في اعين الانصار شيئا:** یعنې د مشورې تقاضا دا وه لکه څنګه چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم هغه کس ته وویل. ځکه چې "" **المستشار مؤتمن** ""یعني د چا نه چې مشوره اخستلی شي نو هغه رازدار جوړولی شي نو هغه ته خبره صفا کول پکار دي.

**شيئ**: د دېنه مراد خو یا دا دی چې د انصارو سترګې شنې وي، او یا یې مطلب دا دی چې د دوی په سترګو کې زیړ والی دی. (المرقات ۲۷۶/۶)

**سوال**: شارحینو دلته یو سوال کړی دی چې نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته د پردو زنانو د سترګو څنګه پته ولږیده؟ **جواب**: رومبنی جواب دادی چې د دوي په سرو باندې یې د ښځو قیاس وکړو. **دویم جواب** دا چې د وحي په ذریعې سره ورته دا معلومه شوې وه. **دریم جواب** دا چې نبي کریم صلي الله علیه وسلم د امت روحاني پلار وو نو شرعا د هغوی نه د چاهم پرده نه وه. **څلورم جواب** دا چې د پردې د حکم نازلیدو نه مخکې نبي کریم صلي الله علیه وسلم دوی لیدلې وې. **پنځم جواب** دا چې د امهات المؤمنین په ذریعې سره دا خبره نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته معلومه شوې وه. دا یو څو جوابات شو لیکن حقیقت دادی چې دا سوال هسې فضول دی ځکه چې په یو ماحول او معاشره کې

---

[1] أخرجه فی صحیحه ۲/۱۰۴۰ رقم الحدیث (۱۴۲۴.۷۴) وأحمد في المسند ۲/۲۹۹.

به د خپل قوم او طبقې د حالاتو نه څوک ناخبره وي. ولې د انصارو ټولې زنانه بالغې پیداشوې وې ؟په دوی باندې د ماشوم والي زمانه نده راغلې؟ یا د دوی په سترګو باندې د پیدائش نه واخله تر د بلوغت پورې پردې وې، د چا نظرهم پرې نه دی پریوتی؟.

## دپردۍ زنانه د جسم حال خپل خاوند ته مه بیانوئ

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي هم خپل |
| «لَا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ فَتَنْعَتَهَا لِزَوْجِهَا |
| بربنډ وجود د بلې زنانه د بربنډ وجود سره نه لږوي او نه دې د دغې پردې ښځې د جسم حال دې خاوند ته نه وائي |
| كَأَنَّهُ ينظر إِلَيْهَا» (صَحِيحٌ)[1] |
| لکه چې دا خاوند د هغې جسم ته ګوري. (بخاري، مسلم) |

**توضیح** : **لاتباشر المراة** : د تباشر نه مراد الصاق البشرة بالبشرة دی، یعنې یوه زنانه دې هم خپل بربنډ وجود د بلې زنانه د بربنډ وجود سره نه لږوي. علامه طیبي رحمه الله فرمایي چې د دې نه کتل او لاس لګول دواړه مراد دي. دا حکم د لسو کالو نه بعد سړو او ښځو ټولو ته شامل دی. دلته دوه ښځې منع کړی شوې دي ځکه د دې کتلو نه به دغه ښځه د بلې ښځې د جسم خصوصیات یعنې پوستوالی وغیره معلوم کړي او بیا به یې خپل خاوند ته بیانوي نو دا به داسې شي لکه چې دا خاوند د دغې پردی ښځې اندامونو ته ګوري. دا ډیر ناکاره کاردی ځکه چې یو خو پکې ډیره غټه بې شرمي، بې حیائي او بې غیرتي ده، او دویمه دا چې که د دې صفاتو نه بعد د دغې ښځې خاوند د دغې بلې ښځې په محبت کې ګرفتار شو نو هغه به لویه فتنه کې پریوځي او بیا به دا ښځه خپل لاسونه مروړي. (المرقات ۶/۲۷۶)

## د ښځو او سړو دپاره یوڅو هدایات

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ |
| او د حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه نه روایت دی چې نبي علیه السلام فرمایلي دي چې یو سړی دې هم د بل |

[1] أخرجه البخاری فی صحیحه ۹/۳۳۸ رقم الحدیث ۵۲۴۰ و أبوداؤد فی السنن ۲/۶۱۰ رقم الحدیث ۲۱۵۰ والترمذی فی ۵/۱۰۱ رقم الحدیث ۲۷۹۲ وأحمدفي المسند ۱/۳۸۷

| |
|---|
| إِلَى عَوْرَةِ الرَّجُلِ وَلَا الْمَرْأَةُ إِلَى عَوْرَةِ الْمَرْأَةِ وَلَا يُفْضِي الرَّجُ |
| سړي عورت ته نه ګوري او نه دې يوه ښځه د بلې ښځې عورت ته ګوري. او دوه بربنډ سړ |
| الرَّجُلِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ وَلَا تُفْضِي الْمَرْأَةُ إِلَى الْمَرْأَةِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ». رَوَاهُ مُسلِم (صَحِ |
| يوه كپړه كې نه يوځاى كيږي او دوه ښځې دې هم په يوه كپړه كې نه يوځ ى كيږي. (مـ |

**توضيح** : **لاينظر الرجل:** د سړو او د ښځو د جسم چې کومو حصو ته کتلو نه شريعت منـ
هغې ته ستر ويلى شي. د سړو او د ښځو د ستر حدود دارنګه دي.د سړي ستر د نوم د لاندې
نه واخله تر د ګونډو د لاندې حصې پورې دى . د سړي دې اندامونو ته کتل سړو او ښځو د
حرام دي. صرف خپلې ښځې او وينځې لره کتل جائز دي.د ښځې ستر د بلې ښځې دپاره
واخله تر ګونډو پورې دى، نو يوه ښځه به هم د بلې ښځې دغه اندامونو ته نه ګوري. دا ا
دي. البته شرعي عذر د دې نه مستثنى دى.د ښځې پوره جسم د پردي سړي دپاره ستر دى
او ورغوي د مجبورئ د وجې نه د دې حکم نه مستثنى دي. دا د زنانو مجبوري ده. سړو ته
ترغيب نه دى. پردي سړي لره د پردئ جينئ جسم لره ګوتې وړل حرام دي.سړي له خپلې
وينځې سره کوروالى جائز دى نو د دې وجې نه د هغې اندامونو ته کتل هم ورله جائز دي
ستر د خپل محرم دپاره د نامه نه واخله تر د ګونډو پورې دى او ګېډه او شا هم په ستر کې دا
د دې نه علاوه ستر نه دى.ښائسته سړي ته د شهوت په نظر کتل ښځو له حرام دي او د سړي
لاس وړل هم حرام دي. غلام د خپلې آقئ (سيدې) په حق کې د پردي سړي په حکم کې دى
غلام نه پرده كول پرې ضروري دي.دوه سړي او يا دوه ښځې به بربنډ پر يوه كپړه كې نه څما
فتنې ويره هم نه وي خو بياهم دا بې حيائي ده او ممنوعه ده.فقهاو ليکلي دي چې اصل ت
شهوت او زړه راوچتيدلو کې ده. کله چې شوق راوچت شي نو بيا جائزو ځايونو ته کتل هـ
دي. هيجړا او جينوټۍ (بې ږيرې) هلک هم په دې حکم کې داخل دي.(المرقات ۲۷/۶

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « |
| او حضرت جابر رَضِيَاللهُعَنهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّمَ فرمايلي دي چې خبردار ! يو سړ |
| لَا يبِيتن رَجُلٌ عِنْدَ امْرَأَةٍ ثَيِّبٍ إِلَّا أَنْ يَكُونَ نَاكِحًا أَوْ ذَا مَحْرَمٍ» (مُتَّفَقٌ عَ |
| واده شوي ښځې سره يو ځاى شپه نه تيروي مګر که چيرته خپل خاوند وي يا محرم وي (نوبيا |

(۱) أخرجه المسلم ۱/۲۶۶ رقم الحديث (۳۳۸.۷٤) والترمذي في السنن ۰/۱۰۱ رقم الحديث ۲۷۹۳ وأحمدفي المسند۳/۶۳

(۲) أخرجه في صحيحه ٤/۱۷۱۰ رقم الحديث (۲۱۷۱.۱۹)

**توضیح** :لایبیتن: د شپې تیرولو نه مراد یو ائې ملاویدل دي، یا که دا ملاویدل د ورځې وي او که د شپې وي دواړه ناجائز دي.(المرقات ۲۷۸/۶)

کونډه یې د دې وجې نه خاص کړه چې پیغله کې حیاء مانع او پرده وي نو پیغله کې د کونډې په نسبت خطره کمه وي. دارنګه د کونډې ښځې تجربه هم ډیره وي نو هغه د خپل عادت نه ډیره زر مجبوره کیږي. یا د ثیبې نه مراد بې خاونده ښځه ده، یا که کونډه وي او که پیغله. دا وضاحت زیات غوره دی.(المرقات ۲۷۸/۶)

**محرم** : ټول عمري محرم هغه چاته ویلی شي چې د هغه سره د ښځې نکاح په یو صورت کې هم ممکنه نه وي.(المرقات ۲۷۸/۶)

## د لیور نه د پردې حکم

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِيَّاكُمْ |
| او حضرت عقبه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي ځان بچ وساتئ چې د پردو ښځو خواته ورتګ نه |
| وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ |
| (کله چې هغوي ځانله وي یا بربنډه ناسته وي) یو کس چې دا واوریدل نو وي فرمایل چې ای د الله تعالی رسوله! ستاڅه حکم دې؟ |
| الْحَمْوَ؟ قَالَ: «الْحَمْوُ الْمَوْتُ» (متفق علیه)[1] |
| د لیور په باره کې نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمایل چې لیور خو مرګ دی.(بخاري و مسلم) |

**توضیح** : الحمو الموت: د حمو جمع احماء راځي . دا د ښځې هغه رشته دارانو ته وایي چې کوم د خاوند د طرف نه رشته دار وي. خو د دې حکم نه د خاوند پلار او ځوی مستثنی دي. دلته د دې اولنی مصداق د خاوند ورور دی چې ورته لیور ویلی کیږي. په حدیث کې یې لیور ته مرګ ویلی دی نو مطلب دادی چې دا خطرناک شیز دی، د ده نه ځان بچ ساتل پکار دي.عرب چې کله څوک د یو شیز نه یروي نو هغه په مرګ یا اور سره یادوي. مثلا هغوی وایي چې ""الاسد الموت"" یعني زمري نه ځان بچ کړئ هغه مرګ دی. یا فرمایې چې ""السلطان النار"" یعني بادشاه ته نزدې کیدل اور دی. یا فرمایې چې ""الحمو الموت"" یعني لیور مرګ دی. او لیور نه خو زیاته خطره په دې وي چې دا د انسان سره په کور کې اوسیږي.(المرقات ۲۷۸/۶)

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۹/۳۳۰ رقم الحدیث ۵۲۳۲ ومسلم في ۴/۱۷۱۱ رقم الحدیث (۲۱۷۲-۲۰) والترمذي في السنن ۳/۴۷۴ رقم الحدیث ۱۱۷۱ والدارمي في ۲/۳۶۱ رقم الحدیث ۲۶۴۲ وأحمد فی المسند ۴/۱۴۹

شرعي مسئله خو دا ده چې لیور نه شرعي پرده کول پکار دي خو زما استاذ محترم حضرت مولانا فضل محمد سواتي صاحب به په مشکوة کې د دې حدیث نه بعد فرمایل چې که چیرې ښځه ځوانه وي او بچي یې نه وي او کور خالي وي، د خاوند والدین هم کور کې نه وي نو د لیور دپاره په داسې حالت کې کورته داخلیدل نه دي جائز . البته لیور بالکل پردی هم نه دی نو که چیرته کور کې خواښې ، سخر یا د ښځې بچي موجود وي نو بیا لیور لره داخلیدل جائز دي. دا دومره پردی نه ده لکه څومره چې نور پردي دي.

## علاج معالجه او ښځه

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَن جَابِرٍ: أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ اسْتَأْذَنَتْ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل ام المؤمنين حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د |
| فِي الْحِجَامَةِ فَأَمَرَ أَبَا طَيْبَةَ أَنْ يَحْجِمَهَا قَالَ: |
| ښکر لګولو اجازت وغوښتو نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابو طیبه ته د ښکر لګولو حکم وکړو حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائی |
| حَسِبْتُ أَنَّهُ كَانَ أَخَاهَا مِنَ الرِّضَاعَةِ أَوْ غُلَامًا لَمْ يَحْتَلِمْ رَوَاهُ مسلم (صحيح)[1] |
| چې زما په خیال ابو طیبه د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وروروو او یا دا لا بالغ نه وو. (مسلم) |

**توضیح : في الحجامة**: حجامه ښکر لګولو ته وایي. په احادیثو کې د ښکر لګولو ډیر ترغیب وارد شوی دی. او د دې امت دپاره د علاج غته ذریعه ښودلی شوې ده. ښکر لګولو سره د بلډ پریشر او د دې نه د پیدا کیدونکو بیمارو موثر علاج کیږي. حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د دې اجازت د دې وجې نه وغوښتو چې دا عمل به صرف سړو کوه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجازت ورکړو او ابو طیبه نائي یې په دې کار باندي مقرر کړو.اوس دلته دا سوال پیدا کیږي چې ابو طیبه خو پردی سړی وو نو د ام سلمه رضي الله عنها جسم یې څنګه ولیدو؟حضرت جابر رضي الله عنه د دې سوال د ختمولو دپاره دوه جوابونه ورکړې دي: یو جواب دادی چې ابو طیبه د ام سلمه رضي الله عنها رضاعي ورور دی. دویم جواب دادی چې دا نابالغ هلک وو.بهرحال د دې دوو جوابونو نه علاوه دریم جواب دادی چې که د علاج ضرورت وي او د بیمارۍ مجبوري وي نو ډاکټر د ښځې متاثره ځای ته کتلی شي. البته په غیر ضروري ځایونو باندي به لوپټه اچوي. او که چرته ښځه ډاکټره وي نو هم دغه حکم دی. په افسوس سره دا خبره کوم چې نن صبا د خوند او مزې دپاره ښځې ډاکټرانې د زنانو غیرضروري

---

[1] أخرجه في صحيحه ٤/١٧٣٠ رقم الحديث (٢٢٠٦.٧٢)

ځایو نه ګوري. (المرقات ۲۷۹/۶ الکاشف ۲۵۴/۲)

## په پردۍ ښځه د نظر پریوتلو مسائل

﴿۷﴾ وَعَنْ جرير بْنِ عَبْدِ الله قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت جریر بن عبد الله رضی الله عنه فرمايي چې ما د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه تپوس او کړو پردو ښځو

عَنْ نَظَرِ الْفُجَاءَةِ فَأَمرنِي أَن أصرف بَصرِي. رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1]

ته د ناګهانه نظر پریوتلو په باره کې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ما ته حکم راکړو چې خپل نظر فورًا واړوه

**توضيح**: نظر الفجاءة: بغیر د قصد او ارادې نه پردۍ ښځې ته کتلو ته نظر الفجاءة ویلی شوې دي. په شریعت کې ناګهانه کتل یو ځل معاف دي خو کتونکي باندې دا لازم دي چې نظر به فورا اړوي. او که چیرته په رومبي ځل کتلو سره هم نظر نه اخوا کوي نو په دې کتلو بیا ګناهګار ېږي.

د دې حدیث نه دا خبره معلومه شوه چې ښځه د مجبورۍ په وخت کې مخ ښکاره کولی شي خو چالره هم دا جائز نه دي چې د هغې د مجبورۍ نه غلطه فائده واخلي او مخ ته یې ګوري. هم دا وجه ده چې قران کریم کې د نظر ښکته ساتلو حکم مؤمنانو ته شوی دی. حضرت امام غزالي رحمه الله علیه فرمايي چې کتل د زنا بنیاد دی، د دې حفاظت ډیر زیات ضروري دی. (المرقات ۲۷۹/۶)

د دې حدیث نه بعد اتم حدیث کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمايي چې پردۍ ښځې باندې د نظر پریوتلو علاج دادی چې که شوق یې راپیداشوی وي نو خپلې کوروالا سره دې جماع وکړي. راروان حدیث نه دا هم معلومیږي چې زنانه په فتنه کې خالص د شیطان په شان ده نو ددې بغیر د ضرورته ګرځیدل نه دي پکار او بیا په ښائسته لباس کې خو ورله د سره بهر وتل جائز نه دي. ځکه چې دا د شیطان د ټولو نه غټ جال دی چې سړی پرې ښکار کوي. د دې حدیث نه دا هم معلومیږي چې سړو لره پردو ښځو ته او د هغوي لباس ته کتل نه دي پکار. او ددې نه دا هم معلومه شوه چې سړي د ورځې هم خپلې کور والا سره کوروالی کولی شي. راروان یوولسم حدیث پورې د تشریح ضرورت نشته، دا وضاحت د ټولو دپاره کافي دی. (المرقات ۲۸۰/۶)

﴿۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْمَرْأَةَ تُقْبِلُ

او حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمايي چې ښځه د شیطان

[1] أخرجه في صحيحه ۳/۱۶۹۹ رقم الحديث (۲۱۵۹،٤۵) وأبوداؤد في السنن ۲/۶۰۹ رقم الحديث ۲۱٤۸ والترمذي في ۵/۵۳ رقم الحديث ۲۷۷۶ وأحمد في المسند ٤/۳۵۸

فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ وَتُدْبِرُ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ إِذَا أَحَدَكُمْ أَعْجَبَتْهُ الْمَرْأَةُ

په صورت کې راځي او د شیطان په صورت کې ځي. نو چې کله تاسو کې چاته پردی ښځه ښکلې ښکاره شي

فَوَقَعَتْ فِي قَلْبِهِ فَلْيَعْمِدْ إِلَى امْرَأَتِهِ فَلْيُوَاقِعْهَا فَإِنَّ

او زړه کې یې ځای جوړ کړي نو ده له د خپل کوروالا نه ضرورت پوره کول پکار دي. ځکه دا کوروالی به د ده د زړه نه

ذَلِكَ يَرُدُّ مَا فِي نَفْسِه». رَوَاهُ مُسْلِم (حسن)[1]

هغه خبره ختمه کړي چې کوم د ده په زړه کې پیدا شوې ده. (یعني جنسي خواهش) (مسلم)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

﴿۹﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ

حضرت جابر رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي چې کله په تاسو کې یو کس

الْمَرْأَةَ فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا

چا سره د نکاح اراده او لري نو که چیرې دا د هغې د اندامونو په لیدو قادر وي یعنی د مخ او د لاسونو

فَلْيَفْعَلْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (صَحِيح)[2]

نو یو نظر دې هغه ویني. (ابوداود)

﴿۱۰﴾ وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ خَطَبْتُ امْرَأَةً فَقَالَ لِي

حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه فرمایي چې ما د یوې ښځې سره د کوژدنې اراده وکړه پیغمبر علیه السلام راته وفرمائیل

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَلْ نَظَرْتَ إِلَيْهَا؟» قُلْتُ: لَا قَالَ: «فَانْظُرْ

چې تا هغه لیدلې ده؟ نو ما ورته وویل چې نه. نو پیغمبر صلی الله علیه وسلم راته او فرمائیل چې ته یو نظر ووینه

إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا». [3]

هغې لره چې خپل مینځ کې مو مینه او رغبت پیدا شي. دا یو نظر کتل مناسب دی.

---

([1]) اخرجه في صحيحه ۲/۱۰۲۱/رقم الحديث (۹.۳.۱۴۰۳) واحمد في المسند ۳/۳۴۱.

([2]) اخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۶۵ رقم الحديث ۲۰۸۲.

([3]) اخرجه الترمذی فی السنن ۳/۳۹۷ رقم الحديث ۱۰۸۷ والنسائي في ۶/۶۹ رقم الحديث ۳۲۳۵ وابن ماجه في ۱/۵۹۹ الحديث في ۱۸۶۵ والدارمي في ۲/۱۸۰ رقم الحديث ۲۱۷۲ واحمدفي المسند ۴/۲۴۶

## د ناڅاپه نظر پر یوتلو علاج

﴿١١﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةً

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (یوه ورځ) د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ نظر په یوې ښځې باندې پریوتلو نو دوی باندې

فَأَعْجَبَتْهُ فَأَتَى سَوْدَةَ وَهِيَ تَصْنَعُ طِيبًا وَعِنْدَهَا نِسَاءٌ

ښه ولګیده، نو دوی سمدست ام المؤمنین حضرت سوده کره تشریف یوړلو هغه وخت هغې خوشبو تیاروله او څه ښځې

فَأَخْلَيْنَهُ فَقَضَى حَاجَتَهُ ثُمَّ قَالَ:

ورسره ناستې وې هغه ښځې د هغوی د خوا نه پاڅیدې او بهر لاړې بیا دوی خپل ضرورت پوره کړو او وې فرمایل چې د کوم

«أَيُّمَا رَجُلٍ رَأَى امْرَأَةً تُعْجِبُهُ فَلْيَقُمْ إِلَى أَهْلِهِ

سړي نظر په یو داسې ښځې باندې پریوځي چې په هغه ښه ولګي نو هغه له پکار دي چې فوراً دې خپلې ښځې طرفته رجوع

فَإِنَّ مَعَهَا مِثْلَ الَّذِي مَعَهَا». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ (صَحِيحٌ)[1]

وکړي (او د هغې نه دې خپل جنسي خوشالي حاصله کړي) ځکه چې د هغه ښځې سره چې کوم څه دي هغه د هغې ښځې سره هم دي

**توضیح: فاعجبته:** سوال دا دی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دا رنګه خیال ولې او څنګه راغی هغه خو معصوم (یعنی د ګناه نه پاک وو)؟ د دې جواب دا دې چې د انساني تقاضو په بنیاد هغه ته د هغې ښځې د ښه والي خیال راغی او خیال هم صرف د "هاجس" او "خاطر" په درجه کې وو چې دې باندې نیول نشته.
دویم جواب دا دی چې الله تعالی د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ذریعې سره د دې مسئلې عملاً اظهار وفرمایلو چې د امت د پاره سبق او نمونه جوړه شي .دریم جواب دا دی چې ناڅاپي نظر وو چې په دې باندې نیول نشته. **فإن معها:** یعنې اصل مقصد د شهوت پوره کول دي چې د خپلې ښځې نه هم پوره کیدی شي په دې کې څه فرق نشته خو په حکم کې فرق ضرور شته چې خپلې ښځې سره جماع کول حلال دي او پردۍ ښځې سره حرام دي. (المرقات ٦/٢٨٢)

## شیطان هرې ښځې ته پټ پټ ګوري

﴿١٢﴾ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې حدیث راوي دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې ښځه په پرده کې د او سیدو څیز دې

---

(١) اخرجه الدارمي في ٢/١٩٦ رقم الحديث ٢٢١٥

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَإِذَا | خَرَجَتْ | اسْتَشْرَفَهَا | الشَّيْطَانُ» | . رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ[1] |

دې وجې نه کله چې يوه ښځه خپل ځان بې پردې کړي نو شيطان هغه د سړو په نظر کې ښائسته ښکاره کوي. (ترمذي)

**توضيح** : المرأة عورة: يعنې ښځه د پردې څيز دی دا د "عار" نه ماخوذ ده چې د دې د ظاهرېدو په وجه او بې پرده کېدو سره سړي ته غيرت راځي. د ښځې بې پرده کېدل داسې دي لکه چې شرمګاه يې بې پردې شو نو چې کله دا څوک نشي زغملی نو بې پردګي به څنګه زغمي، په حقيقت کې د سړو د غيرت د وجې پرده شوه. لسان العصر اکبر اله آبادي څه ښه ويلي دي: (الکاشف ۲۵۷/۶)

بے پردہ کل جو آئیں نظر چند بیبیاں — اکبر زمیں میں غیرت قومی سے گڑ گیا
پوچھا جو ان سے آپ کا پردہ وہ کیا ہوا؟ — کہنے لگیں کہ عقلوں پہ مردوں کی پڑ گیا

**استشرفها الشيطان**: "استشرف" پټ کتو ته ويلی شي خاص طور باندې د حيرانيا په وخت کې چې يو سړی په خپلو سترګو باندې لاسونه کېږدي او بيا ګوري د استشراف دی، اوس د شيطان پټ کتو ډير مطلبونه کېدی شي. (المرقات ۶۸۲/۶)

علامه طيبی وايي چې د پټ کتو يو مطلب دا هم دی چې شيطان دغه ښځه د نورو سړو مخکې ښائسته کوي او د دې په ذريعه خلق بې لارې کوي او پخپله دغه ښځه هم بې لارې کوي. صاحب آکام المرجان فی احکام الجان پخپله د کتاب کې ليکلې چې شيطان د ښځې د دبر د پاسه په نری ملا باندې ناست وي او خلق د دې طرف ته متوجه کوي. د علامه طيبی په نزد باندې د دې حديث دويم مطلب دا چې د پټ کتو نه مراد بدکاره خلق دي يعنې ښځه چې کله د کور نه د بې پردګۍ په حالت کې وځي نو بدکاره خلق ورته پټ پټ ګوري او د هغوی په زړونو کې دا وسوسه چونکه شيطان اچوي نو ځکه د هغوی دا کار يې د شيطان کار ګرځولی دی يعني د شيطان نه مراد بدکاره خلق دي. دريم مطلب يې دا چې شيطان دا غواړي او په دې خوشاله کېږي چې ښځه په ښکاره راشي چې شيطان ورته ښه وګوري او د شيطان مخکې راشي. څلورم مطلب او مفهوم يې دا چې شيطان بهر وتونکې ښځې باندې خپل خراب نظر اچوي چې د دغې نظر په وجه دا پاکدامنه ښځه خرابه او ناخوښه ښځه جوړه شي. د علامه طيبی دا آخري خبره ډيره بهترينه ده. (المرقات ۲۸۲/۶ الکاشف ۲۵/۲)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾ | وَعَنْ | بُرَيْدَةَ | قَالَ: قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | لِعَلِيٍّ: |

حضرت بريده د دې حديث راوي دی چې رسول کريم ﷺ حضرت علي رضی الله عنه ته و فرمايل چه

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۷۶ رقم الحديث ۱۱۷۳

«يَا عَلِيُّ لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ فَإِنَّ لَكَ الْأُولَى

اى علي! نظرپرېوتونه پس دوباره نظر مه اچوه (كه په يوه ښځه باندې ناګهاني نظر پرېوته نو دوباره مه ګوره) ځکه چې

وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ والدارمي (حسن)[1]

ستا وړومبی نظر جائز دی خو دویم نظر جائز نه دی. (احمد، ترمذی، ابو داؤد، دارمی)

## دواده شوې خادمې حکم

﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې رسول کریم ﷺ و فرمایل

«إِذَا زَوَّجَ أَحَدُكُمْ عَبْدَهُ أَمَتَهُ فَلَا يَنْظُرَنَّ إِلَى عَوْرَتِهَا».

چه کله په تاسو کې څوک د خپل غلام نکاح د خپلې خادمې سره وکړي نو بیا دې نه ګوري د هغې شرمګاه ته

وَفِي رِوَايَةٍ: «فَلَا يَنْظُرَنَّ إِلَى مَا دُونَ السُّرَّةِ

او په یو روایت کې داسې الفاظ راغلي دي چې هغه دې د هغې خادمې بدن هغې حصې ته نه ګوري کومه چه دنوم نه

وَفَوْقَ الرُّكْبَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (ضَعِيف)[2]

د لاندې او د ګونډونه بره ده. (ابو داود)

**توضیح** : فلاینظرن: یعنې کله چې مالک د خپلې خادمې نکاح د خپل غلام سره وکړه نو اوس هغه د بل کس ښځه شوه نو اوس د غه خادمه د مالک د پاره یوه پردې ښځه شوه نو اوس د مالک د پاره دا جائز نه دي چې هغه دې د ګونډو نه بره او د نوم نه لاندې او د دې نه علاوه د ستر حصو ته وګوري. او داد احنافو مسلک هم دی.

لیکن امام شافعي رحمه الله وايي د واده نه وروسته د وینزې ستر د آقا لپاره د سړو د ستر په شان دی، یعنې د زنګونانو نه بره او د نامه نه لاندې پرده ضروري ده، مخکې د آقا لپاره ضروري نه وه، ځکه د هغه لپاره د هغې سره جماع کول جائز وو مګر دا حصه ممنوع شوه او باقي حصې د سړو په شان شوې، یعنې د هغې شا او خېټه او نور اعضاء د ستر نه خارج دي. (المرقات ۲۸۳/۶)

---

(۱) اخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۱۰ رقم الحديث ۲۱۴۹ والترمذي في ۵/۹۴.

(۲) اخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۲۲۲ رقم الحديث ۴۱۱۳ واحمد في المسند ۲/۱۸۷

## پنډۍ دبدن دستر حصه ده

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ جَرْهَدٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ |
| حضرت جرهد وايي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې ايا تاسو نه پوهيږئ چه ورون |
| الْفَخِذَ عَوْرَةٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد (ضَعِيف)[1] |
| ستر دی (يعنی ورون دبدن هغه حصه ده چې پټه شوې وی. (ترمذی، ابوداود) |

**توضيح** : ان الفخذ عورة: ايا ورون دستر والا اندامونو کې داخل دی او که ورون ستر نه دی په دې کښ دفقهاو اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف** : د امام مالک او د اهل ظواهرو په نزد باندې ورون عورت نه دی . جمهور ائمه فرمايي چې ورون عورت دی. (المرقات ۶/۲۸۴)

**دلائل** : اهل ظواهر او امام مالک رحمه الله د نبي کريم ﷺ د دې عمل نه دليل نيولی دی چې حضرت انس رضي الله عنه يې داسې بيان کوي چې مونږه دخيبر د غزا دپاره نبي کريم ﷺ سره روان وو دسحر په وخت زه د ابو طلحه نه وروسته حضور سره په اوښه سور شوم نو زما ورون د حضور اکرم ﷺ د ورنونو مبارکو سره لګيدلی وو، نو معلومه شوه چې عورت نه دی.په دې مسئله کې دجمهورو دلائل ډير دي او د واضح او صاف احاديثو نه يې دليل نيولی دی يو حديث خو داد حضرت جرهد روايت دی چې مشکوة شريف ص ۲۶۹ باندې دی هم په دې صفحه باندې د عمروبن شعيب روايت هم دی چې دخادمې دګونډو نه بره او د نوم نه لاندې مه ګوره دليل داسې دی چې د خادمې د ستر اندامونه هغه دي کوم چې دسړي دي لهذا ورون ستر دي دادجمهورو دويم دليل دی. د جمهورو دريم دليل د دېنه پس دحضرت علي رضي الله عنه روايت دی چې په کې د ژوندي او مړ سړي ورون ته کتل منع کړی شوي دي .(المرقات ۶/۲۸۳)

**جواب** : د اهل ظواهرو او د مالکيو د دليل نه جواب دا دی چې د خيبر په سفر کې د مس فخذ واقعه پېښه شوې وه هغه مجبوري وه او غير اختياري طور باندې وو، د هغې نه ضابطه جوړل نه دې پکار، هغه مس فخذ د حائل سره وو په مينځ کې کومه کپړه حائل وه، بهر حال هغه يوه جزئي واقعه ده، او احتمال هم شته، او بل طرف ته کثير مقدار باندې واضح احاديث دي په هغې باندې عمل ډير بهتر دی.

---

(۱) أخرجه البخاري تعليقًا ۱/٤٧٨ كتاب الصلاة باب مايذكر في الفخذ وأبوداؤد في السنن ٤/٣٠٣الحديث رقم ٤٠١٤ والترمذي في ٥/١٠٢ رقم الحديث ٢٧٩٥ وأحمدفي المسند٣/٤٧٨

﴿١٦﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ: يَا عَلِيُّ

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته او فرمائيل چې اې علی!

لَا تُبْرِزْ فَخِذَكَ وَلَا تَنْظُرْ إِلَى فَخِذِ حَيٍّ وَلَا مَيِّتٍ».

خپل ورون دنورو خلقو مخکې مه ښکاره کوه او مه د ژوندی سړي ورون ته ګوره او مه د مړي ورون ته ګوره.

رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه (ضَعِيف)[1]

(روايت کړې دي ابو داود، ابن ماجه)

﴿١٧﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَحْشٍ قَالَ: مَرَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

محمد بن جحش وايي چې يو ځل رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معمر خوا سره په داسې حالت کې تير شو

عَلَى مَعْمَرٍ وَفَخذاه مَكْشُوفَتَانِ قَالَ: «يَا مَعْمَرُ غَطِّ فَخِذَيْكَ

چه د هغه دواړه ورنونه ښکاره کيدل نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل چې اې معمر! خپل ورنونه دې

فَإِنَّ الفخذين عَورَة». رَوَاهُ فِي شرح السّنة[2]

پټ کړه ځکه ورنونه عورت دی. (شرح السنه)

## بغير دضرورت نه په تنهائي کې هم ستر نه ښکاره کول

﴿١٨﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِيَّاكُمْ

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چه تاسو ځان ساتئ د

وَالتَّعَرِّيَ فَإِنَّ مَعَكُمْ مَنْ لَا يُفَارِقُكُمْ إِلَّا عِنْدَ الْغَائِطِ

بربنډ کيدو نه (که تنهائي ولې نه وي) تاسو سره هر وخت هغه فرښتې وی ځکه چې د اودس ماتي او د

وَحِينَ يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى أَهْلِهِ فَاسْتَحْيُوهُمْ

ښځې سره کوروالي کولو نه علاوه (چه ستا نګراني، حفاظت او ستاسو اعمالو ليکلو باندې مقرر دي)

---

(١) أخرجه أبوداؤد في السنن ٣/٥٠١ رقم الحديث ٣١٤٠ وابن ماجه في ١/٤٦٩ رقم الحديث ١٤٦٠ وأحمد في المسند ٣/٥٠١

(٢) أخرجه أحمد في المسند ٥/٢٩٠

وَأَكْرِمُوهُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ (ضَعِيف)[1]

لهذا تاسو ددې فرښتونه حيا کوئ او عزت يې کوئ. (ترمذي)

## ښځه سړي ته کتلی شي يا نه؟

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ: أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَيْمُونَةَ

دأم سلمهؓ نه روايت دې چې يو ځل هغه او ام المؤمنين حضرت ميمونه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره موجودې وې چه ناڅاپه

إِذْ أَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابن ام مکتوم (چې يو ړوند صحابی وو) راغی. پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کله ابن ام مکتوم وليدلو نو خپلو دواړو بيبيانو ته ئې وفرمائيل

«احْتَجِبَا مِنْهُ» فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَلَيْسَ هُوَ أَعْمَى

چې تاسو دده نه پټې شئ. ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وائي چې هغوی د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حکم اوريدو سره عرض اوکړو چې دا خو ړوند دې

لَا يُبْصِرُنَا؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا؟

چه مونږه نه شي ليدلی، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمائيل چې تاسو دواړه هم ړندې يې څه؟ آيا تاسو

أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ؟» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد (حسن)[2]

ورته نه ګورئ؟ يعني هغه ړوند دی تاسو خو ړندې نه يې. (احمد، ترمذي، ابوداود)

**توضيح**: افعمياوان انتما: دې حديث نه دا معلومه شوه چې ښځه يو پردي سړي ته نه شي کتلی. څنګه چه يو سړی له يوې پردی ښځې ته کتل حرام دي داسې د يوې ښځې هم پردې سړي ته کتل حرام دي .اوس په دې حکم باندې د حضرت عائشې رضي الله عنها په روايت باندې اعتراض راځي چې حضرت عائشه فرمايي چې ما هغه وخت حبشيانو ته کتل چې په مسجد کې يې په نيزو او په تورو باندې لوبې کولې . ددې دوو قسمه رواياتو په وجه باندې بعضې علماو د حرمت خبرې کړې دي ليکن عامو علماو د فرمايلي دي چې د فتنې ويره په کې نه وي نو ښځه پردي سړی ته کتلی شي .د حضرت عائشې دا روايت په دې باندې دلالت کوي ځکه چې دا واقعه د نهم ۹ هجري وه چې د حضرت عائشې عمر شپاړس کاله وو ، قرآن کريم ښځو ته د پردې حکم ورکړی دی چې سړي ورته ونه ګوري او سړو ته د پردې حکم نه دی ورکړی که ښځو ته کتل ناجائز وو نو سړو ته به هم د پردې حکم شوی وو.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۰۴ الحديث رقم ۲۸۰۰

(۲) أخرجه أبوداؤد في المسند ۴/۳۶۱ رقم الحديث ۴۱۱۲ والترمذي في ۵/۹۴ رقم الحديث ۲۷۷۸ وأحمد في المسند ۶/۲۹۶

بهرحال په کتلو کې دا شرط دی که د فتنې ویره نه وي، او که د شهوت خطره وي نو بیا حرام دی او د نه نوم لاندې او د ګونډو نه بره حصو ته کتل په هر حال کې حرام دي ،لوبغاړې د لوبو په وخت کې که ورنونه ښکاری نو سړو او ښځو دواړو له کتل حرام دي او بهتره داده چې ښځه بلا ضرورته سړي ته ونه ګوري.(المرقات ۶/۲۸۴)

**وَمیمُونَةَ**: د دې لفظ عطف په (اِنها) کې د اِن په اسم باندې دی د دې وجې نه د دې منصوب ویل زیات بهتر دي.(المرقات ۶/۲۸۴)

**اَلَسْتُمَا تُبصرانِه**: دا جمله یې د دېنه مخکښې جملې د استفهام انکاري لپاره د تقرر او ثبوت په طور وفرمایله، د دې زجر او توبیخ او د دې روایت ممانعت د حدیث علماو او فقهاو په تقوی او احتیاط باندې حمل کړې دی او د عدمِ فتنې او عدمِ شهوت د صورت سره یې مربوط کړی دی.

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: |
| حضرت بهز بن حکیم د خپل پلار نه او هغه د نیکه نه (حضرت معاویه ابن جیده) نه روایت کوي چې |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «احْفَظْ عَوْرَتَكَ إِلَّا مِنْ زَوْجَتِكَ أَوْمَا ملكت يَمِينك» |
| رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې ته خپل عورت پټ ساته د خپلې ښځې او خادمې نه علاوه |
| فَقلت: يَا رَسُول الله أَفَرَأَيْت إِن كَانَ |
| حضرت معاویه وایي چې ما عرض وکړو یا رسول الله! چې ماته ووایه! چې سړی کله په تنهائي کې وي نو هغه وخت کې |
| الرَّجُلُ خَالِيًا؟ قَالَ: «فَالله أَحَقُّ أَنْ يستحيى مِنْهُ» |
| هم خپل عورت پټول ضروري دي؟ نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ ورته وفرمایل چې الله تعالی د دې لائق دی چې د هغه نه شرم وکړې شي. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْن مَاجَه (صَحِيح)[1] |
| روایت کړې دې (ترمذي او ابو داود او ابن ماجه) |

## پردئ ښځې سره په تنهائي کې مه اوسه

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا يَخْلُوَنَّ |
| حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ نه نقل کوي چې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل چه کله هم یو سړې د یو |

(۱) اخرجه ابوداؤد في السنن ۴/۳۰۴ رقم الحديث ۴۰۱۷ والترمذي في ۵/۱۰۲ رقم الحديث ۲۷۹۴ وابن ماجه ۱/۶۱۸ رقم الحديث ۱۹۲۰ واحمد في المسند ۵/۳

| |
|---|
| رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا كَانَ ثَالِثَهُمَا الشَّيْطَانُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| پردۍ ښځې سره په تنهائي کې ناست وي نو په هغوی کې دريم شيطان وي. |

**توضيح**: ښکاره خبره ده چې شيطان دهغوی په مينځ کې څه اصلاح دپاره خونه وي راغلی بلکې د فساد او فتنې اچولو دپاره راغلی وي او دښځو دا خبره غلطه ده چې زړه صفا وي نو څه هم نه کيږي چې زړه صفا وي نو بيا پردو سړو سره اختلاط ولې کوې ؟ ياد ساتئ چې د فتنې نه اصل حفاظت حجاب او پرده ده ، او بې پردګي کې د قرآن ښودولو والا به قرآن په دري (طاق) کې کيږدي او ګناه به شروع کړي.( المرقات ۶/ ۲۸۶)

## په انساني بدن کې دشيطان داخليدل

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تَلِجُوا |
| حضرت جابر دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چه تاسو په تنهايئ کې ناسته مه کوئ |
| عَلَى الْمُغَيَّبَاتِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنْ أَحَدِكُمْ |
| هغه ښځو سره دکومو ښځو چې خاوندان موجود نه وي ځکه چې ستاسو د بدن وينه کې شيطان |
| مَجْرَى الدَّمِ» قُلْنَا: وَمِنْكَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: |
| دوينې د ګرځيدو په شان ګرځي ،مونږ عرض وکړو يارسول الله! شيطان ستاسو په رګونو کې هم ګرځي؟ دوی او فرمائيل چه |
| «وَمِنِّي وَلَكِنَّ اللهَ أَعَانَنِي عَلَيْهِ فَأَسلم». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ (صَحِيح)[2] |
| او زما په بدن کې هم ګرځي. خو الله تعالی دشيطان په مقابله کې زما مدد فرمايلی دی او زه يې دهغه نه محفوظ ساتلی يم. |

**توضيح** : **مجری الدم**: يعني څنګه چې وينه په رګونو کې ګرځي داسې شيطان د وسوسو په شکل کې انساني بدن کې ګرځي . يا دا کلام حقيقت دی چې کوم کوم ځای ته وينه ځي هلته شيطان داخليږي او په نظر نه راځي څنګه چې وينه په نظر نه راځي.( المرقات ۶/ ۲۸۶)

**المغيبات**: د ميم په ضمې سره دا د مغيبة جمع ده هغې ښځې ته ويلی شي چې دهغې خاوند په سفر کې وي او کور يې خالي وي، په حديث کې دداسې ښځو په خاص طورباندې ذکر شوی دی چې دخاوند د غيرموجودګۍ په وجه داسې ښځې ته دجماع کولو زيات شوق وي نو هغې سره په ناسته باندې د فتنې

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۷۴ رقم الحديث ۱۱۷۱ واحمدفي المسند ۱/۲۶.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۷۵رقم الحديث ۱۱۷۲ وأحمدفي المسند۳/۳۰۹ .

زيات خطروي او شيطان خو پټ دښمن دی چې هر وخت حملې کولو په انتظار کې وي.(المرقات ۶/۲۸۶)

**اسلم**: دا لفظ أَسلَمَ هم دی او أَسلَمُ هم دی ورومبی صيغه د ماضي ده او دويمه د مضارع متکلم صيغه ده که د ماضی صيغه وي نو ترجمه به يې دا سې وي چې شيطان اطاعت کول اختيار کړل او که د متکلم صيغه وی نو ترجمه به يې دا سې کيږي چې زه ده نه محفوظه اوسم، بهرحال دا صيغه د اسلام په معنی سره نه ده ځکه چې شيطان مردود دی هغه اسلام نه قبلوي.(المرقات ۶/۲۸۶)

## د مالکې د خپل غلام نه د پردې کولو حکم

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى فَاطِمَةَ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يوه ورځ نبی عَلَيْهِ السَّلَام حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کره تشريف يوړلو هغه وخت کې د فاطمه په |
| بِعَبْدٍ قَدْ وَهَبَهُ لَهَا وَعَلَى فَاطِمَةَ ثَوْبٌ إِذَا قَنَّعَتْ بِهِ |
| خدمت کې هغه غلام هم موجود وو کوم چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام ورکړی وو او د حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په بدن باندې يو وړه |
| رَأْسَهَا لَمْ يَبْلُغْ رِجْلَيْهَا وَإِذَا غَطَّتْ بِهِ رِجْلَيْهَا لَمْ يَبْلُغْ رَأْسَهَا |
| کپړه وه چې کله به ئې سر پټولو نو پښې به يې ښکاريدې او چې پښې به يې پټولې نو سر به يې ښکاريده، |
| فَلَمَّا رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَلْقَى |
| کله چه اوليده نبی عَلَيْهِ السَّلَام حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په دې پريشانۍ کې (چه د شرم او حيا د وجې هغې ډېر |
| قَالَ: «إِنَّهُ لَيْسَ عَلَيْكِ بَأْسٌ إِنَّمَا |
| کوشش باوجود خپل بدن نشو پټولې) نو وې فرمايل چې دومره ولې پريشانه کيږې دې کې څه حرج نشته چې |
| هُوَ أَبُوكِ وغلامك». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (مُتَّفَق عَلَيْهِ)[1] |
| ته د چانه دومره شرميږې هغه څوک پردی نه دی بلکه ستا پلار دې او ستا غلام دې. (روايت کړې دې ابوداود) |

**توضيح**: **انما هو ابوک وغلامک** په دې کې د فقهاء کرامو بحث دی چې ايا د مالکې ښځې دپاره دغه غلام محرم دی يا د پردې په شان دی په دې کې د فقهاو اختلاف دی.

**د فقهاء کرامو اختلاف** د امام مالک او امام شافعي رحمهما الله په نزد د ښځې غلام د هغې دپاره محرم دی او پرده ترې نه شي کولی. امام ابو حنيفه ،امام غزالي او د علامه نووي په نزد د ښځې دپاره غلام په

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۴/۳۵۹ رقم الحديث ۴۱۰۶

شان د پردې دی او مکمله پرده به ترې کوې د هغې ښځې مخ او د بدن حصې د غه غلام ته ښي ښکلی .( المرقات ۲۸۷/۶)

**دلائل:** مالکیه او شوافع د زیر بحث د حضرت انس رضي الله عنه د حدیث نه دلیل نیولی دی دې حضراتو د سورت نور ایت (**ولا یبدین زینتهن إلا .... ما ملکت یمینهن**) (سورة النور الایة ۲۱) نه هم دلیل نیولی چې دلته د ما لفظ عام دی لهذا ښځې د خپل غلام او خادمې مخکې زینت ښکاره کولی شي. ائمه احناف د خپل دلیل دپاره د ابن ابی شیبه روایت پیش کوي چې "**تستر المراة من غلامها**" او هم داسې په مصنف عبد الرزاق کې د مجاهد او حضرت طاوس والا روایت نه هم دلیل پیش کوي چې "**لا ینظر المملوک الی شعر سیدته**" صاحب هدایه عقلی دلیل داسې پیش کوي چې کله غلام آزاد شي نو د هغه نکاح د خپلې سابقه مالکې سره جائزده که چیرې دا محرم وی نو نکاح څنګه جائز شوه (سورة النور ۲۱)

**جواب:** د سورت نور په ایت کې "**ماملکت یمینهن**" نه مملوکې جینکۍ مراد دي هلکان ترې مراد نه دي ،حضرت سعید بن مسیب او حضرت حسن بصری او حضرت سمره بن جندب فرمایي چې "**لا تغرلکم سورة النور فانها فی الاناث دون الذکور**" باقی د حضرت انس د مذکوره روایت جواب دادی چې کیدی شي چې غلام نابالغه وي، یا جواب دا هم دی چې دلته د فتنې او شهوت ګمان نه وو، بهرحال یوه جزئي واقعه ده په دې کې ډیر امکانات کیدی شي خو مونږ له قانون او ضابطه اختیارول پکار دي.

## الفصل الثالث

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا |
| ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دی چې یوه ورځ نبی علیه السلام هغې سره تشریف فرما وو او په |
| وَفِي الْبَيْتِ مُخَنَّثٌ فَقَالَ: لِعَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ أَخِي أُمِّ سَلَمَةَ: |
| کور کې یو نر ښځی (هیجړا) هم موجود وو هغه نر ښځي حضرت عبد الله بن امیه د حضرت ام سلمه ورور ته وویل چې |
| يَا عَبْدَ اللهِ إِنْ فَتَحَ اللهُ لَكُمْ غَدًا الطَّائِفَ فَإِنِّي أَدُلُّكَ عَلَى ابْنَةِ غَيْلَانَ |
| عبد الله! که الله تعالی تاسو ته سبا له په طائف باندې فتح درکړه نو زه به تاته د غیلان لور ریانې وښایم چې |
| فَإِنَّهَا تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| څلورو سره راځي او اتو سره ځي، رسول کریم صلی الله علیه وسلم چې د دغې نر ښځي خبرې واوریدلې نو وې فرمایل |

| |
|---|
| «لَا يدخلن هٰؤُلَاءِ عَلَيْكُم» (صَحِيح)[۱] |
| چه دا نر ښځې دې بيا تاسو کره نه راځي. |

**توضيح :في البيت مخنث**: مخنث نر ښځې سړي وي چې اندامونه يې د ښځو په شان وي او آوازيې هم د ښځو پشان وي، مخنث کیدل پیدائشي هم کیدی شي لهذا په دې شرعاً څه مذمت نشته ځکه چې داد هغه په اختيار کې نه دی.او که مشابهت مصنوعي وو او سړی د څه مقصد د پاره ځان له د ښځو شکل او صورت جوړ کړی وو نو په ده لعنت دی او حرام دی او داسې کول د ښځو او سړو دواړو د پاره ناجائز دي.(المرقات ۲۸۷/۶)

صحابياتو او امهات المؤمنينو نر ښځې (**غير اولى الاربة من الرجال**)ګڼلی وو چه دا خلق د ښځو په شان رغبت او خواهش نه لري خو چې کله دې نر ښځو محاسن ټيک ټيک بيان کړل نو حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی کورته د داخليدو او د ښځو سره ناستې پاستې نه منع کړل ځکه چې معلومه شوه چې دا خلق "**غيراولى الاربة**"کې نه دي او دا حکم د خصي او مجبوب الذکر هم دی چې هغوی هم "**غير اولى الاربة**"کې نه دي.(المرقات ۲۸۸/۶)

**ابنة غيلان**: غيلان د طائف سردار وو دهغه دلور نوم باديه وو هغه ډيره زړه راښکونکې وه او بدن يې هم ډير پر کشش وو.

**تدبر بثمان**: د دې مطلب دا دی چې د غټوالي د وجې نه د هغې په وجود کې موړې جوړې شوې وې، د مخې نه څلور موړې شا طرف ته ځي، يوه ښې طرف او يوه چپ طرف ته، اوس څلور کرښې مخې طرف ته ځي مګر څلور شا طرف ته ځي او د ملا نه مخکې مخکې ختميږي نو دغسې دواړو طرف ته د څلورو په ځای اته اته لارې ښکاري،او همدا نقشه دا مخنث ښايي چه **تقبل باربع وتدبر بثمان**(المرقات ۲۸۸/۶)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ حَمَلْتُ حَجَرًا ثَقِيلاً فَبِيناَ أَنَا أَمْشِي | | | | | |
| حضرت مسور بن مخرمه وايي چې (يو ځل زه د خپل څه ضرورت د پاره) مايو دورن کانړی اوچت کړو او روان وم نو په | | | | | |
| سَقَطَ | عَنِّي | ثَوْبِي | فَلَمْ | أَسْتَطِعْ | أَخُذَهُ |
| لاره کې زما کپړې زما بدن نه وغورځېدې چې د هغې په وجه زما ستر ښکاره شو خو ما د بوچ له وجې خپله کپړه اوچت نه کړې شوه | | | | | |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۴۳۲۴ ومسلم في صحيحه ۱۷۱۵/۴ رقم الحديث (۲۱۸۰.۳۲)

فَرَآنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِي: «خُذْ

او په دې دوران کې نبی علیه السلام زه دبربنډېدو حالت کښې ولیدم حضور ﷺ وې فرمائیل چې زر

عَلَيْكَ ثَوْبَكَ وَلَا تَمْشُوا عُرَاةً». رَوَاهُ مُسلم [1]

خپله کپړه اوچته کړه او سترپټ کړه او بیا یې دا حکم وکړه چې بربنډ مه ګرځئ.

## دشرم اوحیا اوچته درجه

﴿۲۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: مَا نَظَرْتُ أَوْ مَا رَأَيْتُ فَرْجَ

ام المومنین حضرت عائشهؓ فرمایي چې ما کله هم خپل نظر دنبی عَلَیْهِ السَّلَامُ طرف ته نه دی اوچت کړی یا دائې اوفرمائیل

رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قطّ. رَوَاهُ ابْن مَاجَه [2]

چې ما کله هم دنبی عَلَیْهِ السَّلَامُ عورت ته نه دې کتلې. یا مې نه دی لیدلی.

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا مِنْ مُسْلِمٍ

حضرت ابوامامه د نبی کریم ﷺ نه نقل کوي چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې د کوم مسلمان

يَنْظُرُ إِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ أَوَّلَ مَرَّةٍ ثُمَّ يَغُضُّ بَصَرَهُ إِلَّا

چې د کوم مسلمان ورومبی نظر دیوې ښځې په حسن او جمال باندې پریوځي او بیا هغه خپل نظر زر بدل کړی

أَحْدَثَ اللهُ لَهُ عِبَادَةً يَجِدُ حلاوتها». رَوَاهُ أَحْمد [3]

نو الله تعالی به د هغه دپاره داسې عبادت پیدا کړي چې هغه کس ته به د هغې لذت حاصل شي. (احمد)

## ستروالا اندامونه ښکاره کول هم حرام دي اوورته کتل هم حرام دي

﴿۲۸﴾ وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّ

حضرت حسن بصری نه مرسل روایت دی هغوی فرمایي چې ماته دیو صحابیؓ نه دا حدیث رارسیدلی دی چې

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۲٦۸ رقم الحديث (۳٤۱.۷۸) وأبوداؤد في السنن ٤/۳۰٤ رقم الحديث ٤۰۱٦

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/٦۱۹ رقم الحديث ۱۹۲۲.وأحمد في المسند٦/٦۳

(۳) أخرجه أحمدفي المسند٥/۲٦٤

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَسُولَ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: | «لَعَنَ الله |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې په هغه کس باندې د الله تعالى لعنت دې چې هغه (بلاعذر | | | | | | |
| النَّاظِرَ وَالْمَنْظُورَ إِلَيْهِ» .رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ [1] | | | | | | |
| او بغير اضطرار) وکتل او په هغه کس باندې چې کوم ته يې وکتل. | | | | | | |

**توضيح**: النأظر والمنظور اليه: يعني په قصد دنظر د شهوت يوې پردۍ ښځې ته کتلو والا ملعون دی او هم داسې دستر والا اندامونو ته کتلو والا هم ملعون دی.

او داسې "**منظوراليه**" يعنې چا طرف ته چې کتلی شي هغه هم ملعون دی .اوس سوال دادی چې هغه ولې ملعون دی د کتلو واله خو قصور دی نو د هغه څه قصور دی؟ ددې جواب دادی چې په منظور اليه کې دا قيد دی چې هغه بغير د څه عذرنه خپل ځان بربنډ کړی دی او ښودنه کوې که ښځه وي او که سړی .او که معذوره وي يا څه نوره څه مجبوري وي نوهغه وعيد نه آزاد دی.( المرقات ۲۹۰/۶) بربنډ تصويرونو ته ، نيم بربنډ فلمونو ته ، او په سوئمنګ کې لوبغاړو ته کتل هم د لعنت په باب کې راځي. الله تعالى دې دټولو مسلمانانو حفاظت وکړي.

---

[1] رواه البيهقى فى شعب الايمان ٦/١٦٢ رقم الحديث ٧٧٨٨

# بَابُ الْوَلِيِّ فِي النِّكَاحِ وَاسْتِئْذَانِ الْمَرْأَةِ

## دنکاح ولی او دښځې داجازت بیان

په لغت کې ولي دکارونو داروغه ته ویلی شي د ولایت نه اخستل شوی دی " **تنفیذ الحکم علی الغیر**" ته ویلی شي.دلته د ولي نه مراد هغه کس دی چې دښځې د نکاح واکمند وي او ددې معاملې قانوني ذمه دار وی، مخکې به دیوې ښځې دنکاح واک دښځې هغه رشته دار سره وو.چه عصبه بنفسه به وو او د عصباتو ترتیب به هغه وي چې په میراث کې وراثت کې وي.

د ولی دپاره لازم دي چې مسلمان وي، عاقل او بالغ وي.لهذا غلام، لیونې ، ماشوم او کافر ولي نه شي جوړیدی. دې لپاره چې د زندګۍ دا اوږده معامله چیرته د نقصان ښکار نه شي،داسلام په نظر کې د نکاح او د انساني شرافت ډیر لحاظ ساتلی شوی دی، دې وجې نه د ولي اجازت او دښځې اجازت سره دارشته دشرافت یوې رښا سره تړلی شي.چې په یو مناسب ځای کې نکاح وکړی شي چې ښځه خپل خاندان بدنام نه کړي، او دویم طرف ته ښځه بې وسه نه شي او دځناورو پشان نه شي. په دې وجه په دې باب کښ''باب ولي النکاح'' کې هغه ټول احادیث دي چې پکې یې ددواړو اړخونو خیال ساتلی دی. انساني حق او د خوداراد ې د اصولو ماتحت په دې معامله کې د ښځې حیثیت لړ او چت او مستحکم دی لیکن د شرافت او د شرم او د حیاء په میدان کې د ولي تله درنه ده، لهذا په کومو احادیثو کې چې تعارض په نظر رائي نو په هغې کې د طرفینو حقوق په نظر کې نیول پکار دي نو هیڅ تعارض به پاتې نه شي.( المرقات ۲۹۰/۶)

## "مسئلة ولا یة الاجبار"

## الْفَصْلُ الأَوَّلُ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تُنْكَحُ الْأَيِّمُ حَتَّى | | | | | |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل. ایم (یعني کونده بالغه) به نکاح کولې نه شي تر څو پورې | | | | | |
| تُسْتَأْمَرَ | وَلَا | تُنْكَحُ | الْبِكْرُ | حَتَّى | تُسْتَأْذَنَ» |
| چې حکم یې نه وي شوی،او همداسې دپیغلې ښځې هم نکاح مه کوئ تر څو چې اجازت نه وی حاصل شوی.صحابه کرامو | | | | | |
| قَالُوا: | يَا | رَسُول | الله | وَكَيْف | إِذْنهَا؟ |
| عرض او کړو چې دائي واوریدل اې دالله تعالی رسوله! ددې پیغلې جینۍ اجازت به څنګه ملاویږی | | | | | |

قَالَ: «أَن تسكت» (صَحِيحٌ)[1]

نبی عَلَيۡهِ السَّلَامُ و فرمائیل دهغې اجازت خاموشی ده

**توضيح** :**الايم**: دايم لفظ د شد سره دی او هغې ښځې ته ويلی شي چې دهغې خاوند نه وي که پيغله وي او که کونډه وي او يا مطلقه وي يا خاونديې مړ شوی وي.ليکن دلته په دې حديث کې صرف ثيبه مراد ده يعنې چې دهغې پيغلتوب زائل شوی وي ، خواه نکاح يې صحيح سره زائل شوی وي يا نکاح فاسدې سره زائل شوی وي يا زنا وغيره سره ختم شوی وي.علامه طيبي هم داسې ليکلې دي. په دې حديث کښې"**الايم**" سره د امر او حکم لفظ راغلی دی ځکه چې ثيبه کې اصل نسواني حياء پاتې نه وي هغه به دخپلې نکاح پخپله حکم وکړي او الفاظو قطار به جوړ کړي.( المرقات ۶/۲۹۳،۲۹۱)

او "**البكر**" سره د اجازت لفظ تړلی دی ځکه چې پيغله په دې عمر کې دخپل نسواني حياء په وجه کامله وي نو ژبې سره اقرار نه شي کولی نو په دې وجه دهغې خاموشه پاتې کيدل به دهغې رضامندي وي. (المرقات ۶/۲۹۴،۲۹۳،۲۹۱)

**په ولايت اجبار کې دفقهاو اختلاف** د تولو نه وړومبی په دې ځان پوهه کول پکار دي چې دولايت اجبار او عدم اجبار څلور قسمونه دي: ۱.اول دا چې ثيبه بالغه ده او په دې دفقهاو اتفاق دی چې دنکاح دپاره اجازت ضروري دی.۲.دويم قسم باکره صغيره ده په دې کې د فقهاو اتفاق دی چې ددې د نکاح دپاره ددې داجازت ضرورت نشته دی.۳.دريم ثيبه صغيره ده په دې کې د جمهورو خيال دی چې ددې داجازت نه بغېر نکاح نه کيږي مګر احناف وايي چې دلته ددې داجازت ضرورت نشته دی. دثيبې صغيرې صورت دادی چې جينۍ وړه ده او دپيغلتوب نه مخکې کونډه شوه.۴.څلورم قسم باکره بالغه ده په دې کې هم اختلاف دی،علماء احناف فرمايي چې ددې نکاح داده چې داجازت او رضامندۍ نه بغير جائز نه ده ځکه چې دا بالغه او خپلواکه ده ليکن جمهور فرمايي چې ددې داجازت او رضامندۍ نه بغير ددې ولي يې نکاح کولی شي. ځکه چې پيغله ده او خپلواکه هم نه ده او دا مطلب د ولايت اجبار دی چې ولي په زوره نکاح وکړي. د ولايت دوه قسمه دي: ۱.ولايت اجبار ۲.ولايت استحباب.

د ولايت اجبار مطلب پورته ذکر کړی شو. د ولايت استحباب مطلب دادی چې دچا نکاح وي چې په

(۱) أخرجه البخارى في صحيحه ۱۲/۳۳۹ رقم الحديث ۶۹۶۸،ومسلم في ۲/۱۰۳۶ رقم الحديث (۱۴۱۹.۶۴) وأبوداؤد في السنن ۲/۵۷۳ رقم الحديث ۲۰۲۹ والترمذي في ۳/۴۱۵ رقم الحديث ۱۱۰۷ والنسائي في ۶/۶۸ رقم الحديث ۳۲۶۷ وابن ماجه في ۲/۶۰۱ .

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَهِيَ | ثَيِّبٌ فَكَرِهَتْ | ذٰلِكَ | فَأَتَتْ | رَسُولَ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

او هغه کونډه (بالغه) وه او دهغې دا نکاح ناخوښه وه او دنبی عَلَیهِ السَّلَام په خدمت کې حاضره شوه

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَرَدَّ | نِكَاحَهَا. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ |

او خپله معامله ئې ورته بیان کړه لهٰذا نبی عَلَیهِ السَّلَام دهغې نکاح (پلار ئې چې کړې وه) ختمه کړه.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَفِي | رِوَايَةِ | ابْنِ | مَاجَه | نِكَاحِ | أَبِيهَا (صَحِيح)[1] |

او په یو روایت د ابن ماجه کې دا الفاظ دي چې دهغې نکاح چه پلار یې کړې وه رد کړه.

**توضیح** :**وهي ثیب**: دجمهورو په نزد باندې ثیبې ته دنکاح د رد کولو اختیار شته او پیغلې ته نشته. احناف فرمائي چې دلته دثیبې نه مراد بالغه ښځه مراد ده او دې ته دا اختیار په دې وجه ورکړې شوی دی چې بالغه ده او عاقله ده شریعت داسې ښځې له د هر قسمه عقد او پریکون واک ورکړې دی نو د نکاح اختیار یې هم ورکړې دی نو چې کله ښځې له اختیار ورکړې شو نو د کونډې او پیغلې فرق په کې پاتې نه شو صرف دبلوغت لحاظ دی یکې.(المرقات ۶/۲۹۳)

## دنکاح په وخت کې دحضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا عمر

| | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ | عَائِشَةَ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | تَزَوَّجَهَا | وَهِيَ | بِنْتُ | سَبْعِ | سِنِينَ |

حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روایت دی چې نبی عَلَیهِ السَّلَام هغې سره هغه وخت نکاح کړې وه چې دهغې عمر اوه کاله

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَزُفَّتْ | إِلَيْهِ | وَهِيَ | بِنْتُ | تِسْعِ | سِنِينَ | وَلُعَبُهَا | مَعَهَا |

وه او چې کله دنبی عَلَیهِ السَّلَام کو رته راغله نو دنهه کالو وه او هغې سره د (دلوبو) څیزونه وو او چې کله او نبی عَلَیهِ السَّلَام

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَاتَ | عَنْهَا | وَهِيَ | بِنْتُ | ثَمَانِيَ | عَشْرَةَ. | رَوَاهُ | مُسلم | (صَحِيح)[2] |

د دنیا نه تشریف یوړلو او دحضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه همیشه دپاره جدا شو نو په هغه وخت کې یې عمر اتلس کاله وو.

**توضیح** : دا حدیث د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا دزندگۍ د وړومبني دور وضاحت کوي او دهغې کم عمري د دریواهمو مرحلو ښودنه کوي،د اوه کالو په عمر کې د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زوجیت کې راغله او دنهو کالو په عمر کې یې رخصتي وشوه او نهه کاله یې د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره تیر

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۹۴ رقم الحديث ۵۱۳۸ وأبوداؤد في السنن ۲/۵۷۹ رقم الحديث ۲۱۰۱ والنسائي في ۲/۷۶ رقم الحديث ۳۲۶۸ وابن ماجه ۲/۶۰۲ رقم الحديث ۱۸۷۳ والدارمي في ۲/۱۸۷ رقم الحديث ۲۱۹۲،وأحمد في المسند ۶/۳۲۸.

(۲) أخرجه في صحيحه ۲/۱۰۳۹ رقم الحديث (۱۴۲۲.۷۱)

کړې دي، او چې کله د اتلسو کالو شوه نو حضور اکرم ﷺ د دنيا نه تشريف يوړلو. دنهو کالو په عمر کې جينۍ بلوغت ته رسي او په کم عمرۍ کې د رسول کريم ﷺ خوا ته رسيدل دحضرت عائشې رضي الله عنها دپاره د اعزاز خبره ده، ناپوهه دي هغه خلق چې دومره صاف او صحيح حديث په دې وجه رد کوي چې دې سره دحضرت عائشې رضي الله عنها بې عزتي کيږي، په اخوا ديخوا خبرو باندې صحيح حديث رد کول ګمراهي ده. حضرت عائشه چونکه کم عمره وه په دې وجه يې ځان سره د لوبو ځيزونه راوړې وو او د لوبو ځيزونه دکېږې او دلرګې نه جوړې شوې ګوډيانې وې، علماو ليکلي دي چې ماشومانو جينکو له دې سره لوبې کول بهتر دي چې دکور په کاروبار باندې ښې پوهه شي. (المرقات ۶/۲۹۴)

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### د کم عمره جينۍ نکاح د ولي د اجازت نه بغير نه کيږي

| |
|---|
| ﴿۵﴾عَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا |
| حضرت ابو موسى رضي الله عنه د نبي عليه السلام نه نقل کوي چې نبي کريم ﷺ و فرمايل چې د |
| نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ (صَحِيح)[1] |
| ولي د اجازت نه بغير نکاح نه کيږي. (احمد، ترمذی، ابو داؤد، ابن ماجه، دارمی) |

**توضيح**: نکاح د ټولې زندګۍ د بندولو نوم دی د ټولې زندګۍ سودا ده شريعت په دې کې د ډير احتياط نه د کار اخستلو تعليم ورکړ دی، دې وجې نه ضروري ده چې د دواړو طرفونو نه رضامندي شامله وي چې روستو په کې زړه بداوی نه وي. شريعت د ولي باره کې ويلي دي چې ډير داعتدال نه دې کار اخلي او د جينۍ د مرضۍ خيال دې ساتي، او دويم طرف جينۍ له هم پکار دي چې د ولي د اجازت نه بغير نکاح نه کوي. او که چيرې يوه عاقله بالغه ښځه د يوې جينۍ نکاح وکړي چې د "انعقاد النکاح بعبارة النساء" په عنوان سره ياديږي نو ايا دا نکاح منعقد کيږي او که نه؟ د فقهاؤ په دې کې اختلاف دی چې "نکاح بعبارة النساء" درسته ده او که نه ده.

**د فقهاء کرامو اختلاف**: د امام شافعي او امام احمد بن حنبل په نزد د ولي نه بغير نکاح نه کيږي او د

---

([1]) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۶۸ رقم الحديث ۲۰۸۵ والترمذي في ۳/۴۱۷ رقم الحديث ۱۱۰۹ والنسائي في ۶/۸۷ رقم الحديث ۳۲۷۰ وأحمد في المسند۲/۲۵۹.

صاحبینو هم دامسلک دی . امام ابو حنیفه فرمایي چې که نکاح کفو کې شوې وي او مهر مثل مقرر
نو نکاح وشوه ،او که غیر کفو کې وي یا د مهر مثل نه کم باندې نکاح شوې وي نو د امام ابو حنیفه نه د
روایات دي یو ظاهر الروایة دی چې دا نکاح به وشي خو ولي ته د فسخ حق حاصل دی، او نادر الروایة
دی چې دا نکاح بالکل صحیح نه ده، لهذا راجح او قابل فتوی قول دا دی چې دا نکاح نه منعقد کیږي.
امام مالک فرمائي چې که ښځه وضیعه ده یعنې د خراب خاندان نه ده نو هغې ته دخپلې نکا
اختیار شته د ولي ضرورت ورته نشته او که د شریف خاندان ده نو هغه خپله نکاح نه شی کولی.
المرقات ۲۹۵/۶)

**دلائل** : امام شافعی او امام احمد بن حنبل په فصل ثانی کې د حضرت ابو موسی اشعري رضي الله
عنه د روایت نه دلیل نیولی دی په دې کې **"لانکاح الا بولي"** په صفا الفاظو سره دی. او دویم دلیل ئې
کې ورسره د حضرت عائشې روایت دی چې په کې **"ایما امراةٍ نکحت نفسها بغیر اذن ولیها فنکاحها
باطل"**الخ پورې الفاظ راغلې دي. امام مالک په احادیثو کې د مطابقت لاره پرانستې ده . یعنې
منع احادیث شریفه د ښځې په حق کې دي چې د ولی د اجازت نه بغیر نکاح مه کوئ او هغه احادیث
چې کوم په جواز باندې راهنمائي کوي او هغه د وضیعه ښځې په حق کې دي.( المرقات ۲۹۵/۶)
د امام ابو حنیفه په نزد یوه عاقله او بالغه ښځه خپله نکاح پخپله کولی شي ډیر زیات دلیلونه دي د
قرآن کریم کې په ایتونو کې د نکاح نسبت ښځې طرف ته شوی دی ،لکه **(فلا تعضلوهن ان ینکحن
ازواجهن)** ( المرقات بقره ۲۳۲) **(فلا تحل له من بعد حتی تنکح زوجا غیره)**( البقرة ۲۳۰) **(فلا جناح
علیکم فیما فعلن فی انفسهن بالمعروف)** (البقر: ۲۴۳) په احادیثو کې د **"الایم احق بنفسها من
ولیها"** نه احنافو دلیل نیولی دی، دارنګه د هغه ټولو احادیثو نه احنافو استدلال کړی دی په کومو
کې چې د ښځې نه اجازت ضروري ګڼلی شوی دی.
احناف د عقلي دلیل نه داسې استدلال کوي چې ښځه انسانه ده چې هغې ته د عقد او پریکون حق
حاصل دی نو نکاح هم یو تړون دی او په دې کې ښځه د ځناورو په شان نشي ساتلی لهذا عبارات
النسا سره هم نکاح کیږي او د ولی د اجازت نه بغیر هم.

**جواب** : په کومو احادیثو کې چې د ولی نه بغیر نکاح ممنوع کړی شوې ده هغه احادیث یا خو په صغیره
محمول دي یا په مجنونه محمول دي ځکه چې د هغوی د اختیار اعتبار نشته بلکې اختیارېې نشته.(
المرقات ۲۹۶/۶)

يا "لانکاح الا بولي" کې دې طرف ته اشاره ده که په غير کفو (خاندان) کې نکاح شوې وې نو د ولی اجازت ضروري دی که دولی اجازت په کې نه وي نو هغه د نکاح فسخ کولی شي. ګویا دا نکاح د ولی په اجازت باندې موقوف ده. نو "لا نکاح الا بولي" صحيح ده. (المرقات ۶/۲۹۷)

دريم جواب دادی چې په کومو احاديثو کې منع راغلې ده نو دسند په اعتبار سره ناقابل احتجاج دي همدارنګه پخپله دحضرت عائشې عمل د خپل روايت برعکس شو. ځکه چې هغوی د عبدالرحمن بن ابی بکر دلور نکاح پخپله کړې وه چې په هغې عبدالرحمن بن ابی بکر خفه وو خونکاح شوې وه، لهذا په دې صورت کې دا روايت د دليل دپاره قابل نه دی ، امام بخاری دا روايت ضعيف ګرځولی دې. بعضو ويلي دي چې داحنافو په نزد لا نکاح کې لا نفي دکمال دپاره دی چې بهتره نه ده .نسائي دا ضعيف ګرځولی دی،امام احمد بن حنبل فرمايي چې دا روايت قوی نه دی، بهرحال په دې مسئله کې د امام ابو حنيفه مسلک مضبوط دی. شپږم نمبر حديث کې "اشتجروا" لفظ راغلی دی چې معنی يې ده ''جګړه'' يعني که د ښځې د اولياو په مينځ کې په څه خبره جګړه شي او فيصله کولو واله بل څوک نه وي نو دهغه وخت قاضی به ولي شي ځکه چې د چا ولي نه وي نو د هغه وخت قاضی يا حاکم به ولی وي. (المرقات ۶/۲۹۷)

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ نَكَحَتْ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د کومې ښځې نکاح د ولی د |
| بِغَيْرِ إِذْنِ وَلِيِّهَا فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ |
| اجازت نه بغير وشوه نو دهغې نکاح باطله شوه دهغې نکاح باطله شوه، دهغې نکاح باطله شوه بيا که |
| فَإِنْ دَخَلَ بِهَا فَلَهَا الْمَهْرُ بِمَا اسْتَحَلَّ مِنْ فَرْجِهَا فَإِنِ |
| خاوند ورسره کوروالی وکړو نو هغه دمهر حق داره شوه ځکه چې خاوند د هغې شرمګاه نه فائده اوچته |
| اشْتَجَرُوا فَالسُّلْطَانُ وَلِيُّ من لَا ولي لَهُ».[1] |
| کړه او که ښځې د اولياو په څه خبره کې په اختلاف شول نو که ولی نه وي نو د هغه ولی به بادشاه وي |

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۶۶ رقم الحديث ۲۰۸۳ والترمذي في ۳/۴۰۷ رقم الحديث ۱۱۰۲ وابن ماجه في ۱/۶۰۵ رقم الحديث ۱۸۷۹ والدارمي في ۲/۱۸۵ رقم الحديث وأحمدفي المسند۶/۱۶۶.

## دګواهانو نه بغیر نکاح صحیح نه ده

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْبَغَايَا |
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې هغه ښځې په زنا کې مبتلا کیږي د چا |
| اللَّاتِي يُنْكِحْنَ أَنْفُسَهُنَّ بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ». وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ |
| نکاح چې بغیر د ګواهانو نه شوې وي، ددې روایت په باره کې صحیح خبره داده چې دا د نبی عَلَيْهِ السَّلَام |
| مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| ارشاد نه دی بلکې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دی (ترمذی) |

**توضیح**: اهل ظواهرو او ابن ابی لیلی طرف ته دا خبره منسوب شوې ده چې دنکاح د تړون په وخت کې دوه ګواهان ضروری دي، او ایجاب اوقبول او ریدل ضروری نه دي،د جمهورو په نزد د نکاح په وخت ګواهان په موقع موجودیدل ضروري دي. امام مالک فرمائي چې د ښځې او خاوند ملاقات پورې د ګواهانو موجودګی ضروري ده،او دجمهورو په نزد صرف د نکاح دتړون په وخت کې موجودګي کافي ده.

## دښځې خاموشي درضادلیل دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْيَتِيمَةُ |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عنه وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چه دپیغلې جینۍ نه دهغې |
| تُسْتَأْمَرُ فِي نَفْسِهَا فَإِنْ صَمَتَتْ فَهُوَ إِذْنُهَا وَإِنْ |
| دنکاح باره کې اجازت طلب کوئ اوکه دا داجازت په وخت کې خاموشه شوه نو دغه خاموشي دهغې رضامندی ده اوکه |
| أَبَتْ فَلَا جَوَازَ عَلَيْهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[2] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي مُوسَى[3] |
| انکاریې وکړو نو زورپرې نشته. (ترمذی،نسائی) دارمی دا روایت د ابوموسی نه نقل کړې دې |

**توضیح :الیتیمة**: دلته د یتیمه اطلاق په هغه پیغلې بالغې باندې شوی دی په اعتبار د ما مضی

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۱۱ رقم الحديث ۱۱۰۳.

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۷۳ رقم الحديث ۲۰۹۳ والترمذي في ۳/۴۱۷ رقم الحديث ۱۱۰۹ والنسائی في ۶/۸۷ رقم الحديث ۳۲۷۰ وأحمد في المسند۲/۲۵۹.

(۳) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۱۸۵ رقم الحديث ۲۱۸۵

سره، چې وړومبی یتیمه وه خو روستو د بلوغت نه یتیمه نه ده. (المرقات ۶/۲۹۸)

**فإن صمتت:** د ښځې خاموشي د رضامندۍ په معنی وي او دا صرف د ولي په حق کې وي یعني ښځه په هغه وخت کې خاموشه ګڼرلی شي کله چې تړې ولي د نکاح اجازت واخلي او هغه خاموشه شي نو دا خاموشي په رضامندۍ کې راځي او که غیرولي د نکاح مطالبه وکړه او ښځه خاموشه شوه نو ددې خاموشۍ هیڅ اعتبار نشته که د یتیمې نکاح د پلار نه علاوه بل کس کړې وي نو د بلوغت نه پس د احنافو په نزد دې ته د فسخ کولو حق حاصل دی د شوافعو په نزد دا نکاح صحیح نه ده (المرقات ۶/۲۹۹)

## د غلام نکاح د هغه د مالک د اجازت نه بغیر صحیح نه ده

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَيُّمَا عَبْدٍ |
| حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې کوم غلام د |
| تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ سَيِّدِهِ فَهُوَ عَاهِرٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ والدارمي[1] |
| خپل مالک د اجازت نه بغیر نکاح وکړي نو هغه زنا کار دی. (ترمذی، ابو داود، دارمی) |

**توضیح: عاهر:** اي زان د امام مالک په نزد د غلام نکاح د مالک د اجازت نه بغیر جائز او صحیح ده. د امام احمد بن حنبل او امام شافعي په نزد نکاح باطله ده او صحیح نه ده، د امام ابو حنیفه په نزد باندې غلام اهلیت نه لري، لهذا ایجاب او قبول هم موقوف دی او نکاح هم موقوفه ده، که مالک اجازت ورکړه نو نکاح وشوه که نه نو موقوف به وي. نو که احناف د مالک په اجازت نکاح کوي نو دوی به د امام مالک سره وي او د عدم اجازت په صورت کې احناف دا نکاح باطله ګڼي نو په دې صورت کې به هغوی د شوافعو سره وي. (المرقات ۶/۲۹۸)

# الْفَصْلُ الثَّالِث

## بالغه ښځه د خپلې نکاح په معامله کې واک منده ده

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّ جَارِيَةً بِكْرًا أَتَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یوه ورغ یوه پېغله جینۍ د نبی عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې حاضره شوه او هغې |
| فَذَكَرَتْ أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ كَارِهَةٌ |
| خپله قصه بیان کړه او ورته یې عرض وکړو چې د هغې پلار د هغې نکاح کړې ده چه هغه زما ناخوښه ده چنانچه نبی عَلَيْهِ السَّلَام |

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵٦۳ رقم الحديث ۲۰۷۸ والترمذي في ۳/٤۱۹ رقم الحديث ۱۱۱۱ وابن ماجه في ۱/٦۳۰ رقم الحديث ۱۹۵۹ والدارمي في ۲/۲۰۳ رقم الحديث ۲۲۳۳ وأحمد في المسند ۳/۳۷۷

فَخَيَّرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

هغې له اختيار ورکړو چې ستا خوښه ده نکاح دې قائمه ساتې او که خوښه دې وې نو ماته يې کړه. (ابو داؤد)

## د ولی د پاره د بالغې ښځې نکاح کول مستحب دي

﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: «لَا تزوج الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې ښځه دې د ښځې سره نکاح نه کوی

وَلَا تُزَوِّجُ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا فَإِنَّ الزَّانِيَةَ هِيَ الَّتِي تُزَوِّجُ نَفْسَهَا». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ[2]

او نه دې ښځه خپله نکاح پخپله کوي ځکه چې هغه به په زنا کې اخته شي کومه چې پخپله نکاح کوي.

**توضيح :لاتزوج المراة:** که ښځه خپله يا د بلې ښځې د نکاح قبول او ايجاب وکړي نو ايا دا نکاح ټيک ده که نه؟ په دې کې د فقهاو اختلاف دی. (المرقات ۲۹۹/۶) د جمهورو په نزد په عبارات النساء سره نکاح نه قائميږي، ائمه احنافو په نزد قائميږي. احناف په دې باره کې د قرآن کريم هغه ټول ايتونه دليل د پاره پيش کوي چې په کې د نکاح نسبت ښځو طرف ته شوی دی لکه (**حتی تنکح زوجا غيره**) (البقرة ۳۱) (**لاتعضلوهن ان ينکحن ازواجهن**) (البقرة ۲۳۲) د دې ايتونو او احاديثو په رڼا کې احناف فرمايي چې عبارات النساء سره نکاح قائميږي ،ښځه هم انسان دی چې په نورو معاملاتو کې د هغې قول او فعل معتبر دی نو په نکاح کې هم معتبرول پکار دي. دا مسئله په حديث نمبر ۵ کې په تفصيل سره بيان شوې ده. جمهور د هغه احاديثو نه دليل پيش کوي چې په کې د ښځې نکاح د ولی د اجازت سره تړلې ده د دې حديث نه يې هم دليل نيولی دی چې يوه ښځه دې خپله نکاح نه کوي او نه دا د بلې ښځې نکاح کولی شي ځکه چې د ولی نه بغير نکاح صحيح نه ده، نو دې نه پس چې دې باطلې نکاح کې کوم کس کوروالی کوي نو هغه به د زنا په ضمن کې راځي، جمهورو دا حديث د ولی د اجازت سره تړلی دی ائمه احناف فرمايي چې ښځې دا په نکاح ګانو کې مستقل کردار نه اداء کوي، او که چيرې هغوی داسې عمل وکړو نو نکاح کيږي، ځکه د امورو شرعيو نه د هغوی ممانعت د نهي دليل دی ليکن د بطلان دليل نه دی. (المرقات ۲۹۹/۶، ۲۹۴)

احنافو د دې روايت دوه مطلبه بيانوي: ړومبی مطلب دا دی چې ښځې نه هغه ښځه مراد ده چې کومې ته د بلې ښځې د نکاح حق ولايت حاصل نه وي او هغه د هغې نکاح کوي. دويم مطلب يې

---

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۷۶ رقم الحديث ۲۰۹۶ وابن ماجه في ۱/۶۰۳ رقم الحديث ۱۸۷۵

[2] أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۶۰۶ رقم الحديث ۱۸۸۲

دادی دلته نهي تحریم دپاره نه ده بلکې د کراهت تنزیهی دپاره ده چې ددې مونږه هم قائل یو، دحدیث د دویمې جملې ''نه ښځه خپله نکاح دې کوي'' نه احنافو دا مطلب اغستی دی چې هره یوه ښځه دې بغیر د ګواهانو نه نکاح نه کوي ګني زنا به شي، او د جمهورو هم دغه مطلب دی چې د ولی د اجازت نه بغیر یې نکاح وکړه نو زنا شوه. (المرقات ۲۹۹/۶)

## په پلار باندې د بچو درې حقونه

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَابْنِ عَبَّاسٍ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ وُلِدَ |
| حضرت ابو سعید او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چه د کوم کس ځوې |
| لَهُ وَلَدٌ فَلْيُحْسِنِ اسْمَهُ وَأَدَبَهُ فَإِذَا بَلَغَ |
| پيدا شو نو پكار ده ښه نوم دې ورله کیږدي او هغه ته دې ښائسته ادب وښائي او چې بيا کله بالغ شي نو |
| فَلْيُزَوِّجْهُ فَإِنْ بَلَغَ وَلَمْ يُزَوِّجْهُ فَأَصَابَ إِثْمًا |
| نکاح دې ورله وکړي، که هلک بالغ وو او د هغه پلار سره د طاقت ورله نکاح نه کوی نو چې بيا په څه غلطو کارونو کې |
| فَإِنَّمَا إِثْمه على أَبِيه» اخرجه البيهقي.[1] |
| اخته شي نو د هغې ټوله ګناه به په پلار باندې به وي. |

**توضیح**: اسلام دیوې ښې معاشرې په جوړولو کې مدد ورکوي او د ماشومانو روزنې مدرسه د مور پلار کور دی که ددې ځاې نه ښه بنیاد کیښودلی شو نو د زندګۍ آخره پورې به دا بنیاد کار ورکوي او که دا بنیاد خراب شو نو ټوله زندګي به یې تر آخره پورې خرابه وي، او د معاشرې دپاره به خطرناک ثابتیږي. په دې حدیث کې مور پلار ته درې تعلیمه ورکړی شوې دي: اول دا چې د پیدائش په وخت کې ماشوم له ښه نوم کیښودل او اسلامی نومونه کیښودل چې په زندګي ئې ښه اثر پریوځی. دویم دا چې بچې له صحیح تعلیم ورکول چې بچی جاهل نه شي د تعلیم مقصد ښه لاره ښودنه ده چې ماشوم د خالق او د مخلوق حقونه وپيژني، دیني تعلیم پریښودل او دنیاوی تعلیم له توجه ورکول بې مقصده دی. دریم دا چه بلوغت ته ورسیږي نو نکاح دې ورله کوي، ددې فائده دا ده چې ماشوم د غلطو کارونو نه او د زنا په رنګه خطرناک څیز نه محفوظ شي. د حضرت مولانا مفتی محمد شفیعؒ دا خبره مشهوره ده چې کله هلک د څوارلسو کالو او جینۍ د پنځلسو کالو شي نو دوارو له په دې عمر کې نکاح کول لازم دي نو هغوی به فرمایل چې دا سې و شي نو زنا به تقریباً ختمه

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ٦/٤٠٠ رقم الحديث ٨٦٦٦

شي.د دې حدیث په آخر کې د تشدید او تهدید او تغلیظ او توبیخ په طریقه وفرمایل چې که هلک یا جینۍ زنا و غیره فحاشي وکړي نو ګناه یې د پلار په غاړه ده، یعنې پلار به ورسره په ګناه کې شریک وي، په دې شرط چې کوم شرعي عذر یې نه وي، د راتلونکي حدیث هم دا مطلب دی.( المرقات ۶/۳۰۰)

## جینۍ چې څنګه بالغه شي نو نکاح ور له کوئ

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه او حضرت انس رضي الله عنه روایت کوی د رسول صلی الله علیه وسلم نه چه |
| قَالَ: "فِي التَّوْرَاةِ مَكْتُوبٌ: مَنْ بَلَغَتِ ابْنَتُهُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً |
| نبی علیه السلام وفرمایل چې په "تورات کې لیکلي دي چې د کوم سړي د لور عمر دولس کاله شو او هغه |
| وَلَمْ يُزَوِّجْهَا فَأَصَابَتْ إِثْمًا فَإِثْمُ ذَلِكَ عَلَيْهِ |
| دهغې نکاح ونه کړه او بیا هغه جینۍ په بدکارۍ وغیره کې اخته شو هنو دهغې ګناه په پلار باندې ده |
| رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي» شُعَبِ الْإِيمَانِ "[۱] |
| دا دواړه روایتونه بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړې دي. |

**توضیح**: مسلمانانو غیر مسلمو ته وکتل او دهغوی رسم ورواج او غلط رسمونه یې په خپل غم او ښادۍ کې داخل کړل او خپل ځان دپاره یې پریشانۍ پیدا کړې، د جهیز جوړلو دپاره خیر غواړي او ځای په ځای دعاګانې غواړي چې د ماشومانو جینکو درشتې انتظام وشي خو د رشتو دپاره چې کوم شرائط وي نو دهغې پوره کول اسان کار نه دی .نو نتیجه دا راوځي چې ماشومانې جینکۍ کالو سر دبلوغت نه پس په کورونو کې ناستې وي او په مختلفو ګناهونو کې اخته شي، او داسې حال د هلکانو هم دی . اسلام صرف د حق مهر ادا کولو ویلي دي او نور په دې کې یې فضول کارونه منع کړي دي.

۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞

(۱) أخرجه البیهقی فی شعب الایمان ٦/٤٠٢ رقم الحدیث ٨٦٦٩٠.

# بَابُ إِعْلَانِ النِّكَاحِ وَالْخِطْبَةِ وَالشَّرْطِ

## دنکاح اعلان او شرائط

په اسلام کې د ښځې او خاوند په مینځ کې د جنسي تعلقاتو تړون ورومبنی جائز پراو دی،په دې وجه شریعت دده د پټولو په ځای د ښکاره کولو حکم کړی دی چې دې سره دنورو ناجائزو تړونونو پته ولګي دې له پاره د "**اعلان النکاح**" په عنوان سره دلته یو باب تړلی شوی دی.په دې باب کې د نکاح واجبات، آداب،سنن، او مستحبات او نور ضروریات په نهایت آسان انداز سره بیانیږي.اول اعلان داپکار دی چې نکاح ددوه ګواهانوپه مخکې وي ورنه صحیح به نه وی.دویم اعلان دادی چې ښه په ښکاره ، په عام مسجد کې دې وي، د کلي ،علاقې دمشرانو په مخکې دې وي،او علاقائي دستور مطابق دې وي .نشانه بازی دې په کې وي.دریم داچه ددې فائده به دا وي چې جهادي تربیت به وشي خو د اسراف نه په کې ځان ساتل .داعلان نکاح دپاره دف غږول د یو حده پورې جائز دي، ددې دا فائده ده چې یو خو د نکاح اعلان وشي اوبله داچه کوم سازشي نکاح ګانې دي د هغې نه دا نکاح ممتازه شي، دویمه فائده داشوه چې په غم او ښادۍ کې فرق معلوم شي.د اعلان نکاح په سلسله کې دعوت ولیمه هم دی، دې لپاره چې عام تشهیر وشي او هر سازش بند شي، د نکاح خطبه د تشهیر نکاح ذریعه ده، دا ټول کارونه د تشهیر په غرض سره جائز دي، بعضې واجب دي او بعضې مستحب، مسنون او یا مباح دي، لیکن د دې سره سره د مسلمان نکاح د جاهلیت او د اهل بدعاتو د ټولو رسمونو نه پاکول دي، د یهودو او هندوانو او د اهل باطلو د ټولو خرفاتو نه د دې پاکول د اسلام او ایمان او د شریعت او د شرافت تقاضاده، مثلاً ګانې غږول، آتش بازي، بې پرده ګي، د هلک د جوړولو رسم، د اس سورلي، بازار ته چکر لګول د هلک او د ناوې دا خراب عملونه دي.

**الخطبة:** دا لفظ په ضمې او کسرې دواړو سره ویل کیږي، که د (خا) ضمه وي نو د نکاح خطبه مراد ده، او دا خطبه د احنافو او شوافعو د ټولو په نزد سنت ده، البته شوافع د هر عقد په وخت کې خطبې ته مسنون وایې، مثلاً د بیع او شراء په وخت کې هم خطبې ته سنت وایې.او که دا لفظ د (خا) په کسرې سره شي نو بیا د پیغام نکاح په معنی سره دی د باب په احادیثو کې دواړه شیان شته لیکن مسنون خطبه مراد اخستل ډیر واضح دي.(المرقات ۳۰۰/۶)

## دنکاح په وخت کې تنبل وهل جائز دی

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَاءَ قَالَتْ: جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ

حضرت ربیع بنت معوذ بن عفراء وایي چې زه کله دنکاح نه پس د خپل خاوند کورته راغلم نو نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ مونږ کره تشریف

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حِينَ | بُنِيَ | عَلَيَّ | فَجَلَسَ | عَلَى | فِرَاشِي | كمجلسك | مني |
| راوړلو او زما په بستره يې تشريف كيخودلو څنګه چې ته زما په بستره ناست يې (ربيع راوي ته مخاطب شوه) | | | | | | | |
| فَجعلت | جويرات | لَنَا | يَضْرِبْنَ | بِالدُّفِ | وَيَنْدُبْنَ | مَنْ | قُتِلَ |
| او زمونږ د خاندان جينكو مې چې په هغه وخت كې موجود وې تنبل وهل شروع كړل او شهيدان شوي وو | | | | | | | |
| مِنْ | آبَائِي | يَوْمَ | بَدْرٍ | إِذْ | قَالَتْ | | إِحْدَاهُنَّ: |
| په بدر كې زمونږ د پلار نيكه نه دهغوى خوبياني او دبهادرئ اشعار ويل ئې شروع كړل، په دې دوران كې يو ماشومې وويل | | | | | | | |
| وَفِينَا | نَبِيٌّ | يَعْلَمُ | مَا | فِي | غَدٍ | | فَقَالَ: |
| چې "زمونږ په مينځ كې هغه نبي دى چه د صبا ورځې ورته پته ده رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا واوريدلو وي فرمائيل | | | | | | | |
| «دَعِي | هَذِهِ | وَقُولِي | بِالَّذِي | كُنْتِ | تَقُولِينَ». | رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ | (صَحِيح)[1] |
| چې دا خبره پريږده (يعنى داسې خبره مه كوئ بلكه هغه خبرې كوئ چې مو مخكې كولې. | | | | | | | |

**توضيح**: كمجلسک مني دا خطاب حضرت خالد بن ذكوان ته دى. (المرقات ۳۰۱/۶)

**سوال**: اوس دلته سوال او اشكال دى چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت ربيع سره بې پردګئ كې ولې كيناسته او د محرميت څه رشته هم وه؟ **ورومبى جواب**: د پردې د اصولو مطابق ناست وو.

**دويم جواب**: بله دا چه يو اجنبي ښځې ته د ضرورت په وقت كې كتل جائز دي. **دريم جواب**: حضور اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دامت د سړو او د ښځو دپاره د پلار په شان وونو د پردې سوال نه پيدا كيږي او آخري جواب علامه عيني وركړى دى، چې په دې سره په اكثرو ځايونو (المرقات ۳۰۱/۶)

د دارنګې سوالونو جواب كيدى شي. **يضربن بالدف**: تنبل ډولكى يا په لوښې باندې څرمن لګولو والا څيز ته ويلى شي چې دهغې نه ددف دف آواز راوځي. **"تسمية الشئ باسم صوته"** دى په دې كې لوبې، رباب، ستار وغيره نه راځي او دا څيزونه حرام دي. (المرقات ۳۰۱/۶)

**صرف ډول وهل يا شعرونه ويل څنګه دي؟** بعضو علماو هر وخت دف وهل منع كړى دى او بعضو هر وخت روا ګرځولى دى خو اصل مسئله داده چې په اخترونو، سنت (ختنه) او ښادى په موقعو كې د تنبل وهلو ذكر په ډيرو حديثو كې راغلى دى مثلاً يو دا زير بحث حديث دى. (المرقات ۳۰۱/۶)

دې نه پس د حضرت عائشې والا حديث دى او هم داسې په ص ۲۷۲ باندې هم د حضرت عائشې

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲۰۲ رقم الحديث ۵۱۴۷ وابن ماجه في ۱/۶۱۱

روایت دی.دې نه پس د حاطب جمعي روایت دی،او دې نه پس بیا دحضرت عائشې روایت دی...ا متعدد احادیث د جواز او اباحت واضح دلیلونه دي، دې مسئلې باره کې مولانا مفتی محمد شفیع احکام القرآن کې سورت لقمان په فائدو کې په تنصیل سره ذکر کړی دی هلته یې کتل پکار دي. خلاصه داده چې د مسلمانانو په غمونو او خوشحالو کې فرق کول دي، واده غم نه دی چې هغه په غم سره بدل شي، او د ناوې په مجلس کې به قرآن نه لوستل کیږي. او نه به دعوت ولیمه د خیرات په نوم سره یادوي، لکه څرنګه چې بعضې د وچې صوفیان کوي.و **ینْدُبنَ من آبائي**: حضرت معوذ رضي الله عنه د بدر په شهداو کې وو، د (آبائي) لفظ سره هغه ته اشاره ده، چونکه په دې اشعارو کې د مجاهدینو او د جهاد او د جوش او شجاعت تذکرې وې نو په دغه وجه پیغمبر صلی الله علیه وسلم چوپ وو، لیکن کله چې هغو جینکو (و فینا رسول الله یعلمُ ما في غد) وویله نو پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ هغوی منع کړې، ځکه د دې نه د عقیدې د فساد خطره وه، ځکه علم غیب د الله تعالی د خصوصي صفاتو نه یو صفت دی، علامه طیبي په دې مقام کې لیکلي دي چې پیغمبر علیه السلام هغه جینکۍ د هغو شعرونو د ویلو نه په دې وجه منع کړې **(لکراهة اَن یسند علم الغیب اِلیه مطلقًا لأن الغیب لا یعلمه اِلا الله)** طیبي ج۲ ص۲۵۴.(الکاشف ۲۷۷/۲)

باب سعدي څه ښه ویلي دي:

علم غیبی کس نمی داند بجز پروردگار — هر که گوید مابدانم از دباور مدار

مصطفی هرگزنه گفتی تانه کفـــــتی جبرئیل — جبرئیلش هم نه گفتی تانگفتی کردگار

یکی پرسید از ان گم کرده فرزند — که ای روشن گهر پیر خردمند

ز مصرش بوی پیراهن شمیدی — درچاه کنعانش نه دیدی

بگفت احوال مابرقِ جهان است — دمی پیدا ودیگردم نهان است

گــــــــهی بر طارم اعلی نشینم — بر پشت پای خودنه بیـــــــــنم

**(تبارَکَ الله ما وحی بمکتسبٍ و لا نبي علی غیب بمتهمٍ) (قل لا یعلمُ من في السموات والارض الغیب اِلا الله)** (نمل ۲۵) **(و عنده مفاتح الغیب)**(انعام ۵۹) **(و قل رب زدني علمًا)**. (طه ۱۱۴)

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَتْ: زُفَّتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا وایي چې یوه ښځه دنکاح نه وروسته دانصارو یو کس کره رخصت کړی شوه |

فَقَالَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا كَانَ مَعَكُمْ لَهْوٌ؟ فَإِنَّ الْأَنْصَارَ

نو رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه کس ته وفرمايل چې تاسو سره دلوبو (يعنى تنبل نشته) ځکه انصارو به دا خيزونه

يُعْجِبُهُمُ اللَّهْوُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[1]

ډير خوښول. (روايت کړي دي صحيح البخاری)

## د شوال په مياشت کې نکاح کول سنت دہ

﴿۲﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: تَزَوَّجَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي شَوَّالٍ وَبَنَى بِي

حضرت عائشةؓ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماسره د شوال په مياشت کې نکاح وکړه او بيا دري کاله پس

فِي شَوَّالٍ فَأَيُّ نِسَاءِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَحْظَى عِنْدَهُ مِنِّي؟ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

د شوال په مياشت کې زما رخصتي وشوه اوس تاسو ووائې چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په بيبيانو کې زمانه کومه ډيره خوش نصيبه وه؟

**توضيح** : د جاهليت په زمانه کې به خلقو د شوال په مياشت کې واده سپيره ګڼلو ځنګه چې نن سبا جاهل خلق د دوه اخترونو په مينځ کې يا شعبان يا محرم کې واده کول بد ګڼي . حضرت عائشې رضي الله عنها ددې رد وکړو او وې فرمايل که چيرې دا منحوس وى نو زما واده په شوال کې شوى وو او رخصتي په شوال کې وه، او زه څومره خوش نصيبه يم. (المرقات ۶/۳۰۶)

## د مهر په اداکولو باندې زور

﴿۴﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَحَقُّ الشُّرُوطِ

حضرت عقبه بن عامر وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د کومو شرطونو پوره والى

أَنْ تُوفُوا بِهِ مَا اسْتَحْلَلْتُمْ بِهِ الْفروج» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[3]

ستاسو په ذمه دى په هغې کې ضروري شرط هغه دى چې د کوم په ذريعه تاسو شرمګاه حلاله کړې ده.

**توضيح** : احق الشروط: د ټولو نه اهم شرط نه مراد د ښځې مهر دى، اوس سوال دادى چې دلته

---

([1]) اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲۲۵ رقم الحديث ۵۱۶۲.

([2]) اخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۳۹ رقم الحديث (۱۴۲۳.۷۳) والترمذي في السنن ۳/۴۰۱ رقم الحديث ۱۰۹۳ وابن ماجه في ۱/۶۴۱ رقم الحديث ۱۹۹۰ والدارمي في ۲/۱۹۵ رقم الحديث ۲۲۱۱ واحمد في المسند۶/۵۴.

([3]) اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲۱۷ رقم الحديث ۵۱۵۱ ومسلم في ۲/۱۰۵۳ رقم الحديث (۱۴۱۸.۶۳) وابوداؤد في السنن ۲/۶۰۴رقم الحديث ۲۱۳۹ ،الترمذي ۳/۴۳۴ رقم الحديث ۱۱۲۷والنسائي ۶/۹۲رقم الحديث۳۲۸۱وابن ماجه۱/۶۲۸رقم الحديث ۱۱۲۷

شرطونه کوم ځای دي چې په کې دې ته اهم ویلی شوې دي؟ ددې جواب دادی چې د شرط نه مراد خو مهردی څنګه چې لیکلی شوې دي .یا د ښځې خاوند په مینځ کې حقونه مراد دي چې د خاوند په ذمه وي لکه خوراک څښاک، کور وغیره نور ضروریات دي، اوس پاتې شوه داخبره چې دې خیزونو ته یې دشرط نوم ولې ورکړی ؟ نو ددې جواب دادی چې د نکاح د تړون په وخت خاوند دا اقرار او وعده کوی چې زه به ددې ټول حقونه پوره کومه دې ارادې او وعدې ته شرط نوم ورکړی شوی دی.

**په نکاح کې درې قسمه شرطونه دي** : ۱.هغه شرطونه چې نکاح سره لازم دي لکه خوراک څښاک ، کپړه ، کور وغیره دا شرطونه پوره کول ضروری دي.۲.هغه شرط چې د نکاح خلاف وي او داسې شرطونه پوره کول ضروری نه وي. او نه یې څه اعتبار شته.۳.هغه جائز شرطونه کوم چې نه خو د نکاح د تقاضو خلاف وي او نه د نکاح د تړون د لوازماتو نه وي لکه په یو خاص کور کې اوسیدل،په یوه خاصه علاقه کې داوسیدو شرط،داسې شرطونه د حسن سلوک په بنیاد خو صحیح دي لیکن څه شرعی قاعده نشته چې پابندي یې ضروری یالازم وي.( المرقات ۳۰۳/۶)

## نکاح شوې ته دنکاح پیغام نه ورکول

| |
|---|
| (۵) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَخْطُبُ |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل چه یو سړې دې دنکاح پیغام دخپل مسلمان ورور |
| الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ حَتَّى يَنْكِحَ أَو يَتْرُكَ» (صَحِيحٌ)[۱] |
| په پیغام باندې نه لیږی چې هغه ورسره نکاح وکړي تر دې چې هغه ورسره نکاح وکړي یا یې پریږدي.(بخاری) |

**توضیح : لایخطب**: د نکاح پیغام ته خطبه ویلی شي د خاء کسرې سره دی . اسلام بغض، حسد او نور ډیر خراب څیزونه ختموي، که یو مسلمان د نکاح په تړون کې وي نو ترڅوپورې چې یې معامله ختمه شوې نه وي نو دویم مسلمان دهغه معامله کې داخلیدی نه شي چې بغض او حسد قائم نه شي په دې باره کې دا حدیث دی. او د خبرو په دوران کې او معامله چې ختمه شوې نه وي نو مداخلت په کې نه دی پکار. تر دې پورې چې نکاح یې وشي یا مخطوبه پریږدي.[۲]

**سوال** : دلته یو اعتراض دی او هغه دادی چې **"حتی ینکح"** جمله د لایخطب په جمله باندې متفرع

---

[۱] اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۹۹ رقم الحديث ومسلم في ۲/۱۰۳۳ رقم الحديث (۱۴۱۳.۵۲) وأبوداؤد في السنن ۲/۵۶۳ رقم الحديث ۲۰۸۰ والترمذي في ۳/۴۴۰ رقم الحديث ۲۱۷۵ والنسائي في ۶/۷۳ رقم الحديث ۳۲۴۱ وابن ماجه في ۱/۶۰۰ رقم الحديث ۱۸۶۷.

[۲] المرقات ۳۰۴/۶

ده لیکن ددې نهې دپاره دا جمله غایه نشي جوړیدی په دې صورت کې دا ترجمه به داسې شي. چې یو سړې دې د خپل مسلمان ورور په پیغام نکاح باندې پیغام نه لیږي، تر دې چې هغه ورور یې نکاح وکړي او یا انکار وکړي، نو کله چې دغې ورورئي نکاح وکړه نو بیا دا سړی یوې نکاح شده ښځې ته پیغام نکاح څنګه لیږلی شي. **جواب نمبر ۱**: علامه طیبی اعتراض هم کړی او بیایې دوه جوابونه ورکړې: اول جواب دادی چې دا کلام تعلیق بالمحال په طور دی، یعنې فرض کړه که چیرې دغه کس پیغام د نکاح لیږلی شي او ممکنه ده چې ویې لیږي، لیکن د نکاح نه وروسته پیغام نه لیږي. **دویم جواب**: دادی چې د حتی کلمه په معنی د "کې" ده او د "او" کلمه په معنی د "الی ان" ده. او د ینکح ضمیر نوي کس ته راجع دی، او د یترک ضمیر هغه مسلمان ورور طرف ته راجع دی. ترجمه یې داسې کیږي چې یو سړی د خپل مسلمان ورور په نکاح دې پیغام نه لیږي چې هغې ښځې سره پخپله نکاح وکړي تر دې چې هغه مسلمان ورور د هغې د نکاح نه انکار وکړي. اوس دا بحث دی چې دا پیغام دې په کوم وخت او کوم صورت کې وي؟ نو جمهور فرمایي که ښځې یا دهغې ولي په واضحه طورباندې پیغام قبول کړه او دواړو طرف نه رضامندي شوه صرف دنکاح تړون پاتې دی نو دویم کس له د نکاح پیغام لیږل جائز نه دي. او که په واضحه طورباندې اتفاقًا رد شوه نو بیا جائز دی. (الکاشف ۲/۲۸۰)

## یو بن دې د بلې بن د پاره نه بدخواه کیږي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾ | وَعَنْهُ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: «لَا تَسْأَلِ |
| ددې حدیث حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چه ښځه دې یو سړي ته دخپلې | | | | | | | |
| الْمَرْأَةُ | طَلَاقَ | أُخْتِهَا | لِتَسْتَفْرِغَ | صَحْفَتَهَا | | | |
| دیني خورباره کې داسې وینا نه کوي چې دې له طلاق ورکړه او د طلاق ورکولو مقصد دا وي چې ما ته پیاله | | | | | | | |
| وَلِتَنْكِحَ | فَإِنَّ | لَهَا | مَا | | | | |
| خالي شی چې ددې طلاق په وجه سره زه په ټولو حقونو باندې قبضه وکړم او د هغې خاوند سره پخپله نکاح وکړي ځکه | | | | | | | |
| قُدِّرَ | لَهَا» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1] | | | | | |
| دې دپاره به هغه وي کوم چې دهغې په نصیب کې لیکلې وي. (بخاري و مسلم) | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲۱۹ رقم الحديث ومسلم في ۲/۱۰۲۹ رقم الحديث (۱۴۰۸.۳۸) وأبوداؤد في السنن ۲/۶۳۰ رقم الحديث ۲۱۷۶ والترمذي في ۳/۴۹۵ رقم الحديث ۱۱۹۰ والنسائي في ۶/۷۱ رقم الحديث ۳۲۳۹ وأحمد في المسند ۲/۳۱۱

**توضیح**: **لتستفرغ** استفرغ د فراغت نه اخستل شوی دی او معنی یې ده خالي کول.

**صحفة**: غټه کاسه یا پیاله ترې نه مراد ده چې په کې پنځه کسان خوراک کولی شي، ددې حدیث دوه مفهومه وي وړومبی مفهوم یې دادی چې د یو کس یوه ښځه ده او هغه سړی پرې دویمه ښځه کول غواړي کومه چې راتلونکې ده هغه ورته وایې چې زه به درسره هغه وخت پورې نکاح نه کومه چې ته وړومبی ښځې له طلاق ورکړې چې ماته کور خالي شي.دویم مفهوم یې دادی چې دیو سړې په نکاح کې دوه ښځې دي یوه بن وایې چې دا دویمه فارغه کړه چې کاسه ماته خالې پاتې شي **والتنکح**ددې دویم مفهوم مطابق ددې کلمې ترجمه دا شوه چې حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسلمانانې ښځې ددې کار نه منع کړې دي چې هر ې ښځې سره خپل قسمت راځي نو ددې بد اخلاقی څه فائده شوه.(المرقات ۶/۳۰۵،۳۰۴)

## دنکاح شغار ممانعت

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الشِّغَارِ وَالشِّغَارُ: |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شغار نه منع فرمایلې ده شغار دادې چې |
| أَنْ يُزَوِّجَ الرَّجُلُ ابْنَتَهُ عَلَى أَنْ يُزَوِّجَهُ الْآخَرُ |
| یو سړې دبل سړې سره د خپلې لور نکاح په دې شرط باندې وکړي چه د هغه دویم سړي د لور نکاح به |
| ابْنَتَهُ وَلَيْسَ بَيْنَهُمَا صَدَاقٌ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] وفی روایةٍ لِمُسْلِمٍ |
| هغه سړی سره کوي او په دواړو کې به مهر نه وي.(بخاری ومسلم) او د مسلم په یو روایت کې دي |
| قَالَ لاَ شِغَارَ فِي الْإِسْلاَمِ |
| چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې په اسلام کې شغار جائز نه دی. |

**توضیح**: **نهی عن شغار** شغار د شغر نه اخستل شوی دی او د شغر معنی اوچتول دي څنګه چې سپی متیازې کوي او خپلې پښې اوچتې کړي نو وایې **شغر الکلب** دلته د شغار په دې معامله کې مهر د مینځ نه اوښکل دي په دې وجه دې ته هم شغر ویلی کیږي په دې کې هر قسمه شرم طرف ته اشاره ده. د شغار وضاحت په دې حدیث کې وشو خو نور وضاحت یې دادی چې شغار دادی چې یو سړی بل سړي ته ووایې چې ماله خپله لور په نکاح کې راکړه او هغه بل سړی ورته ووایې ته هم خپله لور

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۶۲ رقم الحديث ومسلم في ۲/۱۰۳۴ رقم الحديث (۱۴۱۵.۵۷) وأبوداؤد في ۲/۵۶۰ رقم الحديث ۲۰۷۴ والنسائي في ۶/۱۱۲ رقم الحديث ۳۳۳۷ وابن ماجه في ۱/۶۰۶ رقم الحديث ۱۸۸۳ والدارمي في ۲/۱۸۳ رقم الحديث ۲۱۸۰.

بدله کې راکړه او داسې دواړو طرف نه راضي کیدو باندې تړون وشي او په مینځ کې مهر نه وي بلکې د جینکو تبادله مهر ګڼلې شي. (المرقات ۳۰۵)

**دفقهاو اختلاف** : د شغار په نکاح کې د فقهاو اختلاف دی جمهور فرمائي چې دا تړون باطل دی، امام ابوحنیفه فرمایې دا تړون صحیح دی نکاح وشوه البته مهر مثل به اداء کوي. احناف ددې حدیث ترجمه داسې کوي "**لاشغار فی الاسلام**" یعنې په اسلام کې دداسې تړون د پاره شرط صحیح نه دی نو شرط باطل دی نفس عقد وشو مهر مثل اداکول لازم دي. احناف وایې چې ډیرو مسائلو کې د دې نظائر شته چې عقد صحیح وي او شرط باطل وي، مثلاً د نکاح په مهر کې خنزیر یا شراب مقرر کړي نو د ټولو په نزد عقد صحیح دی لیکن مهر مثل به ورکوي، احناف وایې چې احادیثو د کوم د شغار نه نهې راغلې ده هغه په خپل ځای باندې صحیح ده لیکن د دې په ضمن کې عقد صحیح کیږي. خلاصه داده چې د شغار په معامله کې دا طریقه باطله ده نفس نکاح صحیح ده او مهرمثل به اداء کوي. زیلعي وایې چې دا عقد او معامله مکروه ده لیکن د کراهت نه په یو ځیز کې فساد نه راځي د مهر مثل ورکولو نه پس هم شغار نه پاتې کیږي دا بحث او تحقیق په خپل ځای دی، لیکن حکم دادی چې مسلمانانو له داسې قسمه نکاح ګانو نه ځان ساتل پکار دي، او نهې د هغې په کراهت باندې محمول ده. (المرقات ۳۰۶،۳۰۵)

## دمتعې ممانعت

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ يَوْمَ |
| حضرت علي رضي الله عنه وایې چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم د خیبر په ورځ ښځو سره دمتعې کولو نه منع وفرمائیله |
| خَيْبَرَ وَعَنْ أَكْلِ لُحُومِ الحمر الإنسية (صحيح)[1] |
| په کورونو کې اوسیدنکي دخرو غوښو خوړولو نه هم منع وفرمایله (بخاری ومسلم) |

**توضیح** : **نهی عن متعة النساء** : دیوې مقرر شوې مودې پورې د رقم په بدله کې نکاح کولو ته متعه ویلی شي مثلاً یو سړی ښځې ته داسې ووایې چې د دوه کالو یا یوې میاشتې دپاره په دومره رقم تاسره نکاح کومه. دا یوه سازشي نکاح ده نه په دې کې ګواه شته او نه د ولي اجازت په کې شته، نه د کفو او خاندان خبره ده، متعه د جاهلیت په باطلو نکاح ګانو کې یوه نکاح وه. په ابتدا د اسلام کې هم داسې چلیده ځه نوی حکم نه وو راغلی. د جنګ خیبر په موقع حضور اکرم صلی الله علیه وسلم

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۷/۴۸۱ رقم الحديث ۴۲۱۶، ومسلم في صحيحه ۲/۱۰۲۷ رقم الحديث (۱۴۰۷.۲۹) والترمذي في السنن ۳/۴۲۹ رقم الحديث ۱۱۲۱ والنسائي في ۶/۱۲۶ رقم الحديث ۳۳۶۶ والدارمي في ۲/۱۸۹ رقم الحديث ۲۱۹۷ ومالک في الموطا ۲/۵۴۲ رقم الحديث ۴۱

ددې نه منع وفرمايله بيا د فتح مکه نه پس د جنګ اوطاس په موقع درې ورځې اجازت نه پس تر قيامته پورې متعه په مسلمانانو باندې حرامه شوه. په شريعت کې د نکاح متعه دوځله روا کيدل او دوه ځله حرام کيدل راغلي دي او بيا هميشه دپاره حرام شوه. د ابوداود د يوروايت نه معلوميږي چې د متعې حرام کيدل د حجة الوداع په موقع راغلي وه ممکنه ده چې دا اعلان د حرمت نه پس د لا زيات مشهورتيا ، پوهودلو او عام کودلو دپاره شوی وې.بهر حال متعه د نکاح د اغراضو سره سراسر منافي ده او د ډيرو مفاسدو جرړه ده مثلاً يوې ښځې په يوې مياشت کې د درې خاوندانو سره لس لس ورځي متعه وکړه، او کال پس بچی پيدا شو، نو اوس چې د درې خاوندانو د شريکو عملياتو نه ماشوم پيدا شوی دی د چابه وې؟ د چا وارث به جوړيږي؟ د هغه سرپرست او وارث به څوک وي؟ د متعې دې خراب عمل نه د نسل اختلاط او د ميراث ابطال لازميږي.لهذا د اجماع امت د فيصلې مطابق متعه حرامه ده، د فقهاء اربعو په اتفاق سره متعه حرامه ده او شرافت د اصولو د وجې نه متعه حرامه ده، صاحب هدايه په هدايه کې امام مالک طرف ته د متعې د جواز نسبت کړی دی خو په دې نسبت کې غلطي شوې ده او موطا مالک دا ناجائز ليکلې ده.( نساء الاية ۲۴)

**روافض** : شيعه ګان روافض دا سازشي نکاح او دبې غيرتۍ دا عمل جائز ګرځولی دی اوددې پې ډير ثواب بيان کړی دی او د جواز دپاره يې قرانی ايتونه ددليل دپاره پيش کړې دي:( **فما استمتعتم به منهن فأتوهن اجورهن**) په دې کې د استمتاع ذکر دی چې د متعه نه اخستل شوی دی، اجورهن يې داجرت دپاره ذکر کړی دی دمهر نه دی، لهذا متعه مستقل حکم دی. همدارنګه روافضو حضرت ابن عباس طرف ته دمتعې د جواز قول منسوب دی او مشکوة ص ۲۷۳ باندې د ابن مسعود رضي الله عنه د دې روايت نه دليل نيولی دی. جمهور فرمائي چې قرانی ايت (**فمن ابتغى وراءَ ذلک فأولئک هم العادون**)(سورة مومنون)( نساء الاية ۲۴)

د متعې په حرمت باندې دا ايت صريح دليل دی، د مسلم شريف په يو روايت کې په حرمت د متعې باندې داسې يو واضحه دليل دی. "**وان الله قد حرم ذلک الى يوم القيامة**" مشکوة ص ۲۷۲ باندې دحضرت علي رضي الله عنه روايت په حرمت باندې دال دی، د دې سره سره د حضرت سلمة بن اکوع روايت دې کوم چې د متعې په حرمت باندې دليل دی، همدارنګې د مشکوة ص ۲۷۳ باندې د ابن عباس رضي الله عنهما روايت د متعې د حرام کيدو باره کې دی، اجماع د امت هم دمتعې په حرام کيدو باندې قائم ده. ترجمه : جمهور ، شيعه شنيعه او روافض مرفوضه د دليل

قراني ايت نه دا جواب ورکوي چې **فما استمتعتم** د ايت نه مخکې او وروستو کې د نکاح ذکر دی لهذا د **اجورهن** نه مراد مهر دی او د **استمتعتم** نه مراد نکاح ده د اجور اطلاق په مهر باندې شوی دی څنګه چې په قران کې دي **فانکحوهن باذن اهلهن وآتوهن اجورهن**"(نساء الاية ۲۵) دلته د اجورنه مراد مزدوري نه ده بلکې د بضعې معاوضه مراد ده چې مهر دی. باقي حضرت ابن مسعود رضي الله عنه چې کوم ابتدائي وقت کې د متعې د جواز قائل وو وو به ليکن وروسته هغه رجوع کړې ده. او حضرت ابن عباس رضي الله عنه اګر چې د جواز قائل وو ليکن کله چې حضرت علي رضي الله عنه په سختئ سره منع کړو نو هغه بيا رجوع وکړه او وې فرمايل **"فکل فرج سواهما فهو حرام"** د شيعه روافضو په حالت باندې حيرانيتا ده چې حضرت علي دومره په سختئ سره د متعې نه منع کړې ده خو په شيعاګانو کښې دا يوه محبوبه مشغله جوړه شوې ده. د حضرت ابن عباس شاګرد سعيد بن جبير يو ځل عرض وکړو چې حضرت! د متعې متعلق چې ستاسو کومه فتوی ده هغه په ټوله دنيا کې خوره شوې ده او په قافلو، مجلسونو کې د هغې ذکر کيږي، حضرت ابن عباس وفرمايل چې څه تذکرې کوي؟ نو شاګرد ورته عرض وکړو چې خلق تاسو ته په دې طريقه فتوی منسوب کوي چې د هغې ذکر يو ښځه په شعرونو کې داسې کوي.

**قد قلت وللشيخ لما طال مجلسه يا صاح هل لک فی فتوی ابن عباس**

چه کله بزرګ سړې مونږ کره ناوخته پورې ناست وو نو ماورته وويل چې ای زما ملګری ايا تا ته د حضرت ابن عباس د متعې فتوی کې څه رغبت نشته.

**هل لک فی رخصة الاطراف آنسة يکون مثواک حتی مصدر الناس**

ايا ستا د يوې خوب صورته جينئ طرف ته څه شوق نشته چې د خلقو واپس کيدو پورې ته هغې سره يې.

**فقال ابن عباس سبحان الله بهذا افتيت وما هي الا کالميتة والدم والخمر ولحم الخنزير**

بهرحال متعه په نکاح کې د ننه کول داسې ګران دي لکه چې چا ويلي دي:

*کے در صحن کاچی قلیہ جوید اضاع العمر فی طلب المحال*

يعنې څنګه چې يو کس د فيرني او کهير په کاسه کې د غوښې ټکړې ګوري هغه فضول خپل وخت په دې باندې ضائع کړو. د راتلونکي حديث نمبر ۹ تشريح ته خيال کوئ چې پوره تفصيل مخې ته راشي..

## متعه کله حرامه شوه؟

﴿۹﴾ وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ: رَخَّصَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ أَوْطَاسٍ فِي الْمُتْعَةِ ثَلَاثًا

حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جنګ اوطاس کې د دريو ورځو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | نَهَى | عَنْهَا. | رَوَاهُ | مُسلم | (صَحِيح)[۱] |
| دپاره د متعې اجازت ورکړې وو خو بیا د همیشه دپاره یې ترې منع وفرمایله ( مسلم) | | | | | |

**توضیح :عام اوطاس:** متعه کله حرام شوه . دې باره کې مختلف احادیث دي ډیره مشهوره خو داده چې د جنګ خیبر په موقع ددې حرمت راغلی وو او په کور کې د ساتل شووو دخرو غوښو خوړلو هم منع راغلې ده. لیکن بعضو روایاتو کې راغلې دي چې د فتح مکې په موقع باندې د متعې دتحریم حکم راغلی،بعضو روایاتو کې دجنګ اوطاس اودحنین په موقع باندې ددې حرام کیدل راغلې دي. ددې روایاتو دتطبیق ترتیب څو صورتونه دي: اول دا چې د متعې حرام کیدل د جنګ خیبر په موقع راغلي وو بیا دفتح مکې په موقع باندې رخصت راغی اوددې نه وروسته داوطاس په موقع د همیشه دپاره حرامه شوه.دویم دادجنګ خیبر په موقع باندې حرامه شوې ده لکه څنګه چې مرداره حرامه ده دغه رنګه داهم حرامه شوه،په حالت اختیاري کې حرامه ده او حالت اضطراري کې جائز ده، کومو صحابوته چې دجوازقول منسوب دی لکه ابن عباس اوابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هغوی همدغسې په ابتداء کې قائل وو ،بیائې رجوع وکړه.بهر حال کومو خلکو ته چې د حرمت علم کوم کې شوی دی نو هغوی هغه وخت ته د حرمت نسبت کړی دی، دا کوم تعارض نه دی، فتح مکه او د حنین جنګ یو د بل سره نزدې نزدې واقعې وې، چا چې د حرمت نسبت فتح مکې ته کړی دی دا هم صحیح ده، او چا چې د حرمت نسبت د اوطاس موقع ته کړی دی نو دا هم صحیح ده، ځکه د فتح مکې په کال باندې فتح د مکې هم وه او او جنګ حنین، اوطاس، او طائف هم وو. امام حازمي لیکلې چې دآخري خطبې په موقع رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متعه همیشه دپاره حرامه کړه. ابوداود شریف کې هم یو حدیث دی چې په هغې کې د متعې حرمت د حجة الوداع په موقع خودل شوی ، د تعمیم، تشهیر او تفهیم دپاره هغه وقت کې اعلان هم شوی دی، چاته چې د حرمت پته کوم وخت کې لګیدلې ده نوحرمت یې هم هغه وقت ته منسوب کړی ،دا کوم تعارض نه دی.( المرقات ۳۰۸/۶،۳۰۷)

## دنکاح خطبه

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: عَلَّمَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّشَهُّدَ |
| حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته په مونځ کې لوستل |

(۱) اخرجه في صحيحه ۲/۱۰۲۳ رقم الحديث (۱۴۰۵.۸۰) وأحمد في المسند ۴/۵۵

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِي | الصَّلَاةِ | وَالتَّشَهُّدَ | فِي | الْحَاجَةِ | قَالَ: |
| والا تشهد هم ښودلې دی او د څه حاجت او ضرورت په وخت چې کوم تشهد لوستلی کیږی دهغی | | | | | |
| التَّشَهُّدُ | فِي | الصَّلَاةِ:[1] | | | |
| یې هم تعلیم راکړی دی .چه هغه داسې دی. | | | | | |

«التَّحِيَّاتُ لله وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ الله وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ الله الصَّالِحِينَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا الله وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ» . [ص:۹٤۲]

ترجمه . دژبې عبادتونه ، بدني عبادتونه او مالي عبادتونه ټول الله لره دي ای نبی! په تاسو باندې دې سلامتیا وي او د الله رحمت او برکت دې وي،او په مونږه هم اوداالله په نیکو بندګانو دې هم سلامتیا وي، زه ګواهي ورکوم چې داالله نه سوا بل هیڅوک دعبادت لائق نشته او زه ددې خبرې هم ګواهي ورکرم چې محمد صلی الله علیه وسلم دالله بنده او رسول دی.

وَالتَّشَهُّدُ فِي الْحَاجَةِ: «إِنَّ الْحَمْدَ لله نَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنَعُوذُ بِالله مِنْ شُرُورِ أَنْفُسنَا من يهده الله فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا الله وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ» .

**ترجمه** . ټول تعریفونه الله لره دي مونږ دهغه نه مدد غواړو او هغه نه بخښنه غواړو او مونږ د خپل نفس دهرې بدۍ نه په الله سره پناه غواړو، چا له چې الله د هدایت توفیق ورکړي هغه څوک ګمراه کولی نشي (یعنی نه یې شیطان ګمراه کولی شي نه نفس او نه یې بل څوک ګمراه کولی شي) او چې څوک الله ګمراه کړي هغه ته څوک هدایت نه شي ورکولی زه ګواهي ورکوم چې داالله نه سوا بل هیڅوک د عبادت لائق نشته او ګواهي ورکوم چې محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی بنده او رسول دی.

( وَيَقْرَأُ ثَلَاثَ آيَاتٍ (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ)( ال عمران ۱۰۱)

بیا ددې تشهد نه بعد د قرآن کریم درې ایتونه به لولي یو ایت دادی !ای ایمان والو ! دالله نه ویریږئ څنګه چې دهغه نه دویرې حق دی او که مړه کیږئ نو مسلمانان مړه شئ.

(يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا

---

([1]) اخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۹۱ رقم الحديث ۲۱۱۸ والترمذي في ۳/۴۱۳ رقم الحديث ۱۱۰۵ والنسائي في ۸۹//۶ رقم الحديث ۳۲۷۷، وابن ماجه في ۱/۶۰۹ رقم الحديث ۱۸۹۲، والدارمي في ۲/۱۹۱ رقم الحديث ۲۲۰۲ واحمدفي المسند۱/۳۹۲

وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللهَ الَّذِي تساءلون وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا)(النساء)
ای ایمان والو ! د الله نه ویریږئ چې د هغه نوم تاسو د خپل حاجت دپاره استعمالوئ او د ارحامو د پریکولو نه ځان ساتئ بېشکه الله تاسو ته ګوری.

(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطِعِ اللهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا) (احزاب ۷۰)
ای ایمان والو ! د الله نه ویریږئ، او خبره سمه کوئ، هغه به ستاسو ټول کارونه درست کړي او ستاسو ګناهونه به معاف کړي او کوم کس چې د الله او د هغه د رسول اطاعت کوي نو هغه کامیاب دی.

رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ وَفِي جَامِعِ التِّرْمِذِيِّ فَسَّرَ الْآيَاتِ الثَّلَاثَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَزَادَ ابْنُ مَاجَهْ بَعْدَ قَوْلِهِ: «إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ نَحْمَدُهُ» وَبَعْدَ قَوْلِهِ: «من شرور أَنْفُسنَا وَمن سيئات أَعمالنَا» وَالدَّارِمِيُّ بَعْدَ قَوْلِهِ «عَظِيمًا» ثُمَّ يَتَكَلَّمُ بِحَاجَتِهِ وَرَوَى فِي شَرْحِ السُّنَّةِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ فِي خُطْبَةِ الْحَاجة من النِّكَاح وَغَيره (احمد، ترمذی، ابو داؤد، ابن ماجه، دارمی)

او په جامع ترمذی کې دا الفاظ هم دي چې دا درې ایتونه سفیان ثوری بیان کړې ابن ماجه "ان الحمد لله" نه پس نحمده او "من شرور انفسنا" نه پس ومن سیئات اعمالنا" د الفاظو اضافه کړې ده.او دارمي په خپل يو روایت کې "عظیما" نه پس اضافه کړې ده چه(دتشهد او ایتونو نه پس )دخپل حاجت (یعنی دعقد الفاظ)بیان کړي.اوشرح السنة دابن مسعود رضي الله عنه هغه روایت قنل کړی دی چې په هغې کې د حاجت د خطبې وضاحت په نکاح و غیره سره شوی دی (یعنې شرح السنه د حاجت لفظ وضاحت کې من النکاح و غیره الفاظ زیات کړي دي).

**توضیح** : د نکاح خطبه مسنون ده او د شوافعو په نزد په نورو عقودو کې هم خطبه ویل مسنون ده.

**"ثم يتكلم بحاجته"**: نه مراد نکاح دلته نکاح ده، او په دې کې ایجاب او قبول هم دی. قرآن کریم کې درې ایتونه دلته د نکاح دپاره دي لیکن دا یاد ساتل پکار دي چې سورة النساء کې ایت چې دلته "یاایها الذین" نه شروع دی په مصحف عثماني کې داسې نه دی په هغې کې "(يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللهَ الَّذِي دی "یاایها الذین امنوا"نشته کیدی شی دا د لیکونکي غلطي وي. بهرحال چې څوک

نكاح تړي هغه له پكار دي چې خطبه د تشهد نه شروع كوي بيا دري ايتونه ولولي بيا دې يو څو احاديث د نكاح باره كې ولولي.او بيا دې ړومبى د جيني د كور والونه قول او اقرار واخلي او بيا دې د هلك نه. او په واضح الفاظو دې ايجاب او قبول سر ته ورسوي، دا صورت واضح او بهتر دى.فقهاو ليكلي دي چې دحال او مستقبل خيال دې كې ساتل پكار دي، بعضې حضرات نن سبا صرف د د قبول الفاظ ادا كولو سره نكاح كوي مناسب داده چې ايجاب او قبول دواړه وي.

## دخطبې نه بغير نكاح بې بركته وي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُّ خُطْبَةٍ |
| حضرت ابو هريره رضى الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ و فرمايل چه په كومه خطبه كې د |
| لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ قَالَ: |
| الله حمد او ثناء نه وي دهغې مثال دكټ شوي لاس په شان دى. روايت كړې دې ترمذي، او وائى |
| هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1] |
| چه دا حديث حسن غريب |
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُّ أَمْرٍ ذِي |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ و فرمايل چې كوم لوى كار د الله تعالى |
| بَالٍ لَا يُبْدَأُ فِيهِ بِالْحَمْدِ لِلهِ فَهُوَ أَقْطَعُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ[2] |
| د حمد او ثنا نه بغير شروع كړى شي هغه به بې بركته وي. (ابن ماجه) |

## دنكاح اعلان كول مستحب دي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَعْلِنُوا هَذَا النِّكَاحَ |
| ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول كريم ﷺ و فرمايل چه تاسو د نكاح |
| وَاجْعَلُوهُ فِي الْمَسَاجِدِ وَاضْرِبُوا عَلَيْهِ بِالدُّفُوفِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| اعلان كوئ او نكاح په مسجد كې د ننه كوئ او د نكاح په وخت كې تنبل وهئ. روايت كړې دې |

---

(1) اخرجه أبوداؤد في السنن ۵/۱۷۳ رقم الحديث ۴۸۴۱، والترمذي في ۳/۴۱۴ رقم الحديث ۱۱۰۶ وأحمد في المسند ۲/۳۴۳

(2) اخرجه أبوداؤد في السنن ۵/۱۷۲ رقم الحديث ۴۸۴۰ وابن ماجه في ۱/۶۱۰ رقم الحديث ۱۸۹۴ وأحمد في المسند ۲/۳۵۹

وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (حسن)[1]

ترمذي او وائي: دا حديث غريب (حسن دی)

**توضيح** : په دې حديث کې يې دنکاح يو څو آدا ب ښودلې دي چې دنکاح اعلان کوئ، نکاح په مسجد کې کوئ چې په کې د دواړو طرفونو مشرانو وي، د نکاح په وخت شوروي، يعنی دتنبل شور وی. خو په مسجد کې نه. په مسجد کې دنکاح مشهورتيا دبرکت سبب ګرځي،ځکه چې دعبادت ځای دی او نکاح هم يو عبادت دی او نکاح دپاره د جمعې ورځ ډيره بهتره ده ځکه چې په دې کې مشهورتيا ډيره کيږی او دبرکت ذريعه هم ګرځي.(المرقات ۳۱۶/۶)

﴿۱۴﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ حَاطِبٍ الْجُمَحِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: فَصْلُ مَا بَيْنَ

حضرت محمد بن حاطب جمحي ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ و فرمايل دحلالو او حرامو

الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ: الصَّوْتُ وَالدُّفُّ فِي النِّكَاحِ". رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ وَابْن مَاجَه[2]

په مينځ کې فرق کونکی په نکاح کې آواز او تنبل غګول دي. (روايت کړی دی احمد ،ترمذي،نسائي،ابن ماجه)

**توضيح** : الصوت: د آواز نه مطلب يا خو شعرونه دي يا دنکاح تذکرې دي. (المرقات ۳۱۴/۶)

ددې حديث مطلب دا نه دی چې ددې څيزونو نه نه بغير نکاح نه کيږي يا صحيح نه وي بلکې د نکاح دپاره چې کوم ايجاب او قبول او د دوو ګواهانو ضرورت دی هغه مراد دي، په دې حديث کې صرف ددې خبرې ترغيب دی چې دنکاح مشهورتيا دې وشي،دا د په مجلس عام او اعلانيه شکل باندې وي،او دمشهورتيا کم نه کم حد دادی چې خوا کې ګاونډيانو ته معلومه شي چې دلته واده دی، اوس دا خبره دآواز په ذريعه هم کيدی شي او د تنبل په ذريعه هم کيدی شي.او ددې حديث دا هم مطلب نه دی چې په بازارونو ، ښارونو، او اخبارونو يا په ويډيو وغيره دې مشهورتيا وشي او نه په باجو او موسيقۍ باندې، دا ټول فضول کارونه ترې مراد نه دي.(المرقات ۳۱۴/۶)

## په ښادو کې د شعرونو ويلو اجازت

﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَتْ عِنْدِي جَارِيَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ زَوَّجْتُهَا

حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې ما سره يوه انصاريه جينۍ وه کله چې ما دهغې نکاح يو چا سره وکړه

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۹۸ رقم الحديث ۱۰۸۹ وابن ماجه في ۱/۶۱۱ رقم الحديث ۱۸۹۵

(2) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۹۸ رقم الحديث ۱۰۸۸ والنسائي في ۶/۱۲۷ رقم الحديث ۳۳۶۹، وابن ماجه في ۱/۶۱۱ رقم الحديث ۱۸۹۶، وأحمد في المسند ۴/۲۵۹ .

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا عَائِشَةُ أَلا تُغَنِّينَ؟ فَإِنَّ هَذَا

نو رسول کریم ﷺ و فرمایل چې عائشې ! ولې تا چاته دلوبو دپاره نه دي ویلي ځکه چې

الْحَيَّ مِنَ الأَنْصَارِ يُحِبُّونَ الْغِنَاءَ». رَوَاهُ ابْنُ حِبَّانَ فِي صَحِيحِه[1]

ځکه چې د انصارو خلکو لوبې ډیرې خوښې دي. (ابن حبان)

﴿۱۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: أَنكحت عَائِشَةُ ذَاتَ قَرَابَةٍ لَهَا مِنَ الأَنْصَارِ

حضرت ابن عباس رضي الله عنه وایي چې ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها دیو جینۍ نکاح کړې وه چه انصاریه وه

فَجَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او دهغې په رشته دارو کې هم وه، کله چې دنکاح نه پس رسول کریم ﷺ کور ته تشریف راوړلو نو

فَقَالَ: «أَهْدَيْتُمُ الْفَتَاةَ؟» قَالُوا:

تپوس ئې وکړو چې دکومې جینۍ دې وکړه، دخاوند کور ته دې رخصت کړه؟ هغوی عرض اوکړو

نعم قَالَ: «أرسلتم مَعَهَا من تغني؟» قَالَتْ:

او جی، نو نبي علیه السلام ورته وفرمائیل چې تاسو دې سره څو لوبو والا لیږلي دی؟ حضرت عائشه رضي الله عنها

لَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الأَنْصَارَ قَوْمٌ فِيهِمْ

عرض وکړو چې نه! نبي علیه السلام وفرمایل چې دا انصار داسې قوم دی چې دوی د دوی دلوبو ډیر شوق

غَزَلٌ فَلَوْ بَعَثْتُمْ مَعَهَا مَنْ يَقُولُ: أَتَيْنَاكُمْ

دی، کاش ! تاسو ورسره داسې کس لیږلی وی چې دایې ویلی وی. یعنی مونږ ستاسو خواله راغلو مونږ

أَتَيْنَاكُمْ فحيانا وحياكم". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[2]

ستاسو خواله راغلو، الله تعالی دې مونږ او تاسو سلامت وساتي.

**توضیح**: دمدینې دانصارو زوړ دستور وو چې د خوشحالۍ په موقع باندې به یې شعرونه وغیره ویل او ددې دستور مطابق رسول کریم ﷺ ددې خواهش اظهار وفرمایلو چې تاسو به دیو لوبې واله انتظام کړی وی چې دانصارو په خوشحالۍ کې اضافه شوې وه، بیا رسول کریم ﷺ د

---

(1) رواه [ابن حبان في صحيحه]

(2) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۶۱۲ رقم الحديث ۱۹۰۰، وأحمد في المسند ۳/۳۹۱

موقعې مناسبت سره يو شعر طرف ته اشاره وفرمايله نيمه حصه ئي وويله چې پوره دادی.

اتيناكم اتيناكم فحيانا وحياكم

ولولا الحنطة السمراء لم تسمن عذاراكم

يعنې مونږ ستاسو خوا له راغلو آو جي راغلو الله تعالى دې تاسو هم او مونږه هم صحيح، سلامت لري،که سره غنم نه وی نوی نو ستاسو پيغلې به داسې د غټ بدن والا او نرم بدن واله نه وې.ياد ساتئ چې دې شعرونو سره باجې وغيره نه وې هغه جائز نه دي، په کلو کې اوس هم د شعرونو ويلو رواج شته او په پرده کې يې کول مستحب دي. نور وضاحت به ان شا الله د شعر په باب کې راځي، او څه وضاحت مخکې هم تير شوی دی.

## ديوې ښځې په دوو نکاح کانو کې وړومبی درسته ده

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ زَوَّجَهَا وَلِيَّانِ |
| حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايې چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د کومې ښځې دوه وليان نکاح وکړي نو هغه په |
| فَهِيَ لِلْأَوَّلِ مِنْهُمَا وَمَنْ بَاعَ بَيْعًا مِنْ رَجُلَيْنِ فَهُوَ |
| هغه دووکې د هغه چادپاره ده چې مخکې يې نکاح شوې ده.او کوم سړی چې (ديو څيز) په دوؤ سړو خرڅ کړي او کوم سړی چې (يو څيز) |
| لِلْأَوَّلِ مِنْهُمَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ والدارمي[1] |
| په دوو سړو خرڅ کړي نو هغه په دوو کسانو کې هغه چادپاره ده چې مخکې يې پرې خرڅ کړی دی. (ترمذی،ابو داؤد،نسائی،دارمی) |

## په ابتدا د اسلام کې متعه جائز وه

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: كُنَّا نَغْزُو مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايې چې په يوه غزوه کې مونږه د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په جهاد کې وو هغه |
| لَيْسَ مَعَنَا نِسَاءٌ فَقُلْنَا: أَلَا نَخْتَصِي؟ |
| وخت کې مونږ سره خپلې ښځې نه وې مونږه وويل چې هځې نه چې مونږ ځانونه خصي نه کړو ليکن رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

[1] أخرجه أبوداؤد ۲/۵۷۱ رقم الحديث ۲۰۸۸ والترمذي في ۳/۴۱۸ رقم الحديث ۱۱۱۰ والنسائي في ۷/۳۱۴ رقم الحديث ۴۶۸۲ وابن ماجه في ۲/۷۳۷ رقم الحديث ۲۱۹۰ والدارمي في ۲/۱۸۷ رقم الحديث ۲۱۹۳ وأحمد في المسند ۵/۸.

فَنَهَانَا عَنْ ذَلِكَ ثُمَّ رَخَّصَ لَنَا أَنْ نَسْتَمْتِعَ فَكَانَ أَحَدُنَا

مونږه د دې نه منع کړو خو البته د متعې کولو اجازت يې را کړو چنانچه په مونږه کې بعضو خلقو د

يَنْكِحُ الْمَرْأَةَ بِالثَّوْبِ إِلَى أَجَلٍ ثُمَّ قَرَأَ عَبْدُاللهِ

کپړو په بدل کې ديو خاص مودې پورې د ښځې سره نکاح وکړه، دې نه پس بيا ابن مسعود رضي الله عنه دا ايت ولوستو :

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللهُ لَكُمْ﴾[1]

اى ايمان والو ! چې کوم ښيزونه الله تعالى حلال کړي دي هغه حرام مه ګڼړئ. (بخاری و مسلم)

**توضيح** : د حضرت ابن مسعود د دې روايت نه د متعې د روا کيدو پته لګي ممکنه ده چې د حضرت ابن مسعود د اسلام په ابتدا کې د اضطراري حالت په صورت کې هميشه د پاره په جواز قائم ،، او دختميدو د واضح احکاماتو ورته پوره علم نه وو شوى، او ډير قوى امکان دى چې د حضرت ابن عباس په شان ابن مسعود هم رجوع کړې وې ځکه چې حضرت عمر سرکاري اعلان کړى وو چې که چا متعه وکړه نو زه به په هغه باندې حد زنا نافذ کوم.

بهرحال د متعه شوقينو باندې افسوس او حيرانتيا ده چې د حضرت علي د صافو احکاماتو چې د متعې د حرام کيدو متعلق دي پريښې دي، او د حضرت ابن مسعود صرف وينا طرف ته تلي دي، او د حضرت ابن عباس د فتوې خلاف شوي دي د حضرت ابن عباس روايت حاضر دى. (المرقات ۶/۳۱۷)

## د متعې حکم منسوخ شوى دى

﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّمَا كَانَتِ الْمُتْعَةُ فِي أَول الْإِسْلَامِ

حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې د متعې رووالى صرف د اسلام په وړومبى زمانه کې وو (او هغه وخت د

كَانَ الرجل يقدم الْبَلدة لَيْسَ لَهُ بِهَا مَعْرِفَةٌ

متعې صورت دا وو چې کله به يو سړى يو ښار ته لاړو نو خلقو سره به يې تعلق نه وو چه ورله د خوراک څکاک انتظام وکړي

فَيَتَزَوَّجُ الْمَرْأَةَ بِقَدْرِ مَا يرى أَنَّهُ يُقِيمُ

نو هلته به يې يوې ښځې سره د يوې مودې پورې نکاح وکړه تر څو پورې چې به هلته ايسار وو

فَتَحْفَظُ لَهُ مَتَاعَهُ وَتُصْلِحُ لَهُ شَيْئَهُ

او هغه ښځې به د هغه د سامان خيال ساتلو روټي به يې ورله پخوله تردې چې دا ايت نازل شو

(١) اخرجه البخاري في صحيحه ٩/١١٧ رقم الحديث ٥٠٧٥ ومسلم في ٢/١٠٢٢ رقم الحديث ١٤٠٤١١، ) واحمد في المسند ١/٤٣٢.

| |
|---|
| إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِم أَو مَا ملكت أَيْمَانهم) قَال ابْنُ عَبَّاسٍ: |
| "الا على ازواجهم او ماملكت ايمانهم" ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائيل د دې دواړو د ښځې او خادمې) |
| فَكُلُّ فَرْجٍ سِوَاهُمَا فَهُوَ حرَام. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ (صَحِيح)[1] |
| د شرمګاه نه علاوه هريو شرمګاه حرامه ده. (بخاري) |

## جائز شعرونه اوريدل او لوبې ويل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَامِرِ وبْنِ سَعْدٍ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى |
| حضرت عامر بن سعد رَحِمَهُ اللهُ تابعي وايي چې كله زه يو واده ته د شركت د پاره ورسيدم چې هلته دوه صحابه كرام |
| قَرَظَةَ بْنِ كَعْبٍ وَأَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ فِي عُرْسٍ وَإِذَا جِوَارٍ يُغَنِّينَ |
| حضرت قرظة بن كعب او حضرت ابو مسعود انصاري هم موجود وو ومې ليدل چه څه ماشوماني شعرونه وائي |
| فَقُلْتُ: أَيْ صَاحِبَيْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَهْلَ بَدْرٍ |
| ما وويل چې اى د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابو ! او په جنګ بدر كې شريك كيدو والو ! چه ستاسو |
| يُفْعَلُ هَذَا عِنْدَكُمْ؟ فَقَالَا: اجْلِسْ إِنْ شِئْتَ |
| مخكې هم لوبې ويلى كيږي؟ هغوى چې واوريدل نو صحابه كرامو ورته ويل چې راځه ته هم كينه كه زړه دې غواړي |
| فَاسْمَعْ مَعَنَا وَإِنْ شِئْتَ فَاذْهَبْ فَإِنَّهُ قَدْ رَخَّصَ لَنَا فِي اللَّهْوِ |
| نو ته هم مونږ سره واوره كه نه ئې غواړې نو لاړ شه ځكه چې مونږ ته د لوبو اوريدلو اجازت راكړې دي |
| عِنْدَ الْعُرْسِ. رَوَاهُ النَّسَائِيّ[2] |
| د ښادۍ په موقع (روايت كړې دې نسائي) |

**تنبیه** : ياد لرئ چې دا شعرونه ساده الفاظو سره وو چې جائز وو. په دې كې باجې ستار او نور فضول الات نه وو.

---

([1]) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۳۰ رقم الحديث ۱۱۲۲.

([2]) أخرجه النسائي في السنن ۶/۱۳۴ رقم الحديث ۳۳۸۳

# بَاب المُحرمَات

## په سرې باندې د حرامو ښځو بیان

نکاح یوه اسلامي رشته ده صرف د نفساني خواهشاتو نوم نه دی دې دپاره ددې عظمت او حرمت ډیر ضروری دی د نکاح صیحح کیدو دپاره دنورو شرائطو نه علاوه یو شرط دا هم دی چې ښځه د محرماتو نه وي دې "باب المحرمات" کې هم ددې بیان دی چې کومه ښځه په کوم سړې حرامه ده.

حرمت په دوه قسمه دی: یو حرمت مؤبده دی یعنی هغه ښځه چې هغې سره همیشه نکاح نشي کیدی. دویم حرمت غیر مؤبده دی دا هغه ښځه ده چې د عارض له وجې حرامه وي.

## د حرمت نکاح اسباب

د حرمت نکاح مختلف اسباب دي، دټولو بیانول ګران دي او اوږد هم دی.په لنډه توګه باندې دلته بیانولی شي.

۱.وړومبنی وجه نسبي رشته ده، چې کومې د نسبي رشتې د وجې حراې دي هغه ددې مور، لور،خور، ترور، خاله ،وریره، خورځه،. دې ښځو سره نکاح حرامه ده،هم داسې د والدینو اصول پورته او د د هغوی فروع لاندې حرام دي.

۲.خواښې ، انګور، دې سره نکاح نه کیږي. دایې دویم سبب دی.

۳.دریم سبب رضاعت او د پیو رشته ده.

۴.څلورم سبب د ښځو په نکاح کې د جمع کولو سبب د کوم نه چې حرمت راځي لکه د څلورو نه زیاتې ښځې په یو وخت کې په نکاح کې جمع کول. دوه خویندې یا ترور د وریرې سره یا داسې دوه ښځې په نکاح کو جمع کول چې په هغی کې یو سړی تصور کړی شي نو هغه ښځهٔ په سړې باندې حلال نه ده. یاد څلورو نه زیاتې اجنبیانې جمع کول یا ذوات الارحامو کې د دوو نه زیاتې جمع کول حرام دي.

۵.پنځم سبب مملوکه ښځه ده وړومبی نکاح شوې ښځه موجود ده نو وینځې سره نکاح کول په سړې حرام دي.

۶.د چانکاح شوې ښځې سره هم نکاح حرامه ده.( المرقات ۳۱۹/۶)

۷. اوم سبب د مذهب دی، یعنی آتش پرسته، آغا خانیه، قادیانیه، رافضیه سره نکاح کول حرام دي. دا اهل کتابو والا ښځه که په حقیقت کې اهل کتاب وي نو نکاح جائز ده خو د مسلمانې جینۍ اهل کتابو والا سړې سره نکاح حرامه ده.

۸.اتم سبب دا دی چې یوه ښځه خپل غلام سره نکاح نه شي کولی.

۹.نهم سبب دادی چې د دریو طلاقو نه پس په سړې ښځه حرامه شوه بغیر حلالې نه ورسره نکاح نشي کولی د لعان نه پس هم ښځه په خاوند باندې حرامه شوه دا هم د طلاق یو شکل دی.( المرقات ۳۱۷/۶)
(د لعان معنی یو بل باندې لعنت کول دي، د خاوند په خپله ښځه تهمت لګول، او ددې دپاره قسم خوړل که زه دروغ وایم نو دالله لعنت دې وي په ما باندې .او داسې د ښځې هم قسم خوړل ،دې نه پس نکاح ماته شوه)

## لاندینۍ ښځې په نکاح کې نه جمع کول

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي چې رسول کریم صلى الله عليه وسلم فرمایلي دي یوې ښځې سره خپله ترورپه نکاح کې |
| «لَا يُجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وعمتها وَلَا بَين الْمَرْأَةِ وخالتها» (صَحِيحٌ)[۱] |
| مه ساتئ . نه یوه ښځه د هغې د خالې (ترور) سره په نکاح کې ساتئ. بخاری و مسلم) |

**توضیح** :لایجمع: په دې حدیث کې دیو قانون او ضابطې طرف ته اشاره شوې ده او علماء د امت ددې قانون تشریح کړې ده او هغه قانون دا دی: چې هرې دوه زنانه چې مینځ کې یې قرابت محرمیت وي چې د هغوی نه یوه سړی فرض کړی شي او دویمه زنانه فرض کړی شي او د دواړو په مینځ کې نکاح نه کیږي نو د دارنګې د دوو زنانو په نکاح کې جمع کول حرام دي، چې د دې مثال په حدیث کې د ترور (عمه) او وریرې سره ورکړی شوی دی، که ترور سړی فرض کړی شي نو د وریرې سره د تره نکاح نه کیږي، او که وریره سړی فرض کړی شي نو د وراره سره د ترور نکاح نه کیږي، د دې قاعدې متعلق په ذهن کې یوه خبره کینول پکار دي، هغه دا چې حرمت د دواړو طرف نه ضروري دی، یعنې د جانبینو نه چې کوم یو نر فرض کړی شي نو نکاح به حرامه وي، که چیرې داسې نه وي بلکه یو طرف نه حرمت راتلو د هغې برعکس د بل طرف نه نه راتلو نو دا قاعده دې صورت ته نده شامله، بلکه دغه رنګ دوه زنانه به په یوه نکاح کې جمع کولی شي مثلاً: ښځه او د هغې د مخکني خاوند لور، د جمهورو په نزد دا په نکاح کې جمع کولی شي، کله چې هغه جینۍ د دې ښځې نه نه وي، که چیرې د مخکني خاوند لور سړی فرض

---

(۱) أخرجه البخاری في صحيحه ۹/۱٦۰ رقم الحديث ۵۱۰۹، ومسلم في ۲/۱۰۸۲ رقم الحديث (۱۴۰۸،۳۳) وابوداؤد في السنن ۲/۵۵۴ رقم الحديث ۲۰٦٦، وابن ماجه في ۱/٦۲۱ رقم الحديث ۱۹۲۹ والدارمي في ۲/۱۸۳ رقم الحديث ۲۱۷۹، ومالک في الموطا ۲/۵۳۲رقم الحديث ۲۰ من كتاب النكاح

کړی شي نو د هغه ښځه د دې جینۍ دپاره زوجة الاب کیږي او زوجة الاب حرامه وي، او که چیرته دا ښځه سړی فرض کړی شي نو د دې جینۍ سره د حرمت نکاح هیڅ وجه جوړیږي، لهذا برنۍ قاعده د طرفینو په حرمت باندې مبني ده د یو طرف حرمت کافي نه دی.

## مسئلة حرمة الرضاعة

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي د پیو څکلو په وجه رشتې حرامیږي |
| مَا يحرم من الْولادَة» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| کومې چې د پیدائش په وجه حرامې وي. (بخاری) |

**توضیح: يحرم من الرضاعة:** د دوه ماشومانو په مینځ کې د پیو شرکت ته رضاعت وايي، رضاعت په اصل کې د پیو څکلو په معنی سره راځي، د رضاعت صیغه د باب فتح او کرم اوسمع ټولو نه راځي. (المرقات ۳۲۱/۶)

رضیع پیو څکلو والا ماشوم ته وايي او مرضعه پی ورکولو والا ښځې ته وايي، د رضاعت موده دوه کاله ده چې په دې فتوی ده، په دې خبره کې د فقهاء کرامو اختلاف دی چې په څومره مقدار کې د پیو څکلو سره حرمت د رضاعت ثابتیږي.

**دفقهاو اختلافات:** امام مالک او امام ابو حنیفه رحمهما الله فرمایلي دي که د ښځې پی د دوو کالو په موده کې د ننه ماشوم وڅکل نو که دا پی که لږ وو او که زیات وو حرمت رضاعت به ثابت شي، په پیو ورکولو والا باندې به د ماشوم فروع حرام شي او د پیو څکلو والا ماشوم باندې مرضعه او د هغې اصول او فروع ټول حرام شول. شرح وقایه کې په خاص طور دا شعر لیکلی دی.

از جانب شیر ده همه خویش شوند وز جانب شیر خوار زوجان و فروع

پیو ورکولو والا ښځې طرف نه اصول او فروع په ټولو رشته دارانو ماشومانو باندې حرام دي او د پیو څکلو والا ماشوم له طرف نه په پیو ورکولو والا زنانه باندې زوجان او د ماشوم فروع حرام شول. زوجان نه مراد پیو څکلو والا ماشوم او د هغه ښځه ده. د امام احمد بن حنبل او د اهل ظواهرو په نزد حرمت رضاعت په درې ځلو ثابت دی. د امام شافعي په نزد په پنځو ځلو سره حرمت رضاعت

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۳۹ رقم الحديث ۵۰۹۹ ومسلم في ۲/۱۰۶۸ رقم الحديث (۱۴۴۴.۲) والدارمي في السنن ۲/۲۰۸ رقم الحديث ۲۲۴۹ ومالک في الموطا ۲/۶۰۱ رقم الحديث من كتاب الرضاع.

ثابتیږي. (المرقات ۳۲۱/۶)

**دلائل** : شوافعو حضراتو د حضرت عائشه رضي الله عنها د حدیث نمبر ۴ نه دلیل نیولی دی چې قرآن کریم کې په وړمبي ځل د لسو رضعاتو حکم راغلی وو بیا دا منسوخ شو او بیا د پنځو رضعاتو حکم راغی، د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د مرګ وخت پورې قرآن کریم کې هغه ایت لوستل کیده. (المرقات ۳۲۱/۶)

امام احمد بن حنبل او اهل ظواهرو د حدیث نمبر ۵ د ام الفضل د روایت نه دلیل نیولی دی چې په دوه ځل رضعاتو نه حرامیږي، لهذا په درې ځلو حرمت راځي ګویا دوی په مفهوم مخالف باندې عمل کړی دی. (المرقات ۳۲۱/۶)

امام مالک او امام ابوحنیفه یعني جمهورو د قرآن ددې ایت نه دلیل نیولی دی **(وامهاتکم اللاتي ارضعنکم)** (نساء ۲۳) دا حضرات وایي که پې یو ګوټ وي لږ وي او که زیات وي حرمت رضاعت ثابتیږي. ارضاع باب افعال د ارضعنکم مصدر دی په احادیثو کې الرضاعة لفظ هم راغلی دی کوم چې مصدر دی او په مصدر کې تکرار نشته نو یو ځل څکلو سر حرمت راځي، که هغه د سینې نه رودلو سره وڅکي یا چیرته په یو لوښي کې یې واچوي، یا د چوسنی په ذریعه یې وڅکي نو حرمت ثابت شو، د عدد او تعداد په کې قید او شرط نشته. داحنافو عقلي دلیل دادی چې د حرمت اصلي علت جزئیت دی چې په پیو سره په بدن کې اختلاط راځي او یو جزء ترې جوړ شي او خپل جزء سره استمتاع جائز نه ده. په دې وجه نکاح جائز نه ده. او ددې جزئیت دپاره یوه قطره پې هم کافي دي، لهذا حرمت ثابتیږي که هغه کم وي او که ډیر وي. (المرقات ۳۲۴/۶)

**جواب**: احنافو او مالکیو شوافعو ته دا جواب ورکړی دی چې د حضرت عائشې حدیث خبر واحد دی او خبر واحد سره د قرآن قرآنیت نه شي ثابت کیدی، لهذا د قرآن د ایت په موجودګۍ کې دا روایت پریښودل پکار دي. یا به تاویل پکار دی، ځکه قرآن کریم یو محفوظ کتاب دی په دې کتاب کې د پنځو رضعاتو والا ایت نشته، نه په مشهور او متواتر قراءت کې د هغې ذکر شته، اوس که حضور اکرم په آخري عمر کې دا ایت لوستلی کیدو او د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس بیا ختم شو نو ددې خو دا مطلب شو چې العیاذ بالله چې دا قرآن کریم محفوظ نه دی، او دا نظریه د **(انا نحن نزلنا الذکر وانا له لحافظون)** (حجر ۹) سره منافي ده. نو اصل حقیقت دادی چې د لسو رضعاتو والا ایت د پنځو رضعاتو والا سره ختم شو چې د هغې تذکره حضرت عائشې وکړه او د پنځو رضعاتو ایت **(وامهاتکم اللاتی ارضعنکم)** (نساء ۲۳) په مطلق ایت سره منسوخ شو، اوس دا ایت منسوخ التلاوة والحکم دی، حضرت عائشې ته د وړومبی نسخ (منسوخ) علم وو او کیدی

شي چې د دويمې نسخې علم ورته نه وو نو هغې د خپل علم مطابق د پورتنې حديث بيان کړی دی.( المرقات ۳۲۴،۳۲۵/۶)

باقي د حنابلو او د اهل ظواهرو د دليل جواب دادی چې مونږه د دې مفهوم مخالف د منلو پابند هم نه يو. همدارنګې د منطوق په مقابله کې د مفهوم طرف ته تلل هم مناسب نه دي، او ددې منل هم مناسب نه دي، يا د ام الفضل روايت د هغه وخت دی چې په کومه زمانه کې دپنځو رضعاتو زمانه وه. او دهغې حکم ختم شوی لا نه وو. او چې کله منسوخ شو نو ټوله قصه ختمه شوه.د ام الفضل د روايت يو جواب دا هم دی، چې اصل حقيقت دادی چه**مصة** رودل د ماشوم فعل دی، او **املاجة** د مور کار دی نو عادت او تجربه داسې ده چې کله ماشوم سينه روي نوپه سينه کې زړپې نه وځي بلکې يو ځل يا دوه ځله هڅي خوله لګوی، په دې وجه يې وفرمايل چې دې سره رضاعت نه ثابتيږي، ځکه دې سره حلق ته پې نه ورځي، او کله چې پې دننه لاړ شي نو بيا خو رضاعت يقيني ثابتيږي .حنابلو او اهل ظواهرو ته آخري جواب دادی چې مصتان يا املاجتان دا عدد دی او په تعداد اوعدد کې مفهوم مخالف نه شي اخستلی "**قال الطيبی ومفهوم العدد ضعيف**"(المرقات ۳۲۵/۶،الکاشف ۲۹۳/۲)

**د رضاعت نه مستثنی صورتونه**: دلته يو څو صورتونه دي چې د رضاعت د مسئلې نه مستثنی دي چې رضاعت کې يې نکاح جائز ده او په نسب کې جائز نه ده:۱.د نسبي ورور رضاعی خور جائز ده. ۲.د رضاعي ورور نسبي خور جائز ده.۳.د رضاعي ورور رضاعي خور جائز ده.۴.د رضاعی ځوی نسبي خور جائز ده.۵.د نسبي ځوی د رضاعی خور جائز ده.۶.د رضاعی ځوی د رضاعی خورجائز ده.۷.د نسبي خور د رضاعی ورور سره نکاح صحيح ده.۸.د رضاعی خور د نسبي ورور سره نکاح جائز ده.۹.د رضاعی خور د رضاعی ورور سره نکاح جائز ده.ټول نهه صورتونه شول چې مستثنی دي.(المرقات ۳۲۱،۳۲۲/۶)

اتوار ۶ ذيقعده ۱۴۱۷ھ

## د رضاعي مور خاوند رضاعي پلار وي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: جَاءَ عَمِّي مِنَ الرَّضَاعَةِ فَاسْتَأْذَنَ عَلَيَّ فَأَبَيْتُ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې يو ورځ زما رضاعي تره ما کره راغی او هغه زما کره د راتللو اجازت وغوښتو ما ورله اجازت ورنه کړو |
| أَنْ آذَنَ لَهُ حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ |
| چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم نه تپوس وکړم چې د هغه زما کره راتلل درست دي او که نه؟ کله چې تشريف راوړلو |

| |
|---|
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ: «اَنَّهُ عَمُّكَ |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نو ما ترې نه د هغه باره کې تپوس وکړو هغوی وفرمایل چې هغه ستا تره دې |
| فَأْذَنِي لَهُ» قَالَت: فقلت: يَا رَسُولَ اللهِ |
| هغه ته دراتلو اجازت ورکړه حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې ما دا واوریدل نو عرض مې وکړو ما وویل اې د الله رسوله! |
| إِنَّمَا أَرْضَعَتْنِي الْمَرْأَةُ وَلَمْ يرضعني الرَّجُلُ فقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّه عمك |
| ما ښځې پې راکړې دي کوم سړي خو نه دي راکړي، نبی عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمائيل چې بېدې کې هیڅ شک نشته چې هغه ستا تره دي |
| فليلج عَلَيْكِ» وَذَلِكَ بَعْدَ مَا ضرب علينا الحجاب (متفق عليه)[1] |
| او هغه تا کره راشي. حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوي چې دا د هغه وخت پیښه وه چې زمونږ د پاره پرده واجب شوې وه. |

**توضیح**: **إنه عمك**: حضرت عائشې چې د کومې ښځې پې شکلي وو د هغې د خاوند نوم ابو القعيس وو او کوم کس چې د حضرت عائشې کره د داخل کیدو د پاره راروان وو د هغه نوم افلح وو، افلح د ابو القعيس ورور وو د ابوالقعيس د ښځې پې شکلو په وجه دا سړی د حضرت عائشې رضاعي پلار شو او د هغه ورور افلح یې تره شو. (المرقات ۳۲۲/۶)

**ارضعتنی المراة**: د حضرت عائشې دد دې بیان نه دا مقصد وو چې پې د ښځې دي نو رضاعت هم د ښځې نه ثابتیږي د سړې په کې څه کار دی حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې نه، د ښځې د پیو په وجه سړی هم رضاعی پلار شو دې کې شک نشته چې پی د ښځې دي د خاوند د جماع نه دا پی جوړیږي نو د خاوند هم په پیو کې دخل شته. (المرقات ۳۲۳/۶)

## رضاعي وريرې سره نکاح کول حرام دي

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ هَلْ لَكَ فِي بِنْتِ عَمِّكَ حَمْزَةَ؟ |
| د حضرت علي رضي الله عنه نه نقل شوې دي چې هغه عرض وکړو "اې د الله رسوله!" ستاسو د تره (حضرت حمزه) لور د خپلې نکاح د پاره |
| فَإِنَّهَا أَجْمَلُ فَتَاةٍ فِي قُرَيْشٍ فَقَالَ لَهُ: «أَمَا عَلِمْتَ |
| ولې نه خوښوئ؟ هغه خو د قريشو په حسين ترينه جينکو کې یوه جینۍ ده. رسول کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمایل تا ته معلومه نه ده |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۳۸ رقم الحديث ۵۲۳۹ ومسلم في ۲/۱۰۷۰ رقم الحديث (۱۴۴۵.۷) وأبوداؤد في السنن ۲/۵۴۷ رقم الحديث ۲۰۵۷ والترمذي ۳/۴۵۳ رقم الحديث ۱۱۴۸ وابن ماجه في ۱/۶۲۷ رقم الحديث ۱۹۴۹ والدارمي في ۲/۲۰۷

أَنَّ حَمْزَةَ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ؟ وَأَنَّ اللهَ حَرَّمَ مِنَ الرَّضَاعَ

چې حضرت حمزه رضي الله عنه زما رضاعي ورور دی او الله تعالی چې کومې رشتې د نسب په وجه حرام کړې دي

مَا حرم من النّسب؟». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1]

هغه په د رضاعت په وجه هم حرامې دي. (مسلم)

**توضیح**: **هل لک**: ولې ستاسو د حمزه د لور سره مینه نشته حالانکه هغه په قریشو کې ډیره ښائسته، نو (**هل لک**) مبتدا او (**رغبة**) خبر محذوف دی. حضرت حمزه او حضور اکرم همځولي وو او دوا رضاعي ورنړه هم وو ځکه دواړو د ابو لهب د وینځې ثویبه پې. څکلي وو نو په دې وجه د حضرت حمز لور د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم وریره شوه چې ورسره نکاح حرامه وه. (المرقات ۳۲۳/۶) رسو کریم ﷺ د ځلورو ښځوپې. څکلي وو. ۱. د خپلې مور محترمې آمنې، ۲. د حلیمه سعدیه، ۳. دام ایمن ۴. د ثویبې. (المرقات ۳۲۳/۶)

## د رضاعت مقدار

﴿۵﴾ وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ قَالَتْ: إِنَّ نَبِيَّ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تُحَرِّمُ

حضرت ام الفضل رضي الله عنها وايي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: حرمت رضاعت نه راځي

الرضعة أَو الرضعتان» (صَحِيح)[2]

چه یو ځل یا دوه ځله پې. څکلو سره (یعني یو ځل یا دوه ځله رودلو سره نکاح دپاره حرمت رضاعت نه ثابت کیږي)

وَفِي رِوَايَةِ عَائِشَةَ قَالَ: «لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ والمصتان»[3]

او د حضرت عائشه رضي الله عنها په روایت کې داسې دي چې نبی علیه السلام و فرمایل یو ځل یا دوه ځل رودل نکاح نه

(صَحِيح) وَفِي أُخْرَى لِأُمِّ الْفَضْلِ قَالَ: «لَا تُحَرِّمُ الإملاجة

حراموي. او د ام فضل په یو روایت کې دا الفاظ هم دي چې نبی علیه السلام و فرمایل چې یو ځل یا دوه ځله

---

(1) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۷۱/۲ رقم الحديث (۱۱.۱٤٤٦)

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۷۳/۲ رقم الحديث (۲۱.۱٤٥۱) ابن ماجه في السنن ٦۲٤/۱ رقم الحديث ۱۹٤۰

(3) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۷۳/۲ رقم الحديث (۱۷.۱٤٥۰) وأبوداؤد في السنن ٥٥۲/۲ رقم الحديث ۲۰٦۳، والترمذي في ٤٥٥/۳ رقم الحديث ۱۱٥۰ والنسائي في ۱۰۱/٦ رقم الحديث ۳۳۰۹ وابن ماجه في ٦۲٤/۱ رقم الحديث ۱۹٤۱ والدارمي في ۲۰۸/۲ رقم الحديث ۲۲٥۱.

والإملاجتان». هَذِه رِوَايَات لمُسلم (صَحِيح)[1]

په خوله کې سينه دا خلول نکاح نه حراموي. (مسلم)

﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ فِيمَا أُنْزِلَ مِنَ الْقُرْآنِ: «عَشْرُ رَضَعَاتٍ مَعْلُومَاتٍ

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې په قرآن کريم کې دا حکم نازل شوی دی چې لس ځله پی. ځکل (چې د هغې د ځکلو مکمل

يُحَرِّمْنَ». ثُمَّ نُسِخْنَ بِخَمْسٍ مَعْلُومَاتٍ

يقين وي) نکاح حراموي بيا دا حکم په پنځو ځلو ځکلو سره (چې د ځکلو پوره يقين وی) منسوخ شو. (يعنی دې نه پس دا حکم نازل شو

فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چې پنځه ځله پی. ئې و ځکل نو حرمت رضاعت ثابت شو نو وړومبی حکم منسوخ شو، دې نه پس نبی عَلَيْهِ السَّلَام د دنيا نه تشريف يوړلو

وَهِيَ فِيمَا يُقْرَأُ مِنَ الْقُرْآنِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

او دا ايت په قرآن کريم کې لوستل کيدلو. (مسلم)

## د رضاعت موده

﴿٧﴾ وَعَنْهَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا رَجُلٌ

د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې يوه ورځ نبی عَلَيْهِ السَّلَام ما کره تشريف راوړونو په هغه وخت کې زمونږ کره يو سړی ناست وو

فَكَأَنَّهُ كَرِهَ ذَلِكَ فَقَالَت: إِنَّه

هغه چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وليد و نو خفه شو. عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وائي چې د ما نبی عَلَيْهِ السَّلَام هغه خفګان محسوس کړو، ما عرض او کړو

أخي فَقَالَ: «انظرن من إخوانكن؟

چې دا خوزما د رضاعي ورور دی نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې دا ګورئ (يعنی غور و فکر کوه) چېستا ورونه څوک کيدې شي ځکه

---

(1) أخرجه في صحيحه ۲/۱۰۷۳ رقم الحديث (۱٤٥۱.۱۸) والنسائي في السنن ٦/۱۰۰ رقم الحديث ۳۳۰۸ والدارمي في۲/۲۰۸

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۷٥ رقم الحديث (۱٤٥۲.۲٤) وأبوداؤد في السنن ۲/٥٥۱ رقم الحديث ۲۰٦۲، والنسائي في ٦/۱۰۰ رقم الحديث ۳۳۰۷ والدارمي في ۲/۲۰۹ رقم الحديث ۲۲٥۳.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّمَا | الرَّضَاعَةُ | من | المجاعة» | (صَحِيح)[١] |
| ځکه چې شرعي طور باندې د رضاعت اعتبار د لوږې سره وي. (بخاري و مسلم) | | | | |

**توضيح** :**المجاعة**: ددې حديث مطلب دا شو چې د پيو د څکلو احکام په هغه وخت کې جاري کيږي چې دا پي د غذا په شکل کې بدن ته دننه لاړ شي ځکه په دغه زمانه کې پي د بدن حصه جوړه شي او دې سره حرمت رضاعت ثابت شي. د المجاعة مطلب هم دادی چې دا پي د لوږې په وجه بدن ته لاړ شي او نور څه خوراک نه وي. حضرت عائشې هغه کس د پيو شريک ورور ګڼلی وو چونکه دا پي يې د مدت رضاعت نه پس څکلي وو په دې وجه په هغې سره رضاعت ثابت نه وو، نو ځکه حضور د خفګان اظهار وکړو د رضاعت موده د جمهورو په نزد دوه کاله او صاحبين هم په دې متفق دي. د امام ابو حنيفه په نزد دوه نيم کاله ده، خو فتوی د جمهورو او د صاحبينو په قول ده. (المرقات ۶/۳۲۶)

## د رضاعت د پاره د يوې ښځې ګواهي معتبره ده که نه؟

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٨﴾ وَعَنْ | عُقْبَةَ | بْنِ | الْحَارِثِ: | أَنَّهُ | تَزَوَّجَ | ابْنَةً | لِأَبِي | إِهَابِ | بْنِ عَزِيزٍ |
| د حضرت عقبه بن حارث په باره کې نقل کړی شوي دي چې هغوی د ابو اهاب بن عزيز د لور سره نکاح وکړه نو | | | | | | | | | |
| فَأَتَتْ | امْرَأَةٌ | فَقَالَتْ: | قَدْ | أَرْضَعْتُ | عُقْبَةَ | وَالَّتِي | تَزَوَّجَ | بِهَا | |
| يوه ښځه راغله او ويې ويل چې ما عقبه له او د ابو اهاب لور له پي ورکړي دي (نو په دې وجه د دوی نکاح باطله شوه) | | | | | | | | | |
| فَقَالَ | لَهَا | عُقْبَةُ: | مَا | أَعْلَمُ | أَنَّكِ | قَدْ | أَرْضَعْتِنِي | وَلَا | أَخْبَرْتِنِي |
| عقبه هغې ښځې ته وويل چې ما ته خو معلومه نه ده چې تا ماله پي راکړي دي. او نه تا مخکې ددې باره کې | | | | | | | | | |
| فَأَرْسَلَ | إِلَى | آلِ | أَبِي | إِهَابٍ | فَسَأَلَهُمْ | | | | |
| څه ويلي دي، بيا عقبه يو کس د ابو اهاب خاندان والو ته وليږلو چې دې ښځې ستا لور له پئ ورکړې دی | | | | | | | | | |
| فَقَالُوا: | مَا | عَلِمْنَا | أَرْضَعَتْ | صَاحِبَتَنَا | فَرَكِبَ | | | | |
| هغوی وويل چې مونږ ته پته نشته چې دې جينۍ ته زمونږه دې ښځې پي ورکړي دي، دې نه پس عقبه مديني منورې ته | | | | | | | | | |

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٩/١٤٩ رقم الحديث ٥١٠٢ ومسلم في ٢/١٠٧٨ رقم الحديث (١٤٥٥.٣٢) وأبوداؤد في السنن ٢/٥٤٨ رقم الحديث ٢٠٥٨ والنسائي في ٦/١٠٢ رقم الحديث ٣٣١٢ والدارمي ٢/٢١٠ رقم الحديث ٢٢٥٦.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| «كَيْفَ | وَقَدْ | قِيلَ؟» | فَفَارَقَهَا | عُقْبَةُ | وَنَكَحَتْ |

إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ فَسَأَلَهُ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

نبی عَلَيْهِ السَّلَام طرف ته لاړو او د خپلې نکاح باره کې يې ورته ټول صورتحال بيان کړه نبی عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمايل

«كَيْفَ وَقَدْ قِيلَ؟» فَفَارَقَهَا عُقْبَةُ وَنَكَحَتْ

چې ته داسې جينۍ څنګه په نکاح کې ساتلې شې کله چې ظاهره شوه هغه ستا رضاعی خور ده بيا د هغې نه جدا شو

زوجاً غَيْره. رَوَاهُ الْبُخَارِيِّ (صَحِيح)[1]

او هغې بل کس سره نکاح وکړه. (بخاری)

**توضيح** : كيف وقد قيل: كه يوه ښځه ګواهي وركړي چې فلانكي كس له ما پی ورکړي دي. نو د دغې ښځې دغه ګواهي به معتبر وي كه نه؟ دې باره كې د علماء كرامو اختلاف دی.

**دفقهاو اختلافات**: د امام احمد بن حنبل او اسحاق بن راهويه په نزد د حرمت رضاعت د پاره د يوې ښځې ګواهي بس دی. جمهور فرمايي چې د يوې ښځې په ګواهی سره حرمت رضاعت نه ثابتيږی. بيا د جمهورو په خپل مينځ کې لږ اختلاف دی. امام مالک فرمايي چې د دوه ښځو ګواهي کافي ده. امام شافعی فرمايي چې د څلورو ښځو ګواهي معتبره ده. د ائمه احنافو په نزد د رضاعت د پاره هم هغه عام قانون دی چې د دين په ټولو شعبو کې دګواهي قانون دی چې دوه سړي يا يو سړی او دوه ښځې دا د شهادت نصاب دی په رضاعت کې هم په دې عمل کيږي. (المرقات ۳۲۷/۶)

**جمهورو د حضرت عقبه د روايت دوه جوابونه ورکړې دي**: ۱. يوجواب ئې دا ورکړی دی چې کيدی شي رسول کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د وحې په ذريعه معلومه شوې وي چې هغې ښځې په رښتيا دواړو له پی ورکړې وو نو نبی عليه السلام ورته د جدا کيدو حکم ورکړو. ۲. دويم جواب دا دی چې د پريښودو فيصله او حکم د شرعي قاعدې په طور نه وو او نه فتوی وه بلکې دا حکم بطور احتياط وو، تقوی وه. کله چې د يو شک خبره تاسو ته وکړی شی نو دې نه پس به ستا زړه څنګه مطمئن شي نو پريښودل يې پکار دي. (المرقات ۳۲۷/۶)

## په ميدان جنګ کې د ګيرو شوو ښځو سره د جماع کولو حکم

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ: أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ بَعَثَ جَيْشًا

حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حنين د غزا په ورځ يو لښکر

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۵/۲۵ رقم الحديث: ۲۶٤۰

| |
|---|
| إِلَى أَوْطَاسٍ فَلَقُوا عَدُوًّا فَقَاتَلُوهُمْ فَظَهَرُوا عَلَيْهِمْ وَأَصَابُوا لَهُمْ سَبَايَا |
| اوطاس ارخ ته روان کړه لښکر دښمنانو سره جنګ وکړو او په جنګ ورته فتحه وشوه ډیر قیدیان په کې په لاس ورغلل |
| فَكَأَنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحَرَّجُوا مِنْ غِشْيَانِهِنَّ |
| خو د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحابه کرامو کې بعضو حضراتو هغو وینځو سره د جماع کولو نه پرهیز وکړو |
| مِنْ أَجْلِ أَزْوَاجِهِنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى فِي ذَلِكَ (وَالْمُحْصَنَاتُ |
| چې په مشرکانو د هغوی خاوندان شته په دې باره کې الله تعالی دا آیت نازل کړو «او حرام کړې دي |
| مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا ملكت أَيْمَانكُم) أَيْ فَهُنَّ |
| په تاسو هغه ښځې چې خاوند والا دي خو هغه ښځې په تاسو حرامې نه دي چې ستاسو په قبضه کې راغلې دي. هغه ښځې په |
| لَهُمْ حَلَالٌ إِذَا انْقَضَتْ عِدَّتُهُنَّ. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| (جنګ کښې) ګیرې شوې وې د هغو ښځو د عدت پوره کیدو نه پس په تاسو حلالې دي. (مسلم) |

**توضیح** :واصابوا لهم سبایا: د کافرانو کومې ښځې چې د مسلمانانو په قید کې راغلې وي نو دا مسئله واضحه ده چې کومه ښځه د یو سړي په نکاح کې وي نو بل سړی ورسره نکاح نشي کولی او نه پکې تصرف کولی شي، او که د کافرانو ښځې په میدان جنګ کې مسلمانانو ته په لاس ورغلې او خاوندیې په میدان جنګ کې پاتې شو نو اوس به یې حکم څه وي؟

نو د مسئلې حل دادی نو د هغو ښځو استبرا د رحم واجب ده. یعنې استبرا د رحم نه مخکې ورسره جماع کول جائز نه دي د استبرا رحم صورت دادی چې د هغې ښځې یو ځل ماهواري راشي که ماهواري رانشي که وړه وي که پیغله وي نو چې میاشت تیره شي نو جماع ورسره کول جائز دي نو که حامله وي نو د ماشوم پیدا کیدو پورې به انتظار کوي. دا استبراء د رحم ده.( المرقات ۳۲۸/۶)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۷۹ رقم الحديث (۱٤٥٦.۳۳) وابوداؤد في السنن ۲/٦۱۲ رقم الحديث ۲۱۵۵، والترمذي في ۳/٤۳۸ رقم الحديث ۱۱۳۲ والنسائي في ٦/۱۱۰ رقم الحديث ۳۳۳۳.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## کومې ښځې په يو وخت کې په نکاح کې ساتل ممنوع دي

﴿۱۰﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ تُنْكَحَ الْمَرْأَةُ

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې نه منع فرمايلې ده چې په نکاح کړی شي ښځه

عَلَى عَمَّتِهَا أَوِ الْعَمَّةُ عَلَى بِنْتِ أَخِيهَا، وَالْمَرْأَةُ

د خپلې ترور په موجودګۍ کې يا ترور په نکاح کړې شي د وريرې په موجودګۍ کې يا يوې ښځې سره

عَلَى خَالَتِهَا أَوِ الْخَالَةُ عَلَى بِنْتِ أُخْتِهَا لَا تُنْكَحُ الصُّغْرَى عَلَى الْكُبْرَى

دې نکاح نه کوي د خپلې خورځې په موجودګۍ کې. بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا هم وفرمايل چې د لوې رشتې په موجودګۍ کې

وَلَا الْكُبْرَى عَلَى الصُّغْرَى.[1]

د وړوکې رشتې والا سره او د وړوکې رشته والا په موجودګي د لوې رشتې والا سره دې نکاح نه کوي.

## د پلار ښځې سره نکاح کول حرام دي

﴿۱۱﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: مَرَّ بِي خَالِي أَبُو بردة بن دِينَار

حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ورځ زما ماما حضرت ابوبرده ابن دينار زما خوا کې په داسې حال کې تير شو

وَمَعَهُ لِوَاءٌ فَقُلْتُ: أَيْنَ تَذْهَبُ؟ قَالَ:

چې د هغه په لاس کې يو جنګی نشان وو ما ترې تپوس اوکړو چې چرته روان يې نو هغه وويل چې

بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى رَجُلٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةَ أَبِيهِ

يو سړي د خپل پلار ښځې سره نکاح کړې ده او رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته حکم کړی دی چې د هغه

آتِيهِ بِرَأْسِهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[2]

چې د هغه سر پريکړم او د حضور صلى الله عليه وسلم خدمت کې يې راوړم (ترمذی، ابوداؤد)

---

([1]) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۵۳ رقم الحديث ۲۰۶۵ والترمذي في ۳/٤۳۳ رقم الحديث ۱۱۲۶ والنسائی في ٦/۹۸ رقم الحديث والدارمي في ۲/۱۸۳ رقم الحديث ۲۱۷۸.

([2]) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/٦۰۲ رقم الحديث ٤٤٥٦ والترمذي في ۳/٦٤۳ رقم الحديث ۱۳٦۲ والنسائی ٦/۱۰۹ رقم الحديث ۳۱... وابن ماجه في ۲/۹٦۹ رقم الحديث ۲٦۰۷ وأحمد في المسند ٤/۲۹۲

او د ابو داود په یو روایت کې همدارنګې د نسائی. ابن ماجه او دارمی په روایت کې داسې هم د
چې ابو برده وویل چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته حکم راکړی دې چې د هغه څټ کټ کړم او دهغ
ټول مال رواړم او په دې روایت کې زماد ماما په ځای ''زما تره'' الفاظ راغلي دي.

**توضیح**: په حقیقت کې د دغه سړي عقیده د اهل جاهلیت په شان وه چې د پلار د ښځې سره نکا
جائز ده، او هغو خلقو به مشر و رور ته د پلار درجه ورکوله په دې وجه دغې بد بختو به نکاح ورسر
کوله. دهغه سړي دا عقیده وه چې په اسلام کې یو حرام څیز په حقیقت کې حرام نه دی بلکه حلال د
نو په دې عقیده هغه مرتد شو نو واجب القتل شو. داسلام خپل یو قانون دی په دې کې د هر څ
حدود مقرر شوي دي دا نه چې د خپل طبعیت مطابق دې د اسلام په احکاماتو کې تبدیلي راولې
اوس وګورئ چې دغه صحابي حضور له طرفه د پوهولو په ځای د قتل کولو دپاره روان وو او
دحضور بیرغ یې په لاس کې نیولی روان وو چې خلقو ته پته ولګي چې دا حضور رالیږلی دی.(
المرقات ۶/۳۲۹،۳۳۰) لوا: جنګي جهنډې ته وایي.(المرقات ۶/۳۲۹)

## د رضاعت موده

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يُحَرِّمُ مِنَ |
| حضرت ام سلمه و ...ې چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل هغه پی. څکل حرمت رضاعت ثابتوي کوم |
| الرِّضَاعِ إِلَّا مَا فَتَقَ الْأَمْعَاءَ فِي الثَّدْيِ وَكَانَ قبل الْفِطَامِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| چې د سینې نه څکلو په وجه سره کولمې کهلا وي او هغه یې د یو پریکولو د وخت نه مخکې څکلي وي.(ترمذی) |

**توضیح**: **ما فتبق الامعاء**: په دې عبارت کې ما موصوله بمعنی الذي دی او فتَقَ د نصر ینصر په دی
د دې معنی ده خلاصول الامعاء کولمو ته وایي د دې مطلب دا چې هغه پی. چې د ماشوم خیټې او کولمو
کې داسې شامل شي څنګه چې د یو وړې سړې خیټه ډکه شي یعنی د ماشوم د پاره خوراک صرف د مور
پی. دي نور خوراک نه خوري او د موده د رضاعت د یو قول مطابق دوه کاله وي.(المرقات ۶/۳۳۰)

**فی الثدی**: د عربي په محاوره کې دا لفظ د رضاعت مودې او د پیو څکلو زمانې باره کې
استعمالولی شي، که دلته دا معنی واخستل شي نو مطلب به یې دا وي چې د پیو څکلو په زمانه کې
ماشوم پی. وڅکل او یا دې لفظ دامر واقعي بیان کړی دی چې ماشوم پی. عام طور باندې د سینې نه
د رودلو په طریقه څکي نو دا څه قید نه دی که د سینې نه علاوه په یو لوښي کې یې وڅکل نو
رضاعت نه ثابتیږي.(المرقات ۶/۳۳۰)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/٤٥٨ رقم الحديث ۱۱٥۲.

**فتق**: ضمير فاعل نه فى الثدى حال مقدره دى او الامعا مفعول به دى. (المرقات ۶/۳۳۰)

**اَي لا يحرمُ من الرضاع إلا الذي فتق الأمعاء حال كون اللبن ممتلئًا في الثدي** علامه طيبى وايي چې الثدي لفظ دلوښې په معنى سره راځي ګويا دا پئ د سينې په لوښې کې جمع دي او ماشوم يې ځکي **فتق الامعاء او فى الثدى** دا ټول الفاظ د رضاعت مودې طرف ته اشاره ده. (الكاشف ۶/۳۰۰، ۲۹۹)

**وكان قبل الفطام**: يعنې د پيو نه د شلولو نه مخکې يې ځکلي دي، دا جمله سابق کلام دپاره بطور تاکيد ده ،يعنې د رضاعت په موده کې يې پی ځکلي دې او هغه موده دوه کاله ده، ځکه په دغه دوران کې پی د بدن حصه جوړيږي چې د حرمت رضاعت سبب ګرځي. (المرقات ۶/۳۳۰)

## د رضاعي مور حق څنګه اداء کړو

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وعَن حَجَّاجِ بْنِ حَجَّاجِ الْأَسْلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ الله |
| او حضرت حجاج بن حجاج اسلمي د خپل پلار محترم نه نقل کوي چې هغوی عرض وکړو چې اې د الله رسوله! |
| مَا يُذْهِبُ عَنِّي مَذَمَّةَ الرِّضَاعِ؟ فَقَالَ: |
| هغه کوم څيز دی چې د هغې سره زه د پيو د حق نه خلاصی بيامومم؟ نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل : |
| "غُرَّةٌ: عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ[1] |
| چې مملوک يعنې ښائسته غلام يا وينزه (ترمذی ابوداود، دارمي) |

**توضيح**: **مذمة الرضاع**: مذمة د ذال کسرې او د ميم په فتحې سره د حق او ذمه دارۍ په معنى سره دی، الذمام واجب الحفاظة څيز حق اداء کولو ته وايي دلته مراد د پيو ځکلو احسان او بدله ورکول دي د عربو عادت وو چې د پيو ورکولو اجرت نه علاوه به يې هم ډير هر څه ورکول او بطور احسان به يې ورکول. (المرقات ۶/۳۳۲)

ددې باره کې سوال حضرت حجاج اسلمي کړی وو حضور اکرم ورته جواب ورکړو "غرة" ښائسته غلام ته وايي په اصل کې دا لفظ د اس په تندي باندې سپين داغ دپاره استعمالولی شي هغې، بيا د دې اطلاق په هر روشن، شريف، سردار سړې باندې وشو، او د غلام او وينزې د پاره هم استعماليدو نبي عليه السلام ورته وفرمايل چې خپلې رضاعي مور له يو ښائسته غلام يا وينزه

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۵۳ رقم الحديث ۲۰٦٤ والترمذي في ۳/٤٥۹ رقم الحديث ۱۱۵۳ والنسائي في ٦/۱۰۸ رقم الحديث ۳۳۲۹، والدارمي في ۲/۲۰۹ رقم الحديث ۲۲٥٤ وأحمد في المسند ۳/٤٥.

ورکړه چې د هغې خدمت کوي څنګه چې هغې ستا خدمت کولو "جزاء حقها من جنس فعلها" یعنې د خدمت بدله په خدمت شوه. (المرقات ۶/۳۳۲)

(هل جزاء الاحسان الا الاحسان). (الرحمن ۶۰)

## د رضاعي مور د تعظیم او تکریم یوه نمونه

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ الْغَنَوِيِّ قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابو طفیل غنوي وايي چې يوه ورځ مونږ د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مجلس کې ناست وو چه په دې کې

إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ فَبَسَطَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِدَاءَهُ

یوه ښځه (حلیمه سعدیه) راغله، حضورَ د هغې د عزت او خوشحالي د پاره خپل مبارک څادر خور کړو او هغه

حَتَّى قَعَدَتْ عَلَيْهِ فَلَمَّا ذَهَبَتْ قِيلَ هَذِهِ

په هغې کیناسته، بیا چې هغه لاړه، (چا ته چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په څادر د ناستې خیرا تیا شوې وه) ورته وفرمایل

أَرْضَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ (صَحِيحٌ)[1]

ورته وفرمایل چې دا هغه ښځه ده چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له يې پي ورکړي وو. (ابو داؤد)

**توضیح**: حضرت حلیمه سعدیه د سعد قبیلې سره يې تعلق لرلو. دوی حضور له دوه کالو پورې پي ورکړې وو، کیدی شي د حنین د غزا په موقع دا راغلې وه حضور د هغې ډیر عزت کړی وو، په دې موقع د حضور رضاعي خور شیماء هم وه چې حضوریې ډیر عزت کړی وو او دا دواړه خوش قسمته مسلمانانې وې د حضرت حلیمې قبر په مدینه منوره کې په جنت البقیع کې دی. (المرقات ۶/۳۳۳)

## د څلورو نکاح ګانو نه د زیاتو ممانعت

﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ غيلَان بن سَلَمَة الثَّقَفِيَّ أَسْلَمَ وَلَهُ عَشْرُ نِسْوَةٍ

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله غیلان بن سلمه ثقفي مسلمان شو نو د هغه لس ښځې وې چې هغه ده

فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَأَسْلَمْنَ مَعَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

د جاهلیت په دور کې کړې وې چنانچه هغه سره د هغه بیبیانې هم مسلمانې شوې بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته حکم وکړو

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۵/۳۵۳ رقم الحديث ۵۱۴۴.

«أَمْسِكْ أَرْبَعًا وَفَارِقْ سَائِرَهُنَّ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه[1]

چې څلور د ځان سره په نکاح کې وساته او نورې پرېږده. (روایت کړی دی احمد، ترمذي، ابن ماجه)

**توضیح: امسک اربعاً:** که یو کافر مسلمان شي او ورسره د هغه بیبیانې هم مسلمانې شي اوس په دې باندې د ټولو فقهاو اتفاق دی هغه کس د ځان سره څلور بیبیانې ساتلی شي نورې به پرېږدي، خو اختلاف په دې کې دی چې کومې ښځې به ځان سره ساتي او کومې به پرېږدي په دې کې اختلاف دی:( المرقات ۳۳۳/۶)

**دفقهاو اختلاف** : ائمه ثلاثه او امام محمد یعنې جمهور فرمایي چې سړې ته اختیار دی چې کومې ځان سره ساتي او کومې پرېږدي. امام ابو حنیفه او امام ابو یوسف فرمایي چې کومو سره یې وړومبی نکاح کړي وي هغه دې ځان سره وساتي، او کومو سره یې چې ورسته نکاح کړي وي هغه دې د ځان نه جدا کړي.

**دلائل** : جمهورو د زیر بحث د غیلان بن سلمه د روایت او ددې پیښې نه دلیل اغستی دی چې په کې امسک اَربعًا مطلق الفاظ راغلي دي چې په دې کې بندش نشته چې کومې پرېږدي او روستو کومې ځان سره ساتي. د جمهورو دویم استدلال د حضرت ضحاک بن فیروز روایت نه کړی دی چې په کې "اختر ایتهما شئت" الفاظ راغلي دي چې په کې د تخییر او اختیار په استعمال باندې دلالت کوي.

د جمهورو دریم دلیل د نوفل بن معاویه روایت دی چې کله هغه ته د څلورو د ساتلو او د نورو د پرېښودو حکم وشو نو هغه وړومبۍ جدا کړې او نورې یې ځان سره وساتلې.( المرقات ۳۳۳/۶)

امام ابو حنیفه او امام ابو یوسف فرمایي چې د نکاح په معاملاتو کې کفار د شرعي احکاماتو پابند نه وي او هغوی په خپله زندګۍ کې ازاد وي خو کله چې د اسلام په دائره کې داخل شي نو بیا په هغه د شریعت ټول احکام فرض شو، لهذا چې کومې وړومبۍ په نکاح کې راغلې وي هغه به ځان سره په نکاح کې وساتي او روستو چې کومې نکاح کې راغلې وي هغه به د جدا کیدو دپاره مقرر کړي.

د احنافو دا دلیل د شریعت په مجموعي قواعد او اصولو باندې مبني دی دا کوم قیاس نه دی چې د نصوصو په مقابله کې راغلی دی .امام محمد هم د جمهورو سره دی لهذا فتوی دجمهورو په قول باندې ده او په دې کې احتیاط هم دی.( المرقات ۳۳۳،۳۳۴/۶)

**جواب** :امام طحاوی د جمهورو د دلائیلو نه دا جواب ورکوي چې پورتني احادیثو کې چې خاوند ته

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۳/٤۱٥ رقم الحديث ۱۱۲۸ وأبن ماجه في ۱/٦۲۸ رقم الحديث ۱۹٥۳ وأحمد في المسند ۲/٤٤

کوم اختیار ورکړی شوی دی. دا د هغه پخوانی او د نوې نکاح خبره ده کله چې د څلورو نه د زیاتو او د دوو خویندو د جمع کولو حکم نه وو راغلی، لهذا په هغه وقت کې ټولې نکاحاجانې صحیح وې، په ټولو کې اختیار ورکړی شوی وو چې کومې رخصتوي، بیا دا حکم موقوف شو. بهر حال د جمهور قول راجح دی. په راتلونکې حدیث نمبر ۱٦ او ۱۷ کې هم دا سې تشریح و وضاحت دی.

﴿۱٦﴾ وَعَنْ نَوْفَلِ بْنِ مُعَاوِيَةَ قَالَ: أَسْلَمْتُ وَتَحْتِي خَمْسُ نِسْوَةٍ فَسَأَلْتُ

حضرت نفل بن معاویه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې کله زه مسلمان شوم نو زما په نکاح کې پنځه ښځې وې ما پوښتنه وکړه

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «فَارِقْ وَاحِدَةً وَأَمْسِكْ

دې باره کې د رسول کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نو رسول کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې یوه جدا کړه او څلور

أَرْبَعًا» فَعَمَدْتُ إِلَى أَقْدَمِهِنَّ صُحْبَةً عِنْدِي: عَاقِرٍ

ځان سره وساته ما چې د هغوی دا حکم واوریدو نو ما د ټولو نه وړومبنۍ ښځه جدا کړه او هغه شنډه وه

مُنْذُ سِتِّينَ سنة ففارقتها. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[1]

او د شپیتو کالو نه ماسره وه. (شرح السنه)

## د دوه خویندو په نکاح کې د ساتلو نه ممانعت

﴿۱۷﴾ وَعَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ فَيْرُوزَ الدَّيْلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قُلْتُ

ضحاک بن فیروز دیلمي د خپل پلار (حضرت فیروز) نه نقل کوي چې هغه وویل چه ما عرض وکړو

يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أَسْلَمْتُ وتحتي أختان قَالَ:

یا رسول الله! زه مسلمان شوی یم او زما په نکاح کې دوه خویندې دي دې باره کې څه حکم دې؟ نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل

«اختر أيتهما شِئْتَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[2]

په دې دواړو کې چې کومه غواړې هغه وساته. (ترمذی، ابو داؤد، ابن ماجه)

**توضیح: وتحتي اختان:** یو سړی دی اسلام یې قبول کړه او د هغه په نکاح کې دوه خویندې دي او هغه هم مسلمانانې شوې نو جمهور فرمائي چې سړې ته اختیار دی چې کومه پریږدي او کومه رخصتوی.

---

(۱) أخرجه البغوي في شرح السنة ۹/۹۰ رقم الحديث ۲۲۸۹.

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/٦٧٨ رقم الحديث ۲۲٤۳ والترمذي في ۳/٤۳٦ رقم الحديث ۱۱۳۰ وابن ماجه في ۱/٦۲۷ رقم الحديث ۱۹۵۱.

امام ابو حنيفه فرمايي چې که چيرې د دواړو نکاح په يو ځای شوې وي نو دواړه به رخصتوي او نکاح مخکې ورستو شوې وي نو اولنۍ به وساتي او دويمه به رخصت کړي، د دلائلو او مسائلو بحث مخکې شوی دی. (المرقات ۳۳۵/۶)

## مسئلة اسلام احد الزوجين

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: أَسْلَمَتِ امْرَأَةٌ فَتَزَوَّجَتْ فَجَاءَ |
| حضرت ابن عباس وايي چې يوې ښځې اسلام قبول کړه او بيا هغې بل سړي سره نکاح وکړه، دې نه پس دهغې رومبنی خاوند |
| زَوْجُهَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ أَسْلَمْتُ |
| دنبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شو او عرض ئې وکړو اې دالله رسول صلى الله عليه وسلم! ما اسلام قبول کړو |
| وَعَلِمَتْ بِإِسْلَامِي فَانْتَزَعَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ زَوْجِهَا الْآخَرِ |
| او زما دې ښځې تهٔ زما د اسلام قبلولو پته وه (ليکن د دې باوجود دې بل نکاح او کړه) نبي عليه السلام هغه ښځه د دويم خاوند نه جدا کړه |
| وَرَدَّهَا إِلَى زَوْجِهَا الْأَوَّلِ وَفِي رِوَايَةٍ: أَنَّهُ قَالَ: |
| او رومبني خاوند ته يې حواله کړه، او په يو روايت کې داسې هم دي چې هغه رومبني خاوند دا هم وويل چې دې |
| إِنَّهَا أَسْلَمَتْ مَعِي فَرَدَّهَا عَلَيْهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| ښځې ماسره يو ځای اسلام قبول کړې وو نبي عليه السلام چې دا واوريدل نو هغه ښځه يې رومبني خاوند ته حواله کړه. (ابو داؤد) |
| وَرُوِيَ فِي «شَرْحِ السُّنَّةِ»: أَنَّ جَمَاعَةً مِنَ النِّسَاءِ |
| او شرح السنه کې دا روايت داسې نقل کړی شوی دی چې حضور صلى الله عليه وسلم ډيرې ښځې د هغوی د |
| رَدَّهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنِّكَاحِ الأول على أزواجهنّ عِنْدَ |
| د رومبنی نکاح مطابق خپلو خاوندانو ته حواله کړې دي چې د دوی خاوندان د دين او ملک د فراق نه پس |
| اجْتِمَاعِ الإسلامين بَعْدَ اخْتِلَافِ الدِّينِ |
| هغوی سره په اسلام کې شامل شوې دي د دواړو په مينځ کې مذهبي، ملکي اختلاف پيدا شو او چې |
| وَالدَّارِ مِنْهُنَّ بِنْتُ الْوَلِيدِ بْنِ مُغِيرَةَ |
| يا دويم کس به هم مسلمان شو حضور به د هغوی سابقه نکاح باقي وساتله په هغو ښځو کې يو ښځه د وليد بن مغيره لور هم وه |

---

([1]) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/٦٧٤ رقم الحديث ۲۲۳۸ والترمذي في ۳/٤٤٩ رقم الحديث ۱۱٤٤ وابن ماجه في ۱/٦٤٧ رقم الحديث ۲۰۰۸

| |
|---|
| كَانَتْ تَحْتَ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ فَأَسْلَمَتْ يَوْمَ الْفَتْحِ |
| چې د صفوان بن اميه ښځه وه. دا ښځه د خپل خاوند نه مخکې د فتح مکې په ورځ مسلمانه شوې وه او د هغې |
| وَهَرَبَ زَوْجُهَا مِنَ الْإِسْلَامِ فَبعث النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِ ابْنَ عَمِّهِ وَهْبَ بْنَ عُمَيْرٍ |
| خاوند اسلام قبل نه کړو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې خاوند (صفوان بن اميه) ته د هغه د تره ځوی وهب بن عمير او ليږلو |
| بِرِدَاءِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَانًا |
| او خپل څادر مبارک ئې ورکړو او ورته يې امن ورکړه. (يعني پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام وهب له څادر بطور نښه ورکړو کله چې |
| لِصَفْوَانَ فَلَمَّا قَدِمَ جَعَلَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْيِيرَ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ |
| صفوان راغی نو هغه له يې څلورو مياشتو پورې اجازت ورکړو تردې چې صفوان د خپلې ښځې د مسلمان کيدو نه څلور مياشتې |
| حَتَّى أَسْلَمَ فَاسْتَقَرَّتْ عِنْدَهُ وَأَسْلَمَتْ أُمُّ حَكِيمٍ بِنْتُ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ |
| پس مسلمان شو، نو ښځه ئې په نکاح کښې پاتې شوه په هغو ښځو کې يوه بله ښځه ام حکيمه وه چې د حارث بن هشام لور وه |
| امْرَأَةُ عِكْرِمَةَ بْنِ أَبِي جَهْلٍ يَوْمَ الْفَتْحِ بِمَكَّةَ وَهَرَبَ زَوْجُهَا |
| او د ابو جهل د ځوی عکرمه ښځه وه، هغې هم د فتح مکې په ورځ اسلام قبول کړی وو او د هغې خاوند عکرمه |
| مِنَ الْإِسْلَامِ حَتَّى قَدِمَ الْيَمَنَ فَارْتَحَلَتْ أُمُّ حَكِيمٍ حَتَّى قَدِمَتْ |
| د اسلام قبلولو نه انکار وکړو او يمن ته لاړو چنانچه ام حکيم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په حکم سره خپل خاوند ته د اسلام |
| عَلَيْهِ الْيَمَنَ فَدَعَتْهُ إِلَى الْإِسْلَامِ فَأَسْلَمَ فَثَبَتَا عَلَى نِكَاحِهِمَا. |
| ترغيب ورکولو د پاره يمن ته لاړه چې مسلمان شي او نکاح ئې باقي پاتې شي |
| رَوَاهُ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ مُرْسَلًا (صحيح)[1] |
| دا روايت امام مالک د ابن شهاب نه په طريقې د ارسال سره نقل کړی دی. |

**توضيح**: وردها الى زوجها الاول: که په ښځه او خاوند کې يو کس مسلمان شي او دويم غير مسلم وي نو په دې کې يو څو صورتونه دي: يو صورت دا دی چې د اسلام نه پس ښځه او خاوند په ملک کې او سيږي، دويم صورت دا دی چې دا ملک دار الاسلام دی يا دار الحرب دی. دريم صورت دا دی

(۱) أخرجه مالك في المؤطا ۲/۵۴۳ رقم الحديث ٤٤ من كتاب النكاح.

چې په دواړو کې داسې جدائي راغله چې يو په کې ملک پريخودو دويم پاتې شو او اختلاف دارين پيدا شو. څلورم صورت دادی چې د جدائي نه پس څه موده تيره شو. پنځم صورت دادی چې ښځه کتابيه ده او که غير کتابيه ده.دا يو څو صورتونه دي چې ټول منتشر دي او ددې ضمن کې چې فقهاو کوم طرف ته اشاره وکړه زريې وپيژنئ.(المرقات ۶/۳۳۵)

**دفقهاء کرامو اختلاف** : ۱. د جمهورو ائمو مسلک دی چې ښځه او خاوند کې يو کس اسلام قبول کړه نو بل له هم اسلام دعوت ورکول پکار دي که اسلام يې قبول کړه نو نکاح باقي پاتې شوه، او که انکار يې وکړو نو نکاح ختمه شوه، او قاضي به د دواړو په مينځ کې تفريق وکړي،که ښځه کتابيه وه نو هغې ته د اسلام دعوت مه ورکوه نکاح يې برقرار ده.۲.که په ښځه او خاوند کې يو کس مسلمان شو او د هغه پس اختلاف دارين راغی يعني يو په کې ملک پريخودو نو دې اختلاف دارين سره د جمهورو په نزد نکاح ختمه شوه، ځکه چې په اختلاف دارين کې اسلام پيش کول ناممکن دي، او که دار الحرب ته تلو نه وروسته د عدت موده ختمه شوه نو نکاح هم ختمه شوه.۳.که په ښځه او خاوند کې يو کس اسلام قبول کړه دويم د عدت مودې يعنې درې حيضو پورې اسلام قبول نه کړه نو دې سره هم نکاح ختمه شوه.الغرض د جمهورو په نزد د ښځې د جدائي درې وجې د :. يو د اسلام نه انکار، دويم اختلاف دارين، دريم مقدار عدت موده د اسلام د قبلولو نه بغير تېرد شوه، يعنې د درېو حيضونو موده تيريدل. امام شافعي او امام احمد بن حنبل فرمايي چې په ښځه او خاوند کې چې يو کس اسلام قبول کړي نو د نکاح برقرار ساتلو دپاره به دريو حيض پورې انتظار کوي، که دويم هم مسلمان شو نو نکاح پاتې شوه او که نه نو نکاح ختمه شوه، که هغه په ښځه او خاوند کې د اختلاف دينينو سره اختلاف د دارينو راغلی وي او که نه وي.اختلاف دارينو سره څه فرق نه راځي، او داسې به د يو کس د اسلام په صورت کې به په دويم اسلام نشې پيش کولی او نه د اسلام په انکار سره د فرقت څه تعلق شته، د فرقت تعلق صرف د انقضاء عدت سره دی.(المرقات ۶/ ۳۳۶،۳۳۵)

**دلائل** : امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله د خپل مسلک دپاره چې د کومې واقعې نه دليل نيولی دی حضرت زينب بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم او د حضرت ابو العاص قصه ده چې حضرت زينب شپږ کاله په مدينه کې وه او بيا رسول کريم صلى الله عليه وسلم په وړومبی نکاح (ابو العاص) ته واپس کړه (ترمذی ج۱ص۲۱۷) صاحب مشکوة زير بحث حديث نقل کولو نه پس صاحب مصابيح د شرح السنه په حوالې سره ډيرو پېښو طرف ته اشاره کړې ده ګويا دا پېښې د هغه د مسلک دپاره دلائل دی چې د تباين دارين باوجود نکاح اول سره ښځه او خاوند برقرار پاتې کيږي نوې نکاح ونه کړی شوه. لهذا د تباين دارين څه حيثيت پاتې نه شو د بيلتون (فرقت) اصل وجه د عدت تيريدل دي.

حضرت امام شافعی اسلام پیش کول نه دی تسلیم کړی، هغه فرمائي چې ذمی له مونږه د عدم تعرض عهد ورکه اوس په هغه اسلام پیش کول تعرض دی چې جائز نه دی.جمهورو ائمه احنافو ته ددوه قسمه دلائلو ضرورت دی: یو هغه دلائل چې داسلام دپاره فائده مند وي. دویم هغه قسم چې دتباین دارین د فرقت د ثبوت د پاره وي.

**دوړومبي دعوې دليل**: دعرض اسلام پاره احنافو د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د دوو واقعاتو نه دليل نيولی دی د وړومبی واقعې خلاصه داسې ده چې د داود بن کردوس بيان دی چې د بنوتغلب نه يو نصراني سړی ؤ د هغه نکاح يوې نصرانۍ ښځې سره شوې وه هغې ښځې اسلام قبول کړه او خاوندېې انکار وکړه حضرت عمر ته چې دا نصراني پيش کړی شو نو ورته يې وويل "اسلم والا فرقتُ بينکما" هغه نصراني وويل چې زه په دې وجه اسلام نه قبلوم چې د عربو نه شرميږم چې دا به وايي هغه سړې د فرج د پاره اسلام قبول کړه،حضرت عمرددواړو په مينځ کې جدائي راوسته، دا روايت زجاجة المصابيح ۲ ص ۴۲۰ باندې ددې مصنف نقل کړی دی، او د عارضة الاحوذي مصنف ابن عربي په شرح د ترمذی کې او امام طحاوی هم دا نقل کړی.همداسې يوه بله واقعه د هغه طرف ته منسوب ده چې هغه ته دوه مشرکان پيش کړی شو يو مسلمان شوی ؤ حضرت عمر دويم ته هم د اسلام دعوت ورکړو په انکار باندې يې دواړه جدا کړل معلومه شوه چې اسلام پيش کول ثابت دي او فرقت نکاح کې يوه وجه داسلام نه انکار دی.

**عقلي دليل**: احناف وايي چې اسلام د رحمت او شفقت مذهب دی داد فرقت ذريعه نه شي جوړېدی کله چې کافرته د اسلام دعوت ورکړی شو او هغه انکار وکړو نو اوس به انکار از اسلام ذريعه جوړيږي او قصوروار به هغه کافر وي په دې وجه عرض اسلام ضروري دی چې په اسلام باندې دتفريق زوجين الزام رانشي باقي شوافعو چې نور څه ويلي چې ذمی ته تعرض جائز نه دی نو ددې جواب دادی چې ټيک ده تعرض جائز نه دی جبري طور باندې جائز نه دی په اختياري طور باندې جائز دی ددې څه ممانعت نشته.

**د دويمې دعوې دليل** : دجمهورو او احنافو دويمه دعوی داده چې د تباين دارين نه فرقت پيدا کيږي او نکاح فسخ کيږي.دې دعوې دپاره احناف د قرآن کريم دوه ايتونه پيش کوي: وړومبی ايت داسې دی :**فان علمتموهن مؤمنات فلا ترجعوهن الى الكفار لاهن حل لهم ولاهم يحلون لهن** (سورة ممتحنه ۱۰)

ددې نه دا مسئله صفا ثابته شوه چې تباين دارين د فرقت زوجين دپاره سبب دی. دويم ايت دادی:

**ولا جناح علیکم ان تنکحوهن اذا اتیتموهن اجورهن.** (سورة ممتحنه)
که تباين دارين د فرقت زوجين ذريعه نه وي نو هغه ښځو سره نکاح څنګه جائز شوه چې د کومو خاوندان په مکه کې دي. احنافو ددې روايت نه هم دليل نيولی دی کوم چې امام ترمذی د عمرو بن شعيب په حوالې سره په خپل کتاب کې نقل کړې دي الفاظ يې دا دي :**ان رسول الله صلی الله علیه وسلم ردابنته زینب علی ابي العاص بن الربیع بمهر جدید ونکاح جدید.** (ترمذی ج۱ص ۲۱۷)
ترجمه.جمهور احناف د زير بحث حديث د ابن عباس جواب داسې ورکوي چې په دې روايت کې څه تفصيل او تصريح نشته دی چې دلته تباين دارين شوی دی په دې وجه محتمل او مجمل روايت نه دليل نشي نيولی. باقي د صفوان بن اميه او عکرمه بن ابی جهل د واقعو نه دليل اغستل جائز نه دي، ځکه چې دلته تباين نه دی شوی دا دواړه حضرات بيشکه مکې نه تښتيدلی ووخو دمکې د حدودو نه نه ووتلی يو دسمندر غاړې له تلی وو او دويم د مکې سره نژدې پټ شوی وو.باقي صاحب مشکوة دا وايي چې شرح السنه کې صاحب مصابيح نه روايت دې چې دښځو يو جماعت وو چې هغوی حضور اکرم وړومبنی نکاح سره خپلو خاوندانو ته حواله کړې، نو د هغې جواب هم دادی چې يوه مجمل او مبهم دعوی ده،ترڅو پورې چې د تباين دارين تفصيل مخکې نه وي تر هغې پورې دا اجمال د چا لپاره دليل نشي جوړيدی.( المرقات ۳۳۷/۶)
**دحضرت ابو العاص رضي الله عنه واقعه او تحقيق** : بنيادي طور باندې شوافعو او حنابلو د حضرت ابو العاص د واقعې نه دليل نيولی دی،د حضرت ابو العاص نکاح دبنت رسول حضرت زينب سره شوې وه حضرت زينب خو مسلمانه وه مګر ابو العاص اسلام نه وو قبول کړی کله چې په جنګ بدر کې ګير شو نو حضور بغير د فديې نه پريخودو او شرط يې کيخودو چې ته به زما لور زينب د مکې نه مدينې ته هجرت کولو دپاره پريږدې په دې موقعه باندې حضرت زينب د هغه د خلاصې دپاره هغه هار هم ورولیږلو کوم چې حضرت خديجة الکبری خپلې لور ته د واده په موقعه باندې ورکړی وو ،حضرت محمد صلی الله عليه وسلم چې کله دا هار وليدلو نو دحضرت خديجې يادېې تازه شو او نبی عليه السلام باندې خاموشي غوندې راغله دصحابه کرامو په مشورې سره ابوالعاص يې بغير د فديې نه واپس کړو او هاريې هم واپس کړه. حضرت ابو العاص خپله وعده پوره کړه او حضرت زينب مدينې منورې ته ورسيده. بيا صحابه کرامو يوه قافله څه موده تعقيب کړه چې په کې حضرت ابو العاص هم وو هغه مدينې ته وتښتيدو او نيغ حضرت زينب کره لاړو حضرت زينب ورله امن وغوښتو حضور اکرم صلی الله عليه وسلم ورله امن ورکړه ابو العاص مکې ته لاړو او هلته يې د

اسلام اعلان وکړو او واپس مدينې ته راغی په دې شپږ کاله تير شوې وو. نبی کريم صلی الله عليه وسلم وړومبنی نکاح سره حضرت زينب هغه ته واپس کړه وايې چې وګورئ تباين دارين راغلی او فرقت نکاح رانغلو.

**جواب** احناف او جمهور ددې جواب داسې ورکوي چې اوګوئ چې د حضرت ابو العاص د واقعې نه تاسو حضرات هيڅرې دليل نشئ نيولی، يو خو دا چې ترمذي کې چې کوم ځای کې دي چې وړومبی نکاح سره يې واپس کړه هلته داهم دي چې نوې نکاح سره او نوې مهر سره واپس کړه اوس به څه کوې؟ "**اذا تعارضا تساقطا**" په دې وجه تاسو حضرات ددې واقعې نه او روايت نه دليل نه شئ نيولی چې په دې کې د عدت موده هم تيره شوې وه درې حيضه يا درې مياشتې، او شپږ کاله تير شوې دي يقينًا تاسو به هم تاويل کوئ او مونږه به هم تاويل کوو بغير د تاويله څوک هم دليل نشي نيولی، نو په تاويلاتو کې يو تاويل دا هم دی چې دا پيغمبری خصوصيت وو چې شپږو کالو پورې زړه نکاح برقرار وه. دويمه تشريح دا ده چې بالنکاح الاول کې يو دمشابهت صورت دی چې وړومبنی نکاح پشان نوی مهر او نوې نکاح سره نکاح وشوه. باقي د ترمذي دواړه روايتونه صحيح دي، او په دې کې واضح تعارض دی نو جمهور وايي چې د عمرو بن شعيب روايت زمونږه دليل دی چې نوې نکاح وشوه نوی مهر مقرر شو، دا روايت قابل ترجيح دی ځکه چې دا مثبت دی، او د حضرت ابن عمر روايت نافي دی او نافی او مثبت کې چې کله اختلاف راشي نو مثبت اولی بالترجيح شي. علامه خطابي د شوافعو په حمايت کې وايي چې ممکنه ده چې د حضرت زينب عدت د شپږو کالو نه زيات ؤ. ځکه طهر طويل هم وي نو فرقت زوجين رانغلو ځکه عدت اوس هم لا تير شوی نه د. مونږ شاباس!!!(المرقات ۳۳۸/۶)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## کومې کومې رشته دارې ښځې محرماتو کې داخلې دی

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: حُرِّمَ مِنَ النَّسَبِ سَبْعٌ وَمِنَ الصِّهْرِ |
| حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي چې د نسب په اعتبار سره او ه (۷) رشتو والا ښځې حرامې دي او د مصاهرت په اعتبار |
| سَبْعٌ ثُمَّ قَرَأَ: (حُرِّمَتْ عَلَيْكُم أُمَّهَاتُكُم) الْآيَة. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| سره هم اوه ښځې حرامې دي بيا حضرت ابن عباس دا ايت (حرمت عليکم امهاتکم) تر آخره پورې ولوستلو. |

---

[1] خاری فی صحيحه ۹/۱۵۳ رقم الحديث ۵۱۰۵.

**نوټ** : سورة النساء ايت نمبر ۲۳ کې د ټولو نسبي محرماتو بيان موجود دی، او د سخرګنۍ د اکثرو رشتو ذکر دی .هلته يې وګورئ. (مؤلف)

## د خپلې ښځې د لور سره د نکاح ممانعت

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه (حضرت عبد الله) نه نقل کوي چه نبی عَلَيْهِ السَّلَام |
| قَالَ: «أَيُّمَا رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةً فَدَخَلَ بِهَا فَلَا |
| وفرمايل چې کوم سړي يوې ښځې سره نکاح وکړي او بيا جماع ورسره وکړي نو د هغه ښځې لور سره |
| يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُ ابْنَتِهَا وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا |
| (چه د هغې د ړومبني خاوند نه وه) نکاح کول جائز نه دي ځکه چې هغه ښځه او د هغې لور په يو وخت کې په نکاح کې |
| فَلْيَنْكِحِ ابْنَتَهَا وَأَيُّمَا رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةً فَلَا يَحِلُّ لَهُ |
| ساتل په دې صورت کې جائز نه دي او کوم کس چې يوې ښځې سره نکاح وکړه نو اوس د هغه د پاره د خپلې نکاح شوې ښځې |
| أَنْ يَنْكِحَ أُمَّهَا دَخَلَ أَوْ لَمْ يَدْخُلْ». |
| مور يعنې خوابنې سره نکاح کول جائز نه دي که هغه د خپلې نکاح شوې ښځې سره جماع کړې وي يا ئې نه وي کړې |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ لَا يَصِحُّ مِنْ قِبَلِ إِسْنَادِهِ إِنَّمَا رَوَاهُ ابْنُ لَهِيعَةَ |
| دا روايت ترمذی نقل کړی دی او وائی چې دا روايت د سند په اعتبار سره صحيح نه دې ځکه چې ابن لهيعه |
| وَالْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ وَهُمَا يُضَعَّفَانِ فِي الْحَدِيثِ (متفق عليه)[1] |
| او مثنی بن صباح د عمرو بن شعيب نه نقل کړی دی او هغه دواړه د حديث د روايت د پاره ضعيف شمېرلی کيږی |

(ګويا دا روايت د خپل راويانو په اعتبار سره صحيح نه دی ليکن د خپل مفهوم او د معنی په اعتبار سره صحيح دی ځکه چې د دې روايت کوم مفهوم بيان شوی دی هغه د قران مطابق دی) .

۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۲۵ رقم الحديث ۱۱۱۷

# باب المباشرة

## خپلې ښځې سره د مباشرت بيان

**البشرة** د انسان ظاهري څرمن او ظاهري بدن ته وايي ددې نه بشر دی ځکه بشر انسان دی او د حيوان په مقابله کې د انسان بدن دويښتونه پاک وي.( المرقات ۳۴۱/۶)

**المباشرة الصاق البشرة بالبشرة** ويلی شي چې د دواړو طرفونو نه بدن يو بل سره ملاو شی دا لفظ په عربی کې د مباشرت دپاره خاص نه دی.البته مباشرت ترې کنايه کيدی شي .دلته **المباشرة** بمعنی **المجامعة** دی. ابواب الصوم کې احاديثو کې حضور اکرم ﷺ لپاره د روژې په ورځو کې د "**يباشر**" چې کوم لفظ راغلی دی هغه **الصاق البشرة بالبشرة غير الجماع**" په معنی دی، چه په اردو کې ترجمه بوس وکنار ده، کومو خلقو چې په بخاری شريف کې دا اردو په ترجمه کې ددې لفظ په مباشرت سره ترجمه کړې ده نو هغوی ډير ظلم کړی دی.ځکه چې مباشرت په اردو کې د جماع سره خاص دی نو په رمضان کې د ورځې حضور اکرم څنګه جماع وکړه دې ترجمې سره به ډير خلق ګمراه شي، په دې باب کې د جائز او ناجائز مباشرت تفصيلات دي، او د مباشرت آداب او مسائل په تفصيل سره بيان دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَول

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَتِ الْيَهُودُ تَقُولُ: إِذَا أَتَى الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ مِنْ دُبُرِهَا |
| حضرت جابر وايي چې يهوديانو به ويل چې کوم کس ښځې سره د شا طرف نه د هغې مخکې حصې (شرمګاه) کې |
| فِي قُبُلِهَا كَانَ الْوَلَدُ أَحول فَنزلت: |
| کوروالی وکړي نو د هغه به چپی (کوږسترګی) ماشوم پيدا کېږي په دې باره کې دا آيت نازل شو ! |
| (نسآءُکم حرث لکم فَأْتوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُم) (متفق عليه)[1] |
| ستاسو ښځې (يعنی بيبيانې او وينځې) ستاسو لپاره پټي دي لهذا تاسو ته اختيار دې چې د کوم طرف نه غواړئ نو راتلې شئ |
| ﴿۲﴾ وَعنهُ كُنَّا نَعْزِلُ وَالْقُرْآنُ يَنْزِلُ. |
| حضرت جابر وايي چې مونږه به د نبی عليه السلام په زمانه کې عزل کولو او قرآن به نازليدو (يعنی د نزول |

(۱) أخرجه البخارى فى صحيحه ۸/۱۸۹ رقم الحديث ٤٥۲۸ومسلم في ۲/۱۰۵۸ رقم الحديث (۱٤۳٥.۱۱۷) وأبوداؤد في السنن ۲/٦۱۸ رقم الحديث ۲۱٦۲، والترمذي في٥/۱۹۹ رقم الحديث ۲۹۷۸ وابن ماجه في ۱/٦۲۰ رقم الحديث ۱۹۲٥ والدارمي في ۲/۱۹٦ رقم الحديث ۲۲۱٤

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. | وَزَادَ | مُسْلِمٌ: | فَبَلَغَ | ذَلِكَ |

سلسله جاري وه مګر دې باره کې څه ممانعت نه وو). بخاري و مسلم) مسلم په خپل روايت سره دا هم نقل کړي دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّبِيَّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَلم | ينهنا | (صَحِيح)[1] | |

چې زمونږ د دې کار خبر رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وو مګر هغوی مونږه منع نه کړو.

**توضيح**: د عزل لغوي معنی جدا کول دي څنګه چې په (**فاعتزلو النسا في المحيض**)( البقرة ۲۲۲) کې دی. د عزل اصطلاحي تعريف دا رنګې دی چې په جماع کې د انزال په وخت کې نطفه باهر ضائع شي، دې باب کې د عزل احاديث حاوي دي، بعضو نه د جواز پته لګي او بعضو نه نه لګی، علامه ابن همام فرمايي چې ډير علماء د عزل قائل دي او درمختار هم جائز ليکلی دی، بعضو صحابه کرامو او بعضو سلفو هم عزل ته ناجائز ويلی دی، ابن حزم هم د عدم جواز قائل دی. ( المرقات ۳۴۲/۶)

بهرحال عام علماء فرمايي او په احاديثو کې هم دغه شان ده چې وينځې سره بغير اجازت ته عزل جائز دی، او حرې ښځې سره د اجازت نه پس عزل جائز دی ځکه چې د شهوت نه پس ښځې ته د سړې د اوبو سخت ضرورت وي نو دا دهغې حق دی که هغه اجازت ورنه کړي نو بيا جائز نه دی. بهرحال که اجازت ملاوهم شي نو دا عزل صرف د مباح درجې پورې دی. ټول احاديثو ته د کتلو نه دا معلوميږي چې د شريعت په نظر کې عزل يو ښه عمل نه دی، بعضې روايتونو کښې د دېته واد خفي ويلی شوی دې، يعنې په پټه طريقه ماشوم ژوندی خښول. بهرحال صاحب هدايه چې کله د عزل باره کې وليکل **وکره العزل** چې عزل اګر چې مباح دی ليکن يو ناخوښه عمل دی، د هدايې شارحينو دې باره کې ليکلې: نن سبا که يو سړی د حمل نه مخکې نطفه په دوايانو استعمالولو په ذريعه ضائع کول غواړي نو دا جائز ده، هغه حضرات ليکي چې چونکه نن سبا د اولاد تربيت خو کيږي نه نو په دې وجه سره فاسق فاجر او د الله تعالی د دښمنانو زياتولو ضرورت څه دی دا د هغو حضراتو يو ښه نيت دی او داسې که يوه ښځه بيماره وي بچې يې ډيروي يا بل څه عذروي نو دوايانې استعمالولی شي. ( المرقات ۳۴۲،۳۴۳/۶)

ليکن نن سبا چې کوم هوا چليږي هغه دا چې منصوبه بندی و کړئ وقفه ضروري ده خو د دغو خلقو سوچ څه بل څه دی، چه په کې د اسلام او مسلمانانو سره دښمني پټه ده او د الله تعالی په رازق کيدو کې يې هم شک دی په دې نظريې سره کوم قسم دوائې استعمالول جائز نه دي.

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | إِنَّ | رَجُلًا | أَتَى | رَسُولَ | الله | صَلَّى | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقَالَ: |

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو کس رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو

(۱) أخرجه البخاری في صحيحه ۹/۳۰۵ رقم الحديث ۵۲۰۸ ومسلم فی ۲/۱۰۶۵ رقم الحديث (۱۳۸.۱۴۴۰) واخرجه الترمذی فی السنن ۳/۴۴۳ رقم الحديث ۱۱۳۷ وابن ماجه في ۱/۶۲۰ رقم الحديث ۱۹۲۷ وأحمد في المسند ۳/۳۰۹

"إِنَّ لِي جَارِيَةً هِيَ خَادِمَتُنَا وَأَنَا أَطُوفُ عَلَيْهَا وَأَكْرَهُ

چه زما يوه وينځه ده چې زمونږ خدمت هم کوي او زه د هغې سره جماع هم کوم خو دا زما خوښه نه ده چه هغه

أَنْ تَحْمِلَ فَقَالَ: «اعْزِلْ عَنْهَا إِنْ شِئْتَ فَإِنَّهُ

حامله شي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته و فرمايل که ته غواړې نو عزل کوه، خو چې د دغې وينځې نه

سَيَأْتِيهَا مَا قُدِّرَ لَهَا». فَلَبِثَ الرَّجُلُ

چې کوم څيز د پيدا کيدو په مقدر کې وي هغه به پيدا کيږي دې نه د څه مودې پورې هغه په نظر رانغې

ثُمَّ أَتَاهُ فَقَالَ: إِنَّ الْجَارِيَةَ قد حبلت فَقَالَ:

او کله چې راغی نو ويې ويل چې زما هغه وينځه حامله شوې ده حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا واوريدل نو وې فرمايل

«قَدْ أَخْبَرْتُكَ أَنَّهُ سَيَأْتِيهَا مَا قُدِّرَ لَهَا». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

چې ما خو مخکې خبر کړې وې چې د دې نه کوم څيز د پيدا کيدو مقدر کې وي هغه به کيږي

## په مقدر کې چې څه وي هغه څوک نه شي بندولې

(۲) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ

حضرت ابو سعيد خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږه د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره بنی المصطلق په جنګ کې وو

فَأَصَبْنَا سَبْيًا مِنْ سَبْيِ الْعَرَبِ فاشتهينا النِّسَاء واشتدت عَلَيْنَا الْعُزْبَةُ

نو د عربو قوم نه مونږه ته څه وينځې په لاس راغلې نو زمونږه شوق وشو زنانو ته او ځان له او سيدل مونږه ته ډير ګران وو او (کومې

وَأَحْبَبْنَا الْعَزْلَ فَأَرَدْنَا أَنْ نَعْزِلَ وَقُلْنَا: نَعْزِلُ

وينځې چې مونږ ته په لاس راغلې وې) مونږ عزل کول غوښتل چې حاملې نه شي او آخر مونږه د عزل اراده وکړه يا مونږ سوچ وکړو

وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا قَبْلَ أَنْ

چه رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ کې موجود دی چې تپوس وکړو چې عزل مونږ د پاره جائز دې که نه؟ چنانچه مونږه د

نَسْأَلَهُ؟ فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذَلِكَ فَقَالَ: «مَا عَلَيْكُمْ أَلَّا تَفْعَلُوا مَا مِنْ

نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه تپوس وکړو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل که تاسو عزل و نه کړئ نو په دې کې ستاسو څه نقصان نشته دې

---

[1] أخرجه مسلم ف صحيحه ۲/۱۰۶٤ رقم الحديث (۱٤۳۹.۱۳٤) وأبوداؤد في السنن ۲/٦۲٥ رقم الحديث ۲۱۷۳ وأحمد في المسند ۳/۳۱۲

نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِلَّا وَهِيَ كَائِنَةٌ» (صَحِيح)[1]

په دې وجه قيامت پورې چې كوم ساه والا پيدا كيدل وي هغه به پيدا كيږي. (بخاري ومسلم)

**توضيح**: مِن سَبي العرب: علامه نووي فرمايي چې دې حديث نه دا خبره ثابتيږي چې په عربو كې هم غلامي راتلى شي ځكه چې دلته د بنو مصطلق د خلقو غلام كيدل او د وينځو جوړيدل ذكر دي او هغه عرب وو. د امام شافعي او د امام مالك همدا مسلك وو امام ابو حنيفه فرمايي چې د عربو قوم ته الله تعالى يو خاص عزت وركړيدى په هغوى غلامى نه شي راتلى. (المرقات ۶/۳۴۴)

**ماعليكم ان لا**: دلته په اَن فتحه او كسره دواړه جائز دي معنى يې داده كه چير ته عزل ونه كړې نو څه نقصان په كې نشته. بعضو د "لا" كلمه زائد ګڼلې ده ترجمه يې داده چې په عزل كې څه بد والى نشته. (المرقات ۶/۳۴۴)

﴿۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْعَزْلِ

حضرت ابو سعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم نه د عزل باره كې تپوس وشو (چه عزل كول جائز دي كنه؟)

فَقَالَ: «مَا مِنْ كُلِّ الْمَاءِ يَكُونُ الْوَلَدُ وَإِذَا أَرَادَ اللهُ

نو نبى عليه السلام وفرمايل چې د مني د هر او بو نه ماشوم نه جوړيږي او چې كله الله تعالى د يو څيز اراده وكړي

خَلْقَ شَيْءٍ لَمْ يَمْنَعْهُ شَيْءٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (صَحِيح)[2]

د يو څيز د پيدا كيدو نو د پيدا كيدو نه يې يو څيز هم نشي منع كولى. (مسلم)

**توضيح**: د دې سوال د مفهوم په رڼا كې رسول كريم صلى الله عليه وسلم جواب وركړو چې دا ستا دا خيال دى چې مني د ننه لاړه شي نو ماشوم به پيدا شي او په نه تلو به ماشوم نه پيدا كيږي، دا غلطه ده كله او به د ننه لاړې شي او ماشوم پيدا نه شي او كله او به د ننه لاړې نشي أو د الله تعالى په قدرت سره ماشوم پيدا شي. د دې انحصار په نطفه نه دى بلكې د الله په قدرت باندې دى، دا بيله خبره ده چې الله تعالى دا سلسله نطفې سره تړلې ده نطفه څه ضروري نه ده دا هم كيدى شي چې د نطفې معمولې ذره د ننه لاړه شي او د هغې نه الله تعالى ماشوم پيدا كړي، د ټولې منى نه ماشوم نه پيدا كيږي.

---

(۱) أخرجه البخارى فى صحيحه ۷/۴۲۸ رقم الحديث ۴۱۳۸ ومسلم فى ۲/۱۰۶۱ رقم الحديث (۱۲۵.۱۴۲۸) وأبوداؤد في السنن ۲/۶۲۴ رقم الحديث ۲۱۷۲ ومالك فى المؤطا ۲/۵۹۴ رقم الحديث ۹۵ من كتاب الطلاق.

(۲) أخرجه مسلم فى صحيحه ۲/۱۰۶۴ رقم الحديث (۱۳۳.۱۴۳۸)

المرقات ۶/۳۴۵)

## په مدت رضاعت کې جماع کول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ: أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت سعد ابن ابی وقاص رضی الله عنه وايي چې يوه ورځ يو کس د رسول کريم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو او |
| فَقَالَ: إِنِّي أعزل عَن امْرَأَتِي. فَقَالَ لَهُ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: |
| عرض يې ورته وکړو چې زه خپلې ښځې سره عزل کوم ه رسول کريم صلی الله علیه وسلم چې دا واوريدل نو ورته ئې وفرمايل |
| «لم تفعل ذَلِك؟» فَقَالَ الرَّجُلُ: أُشْفِقُ عَلَى وَلَدِهَا. فَقَالَ: |
| چې ته دا ولې کوې؟ هغه کس عرض وکړو چې زه د ييو ځکلو والا ماشوم د وجې داسې کوم ورته وفرمايل |
| رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ كَانَ ذَلِكَ ضارا أضرّ فَارس وَالروم». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] |
| رسول کريم صلی الله علیه وسلم، که دې نقصان ورکولی نو د روم او فارس والو ته به ئې نقصان ورکړی وو. |

**توضيح : اشفق على ولدها:** دعامو خلقو دا خيال وو چې د رضاعت په موده کې جماع کولو سره به بيا ښځه حامله شي اود ښځې پې به خراب شي په دې وجه به پې ځکلو والا ماشوم ته نقصان ورکړي،.اود ښځې پې به کم شي ددې ويرې له وجې هغه سړې د رسول کريم صلی الله علیه وسلم نه د عزل اجازت وغوښتلو ددې په جواب کې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل که چيرې په دې وجه ماشوم ته پې ځکل نقصان ورکوي نو د روم او فارس خلقو ته به نقصان ورسيدلې وو هغوی به دا عمل کولو او په دې کې نقصان نشته، نو بيا د عزل څه ضرورت دی ددې نه د عزل ناخوښۍ ته هم اشاره ده. ( المرقات ۶/۳۴۶،۳۴۵)

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَن جذامة بِنْتِ وَهْبٍ قَالَتْ: حَضَرْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُنَاسٍ |
| حضرت جذامه بنت وهب وايي چې يوه ورځ زه د نبي علیه السلام په خدمت کې حاضره شومه په هغه وخت هلته د خلقو يو |
| وَهُوَ يَقُولُ: «لقد هَمَمْت أَن أَنْهَى عَنِ الْغِيلَةِ فَنَظَرْتُ |
| جماعت موجود وو نبي علیه السلام هغوی ته وفرمايل چې ما اراده وکړه چه خلق د غيلې نه منع کړم نو بيا چې ما وکتل |
| فِي الرُّومِ وَفَارِسَ فَإِذَا هُمْ يُغِيلُونَ أَوْلَادَهُمْ فَلَا يَضُرُّ أَوْلَادَهُمْ |
| نو د روم او فارس خلقو د خپلو اولادونو په موجودګۍ کې غيله کوله او ددې وجې نه د هغوی اولاد ته څه نقصان نه رسيده |

(۱) أخرجه مسلم فى صحيحه ۲/۱۰۶۷ رقم الحديث (۱۴۴۳،۱۴۳) وأحمد في المسند ۵/۲۰۳)

| |
|---|
| ذَلِكَ شَيْئًا» ثُمَّ سَأَلُوهُ عَنِ الْعَزْلِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| (نوما دا اراده ترک کړه) بیا خلقو د نبی عَلَيْهِ السَّلَام نه د عزل باره کې تپوس وکړو نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |
| "ذَلِكَ الوأدُ الْخَفِي وَهِيَ (وَإِذَا الموؤودة سُئِلت) رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)[1] |
| چې دا عزل کول خو په پټه ژوندي ښخول دي دا یو بد عادت دی چې په دې ایت کریمه "واذا الموودة سئلت الایة" په حکم کې داخل دی. |

**توضیح** : **ان انهی عن الغیلة**: غیله د غین کسرې سره غیل بفتح الغین نه ماخوذ دی الغیل او غیلة په تفسیر او توضیح کې د اهل لغتو مختلف اقوال دي: ۱.اصعمی او دهغه ملګري د لغت والا او امام مالک فرمایي چې پیو ورکولو والا ښځې سره چې کله د هغې خاوند جماع وکړي نو دې عمل ته غیله ویلی شي. ابن سکیت وایي چې حاملې ښځې سره چې خاوند حالت حمل کې جماع وکړي نو دې مخصوص عمل ته غیله وائي.عربو به د دې عمل نه ځان ساتلو او ویل به یې چې دې سره بچې ته نقصان رسي او دا عقیده ډیره مشهور شوې وه، رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله اراده وکړه چې امت د دې نه منع کړي خو چې کله یې فارس او روم خلقو کې دا عمل ولید و چې په دې عمل کې څه نقصان نشته او نه د دې څیز څه پرواه کوي پس رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امت د دې عمل نه منع نه کړل.د جمهورو په نزد غیله جائز ده په دې کې ماشوم ته د نقصان خطره ده لهذا غیله خلاف اولی ده. **الواد الخفي**:عزل په پټه طریقه ژوندې خخول دي په دې جمله کې د عزل بدوالي طرف ته اشاره واضحه ده. **الواد** ژوندي ښخولو په معنی سره راځي،د علماو یوې ډلې د عزل عدم جواز طرف ته اشاره کړې ده لیکن د جمهورو علماو په نزد عزل مباح دی، حضرت عمر خلق د عزل نه منع کړي وو، او حضرت عثمان هم منع کړې دي، نو دا نهي به په تنزیهي او خلاف اولی باندې حمل کیږي. (المرقات ۶/۳۴۷،۳۴۶)

## ښځه او خاوند دې د یو بل راز نه ښکاره کوي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَعْظَمَ الْأَمَانَةِ عِنْدَ اللهِ |
| حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د الله تعالی په نزد باندې لوی امانت |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ" وَفِي رِوَايَةٍ: إِنَّ مِنْ أَشَرِّ النَّاسِ عِنْدَ اللهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| د قیامت په ورځ یو روایت داسې هم دی د قیامت په ورځ به د الله تعالی ته نزد لوې مرتبه کې تر ټولو نه بد سړی به هغه وي |

(1) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۶۷ رقم الحديث (۱۴۱.۱۴۴۲) وأبوداؤد في السنن ۴/۲۱۱ رقم الحديث ۳۸۸۲ والنسائي في ۶/۱۰۶ رقم الحديث ۳۳۲۶ وابن ماجه في ۱/۶۳۸ رقم الحديث ۲۰۱۱ والدارمي ۲/۹۷ رقم الحديث ۲۲۱۷ ومالک في المؤطا ۲/۶۰۷ رقم الحديث ۱۶

الرَّجُلُ يُفْضِي إِلَى امْرَأَتِهِ وَتُفْضِي إِلَيْهِ ثُمَّ ينشر سرها". رَوَاهُ مُسلم (حسن)[1]

چه خپلې ښځې سره کوروالي وکړي او ښځه هم ورسره پرته وي او بيا دهغې پټې خبرې ښکاره کوي. (بخاري ومسلم)

**توضیح**: **ان اعظم الامانة**: يعنې دټولو نه لوی امانت چې بنده په کې خيانت وکړو دهغه سرې خيانت دی الخ الله تعالى ښځه او خاوند د يو بل دپاره باعث عزت پيدا کړې دی دهغوی په مينځ کې پټ جنس تعلقات وي او دا دواړه د يو بل راز داروي. او هغه چې سحر پاسي نو د شپې د پټو حالاتو اظهار کوي او وايي چې زما رفيق حيات داسې کوي ما داسې وکړل څنګه چې د خرابو خلقو عادت وي د داسې خرابو حرکاتو نه اسلام مونږ منع کوي او د پټو رازونو ښکاره کول لوی خيانت، لويه بې غيرتي او لوی شرارت هم دی. (المرقات ۳۴۸/۶)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### دحيض په ورځو کې خپلې ښځې له مه ورځه

﴿۹﴾عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: أُوحِيَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم باندې دا ايت نازل شو يعنى ستاسو ښځې

(نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ) الْآيَةَ:

ستاسو دپاره په مثال د پټي دي پس راځئ خپلو پټو ته الخ لهذا تاسو چې څنګه غواړئ هغوی سره ملاؤ شئ) که د مخکې نه وي

«أَقْبِلْ وَأَدْبِرْ وَاتَّقِ الدُّبُرَ وَالْحَيْضَةَ».

او که د روستو نه خو مقعد (د غټ او دس ماتی ځای) کې دخول کولو نه ځان ساتئ او دحيض په حالت کې جماع مه کوئ

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه (صَحِيح)[2]

(روايت کړې دې ترمذی، ابن ماجه، دارمی)

**توضیح**: **انی شئتم**: لفظ **انی من این** په معنی سره د عموم د مکان دپاره راځي. ای من این شئتم او د کيف په معنی هم دی. دکوم نه چه دعموم احوال مراد اخستلې شی. (المرقات ۳۵۹/۶) روافضو دواړه معانې استعمال کړې دي او "**وطی فی الدبر**" ئې جائز کړې ده. او په خرابو عاداتو کې

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۶۱ رقم الحديث (۱۴۳۸.۱۲۴) وأبوداؤد في السنن ۵/۱۹۰ رقم الحديث ۴۸۷۰ وأحمد في المسند ۳/۶۹

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۰۰ رقم الحديث ۲۹۸۰ وأحمد في المسند ۱/۲۹۷.

مبتلا شول.بعضو خلقو د حضرت عبدالله بن عمر د يو مجمل كلام نه غلطه فائده اخستې ده او هغه طرف ته يې نسبت کړې ده هغه "انى شئتم اى فى دبرها" فرمايې دا سراسر بهتان دى.حضرت ابن عمر د وطي فى الدبر باره کې فرمايلي دي .هل يفعل ذلک احد من المسلمين. ولې مسلمان بد فعلي كولى شي؟روافض انى شئتم نه چې كوم عمومى افعال دى اخلي په کې او وطى فى الدبر يې جائز کړې دى د دې جواب دا دى چې ددې ايت سياق او سباق نه معلوميږى دلته عموم موضع مراد نه دى بلکې عموم احوال مراد دي، چې موضع خاص وى ،كيفيت عام وى، په ناسته ، په ملاسته ،لاندې باندې ، په ولاړه په قعود په ټولو احوالو کې جائز دى په شرط ددې چې وطي په موضع حرث کې وي، او که په موضع فرث کې نه وي .شيعه په هر عمل کې د مسلمانانو نه بيل تلل غواړي دلته هم هغوى بيله لاره اختيار کړې ده. .خذلهم الله كما خذلوا الاسلام"

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ:أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ اللهَ لَا يَسْتَحيي مِنَ الْحَقِّ |
| حضرت خزيمه بن ثابت رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل الله تعالى حقه خبره كولو کې حياء نه كوي |
| لَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَدْبَارِهِنَّ». رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرمِذِيّ وَابْن مَاجه. والدارمي[1] |
| تاسو د ښځو په تاسو د ښځو په مقعد کې بد فعلي مه كوئ. (احمد، ترمذى، ابن ماجه، دارمى) |

## ښځې سره بدفعلى كولو والا ملعون دى

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَلْعُونٌ |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل چې هغه کس ملعون دى كوم چې |
| مَنْ أَتَى امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ (صَحِيحٌ)[2] |
| د خپلې ښځې سره بد فعلي كوي.(ابو داؤد، احمد) |

**توضيح : ملعون:** خپلې بي بي سره بدفعلي كول غټ جرم دى نو دا جانبو، اماردو او رجالو سره د بدفعلى كولو به څه حال وي.تيرو شوو قومونو کې قوم لوط مكمل طور باندې د دې جرم په وجه تباه شوې ، په دې فعل سره عرش باندې زلزله راځي، بعضې وايي چې ددې فعل په وجه چې كوم کس په دې جرم کې مبتلا وي نو که په او وسمندرونو کې غسل هم وکړي نو هم ورته پاكي نه حاصليږي

---

([1]) أخرجه ابن ماجه في السنن۱/٦١٩ رقم الحديث ۱۹۲٤ والدارمي في ۲/۱۹٦ رقم الحديث ۲۲۱۳ وأحمد في المسند۵/۲۱۳

([2]) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/٦۱۸ رقم الحديث ۲۱٦۲ وأحمد في المسند۲/٤٤٤.

ظاهره ده چې په غسل او او بو سره باطني خباثت او ګناه چیرته ختمیږي (المرقات ۶/۳۵۰)

**دلواطت سزا:** د جمهورو په نزد د لواطت سزا د زنا په شان ده، لهذا د دې په شان حد نافذیږي، صاحبین هم جمهورو سره دي. حضرت علي رضي الله عنه نه منقول دي چې هغوی لوطي سنګسار کړی وو، حسن بصري او ابراهیم نخعي نه هم دا منقول دي.

په عقلي دلیل کې جمهور فرمایي چې په لواطت کې قضاء د شهوت په کاملې درجې کې وي لهذا دا د زنا په حکم کې دی، امام ابو حنیفه فرمایي چې لواطت کې تعزیر دی ځکه چې دا د کوم حد لاندې راوستل مشکل دی، که د دې دپاره څه حد مقرر وی نو صحابه کرام به د دې په سزا کې مختلف نه وو، صحابه کرامو په مختلفو طریقو باندې سزا ورکړې ده لکه غرنه یې غورځولی دی، چا د دیوال نه، او چا په سمندر کې، او چا په اور کې، او چا د چت نه او چا سنګسار کړی دی، دا د دې خبرې دلیل دی چې په دې حد نشته دی. البته سزا ده او د سزا لاندې دا قتل کولی هم شي، سنګسار کولی هم شي.

لهذا په احنافو دا اعتراض په حسد باندې مبني دی، هغوی لواطت د پاره د حد قائل نه دي د هغوی په نزد دې بدعمل باندې سختو نه سخته سزا ورکولی شي.

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الَّذِي |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل کوم کس چې خپلې ښځې |
| يَأْتِي امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا لَا يَنْظُرُ اللهُ إِلَيْهِ». رَوَاهُ فِي شرح السّنة (حسن)[1] |
| سره بد فعلي کوي الله تعالی د هغه طرف ته د رحمت او شفقت په نظر نه ګوري. (شرح السنه) |
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَنْظُرُ اللهُ إِلَى رَجُلٍ |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې الله تعالی هغه کس ته د رحمت او |
| أَتَى رَجُلًا أَوِ امْرَأَةً فِي الدبر». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2] |
| شفقت په نظر نه ګوري چې کوم سړي یا ښځې سره بد فعلي کوي. (ترمذی) |
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| حضرت اسما بنت یزید رضي الله عنها وایي چې ما د رسول کریم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي فرمایل ئې |

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۶۱۹ رقم الحديث ۱۹۲۳ والبغوى في شرح السنة ۹/۱۰۷ رقم الحديث ۲۲۹۷

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/٤٦۹ رقم الحديث ۱۱٦٥

«لَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ سِرًّا فَإِنَّ الْغَيْلَ يُدْرِكُ الْفَارِسَ فيدعثره عَن فرسه». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

چې تاسو خپل اولاد په پټه مه قتل کوئ چې غيل په سور باندې اثر کيږي او د اس نه ئې راغورځوي

**توضيح**: فيدعثره: دعثر يدُعثر دعثرةً: د غورځولو په معنى سره راځي يعنى د داء الغيل اثر د هغه ماشوم په بدن او ښو کې د کمزورئ په صورت کې ظاهريږي، کله چې دا ماشوم ځوان شي او په اس سور شي بيا هغه زغلوي نو دا بيماري خپل اثر ښائي نود اس نه راپريوځي او هلاک شي، ګويا دا پټ قتل دى نو وې فرمايل چې خپل اولاد مه قتل کوئ. داء الغيل تفصيل تير شوى دى چې ددې بيمارئ اثر په اعضاو باندې کيږي او ټولې خرابئ د هغه غلطو پيو دي چې د خاوند د جماع کولو په وجه د ښځې پئ خراب شوې وو چې ماشوم څکلې وو يا يې په حالت د حمل کې جماع کړې وه. (المرقات ۳۵۰،۳۵۱/۶)

**سوال**: دلته دا سوال دى چې ددې نه مخکې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غيل عمل مباح کړى وو دوه حديثونو کې دا خبره راغلې ده چې دغيل سره څه نه کيږي، او اوس په دې حديث کې غيل نقصاني ګرځول شوى دى؟

**جواب**: علامه طيبى جواب ورکړى دى چې په تيرو شوو احاديثو کې د غيل د نقصان نفې د اهل جاهليت د اعتقاد پيش نظر وو چې هغوى د غيل دا اثر مؤثر حقيقى ګڼلو هغوى يې نفې وکړه، او دلته فى الجمله اثر طرف ته اشاره شوې ده چې فى الجمله ددې اثر کيږى. دويم جواب دادى چې په اول کې هغوى اراده کړې وه چې غيل حرام دى روستو د هغوى سوچ بدل شو، د زير بحث حديث تعلق کيدى شي هغه زمانې سره وو چې په کوم وخت کې دغيل د ممانعت خبرې شروع وې. (الکاشف ۳۱۱/۶)

## الْفَصْلُ الثَّالِث

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع فرمايلې ده . د حُرې |
| أَن يعْزل عَن الْحرَّة إِلَّا بِإِذْنِهَا. رَوَاهُ ابْن مَاجَه (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] |
| (آزادې ښځې) سره د هغې د اجازت نه بغير د عزل کولو نه (ابن ماجه) |

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲۱۱/٤ رقم الحديث ۳۸۸۱ وابن ماجه في ۱/٦٤٨ رقم الحديث ۲۰۱۲ وأحمد في المسند ٦/٤٥٨

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۱/۳۱

# باب مسئلة خيار العتق

## الْفَصْلُ الأَوَّل

﴿۱﴾ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عروه د ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل کوي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم

قَالَ لَهَا فِي بَرِيرَةَ: «خُذِيهَا فَأَعْتِقِيهَا».

حضرت عائشه رضي الله عنها ته د بريرې په حقله وفرمايل چې دا په بيعه واخله او بيايې آزاد کړه او د

وَكَانَ زَوْجُهَا عَبْدًا فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَارَتْ

حضرت بريرې خاوند چونکه غلام وو ددې دپاره رسول کريم صلى الله عليه وسلم هغې له اختيار ورکړو او بريرې دخپل اختيار مطابق خپل

نَفسهَا وَلَو كَانَ حرا لم يخيرهاَ (صَحِيح)[1]

ځان د خپل خاوند نه بيل کړو، او که چيرې خاونديې آزاد وو نو بيا نبي عليه السلام ورله اختيار نه ورکولو.

**توضيح** : په مدينه منوره کې يو يهودي وو دهغه يوه وينځه وه چې نوم يې بريره وو د هغې مالک هغه د نهه (۹) اوقيو په بدل کې مکاتبه جوړه کړې وه د بدل دکتابت د مدد په باره کې بريره د حضرت عائشې خوا ته راغله حضرت عائشه رضي الله عنها هغه په بيعه واغستله او آزادې کړه د اغستو په وخت کې د بريرې مالک يهودي د هغې شرط ذکر وکړه چې د بريرې حق "ولاء" د دې د مرګ نه پس به مونږ ته ملاويږي، حضرت عائشه رضي الله عنها د دې ذکر حضور اکرم صلى الله عليه وسلم ته وکړو حضور اکرم ډير خفه شو او خطبه يې وفرمايله! **فقضاء الله أحق وشرط الله أوثق وإنما الولاء لمن أعتق**

د حضرت بريرې يو خاوند وو چې نوم يې مغيث وو هغه هم غلام وو ورستو ورته آزادي ملاو شوه په دې باره کې حضرت بريرې ته خيار عتق يعنې اختيار طلاق د عتق په وجه حاصل شوی وو، ددې خيار عتق په تفصيل کې د فقهاء کرامو اختلاف دی.( المرقات ۳۵۲/۶)

**دفقهاو اختلاف** : ۱. په دې باندې ټول متفق دي که چيرې د يوې وينځې د آزاديدو وخت کې د هغې خاوند غلام وو نو وينځې ته به خيار عتق يعنی اختيار د طلاق ورکولی شي. ۲. په دې هم فقهاء متفق دي چې ښځه او خاوند يو ځای آزاد شي نو يو کس ته هم خيار عتق حاصل نه دی.( المرقات ۳۵۲/۶)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۱۹۰ رقم الحديث ۲۵۳۶ ومسلم في ۲/۱۱۴۳ رقم الحديث (۱۵۰۴.۸) وأبوداؤد في السنن ۲/۱۷۲ رقم الحديث ۲۲۳۳ والترمذي في ۳/۶۴۰ رقم الحديث ۱۱۵۴ والنسائي في ۶/۱۶۳ رقم الحديث ۳۴۴۹ وابن ماجه في ۱/۶۷۰

۳.که د وینځې د آزادۍ په وخت خاوند آزاد وو نو ښځې ته به خیار عتق ملاویږی او که نه؟ په دې کې دفقهاء کرامو اختلاف دی.داحنافو ائمو په نزد وینځې ته به په هر حالت کې خیار عتق ملاویږي که خاوندیې غلام وي او که آزاد، د جمهورو او د شوافعو په نزد به خیار عتق په هغه حالت کې وي چې خاوندیې غلام وي او ښځه آزاده، او که خاوند آزاد وي نو ښځې ته به خیار عتق حاصل نه وي.

**علت د اختلاف** : د احنافو او جمهورو په مینځ کې چې کوم اختلاف دی دا د تخریج علت په وجه دی، جمهورو چې د خیار عتق دپاره کوم علت راوښکلی دی هغه دادی چې کله وینځه آزاده شي نو اوس هغه د غلام خاوند سره اوسیدل شرم ګڼي، ځکه په دواړو کې کفاءت نشته، او که خاوند آزاد وي نو بیا په کې شرم نشته ځکه چې په دې کې خیار نشته .په غلامی کې شرم دی نو هلته اختیار دی. د احنافو په نزد د خیار عتق د علت آزادی نه پس عار نشته دی بلکې د دریو طلاقو اختیار دی ځکه چې د طلاق مدار په ښځو دی که ښځه وینځه وي نو خاوند ته د دوو طلاقو حق دی (طلاق الامة اثنتان) او که ښځه آزاده وي نو خاوند ته د دریو طلاقو اختیار حاصل دی.احناف فرمائي چې د آزادۍ نه پس هغه ښځې طرف ته یو زیات دریم طلاق متوجه کیږي لهذا هغې ته ددې اضافي څیز د دفع کولو حق حاصل دی چې خیار عتق دی، دا د هغه خیار عتق علت هم دی او فائده او حکمت یې هم دی.

**د اختلاف منشاء** : په دې مسئله کې اختلاف په احادیثو مقدسو لو په راویاتو کې دی د حضرت عائشه رضي الله عنها نه دوه روایات نقل دي د یو روایت الفاظ دا دي "وکان زوجها عبدا" رواه البخاری دلته په مشکوة شریف کې دا روایت دی. په دویم روایت کې دي" وکان زوجها حرا" راوه ابو داؤد. دا روایت په بخاری کې هم دی. دحضرت عائشه رضي الله عنها شاګردان عروه، عبدالرحمن او اسود کې هم اختلاف دی، بعضو د بریرې خاوند ته حر ویلی دی او بعضو ورته غلام ویلی دی. دحضرت ابن مسعود په شاګردانو کې هم اختلاف دی په دې وجه د فقهاء کرامو د خیار عتق په مسئله کې اختلاف دی.

**دلائل** : په دې مسئله کې د حضرت بریرې حیثیت ته بنیادي ورتیا اهمیت حاصل دی. او د دلائلو مدار په دې واقعې دی چې آیا د ازادۍ په وخت کې د هغې خاوند ازاد وو او که غلام؟ که په هغه وخت هغه ازاد وو نو دا لفظ د احنافو دپاره دلیل جوړیږي، او د جمهورو خلاف دی، او که هغه وخت هغه غلام وو نو دا حدیث دجمهورو دپاره دلیل دی، لیکن د احنافو خلاف دلیل نشي جوړیدی. په دې وجه احناف د آزاد او دغلام دواړو صورتونو کې د خیار عتق منونکي دي. **دجمهورو دلائل** : جمهورو د حضرت عروه عن عائشه د روایت نه دلیل نیولی دی چې په کې **"کان زوجها عبدا"** واضح الفاظ دي، دارنګه **"ولو کان حرالم یخیر ها"** په دې الفاظو سره د مخالفو کسانو رد هم وشو، نو مسئله صفا شوه. او دبخاری او

ومسلم په روایتو کې هم دی دا نور مضبوطوالی دی، د دې وجې نه جمهورو عقلی دلیل هم پیش کړی دی چې په حقیقت کې د دې مسئلې علت طرف ته اشاره ده که چیرې خاوند غلام وي نو ښځه دهغه لاندې اوسیدل شرم محسوسوي، او که خاوند ازاد وي نو بیا څه شرم نشته، لهذا بیا ورته خیار نشته، په مسئله کې کومه خفاء نشته. (المرقات ۳۵۲/۶)

**داحنافو دلائل** : ۱. روی البخاري واصحاب السنن عن ابراهیم عن الاسود عن عائشة فی قصة بریرة وفی آخرها وکان زوجها حرا. (بحواله زجاجة المصابیح ج۲ص۳۲۸، بخاری ج۲ص۹۹۹)

۲. روی مسلم عن عبدالرحمن بن القاسم الیٰ آخر الحدیث قال القاسم و خیرت فقال عبد الرحمن وکان زوجها حرا. (زجاجه ج۲س۳۲۰)

۳. وروی ابوداؤد عن الاسود عن عائشة ان زوج بریرة کان حرا حین عتقت. (زجاجه ج۲ص۳۲۱)

۴. وفی روایة الترمذي قالت کان زوج بریرة حرا فخیرها النبی صلی الله علیه وسلم. (ایضاً)

۵. وروی ابن ماجة والنسائي عن الاسود عن عائشه انها اعتقت بریرة فخیرها النبی وکان لها زوج حر (ایضاً)

۶. وروی الطحاوی وابن ابي شیبة عن طاؤس قال للامة الخیار اذا اعتقت وان کانت تحت قرشي وفی روایة لهما عنه قال لها الخیار فی الحر والعبد. (ایضاً)

۷. وروی ابن ابی شیبة عن ابن سیرین والشعبي نحوه وفی روایة له عن مجاهد قال لها الخیار ولو کانت أمیر المؤمنین. (زجاجةالمصابیح مشکوة الحنفی ج۲ص۳۲۱)

۸. دار قطنی یو روایت نقل کړی دی "قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لبریرة ملکت بضعک فاختاري" دلته په دې روایت کې یې د خیار عتق علت بیان کړه او رسول کریم ﷺ فیصله وفرمایله چې د خاوند اعتبار نشته که هغه غلام ازاد وي او که غلام وي، شرط دادی چې ښځه د خپل اختیار مالکه شي، اوس دلته دلته مطلق ملکیت دبضع د فاختاري سبب جوړ شو. او دخاوند خیال یې نه ساته. په افسوس سره لیکلی شي چې دومره روایات دي مګر صاحب مشکوة یو هم نه دی نقل کړی.

**جواب**: دلته دا خبره ثابته شوه چې د دواړو طرفونو حدیثونه صحیح دي. جمهورو وکان زوجها عبدا اختیار کړی دی. او احنافو وکان زوجها حرا اختیار کړی دی په ظاهره د دې متعارض راویاتویو طرف ته ترجیح نه شي کیدی، نو بیا په دې روایاتو باندې عمل څنګه کولی شي نو احنافو دتطبیق صورت اختیار کړو. هغوی وفرمایل چې کله وکان زوجها حرا اختیار کړي شي نو په ټولو روایاتونو باندې به عمل وشي او داسې مونږه ازاد او غلام دوه متضاد الفاظ په یو وخت کې پرې عمل نه شو کولی بلکې

د تطبیق په غرض سره مونږه حر په یوه زمانه حمل کوو او عبد په بله زمانه حمل کوو.
نو اصولي قاعده داده، چې په حر مسلمان باندې عبدیت نه طاري کیږي او په عبد مسلمان باندې حریت طاري کیږي، او د بریرې خاوند مغیث وړومبی غلام وو روستو آزاد شو او د هغه په حق کې چې دعبدیت کوم الفاظ راغلې دي دا حکایت په ماضی او تیره شوې زمانه عمل کړی شوی دی "وکان عبدا" مخکې غلام وو او اوس د بریرې د آزادۍ په وخت نه دی نو رشتیا مخکې غلام وو.

او کوم ځای کې چې د **وکان زوجها حرا** الفاظ راغلې دي نو دا الفاظ په حالت عتق او خیار عتق باندې محمول دي، نتیجه دا چې مغیث ازاد وو او بریرې ته حضور اکرم د خیار عتق حق ورکړی وو، معلومه شوه د حر لاندې که وینزه ازاده شي نو هغې ته به هم خیار عتق حاصل وي، او عبدیت کې خویې تړول مني.
باقي جمهورو چې کوم عقلی دلیل پیش کړی دی چې دغلام لاندې د یوې ازادې ښځې د ژوند تیرول شرم دی نو دا علت بیانول صحیح نه دي، ځکه حره ابتداءً د غلام ماتحت راتلل شرم دی لیکن که چې هغه د مخکې نه د هغه په نکاح کې مستعمله او مستفرشه وي نو بیا په دیکې څه عار دی؟.

باقي د زیر نظر حدیث (**ولو کان حرًا لم یخیرها**) الفاظ د حضرت عائشه رضي الله عنها نه دي بلکه دا د عروه الفاظ دي، ځکه حضرت عائشې رضي الله عنها د مغیث د حر کیدو روایت بار بار بیان کړی دی. (المرقات ۶/۳۵۲)

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ زَوْجُ بَرِيرَةَ عبدا أسود يُقَالُ لَهُ مُغِيثٌ |
| حضرت ابن عباس وايي چې د بريرې خاوند يو تور رنگ والا غلام وو چې د مغيث په نوم به ياديده |
| كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ يَطُوفُ خلفها فِي سِكَكِ الْمَدِينَةِ يبكي وَدُمُوعُهُ |
| هغه منظر زما سترګو ته هم وړاندې دی چې هغه به بريره پسې د مدينې په کوڅو کې ګرځيده او ژړل به يې او ښکې به ئې |
| تَسِيلُ عَلَى لِحْيَتِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْعَبَّاسِ: |
| په ږيره باندې رواني وې، يوه ورځ رسول کريم صلى الله عليه وسلم حضرت عباس رضي الله عنه ته وفرمايل، |
| «يَا عَبَّاسُ أَلَا تَعْجَبُ مِنْ حُبِّ مُغِيثٍ بَرِيرَةَ؟ وَمِنْ بُغْضِ بَرِيرَةَ مغيثاً؟» |
| عباسه! تاته په دې باندې حيرانتيا نشته چې د مغيث بريره سره څومره خوښه ده او بريره د مغيث نه څومره نفرت کوي؟ |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ راجعته» فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| بيا نبی عليه السلام بريرې ته وفرمايل چه کاش تا مغيث ته رجوع کړې وې بريرې عرض وکړو اې د الله رسوله! دا ستاسو |

| |
|---|
| تَأْمُرُنِي؟ قَالَ: «إِنَّمَا أَشْفَعُ» قَالَتْ: لَا حَاجَةَ |
| حکم دی؟نبی عَلَیْهِ‌السَّلَامُ وفرمایل بریرې!دازه سفارش کومه. بریرې ورته عرض وکړو چې ده ته د رجوع کولو ماته هیڅ ضرورت نشته |
| لِي فِيهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ(۱) |
| یعنی ده سره او سیدل ماته خوښ نه دي. (بخاری) |

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنْ عَائِشَةَ: أَنَّهَا أَرَادَتْ أَنْ تُعْتِقَ مَمْلُوكَيْنِ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې هغې خپل دوه غلامان (چه د هغې په قبضه کې وو) د آزادولو اراده اوکړه |
| لَهَا زَوْجٌ فَسَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَهَا أَنْ تَبْدَأَ |
| چه هغه ښځه او خاوند وو. نو د نبی علیه السلام نه یې پوښتنه وکړه نو نبی عَلَیْهِ‌السَّلَامُ د ښځې نه مخکې |
| بِالرَّجُلِ قَبْلَ الْمَرْأَةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيّ(۲) |
| د سړي د آزادولو حکم ورکړو. (ابو داؤد ، نسائی) |

**توضیح : ان تبدا بالرجل:** حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره دوه غلامان وو چې ښځه او خاوند وو. یعنې د دواړو په مینځ کې ازدواجي رشته وه، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هغوی آزادول غوښتل نو د حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه یې تپوس وکړه رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې وړومبی سړی آزاد کړه، د دې یوه وجه داهم وه چې د سړي په آزادولو سره ښځې ته د نکاح فسخ کولو اختیار حاصل نشي.

بقاء د نکاح د انقطاع د نکاح نه اولی ده. دویمه وجه دا کیدی شي چې عموماً سړی وینزې په نکاح کې ساتي لیکن ښځه چې کله آزاده شي نو غلام خاوند سره په اوسیدو شرم محسوسوي په دې وجه د سړي مخکې د آزادولو حکم وشو.

دریمه وجه دا کیدې شی(الرجال قوامون علی النساء) (نساء ۲۴) د فضلیت خیال ساتلی شوی دی.( المرقات ۳۵۳/۶)

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۹/۴۰۸ رقم الحدیث ۵۲۸۳ وأبوداؤد في السنن ۲/۶۷۰ رقم الحدیث ۲۲۳۱ والترمذی في ۳/٤٥۱ رقم الحدیث ۱۱۵۵ والداری في ۲/۲۲۳ رقم الحدیث ۲۲۹۲ وأحمدفي المسند۱/۲۱۵

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۷۳ رقم الحدیث ۲۲۳۷ والنسائی في ۶/۱۶۱ رقم الحدیث ۳۴۳۶ وابن ماجه في ۲/۸۳۶ رقم الحدیث۲۵۳۲

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْهَا: | أَنْ | بَرِيرَةَ | عَتَقَتْ | وَهِيَ | عِنْدَ | مُغِيثٍ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وايي چې بريره په داسې حال كې آزاده شوې وه چې د مغيث په نكاح كې وه، | | | | | | |
| فَخَيَّرَهَا | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | وَقَالَ لَهَا: |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغې ته د خپلې نكاح قائم ساتلو يا د فسخ كولو اختيار وركړو. ليكن دائې هم ورته وفرمايل كه ستا خاوند تا سره جماع وكړه | | | | | | |
| «إِنْ | قَرِبَكِ | فَلَا | خِيَارَ | لَكِ». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[1] |
| نو بيا به تا سره دا اختيار نه وي. په دې صورت كې به بيا دا خيال وي چې ته د هغه په زوجيت راضي يې. (ابو داؤد) | | | | | | |

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۷۳ رقم الحديث ۲۲۳۶

# بَاب الصَدَاق
## دمهر بيان

قال الله تعالى : ((وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا بِأَمْوَالِكُمْ))(سورة نساء ۲۴) وقال الله تعالى: ((قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِيٓ اَزْوَاجِهِمْ))( سورة نساء ۲۴) وقال الله تعالى ((وَاٰتَيْتُمْ اِحْدٰهُنَّ قِنْطَارًا)) (سورة نساء ۲۰) وقال الله تعالى((وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحْلَةً))( سورة احزاب ۵۰)

**صداق:** بروزن کتاب دښځې مهر ته وايې او ددې جمع صُدُق دی د کُتُب پشان رائحي، په صداق کې د صاد کسره ډيره فصيحه او فتحه هم مشهوره ده.ملا علی قاری فرمايې چې مهر ته صداق دې دپاره وايې "لانه يظهر به صدق ميل الرجل الی المرأة"

**المهر** ورته هم په عربي کې وايې چې جمع يې مهورده.( المرقات ۶/۳۵۵)

د خاوند له طرفه د ښځې په حقوقو کې چې کوم بدل ورکولی شي هغه مهردی، دنکاح دپاره مهر ضروري دی دې نه بغير نکاح صحيح نه ده که تذکره ونه کړي نو مهر مثل لازم شو نکاح صحيح ده.

مهر، خالص د ښځې حق دی کوم خلق چې دلور يا خور په نوم کوم مهر وصول کړي او بيايې په خپل کار کې راولي دا دښځو په حق کې ډير ظالم خلق دي او ډيره د بې شرمۍ خبره ده چې لورياني خرڅوي په علماو باندې دا فرض دي چې ددې خلاف خبره کوي.حضرت شاه ولی الله د مهر د حکمتونو متعلق په حجة الله البالغة کې ليکلې دي چې نکاح د يو نظم، ضبط او د جوړښت او ترتيب نوم دی او دښځې او خاوند په مينځ کې يودائمي معاونت او نصرت او د مدد نوم دی.ددې جوړښت او نظم او ضبط په نظر کې ساتلو د وجې مهر مقرر شو چې خاوند بلاضرورته ددې نظم په ماتولو کې دخپل مال دضائع کولو خطره محسوس کړي، مهر مقررول د نکاح د مضبوطتيا دپاره ضروری دی،په دې کې دويم حکمت دادی چې مهر سره د نکاح عظمت پيدا کيږی، خلقو کې په طبعی طور باندې د مال لالچی دی نو کله چې يو سړی د ملک بضعي په مقابل کې ورکوی نو د اخستلو والا اورد ورکولو والا په سترګو کې د نکاح عظمت پيدا کيږي او دجينۍ کور والا هم خوشحاله شي چې په مفتو کې زمونږ دلور څوک مالک نه دی.دريم حکمت دا دی چې مهر مقررولوسره په زنا او نکاح کې فرق پيدا شي، چونکه د خلکو عادت او د هغوی د حرص درجات دارنګه د انسانانو طبقات مختلف دي د دې وجې نه شريعت کوم کس په لږ يا ډير مهر ورکولو باندې نه دی پابند کړی.

# دمهر مسئله

## اَلْفَصْلُ الأول

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ: |
| حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ورځ د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې يو ښځه حاضره شوه |
| يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي وَهَبْتُ نَفْسِي لَكَ فَقَامَتْ طَوِيلًا |
| او عرض يې وكړه يا رسول الله ما خپل ځان ستاسو دپاره وقف كړو دا چې يې ووېل نو هغه ښځه ډېر وخته پورې ولاړه وه |
| فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د خبرې جواب ورنه كړو او خاموش وو. يو صحابي ودريدو او عرض يې وكړو يا رسول الله! |
| زَوِّجْنِيهَا إِنْ لَمْ تَكُنْ لَكَ فِيهَا حَاجَةٌ فَقَالَ: |
| كه تاسو ته د دې ښځې ضرورت نه وي نو د دې نكاح زما سره وكړئ نبي عليه السلام ترې نه تپوس وكړو |
| «هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ تُصْدِقُهَا؟» قَالَ: مَا عِنْدِي إِلَّا إِزَارِي هَذَا. |
| چې تا سره څه داسې څيز شته چې ته يې د دېته په مهر كې وركړې، هغه عرض وكړو چې ما سره د دې لنگ نه سوا بل څيز نشته |
| قَالَ: «فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ» فَالْتَمَسَ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمايل چې لاړ شه او يو څه تالاش كړه اگر كه د وسپنې يوه گوته ولې نه وي، صحابي ډېر تالاش وكړه |
| فَلَمْ يَجِدْ شَيْئًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَلْ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْءٌ» |
| خو څه ورته ملاو نه شو بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام ترې نه تپوس وكړو چې تا له د قرآن څه حصه په ياد وه درځي؟ |
| قَالَ: نَعَمْ سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا فَقَالَ: «زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ |
| هغه عرض وكړه او فلاني فلاني سورتونه راته ياد دي نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل په قرآن كې چې تا ته څه ياد دي |
| مِنَ الْقُرْآنِ». وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: «انْطَلِقْ |
| د هغې په بركت ما ستا نكاح د دې ښځې سره وكړه او په يو روايت كې دا دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې |

فَقَدْ زَوَّجْتُكَهَا فَعَلِّمْهَا مِنَ الْقُرْآنِ» متفق عليه (صَحِيح)[1]

ما ستا نکاح دې ښځې سره وکړه ته دې ته د قرآن تعليم ورکوه. (بخاری، مسلم)

**توضيح**: دمهر مقدار څومره پکار دی په دې کې د علماء کرامو اختلاف دی:

**د مهر په مقدار کې د فقهاؤ اختلاف**: په دې خبره ټول فقهاء متفق دي چې د مهر دپاره څه حد مقرر نه دی بلکه قرآن عظيم کې الله تعالی د **"قنطارا"** ذکر فرمايلی دی، اگر چې مستحب دي چې مهر نه دومره زيات وي چې خلق دنکاح کولو نه عاجز شي او د مهر لاندې گير شي. البته د مهر په اقل کې اختلاف دی. د امام مالک په نزد مهر کم ازکم ربع دينار دی. د امام شافعی او امام احمد بن حنبل رحمهما الله په نزد د اقل د مهر څه حد نشته بلکې زوجين چې په څه راضي شي هغه درست دی، د دوی په نزد باندې نکاح د بيع او شراء په رنگ معامله ده مال غواړي کم وي او که زيات وي، چې ښځه او خاوند راضي وي د قاضي څه کار دی. امام ابو حنيفه فرمائي چې اقل د مهر لس درهمه دي ددېنه کم جائز نه دی. دا آخری حد دی. (المرقات ۶/۳۵۶)

**دلائل**: دامام مالک دليل حديث المجن دی د رسول کريم ﷺ په زمانه کې **"ثمن المجن"** باندې نکاح شوې ده، او د ډال قيمت ربع دينار وو. دامام مالک دليل حد سرقه او د قطع د يد نه دی، فرمايي چې لاس د ربع دينار په بدله کې دغلا په صورت کې کټ کولی شي نو د يوې عضوې قيمت ربع دينار دی دلته په نکاح کې ملک بضعه هم عضو دی ددې بدله هم ربع دينار پکار دی.

د امام شافعی او احمد بن حنبل دلائل هغه احاديث دي په کوم کې چې د **شئ قليل من المال** ذکر دی څنگه چې د بخاری په يو روايت کې دي **"ولوخاتما من حديد"** په يو روايت کې "ستو" ذکر هم راغلی دی "د چهوارو" ذکر هم شته، يو کې "نعلين" هم ذکر دي لهذا د مهر حد نشته.

امام ابو حنيفه رحمه الله د قرآن کريم د **«قد علمنا ما فرضنا عليهم في ازواجهم»** (سورة احزاب ۵۰) نه دليل نيولی دی او دليل په دې طرز دی چې الله تعالی کوم څه مفروض او مقرر فرمايلي دي ددې معتد ب **المعين** مقدار پکار دی او داسې په ايت **«ان تبتغوا باموالكم»** (سورة نساء ۲۴) په دې کې هم د يو معين مقدار تقاضا کوي دا مقدار ضرور معلومول پکار دي، ددې ايت په تفصيل کې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه هغه حديث راغلی دی چې دار قطني او بيهقي نقل کړی دی **"لامهر دون عشرة دراهم"** په دې

---

[1] أخرجه البخاری في صحيحه ۹/۱۹۰ رقم الحديث ۵۱۳۵ ومسلم في ۲/۱۰۴۰ رقم الحديث (۱۴۲۵.۷۶) وأبوداؤد رقم الحديث ۲۱۱۱ والترمذي ۳/۴۲۱ رقم الحديث ۱۱۱۴ والنسائی في ۶/۱۱۳ رقم الحديث ۳۳۳۹ وابن ماجه في ۱/۶۰۸ رقم الحديث ۱۸۸۹.

دوا ړو کتابونو کې د حضرت علي رضي الله عنه روایت هم دی **"ولایکون المهر اقل من عشرة دراهم"** اګر چې په دې راویاتو کې انفرادي طور باندې ضعف دی لیکن د کثرت طرقو په وجه سره درجې د حسن کم نه دی. ابن ابی حاتم د حضرت جابر بن عبد الله نه دا حدیث نقل کړی دی **"قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لامهر اقل من عشرة دراهم** دې روایت ته ابن حجر رحمه الله حسن ویلی دی.( المرقات ۳۵۶/۶)

**جواب** د امام مالک مستدل زمونږ خلاف نه دی ځکه په ابتدائي دور کې ربع دینار یا ثمن د مجن دا ځیزونه د لسو درهمو برابر وو او د قطع د ید مسئله خو مونږه هم عقلي دلیل دپاره پیش کوو ځکه چې هلته د لسو دراهمو ذکر دی او دلته ربع دینار دی. د امام شافعي او احمد بن حنبل د مستدلاتو جواب دادی چې په کومو احادیثو کې دکم مهر د ورکولو ذکر راغلی دې دی نو د هغې نه مهر معجل مراد دی او د عربو عام عادت وو چې په وړومبې ملاقات کې به یې ښځې له د تحفې په طور ورکوه چې د مهر نه علاوه دمغ کتلو تحفه به وه یا به د مهر حصه وه، څنګه چې حضرت علي رضي الله عنه حضرت فاطمې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا یو مقدار ورکړی وو او مهرېې جدا مقرر کړی وو، دویم جواب دادی چې دا د هغه وخت خبره ده چې د مهر حد نه وو مقرر شوی او دا وجه ده چې احادیثو کې تعلیم قرآن په مهر کې شمار شوی دی حالانکه هغه مال نه دی.

**زوجتکها بما معک من القرآن:** د حدیث ددې لفظ نه په ظاهره دا معلومیږي چې تعلیم قرآن یې مهر مقرر کړه. امام شافعي او احمد بن حنبل رحمهما الله دا جائز ګڼلی دی، خو دامام مالک او امام ابو حنیفه په نزد دا جائز نه دی هغوی فرمائي چې داسې کولو سره مهر مثل لازمیږي.( المرقات ۳۵۶/۶) د اسلام په ابتدائي زمانه کې رسول کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرآن د زندګئ په هره شعبه کې عام کول غوښتل دې لپاره کله به ئي په یوه محله کې هغه کس امام کړه چې چاته به قرآن ډیر ورته، هغه دې وړوکی ماشوم ولې نه وو. او جهاد د پاره به یې چې کوم امیر جوړولو نو هغه به یې جوړولو چا ته به چې قرآن ډیر حفظ وو. او داسې په اجتماعي قبر کې به یې هغه کس قبلې طرف ته کیخودلو چې چاته به قرآن زیات حفظ وو، د قرآن په وجه د مهر نه بغیرېې د هغه چا نکاح کړې وه چا سره به چې مال د سره نه وو، ګویا چې دا د مهر مقررولو طریقه نه وه بلکه د قرآن عام کولو یو اعزاز وو، ددې نه دا هم معلومه شوه چې د نکاح دپاره مهر ضروري دی، بغېر د مهر نه نکاح جائز نه ده صرف د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دپاره جائز وه. **"خالصةً لک من دون المؤمنین"** که د مهر نه انکار نه وو او د نکاح په وخت تذکره هم نه وه نو نکاح صحیح ده او مهر مثل به ورکوي. مهر مثل د پلار دخاندان د جینکو د مهر په شان وي، ددې حدیث نه د اشارې په طور معلومیږي چې تعلیم قرآن د هغه کس دپاره د مجبورۍ مهر جوړیدی شي چا سره چې د وسپنې یوه ګوتمه هم نه وي په دنیا کې داسې کس څوک کیدی شي چې دا یو نادر صورت دی. **"والنادر کالمعدوم"** همدا رنګې په سنن د سعید

بن منصور کې دارنګه يو حديث هم شته: (عَن اَبي النعمان الازدي قال زوج رسول الله صلى الله عليه وسلم امرأة على سورة من القرآن ثم قال لا يكونُ لاَحدٍ بعدک مهرًا) مشكوة الحنفي ج۲ص۳۵، مشكوة شريف کې په روايت د مكحول سره نقل دي (انه كان يقول ليس ذلک لاَحدٍ بعدَ رسولِ الله صلى الله عليه وسلم) معلومه شوه چې دا پيغمبري خصوصيت وو.

## د ازواجو مطهراتو د مهر مقدار

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ: كَمْ كَانَ صَدَاقُ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه تپوس وکړو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپلو بيبيانو له څومره مهر مقرر |
| قَالَتْ: كَانَ صداقه لأزواجه اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أُوقِيَّةً وَنَشٌّ |
| کړې وو؟ حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې حضور خپلو بيبيانو له دولس اوقيې او نش مهر مقرر کړې وو |
| قَالَتْ: أَتَدْرِي مَا النَّشُّ؟ قُلْتُ: لَا قَالَتْ: |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تپوس وکړو پوهيږې نش څه ته وايي؟ ما عرض وکړو نه. هغوی وفرمايل چې يو |
| نِصْفُ أُوقِيَّةٍ فَتِلْكَ خَمْسُمِائَةِ دِرْهَمٍ. |
| نش د نيمې اوقيې برابر وي او داسې دولس اوقيې د يو نش مجموعي مقدار پنځه سوه درهمو برابر وي |
| رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَنَشٌّ بِالرَّفْعِ فِي شَرْحِ السنة وَفِي جَمِيعِ الْأُصُولِ[1] |
| (او يو اوقيه د څلويښتو درهمو برابر وي) دا روايت مسلم نقل کړی دی. |

**توضيح: ثنتى عشرة اوقية ونش:** داوقيه جمع اواق دی. يو اوقيه څلويښت درهمه وي او "نش" نيمه اوقيه وي. يعنې شل دراهم نش دی نو د دولس نيمو اوقيو نه پنځه سوه دراهمه جوړ شول، د عامو ازواجو مطهراتو مهر هم دومره وو او په عامو روايتونو کې هم د دې ذكر ملاويږي، دام حبيبه مهر څلور زره دراهمه وو خو هغه د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له طرفه د حبشې بادشاه نجاشي مقرر کړی وو او اداء کړی يې هم وو. لهذا ددې روايت ددې سره څه تعارض نشته دې. (المرقات ۳۵۸/۶)

نن سبا درهم کوم چې په متحده عرب اماراتو کې دی د يو درهم نه پاکستاني ۱۶ روپۍ جوړيږي نو دې حساب سره پنځه سوه دراهم اته زره روپۍ شوې او لس دراهم يو سل شپيته روپۍ جوړيږي،

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۴۲ رقم الحديث (۷۸-۱۴۲۶) وأبوداؤد في السنن ۲/۵۸۲ رقم الحديث ۲۱۰۵ وابن ماجه في ۱/۶۰۷ رقم الحديث ۱۸۸۶ والدارمي في ۲/۱۸۸ رقم الحديث ۲۱۹۹

ددې خيال ساتل پكار دي چې د لسو دراهمو نه مهر كم نه شي لس دراهم غالباً دوه نيمې تولې د چاندۍ وزن برابر وي، په مظاهر حق كې يې ليكلې دي چې د پنځه سوه درهمو چاندۍ مقدار يو كلو پنځه سوه ديرش گرامه وي او د نن سبا د نرخ مطابق ددې قيمت تقريباً ۹۱۸ روپۍ دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## دزيات مهر ممانعت

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: أَلَا لَا تُغَالُوا صَدُقَةَ النِّسَاءِ |
| دحضرت عمر باره كې نقل دي چې هغوی وفرمايل چې خبردار! ښځو له زيات مهر مه وركوئ |
| فَإِنَّهَا لَوْ كَانَتْ مَكْرُمَةً فِي الدُّنْيَا وَتَقْوَى عِنْدَ اللهِ |
| كه زيات مهر په دنيا كې د بزرگۍ او د عظمت سبب او د الله تعالى په نزد باعث د تقوى وی نو يقينا |
| لَكَانَ أَوْلَاكُمْ بِهَا نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عَلِمْتُ |
| رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ددې زيات مستحق وو (چه زيات مهر يې وركړی وی) خو ماته علم نشته |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَكَحَ شَيْئًا مِنْ نِسَائِهِ وَلَا أَنْكَحَ شَيْئًا |
| چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلو بيبيانو سره د دولس اوقيو نه زيات مهر باندې نكاح كړې وی يا ددې نه زيات مهر |
| مِنْ بَنَاتِهِ عَلَى أَكْثَرَ مِنَ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أُوقِيَّةً. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهُ وَالدَّارِمِيُّ[1] |
| باندې يې د خپلو لوريانو نكاح كړې وي. (روايت كړې دې احمد، ترمذی، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه، دارمی) |

**توضيح: لاتغالوا:** د حضرت عمر ددې فرمان مطلب دا دی چې افضل ده چې مهر كم نه كم وي او چې په ديكې زيات تجاوز نه وي، ددې مطلب دا نه دی چې دولس اوقيو نه زيات جائز نه دی جواز دزيات هم دی. باقي دا اعتراض كول نه دي پكار چې حضرت عمر د دولس اوقيو ذكر كړی دی او حضرت عائشې د يو نش اضافې سره بيان كړی دی د دې وجې نه حضرت عمر خپل بيان كې كسر پريخودی دی ځنګه چې عربو پريخودو او حضرت عائشې بيان كړی دی، يا دحضرت عمرد علم مطابق داسې وو هغه د خپلو معلوماتو مطابق بيان كړی دی، كوم تعارض نشته دی. (المرقات ۳۵۹/۶)

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۸۲ رقم الحديث ۲۱۰۶ والترمذي في السنن ۳/۴۲۲ رقم الحديث ۱۱۱٤ والنسائی فی ٦/۱۱۷ رقم الحديث ۳۳٤۹ وابن ماجه في ۱/٦۰۷ رقم الحديث ۱۸۸۷ والدارمي في ۲/۱۹۰ رقم الحديث ۲۲۰۰

## د مهر څه حصه زر ور کول بهتر دي

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ أَعْطَى فِي صَدَاقِ امْرَأَتِهِ |
| حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چه كوم كس خپلې ښځې له په مهر كې |
| مِلْءَ كَفَّيْهِ سَوِيقًا أَوْ تَمْرًا فَقَدِ اسْتَحَلَّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| (څه حصه په طور د مهر معجل ور كړه) مثلاً د لپې برابر ستوان يا كهجورې يې ور كړې نو هغه د غه ښځه په ځان حلاله كړه. |
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ: أَنَّ امْرَأَةً مِنْ بَنِي فَزَارَةَ تَزَوَّجَتْ عَلَى نَعْلَيْنِ |
| حضرت عامر بن ربعيه وايي چې د قبيلې د بني فزاره يوې ښځې په يوه جوړه څپلو نكاح وكړه |
| فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَرَضِيتِ مِنْ نَفْسِكِ وَمَالِكِ بِنَعْلَيْنِ» |
| نبي عليه السلام ورته وفرمايل تا د خپلې مالدارۍ باوجود د يوې جوړې څپلو په بدل كې خپل ځان بل ته حواله كړو او ته پرې راضي |
| قَالَتْ: نَعَمْ. فَأَجَازَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2] |
| شوې؟ هغې ښځې عرض وكړو او زه په دې راضي يم نبي عليه السلام دې جواب اوريدو سره هغه جائز كړه. (ترمذى) |

**توضيح : نعلين:** د دې نه مراد هغه مهر معجل او مهر على الفور په طور د تحفه دى، يا د مهر څه حصه يې زر وركړه هغه مراد دى، يا دا ښځه د مهر مقرر كولو نه پس د خپل حق نه د دوه څپلو په بدله كې رستو شوه، يا څپلې هم مختلفې وي، په نوم اخستلو كې د څپلو لفظ راغلى دى ليكن بعضې څپلې دلسو دراهمو وي او بعضې د سلو دراهمو نه هم زياتې قيمتي وي، دا روايت د شوافعو د پاره قطعي دليل نه دى، او دا روايت ضعيف هم دى. (المرقات ۶/۳۶۱)

## د مهر مثل واجب كيدو يو صورت

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ عَلْقَمَةَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ: أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ تَزَوَّجَ |
| حضرت علقمه، د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه باره كې نقل كوي چې د هغه نه د يو داسې كس باره تپوس وشو چې هغه د يوې ښځې |

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۵۸۵ رقم الحديث ۲۱۱۰ وأحمد في المسند ۳/۳۵۵ رقم الحديث ۳۲۰۶ أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۲۰ رقم الحديث ۱۱۱۳ وابن ماجه في ۱/۶۰۸ رقم الحديث ۱۸۸۸ وأحمد في المسند ۳/۴۴۵

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۲۰ رقم الحديث ۱۱۱۳ وابن ماجه في ۱/۶۰۸ رقم الحديث ۱۸۸۸ وأحمد في المسند ۳/۴۴۵

| |
|---|
| امْرَأَةً وَلَمْ يَفْرِضْ لَهَا شَيْئًا وَلم يدْخل بهَا حَتَّى مَاتَ |
| سره نکاح وکړه او دهغې څه مهریې هم مقرر نه کړو او جماع ئې هم ورسره ونه کړه او هغه کس وفات شو ابن مسعودؓ دیوې میاشتې پورې |
| فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ: لَهَا مِثْلُ |
| پدې مسئله غور او فکر کولو بیا د خپل اجتهاد په بنیاد باندې یې وفرمایل چه دې ښځې ته به مهر ملاویږي، څنګه چې د هغوی |
| صَدَاقِ نِسَائِهَا. لَا وَكْسَ وَلَا شَطَطَ وَعَلَيْهَا |
| په خاندان کښې ښځو له ورکړی شوی دی، نه به پدې کې څه کمی وي او نه به پکې څه زیاتې کیږي او په هغې ښځې باندې |
| الْعِدَّةُ وَلَهَا الْمِيرَاثُ فَقَامَ مَعْقِلُ بْنُ سِنَانٍ الْأَشْجَعِيُّ |
| د خاوند د وفات عدت هم واجب دی او هغې ته به میراث هم ملاویږي، حضرت معقل بن سنان اشجعي چې دا واوریدل |
| فَقَالَ: قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بِرْوَعَ بِنْتِ وَاشِقٍ امْرَأَةٍ |
| نو ودریده او عرض یې وکړه چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ په خاندان کې دیوې ښځې بروع بنت واشق باره کې داسې حکم |
| مِنَّا بِمِثْلِ مَا قَضَيْتَ. فَفَرِحَ بِهَا ابْنُ مَسْعُودٍ. |
| کړی وو، کوم چې په هغه وخت کې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیان کړی دی حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې دا واوریدل نو ډیر خوشحاله شو. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ والدارمي[1] |
| (روایت کړې دې ترمذی، ابوداؤد، دارمی) |

**توضیح: مثل صداق نسائها:** د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د نورو صحابه کرامو مسلک دی چې کله د یوې ښځې مهر مقرر شوی نه وي او خاوند ورسره جماع هم نه وي کړې صرف نکاح شوې وي او بیا د خاوند انتقال وشو نو په دې صورت کې به ښځې ته مهر نه ملاویږي، خو عدت به تیروي او میراث به ورته ملاویږی، حضرت ابن مسعود دا فیصله واورله چې دې ښځې ته به مهر مثل ملاویږي دا هغوی د خپل علمی مهارت په بنیاد فیصله کړې وه په دې یو صحابی پاڅیدو او ګواهي یې ورکړه چې حضور هم د یوې ښځې باره کې داسې فیصله کړې وه په دې باندې ابن مسعود ډیر خوشحاله شو چې فیصله یې درسته وه او الله تعالی ئې رهنمائي وکړه. دې واقعې سره د حضرت ابن مسعود شخصیت نور هم زیات شو. د حضرت ابن مسعود باره رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "رضیت

---

(۱) أخرجه أبوداؤد فی السنن ۲/۵۸۹ رقم الحديث ۲۱۱۵ والترمذي في ۳/۴۵۰ رقم الحديث ۱۱۴۵ والنسائی في ۶/۱۲۱ رقم الحديث ۳۳۵۵ وابن ماجه في ۱/۶۵۹ رقم الحديث ۱۸۹۱ والدارمي ۲/۲۰۷ رقم الحديث ۲۲۴۶ وأحمد في المسند ۱/۲۷۹

لامتي ما رضي لها ابن ام عبد" دا معمولي اعزاز نه دی بلکه د دواړو جهانونو اعزاز دی. په کوم چه حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوره او ختلو. (المرقات ٦/٣٦٢)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## دام المومينن ام حبيبه رضي الله عنها مهر

| |
|---|
| ﴿٧﴾ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ: أَنَّهَا كَانَتْ تَحْتَ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَحْشٍ |
| ام المؤمنين حضرت ام حبيبه باره کې منقول دي چې دا مخکې د عبد الله بن جحش په نکاح کې وه کله چې په |
| فَمَاتَ بِأَرْضِ الْحَبَشَةِ فَزَوَّجَهَا النَّجَاشِيُّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ملک حبشه کې د عبد الله انتقال وشو نو د حبشې بادشاه دهغې نکاح د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وکړه |
| وَ أَمْهَرَهَا عَنْهُ أَرْبَعَةَ آلَاف. وَفِي رِوَايَةٍ: أَرْبَعَةَ آلَاف دِرْهَمٍ |
| او نجاشي د حضور له طرف ام حبيبې ته په مهر کې څلور زره ورکړې او بل يو روايت کې د څلورو زرو درهمو |
| وَبَعَثَ بِهَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ شُرَحْبِيل بن حَسَنَةَ. |
| الفاظ دي او نجاشي رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته او ليږله د نکاح نه پس ام حبيبه د شرحبيل بن حسنه سره |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ (صَحِيح)[1] |
| (روايت کړې دې ابو داؤد، نسائی) |

**توضيح**: د حضرت ام حبيبې د وړومبني خاوند نوم عبيد الله بن جحش وو د مشکوة په ټولو نسخو کې عبد الله بن جحش ليکلی دی او دا غلطه ده، ځکه عبد الله بن جحش په احد کې شهيد شوی دی نن سبا دهغه قبر د حضرت حمزه او حضرت مصعب بن عمير سره دی، زيارت کولو والاو ته دا دعوت ورکوي چې:

لئے پھرتی بلبل چونچ میں گل      شہید ناز کی تربت کہاں ہے

د حضرت ام حبيبې اصلي نوم "رمله" وو دا د حضرت ابو سفيان بن حرب لور وه او د حضرت معاويه خور وه وړومبی د دې نکاح عبيد الله بن جحش سره شوې وه، عبيد الله اسلام قبول کړه او بيا يې د مکې نه حبشې ته هجرت وکړو حضرت ام حبيبه ورسره وه په حبشه کې عبيد الله مرتد شو او عيسائيت يې قبول کړو او هم هلته مړ شو، حضرت ام حبيبه په اسلام ثابت قدمه وه. حضور اکرم د يو قاصد په ذريعه نجاشي ته پيغام ورواستولو چې د حضور اکرم نکاح د ام حبيبې سره وکړي، نجاشي د

---

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ٢/٥٨٣ رقم الحديث ٢١٠٧ والنسائي في ٦/١١٩ رقم الحديث ٣٣٥٠.

خپلې نوکرۍ په ذریعه ام حبیبه ته پیغام ورولیږلو، ام حبیبه په خوشحالۍ قبوله کړه او پیغام راوړلو والا له یې دوه کړۍ او یوه ګوتمه ورکړه او خپل یو رشته دار حضرت خالد بن سعید یې د خپل نکاح وکیل مقرر کړه. کله چې د ماښام وخت شو نونجاشي حضرت جعفر طیار او هغه ټول صحابه کرام چې په حبشه کې وو په محفل نکاح کې دشمولیت دعوت ورکړو کله چې ټول مسلمانان جمع شول نو نجاشي بادشاه پخپله د نکاح خطبه داسې ولوستله:

(الحمدُ لله الملكِ القدوس السلامِ المؤمن المهيمن العزيز الجبار أشهدُ أن لا إله إلا الله و أن محمدًا عبده ورسوله أرسله بالهدى و دين الحق ليظهره على الدين كله ولو كره المشركون).

بیا نجاشي وفرمایل چې ما د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم قبول کړه او ما څلور زره دیناره مهر مقرر کړه، دې نه پس حضرت خالد بن سعید دتوحید او رسالت خطبه ولوستله او بیایې وفرمایل ماد رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم تعمیل وکړه او ما د ابوسفیان د لور ام حبیبې نکاح د حضور اکرم سره وکړه، الله تعالی دې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دا نکاح مبارکه کړي. کله چې مجلس ختم شو نو نجاشي وفرمایل چې تاسو ټول کینئ او طعام اوخورئ ځکه چې د نکاح نه پس طعام خوړل د انبیاء کرامو سنت عمل دی، ټولو طعام وخوړلو دا واقعه د اوم ۷ هجري ده. (المرقات ۳۶۳،۳۶۴/۶)

## د مشروط اسلام بیان

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: تَزَوَّجَ أَبُوطَلْحَةَ أُمَّ سُلَيْمٍ فَكَانَ صَدَاقُ مَا بَيْنَهُمَا الْإِسْلَامَ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ابو طلحهؓ کله ام سلیم سره نکاح وکړه نو د اسلام قبلول د دواړو په مینځ کې مهر مقرر شوی وو. |
| أَسْلَمَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ قَبْلَ أَبِي طَلْحَةَ فَخَطَبَهَا |
| ام سلیمؓ د ابو طلحهؓ نه مخکې اسلام قبول کړی وو کله چې ابو طلحه ام سلیمؓ ته د نکاح پیغام ورولیږلو |
| فَقَالَتْ: إِنِّي قَدْ أَسْلَمْتُ فَإِنْ أَسْلَمْتَ نَكَحْتُكَ |
| نو ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته وویل چې ما خو اسلام قبول کړی دی که ته هم مسلمان شې نو زه به تا سره نکاح وکړم |
| فَأَسْلَمَ فَكَانَ صداق مَا بَينهمَا. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1] |
| او ستا نه به مهر هم نه اخلم. ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اسلام قبول کړه او اسلام قبلول مینځ کې مهر شو. (نسائی) |

**توضیح**: "فكان صداق ما بينهما" یعنې اسلام د دواړو په مینځ کې مهر جوړ شو. اسلام او تعلیم قرآن د شوافعو په نزد یو څیز دی لهذا د هغوی په نزد دواړه مهر جوړیدی شي، د احنافو په نزد تعلیم

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۶/۱۱۴ رقم الحديث ۳۳۴۰

د قرآن اواسلام وغيره طاعات چونكه مال نه دی او دمهر باره كې واضح ايت دی (ان تبتغوا بأموالكم) لهذا دا څيزونه مهر نه شي جوړيدی.دحضرت ابو طلحه معامله ډيره مخكې ده بلكې داشې معلوميږي چې دهغه اسلام د هجرت نه مخكې وو مختصر واقعه داسې ده چې ام سليم وړومبی د مالك بن نضر په نكاح كې وه چې دې نه حضرت انس پيدا شوی وو مالك د اسلام قبلولو نه مخكې قتل شوی وو، حضرت ام سليم اسلام قبول كړه ابو طلحه ورته د نكاح پيغام وروليږه حضرت ام سليم دا شرط ولګولو كه ته اسلام قبول كړې نو زه به تا سره نكاح وكړم، ابو طلحه اسلام قبول كړه او د دواړو نكاح وشوه او مهر د اسلام قبلول وو.اوس احناف د دې جواب داسې وركوي چې مهر خو مخكې مقرر شوی وو ليكن ام سليم د خپلې وعدې مطابق د ابوطلحه داسلام په وجه خپل حق مهر معاف كړه نو اسلام د مهر معاف كولو ذريعه جوړه شوه.(المرقات ۶/۳۶۵،۳۶۴)

دويم جواب هم دغه دی كوم چې پورته ليكلی شوی دی، چې دا واقعه د هجرت نه مخكې وه چې كوم وخت كې د مهر متعلق ايت نه وو نازل شوی ابو طلحه خو بيعت عقبه په وخت مسلمان شوی وو او مهر باره كې ايت په مدينه منوره كې نازل شوی دی.لهذا دا ضابطه مهر نه مخكې واقعه ده، دارنګه دا يوه جزئي واقعه ده په كومه كې چې ډېر احتمالات دي، معلومه نده چې صحيح صورت حال څه دی دېته د ضابطې لاندې كتل پكار دي نه دا چې ضابطه جوړه كړی شي.

**سوال** : يو مشهور اعتراض هم دی چې د مهاجر ام قيس هجرت په نكاح سره مشروط كولو په وجه باطل شو نو اسلام دابو طلحه د نكاح سره مشروط شوه نو دا باطل ولې نه شو؟

**جواب** : جواب يې دا دی چې هجرت يو راتلونكی څيز دی په دې كې امتداد نشته كله چې هجرت مكمل شو په هغه وخت په دې كې اخلاص نه وو او د مكمل كيدو نه پس د اخلاص ګنجائش پاتې نه شو په هجرت كې امتداد نشته ليكن اسلام يو ممتد عمل دی كه نن په كې اخلاص نه وي نو سبا ته به راشي، ابو طلحه اګر چې د واده په غرض اسلام قبول كړی وو ليكن د نكاح نه پس په اسلام كې يې اخلاص راغی او په ربښتيني زړه كې يې د اسلام ګنجائش باقي پاتې شو لهذا په دې كې او هجرت كې فرق دی.

دا سوال او جواب مشكوة جلد اول حديث "انما الاعمال بالنيات" كې په تفصيل سره ذكر شوی دی.

# بَابُ الْوَلِيمَةِ
## دعوت ولیمه

د ولیمې جمع ولائم ده. ولم یلم ولما د جمع کیدو او یو ځای کیدو په معنی سره راځي ولائم هغه خوراکونو ته وایې چې د جاهلیت په زمانه کې به د غم یا خوشحالۍ په موقع پیش کولی شو. د عربو خلق ټولو ته ولائم وائي بیا اضافت سره به خاص کولی شو، مثلا ولائم العرس ولائم الخرس وغیره وغیره. نن سبا ولیمه صرف د ښادۍ د خوراکونو پورې خاص شوی دی. شریعت کې د ولیمې لفظ د ښادۍ او نکاح دپاره استعمال شوی دی. فقهاء کرام فرمایې چې ولیمه هغې خوراک ته وایې چې د شب زفاف نه پس یعني د ښځې او د خاوند د ملاویدو نه پس ورکولی شي. د ولیمې اصل سنت دا دی چې د ښځې او خاوند د ملاویدو نه پس وي، او که ملاقات نه وي شوی نو کم از کم نکاح شوې وي که د نکاح نه مخکې یو سړی ولیمه وکړي نو دا ولیمه سنت نه ده بلکې دا صرف دعوت دی.
په اسلام کې دعوت ولیمې ته بعضو واجب، بعضو ورته سنت مؤکده او بعضو ورته مستحب ویلی دی. رحمة الامة فی اختلاف الائمة یو مستند کتاب دی په هغې کې لیکلي دي **ولیمة العرس سنة علی الراجح من مذهب الشافعي و مستحبه عند الثلاثه**"(ص ۲۱۴) کومو حضراتو اهل ظواهرو وغیرو چې ولیمه واجب کړې ده هغوی "**أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ**" د امر صیغې ته کتلي دي. "**الولیمة حق**" الفاظو ته یې کتلي دي. جمهورو فرمایلي دي چې د امت تعامل په وجوب او لزوم باندې نه دی، البته د سنت لفظ عام او مشهور دی مستحب او سنن زوائد یو دي، لهذا مستحب ویل هم صحیح دی. (الکاشف ۳۲۲/۶)
**د دعوتونو بیان**: که دعوت قبلولو کې که شرعي عذر نه وي نو قبلول یې واجب دي، که عذر وي سړی بیمار وي یا تلو کې ورته خطره وي یا دعوت حرام وي یا دعوت کې ناچ ګانې وي یا بدعات او منکرات وي نو داسې دعوت قبلول جائز نه دي، که د تلو نه پس ورته پته ولګي چې په دې کې خو منکرات وو که سړی پخپله مقتدا جوړ شوی وي نو هلته دې نه ایسارېږي بلکې واپس دې راشي او که مقتدا نه وي نو بیا دې خوراک وخوري او رادې شي. د مقتدا جوړیدو مطلب دا دی چې یو داسې عالم جوړ وي چې د هغه د عمل نه خلق دلیل نیسي او سند یې ګڼي خو دا خبره یاد ساتل پکار دي چې دعوت خاص قبلول لازم دي که خصوصي دعوت چا درکړی وي، او که خصوصي دعوت نه وو نو عام دعوت قبلول لازم او واجب نه دي، د دعوت قبلولو اصل وجه داده چې دا د شریعت حکم دی، دویمه وجه داده چې چا خصوصي دعوت در کړی دی د انکار کولو سره به د هغه زړه ته تکلیف ورسي او نفرت به زیات شي، او عام دعوت کې داسې صورت نه پیدا کیږي. د دعوت په منکراتو کې دا هم دي که یو سړی د خپل جاه او منصب په بنیاد خپل د

جاه زياتولو دپاره عالم ته خصوصي دعوت ورکوي يا د يو باطل کار د پاره دعوت ورکوي يا د دې په ذريعه په نورو باندې دا اثر اچولو دپاره کوشش کوي يا يو قاضي ته دعوت ورکړي نو دې دعوت د رشوت شکل اختيار کړو يا نور منکرات لکه ريشمي قالين وغيره يا حرام مال رياکاري يا تکبر او تجبر وغيره منکرات دي.

**دعربو د جاهليت وليمې** : د جاهليت په دور کې به په عربو کې د ولائم په نوم پنځلس قسمه دعوتونه وو. او د اضافت نه به يې په کې تخصيص کولو. د هغو ټولو نومونه سره د تعريف نه لاندې ليکلی شي.

(۱) **وليمة العرس** : دا به د ښادي په موقع باندې وه او اسلام هم برقرار ساتلې ده او عام طور باندې هم دا وليمه پاتې شوې ده. (۲) الخرس : د ماشوم په پيدا کيدو باندې چې کوم خوراک ورکولی شي هغې ته الخرس ويلی شي. (۳) عقيقه : په اوومه ورځ د ماشوم د نوم کېښودو په وخت چې کوم خوراک ورکولی شي دا عقيقه ده او په اسلام کې دا مسنون ده. (۴) اعذار : دا د ماشومانو د سنتولو په وخت کې چې کوم طعام ورکولی شي دې ته اعذار ويلی شي، په اسلام کې دا نشته دا صرف يو رواج دی. (۵) ذوالحذاق: ماشوم به چې کله په يو کار کې مهارت حاصل کړو مثلا تير اندازي، لمبلو، او توري وهلو کې او د اسونو په منډه وغيره کې نو په دې موقع چې به کوم خوراک ورکولی شو او په اسلام کې دا خوراک د قران حفظ کولو يا د علم نه د فارغ کيدو په موقع ورکولی شو. (۶) ملاک : د کويژدن په تقريب کې چې کوم طعام ورکولی شي هغې ته ملاک ويلی شي.
(۷) وضيمه: هغه خوراک چې چاکره مړ وشي او ورکره ليګلی شي دېته وضيمه ويلی شي. اسلام د دې باره کې تاکيد کړی دی. او د جاهليت په دور کې به دا د تيجه، اومه، نهمه، پنځلسمه او د کليزو په موقع هم استعماليدی شي او نن سبا دا بريليانو سنبهال کړی دی. (۸) وکيره: د کور جوړولو په وخت چې کو م دعوت وي هغې خوراک ته وکيره ويلی شي. "وکر" جالې ته وايي. (۹) عقيره : دا خوراک به د رجب د مياشت ليدو په وخت کې ورکولی شو. (۱۰) شندخ: کله به چې دا چا ورک شوی څيز ملاو شو نو دا دعوت به يې کولو. (۱۱) نقيعه: کله به چې څوک مسافر وطن يا کور ته واپس راغی نو دا طعام به ورکولی شو. (۱۲) تحفه: د ملاقات په وخت کې به دا طعام پيش کولی شو. (۱۳) قری: دا طعام به د عامو خلقو او ميلمنو دپاره وو. (۱۴) نقری: د يو خاص کار د په ذريعه به دا دعوت کيدلو.
(۱۵) جفلی: دا به د يو عام خيرات خوراک وو په دې کې به دوست، او دښمن ټول شريکيدل.

# دولیمې کولو حکم

## الفصل الاول

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى عَلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ |
| حضرت انس رضي الله عنه وايي چې يو ورځ رسول صلی الله علیه وسلم د حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه (په بدن |
| أَثَرَ صُفْرَةٍ فَقَالَ: «مَا هَذَا؟» قَالَ: |
| يا په کپړو) باندې د زعفرانو زيړه نخښه وليدله نو تپوس يې وکړو چې دا څه دي؟ عبدالرحمن وويل |
| إِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ قَالَ: |
| چې ما د يوې ښځې سره نکاح وکړه د يو نواة په عوض کې رسول صلی الله علیه وسلم چې دا واوريدل نو وې فرمايل |
| «بَارَكَ اللهُ لَكَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| چې الله تعالى دې مبارکه کړي، وليمه وکړه اګر که يو چيلى ولې نه وي. (بخاري و مسلم) |

**توضيح**: **ماهذا** :دا سوال دې دپاره وشو چې حضور صلی الله علیه وسلم په صحابو باندې د زعفرانو د عطرو لګولو نه منع کړې وه. عبد الرحمن عذر پيش کړو چې دا د ښځې نه راپورې لګيدلې دي.

"اولم" کوم خلق چې وليمه واجب ګڼي د هغوی د پاره دا دليل دی. "**ولو بشاةٍ**" يعنې لوی څيز اوښ وغيره دې نه وي بلکې يو چيلى دې ذبح کړي. بعضې علماو دا په تکثير باندې حمل کړی دی چې وليمه وکړئ يو چيلى دې ولې نه وي. دا مفهوم بعيد دی تقليل زيات واضح دی. بعضو د نواة نه مراد پنځه درهمه اخستې دی. چې دا بعيد دی بلکې نواة نه مراد د کجوې د زړي په برابر سونا ده.

## د ام المؤمنين حضرت زينب شانداره وليمه

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: مَا أَوْلَمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَحَدٍ |
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم نه ده کړې په خپلو ازواجو مطهراتو کې د |
| مِنْ نِسَائِهِ مَا أولم على زَيْنَب |
| يوې بي بي هم دومره لويه وليمه کومه چې يې د حضرت زينب رضي الله عنها د نکاح په وخت کې کړې وه |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲۰٤ رقم الحديث ۵۱٤۸ ومسلم في ۲/۱۰٤۲ رقم الحديث (۱٤۲۷.۷۹) وأبوداؤد في السنن ۲/۵۸٤ رقم الحديث ۲۱۰۹ والترمذي في ۳/٤۰۲ رقم الحديث ۱۰۹٤ ابن ماجه في ۱/۹۱۵ رقم الحديث ۱۹۰۷

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أولم | بِشَاة | متفق | عليه | (صَحِيح)(۱) |

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې په نکاح کې په یوې چیلۍ سره ولیمه کړې وه. (بخاري و مسلم)

**توضیح**: **ما اولم**: یعني د نورو ازواجو مطهراتو د دعوت ولیمې په اعتبار سره چیلي لوی څیز وو ځکه حضرت زینب نه علاوه د نورو په دعوت کې چیلی نه و ذبح شوی، ددې دا مطلب نه دی چې چیلی یو لوی دعوت وو، لوی دعوت خو به په اوبن وغیره سره وو ځنګه چې حضرت علي رضي الله عنه د واده د پاره دوه اوبنانې ساتلې وې. او حمزه هغه وژلې وې چې مشهوره قصه ده، لهذا د دې نه روښي روایت کې "ولوبشاة" تقلیل د پاره دی د تکثیر د پاره نه دی. (المرقات ۶/۳۶۶)

﴿۲﴾وَعَنْهُ قَالَ: أَوْلَمَ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ بَنَى بِزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَأشبع النَّاس خبْزًا وَلحْمًا. (مُتَّفق عَلَيْهِ)(۲)

او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت زینب بنت جحش رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا سره د شب زفاف نه پس ولیمه وکړه او په دې ولیمه کې یې خلقوله په مړه خیټه ډوډی او غوښه ورکړه. (بخاري)

## د ښځې آزادي ددې مهر ګرځولی شي یا نه

﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ أَعْتَقَ صَفِيَّةَ وَتَزَوَّجَهَا وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا وَأَوْلَمَ عَلَيْهَا بحيس. مُتَّفق عَلَيْهِ (صَحِيح)(۳)

حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت صفیه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ورومبی ازاده کړه او بیا یې ورسره نکاح وکړه، پیغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې ازادي د هغې مهر وګرځولو او په نکاح کې یې حیس ولیمه کړو. (بخاري و مسلم)

**توضیح**: حضرت صفیه د یهودو د سردار حي بن اخطب لوروه د جنګ خیبر په موقع هغې خوب ولیدو چې د یثرب نه یو ه سپوږمۍ راغله او زما غېږ ته راغله. هغې چې دا خوب خپل خاوند ته بیان کړو

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲۳۲ رقم الحديث ۵۱۶۵ ومسلم في ۲/۱۰۴۹

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۵۲۸ رقم الحديث ۴۷۹۴

(۳) أخرجه البخاري ۹/۲۳۲ رقم الحديث ۵۱۶۹ ومسلم في ۲/۱۰۴۳ رقم الحديث (۱۳۶۵.۸۴) وأبوداؤد في السنن ۲/۵۴۲ رقم الحديث ۲۰۵۴ والترمذي ۳/۴۲۳ رقم الحديث ۱۱۱۵ والنسائي في ۶/۱۱۴ رقم الحديث ۳۳۴۲ وابن ماجه في ۱/۶۲۹ رقم الحديث ۱۹۵۸.

نو هغې له یې په مخ یوه سپېره ورکړه چې ته د یثرب یعني د مدینې د باد شاه محمد ﷺ سره دواده خواهش لرې هغه پخپله وایې چې د هغې سپېرې په وجه زما سترګې او مخ شنه دي د نورو بنځو سره زه هم د رسول کریم ﷺ په قید کې را غلم د ما بنام په وخت کې رسول کریم ﷺ ما سره خبرې وکړې د خبرو خلاصه داده. صفیې ته رسول کریم ﷺ و فرمایل که چیرې ته په دین قائمه پاتې کیدل غواړې نو په دې باندې څه جبر نشته او که چیرې ته الله او د هغه رسول اختیار کړې نو دا به ستا د پاره بهتر وي، حضرت صفیه وویل چې زه الله تعالی او د هغه رسول او اسلام اختیاروم، رسول کریم ﷺ هغه آزاده کړه او بیایې ورسره نکاح وکړه، صحابه کرامو ته معلومه نه وه چې صفیه وینزه ده او که ام المومنین شو صحابه کرامو وویل چې که پرده یې د کړه نو نکاح به یې شوې وي، او که پرده یې نه وي کړې نو وینزه به وي کله چې د سورلۍ د پاره زما د پاره د پردې انتظام وشو نو صحابه کرامو ته پته ولګیده چې ام المؤمنین جوړه شوې ده. (المرقات ۳۶۸/۶)

اوس دلته یوه فقهي مسئله ده چې په دې حدیث کې دا لفظ موجود دی چې "**جعل عتقها صداقها**" حضور اکرام ﷺ د حضرت صفیه آزادي د هغې مهر وګرځوه. امام احمد بن حنبل، اسحاق بن راهویه، اوزاعی د شام او قاضي ابو یوسف فرمایي چې عتق هم مهر کې اچول جائز دي.

امام مالک او امام ابو حنیفه او امام شافعي په نزد عتق په مهر کې اچول صحیح نه دي. وړومبنې فریق د مذکوره حدیث نه استدلال کړی دی، چې د حضرت صفیه مهر د هغې عتق مقرر کړی شو.

جمهور دلیل پیش کوي چې قرآن کریم کې الله تعالی فرمایي (**ان تبتغوا بأموالکم**) (سورة نساء ۲۴) عتق مال نه دی نو مهر نه دی، د فریق اول د دلیل جواب دا دی چې حدیث کې چې د صداق لفظ راغلی دی دا د حضرت انس کلام دی او د قرآني ایت په مقابله کې قابل استدلال نه دی. دویم جواب دا دی چې دا د پیغمبر خصوصیت دی چې هغه د پاره بغیر د مهر نه نکاح کول جائز وو، چې عتق یې په طور د مهر مقرر کړو، نو د خصوصیت په وجه باندې جائز وو، او دا بل چا د پاره جائز نه دی، یا حضرت صفیه رضي الله عنها خپل مهر معاف کړی وو. دا هم پیغمبری خصوصیت وو.

## د حضرت صفیه رضی الله عنها د ولیمې ذکر

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | أَقَامَ | النَّبِيُّ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | بَيْنَ | خَيْبَرَ | وَالْمَدِيْنَةِ |
| حضرت انس رضي الله عنه وایې چې نبی کریم ﷺ قیام او فرمائیلو د خیبر او مدینې په مینځ کې | | | | | | | | | |
| ثَلَاثَ | لَيَالٍ | يُبْنَى | عَلَيْهِ | بِصَفِيَّةَ | فَدَعَوْتُ | | | | |
| درې شپې قیام وفرمایلو او د حضرت صفیه رضي الله عنها سره یې د نکاح نه پس د زفاف شپه تیره کړه او ما دعوت ورکړو | | | | | | | | | |
| الْمُسْلِمِينَ | إِلَى | وَلِيمَتِهِ | وَمَا | كَانَ | فِيهَا | مِنْ | خُبْزٍ | وَلَا | لَحْمٍ |
| مسلمانانو ته د ولیمې په ولیمه کې نه غوښه وه او نه ډوډۍ بلکې کله چې دسترخوان خور کړی شو | | | | | | | | | |

| |
|---|
| وَمَا كَانَ فِيهَا إِلَّا أَنْ أُمِرَ بِالْأَنْطَاعِ فَبُسِطَتْ فَأَلْقَى عَلَيْهَا التَّمْرَ وَالْأَقِطَ وَالسَّمْنَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ (صَحِيحٌ)[1] |
| بلکې کله چې دسترخوان خور کړی شو نو په هغې یې کجورې، پنیر او غوړي کېښودل. (بخاری) |

**توضیح:** التمر والاقط والسمن: دې نه مخکې حدیث کې لفظ "حیس" راغلی وو دا د هغې تفسیر دی چې د کجورو، پنیر او غوړو حریره او د حلوا په شکل خوراک ته "حیس" ویلی شي. دې نه پس حدیث کې د دوه سیره جوارو ذکر راغلی دی چې د سردار اولین والاخرین ولیمه داسې وه، دې سره به ددې امت د غریبانانو حوصله افزائي کیږي کوم چې د دعوت ولیمې طاقت نه لري هغوی ته د حضور اکرم ﷺ نمونه ملاو شوه چې حضور اکرم ﷺ په دوه سیره جوارو خپله ولیمه کړې وه، او دې نه مخکې یې د حضرت زینب ولیمه کې خلقو ته د چیلي غوښه په مړه خیټه ورکړې وه په دې کې مالدارو ته د سنت نمونه ملاویږي که طاقت وي نو ښه دعوت دې وکړي او که نه وي نو په قرضه دې ځان نه خرابوي، د حضور اکرم ﷺ سیرت ته او ګورئ چې په دوه سیره جوارو باندې یې ولیمه کړې ده. رښتیا ده چې د حضور اکرام د ټولو انسانانو د پاره کامله نمونه ده. (المرقات ۳۶۸/۶)

جہاں تک آپ کی قلیہ ہے اسی حد تک — سلیقہ بشریت بشر کو ملتا ہے

## د حضرت ام سلمه رضی الله عنها ولیمه

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ قَالَتْ: أَوْلَمَ النَّبِيُّ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم |
| حضرت صفیه بنت شیبه رضي الله عنها وایي چې نبی کریم ﷺ د خپلې زوجې مطهرې (بی بی) |
| عَلَى بَعْضِ نِسَائِهِ بمدين من شعير. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2] |
| (غالبًا) د ام سلمې ولیمه په دوه سیره وربشو کړې وه. (بخاری) |

او د مسلم په یو روایت کې دي دعوت قبلول پکار دي که هغه د ولیمې دعوت وي یا بل کوم دعوت وي.

## د ولیمې دعوت قبلول پکار دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې نبی کریم ﷺ و فرمایل چې کله تاسو |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۷/۴۷۹ رقم الحديث ۴۲۱۳ والنسائي في ۶/۱۳۴ رقم الحديث ۳۳۸۲ وأحمد في المسند ۳/۲۶۴

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲۳۸ رقم الحديث ۵۱۷۲ وأحمد في المسند ۶/۱۱۳

قَالَ: «إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْوَلِيمَةِ فَلْيَأْتِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

کې چا ته د ښادۍ د خوراک خوړلو د پاره دعوت در کړی شي نو هغه له تلل پکار دي. (بخاري و مسلم)

وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: فَلْيُجِبْ عُرْسًا كَانَ أَوْ نَحوه (صَحِيح)

﴿۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ: قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا

او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمايل په تاسو کې چې کله چا ته د واده يا

دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ فليجب وَإِنْ

داسې بل قسم تقریب د پاره دعوت در کړی شي نو هغه له پکار دي چې دعوت ئې قبلول کړي کله چه

شَاءَ طَعِمَ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

هلته ورشي نو د هغه خپله مرضي ده که خوراک کوي او که نه يې کوي. (مسلم)

## په وليمه کې صرف د مالدارو راغوختل انتهائی بد دی

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «شَرُّ الطَّعَامِ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل چې خراب خوراک د هغې

طَعَامُ الْوَلِيمَةِ يُدْعَى لَهَا الأَغْنِيَاءُ وَيُتْرَكُ

وليمې خوراک دی چې په کې مالدارو ته دعوت ورکړی شي او غريبانان پريخودلې شي او کوم سړی

الْفُقَرَاءُ وَمَنْ تَرَكَ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللهَ وَرَسُولَه» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[3]

چې بغير د څه عذر نه دعوت قبول نه کړو نو هغه د الله تعالى او هغه د رسول صلی الله علیه وسلم نافرماني وکړه

**توضيح**: **شر الطعام**: د وليمې طعام ته خراب طعام د وليمې په وجه نه دی ويلی شوی بلکې په دې وجه يې ورته شر الطعام ويلی دی چې د دنيا د خلقو دا عادت دی چې وليمه کې د نمائش د پاره مالدار، منصب دار، رعب دار، شهرت والا افرادو ته دعوت ورکولی شي او غرباء او فقيران

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲٤۰ رقم الحديث ۵۱۷٤ ومسلم في ۲/۱۰۵۲ رقم الحديث (۱٤۲۹.۱٦) وأبوداؤد في السنن ٤/۱۲۳ رقم الحديث ۳۷۳٦ وابن ماجه في ۱/٦۱٦ رقم الحديث ۱۹۱٤ والدارمي ۲/۱۹۲ رقم الحديث ۲۲۰۵ ومالک في ۲/۵۳٦

(۲) أخرجه في صحيحه ۲/۱۰٤۵ رقم الحديث (۱٤۳۰.۱۰۵) وأبوداؤد في السنن ٤/۱۲٤ رقم الحديث ۳۷٤۰

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲٤٤ رقم الحديث ۵۱۷۷ ومسلم في ۲/۱۰٤۵.

پريخودلى شي،كه دا خارجي علت نه وو نو نفس وليمه خو په شريعت كښ مسنون يا مستحب ده، د دي ترغيب حضور ﷺ وركړى دى نو دې ته شر الطعام څنګه وويله معلومه شوه چې د خارجي قيد په وجه سره په كښ مذمت راغى او هغه دا چې غريبان پكښ پريخودل او مالداران پکښ راوبلل او بيا يې پرې خوراک وخوړو.(المرقات ۳۷۱/۶)

**فقد عصى الله:** د دعوت قبلول د احنافو په نزد د راجح قول مطابق مستحب دى، او د جمهورو په نزد د مشهورقول مطابق واجب دى."رحمة الامة في اختلاف الائمة" كښ يې داسې ليكلې دي، او په بعضو كتابونو كښ يې داسې ليكلې دي چې دا حديث د هغو خلقو دليل دى كوم چې د دعوت قبلول واجب ګڼي، او د جمهورو په نزد دعوت قبلول مستحب دي، دا قول ډير واضح معلوميږي، باقى كه په دعوت كښ كه چيرې نور منكرات يا څه نور شرعى عذر وي نو قبلول يې ضروري نه دي تفصيل يې مخكښې تير شو دى.(المرقات ۳۷۶/۶)

## اجازت اغستل او بيا دعوت ته تلل

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: كَانَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ يُكْنَى أَبَا شُعَيْبٍ |
| او حضرت ابو مسعود انصاري وايې چې ديو انصارى صحابي چې د هغه كنيه ابو شعيب وه د |
| كَانَ لَهُ غُلَامٌ لَحَّامٌ فَقَالَ: |
| هغه يو غلام وو چې غوښه به يې خرخوله يو ځل دې انصارى صحابى دې خپل غلام ته وويل چې |
| اصْنَعْ لِي طَعَامًا يَكْفِي خَمْسَةً لَعَلِّي |
| زما په هدايت دو مره خوراک تيار كړه چې د پنځو كسانو د پاره وي ځكه زه او نبى ﷺ له |
| أَدْعُو النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَامِسَ خَمْسَةٍ |
| دعوت وركومه او رسول كريم ﷺ به هم په دې پنځو كسانو كښ وي غلام د هدايت مطابق |
| فَصَنَعَ لَهُ طعيما ثُمَّ أَتَاهُ |
| حضور ﷺ له طعام تيار كړو او بيا د حضور ﷺ په خدمت كښ حاضر شو نبى عليه السلام |
| فَدَعَاهُ فَتَبِعَهُمْ رَجُلٌ |
| ته او نورو صحابو ته يې د طعام د پاره دعوت وركړو. كله چې حضور ﷺ د هغه كور ته تشريف يوړو كله چې |

| |
|---|
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا أَبَا شُعَيْبٍ إِنَّ رَجُلًا |
| د هغه کورته ورسیدل نو وې فرمایل چې ابو شعیبه! مونږ سره یو کس بل هم دیکې دی که چرې ته غواړې |
| تَبِعَنَا فَإِنْ شِئْتَ أَذِنْتَ لَهُ وَإِنْ شِئْتَ تركته». |
| نو د خوراک اجازت ورکړه که نه وی نو د دروازې نه یې واپس کړه (او په دسترخوان باندې د ناستې اجازت مه ورکوه) |
| قَالَ: لَا بل أَذِنت لَهُ (متفق عليه)[1] |
| ابو شعیب وویل چې نه (هغه ته په دسترخوان د ناستې اجازت نه ورکول زه مناسب نه گنم) ده ته هم اجازت دی. |

**توضيح: لحام**: د لحم نه د مبالغې صيغه ده يعنې دې غلام به غوښه خرڅوله او په غوښه جوړولو کې ډير ماهر وو د هغه آقا چې کنيه يې ابو شعيب وو هغه د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره د دعوت انتظام وکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره څلور نور ملگري هم وو. دې روايت نه يو تعليم دا هم حاصليږي چې يو کس دې بغير د اجازت نه دعوت له نه ځي، او داسې يو ميلمه له هم نه دي پکار چې ځان سره دې يو نه بلل شوی کس بوځي او طعام پرې وخوري، او که چيرې کوربه اجازت ورکړو نو بيا جائز دي. علماء کرامو ليکلي دي که چيرې کوربه د ميلمه مخې ته خوراک کيخودو او داسې وويل چې دا طعام ما ستاسو په ملکيت کې درکړو په دې صورت کې بيا کوربه بل کس له دا طعام ورکولی شي او کور ته يې هم وړلی شي. او که کوربه د ميلمه دپاره دا طعام صرف مباح کړی وي نو بيا يې صرف هغه استعمالولی شي بل ته يې نشي ورکولی. (المرقات ۶/۳۷۳، ۳۷۲)

**سوال**: کله چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يو نا بلل شوی کس دروازې ته راورسيدو د کوم ځای نه چې څوک نشي واپس کولی او حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کوربه نه اجازت هم واخستو نو دلته ناممکنه وه چې کوربه انکار کړی وی، که هغه په زړه کې خفه ولې نه وي گويا د زړه نه اجازت نه وو بلکې يو قسم جبر وو او کر چې صورت د اجازت وو نو بيا څنگه جائز شوه؟

**جواب**: حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې معاشره تياره کړې وه چې د هر کس ظاهر او باطن به دواړه برابر وو چې په ژبه به کومه خبره وه هغه به په زړه کې هم وه او چې په زړه کې به کومه خبره وه هغه به په ژبه وه، که چيرې دلته د دې صحابی په زړه کې لږغوندې خفگان وی نو هغه به يې په ښکاره کولو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې اضافي کس گنجائش نشته، نو دلته د هغې کس د واپس تلو باندې به کوربه خفه نه وو او نه به حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خفه شوی وو، د لته څه جبر نشته په ژبه باندې چې کوم اظهار کړی وو هغه په دې کې د زړه د رضامندۍ دليل وو، حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يوې پاکې او بې

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۵۸۳ رقم الحديث ۵۴۶۱ ومسلم في ۳/۱۶۰۸ رقم الحديث (۲۰۳۶.۱۳۸) والترمذي في السنن ۳/۴۰۵ رقم الحديث ۱۰۹۹ والدارمي في ۲/۱۴۳ رقم الحديث ۲۰۶۸ وأحمد في المسند ۴/۱۲۱

تکلفي معاشرې تشکيل کړی وو چې هلته به د زړه او د ژبې خبره يوه وه. (المرقات ۶/۳۷۳)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

﴿۱۱﴾ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَولم على صَفِيَّةَ بسويق

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ام المؤمنين حضرت صفيه وليمه په ستوانو او په

وتمر. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[1]

کجورو کړې وه (روايت کړی دی احمد، ترمذی، ابو داود، او ابن ماجه)

### د زيبائش و آرائش نه د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجتناب

﴿۱۲﴾ وَعَنْ سَفِينَةَ: أَنَّ رَجُلًا ضَافَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ

او حضرت سفينه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو وړځ حضرت علي ابن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کره يو ميلمه راغی

فَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا فَقَالَتْ فَاطِمَةُ:

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه د پاره طعام تيار کړو، حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وويل که چيرې مونږ

لَوْ دَعَوْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكَلَ مَعَنَا

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ له هم دعوت ورکړو او مونږ سره دا طعام وخوري نو ښه به وي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَدَعَوْهُ فَجَاءَ فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى عِضَادَتَيِ الْبَابِ

له يې دعوت ورکړو کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تشريف راوړو چه څنګه ئې د دروازې په دواړو چوکاټونو لاسونه کيخودل

فَرَأَى الْقِرَامَ قَدْ ضُرِبَ فِي نَاحِيَةِ الْبَيْتِ

نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نظر په يو پرده ولګيده چې د کور په يو ګوټ کې وه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (پردې ته يې چې وکتل)

فَرَجَعَ. قَالَتْ فَاطِمَةُ: فَتَبِعْتُهُ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا رَدَّكَ؟

نو واپس شو حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم وريسې لاړه او عرض ئې وکړو ای د الله رسوله تاسو ولې واپس شوئ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: «إِنَّهُ | لَيْسَ | لِي | أَوْلِنَبِيٍّ | أَنْ | يَدْخُلَ | بَيْتًا | مزوقا». [1] |

| |
|---|
| رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې ماته او يا كوم نبي ته د زينت والا كور ته داخليدل مناسب نه دي. |

**توضيح**: قرام: د نرمې كپړې پردې ته قرام ويلى شي، دا كپړه منقش وه چې په هغې آرائش او وزيبائش شوى وو، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ننه تشريف يو نه وړو يا د زيب او زينت په وجه د ننه داخل نه شو. يا په دې وجه چې په كپړې سره ديوال پټ كړى شوى وو چې اسراف وو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ناخوښه كړو. (المرقات ۶/۳۷۴)

## دطفيلي مذمت

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَنْ | عَبْدِ | اللهِ | بْنِ | عُمَرَ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | «مَنْ |

| |
|---|
| او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې كوم كس د طعام |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| دُعِيَ | فَلَمْ | يُجِبْ | فَقَدْ | عَصَى | اللهَ وَرَسُولَهُ |

| |
|---|
| دپاره روابلل شي او هغه دعوت قبول نه كړي نو هغه د الله تعالى او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نافرماني والا شو |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمن | دخل | على | غَيْرِ | دَعْوَةٍ | دَخَلَ | سَارِقًا |

| |
|---|
| او كوم كس چې بغير د بللو نه د خوراک مجلس ته لاړو نو هغه د غل په شان راغې او ټول مال ئي |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَخَرَجَ | مُغِيرًا». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[2] |

| |
|---|
| لوټ كړو او لاړو. (روايت كړي دي ابو داود) |

**توضيح**: حضور اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امت ته د ښو اخلاقو درس وركړى دى، لهذا بغير د دعوت او بغير بلنې د چا د عوت طعام ته تلل يې منع فرمايلي دي، او امت يې د حرص او لالچ د ذلت نه بچ كړى دى، دويم طرف ته شرعي عذر نه بغېر د چا د دعوت نه انكار كول يې هم منع فرمايلي دي نو د حرص او تكبر په منيځ كې معتدله لاره يې وښودله چې د انكار په وجه سره په امت كې د تكبر، لويي او د عدم الفت خراب صفتونه داخل نه شي. او نه حرص او لالچ راشي رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې څوک بغېر د اجازت نه دعوت ته لاړو او خوراک يې وخوړلو او باهر ته راغى نو "**دخل سارقا**" او (**خرج مغيرا**) په خرابو صفتونو كې داخل شو. (المرقات ۶/۳۷۵)

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ۴/۱۳۳ رقم الحديث ۳۷۵۵ وابن ماجه في ۲/۱۱۱۵ رقم الحديث ۳۳۶۰ وأحمد في المخطوطة "الي

(2) أخرجه ابوداؤد ... ۲/۱۲۰ رقم الحديث ۳۷۴۱

## په ډیرو دعوتونو کې کوم یو ته ترجیح ورکول پکار دي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحابو کې یو کس نه روایت دی چې د الله رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |
| «إِذَا اجْتَمَعَ الدَّاعِيَانِ فَأَجِبْ |
| چې که یو کس ته په یو وخت کې دوه دعوتونه وي نو د هغه کس دعوت قبول کړي چې د چا |
| أَقْرَبَهُمَا بَابًا وَإِنْ سَبَقَ أَحَدُهُمَا |
| دروازه ورته نزدې وي او که په دې یو کس مخکې دعوت ورکړی وي او بل رستو نو چې کوم کس |
| فَأَجِبِ الَّذِي سَبَقَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ[1] |
| مخکې دعوت ورکړی دی د هغه دعوت دې قبول کړي. (روایت کړې دې احمد، ابو داود) |

**توضیح**: اقربهما بابا: دا هغه صورت دی چې په یو وخت کې یو کس ته دوه کسانو د طعام دعوت ورکړو، اوس بهدا مدعو کس څه کوي؟ که ممکنه وي نو دواړو دعوتونو کې دې خوراک وکړي، کمه دې وخوري خو رد کوي دې نه.. یا د کوم کس دروازه چې ډیره نزدې وي نو هغه حقدار دی ځکه محاوره معروفه ده چې "الحق للقریب ثم للبعید" او که په دې کې کوم کس وړومبی دعوت ورکړی وي نو د هغه دعوت قبلول لازم دي. (المرقات ۳۷۵/۶)

## د ولیمې دعوت صرف دوه ورځو پورې دی

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وعن ابنِ مسعودٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دې فرمائی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فریلي دي |
| «طَعَامُ أَوَّلِ يَوْمٍ حق وَطَعَام يَوْم الثَّانِي سنة وَطَعَام يَوْم الثَّالِثِ |
| چې په وړومبۍ ورځ د (واده) طعام خوړل حق دی په دویمه ورځ سنت دی او په دریمه ورځ د |
| سُمْعَةٌ وَمَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ الله بِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2] |
| خپل ځان ته مشهورول دي او چې څوک د ځان د مشهورولو خواهشمند وي الله تعالی به ئې هم ورته واوروي |

---

(۱) اخرجه ابوداؤد في السنن ۴/۱۳۳ رقم الحديث ۳۷۵۶ واحمد في المسند ۵/۴۰۸

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۰۳ رقم الحديث ۱۰۹۷

**توضيح**: اول يوم حق: کوم حضرات چې وليمه واجب ګڼي دا حديث د هغوی د پاره دليل دی خود جمهورو په نزد وليمه سنت ده، کوم حضرات چې وليمه مسنون ګڼي د هغوی په نزد د دې لفظ ترجمه داسې ده چې په وړومبی ورځ خوراک خوړل ثابت دي، بهرحال د دووه ورځو پورې خوراک ورکول هم جائز دي، خو که د دريمې ورځې پورې شي نو دې کې به رياکاري، ځان ښودنه او د نمائش جذبه شامله وي، اوس که دا کس دا غواړي چې د هغه شهرت وشي تعريفونه يې وشي او هر طرف ته د هغه د سخاوت مشهورتيا وشي چې دې سره هغه د فخر اظهار وکړي **"سمعة"** هم دا مطلب دی.(المرقات ۶/۳۷۶)

**سمع الله به**: يعنی دا کس رياکاري کوي او د نفس شهرت يې غوښتلو چې معزز شي الله تعالی به يې ميدان حشر کې د خلقو په مخکې مشهور کړي چې دا کس دروغژن دی او رياکار دی او د معزز په ځای به **"محقر"** جوړ شي.(المرقات ۶/۳۷۶)

## د فخر او مقابلې والا دعوت خوړل منع دي

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عکرمه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روايت کړی دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د داسې کسانو |
| نَهَى عَنْ طَعَامِ الْمُتَبَارِيَيْنِ أَنْ يُؤْكَلَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ: |
| خوراک خوړلو نه منع فرمايلې ده چې په خپل مينځ کې د فخر او مقابلې د پاره وي.(ابوداود) او محيي السنه |
| وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا[1] |
| چې دا الفاظ درست دي حضرت عکرمه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه په طريقې د ارسال نقل کړی دی |

**توضيح**: المتباريين: دا لفظ د مبارات نه وتلی دی په يو کار کې د يو بل نه مخکې وتو په معنی سره راځي، د لته د دې لفظ نه مراد هغه دوه کسان دي کوم چې ډير طعام تيار کړي او په خوړلو کې په خپل مينځ کې مقابله کوي او د خلقو د طرف نه تحسين وصولوي چې د چا خوراک ډير ښه وو، چا ډيرو خلقو له طعام ورکړو او د چا انتظام ډير بهتر وو د دواړو مقصد نمائش او نام نمود دی، د داسې دعوت طعام خوړل ممنوع دي، چې خلقو کې د دې "ريس" او مقابلې حوصله شکنی وشي او د راتلونکې حديث هم دا مفهوم دی په دې کې د دې لفظ مفهوم د متعارضان نه واضح کړی شوی دی يعنې د يو بل په مقابله کې دعوتونه کوي.(المرقات ۶/۳۷۶)

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۴/۱۳۴ رقم الحديث ۳۷۵۴

## الْفَصْلُ الثَّالِث

﴿۱۷﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې دهغه دوه کسانو دعوت

«الْمُتَبَارِيَانِ لَا يُجَابَانِ وَلَا يُؤْكَلُ طَعَامُهُمَا».

مه قبلوئ او مه د هغوی خوراک خورئ چې د اظهار فخر او په خپل مينځ کې د مقابلې د پاره يې

قَالَ الْإِمَامُ أَحْمَدُ: يَعْنِي

پوخ کړی وي، امام احمد د متباريان د لفظ وضاحت داسې کوي چې د متباريان نه د حضور مراد

المتعارضين بالضيافة فخرًا ورياءً[1]

هغه دوه کسان دي چې په ښکاره د فخر، ريا او په مقابله کې د يو بل په ضد کې دعوت کوي.

## د فاسق دعوت نه قبلول

﴿۱۸﴾ وَعَن عمران بن حُصَيْنٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَن إِجَابَة طَعَام

او حضرت عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فاسقانو خلقو د دعوت

الْفَاسِقِين. أخرجه البيهقي[2]

قبلولو نه منع فرمايلې ده. (بيهقی)

**توضيح**: **الفاسقين**: ددې نه مراد مطلق فاسق دی، که په هر قسم فسق کې مبتلا وي، د فاسقانو او فاجرانو د دعوت نه د ممانعت سبب دا دی چې دا خلق اکثر ظالمان وي او په ظلم يې حرام مال جمع کړی وي، دارنګې د هغوی ځای کې ناسته او دعوت يې قبلول د هغوی د پاره د اعزاز خبره ده، چې د فسق په وجه هغه د دې مستحق نه دی، دارنګې نن که دې د فاسق خوراک وخوړو نو سباته به ته به هغه خپل مال ته حلال وايي او همدا وجه ده چې حضوراکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعا کړې ده چې ای الله! په ما باندې د فاسق احسان مه اچوې چې د هغې زه بدله ورکوم. (المرقات ۶/۳۷۶)

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۱۲۹ رقم الحديث ۶۰۹۷

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۶۸ رقم الحديث ۵۸۰۳

## د نيک مسلمان دعوت کې شک مه کوه

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمْ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي په تاسو کې چې کوم |
| عَلَى أَخِيهِ الْمُسْلِمِ فَلْيَأْكُلْ مِنْ طَعَامِهِ وَلَا يَسْأَلُ |
| کس د مسلمانو رور کره لاړ شي نو د هغه خوراک وخوري او او به وڅکي او د ا تپوس مه کوئ چې دا خوراک |
| وَيَشْرَبْ مِنْ شَرَابِهِ وَلَا يَسْأَلْ» رَوَى الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[1] |
| او او به څنګه دي او د کوم ځای نه راغلي دي، دا دريواړه حديثونه بيهقي شعب الايمان کې نقل کړي دي |
| وَقَالَ: هَذَا إِنْ صَحَّ فَلِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْمُسْلِمَ |
| او ويلي يې دي چې دا (آخري) حديث که صحيح شي نو د دې حکم وجه دا ده چې يو مسلمان په بل مسلمان |
| لَا يُطْعِمُهُ وَلَا يَسْقِيهِ إِلَّا مَا هُوَ حَلَالٌ عِنْدَهُ |
| باندې خوراک څښاک کوي نو د حلالو نه يې برې کوي. |

**توضيح: اخيه المسلم:** مسلمان رور نه مراد متقي او پرهيزګار مسلمان دی نو وايې چې د داسې کس په خوراک کې خامخا شک مه کوئ چې دا حلال دی او که حرام، بلکې چې څه پيش کړی شي د څه شک شبهې نه بغير خوړل پکار دي که دغه کس نيک دی نو هغه به نه پخپله حرام خوراک کوي او نه به په نورو خوړل کوي بلکې په دې تحقيق او تفتيش او ګفتګو او تالاش باندې به هغه ته تکليف ورسيږي، چې کوم ممنوع دی، او که چيرې د حرام آمدن شک وي نو بيا سوال کولی شي او که په رښتيا ګټه د حرامو وي نو بيا دې خوراک نه کوي او که دا حلال وي نو بيا خوراک وکړه. (المرقات ۳۷۷/۶)

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۶۷ رقم الحديث ۵۸۰۱

# په ګنو بیبیانو کې د نمبر مقررولو بیان

# بَابُ الْقسم

قال الله تعالى: ((فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ)) (سورة نساء ۳)

وقال الله تعالى: ((وَلَنْ تَسْتَطِيعُوا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ)) (سورة نساء ۱۲۹)

**القسم**: په قاف فتحه او سین ساکن دی. دا د قسم یقسم قسمًا مصدر دی. د تقسیم په معنی سره دی، د مال په تقسیم کې چې ډیرو شریکانو ته کله چې مال تقسیم شي او هر یو ته خپله حصه ملاو شي نو هغه تقسیم او قسم دی، دلته مراد په د ډیرو بیبیانو په مینځ کې نمبر مقرر کول او د هغوی په مینځ کې عدل او انصاف او برابری قائم ساتل قسم دی، بعضو بنځو سره شپې تیرولو ته قسم ویلی دی. خو ورومبنی مفهوم چې ابن همام بیان کړی دی هغه زیات واضح دی، بعضو نور هم په وضاحت سره بیان کړی دی چې د بیبیانو په مینځ شپې تیرولو، خوراک څښاک، کپړو او په مکان کې برابري کولو ته قسم ویلی دی. دا برابری کول واجب دي خو په جماع کولو کې برابری کول ضروري نه دی. ځکه چې ددې تعلق د سړي د نشاط او غوښتنې سره دی، او داسې د زړه محبت کې هم برابری ضروري نه دی، ځکه چې دا یو غیر اختیاري معامله ده. په قرآن کریم کې الله تعالی قسم ته د عدل نوم فرمایلی دی. څنګه چې په پورتنو ایتونو کې مذکور دی او داسې په احادیثو کې یې هم د برابري او عدل په نوم یاد کړی دی. (المرقات ۳۷۸/۶)

د بعضو علماو خیال دی چې قسم په حضور اکرم ﷺ هم واجب وو، مګر صحیح قول دا دی چې حضور ﷺ د قسم نه مستثنی دی، د قرآنکریم ایت

((تُرْجِي مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ))

نه معلومیږي چې حضور ﷺ د قسم پابند نه وو، لیکن د دې باوجود به هم حضور په قسم او عدل عمل کولو، قسم صرف په مدت اقامت کې وي په سفر کې نه وي، دارنګې قسم صرف شپې تیرولو کې دی په ورځ کې نه دی. او که د خاوند ډیوټي د شپې وي نو بیا قسم نمبر د ې د ورځ مقرر کړي، د سفر په دوران کې د قرعه اندازی په ذریعه یوه بي بي ځان سره بوتلل بهتر دي، د نمبر موده کم از کم یوه شپه او ورځ ده. ددې نه کم کې تقسیم نه جاري کیږي، لهذا یوه شپه کې دوه بیبیانو سره نمبر مقرر کول صحیح نه دی.

## دازواج مطهراتو تعداد

## الفصل الاول

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿١﴾ عَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ: | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قُبِضَ |

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې كوم وخت رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو نو په هغه وخت

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَنْ | تِسْعِ | نِسْوَةٍ | وَكَانَ | يقسم | مِنْهُنَّ | لثمان | (مُتفقٌ عَلَيْهِ)[1] | |

كې دنبي عَلَيْهِ السَّلَام په نكاح كې نهه بيبياني وې چې پكې د اتو بيبيانو نمبر مقرر وو. (متفق عليه)

**توضيح: تسع نسوة:** د نبي كريم ﷺ ټولې يوولس بيبياني وې حضرت خديجه رضي الله عنها او حضرت زينب خزاعيه وفات مخكې شوې وو په دې حديث كې د هغې ازواجو ذكر دى كومې چې د نبى كريم د وفات په وخت كې ژوندۍ وې. دا ټولې نهه بيبياني وې، چې نومونه يې دا دي:

١. ام المرمنين عائشه صديقه رضي الله عنها
٢. ام المومنين حفصه رضي الله عنها
٣. ام المومنين زينب رضي الله عنها
٤. ام المومنين ام سلمه رضي الله عنها
٥. ام المومنين صفيه رضي الله عنها
٦. ام المومنين سوده رضي الله عنها
٧. ام المومنين ميمونه رضي الله عنها
٨. ام المومنين جويريه رضي الله عنها
٩. ام المومنين ام حبيبه رضي الله عنها

په دوى كې صرف د اتو نمبر مقرر وو حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خپل نمبر حضرت عائشې رضي الله عنها له وركړى وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له د طلاق وركولو اراده كړې وه خو حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته عرض وكړو چې ماله طلاق مه راكوه ځكه چې په دې اميد چې په جنت كې به ستاسو بى بى يم او زه خپل نمبر عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له وركومه. (المرقات ٣٧٨،٣٧٩/٦)

**د حضور اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د كثرت ازواجو بحث**: عامو كفارو او اكثرو ملحدين دا اعتراض كړى دى چې د مسلمانانو نبى حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دومره ډير ودوونه ولې كړې وو او دومره ډيرې بيبياني يې ولې ساتلې وې.

**جواب:** اهل اسلام او علماء كرام د دې جواب هم وركړى دى او كثرت ازواجو كې چې كوم مصلحت او ضرورت دى هغه يې هم بيان كړى دى نو حقيقت دا دى چې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو ډير لوى مصلحت اوحكمت لاندې ډيرې نكاح ګانې كړې وې په دې كې څه نفساني خواهش نه وو ځكه

---

(١) أخرجه البخاري فى صحيحه ٩/١١٢ رقم الحديث ٥٠٦٧ ومسلم في ٢/١٠٨٦ رقم الحديث (١٤٦٥.٥١) والنسائي في ٦/٥٣ الحديث ٣١٩٧ وأحمد في المسند ١/٢٣١

حضور ﷺ د ۲۵ کالو د ځوانۍ په عمر کې د ۴۰ کالو یوې معمرې ښځې حضرت خدیجې سره نکاح کړې وه، دوه ځله کونډه شوې وه که حضور نفسانی خواهش مجبوره کړی وی نو هیچرې به یې دا نکاح نه وه کړې ځکه چې په قریشو کې د هغه دپاره جینکۍ ډیرې وې. تر څو پورې چې حضرت خدیجه موجود ه وه نو ۵۳ کالو پورې حضور دویم واده نه وو کړی. د حضرت خدیجې د وفات نه پس حضور ﷺ د یو څو حکمتونو د وجې په کثرت ازواج باندې عمل وکړو چې په هغې کې دا لاندې حکمتونه پټ وو. ۱. ازدواجي زندګي او د کور معاملات دا د نیم دین برابر دي، نیم شریعت یوه یا دوه بیبیانې ټول امت ته نشي رسولی دایو واضح حقیقت دی چې ازواج مطهراتو د دین یوه لویه حصه امت ته رارسولې ده او یوه لویه حصه یې محفوظه کړې ده. د هجرت نه پس دا مسائل او احکامات ډیر زیات شول په دې وجه حضور ﷺ د بیبیانو په تعداد کې اضافه وکړه د حضرت عائشې نه علاوه ټولې کونډې وې او د خواهش په بنیاد نه بلکه ضرورت وو. ۲. حضور ﷺ د اسلام خورولو دپاره د عربو په عامو قبیلو کښې رشتې قائمې کړې خلقو سره رشتې قائمولو سره به میل جول پیدا شو کله چې دا رشتې قائمې شوې نو خلقو کې قلبي احساسات او جذبات او عداوت اعتدال ته د راوستو موقع برابره شوه، او دا یو واضح حقیقت دی چې د حضور د دې رشتو په وجه چې کومو خلقو اسلام سره دښمنۍ وې هغه کمې شوې، پخپله ابوسفیان چې د کافرانو مشر وو کله چې ورته معلومه شوه چې د هغه لور ام حبیبه حضرت محمد ﷺ سره نکاح کړې د: نو هغه ووې "ذاک فحل لا یقدع" یعنی دا یو داسې ځوان دی چې دده خبره او پیغام نه ټکراویږي. ۳. د عربو بعضو قبیلو کې زیات تر خلق د مسلمانانو په غلامۍ کې راغلي وو حضور ﷺ په داسې قبیلو کې نکاح ګانې وکړې چې د ډیرو غلامانو د آزادۍ سبب جوړ شو د حضرت جویریه سره د نکاح په وجه ډیرو صحابه کرامو ډیر غلامان آزاد کړل چې دا قبیله اوس د حضور ﷺ د سخر کنې قبیله ده. ۴. حضور ﷺ له الله تعالی د څو سوو انسانانو برابر طاقت ورکړی وو په دې بنیاد باندې بیا حضور ﷺ له ډیر ودونه پکار وو، په حضور ﷺ باندې اعتراض کول د انساني حق د ضائع کولو برابر دی. نو مونږ د عیسائیانو نه تپوس کوو چې حضرت عیسی راده ولې نه وو کړی؟ نو د دې په څه جواب ورکوئ؟ مونږ تاسو نه دا تپوس کوو چې دې ستاسو نبي تاسو ته د ازدواجي ژوند متعلق څه تعلیم درکړی دی؟ چې په هغې تاسو عمل وکړئ په کورني معاملاتو کې په زرګونو مسائل موجود دي تاسو لره د دې څه حل موجود دی، ستاسو په دین کې د دې کمی دی، او هغه کمی د حضرت محمد ﷺ دین پوره کړی دی. چې مونږه په حضرت عیسی د برحق نبي کیدو اعتراض نه کوو نو بیا تاسو په نبی برحق حضرت محمد باندې اعتراض ولې کوئ.

## ښځه خپل نمبر خپلې بن له ورکولی شي

﴿٢﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ سَوْدَةَ لَمَّا كَبِرَتْ قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې کله د حضرت سودې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عمر زيات شو نو هغې عرض او کړو چې ای د الله رسوله!

قَدْ جَعَلْتُ يَوْمِي مِنْكَ لِعَائِشَةَ فَكَانَ

تاسو چې زما دپاره کومه ورځ مقرر کړې ده زه هغه حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورکومه دې نه پس بيا

رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَسِّمُ لِعَائِشَةَ يَوْمَيْنِ يَوْمَهَا وَيَوْمَ سَوْدَةَ متفق عليه (صَحِيح)[1]

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کره دوه ورځې تيرولې يوه ورځ د هغې خپله او بله د حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورځ.

﴿٣﴾ وَعَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْأَلُ فِي

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په بيمارۍ کې په کومه کې چې د هغوی

مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ: «أَيْنَ أَنَا غَدًا؟»

وفات وشو روزانه به يې دا تپوس کولو چې سبا ته به چاکره يم سبا ته به د کومې بي بی کور ته ځم

يُرِيدُ يَوْمَ عَائِشَةَ فَأَذِنَ لَهُ أَزْوَاجُهُ يَكُونُ حَيْثُ شَاءَ

دې د عائشهؓ نمبر ورځ ئې غوښتله نو ټولو دا اجازت ورکړو چې د چا کره ئې زړه غواړي نو هلته دې او سيږي، بيا

فَكَانَ فِي بَيْتِ عَائِشَةَ حَتَّى مَاتَ عِنْدَهَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

حضرت عائشهؓ کره مقيم شو او هم هلته د حضرت عائشهؓ کره يې وفات وشو. (بخاری)

**توضيح: فاذن له ازواجه:** د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره ډيره مينه وه، په دې وجه د بيمارۍ په حالت کې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ د قلبي سکون حاصلولو دپاره د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نمبر بار بار تپوس کولو د پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ اراده هم داوه چې هغه له د حضرت عائشې کره د تلو اجازت ټولې بيبيانې ورکړي دې دپاره ټولو اجازت ورکړو. او د هغه انتقال د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کره وشو او عجيبه اتفاق وو چې کله د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نمبر راغی نو د پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په نمبر کې انتقال وشو او حضرت سودې خو مخکې خپل نمبر حضرت عائشې له ورکړی وو. خلاصه دا ده چې يو بن خپل نمبر بلې بن له ورکولی شي په دې شرط

---

(1) أخرجه البخاری في صحيحه ٩/٣١٢ رقم الحديث ٥٢١٢، ومسلم في ٢/١٠٨٥ رقم الحديث (١٤٦٣.٤٧) وابن ماجه في السنن ١/٦٣٤

(2) أخرجه البخاری فی صحيحه ٩/٣١٧ رقم الحديث ٥٢١٧ وأحمد في المسند ٦/٧٦.

چې د خاوند د طرفه جبر نه وي او نه د خاوند څه غلطه اراده یا څه لالچ وي دلته یو څو ضروري نکتې دي چې علامه طیبي بیان کړې دي:۱.که یوه ښځه خپل نمبر خپلې بن له ورکوي نو د خاوند دپاره یې قبلول لازم نه دي دهغه اختیار دی که قبلوي یې او که نه.۲.خاوند چې کله د یوې بي بي متعلق نمبر قبول کړي نو هغه به اوس د بل وخت هلته تیروي کومې ښځې ته چې دوه نمبرې ملاو شوې، خو ښځې ته دا اختیارنشته چې اضافه نمبر مسترد کړي.۳.خپل نمبر تحفه کونکې ښځه چې کله وغواړي رجوع کولی شي داد هغې مرضي ده.۴.دا هم جائز دي چې ښځه براه راست خپل نمبر خاوند ته عطیه کړي بیا خاوند ته اختیار دی چې کومې ښځې د پاره یې مقرروي.۵.او که یو بي بي خپل نمبر ترک کړه خو د چا دپاره مقرر نه کړه اوس خاوند به ټولو بیبیانو سره نمبر برابر ساتي، البته د تحفه کونکې ښځې نمبر هم ختم شو.۶. نمبر تحفه کولو دپاره څه روپۍ وغیره اخستل جائز نه دي.(المرقات ۳۸۱/۶،کاشف ۳۳۳/۶)

## په سفر کې بوتلو دپاره په بیبیانو کې پچه اچول (قرعه اندازي)

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې کله به رسول کریم صلی الله علیه وسلم د سفر اراده کوله نو د بیبیانو په |
| أَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهِ فَأَيَّتُهُنَّ خَرَجَ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا مَعَهُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| مینځ کې به یې قرعه اندازي کوله د چا نوم به چې په قرعه اندازۍ کې راووته نو هغه به یې ځان سره بوتلله |

**توضیح : اقرع**: په سفر کې بوتلو د پاره د بیبیانو په مینځ کې قرعه اندازي کول د امام شافعي په نزد واجب دي، خو د امام مالک او امام ابو حنیفه په نزد په سفر کې د بي بي بوتلو دپاره قرعه اندازي ضروري نه ده. بلکې خاوند ته اختیار دی چې څوک بوځي. بغیر د قرعه اندازۍ نه. امام شافعي په دې مذکور حدیث سره استدلال کړی دی، کوم چې بالکل واضح دی چې پیغمبر علیه السلام به په سفر کې بوتلو د پاره قرعه اندازي کوله.امام مالک او امام ابو حنیفه فرمایي چې په سفر کې د نمبر نظام او ترتیب ختم شوی دی نو چې کله سفر کې د ښځې بوتلل واجب نه دي نو قرعه اندازي څنګه واجب شوه؟ په حدیث کې چې د قرعې کوم ذکر راغلی دی دا د تطییب خاطر د پاره وو چې په استحباب باندې محمول دی.(المرقات ۳۸۰/۶)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۹۳/۵ رقم الحديث ۲۶۸۸ ومسلم في ۲۱۲۹/۴ رقم الحديث (۲۷۷۰،۵۶) وابن ماجه في السنن ۶۳۳/۱ رقم الحديث ۱۹۷۰ والدارمي في ۱۹۴/۲ رقم الحديث ۲۲۰۸ وأحمد في المسند ۲۶۹/۶

## د نوې ناوې د پاره د نمبر مقررولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: مِنَ السُّنَّةِ |
| او حضرت ابو قلابه (تابعي) د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کړې دی چې هغوی فرمايلي دي چه مسنون ده |
| إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ الْبِكْرَ عَلَى الثَّيِّبِ أَقَامَ عِنْدَهَا سبعاً |
| چې کله يو کس د ثيبې په موجودګۍ کې د يوې باکرې سره نکاح وکړي نو ورسره دې اووه (۷) شپې اوسي |
| وَقسم إِذا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا |
| اوسي او بيا دې نمبر واري مقرر کړي او که ثيبې سره نکاح وکړي نو هغې سره دې درې شپې تيرې کړي |
| ثُمَّ قَسَمَ. قَالَ أَبُو قِلَابَةَ: وَلَو شِئْت لَقلت: إِن أَنَسًا |
| او بيا دې نمبر واري مقرر کړي. حضرت ابو قلابه فرمايي که چيرې زه وغواړم نو وبه وايم چې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متفق عليه (صَحِيح)[1] |
| دا حديث د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کړی دی. |

**توضيح: اقام عندها سبعاً**: که چيرې د يو کس د يو نه زياتې بيبيانې وي نو اتفاقًا د ټولو په نزد په هغوی کې عدل او انصاف قائمول واجب دي او داسې که چيرې خاوند نوی واده کړی وي نو که باکرې سره يې واده کړی وي نو د اووه ورځو نه مخکې دې هغې سره اوسي، او ثيبه سره دې درې ورځې اوسيږي، په دې کې د چا اختلاف نشته البته اختلاف په دې کې دی چې کله دا اعزازي او اضافي ورځې ختمې شي نو بيا باقي بيبيانو ته هم دومره ورځې ورکول دي او که نه دا صرف د نوې ناوې د پاره اعزاز دی. (المرقات ۳۸۱/۶)

**د فقهاء کرامو اختلاف**: جمهور فرمايي چې په د نمبر کې وړاندې کيدل هم د نوې ناوې حق دی، او بيا دا ورځې د تقسيم نه مستثنی ساتل هم د نوې ناوې حق دی، اووه ورځې د باکرې ښځې او درې ورځې د ثيبې ښځې دي، نمبر د دغو ورځو نه پس شروع کيږي، دا د موج ورځې دي د سوچ ورځې نه دي. (المرقات ۳۸۱/۶)

امام ابو حنيفه فرمايي چې صرف وړاندې کيدل د دې نوې ناوې حق دی د تاليف او تانيس په غرض

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۱٤ رقم الحديث ۵۲۱٤،ومسلم في ۲/۱۸٤ رقم الحديث (۱٤٦۱.٤٤) وأبوداؤد في السنن ۲/۵۹۵ رقم الحديث ۲۱۲ والترمذي في ۳/٤٤۵ رقم الحديث ۱۱۳۹ والدارمي في ۲/۱۹٤ رقم الحديث ۲۲۰۹ ومالک في الموطأ ۲/۵۳۰ رقم الحديث ۱۵

سره دا ورځې به وړومبی دېته ملاویږي بیا به دا ورځې په نمبر کې شمیرلی شي څنګه چې نورې انتظار کوي داسې به دا هم انتظار کوي دا دهوش کار دی د جوش کار نه دی.

**دلائل:** جمهور د مذکوره دحضرت انس د روایت نه دلیل پیش کړی دی. جمهور فرمایي چې دا واضح حدیث دی او د شریعت قانون او ضابطه ده. (المرقات ۳۸۱/۶)

ائمه احنافو د دې سره د ابوبکر بن عبد الرحمن د روایت نه دلیل نیولی دی په هغې کې د حضرت ام سلمه رضي الله عنها واقعه ده چې په هغې کې تصریح (وضاحت) موجود دی چې دغه ورځې به په تقسیم کې شمارلی شي ځکه "سبعت عندک وسبعت عندهن" د دې الفاظو نه واضحه ښکاریږي چې دا ورځې د تقسیم نه بهر اضافي ورځې نه دي بلکې صرف وړاندې کیدل اعزاز دی. (المرقات ۳۸۱،۳۸۲/۶)

**جواب:** د جمهورو د دلیل نه جواب دا دی چې هلته د تفضیل او اعزاز او اکرام د ورځو د زیاتوالي د وجې نه دی، څنګه چې بیسی (کمیټي) اچولو دپاره دیو رکن ته د رعایت دپاره بیسی نمبر ورکولی شي د دې دا مطلب نه دی چې دا د دې ترتیب نه بهر شو.

**دویم جواب:** دا دی چې د حضرت انس روایت مجمل دی د دې تفصیل د حضرت ام سلمه په روایت کې شته دی لهذا د خپلول پکار دي یا دا چې نورو بیبیانو کې د صلحې صورت جوړ شي او د هغوی په مرضۍ سره دا اعزازي ورځې نوې ناوې تا ورکړی شي نو په دې کې بیا بحث نشته.

احنافو د قرآن کریم د هغه ایتونو نه دلیل پیش کړی دی چې په هغې کې په عدل او انصاف او برابرۍ باندې زور ورکړی دی خواه ښځه قدیمه وي او که جدیده دواړو کې فرق نشته.

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِالرَّحْمٰنِ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تَزَوَّجَ أُمَّ سَلَمَةَ |
| او حضرت ابوبکر بن عبد الرحمن وایي چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم کله د حضرت ام سلمه سره نکاح وشوه |
| وَأَصْبَحَتْ عِنْدَهُ قَالَ لَهَا: «لَيْسَ بِكِ عَلَى أَهْلِكِ هَوَانٌ |
| نو په دویم سحر ئې هغې ته وفرمایل چې ستا د خاندان والو دپاره او ستا له طرفه په دې کې هیڅ ذلت نشته |
| إِنْ شِئْتِ سَبَّعْتُ عِنْدَكِ وَسَبَّعْتُ عِنْدَهُنَّ وَإِنْ شِئْتِ |
| که ته غواړې نو زه به تاسره اووه شپې تیرې کړم او بیا به نورو بیبیانو سره او اووه شپې تیرې کړم، او که ته غواړې او که ته |
| ثَلَّثْتُ عِنْدَكِ وَدُرْتُ». قَالَتْ: |
| غواړې نو تاسره به درې شپې ایسار شم او دې نه پس به نورو بیبیانو سره، حضرت ام سلمه چې دا واوریدل نو عرض یې وکړه |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثَلِّثْ. | وَفِي | رِوَايَةٍ: | إِنَّهُ | قَالَ | لَهَا: | «لِلْبِكْرِ |
| چي ماسره دري شپې تيري کړه. په يو روايت کې د الفاظ راغلي دي چي حضور ﷺ ام سلمه ته و فرمايل چي باکرې سره | | | | | | |
| سَبْعٌ وَلِلثَّيِّبِ ثَلَاثٌ». رَوَاهُ مُسلم (جيد)[1] | | | | | | |
| او شپږ ثيبې سره دري شپې تيرول پکار دي. | | | | | | |

**توضيح:** على اهلک: دا اهل نه مراد د نبي کريم ذات مراد دى، يا د ام سلمه رضي الله عنها قبيله مراد ده او مفهوم واضح دى، يعنې دلته ستا هيڅ ناقدري نشته، خوشرعى مسئله دا ده چې د ثيبې حق درې ورځې دى که تا سره اوه ورځې تيرومه نو اوه ورځې به نورو بيبيانو سره تيرومه چې عدل او انصاف قائم وي. علماء کرامو ليکلي دي چې حضور ﷺ ام سلمه رضي الله عنها له بطور اعزاز او اکرام د باکرې درجه ورکړه او د اوو ورځو خبره يې ورسره وکړه دا ابتدائي کلام د آينده کلام دپاره بطور تمهيد دى بيايې وفرمايل چې که زه درې ورځې تا سره تيرې کړم نو زه به بيا نورو بيبيانو کره لاړ شم او س ته وو ايه ته کم صورت خوښوې، ام سلمه درې ورځې اختيار کړې چې شرعي قاعدې مطابق شي او ورځې به هم کمې شي نو حضور به دوباره زر د حضرت ام سلمه رضي الله عنها کره راشي.

ائمه احناف خپل مسلک دپاره په دې روايت سره دليل نيولى دى، او ټول شارحين هم دا بيان کوي چې د ام سلمه روايت د احنافو دليل دى، خو دا دليل په مکمل طور باندې واضح نه دى چې خصم خاموش شي ځکه چې ام سلمه کونډه وه او مونږ ته د باکرې او ثيبې دليل پکار دى، مګر دا چې ام سلمه له د باکرې درجه ورکړې شي څنګه چې بره اشاره شوې ده. (المرقات ۳۸۲/۶)

## قلبي محبت د قسم نه مستثنى دى

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ عَائِشَةَ: | أَنَّ النَّبِيَّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | كَانَ | يَقْسِمُ | بَيْنَ | نِسَائِهِ | |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول کريم ﷺ به د خپلو بيبيانو په مينځ کې نمبر مقرر کړى وو | | | | | | | | | | |
| فَيَعْدِلُ | وَيَقُولُ: | «اَللَّهُمَّ | هَذَا | قَسْمِي | فِيمَا | أَمْلِكُ | | | | |
| او عدل نه يې کار اخسته دا دعاء به ئې غوښتله چې اې الله! چې د کوم څيز زه مالک يم په دې ما نمبر مقرر کړې دى. | | | | | | | | | | |
| فَلَا | تَلُمْنِي | فِيمَا | تَمْلِكُ | وَلَا | أَمْلِكُ». | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَأَبُو دَاوُدَ | | |
| لهذا د کوم څيز چې ته مالک يې او زه يې مالک نه يم په دې ما مه ملامته کوه (روايت کړې دى دى لره ترمذى، او ابوداؤد | | | | | | | | | | |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۸۳/۲ رقم الحديث (۱٤٦۰،٤۲) وأبوداؤد في السنن ٥۹٤/۲ رقم الحديث ۲۱۲۲ والدارمي في ۱۹٤/۲ رقم الحديث ۲۲۱۰ ومالک في الموطأ ٥۲۹/۲ رقم الحديث ١٤ من كتاب النكاح

وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ والدارمي (صَحِيح)(۱)

او نسائی، ابن ماجه، دارمی) (صحیح دي)

## په بيبيانو کښې برابري نه کولو باندې سزا

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کړي دي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ او فرمائيل: چې

«إِذَا كَانَتْ عِنْدَ الرَّجُلِ امْرَأَتَانِ فَلَمْ يَعْدِلْ بَيْنَهُمَا

د کوم کس په نکاح کې (ديو نه زياتې مثلاً) دوه بيبيانې وي او هغه د دواړو په مينځ کې عدل و برابری نه کوي نو هغه به د

جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ سَاقِطٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

قيامت په ورځ (په ميدان حشر کې) په داسې حال کې راشي چې نيم بدن به يې ناکاره وی. روايت کړي دي ترمذی،

وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ والدارمي (مُتَّفَق عَلَيْهِ)(۲)

او ابوداود او نسائی او ابن ماجه او دارمی)

## په ازواج مطهراتو کې د نمبر مقررولو تفصيل

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۹﴾ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ: حَضَرْنَا مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ جَنَازَةَ مَيْمُونَةَ

حضرت عطاء ابن رباح تابعي وايي چې مونږ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په مقام سرف کې د ام المؤمنين

بِسَرِفَ فَقَالَ: هَذِهِ زَوْجَةُ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ميمونې په جنازه کې شريک وو نو حضرت ابن عباس وفرمايل چې (گورئ) دا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زوجه مطهره

فَإِذَا رَفَعْتُمْ نَعْشَهَا فَلَا تُزَعْزِعُوهَا وَلَا تُزَلْزِلُوهَا

ده چې کله د دې جنازه او چته کړئ نو ډير حرکت به نه ورکوئ (د تعظيم او تکريم د تهولو تقاضو به خيال ساتئ)

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۰۱ رقم الحديث ۲۱۳۴ والترمذي في السنن ۳/۴۴۶ رقم الحديث ۱۱۴۰ والنسائي في ۷/۶۳ رقم الحديث ۳۹۴۳ وابن ماجه في ۱/۶۳۳ رقم الحديث ۱۹۷۱، والداري في ۲/۱۹۳ رقم الحديث ۲۲۰۷ وأحمد في المسند ۶/۱۴۴

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۰۰ رقم الحديث ۲۱۳۳،والترمذي في ۳/۴۴۷ رقم الحديث ۱۱۴۱ والنسائي في ۷/۶۳ رقم الحديث ۳۹۴۲ وابن ماجه في ۱/۶۳ رقم الحديث ۱۹۶۹ والدارمي في ۲/۱۹۳ رقم الحديث ۲۲۰۶ وأحمد في المسند ۲/۳۴۷

وَارْفُقُوا بِهَا فَإِنَّهُ كَانَ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ډيره په مزه به يې او چټوئ ځکه چې دا په هغه ازواجو مطهراتو کې ده چا د پاره چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نمبر مقرر

تِسْعُ نِسْوَةٍ كَانَ يَقْسِمُ مِنْهُنَّ لِثَمَانٍ وَلَا يَقْسِمُ

کړي وو د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهه بيبيانې وې په دې کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د اتو د پاره نمبر مقرر کړې وو او د يوې د پاره نمبر نه مقرر

لِوَاحِدَةٍ قَالَ عَطَاءٌ: الَّتِي كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْسِمُ لَهَا بَلَغَنَا

شوی، حضرت عطاء وايي چه هغه زوجه مطهره چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورله نمبر نه وو مقرر کړی هغه

أَنَّهَا صَفِيَّةُ وَكَانَتْ آخِرهنَّ موتا مَاتَت بِالْمَدِينَةِ

صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وه او د رسول کريم صلى الله عليه وسلم په بيبيانو کې د ټولو نه په آخر کې په مدينه کې وفات شوه

وَقَالَ رَزِينٌ: قَالَ غَيْرُ عَطَاءٍ: هِيَ سَوْدَةُ

او د رزين بيان دی چې نورو ائمه د حديثو نه نقل دي چې هغه زوجه مطهره چې بلکه حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وه

وَهُوَ أصح وهبت يَوْمهَا لِعَائِشَةَ حِينَ

او دا قول صحيح دی او حضرت سودهؓ خپل نمبر ورځ حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له ورکړې وه کله چې

أَرَادَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طلاقَهَا فَقَالَتْ لَهُ:

حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت سودې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له د طلاق ورکولو اراده وکړه نو هغې ورته عرض اوکړو

أَمْسِكْنِي قَدْ وهبت يومي لعَائِشَةَ لعَلي أكون

چې زه خپل نمبر حضرت عائشې له ورکومه تاسو ما په خپله نکاح کې وساتئ چې په جنت کې ماته

من نِسَائِكَ فِي الْجَنَّةِ (أخرجه البخاري ومسلم)[1]

ستاسو په بيبيانو کې د شامليدو شرف حاصل شي.

**توضيح** : **قال عطاء**: د حضرت ميمونې نکاح په ۶ هجري کې په مقامِ سرف کې وشوه هلته شب زفاف وشو هم هلته دعوت وليمه او هم هلته وفات شوه او هلته دفن شوه او هم هلته يې قبر موجود دی. دا ځای د تنعيم نه مدينې طرف ته په وادي فاطمه کې دی او د سړک نه يې قبر په نظر راځي،

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۱۲ رقم الحديث ۵۰۶۷ ومسلم في ۲/۱۰۸۶ رقم الحديث (۱۴۶۵.۵۱) والنسائي في ۶/۵۳ رقم الحديث ۳۱۹۶ وأحمد في المسند ۱/۳۴۸

حضرت میمونه د حضرت ابن عباس ترور وه د مورنوم ئي هنده وو د هغې خپل نوم بره وو حضور اکرم ﷺ ورله میمونه کیخود. (المرقات ۶/۳۸۵)

**انها صفية:** د کومې زوجې مطهرې چې نمبر نه وو مقرر شوی هغه حضرت سوده وه، حضرت صفیه نه وه دلته د راوي نه غلطي شوې ده چې د صفيه نوم يې اغستی دی. دلته دوه متضاد روایاتونه دي مگر صحیح داده چې حضرت سوده وه. علامه خطابی فرمايي چې د عطاء په قول کې د نمبر معاف کولو والا حضرت صفيه وه دا د يو راوي نه غلطي شوې ده يعني حضرت عطاء خو د حضرت سوده نوم اغستی ووخو راوي د حضرت سوده په ځای د حضرت صفيه نوم ذکر کړی دی او دايې نقل کړی دی. په دې راویت کې دویمه غلطي دا شوې ده او دايې په کې ويلي دي چې د حضرت صفيه انتقال په آخر کې شوی دی دهغې انتقال پنځوس ۵۰ هجري ته نزدې شوی دی. دلته د حضرت میمونې ذکر بهتر دی ځکه چې دهغې انتقال په شپږ شپېته ۶۶ هجري کې وشو او د نورو بيبيانو انتقال زيات تر پنځوس ۵۰ هجري ته نزدې شوی دی اود حضرت عائشې وفات په اوه پنځوس ۵۷ هجري کې په مدينه کې شوی د، دا هم ویل شوې دي چې اته پنځوس ۵۸ هجري کې شوی دی. د حضرت سوده وفات په څلور پنځوس ۵۴ هجري کښې، د حضرت صفيه په پنځوس ۵۰ هجري کې يا يو څلويښت ۴۱ هجري کې، د حضرت ام سلمه په نهه پنځوس ۵۹ هجري کې، د حضرت ام حبيبه انتقال په څلور څلويښت ۴۴ هجري يا دري څلويښت ۴۳ هجري کښې، د حضرت زينب بنت حجش انتقال په شلم ۲۰ يا يويشتم ۲۱ هجري کې، او د حضرت جويريه انتقال په پنځوسم ۵۰ هجري کې وشو. اوس که دلته د حضرت میمونې نوم وو نو دا به بهتر وو ځکه چې د هغې انتقال د ټولو نه په آخر کې شوی دی، خو دلته بیا دا اشکال پیدا کیږي چې مذکور روایت کې "**ماتت بالمدينة**" الفاظ راغلي دي حالانکې د حضرت میمونې انتقال په مقامِ "**سرف**" کې شوی دی.

الله تعالى ډیر ښه پوهیږي چې په دې روایت کې دومره گډوډي ولې ده، شارحین عاجز او حیران دي چې څه وکړي.

# بَابُ عِشْرَةِ النِّسَاءِ وَمَا لِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنَ الْحُقُوقِ

## کورنی ژوند او د ښځې او خاوند د حقوقو بیان

قال الله تعالى (وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ) (نساء ۱۹)

وقال الله تعالى (وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِىْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ وَاللهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ) (بقرة ۲۲۸)

**عشرة النساء: عاشر يعاشر معاشرة وعشرة:** يو بل سره ملاقات، يوځاى اوسيدو ته "**عشرة**" وائي، د دېنه عشيره او عشائر ماخوذ دي، د سړي په خاندان، قبيلې او برادرۍ باندې چې مشتمل وي. عشير خاوند ته هم ويلى شي. دلته د ښځې او خاوند يوځاى د اوسيدو او ژوندګي تيرولو اصول او قواعد مراد دي.

**وما لکل واحدة:** د هر ښځې خپل حيثيت او کيفيت وي. بعضې پيغلې وي او بعضې واده کړې وي، بعضې مالداره وي او بعضې غريبې او بعضې ميانه حالې وي، او بعضې خوش اخلاقه او بعضې بد اخلاقه، د دې ټولو پيش نظر "**وما لکل واحدة**" لفظ استعمال شوى دى په دې کې د هر قسمه ښځې بيان دى، ورنه د دې لفظ د استعمالولو ضرورت نه وو، د مشکوة شريف د متن په ټولو نسخو کې **لکل واحدة** الفاظ دي، دا الفاظ ډير بهتر دي، ځکه چې په سړو او ښځو دواړو قسمه افراد شامل دى.

په دې باب کې هغه احاديث شامل دي چې په کې د ښځې او خاوند د کورني نظام، د هر يو حقوق، او دواړو ته د صبر او تحمل تاکيد او قواعد ذکر شوې دي، او د دواړو په مينځ کې د خوش اخلاقۍ څه مثالي قصو په شکل کې بيان شوې دي.

## د ښځو د تخليقي کمزورۍ خيال ساتل

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| «اسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا فَإِنَّهُنَّ خُلِقْنَ مِنْ ضِلَعٍ |
| چه د ښځو په حق کې د ښيګړې وصيت قبول کړئ ځکه چې دا د هغې پوښتۍ نه پيدا شوې دي چې کږه ده او د |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنَّ | أَعْوَجَ | شَيْءٍ | فِي | الضِّلَعِ | أَعْلَاهُ | فَإِنْ | ذَهَبْتَ | تُقِيمُهُ | كَسَرْتَهُ |

ټولو نه زيات کوږوالي په هغې پوښتۍ کې دي چې پورته ده لهذا که ته دديې د نيغولو کوشش کوې نو دا به مات شي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ | تَرَكْتَهُ | لَمْ | يَزَلْ | أَعْوَجَ | فَاسْتَوْصُوا | بِالنِّسَاءِ» | (صَحِيحٌ)[1] |

او که خپل په حالت کې يې پرېږدې نو دا به هميشه کږه وې نو په دې وجه د ښځو په حق کې د ښېګړې وصيت قبول کړئ.

**توضيح** : **من ضلع**: ضلع د ضاد کسرې او د لام فتحې سره پوښتۍ ته وايي، دا مفرد دی او اضلاع يې جمع ده،او دلته مراد د ټولو نه زياته کږه پوښتۍ ده، حضرت حواء د حضرت آدم د ورې پوښتۍ نه پيدا شوې ده چې د ټولونه زياته کږه وي، لهذا په دې وجه د ښځې په طبيعت او مزاج کې کوږوالي وي، دا د ښځې دتخليقي مزاج حصه ده، په دې حديث کې د ښځې عيبونه او نقصانونه بيانول مقصود نه دي،بلکې د هغوی د خلقت او استعداد او د طبيعت بيان شوی دی، کوم چې د هغوی نفسيات او استعداد او حالات دي د هغې مطابق په هغوی باندې بوج اچول پکار دي، که چيرې دهغوی د طبعي استعداد نه سوا پرې بوج اچوې نو د سيده کيدو په ځای به خراب حالت ته لاړې شي.خلاصه دا ده: چې د ښځو سره د هغوی د مزاج مطابق د ګزارې حده پورې زندګي تيرول پکار دي.(المرقات ۳۸۷/۶)

**فاستوصوا**: ددې جملې يوه ترجمه دا ده چې د ښځو باره کې چې کوم نصيحت او وصيت دی، د هغې په حق کې زما نصيحت او وصيت ښه قبول کړئ.دويمه ترجمه دا ده: چې په خپل مينځ کې د يو بل ښځو متعلق د ښيګړې خبرې کوئ په دې حديث کې ښځو سره د نرمۍ او د ښه سلوک تعليم ورکړی شوی دی، او د هغې په بداخلاقۍ باندې د صبر او برداشت (زغم) سبق ورکړی شوی دی. هغوی ته طلاق ورکول ناخوښه فعل ګڼلی شوی دی، چې د ښځې د مکمل برابرولو اميد او توقع نه لرل.( المرقات ۳۸۷/۶)

دا ياد ساتل پکار دي چې دا صبر په کور کې دورو جنګ جګړو باره کې دی،که ښځه په ښکاره په ښکاره ګناه کوي نو په سرو دا لازمه ده چې هغوی دې آزادې نه پرېږدي بلکې هغوی دې پابندې کړي او د آزادۍ اجازت دې نه ورکوي. دا پورته پوښتۍ نه هغه وره پوښتۍ مراد ده کومه چې د ملا سره ده.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد نقل کوي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۲۵۳ رقم الحديث ۵۱۸۶ ومسلم في ۲/۱۰۹۱ رقم الحديث (۱٤٦۸.٦۰)

| |
|---|
| «إِنَّ الْمَرْأَةَ خُلِقَتْ مِنْ ضِلَعٍ لَنْ تَسْتَقِيمَ لَكَ عَلَى طَرِيقَةٍ |
| چې ښځه چونکه د حضرت آدمؑ د پوښتۍ نه پیدا شوې ده ځکه چې دا په یو حالت کې هم سیده کیدی نه شي. لهذا که |
| فَإِنِ اسْتَمْتَعْتَ بِهَا اسْتَمْتَعْتَ بِهَا وَبِهَا عِوَجٌ وَإِنْ ذَهَبْتَ تقيمها |
| ته د هغې نه څه فائده اخلې نو د هغې نه به د کوږوالي په حالت کې فائده اخلې او که چیرې ته هغه سیده |
| كسرتها وَكسرهَا طلاقهَا». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)[1] |
| کول غواړې نو ماته به شي او ماتوالی یې طلاق دی. (مسلم) |

## ښځو سره ښه سلوک اختیارول

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه د حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی |
| «لَا يَفْرَكْ مُؤْمِنٌ مُؤْمِنَةً إِنْ كَرِهَ |
| چې په تاسو کې یو مسلمان سړی دې د یوې مسلمانې ښځې سره بغض نه ساتي که ستاسو په نظر کې ناخوښه وي |
| مِنْهَا خُلُقًا رَضِيَ مِنْهَا آخَرَ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| په هغه ښځه کې څه عادت، نو بل خوا به په هغې کې د خوښې عادت هم وي. (مسلم) |

**توضیح لایفرک** دا صیغه د نهې ده خو په نفي کې استعمال شوې ده، چې خاوند له دا مناسب نه دي چې د ښځې نه دې نفرت وکړي. **فرک یفرک سمع یسمع** بغض، حسد، او نفرت ته وایې. خاصکر د ښځې او خاوند په مینځ کې چې کوم نفرت او کراهت وي هغې ته "**الفرک**" وایې، ددې حدیث دا مطلب دی چې په یو کس کې ټول په ټوله عادات، حرکات او اخلاقیات خراب نه وي، که چیرې د یو انسان اعمال خراب وي نو په هغه کې به ښه عادات هم وي په یو نیم خراب عادت باندې بالکل پریخودل نه دې پکار بلکې د هغې د خرابو عاداتو نه علاوه د هغې ښو عاداتو ته کتل پکار دي. (المرقات ۳۸۹/۶) بالکل د عیب نه پاک یار لټولو والا بغیر د یار نه پاتې کیږي.

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۹/۲۵۲ رقم الحدیث ۵۱۴۸، ومسلم في ۲/۱۰۹۱ رقم الحدیث (۱۴۶۸.۵۹) والترمذي في السنن ۳/۴۹۳ رقم الحدیث ۱۱۸۸ والدارمي في ۲/۱۹۹ رقم الحدیث ۱۹۹ رقم الحدیث ۲۲۲۲ وأحمد في المسند ۲/۵۳۰

(۲) أخرجه مسلم في صحیحه ۲/۱۰۹۱ رقم الحدیث (۱۴۶۹.۶۱) وأحمد في المسند ۲/۳۲۹

خلاصه دا ده چې د ښځې ښو اخلاقو او ښائسته صفاتو او ښو عاداتو ته کتل او په بدو عاداتو باندې صبر کول دي.

## کوږوالی هرې ښځې ته په وراثت کې ملاو شوی دی

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ لَا بَنُو إِسْرَائِيلَ |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائيلي دي که بني اسرائيل نه وی نو |
| لَمْ يَخْنَزِ اللَّحْمُ وَلَوْ لَا حَوَّاءُ لَمْ تَخُنْ أُنْثَى زَوجَهَا الدَّهْرَ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| غوښه به نه خرابيده او که حواء نه وی نو يوې ښځې به هم خپل خاوند سره خيانت نه کوه. (بخاري ومسلم) |

**توضیح: لولا بنو اسرائیل:** بني اسرائيل په ميدانِ "تيه" کې سرکاري او شاهي ميلمانه وو هغوی ته به سحر او ماښام ترنجبين او تازه غوښه ملاويده خو هغوی يې د غوښې د ذخيره کولو نه منع کړې وو، هغو خلقو د حرص او لالچ په وجه غوښه ذخيره کول شروع کړل ددې نه مخکې به غوښه نه خرابيده او سزا په طور غوښه خرابيدل شروع شوا و ترننه ورځې پورې ټول انسانيت ته دا سزا ملاويږي. (المرقات ۳۸۹/۶)

**لم تخن:** دلته د خيانت نه مراد په مال يا دولت کې خيانت مراد نه دی بلکې دلته د خيانت نه مراد کوږوالی او اعوجاج دی کوم چې د زنانو په تخليق کې شامل دی. حضرت حواء حضرت آدم ته دغنم خوړولو وويل خو حضرت آدم ورته وفرمايل چې الله تعالی منع کړې يو، حضرت حواء ورته وفرمايل چې الله تعالی ددې ځای د باغ د ونې نه منع کړې يو مونږ به د بلې علاقې د ونې نه وخورو (ولاتقربا هذه الشجرة) مشار اليه يوه خاصه ونه ده کله چې حضرت حواء د ونې څانګه ونيوله او لاندې يې راخکته کړه نو څانګه ماته شوه، نو دهغې نه وينه روانه شوه څانګې ورته خيرې وکړې چې الله دې د تانه هم داسې وينه روانه کړي چې څنګه دې زمانه روانه کړه نو په دې وجه د ښځو ماهواري شروع شوه، ددې خيرو په وجه ښځو ته د حيض بيماري ولګيده، او دويمه دا چې د هغې په طبيعت کې د استقامت په ځای د کوږوالي بيماري پيدا شوه. (المرقات ۳۸۹،۳۹۰/۶)

## بغير ضرورته د ښځو وهلو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت عبد الله بن زمعه د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کړي دي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۳۰ رقم الحديث ۳۳۹۹ ومسلم في ۲/۱۰۹۲ رقم الحديث (۶۳.۱۴۷۰) وأحمد في المسند ۲/۳۰۴

| |
|---|
| «لَا يَجْلِدُ أَحَدُكُمْ امْرَأَتَهُ جَلْدَ الْعَبْدِ ثُمَّ يُجَامِعُهَا فِي آخِرِ الْيَوْمِ» |
| چې یو سړی دې خپله ښځه د غلام پشان په بې دردۍ نه وهي او بیا ورسره د ورځې په آخره حصه کې همبستري کوي. په یو |
| وَفِي رِوَايَةٍ: «يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ فَيَجْلِدُ |
| روایت کې داسې هم دي چې حضور ﷺ وفرمایل چې په تاسو کې یو کس اراده کوي او وهی |
| امْرَأَتَهُ جَلْدَ الْعَبْدِ فَلَعَلَّهُ يُضَاجِعُهَا فِي آخِرِ يَوْمِهِ». |
| خپله ښځه د غلام په شان او دا سوچ نه کوي چې په آخري حصه کې ورسره همبستري کوي |
| ثُمَّ وَعَظَهُمْ فِي ضِحْكِهِمْ مِنَ الضَّرْطَةِ فَقَالَ: «لِمَ يَضْحَكُ |
| بیا نبی عَلَیْهِ السَّلَام د هوا په خارجیدو باندې د خندا باره کې نصیحت وکړو چې یو کس په داسې کار پورې خندا کوي |
| أَحَدُكُمْ مِمَّا يفعل؟» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1] |
| حال دا دی چې هغه کار هغه پخپله هم کوي. (بخاري ومسلم) |

**توضیح: لایجلد:** یو طرف ته خو د زړه خوشحالولو د پاره یو قالب او یو جان شي ورسره ،او دویم طرف ته د ډنډه او چته کړي او د غلام او د خر په شان وهل ورکوي. (المرقات ۳۹۰/۶)

**ثم یجامعها:** دا ثم استبعادیه او استعجابیه دی چې د یو عقلمند سړي د پاره دا ډیره د حیرانتیا خبره ده چې وهل او ټکول یو ځای کوي او دا د وهلو په وخت کې دا خیال نه کوي چې د ورځې په آخري حصه کې یعنې د شپې په وخت دا سړی دې خپلې ښځې ته څومره محتاجه وي.
خپله بي بي شرعی حدودو په دائره کې په نافرمانۍ سره وهل جائز دي لیکن داسې نه چې د غلامانو په شان دې ووهی،دا یو ناخوښه عمل دی. (المرقات ۳۹۰/۶)

**فاضربوهن:** دا خو په قرآن کې دي او "ضرباً غیر مبرح" په حدیث کې دي . قرآن او حدیث د ظالمانه سلوک بالکل اجازت نه ورکوي، په حدیث کې دي چې وهل د ادب د پاره جائز دي.

**ضحکهم:** دلته دا سبق ورکولی شي چې کوم نقص په یو کس کې پخپله موجود وي او د هغې نقص په وجه نورو پورې خندا کوي نو ددې مطلب څه دی که چیرې دا د خندا څیز دی نو دا کار بیا پخپله ولې کوي، یعنی هر کس له پکار دي چې په نورو کې عیبونه لټوي نو ځان ته دې مخکې او ګوري

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۰۲ رقم الحديث ۵۲۰۴ ومسلم في ۴/۲۱۹۱ رقم الحديث (۲۸۵۵.۴۹) والترمذي في السنن ۵/۴۰۰ رقم الحديث ۳۳۴۳ وابن ماجه ۱/۶۳۸ رقم الحديث ۱۹۸۳ والدارمي في ۲/۱۹۸ رقم الحديث ۲۲۲۰ وأحمد في المسند ۴/۱۷

چې دا عيبونه خو په ما کې هم دي. بهرحال ددې حديث نه معلوميږي چې په هغه وخت کې به هم په مجلسونو کې د چانه هوا خارجه شوه نو دا به يو عيب ګڼلی شو، او صحابه کرامو به وربورې خندل. لهذا محفلونه د داسې نازيبه حرکاتو نه ځان محفوظ ساتل يو تهذيب دی خو که د مجبورۍ يا کمزورۍ له وجې نه هوا خارجه شي نو هغه پورې خندا کول پکار نه دي په دې سره به د هغه تذليل وشي. (المرقات ٦/٣٩١، ٣٩٠)

## د ماشومانو ګوډيانې

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كُنْتُ أَلْعَبُ بِالْبَنَاتِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې (کله زه وړه وم او زما د واده ابتدائي ورځې وې نو) ما به رسول کريم صلى الله عليه وسلم کره |
| وَكَانَ لِي صَوَاحِبُ يَلْعَبْنَ مَعِي فَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ګوډيانو سره لوبې کولې او زما همځولو به ماسره لوبې کولې او چې کله به رسول کريم صلى الله عليه وسلم کور ته |
| إِذَا دَخَلَ ينقمعن فيسربهن إِلَيَّ |
| تشريف راوړلو نو زما ملګرې به (د شرم له وجې) پټې شوې ليکن رسول کريم صلى الله عليه وسلم به هغوی ما ته |
| فيلعبن معي (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| واپس راوليږلې او هغوی به ماسره لوبې کولې. (بخاري و مسلم) |

**توضيح**: بنات: بنات د کپړې نه جوړې شوې ګوډيانو ته وايي ماشومانې دې سره لوبې کوي او په لاسونو يې جوړوي ددې نه مسلمانانې جينکو ته د کور په کار کې مدد ملاويږي او ددې وجې نه جينکو ته د روزنې پخولو، او د لين دين ښه طريقه زده شي. ګويا دا د جينکو د پاره په دستکارۍ کې د مهارت حاصلولو ابتدائي درس ګاه وي، شريعت ددې اجازت ورکړی دی، د پلاسټک ګوډيانې جوړول جائز نه دي ځکه چې دا ناجائزو مجسمو کې راځي کومې چې د ناجائزو تصويرونو په زمره کې راځي. ددې حديث نه د رسول کريم صلى الله عليه وسلم د سينې عظيم الشان پراخوالې پته لګي او دا يو خوشګوار کورني ماحول هم اندازه لګي او په دې کې د حسن معاشرت يو ډيرلوی تعليم موجود دی. (المرقات ٦/٣٩١)

ينقمعن: انقماع د پټيدو او غائبيدو په معنی سره راځي، په اصل کې انقماع په غار کې د پټيدو په معنی سره راځي. (المرقات ٦/٣٩١)

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٠/٥٢٦ رقم الحديث ٦١٣٠ ومسلم في ٤/١٨٩٠ رقم الحديث (٨١-٢٤٤٠) وأحمد في المسند ٦/٢٣٤

**فيسربهن**: د سرب تسريب معنى ليږل دي خواه يواځې وي يا د جماعت په شکل کې وي دلته داوړه معانې صحيح دي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغه ماشومانې زما طرف ته راوليږلې.(المرقات ۳۹۱/۶)

## په مسجد نبوی کې د جهاد مشق

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: وَاللهِ لَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُومُ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې ما وکتل (او ماته ډېر ښه ياد دي) چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولاړ وو زما د کور |
| عَلَى بَابِ حُجْرَتِي وَالْحَبَشَةُ يَلْعَبُونَ بِالْحِرَابِ فِي الْمَسْجِدِ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دروازې سره ولاړ وو او په مسجد نبوی کې حبشو خلقو په خپلو تورو يا خنجرونو مشق کولو او رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يَسْتُرُنِي بردائه لِأَنْظُرَ إِلَى لَعِبِهِمْ بَيْنَ أُذُنِهِ وَعَاتِقِهِ |
| زما دپاره د خپل څادر نه پرده جوړه کړې وه چې زه هم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غوږ او اوږې په مينځ کې د حبشيانو |
| ثُمَّ يَقُومُ مِنْ أَجْلِي حَتَّى أَكُونَ أَنَا |
| دا کرتب ووينم تر دې پورې چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ به تر هغه وخت پورې ولاړ وو چې زه به په خپله اخوا شوې نه وم ددې نه |
| الَّتِي أَنْصَرِفُ فَاقْدُرُوا قَدْرَ الْجَارِيَةِ الْحَدِيثَةِ السِّنِّ |
| تاسو د هغې وخت اندازه اولګوئ چې په کې يو کم عمره جينۍ تماشې ته ودريدې شي (يعنې خيال وکړئ چې کم عمره جينکۍ |
| الْحَرِيصَةِ على اللَّهو (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| لوبو تماشو کتلو څومره شوقيانې وي. لنډه دا چې حضور به ډېر وخته پورې هلته ولاړ وو او ما به هغه لوبه کتله |

**توضيح**: **والحبشة يلعبون بالحراب**: الحراب نيزې ته وايي. او (نيزه وړوکې توره يا خنجر وي) يعنې حبشو خلقو د برچو مشق کولو دحربي مظاهره به مسجد سره نزدې په کولاو ميدان کې وه مسجد ورته دې دپاره وايي چې مسجد سره ډېر نزدې وو، يا دلته د وضاحت ضرورت نشته ځکه چې دا مسجد وو. او د حبشيانو دا لوبې څه دنياوي نه وي بلکې د جهاد د مشق او تربيت حصه وه او دا عبادت دی لهذا په دې باندې نورې فضول لوبې قياس کول جائز نه دي. حضرت عائشه دغه وخت کې د ډېر عمر والا ښځه نه وه، دويم دا چې د حضور په موجودګۍ کې ټولو فتنو نه حفاظت وو که ظاهر وې او که باطن، د وحې د نزول زمانه هم وه، د فرشتو تلل راتلل هم و، د صحابه کرام په شان

(۱) أخرجه البخاری في صحيحه ۹/۳۳۶ رقم الحديث ۵۲۳۶ ومسلم في ۲/۶۰۹ رقم الحديث (۸۹۸.۱۸) وأبوداؤد في السنن ۵/۲۲۱ رقم الحديث ۴۹۲۳ والنسائی في ۳/۱۹۵ رقم الحديث ۱۵۹۵ وأحمدفي المسند۶/۱۶۶

یو جماعت هم موجود وو، او په دې کې د فتنې څه خطره هم نه وه. حضرت عائشه کتل دې نه ته دا پته ولګیده چې ښځه ناپیژند ګلو سړو ته بغیر د شهوت د نظر نه کتلی شي. بعضې علماو لیکلي دي چې دا واقعه د پردې د حکم نه مخکې وه. په دې باندې د نورو بالغو غیر محفوظو ښځو غیر محفوو ښځو قیاس کول قیاس مع الفارق دی، دا رنګې جهادی مظاهرو ته د جهاد په وجه په کتلو کې څه بندیز نشته، یعنی ممانعت نشته، ځکه چې دا یو عبادت دی. (المرقات ۶/۳۹۲،۳۹۱)

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت عائشه رَضِیَ اللهُ عَنهَا وایي چې (یوه ورځ) رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ ما ته و فرمایل چې ته کله ما نه |
| «إِنِّي لأَعلم إِذا كنت عني راضية وَإِذا كنت عني غَضْبَى» فَقُلْتُ: |
| خوشحاله یې نو ما ته پته لګي او کله چې ته مانه (په څه دنیاوي معامله) خفه یې نو ما ته دا هم پته لګي، ما عرض وکړو، |
| مِنْ أَيْنَ تَعْرِفُ ذَلِكَ؟ فَقَالَ: "إِذَا كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً فَإِنَّكِ تَقُولِينَ: |
| تاسو ته څنګه پته لګي؟ صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ و فرمایل کله چې ته مانه خوشحاله یې نو ته داسې وایې دا خبره |
| لَا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ وَإِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبَى قُلْتِ: لَا |
| داسې نه ده د محمد په پروردګار مې دې قسم وي او چې کله خفه یې نو داسې وایې چې دا خبره داسې نه ده د |
| وَرَبِّ إِبْرَاهِيمَ". قَالَتْ: قُلْتُ: أَجَلْ وَاللهِ |
| ابراهیم په پروردګار مې دې قسم وي (یعنې کله چې ته مانه ناراضه یې نو زما په نوم قسم نه خورې بلکه د ابراهیم پروردګار وایې) |
| يَا رَسُولَ اللهِ مَا أَهْجُرُ إِلَّا اسْمَكَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| حضرت عائشه وایي: چې ما عرض وکړو یا رسول الله دا خبره ټیک ده، لیکن زه صرف په غوسه کې ستاسو نوم نه اخلم نو رخو تاسو زما په زړه کې یې |

## د خاوند په ناراضتیا الله تعالی ناراضه کیږي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنهُ د حضور صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي |
| «إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَأَبَتْ |
| چې که یو سړې خپله ښځه د کور والي د پاره راوبلي او هغه ښځه انکار وکړي او بیا خاوند (د انکار په وجه) |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۲۵ رقم الحديث ۵۲۲۸ ومسلم في ۴/۱۸۹۰ رقم الحديث (۲۴۳۹.۸۰) وأحمد في المسند ۶/۶۱

| |
|---|
| فَبَاتَ غَضْبَانَ لَعَنَتْهَا الْمَلَائِكَةُ حَتَّى تُصْبِحَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا |
| تو له شپې په غوسه کې تيره کړي نو فرشتې تر له شپې پورې دغې ښځې لعنت ليږي. په بخاري او مسلم کې په يو روايت کې داسې هم دي |
| قَالَ: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا مِنْ رَجُلٍ |
| چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل قسم مې دې وي په هغه پاک ذات باندې چې د هغه په لاس کې زما ساه ده، چې کوم سړی |
| يَدْعُو امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَتَأْبَى عَلَيْهِ إِلَّا كَانَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ |
| خپله ښځه د کور والي د پاره را وغواړي او هغه انکار وکړي نو کوم ذات چې په آسمان کې دی هغه |
| ساخطا عَلَيْهَا حَتَّى يرضى عَنْهَا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| خته پورې ترې ناراضه وي تر کومې پورې چې خاوند راضي شوی نه وي. |

**توضيح: اذا ادعى الرجل امرأته:** يعنې شرعي عذر نه وي، او بغير د عذر نه که انکار کوي نو د ښځې د پاره وعيد دی، او شرعي عذر باندې وعيد نشته، دا انکار صرف د شپې د پاره نه دی بلکې د ورځې وې او که د شپې وې د شپې ذکر اغلبي دی، تر لو ته دا وعيد شامل دی (المرقات ۶/۳۹۳)

**الذي في السماء:** دا جمله د متشابهاتو نه ده، او سلف صالحين يې داسې ترجمه کوي چې هغه رب چې په آسمانونو کې دی.

**مايليق بشانه:** او دويمه ترجمه چې سلفو نه وروسته نور امت کړې ده هغه داسې ده چې هغه رب چې د هغه حکم په آسمانونو کې چليږي او په آسمانونو دهغه قبضه ده، د عامو نصوصو د واضحو اشارو نه دا معلوميږي چې الله په آسمانونو کې دی. (المرقات ۶/۳۹۳)

## د ښځ د سوزولو د پاره دروغ ويل حرام دي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَسْمَاءَ أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ لِي ضَرَّةً |
| حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې يوې ښځې عرض وکړو يا رسول الله! زما يوه بن ده که زه د هغې په مخکې |
| فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ إِنْ تَشَبَّعْتُ مِنْ |
| د خپل خاوند د يو داسې څيز اظهار وکړم چې هغه ماله چرته نه وي راکړی نو دا ګناه ده؟ (يعنې زما خاوند چې ماله څه راکوي که زه د خپلې |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۱۴ رقم الحديث ۳۲۳۸ ومسلم في صحيحه ۲/۱۰۶۰ رقم الحديث (۱۴۳۶.۱۲۲) وأبوداؤد في السنن ۲/۶۰۵ رقم الحديث ۲۱۴۱ والدارمي في ۲/۲۰۱ رقم الحديث ۲۲۲۸ وأحمد في المسند ۲/۴۳۹

| | | | |
|---|---|---|---|
| زَوْجِي | غَيْرَ | الَّذِي | يُعْطِينِي؟ |

بن د سوزولو دپاره د هغې مخکې د هغه څيز زيات ذکر وکړم چې ګوره ماته د تانمزياته ملاويږي نو په دې کښې څه بد والې شته؟

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | «الْمُتَشَبِّعُ | بِمَا | لَمْ | يُعْطَ | كَلَابِسِ |

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (او داخو ډيره بده خبره ده ځکه) چې د نه ورکړې شوې څيز اظهار کولو والا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثَوْبَيْ | زُورٍ» | متفق | عليه | (صَحِيح)(۱) |

د دوه دروغو کپړو اغوستونکي په شان دی (بخاري ومسلم)

**توضيح:** لابس ثوبي زور: يعني سراسر دروغ دی، د دروغو لباس مطلب دا دی چې عالم نه دی او د علماو په شان يې ځان جوړ کړی دی، صوفي او زاهد نه دی او کړه وړه يې د صوفيانو په شان دي. شعر:

ګدائے مست ملکا جا رہا ہے — لباس سبز کندھوں پر پڑا ہے

لباس سبز درویشی تو پہنا — دل درویش لیکن بے خدا ہے

د دوو کپړو نه لنګ او پورتنی څادر مراد دي، د دې حديث يو مطلب دا هم کيدی شي چې يو سړی سره د خلقو امانت دی او خلقو ته بنايي چې دا هر څه زما دي. (المرقات ۶/۲۹۳)

## دايلا مطلب

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ | أَنَسٍ | قَالَ: | آلَى | رَسُولُ | اللهِ | مِنْ نِسَائِهِ |

حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپلو بيبيانو نه يو

| | | | |
|---|---|---|---|
| شَهْرًا | وَكَانَتْ | انْفَكَّتْ | رِجْلُهُ |

مياشت ايلاء کړې وه په هغه زمانه کې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پښه کې بريخ راغلی وو يا اوړيدلې وه.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَقَامَ | فِي | مَشْرُبَةٍ | تِسْعًا | وَعِشْرِينَ | لَيْلَةً |

چنانچه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو کم ديرش ورځو پورې خپلې بالاخانې کې وو چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاندې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | نَزَلَ | فَقَالُوا: | يَا | رَسُولَ | اللهِ |

تشريف راوړلو نو خلقو ورته عرض وکړو چې يا رسول الله! نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو د يوې مياشتې پورې

(۱) أخرجه البخاري ۹/۳۱۷ رقم الحديث ۵۲۱۹ ومسلم ۳/۱۶۸۱ رقم الحديث (۲۱۳۰.۱۲۷) وأبوداؤد ۵/۲۶۹ رقم الحديث ۴۹۹۷.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| آلَیْتَ | شَهْرًا | فَقَالَ: | «إِنَّ | الشَّهْرَ |
| ایلاء کړې وه (او میاشت د دیرشو ورځو وي نو بیا تاسو په یو کم دیرشمه باندې ولې لاندې راغلئ؟) | | | | |
| یَکُونُ | تِسْعًا | وَعِشْرِینَ». | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ (صَحِیح)[1] |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې میاشت د یو کم دیرشو هم وي. (بخاری) | | | | |

**توضیح:** آلی رسول الله صلی الله علیه وسلم: دا لفظ د ایلاء نه دی او ایلاء قسم ته وایې. شاعر وایي:

**ویومًا علیٰ ظَهرِ الکثیبِ تعذرَت عليَ و آلت حِلفَةً لَم تَحللِ** یعنې یو ه ورځ محبوبې د شګو په غونډۍ باندې داسې قسم وخوړو چې د هغې نه د وتلو هیڅ صورت نه وو. ایلاء هغه قسم ته وایي چې خاوند خپلې ښځې ته ووایې چې د څلورو میاشتو پورې به زه تا ته نزدې نه درځم په دې باندې په عمل کولو سره ښځې ته یو طلاق بائن واقع شو چې د څلورو میاشتو وخت تیر شي، او که قسم یې مات کړو او پوره یې نه کړه او د څلورو میاشتو په دوران کې یې که خپلې ښځې سره کوروالی وکړو نو بیا به کفاره اداء کوي، اول دا چې غلام به آزادوي که غلام نه وي نو بیا به دوه میاشتې روژې نیسي که دا هم نشي کیدی نو بیا به شپیته ۶۰ مسکینانو ته ډوډۍ ورکوي. ددې تفصیل راروان دی، خو په دې حدیث کې شرعي او اصطلاحي ایلاء مراد نه ده بلکې دلته صرف لغوی ایلاء مراد ده بلکې دلته یو ې میاشتې پورې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انتظار کړی وو او ایلاء شرعی لحاظ سره څلورو میاشتو پورې انتظار کول دي.

**الفکت:** یعنی د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قدم مبارک کې بریښ راغلی وو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اس نه غورځیدلی وو چې د هغې په وجه یې په پښه کې بریښ راغلی وو. (المرقات ۳۹۵/۶)

## د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ایلاء قصه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ | جَابِر | قَالَ: | دخل | أَبُو بکر | رَضِيَ | الله | عَنْهُ | یَسْتَأْذِنُ |
| حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نو یو ورځ) حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او اجازت ئې واخستو د | | | | | | | | |
| عَلَىٰ رَسُولِ الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَوَجَدَ | النَّاسَ | جُلُوسًا | بِبَابِهِ |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یې د حاضریدو نو هغوی وکتل چې په دروازه باندې ډیر خلق جمع دي او چا | | | | | | | | |

[1] أخرجه البخاري في ۹/۳۰۰ رقم الحديث ۵۲۱۰ وأحمد في المسند.

لَمْ يُؤْذَنْ لِأَحَدٍ مِنْهُمْ قَالَ: فَأُذِنَ لِأَبِي بَكْرٍ فَدَخَلَ

هم د حاضریدو اجازت نشته، ابوبکر رضي الله عنه ته د حاضریدو اجازت ملاو شو او هغه د نبی علیه السلام په خدمت کې حاضر شو

ثُمَّ أَقْبَلَ عُمَرُ فَاسْتَأْذَنَ فَأُذِنَ لَهُ

بیا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه راغی هغوی هم اجازت واخستو هغه ته هم اجازت ملاو شو عمر چې کله د

فَوَجَدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا حَوْلَهُ نِسَاءُهُ وَاجِمًا

نبی علیه السلام په خدمت کې حاضر شو نو وې کتل چې د حضور علیه السلام نه بیبیانې ګیر چاپیره ناستې دي او نبی علیه السلام په

سَاكِتًا قَالَ فَقُلْتُ: لَأَقُوْلَنَّ

هغه وخت کې خفه او خاموش وو حضرت جابر وايي حضرت عمر رضي الله عنه چې کله دا صورتحال ولیدو نو په زړه کې یې وویل

شَيْئًا أُضْحِكُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ لَوْ

چې دا وخت ماله داسې خبره کول پکار دي چې حضور په خندا شي هغوی وویل یا رسول الله! که چیرې د

رَأَيْتَ بِنْتَ خَارِجَةَ سَأَلَتْنِي النَّفَقَةَ فَقُمْتُ إِلَيْهَا فَوَجَأْتُ عُنُقَهَا

خارجه لور (زما ښځه) زما نه خوراک څښاک د خرڅ د (د معمول نه) زیات وغواړي نو زه به پاڅم او هغې له به په څټ به یوه سپیړه ورکوم

فَضَحِكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ:

حضرت عمر رضي الله عنه دا خبره په داسې اندازه کې وکړه چې نبی علیه السلام په خندا شو او وې فرمایل چې

«هُنَّ حَوْلِي كَمَا تَرَى يَسْأَلْنَنِي النَّفَقَةَ»

دا (زما) بیبیانې چې تاسو زمانه ګیر چاپیره ناستې وینئ دوی زما نه د معمول نه زیاته خرڅه غواړي دي او ریدو سره

فَقَامَ أَبُو بكر إِلَى عَائِشَةَ يَجَأُ عُنُقَهَا وَقَامَ عُمَرُ

ابوبکر رضي الله عنه پاسیدو او خپله لور عائشه رضي الله عنها یې په څټ باندې ووهله. او داسې عمر رضي الله عنه هم پاسیدو

إِلَى حَفْصَةَ يَجَأُ عُنُقَهَا كِلَاهُمَا يَقُولُ: تَسْأَلِينَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او خپله لور حفصه رضي الله عنها یې په څټ باندې ووهله او بیا دواړو حضراتو وویل چې تاسو د نبی علیه السلام نه د داسې څیز مطالبه کوئ

مَا لَيْسَ عِنْدَهُ؟ فَقُلْنَ: وَاللهِ

چې دوی سره موجود نه دی هغوی وویل (بیشکه زمونږ مطالبې بې ځایه دي) په الله قسم! مونږ به چیرې هم د

لَا نَسْأَلُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا أبدا لَيْسَ عِنْدَهُ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا سې څيز مطالبه نه کوو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره موجود نه وي خو (نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د جدائي قسم کړې وو د ې د پاره د

ثُمَّ اعْتَزَلَهُنَّ شَهْرًا

قسم پوره کولو پاره نبي يو مياشت يا يو کم ديرش ورځو پورې جدا وو (په دې ځای کې راوي ته شک پيدا شوی دی چې دلته

أَوْ تِسْعًا وَعشرين ثُمَّ نزلت هَذِهِ الْآيَةُ: (يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قل لِأَزْوَاجِكَ)

حضرت جابر يو مياشت او که يو کم ديرش ورځې ياد کړې دي يا دا ايت (قل لازواجک نه اجرا عظيما) پورې نازل شو،

حَتَّى بلغ (للمحسنات مِنْكُن أجرا عَظِيمًا) قَالَ: فَبَدَأَ بعائشة

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (د دې ايت د نازليدو نه پس) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ټولو نه مخکې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره ملاو شو

فَقَالَ: «يَا عَائِشَةُ إِنِّي أُرِيدُ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته و فرمايل چې ای عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! زه تا ته يو خبره کول غواړم ليکن دا هم غواړم چې د دې په جواب کې

أَنْ أَعْرِضَ عَلَيْكِ أَمْرًا أُحِبُّ أَنْ لَا تَعْجَلِي فِيهِ حَتَّى تَسْتَشِيرِي أَبَوَيْكِ» قَالَتْ:

جلتي مه کوه بلکې د ې باره کې خپل مور پلار سره مشوره و کړه. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته عرض و کړو

وَمَا هُوَ يَا رَسُولَ الله؟ فتَلَا عَلَيْهَا الْآيَةَ قَالَتْ:

يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائي! څه خبره ده؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته پورتنی ايت واورولو، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

أَفِيكَ يَا رَسُولَ الله أَسْتَشِيرُ أَبَوَيَّ؟

چې دا ايت واوريدو نو عرض يې و کړو يا رسول الله! ولې زه ستاسو په معامله کې د خپل مور او پلار سره مشوره و کړم بلکې

بَلْ أَخْتَارُ اللهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ

ما الله او د رسول او آخرت کور اختيار کړی دی (د الله او رسول مرضي او خواهش په سر سترګو منم) خو ستاسو په

وَأَسْأَلُكَ أَنْ لَا تُخْبِرَ امْرَأَةً مِنْ نِسَائِكَ بِالَّذِي قُلْتُ:

خدمت کې دا درخواست کوم چې ما تاسو سره کومې خبرې و کړې د دې ذکر نورو بيبيانو سره مه کوئ، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل

قَالَ: «لَا تَسْأَلُنِي امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ إِلَّا أَخْبَرْتُهَا إِنَّ اللهَ لَمْ يَبْعَثْنِي

دا زما د پاره ممکن نه ده که يو ه بنځه زما نه تپوس و کړي نو زه به ضرور ورته وايم الله تعالی زه د دې لپاره رالېږلی يم

| بَعَثَنِي | وَلَكِنْ | مُتَعَنِّتًا | وَلَا | مُعَنِّتًا |
|---|---|---|---|---|
| چې خامخا څوک په تکليف کې مبتلا نه شي بلکې الله تعالى زه دې له پاره راليږلى يم چې مخلوق ته د دين احکام | | | | |
| (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | مُسلم | رَوَاهُ | ميسرًا». | معلماً |
| زده کړم او په آسانۍ (يعنى دينى او دنيوى سکون) ورته ملاو شى. (مسلم) | | | | |

**توضيح:** **واجماً ساكتاً:** "**وجم يجم وجماً**" دغم په وجه خاموشۍ ته وجم وايې نو ګويا کې ساکتًا ددې تفسير او توضيح ده، بعضو ليکلې دي چې "وجم" غم ته وايې او د سکوت ذکر دلته د بيل کيفيت دپاره بيان شوى دى.

**آلى ايلاءً:** دلته هم ايلاء لغوي مراد ده يعنې يوه مياشت پورې کور ته د نه راتلو قسم خوړل.

**بنت خارجة:** حضرت عمر خپلې ښځې طرف ته اشاره کړې ده. (المرقات ۳۹۷/۶)

**سالتني النفقة:** يعنې که زما د طاقت نه زياته مطالبه کوي نو زه به ورته سزا ورکوم (المرقات ۳۹۷/۶)

**وجأت:** وجأ په مرې زور کولو دپاره استعمالېږي، خو دلته په څټ باندې وهل دي، او رستو هم په حديث کې دا لفظ د داسې وهلو دپاره استعمال شوى دى، حضرت عمر د خپلې ښځې د خوراک څښاک نه انکار نه کوي خو که د هغه د حيثيت نه زياته غواړي نو بيا به داسې عمل وي.

**ثم نزلت:** يعنې ايت تخيير نازل شو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تخيير ايت واورولو ټولو بيبيانو د الله او د رسول لاره اختيار کړه. د جمهورو علماو په نزد باندې خپلې ښځې ته "اختارى" ويلو سره طلاق نه واقع کېږي او که ښځه يې طلاق اختيار کړي نو طلاق بائن وشو. (المرقات ۳۹۷/۶)

**لاتعجلي:** يعنې اى عائشې! زه تا ته يوه خبره کول غواړم ته په جواب کې جلتي مه کوه خپل مور او پلار سره مشوره وکړه او بيا جواب راکړه. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خيال دا وو چې عائشه کم عمره او ناتجربه کاره ده چيرته طلاق اختيار نه کړي په دې باندې به يې مور او پلار ته تکليف ورسي، او نورې امهات المؤمنين به هم د حضرت عائشې په شان طلاق اختيار کړي نو ټولو ته به پريشاني وي.

**ان لاتخبر امرأة:** حضرت عائشې دا خوښه کړه چې د هغې جواب پته نورو ازواجو ته ونه لګي نو ممکن ده چې هغوى طلاق اختيارکړي او طلاقې شي.دا يوه انساني جذبه ده چې انسان سره لګيدلې ده او خاص طور باندې بنو کې دا خبرې ډيرې وي .بيا به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ډيره د

---

(1) أخرجه مسلم في ۱۱۰۲/۲ رقم الحديث (۱۴۷۸.۲۹)

ملاقات موقع ملاویږي د علم د حصول لپاره، او دا غرض یو فاسد غرض نه دی. (المرقات ۳۹۸/۶)

**مشربة:** د اوبو ځای ته وایي او دلته یوه کمره او بالا خانه مراد ده چې مسجد نبوی سره نژدې وه.

**معنتًا:** یعنې تکلف کول او ځوک په تکلف کې اچول، یعنې نه ځوک په مشقت کې اچول او نه چا لپاره د مشقت خوښول.

**واقعه** : کله چې خیبر فتح شو نو صحابه کرامو سره مالونه هم زیات شول، بعضو ازواج مطهراتو حضوراکرم ته د خرچې د زیاتولو درخواست وکړو په دې سره حضوراکرم ﷺ ناراضه شو او بیبیانو کره دیوې میاشتې پورې دنه تلو قسم یې وخوړلو او مسجد سره نژدې بالاخانه کې یې یوه میاشت تیره کړه بیا تخییر نازل شو، دا واقعه او د خرڅ خبره د ابتداء خبره وه، دې نه پس چې مکمل فراخي راغله نو حضور اکرم ﷺ خپلو بیبیانو له دیوکال خرچه مخکې ورکوله د حضرت عائشې نه علاوه نورو ټولو بیبیانو به خرچه اخستله.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَن عَائِشَةَ قَالَت: كنت أغار من اللَّاتِي وَهَبْنَ أَنْفُسَهُنَّ لِرَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وایي چې ما به هغه ښځو ته په ښه نظر نه کتل چه خپل نفس به یې نبی ﷺ د پاره هبه کوه. | | | | | | | |
| فَقُلْتُ: | أَتَهَبُ | الْمَرْأَةُ | نَفْسَهَا؟ | فَلَمَّا | أَنْزَلَ | الله | تَعَالَى: |
| چنانچه زه وایم چې آیا کومه ښځه خپل نفس هبه کولی شي؟ کله چې دا ایت نازل شو (ای محمدﷺ! په | | | | | | | |
| (تُرْجِي | مَنْ | تَشَاءُ | مِنْهُنَّ | وَتُؤْوِي | إِلَيْكَ | مَنْ | تَشَاءُ |
| دې ښځو کې چې ته کومه غواړې جدا یې کړه او چې کومه غواړې نو ځان سره یې وساته او چې کومې | | | | | | | |
| وَمَنِ | ابْتَغَيْتَ | مِمَّنْ | عَزَلْتَ | فَلَا | جنَاح | عَلَيْك) | قُلْتُ: |
| ښځې ته جدا کړې او که په هغوی کې کومه غواړې نو ګناه په کې نشته "نو ما (حضور ته عرض وکړو) | | | | | | | |
| مَا | أَرَى | رَبَّكَ | إِلَّا | يُسَارِعُ | فِي | هَوَاكَ. | مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] |
| چې زه دا وینم چې ستا پروردګار ستاسو مرضي او خواهش ډیر زر پوره کوي. (بخاری و مسلم) | | | | | | | |

وَحَدِيثُ جَابِرٍ: «اتَّقُوا اللهَ فِي النِّسَاءِ» ذُكر فِي «قِصَّة حَجَّةِ الْوَدَاعِ» (صَحِيح)

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۵۲۴ رقم الحديث ۴۷۸۸ ومسلم في ۲/۱۰۸۶ رقم الحديث (۱۴۶۴،۴۹) والنسائی في السنن ۶/۵۴ رقم الحديث ۳۱۹۹ وأبن ماجهی ۱/۶۴۴ رقم الحديث ۲۰۰۰ وأحمد في المسند ۶/۱۳۴.

او حدیث د جابر (اتقوا الله في النساء) ذکر شوی دی په قصه د حجة الوداع کې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## دحسن معاشرت بهترینه نمونه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۱۴﴾عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا كَانَتْ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ | | | |
| حضرت عائشه رضی الله عنها وایي چې زه یو ځل رسول کریم صلی الله علیه وسلم سره په یو سفر کې وم (په دې سفر کې په | | | |
| قَالَتْ: | فَسَابَقْتُهُ | فَسَبَقْتُهُ | عَلَى رِجْلَيَّ |
| یو موقع باندې) ما نبي علیه السلام سره د منډې مقابله وکړه او زه د نبي علیه السلام نه ډیره مخکې شوم بیا لږه موده | | | |
| فَلَمَّا | حَمَلْتُ | اللَّحْمَ | سَابَقْتُهُ |
| پس زما بدن درونـد شو نو بیا زمونږه د منډې مقابله وشوه دې ځل کې نبي علیه السلام زما نه مخکې شو | | | |
| فَسَبَقَنِي | | قَالَ: | «هَذِهِ |
| نبي علیه السلام وفرمایل چې دا د وړمبنی مقابلې بدله وه (یعنې وړومبنی تا ګټلې وه او اس ما وګټله | | | |
| بِتِلْكَ السَّبْقَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] | | | |
| لهذا دواړه برابر شو. (ابوداؤد) | | | |

**توضیح**: فسابقته: دا دیو سفر واقعه ده چې صحرائي میدانونو کې ښځه او خاوند د منډې مقابله کوي نو په دې کې د پردې او حجاب څه منافات نشته او نه د نن سبا د بې حیاء جینکو په شان د فساد سره مشابهت شته. (المرقات ۶/۴۰۰)

**برجلي**: دا لفظ د پیدل منډې دپـ ره ستعمال شوی دی. د دې واقعې نه دا معلومیږي چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د خپلو بیبیانو سره د حسن معاشرت او د حسن معاملې مثال نه ملاویږي. علامه قاضي خان لیکلي دي چې په څلورو ځیزونو کې د منډې مقابله جائز ده. په اوښ، په اس یا په قچر، په غشي ویشتلو کې، او پیدل منډه کې، خو په دې کې د یو بل سره شرط لګول حرام دي. د یو طرف نه جائز دی چې یو کس ووایې چې راځه مقابله وکړو که ما وګټله نو ماله به پنځه سوه روپۍ راکوې او که تا وګټله نو څه به څه نه درکومه. او په دې صورت کې هم جائز دي چې په مینځ کې "محلل"

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ٣: ٦٥ رقم الحديث ٢٥٧٨ وابن ماجه في ١/٦٣٦ رقم الحديث ١٩٧٩ وأحمد في المسند ٦/٣٩.

موجود وي يعني زيد اوبكر دواړوطرف نه شرط ليدلى دى او ورسره يې دريم كس هم په مقابله كې شامل كړداو ورته يې وويل كه په مونږه كې كوم كس مخكې شو نو ورستنى به ورله پنځه سوه روپۍ وركوي، ليكن كه محلل مخكې شو نو هغه ته به څه نه ملاويږي.په دې صورت كې د شرط والا منډه جائز كيدى شي، او كه يو انجمن يا كمپنۍ اعلان وكړي چې مخكې وتونكي ته به مونږ دومره رقم وركوو دا هم جائز ده دا د انعام صورت د."هذه بتلک السبقة" يعنې داكاميابي د هغې ناكامۍ بدله كې ده."تلک بتلک"( المرقات ۶/۴۰۰)

## په مړو تبصرې مه كوئ

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خَيْرُكُمْ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي په تاسو كې بهترين كس هغه دى |
| خَيْرُكُمْ لِأَهْلِهِ وَأَنَا خَيْرُكُمْ لِأَهْلِي |
| چې د خپل اهل او عيال په حق كې بهترين وي او زه د خپل اهل او عيال په حق كې د تاسو نه بهترين يم |
| وَإِذَا مَاتَ صَاحِبُكُمْ فَدَعُوهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. والدارمي[1] (صَحِيح) وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ |
| او كله چې ستاسو صاحب مړ شي نو هغه پريږدئ (ترمذى،ودارمى) او ابن ماجه دا روايت د حضرت |
| عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ إِلَى قَوْله: «لأهلي» (صَحِيحٌ)[2] |
| ابن عباس د لفظ لاهلي پورې نقل كړى دى. |

**توضيح: واذا مات صاحبكم فدعوه:** په تاسو كې چې يو مسلمان ملګرى وفات شي نو هغه پريږدئ اوس د هغه غيبت مه كوئ، عيبونه يې مه راوباسئ او بې ځايه تبصرې پرې مه كوئ يا يې مطلب دادى چې د مرګ نه پس ورپسې ژړل مه كوئ.

**ياصاحبكم:** نه مراد رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دى مطلب دا دى چې اوس د وفات نه پس په حضور اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې غم او ماتم مه كوئ.په مړو باندې درې ورځو پورې غم كول جائز دي درې ورځو نه زيات جائز نه دي.هان ښځه په خپل خاوند باندې څلورو مياشتو او لس ورځو پورې غم

[1] أخرجه الترمذي في السنن ٥/٦٦٦ رقم الحديث ٣٥٩٥ والدارمي في ٢/٢١٢ رقم الحديث ٢٢٦٠.

[2] أخرجه ابن ماجه في السنن ١/٦٣٦ رقم الحديث ١٩٧٧

کولی شي.(المرقات ۶/۴۰۰)

## دا طاعت کونکو بیبیانو فضائل

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْمَرْأَةُ إِذَا صَلَّتْ خَمْسَهَا وَصَامَتْ شَهْرَهَا وَأَحْصَنَتْ فَرْجَهَا وَأَطَاعَتْ بَعْلَهَا فَلْتَدْخُلْ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شَاءَتْ». رَوَاهُ أَبُو نعيم فِي الْحِلْيَة (صَحِيحٌ)[1]

حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې کومې ښځې (د خپلې پاکی په ورځو کې په پابندۍ سره) پنځه وخته مونځ وکړو په رمضان کښې (اداء او قضاء) روژې ونيولې، دخپلې شرمګاه حفاظت يې وکړو او د خاوند په هغو څيزونو کې يې فرمانبرداري وکړه نو (داسې ښځې د پاره زيرې دی چې) دجنت په کومه دروازه داخليدل غواړي داخله دې شي. دا روايت ابو نعيم په حلية الابرار کې نقل کړی دی.

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: «لَو كُنْتُ آمُرُ أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَن تسْجد لزَوجهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2]

حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي که ما چا ته د دې حکم ورکولی شوی چې غير الله ته سجده وکړئ نو ما به يقيناً ښځو ته دا حکم کړی وو چې خپل خاوند ته سجده وکړئ.(ترمذی)

## يو بل فضيلت

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ مَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَنْهَا رَاضٍ دَخَلَتِ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[3]

او حضرت ام سلمه رضي الله عنها وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې کومه ښځه په داسې حال کې مړه شوه چې د هغې خاوند د هغې نه راضي وو نو هغه به جنت کې داخله شي.(ترمذی)

---

(۱) أخرجه مرقات ۳۲۵۲، كتاب ابونعيم حلية الاولياء

(۲) أخرجه الترمذی في السنن ۳/٤٦٥ رقم الحديث ۱۱۵۹

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ٣/٤٦٦ رقم الحديث ١١٦١ وابن ماجه في ١/٥٩٥ رقم الحديث ١٨٥٤

## په مشکل وخت کې د خاوند فرمانبرداري وکړئ

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا الرَّجُلُ دَعَا |
| حضرت طلق بن علي وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې کله يو سړی خپلې ښځه د خپل |
| زَوْجَتَهُ لِحَاجَتِهِ فَلْتَأْتِهِ وَإِنْ |
| حاجت پوره کولو دپاره (یعنی کوروالي دپاره) راوبلي نو ښځې له د خاوند خوا ته رسیدل پکار دي |
| كَانَتْ عَلَى التَّنور». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ (۱) |
| اګر که د تنور سره ولې نه وي. (ترمذی) |

**توضیح**: علی التنور: اګر که هغه ښځه په ډېر مشکل کار کې مصروفه وي او د کار پریخودو سره هغه کار ته د نقصان رسیدو خطره وي مثلاً که په ګرم تنور کې روټۍ لګیدلې وي او پریخودو سره به روټۍ وسوزي. دا په داسې صورت کې چې دا هر څه د خاوند وي چې هغه یې ضائع کول غواړي نو ښځې له پکار دي چې اطاعت وکړي ځکه چې که ښځه انکار وکړي او د خاوند نفساني خواهش پوره نه شي او خاوند څه بدکاري یا زنا وکړي په دې وجه کورني تعلقات خرابیدی شي چې ډېر نقصان دی که د ښځې هغه کار پریخودل ناممکن هم وي نو بیایې هم پریخودل پکار دي او د خاوند اطاعت دې وکړي. (المرقات ۴۰۲/۶)

## خاوند له تکلیف مه ورکوئ

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا |
| حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کړي دي چې نبی کریم فرمايلي دي چې کله یوه ښځه |
| تُؤْذِي امْرَأَةٌ زَوْجَهَا فِي الدُّنْيَا إِلَّا قَالَتْ زَوجته مِنَ الْحُورِ الْعِينِ: |
| په دنیا کې خپل خاوند ته څه تکلیف ورسوی نو د هغه (د جنت والا) ښځه یعنې غټو غټو سترګو والا حوره وایې |
| لَا تُؤْذِيهِ قَاتَلَكِ اللهُ فَإِنَّمَا هُوَ |
| چې الله تعالی دې تا د خپل رحمت نه لرې کړي، خپل خاوند ته تکلیف مه ورکوه ځکه چې هغه (په دنیا کې) |
| عِنْدَكِ دَخِيلٌ يُوشِكُ أَنْ يُفَارِقَكِ إِلَيْنَا". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ |
| ستا میلمه دی چې ډېر زر به د تا نه جدا شي او زمونږ خوا له (جنت ته) به راشي. (روایت کړی دی ترمذي او ابن ماجه) |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/٤٦٥ رقم الحديث ۱۱٦۰ وأحمد في المسند ۲۳/٤

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (حسن)[١]

امام ترمذي فرمايلي دي چې دا حديث غريب دی.

## د ښځې او خاوند حقوق

﴿٢١﴾ وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ الْقُشَيْرِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ

حضرت حكيم بن معاويه قشيري د خپل پلار نه نقل كوي چې هغوی عرض وكړو ای د الله رسوله! په موږ

مَا حَقُّ زَوْجَةِ أَحَدِنَا عَلَيْهِ؟ قَالَ: «أَنْ تُطْعِمَهَا إِذَا طَعِمْتَ

كې د ښځې په خاوند څه حقوق دي، نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې څنګه ته خوري په هغې هغه شان خوراک كوه

وَتَكْسُوَهَا إِذَا اكْتَسَيْتَ وَلَا تَضْرِبِ الْوَجْهَ وَلَا

او چې څنګه ته اغوندې هم هغه شان ورا غوندوه او په مخ يې مه وهه او هغې ته بد رد مه وايه او مه ورته

تُقَبِّحْ وَلَا تَهْجُرْ إِلَّا فِي الْبَيْتِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه[٢]

داسې وايه چې الله دې درسره بد كړه. او هغې نه صرف په كور كې جدائي اختيار كوه. (احمد، ابوداود، ابن ماجه)

**توضيح : ولاتضرب الوجه:** د بدن په ټولو حصو كې مخ د ټولو نه زيات عزت والا دی او په دې باندې وهلو نه منع شوې ده، په قرآن كريم كې الله تعالى د ښځو وهلو اجازت وركړی دی، حضور اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **"ضرباً غير مبرح"** فرمايلی دی حد بندي يې كړې ده، په يو حديث كې راغلي دي چې په قيامت كې به د خاوند نه (شرعي حدود كې دننه) د ښځې د وهلو په باره كې سوال نه شي كيدی.( المرقات ۴۰۳/۶)

**په څلورو خبرو په وجه خاوند خپله ښځه وهلی شي:** ۱.د خاوند د پاره ځان نه سنګار كول.۲. بغېر د عذر نه د كوروالي نه انكار كول.۳.د اسلام فرائض پريخودو باندې۴.بغير د اجازت نه د كور نه په وتو باندې،يعني په بې پردګۍ باندې به وهلی شي، قرآن كريم دا ترتيب دی.(**واللاتي تخافون نشوزهن فعظوهن واهجروهن في المضاجع واضربوهن**) (سورة نساء ۲۴) او په حديث كې دي "**ولا ترفع**

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٣/٤٧٦ رقم الحديث ١١٧٤ وابن ماجه في ١/٦٤٩ رقم الحديث ٢٠١٤ وأحمد في المسند٢/٢٤٢

(٢) أخرجه أبوداؤد في السنن ٢/٦٠٦ رقم الحديث ٢١٤٢ وابن ماجه ١/٥٩٣ رقم الحديث ١٨٥٠ وأحمد في المسند٤/٤٤٦

عنهم عصاك أدبًا".

**ولا تقبح:** ښځه په قبیحو الفاظو ... ... لکه ته خرابه يې، ته بد شکله يې، ځکه چې د ښځې اصل سرمایه د هغې د حسن تعریف دی ... ... بې عزتي باندې هغه مړه کېږي (المرقات ۴۰۳/۶)

## بدزبانه ښځې له طلاق ورکړه

| |
|---|
| ۲۲* وَعَنْ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ لِي امْرَأَةً |
| حضرت لقیط بن صبره رضي الله عنه وايي چې ما عرض وکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ! زما يوه ښځه ده |
| فِي لِسَانِهَا شَيْءٌ يَعْنِي الْبَذَاءَ قَالَ: |
| هغه ډېره بد اخلاقه ده او فضول خبرې د ژبې نه اوباسي، نبي علیه السلام وفرمايل: چې که صبر نه شې کولی |
| «طَلِّقْهَا». قُلْتُ: إِنَّ لِي مِنْهَا وَلَدًا وَلَهَا صُحْبَةٌ |
| نو بهتر دا ده چې طلاق ورله ورکړه، ما ورته عرض وکړو یا رسول الله د هغې نه زما اولاد دی او هغې سره زما زوړ تعلق او صحبت دی |
| قَالَ: «فَمُرْهَا» يَقُولُ عِظْهَا «فَإِنْ |
| نبي علیه السلام وفرمايل نو بيا ورته حکم ورکوه چې خپل عادات او رطور او طريقې ټيک کړه او نصيحت ورته کوه که په هغې کې |
| يَكُ فِيهَا خَيْرٌ فَسَتَقْبَلُ وَلَا تَضْرِبَنَّ ظَعِينَتَكَ ضَرْبَكَ أُمَيَّتَكَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| لږ غوندې ښيګړه وي نو نصيحت به قبول کړي او د وينځې په شان يې مه وهه. (ابو داؤد) |

**توضيح: عظها:** دا لفظ د مرها تفسير دی ظعينه هغې شريفې ښځې ته وائي کومه چې په کيجاوه کې په عزت سره ناسته وي، که عزت سره ناسته نه وي نو دا ظعينه نه ده، بيا په دې کې وسعت راغی هرې شريفې او خاص ښځې ته ظعينه ويلی شي دا لفظ د ژوند د ملګرې بهترين تعبير دی. علامه طيبي رحمه الله وايي چې عرب انتهائي شريفې ښځې ته ظعينه وائي. (الکاشف ۳۵۲/۶) شاعر وائي:

قفي قبل التفرق يا ظعينا  نخبرک اليقين و تخبرينا

اوس تاسو اوګورئ چې په دې حديث کې څومره بلاغت دی چې انتهائي شريفه او عزت داره ښځه د وينځې په شان مه وهئ.

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱/۹۷ رقم الحديث ۱۴۲ وأحمد في المسند ۴/۳۳

## دشرعي حدنه زيات د ښځو وهلو ممانعت

﴿۲۳﴾ وَعَنْ إِيَاسِ بْنِ عَبْدُاللهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «لَا

حضرت اياس بن عبد الله وايي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د الله تعالى وينځې (يعنى خپلې ښځې

تَضْرِبُوا إِمَاءِ اللهِ» فَجَاءَ عُمَرُ إِلَى رَسُولِ اللهِ

مه وهئ، بيا د دې حكم نه يو څو ورځې پس) حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې حاضر شو

فَقَالَ: ذَئِرْنَ النِّسَاءُ عَلَى أَزْوَاجِهِنَّ

او عرض يې وكړو چې تاسو د ښځو وهل منع كړې دي په دې وجه ښځې په خاوندانو باندې زړه ورې شوې دي

فَرَخَّصَ فِي ضَرْبِهِنَّ فَأَطَافَ بِآلِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءٌ

نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ښځو وهلو اجازت وركړو، د دې نه پس ډيرې ښځې د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ازواج مطهراتو كره راجمع شوې

كَثِيرٌ يَشْكُونَ أَزْوَاجَهُنَّ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او د خپلو خاوندانو نه يې شكايت وكړو چې د هغوى خاوندانو هل كوي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته چې كله معلوم شوه، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

«لَقَدْ طَافَ بِآلِ مُحَمَّدٍ نِسَاءٌ كَثِيرٌ يَشْكُونَ أَزْوَاجَهُنَّ

چه د محمد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) بيبيانو ته ډيرو ښځو د خپلو خاوندانو شكايتونه راوړي وو، دا خلق كوم چې (خپلې

لَيْسَ أُولَئِكَ بِخِيَارِكُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه والدارمي[1]

ښځې وهي) په تاسو كې بهتر خلق نه دي (ابو داؤد، ابن ماجه، دارمي)

**توضيح**: په قرآن او حديث كې په مجموعي طور باندې د ښځو وهلو اجازت څه پټه معامله نه ده خو د دې حديث نه معلوميږي چې ښځې نه دې وهل پكار، په ظاهره ايت د حديث او حديث د حديث د يو بل سره تعارض دى؟ د دې جواب دا دى چې كله د ښځو د وهلو اجازت ملاو شو نو رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وهلو اجازت وركړو خو حديې مقر كړو او د حد نه زيات وهلو نه يې منع وفرمايله، كوم وهل چې د شرعي حدودو نه بهر وي د هغې نه يې منع كړې ده او د وهلو حكم شرعي حدودو كې دننه پكار دى. (المرقات ۴۰۵/۶)

**ذئرن**: ښځې بهادرې شوې د شير په شان، دا صيغه د مفرد پكار وه، ځكه فاعل اسم ظاهر دى ليكن د دې سره "**اكلوني البر اغيث**: (المرقات ۴۰۱/۶)" او (**واسروا النجوى الذين ظلموا**) (سورة الانبياء ۳)

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۰۸ رقم الحديث ۲۱۴۶ وابن ماجه ۱/۶۳۸ رقم الحديث ۱۰۸۵ والدارمي في ۲/۱۹۸ رقم الحديث ۲۲۱۹

معامله شوې ده.

## د ښځې او خاوند په مینځ کې د جداوالې راوستو والا زمونږ نه نه دی

﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ مِنَّا

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې هغه کس زمونږ د تابعدارو

مَنْ خَبَّبَ امْرَأَةً عَلَى زَوْجِهَا أَوْ عَبْدًا عَلَى

نه نه دی چې چا ښځې لره د هغې د خاوند خلاف کړه یا یو غلام یې د هغه د مالک خلاف کړو او

سَيِّدِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (ضَعِيف)[1]

بې لارې کوي یې. (روایت کړې دې ابو داؤد)

**توضیح**: د ښځې او خاوند په مینځ کې تفریق اچول دا دي چې په خبرو، غیبت، او چغلۍ سره د هغوی په مینځ کې بد دلي پیدا کول، یا په جادو یا په تعویذونو فساد پیدا کول دا ټول منع دي. خواه روحاني توږ وي او که مادي وي. زمونږ نه د نه کیدو مطلب دا دی چې دا سړی د اسلام په طریقه نه دی، یا دا مطلب په طور د اسلوب حکیم فرمایلی دی چې زمونږ نه نه دی، نو چې کوم مسلمان دا خبره واوري نو دا خپل عمل به په ژړا سره پریږدي. (المرقات ۴۰۱/۶)

## خپل اهل وعیال باندې شفقت کول کمال ایمان دی

﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «إِنَّ مِنْ أَكْمَلِ

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې په مؤمنانو کې کامل

الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا وأَلطفهم بِأَهْله». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2]

ایمان والا کس هغه دی چې خوش اخلاقه او په خپل اهل او عیال باندې زیات مهربانه وي. (ترمذی)

﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې مؤمنانو کې کامل ایمان والا

أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا وَخِيَارُكُمْ خِيَارُكُمْ لِنِسَائِهِمْ».

کس هغه دی چې ډیر خوش اخلاقه وي او په تاسو کې بهتر کس هغه دی چې د خپلو ښځو په حق کې بهتر وي

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱۹۸/۲ رقم الحديث ۵۱۷۰ وأحمد في المسند ۳۹۷/۲

(2) أخرجه الترمذي في السنن ۱۰/۵ رقم الحديث ۲۶۱۲ وأحمد في المسند ۴۷/۶

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُد إِلَى
امام ترمذي دا روايت نقل کړی دی او وايي چې دا حديث حسن دی او امام ابو داؤد دا روايت

قَوْله «خلقا» (صَحِيحٌ)(١)

د لفظ د خلقًا پورې نقل کړی دی.

## د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په مينځ کې زړه راخکونکې خبرې

﴿۲۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَدِمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ
حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غزوه تبوک يا غزوه حنين نه واپس کورته

أَو حنين وَفِي سَهْوَتِهَا سِتْرٌ فَهَبَّتْ رِيحٌ
تشريف راوړولو نو (په هغه وخت) کې هغوی کره د کور په دری (طاق) پرده لګيدلې وه کله چې هوا شروع شوه

فَكَشَفَتْ نَاحِيَةَ السِّتْرِ عَنْ بَنَاتٍ لِعَائِشَةَ لُعَبٍ
نو د پردې يو ګوټ کولاو شو چې په هغې سره د عائشهؓ ګوډيانې ښکاره شوې (چې په درۍ باندې پې

فَقَالَ: «مَا هَذَا يَا عَائِشَةُ؟» قَالَتْ: بَنَاتِي
ايخودلې وې) نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ تپوس وکړو عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا څه دي؟ عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عرض وکړو دا زما ګوډيانې دي،

وَرَأَى بَيْنَهُنَّ فَرَسًا لَهُ جَنَاحَانِ مِنْ رِقَاعٍ
په دې ګډيانو کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو اس هم وليدو چې د هغه د کپړې نه يا د کاغذ نه دوه وزرې وې،

فَقَالَ: «مَا هَذَا الَّذِي أَرَى وَسْطَهُنَّ؟»
حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا تپوس وکړو چې د ګډيانو په مينځ کې چې کوم څيز ماته په نظر راځي دا څه دي؟

قَالَتْ: فَرَسٌ قَالَ: «وَمَا الَّذِي عَلَيْهِ؟»
حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته جواب ورکړو دا اس دی، نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د دې د پاسه دا څه دي؟

قَالَتْ: جَنَاحَانِ قَالَ: «فَرَسٌ لَهُ جَنَاحَانِ؟»
حضرت عائشهؓ فرمايي ما عرض وکړو (دا د دې اس وزرې دي) نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل ولې د اس هم وزرې

(١) أخرجه أبوداؤد في السنن ٦٠/٥

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَتْ: | أَمَا | سَمِعْتَ | أَنَّ | لِسُلَيْمَانَ | خَيْلًا |
| وی څه؟ حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته عرض وکړو ولې تاسو نه دي اوريدلي چې د حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ | | | | | |
| لَهَا | أَجْنِحَةٌ؟ | قَالَتْ: | فَضَحِكَ | | |
| سره چې کوم اسونه وو د هغوی وزرې وي، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې حضور زما جواب واوريدو | | | | | |
| حَتَّى | رَأَيْتُ | نَوَاجِذَهُ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] | |
| نو په خندا شو تردې چې ما ته د حضور غابښونه مبارک په نظر راغلل. | | | | | |

**توضيح:** **سهوة:** وړې کمرې ته وايي، چې په کې د الماری په شان کوړوالی وي، بعضې وايي چې په کور کښې د يوې چوترې په شان ځای وي. بعضې وايي چې دا طاق ته وايي. (المرقات ۴۰۶/۶)

**الرقاع:** دا د رقعة جمع ده، د کپړو يا کاغذ ټکړو ته وايي په هغه وخت کې خو کپړه وه کاغذ چرته وو.

**اما سمعت:** يعني تاسو ته معلومه نه ده چې د حضرت سليمان چې کوم اسونه وو د هغه دوه وزرې وي، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا خبره د هغه وخت د معاشرې د مشهورو قصو نه بيان کړې ده چې قصې عام طور باندې د ماشومانو په مجلسونو کې بيانيږي، په دې وجه حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير وخندل، دې خندا نه دا ثابته شوه چې حضور به د تبسم نه علاوه داسې خندا کوله چې د هغې په وجه به يې غابښونه مبارک ښکاره شول. (المرقات ۴۰۷/۶)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د الله نه سوا بل چا ته سجده کول جائز نه دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۸﴾ عَنْ | قَيْسِ | بْنِ | سَعْدٍ | قَالَ: | أَتَيْتُ | الْحِيرَةَ | فَرَأَيْتُهُمْ | |
| حضرت قيس بن سعد وايي چې زه (کوفې ته نزدې يو ښار) حيره ته ورسيدم نو ما وکتل چې هغوی | | | | | | | | |
| يَسْجُدُونَ | لِمَرْزُبَانٍ | لَهُمْ | فَقُلْتُ: | لَرَسُولُ | الله صلى الله | عَلَيْهِ | وَسلم | أَحَق |
| خپل سردار ته سجده کوي ما په خپل زړه کې وويل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه زيات مستحق دی | | | | | | | | |
| أَن | يسْجد | لَهُ | فَأَتَيْتُ | رَسُولَ | الله | صَلَّى | الله عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته سجده وکړی شي کله چې زه د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر | | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه أبوداوٗد في السنن ۲۲۷/۵ رقم الحديث ۴۹۳۲

فَقُلْتُ: إِنِّي أَتَيْتُ الْحِيرَةَ فَرَأَيْتُهُمْ يَسْجُدُونَ لِمَرْزُبَانٍ لَهُمْ

شوم نو ما ورته عرض وکړو چې زه حیرې ته تلی وم چې د هغه ځای خلق خپل سردار ته سجده کوي

فَأَنْتَ أَحَقُّ بِأَنْ يُسْجَدَ لَكَ فَقَالَ لِي:

لهذا نبی علیه السلام ته د دې نه زیات مستحق یې چې تاسو ته سجده وکړی شي. نبی علیه السلام وفرمایل ماته ووایه

«أَرَأَيْتَ لَوْ مَرَرْتَ بِقَبْرِي أَكُنْتَ تَسْجُدُ لَهُ؟» فَقُلْتُ: لَا فَقَالَ:

که تاسو زما قبر ته راشئ نو تاسو به زما قبر ته سجده کوئ؟ ما عرض وکړو چې نه نبی علیه السلام وفرمایل

«لَا تَفْعَلُوا لَو كنت آمر أحد أَنْ

چې زما په ژوند کې هم داسې مه کوئ که چیرې ما چا ته حکم ورکولی شو نو چې الله نه سوا بل چا ته

يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ النِّسَاءَ أَنْ يَسْجُدْنَ لِأَزْوَاجِهِنَّ لِمَا جَعَلَ اللهُ لَهُمْ عَلَيْهِنَّ

سجده کول وو نو ما به ښځو ته حکم کړی وو چې خپلو خاوندانو ته سجده وکړئ ځکه الله تعالی په ښځو

مِنْ حقٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] وَرَوَاهُ أحمد

باندې د خاوندانو د پاره زیات حق مقرر کړی دی. ابوداود دا روایت کړی دی، دا روایت احمد

عَنْ مُعَاذ بن جبل[2]

د معاذ بن جبل نه هم نقل کړی دی.

**توضیح**: **لمرزبانٍ**: د میم فتحه او په زا باندې ضمه ده د فارسي لفظ دی قومندان ورته هم وایي. رئیس، کمانډر، چودهری، او لوی زمیندار ته هم وایي. (المرقات ۶/۴۰۷)

**بقبر**: یعنی روضه رسول ته به سجده کوې؟ صحابی عرض وکړو نه به یې کوم، په دې لفظ کې ځومره لوی تعلیم دی د هغو خلقو د پاره چې قبرونو ته سجدې کوې. "**لوکانوا یشعرون**". (المرقات ۶/۴۰۷)

## دنافرمانه ښځې په وهلو باندې مواخذه نشته

﴿۲۹﴾ وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

حضرت عمر رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل قابل د

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۰۴ رقم الحديث ۲۱۴۰ والدارمي في ۱/۶۰۴ رقم الحديث ۱۴۶۳

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۵/۲۲۷

«لَا يُسْأَلُ الرَّجُلُ فِيمَا ضَرَبَ امْرَأَتَهُ عَلَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه (صَحِيح)[1]

مواخذې به نه وی چې کوم سړی خپله ښځه په څه څیز وهي (روایت کړې دې ابو داؤد او ابن ماجه)

**توضیح**: **لایسال الرجل**: ددې مطلب دا دی چې خپله ښځه د شریعت د حدودو دننه په وهلو باندې په قیامت او دنیا کې د خاوند نه هیڅ قسمه تپوس به نه شي کیدی. دلته لفظ "علیه" کې ضمیر مجرور حرف ما طرف ته راجع دی کوم چې فیما ضرب کې دلته مذکور دی لیکن چونکه **(واللاتي تخافون نشوزهن)** (سورة نساء ۲۴) ایت د دې مسئلې بنیاد دی لهذا لفظ د ما د "نشوز" قائم مقام دی په حقیقت کې علیه ضمیر نشوز طرف ته راجع دی، مطلب دا شو که یو سړې خپله ښځه په نافرمانۍ ووهي نو په دې مواخذه نشته دی. (المرقات ۶/۴۰۹، ۴۰۸)

## ښځه د خاوند د اجازت نه بغیر نفلي روژه نه شي نیولی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ | أَبِي | سَعِيدٍ | قَالَ: | جَاءَتِ | امْرَأَةٌ |

حضرت ابو سعید خدري رضی الله عنه وایي چه یوه ورځ یوه ښځه په خدمت کې حاضره شوه مونږ د

إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ عِنْدَه فَقَالَتْ: زَوْجِي صَفْوَانُ بْنُ الْمُعَطَّلِ

رسول کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې ناست وو او عرض یې وکړو چې زما خاوند صفوان بن معطل

يَضْرِبُنِي إِذَا صَلَّيْتُ وَيُفَطِّرُنِي إِذَا صُمْتُ وَلَا يُصَلِّي الْفَجْرَ

کله چې زه مونځ کوم نو ما ووهي او کله چې روژه نیسم نو په مایې ماتوي او پخپله د سحر مونځ په هغه وخت

حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ قَالَ:

کې کوي چې نمر راختو ته نزدې وي یا راختلی وي. راوي وایي چې په کوم وخت کې د صفوان ښځې شکایت کولو

وَصَفْوَانُ عِنْدَهُ قَالَ: فَسَأَلَهُ

نو صفوان په مجلس کې موجود وو! راوی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم تپوس او کړو د صفوان

عَمَّا قَالَتْ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَمَّا قَوْلُهَا:

نه د هغه د ښځې ذکر کړی شوو خبرو باره صفوان عرض وکړو یا رسول الله زما ښځې ووې چې زه کله

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۰۹ رقم الحديث ۲۱۴۷ وابن ماجه في ۱/۶۳۹ رقم الحديث ۱۹۸۶

فَإِنَّهَا يَضْرِبُنِي إِذَا صَلَّيْتُ
مونځ کومه نو دا ما وهي دهغې وجه دا ده چې په مونځ کې (په يو رکعت يا دوه رکعتونو) کې

تَقْرَأُ بِسُورَتَيْنِ وَقَدْ نَهَيْتُهَا قَالَ:
دوه غټې سورتونه لولي حالانکه دا ما داوږدو اوږدو سورتونو نه منع کړې ده، راوي وائی چې

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ كَانَتْ سُورَةٌ وَاحِدَةٌ
رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صفوان د تصديق دپاره وفرمايل د سورت فاتحې نه پس يو سورت ويل

لَكَفَتِ النَّاسَ». قَالَ: وَأَمَّا قَوْلُهَا يُفَطِّرُنِي إِذَا صُمْتُ
د خلقو دپاره کافي دی، بيا صفوان وويل او ددې وينا چې کله روژه نيسم نو دا رابانديې ماته کړي

فَإِنَّهَا تَنْطَلِقُ تَصُومُ وَأَنَا رَجُلٌ شَابٌّ فَلَا أَصْبِرُ
د دې وجه داده چې دا هميشه نفلي روژې نيسي اوزه يو ځوان سړی يم نوزه صبر نه شم کولی.

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَصُومُ امْرَأَةٌ إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا»
نبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې يوه ښځه دې دخاوند داجازت نه بغير نفلي روژه نه نيسي (بيا

وَأَمَّا قَوْلُهَا: إِنِّي لَا أُصَلِّي حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَإِنَّا أَهْلُ بَيْتٍ
صفوان وويل چې) او دا وايي چې زه د نمر راختو سره مونځ کومه د هغې وجه دا ده چې مونږ مزدورکاره خلق يو،

قَدْ عُرِفَ لَنَا ذَاكَ لَا نَكَادُ
توله شپه په پټيو او باغونو کې کارکوو چې دې وجې نه مونږ ته د آرام موقع کمه ملاويږي، او دا زمونږ د خلقو عادت

نَسْتَيْقِظُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ
جوړ شوی دی چې کله مونږ د شپې په آخري حصه کې اوده شو نو په هغه وخت پاڅو کله چې نمر راختو ته

قَالَ: «فَإِذَا اسْتَيْقَظْتَ يَا صَفْوَانُ
نزدې وي يا راختلی وي. نبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله دا عذر واوريدو نو وې فرمايل چې صفوان! چې کوم وخت دې

| |
|---|
| فَصَلِّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه[1] |
| ستركې وغړېږي نو مونځ كوه. (ابوداود،ابن ماجه) |

**توضيح**: **يضربني إذا صليت**: هر يو كس له ددې واقعې نه سبق اخستل پكار دي د ژبې ظاهرى الفاظو او د هغې مصداق او حقيقت كې ځومره فرق راځي كه چيرې كوم كس اجمال په اجمال كې وساتي او خبره وكړي نو اوريدونكي باندې به ځومره اثر وشي،ليكن كله چې د دې اجمال وضاحت كيږي نو كومه لويه مسئله نده كيږي مگر خپل منځي اختلافاتو دپاره دا كافي ده، نن صبا د الفاظو د ظاهري ساخت نه خلك كوم كوم تنازعات پيدا كوي، نو كله چې د حقيقت پته ولگي نو بيا څه هم نه و، دا د نقل كولو والا كرم يې فايلي دى، كوم .چا رښتيا ويلي دي.

**وهم نقلوا عني الذى لم افه به وما آفةُ الاخبار الا رواتها**

يعني هغوى زمانه هغه څه نقل كړې دي چې ما نه دې ويلي او د خبر وركولو مصيبت د خبر وركولو والا راويانو په وجه دى.اوس دلته دې حديث ته اوگورئ چې درې شكاياتونه دي او غټ شكاياتونه دې چې خاوند په مونځ كولو وهل كوي، چې روژه نيسم بيا يې راباندې ماتوي او دسحر مونځ نه كوي، اوحضور چې ددې تفصيل د هغې دخاوند نه معلوم كړو نو حقيقت بل څه وو،حضور په مونځ باندې د وهلو په شكايت، دحضرت صفوان د ښځې په حق كې فيصله وكړه، او د روژې ماتولو په شكايت كې يې د خاوند په حق كې فيصله وكړه او دسحر په مونځ كې يې هم د حضرت صفوان په حق كې فيصله وكړه (چه صفوان معذور دى) او بيا يې ورته د مونځ ترتيب بيان كړو.( المرقات ۴۰۹،۴۱۰/۶)

## په سخت حكم كې هم د خاوند اطاعت كول

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ الله عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي نَفَرٍ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روايت دى چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تشريف فرما وو په يو جماعت كې |
| مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ فَجَاءَ بَعِيرٌ فَسَجَدَ لَهُ |
| د مهاجرينو او انصارو چې يو اوښ راغى او نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې سجده وكړه صحابه كرامو چې دا وليدل |
| فَقَالَ أَصْحَابُهُ: يَا رَسُولَ الله تَسْجُدُ لَكَ الْبَهَائِمُ وَالشَّجَرُ |
| نو عرض يې وكړو چې اې د الله رسوله ! چې ځناور او ونې تاسو ته سجده كوي چې عقل او شعور نه لري |

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۸۲۷ رقم الحديث ۲۴۵۹ وأحمد في المسند ۳/۸۰

فَنَحْنُ أَحَقُّ أَنْ نَسْجُدَ لَكَ. فَقَالَ:

او ستاسو عزت کوي نو زمونږ دپاره دا جائز نه ده چې تاسو ته سجده وکړو؟ نبی صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل

اعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَأَكْرِمُوا أَخَاكُمْ وَلَوْ كُنْتُ آمُرُ

چې د خپل رب عبادت کوئ او د خپل ورور (یعنې زما) تعظیم کوي که چیرې ماته دا اختیار وی چې

أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا

غیرالله ته د سجدې حکم ورکړم نو ما به ښځو ته حکم ورکړی وو چې خپلو خاوندانو ته سجده وکړئ.

وَلَوْ أَمَرَهَا أَنْ تَنْقُلَ مِنْ جَبَلٍ أَصْفَرَ إِلَى جَبَلٍ أَسْوَدَ

که چیرې خاوند دا حکم ورکړي چه هغه زیړ رنګ غر نه کاڼي اوچت کړه او تور غر ته یې یوسه

وَمِنْ جَبَلٍ أَسْوَدَ إِلَى جَبَلٍ أَبْيَضَ كَانَ يَنْبَغِي لَهَا أَن تَفْعَلَهُ». رَوَاهُ أَحْمد[1]

او د تور غر کاڼي اوچت کړه او سپین غر ته یې یوسه نو هغه ښځې له پکار دي چې د خپل خاوند حکم ومني. (احمد)

**توضیح : فسجدله:** یعنې اوښ بطور خرق عادت حضور ته سجده وکړه اوښ غیر مکلف حیوان دی او په طور د معجزې یې داسې وکړه نو عقلمند انسانانو دپاره داسې څه قاعده نشته او بیا د اوښ دا سجده الله تعالی ته وه حضور صرف قبله وه او دا الله تعالی صرف اوښ ته حکم کړی وو د بل چا دپاره څه ګنجائش نه وو، حضور منع کړې ده، او چې کوم خلق نن سبا قبرونو ته سجدې کوي ډیر زیات کم عقل او نافرمان دي. چا څه ښه ویلي دي: (المرقات ۴۰۱/۶)

زندگی اس کی ہے ملت کے لئے پیغام موت　　کر رہا ہو بجائے کعبہ قبروں کا طواف

**اکرموا اخاکم:** حضور صلی الله علیه وسلم د تعظیم او اکرام باره وفرمایل چې د عبادت حقدار صرف الله تعالی دی او د خپل ورور یعنې حضور اکرم عزت او ادب کوئ، په زړه کې ما سره محبت ساتئ او په ظاهر او باطن کې زما اطاعت کوئ.

نبی صلی الله علیه وسلم **تواضعاً "اخاکم"** لفظ استعمال کړه او ارشادیې وفرمایلو چې زه هم د آدم د اولاد په شان یو انسان یم لیکن زما رب ماته نبوت راکړی دی او د الله تعالی د اکرام په رڼا کې زما هم اکرام کوئ. علامه طیبی فرمائي **"یعنی اکرموا من هو بشر مثلکم ومفرع من صلب ابیکم آدم، واکرموه لما اکرمه الله تعالی"** ددې حدیث په تشریح کې یو بدعتي حضرت شاه اسماعیل شهید

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ٦/٧٦

ته درخواست وکړه، حضرت شاه صیب ډیره ښه تشریح ولیکله او ورته یې وروليږله دبدعتی نیت ټیک نه ووهغه د شاه صیب خلاف یو طوفان پیدا کړه چې شاه صیب حضور اکرم ته لوی وروړ وویلی دی چې نن پورې د طعنونو سلسله جاری ده، الله تعالی دې د داسې فتنه گرو خلقو نه زمونږ حفاظت وکړي.(المرقات ۴۱۱/۶،الکاشف ۳۵۷/۶)

**ان تنقل: أي تنقل حجرا:** که خاوند ښځې ته حکم وکړي چې یو درروند کاڼی اوچت کړي او د یو زیږ غر نه تورغر ته او د تور غر نه سپین غر ته ویسي نو ښځې له دا کار پکار دی اګر چې په دې کار کې فائده نشته، اګر چې د یوه موقع ده چې خاوند ته سختې خبرې وشي، د یو بې مقصده کار دپاره یو انسان ته تکلیف ورکوی، لیکن شریعت او د حضور اکرم حکم دی چې ښځه دې داسې حکم هم منې بلکې دخاوند حکم او اطاعت ته دې اوګوري چې په دې څومره ثواب به ملاوېږي.

بهر حال دا نقل او حمل د یو ګران او مشکل کار نه کنایه ده، شاعر د داسې مشکل کار طرف ته اشاره کوي: (المرقات ۴۱۱/۶)

**لنقل الصخر من قلل الجبال　　أحب إلي من منن الرجال**

(المرقات ۴۱۱/۶،الکاشف ۳۵۷/۶)

**ترجمه:** نقل کول د کاڼو د غرونو د سرونو نه ماته ډیر خوښ دی د خلکو د حساناتو نه.

من جبل: دغرونو د دې خاص رنګونو کې ذکر کولو کې صرف د مبالغې طرف اشاره ده ځکه داسې قسم مختلف رنګونو واله غرونه دیو بل نه ډیر لرې وي.

## دنافرمانه ښځې عبادت نه قبلیږي

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ثَلَاثَةٌ |
| حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي داسې درې کسان دي چې د هغوی |
| لَا تُقْبَلُ لَهُمْ صَلَاةٌ وَلَا تَصْعَدُ لَهُمْ حَسَنَةٌ الْعَبْدُ الْآبِقُ |
| پوره مونځ نه قبلیږي او نه څه نیکي یې بره ځي یو هغه غلام چې د خپلو مالکانو نه تښتیدلی وي کله چې هغه |
| حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى مَوَالِيهِ فَيَضَعَ يَدَهُ فِي أَيْدِيهِمْ |
| واپس راشي او خپل ځان خپلو مالکانو ته حواله کړي نو د داسې غلام مونځ نه قبلیږي دویمه هغه |
| وَالْمَرْأَةُ السَّاخِطُ عَلَيْهَا زَوْجُهَا وَالسَّكْرَانُ حَتَّى يصحو». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيّ فِي شعب الْإِيمَان (حسن)[1] |
| ښځه چې خاوند ترې نه ناراضه وي، او دریم نشه باز تر څو پورې چې هوش کې رانه شي. |

[1] أخرجه البيهقى فى شعب الايمان ٦/٣٨٣ رقم الحديث ٨٦٠٠

**توضیح** :**الی موالیه:** موالی د مولی جمع ده او آقا ته ویلی شي دلته یې جمع راوړه دې کې دې طرف ته اشاره ده چې هغه غلام له پکار دي چې صرف د آقا نه نه بلکې د هغوی د اولاد نه هم معافي وغواړي دې دپاره چې د هغه عبادت هم خراب نه شي او د وفادارۍ ښه اظهار هم وشي. (المرقات ۴۱۲/۶)

**لاتقبل:** کې نفي د کمال ده، یعنې عبادت به یې پوره او کامل طور باندې نه قبلیږي. (المرقات ۴۱۲/۶)

**لاتصعد:** نه دا اشاره ملاویږي چې اعمال بره طرف ته ځي، او د الله تعالی بادشاهت او د عرش برنی نظام بره دی، دلته دا خبره په نظر کې ساتل پکار دي چې په کوموا احادیثو کې چې خاوند ته کوم مقام ورکړی شوی دی ددې نه مراد هغه خاوند دی چې دخپل خالق فرمانبردار او پرهیزګار مؤمن وي د فاسق او فاجر خاوند دا مقام نه دی. (المرقات ۴۱۲/۶)

## د بهترینې ښځې پیژندګلو

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قِيلَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّ النِّسَاءِ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم نه چا تپوس وکړو چې کومه ښځه |
| خَيْرٌ؟ قَالَ: «الَّتِي تَسُرُّهُ إِذَا نَظَرَ |
| بهتره ده؟ نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه ښځه چې خاوند ورته وګوري او هغه خوشحاله کړي، |
| وَتُطِيعُهُ إِذَا أَمَرَ وَلَا تُخَالِفُهُ فِي نَفْسِهَا وَلَا مَالِهَا |
| او هغه یې تابعداري وکړي کله چه خاوند ورته حکم ورکړي او خپل ذات او خپل مال کې هغه خلاف څه داسې |
| بِمَا يَكْرَهُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ[1] |
| خبره ونه کړي چې هغه خبره هغه ته ناخوښه وي. روایت کړې دې نسائی او بیهقی په شعب الایمان کښې. |

**توضیح** :**ولا مالها:** دلته دا سوال دی چې د مال نسبت یې ښځې طرف ته څنګه کړی دی؟ نو د دې وضاحت یې داسې کړی دی چې ممکنه ده چې مال ذاتي طورباندې د دغې ښځې وي او خاوندیې غریب وي نو دا نسبت حقیقي دی او دا هم ممکنه ده چې دا مال دخاوند وي لیکن د ښځې په قبضه کې وي نو دا ښځه دومره دیانتداره ده چې د خاوند د مال د خپل مال په شان حفاظت کوي او دخاوند مال دخاوند د اجازت نه بغیر نه خرچ کوي او نه پکې خیانت کوي. (المرقات ۴۱۳/۶، الکاشف ۳۵۹/۶)

---

([1]) أخرجه النسائي في السنن ۶/۶۸ رقم الحديث ۳۲۳۱

## دامانت داره ښځې فضيلت

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: |
| .ددې حديث حضرت ابن عباس رضي الله عنهما راوي دی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : |
| "أَربع من أعطيهن فقد أعطي خير الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ: |
| چې څلور خيزونه داسې دي چې کوم کس ته دا ملاو شي نو هغه ته به د دنيا او آخرت ښيګړې نصيب شی. اول دا |
| قَلْبٌ شَاكِرٌ وَلِسَانٌ ذَاكِرٌ |
| چې د الله تعالى په نعمتونو شکر ايستونکی، ديوم: په غم او خوشحالی په هر حالت کې د الله تعالى د ياد ولو والاژبه. |
| وَبَدَنٌ عَلَى الْبَلَاءِ صَابِرٌ وَزَوْجَةٌ لَا تَبْغِيهِ خَوْنًا |
| دريم! هغه بدن چه په مصيبتونو صبر کولو والا څلورم! هغه ښځه چې خيانت نه کوي په خپل |
| فِي نَفسهَا وَلَا مَاله". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيّ فِي شعب الْإِيمَان[1] |
| ذات او دخاوند په مال کې (روايت کړې دې بيهقی په شعب الايمان کې) |

(۱) أخرجه البيهقى في شعب الايمان ٤/٢٣٣ رقم الحديث ٤٩٠٢

# بَابُ الْخُلْعِ وَالطَّلَاقِ

## د خلعې او د طلاق بیان

قَالَ اللهُ تعالى : (الطَّلاَقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ وَلاَ يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُواْ مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا إِلاَّ أَن يَخَافَا أَلاَّ يُقِيمَا حُدُودَ اللهِ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلاَّ يُقِيمَا حُدُودَ اللهِ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ تِلْكَ حُدُودُ اللهِ فَلاَ تَعْتَدُوهَا) (البقرة : ۲۲۹)

د باب **فتح يفتح** نه، خلع چې د خاء فتحې سره شي نو په لغت کې د يو څيز ايستل، زائل کول او رابنکلو دپاره استعماليږي، خاص طور باندې دبدن نه کپړې او څپلې ايستو ته ويلې شي، او کله چې د خاء په ضمې او د لام په سکون سره وي نو د ازالې دزوجيت دپاره استعماليږي او همدا خلع ده. د دې شرعي تعريف څه داسې دی (**الخلع فراق الرجل امرأته على عوض**) يعنې ملکيت دنکاح د مال په عوض کې زائل کولو ته خلع وايي) علامه طيبي فرمايې چې لغوي او شرعي معنی کې دا مناسبت دی چې ښځه او خاوند ديوبل دپاره په مثال د جامې دي (**هن لباس لکم وانتم لباس لهن**) او چې کله ښځې اوخاوند د خلع عمل وکړو نو داسې شوه چې دواړو خپل بدن نه جامې ويستلې. (**والطلاق**) دا په خلع باندې عطف دی اګر چې خلع دنکاح د فسخ کوم نوم دی او د طلاق نوم نه دی نو په دې د طلاق عطف کول واضح او ښکاره دی، دواړه لفظونه د مفهوم په اعتبار سره جدا جدا دي او عطف صحيح دی او که خلع هم يو طلاق شي څنګه چې روستو اختلاف راروان دی نو بيا لفظ د (**الطلاق**) عطف العام على الخاص دی چې طلاق عام دی او خلع خاص ده. اسلام د سهولت او د رحمت دين دی او د دې قانون د شفقت دی. کله ښځه ښه نه وي چې د هغې په وجه د سړي ژوند په تکليف کې وي نو اسلام خاوند ته په بهتره طريقه د طلاق ورکولو اختيار ورکړی دی، کله خاوند ښه نه وي ښځه د سړي ظلمونه برداشت کوي نو اسلام ښځې ته هم اختيار ورکړی دی د خلع په شکل کې، يعنې د مال د څه مقدار په عوض کې د طلاق اخستو حق يې ورکړی دی. فرق صرف دومره دی چې په طلاق کې خاوند آزاد دی د ښځې مرضي په کې نه وي، خو په خلع کې يې د خاوند مرضي ساتلې ده، چې د کورنۍ قيادت او د سړو سيادت مفلوج نه شي، د دې ټولو سهولتونو باوجود اسلام ايذاء رساني او د فساد په بنياد طلاق ورکول يا د خلعې مذمت کړی دی د دې دپاره چې د مجبورۍ د سهولت نه کوم کس ناجائزه فائده وانخلي.

**د خلعې طريقه**: که د ښځې خاوند په هيڅ شان جوړه نه راتله او سړی طلاق هم نه ورکوي نو ښځې له پکار دي چې څه مال ورکړي يا خپل مهر ورکړي او د خاوند نه ځان ازاد کړي، يا داسې ووايې چې

کوم مهر ستا په ذمه دی دهغې په عوض ما ازاده کړه او خاوند ووایې چې ما پریخودې، دا فدیه افتداء او خلع ده په دې کې شرط دا دی چې د طلاق لفظ پکې استعمال نه شي که د طلاق لفظ استعمال شو نو دېته به طلاق بالمال ویلی شي.

## ناخوښه خاوند نه طلاق اغستی شي

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ امْرَأَةَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې د ثابت بن قيس ښځه د رسول کريم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضره شوه |
| فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ مَا أَعْتِبُ عَلَيْهِ فِي خُلُقٍ |
| او عرض یې وکړو چې اې د الله رسوله! په ثابت بن قيس باندې ماله غوسه نه راځي او نه زه د هغه په عاداتو |
| وَلَا دِينٍ وَلٰكِنِّي أَكْرَهُ الْكُفْرَ فِي الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او دهغه په دين باندې څه عيب لګوم، خو اسلام کې کفر نه خوښومه، رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل |
| «أَتَرُدِّينَ عَلَيْهِ حَدِيقَتَهُ؟» قَالَتْ: نَعَمْ |
| ايا ته ثابت بن قيس ته د هغه باغ چې تاله يې په مهر کې درکړی دی هغه به واپس کړې؟ د ثابت ښځې وويل آو. |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اقْبَلِ الْحَدِيقَةَ وَطَلِّقْهَا تَطْلِيقَةً». |
| رسول کريم صلی الله علیه وسلم چې دا واوريدل نو ثابت ته يې وفرمايل چه ته خپل باغ واخله او دې له طلاق ورکړه. |
| رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| (روايت کړی دی بخاري) |

**دفقهاو اختلاف**: امام احمد بن حنبل او امام شافعي د مشهور قول مطابق په خلع سره نکاح فسخ کيږي، او د ښځې او خاوند په مينځ کې به بيلتون راشي، د امام مالک او امام ابو حنيفه په نزد د خلعې عمل سره ښځې ته يو طلاق بائن واقع کيږي، خلاصه داده چې د امام احمد او امام شافعي په

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۹۵ رقم الحديث ۵۲۷۳ والنسائي في السنن ۶/۱۶۹ رقم الحديث ۳۴۶۳ وابن ماجه في ۱/۶۶۳ رقم الحديث ۲۰۵۶ وأحمد في المسند ۳/۱

نزد خلع فسخ نکاح ده، او د امام مالک و امام ابو حنیفه په نزد طلاق بائن دی. (المرقات ۶/۴۱۴،۴۱۳)

**دلائل**: داولي دلي دليل (**الطلاق مرتان**.......**الی**........**فان طلقها الخ**) د دلیل طریقه استدلال داسې ده چې په ایت کې د دوو طلاقو ذکر دی او بیا (**فان طلقها**) سره دریم اوآخري طلاق بیان کړی شوی دی که په مینځ کې (**فیما افتدت به**) د فدیې والا د خلعې صورت طلاق واحد شمار کړی شي نو په اسلام کې د دریو طلاقو په ځای به څلور طلاقه شي، او دا باطل ده لهذا خلع په طلاق کې شمارل باطل دي.

ددې حضراتو دویم دلیل: حضرت ثابت بن قیس د ښځې قصه ده چې نبی کریم ﷺ د هغې عدت صرف یو حیض مقرر کړو (**فجعل عدتها حیضة**) ابوداود شریف د دې روایت نه معلومه شوه چې د خلع نه پس رسول کریم ﷺ د حضرت ثابت ښځې له د عدت یو حیض مقرر کړه او په طلاق کې یو حیض نه وی بلکې درې حیضه د عدت دپاره ضروري وي، معلومه شوه چې خلع طلاق نه دی بلکې فسخ نکاح ده. امام ابو حنیفه او امام مالک د حضرت ثابت بن قیس د ښځې واقعه د دلیل دپاره بیان کړې ده چې په بخاری شریف کې هم ده او د مشکوة شریف په حاضره صفحه کې هم ده، حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د هغې خاوند ته وفرمایل چې دا باغ چې تاله ستا ښځې درکړو دا قبول کړه او ښځې له یو طلاق ورکړه دا حضرات فرمایې که چیرې دا خلع فسخ د نکاح وه نو د طلاق ورکولو ضرورت ولې راغی؟ دې حضراتو ددې روایت نه هم دلیل پیش کړی دی .(**ان النبی صلی الله علیه وسلم جعل الخلع تطلیقة واحدة رواه سعید بن المسیب مرسلا کذا فی مصنف ابن ابی شیبة**)

جواب: د اولنی دلي د دلیل نه د دلیل نیولو جواب دا دی چې دلته خلع بیل طلاق نه دی بلکې قرآن د (**الطلاق مرتان**) په سورته بیان کړې دي: یو طلاق بلاعوض دی چې ددې ذکر په (**الطلاق مرتان**) کې دی، او یو طلاق بالعوض دی چې خلع ورته وایې دا د بیل طلاق ذکر نه دی بلکې (**الطلاق مرتان**) په ضمن کې دیو طلاق ذکر دی دا دوه طلاقه شو او (**فان طلقها**) کې دریم طلاق بیان شو. کوم ځای کې چې حدیث کې د (**حیضة**) لفظ راغلی دی نو دا د جنس دپاره دی چې قلیل او کثیر ته ویلی شي، لهذا ددې نه د دریو حیضونو نفي ونه شوه. حضرت شاه انورشاه صیب فرمایې چې دیو حیض ذکر چې په حدیث کې راغلی دی دا هغه حیض دی چې هغه د تیرولو دپاره یې ښځې ته ویلی دی چې هغه دې د خاوند په کور کم از کم یو حیض تیر کړي بیا دې نه علاوه دوه دې خپل کور کې تیر کړي.

**اکره الکفر في الاسلام**: یعنی زما ورسره دزړه محبت نشته، په دې وجه هغه ماته طبعی طور باندې ناخوښه دی، نه څه شرعي وجوهاتو باندې خراب دی نه په کې څه شرعي عیبونه شته، خوبس زما نه دی خوښ، او چونکه زما خاوند دی چې نفرت ترېنه حرام دی لهذا مونږ په اسلام کې اوسیږو

داسې نه چې زه د بې اسلامۍ خبرې یا د ناشکرۍ خبرې وکړم چیرته په دې وجه زما ایمان ته نقصان ونه رسي، د کفر نه مراد کفران نعمت دی، ویلی کیږي چې حضرت ثابت بن قیس د قد نه وړوکی وو او شکل او صورت یې هم ښه نه وو او د هغه د ښځې نوم جمیله یا حبیبه وو ښائسته وه په دې وجه دهغوی دواړو جوړه نه راتله. (المرقات ۴۱۳/۶)

## د طلاق تعریف او قسمونه

﴿۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ: أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَةً لَهُ وَهِيَ حَائِضٌ

دحضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې روایت دی چې هغه خپلې ښځې له په حالت د حیض کې طلاق ورکړو

فَذَكَرَ عُمَرُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَغَيَّظَ فِيهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې ذکر رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وکړه، نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په واقعې ډیر غوسه شو

ثُمَّ قَالَ: «لیراجعها ثُمَّ یُمْسِکْهَا

او وې فرمایل چې (د دې ګناه د تلافي دپاره) عبدالله له پکار دي چې هغې ته رجوع وکړي او بیا دې دخپل ځان سره وساتي

حَتّٰی تطهر فَتطهر ثُمَّ تحیض فَإِنْ بدا لَهُ

تر دې چې پاکه شي او چې بیا حائضه شي او دې نه پس پاکه شي او بیا حائضه شي او دې نه پس بیا پاکه شي

أَنْ یُطَلِّقَهَا فَلْیُطَلِّقْهَا طَاهِرًا قَبْلَ أَنْ یَمَسَّهَا

او طلاق ورکول ضروري وو، نو د پاکۍ په حالت کې طلاق ورکړه مخکې د دې نه چې ته ورسره جماع وکړې

فَتِلْكَ الْعِدَّةُ الَّتِي أَمَرَ اللهُ أَنْ تُطَلَّقَ لَهَا النِّسَاءُ».

پس دا هغه عدت دی چې د کوم باره کې الله تعالی حکم کړی دی چه په دې کې دې ښځو له طلاق ورکړی شي،

وَفِي رِوَايَةٍ: «مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُطَلِّقْهَا

په یو روایت کې دا دي چې حضور حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې عبدالله ته حکم ورکړه چې دې ښځې ته رجوع وکړي

طَاهِرًا أَوْ حَامِلًا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

او بیا د پاکۍ په حالت کې (په دې شرط چې حامله نه وي او حیض راشي) یا یې د حمل په حالت کې یې طلاق ورکړه.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۶۵۳ رقم الحديث ۴۹۰۸ ومسلم في صحيحه ۲/۱۰۹۳ رقم الحديث (۱/۱۴۷۱) وأبوداؤد في السنن ۲/۶۳۲ رقم الحديث ۲۱۷۹ والترمذي في ۳/۴۷۸ رقم الحديث ۱۱۷۵ والنسائي ۶/۱۳۷ رقم الحديث ۲۱۷۹ والترمذي في السنن ۳۲/۴۷۸

**توضيح** : طلق امراةً له:طلاق په معنی د تطليق دی، څنګه چې سلام د تسليم په معنی سره دی. په لغت کې دطلاق معنی ده"حل قيدٍ حسيٍ او معنويٍ"يعنې د ظاهري يا معنوي کړی کولاولو نوم طلاق دی، دقيد ظاهري مثال لکه چې د چاپه پښو کې زنځيرونه اچولې وي، او د قيد معنوي مثال لکه دنکاح په وجه ښځې باندې يوغير مرئي اوغير حسي قيد لګيدلی وی.د فقهاء کرامو په اصطلاح کې د طلاق تعريف دادی"**الطلاق ازالةُ النکاح او نقص حله**" يعني د نکاح قيدبالکل زائل کول يا ددې حلت کمول.کله چې يوسړی ښځې ته مغلظ طلاق ورکړي نو ده بالکليه دنکاح قيد زائل کړو او وطی حرام ده، او که طلاق رجعی يې ورکړو نو د نکاح حلت صورت ته نقصان ورکوي، اوس وطي جائز ده ليکن د رجوع کولو په صورت کې په آينده کې د درې طلاقونو په ځای به ددوه طلاقونو مالک وي دا حلت کموي.خلاصه دا ده چې په لغت کې طلاق قيد اوچتولو ته ويلی شي، او په اصطلاح کې د نکاح قيد د مخصوصو الفاظو په ذريعه زائل کولو نوم طلاق دی.

**د طلاق قسمونه** : طلاق په درې قسمه دی: ۱. احسن ۲. حسن ۳. بدعي.

**طلاق احسن** : دا هغه طلاق دی چې په کې جماع نه وي شوې او درې مياشتو تيريدو پورې د رجوع او جماع نه ځان ساتل، د عدت په تيريدو باندې ښځه بائنه کيږي، دا احسن په دې دی چې په دې کې خاوند ته هر وخت رجوع کولو اختيار وي. دسوچ کولو موقع هم ډيره ملاويږي او د طلاق مکروه الفاظ هم کم نه کم پکې استعماليږي. **طلاق حسن** : دې ته وايې چې په طهر کې يې ښځې له يو طلاق ورکړو بيايې په دويم طهر کې دويم طلاق ورکړو او بيايې دريم طهر کې دريم طلاق ورکړو نو په ښځې دري طلاقه واقع شول. امام مالک فرمايې چې دا صورت حسن نه دی ځکه چې په يو طلاق ښځه جدا کيدی شي نو د ابغض المباحات درې ځله تکرارولو ته څه ضرورت دی؟ جمهور فرمايې چې د شرعي نصوصو په موجودګۍ کې ستا قياس نه چليږي.

**طلاق بدعي** : دا هغه طلاق دی چې په يو طهر کې درې طلاقه په يو مجلس کې ورکړي، يايې په بيل بيل وخت کې ورکړي، يايې حالت حيض کې ورکړي، دا طلاق بدعی دی داسې طلاق ورکولو سره سړی ګناه ګاريږي خو طلاق واقع کيږي.امام شافعی فرمايې چې طلاق بدعي په حالت حيض کې ورکولی شي که په طهر کې يې ورکړو نو هغه طلاق بدعی نه دی خواه که په مجلس کې درې طلاقه په يو ځل ورکړي يايې بيل بيل ورکړي ټول جائز دي.احناف فرمايې چې نکاح په مصالح ديني او دنياوي باندې مشتمله وي او طلاق ورکولو سره دا مصالح ختميږي، لهذا طلاق د ډيرې مجبورۍ په وخت کې ورکول پکار دي او هغه هم داسې ورکول پکار دي چې په وقت د ضرورت کې خاوند ته دپښېمانۍ څه اختيار وي او په هغې په وجه يې څه پريشاني لرې شي په دې وجه طلاق ورکول چې

ځومره کم وي هغومره بهتر وي.او کثرت بدعت دی.د طلاقو په اقسامو کې بعضو شارحینو په مختصرو الفاظو سره داسې تقسیم کړی دی چې طاق دوه قسمه دي: سني او بدعي، بیا سني په دوه قسمه دی: احسن او حسن نو ټول درې قسمه شول.

**دحیض په حالت کې دطلاق ورکولو نه ممانعت**: **فتغیظ**: حضور اکرم ﷺ په دې غوسه شو چې په حالت حیض کې طلاق ورکول حرام دي په حالت حیض کې طلاق ورکول بالاجماع ګناه او بدعت دی.د ائمه اربعو او سلف صالحینو په دې کې هیڅ قسمه اختلاف نشته، البته دغیر مقلدینو مسلک دې که چیرې چا په حالت حیض کې طلاق ورکړو نو طلاق نه واقع کیږي.جمهور ائمو د حضرت ابن عمر د روایت نه دلیل نیولی دی چې کله حضرت عمر فاروق شکایت وکړو نو حضور ورته وفرمایل چې خپل ځوی ته ووایه چې خپلې ښځې ته رجوع وکړي مره فلیراجعها وس دا خبره واضحه شوه چې رجوع متفرع ده طلاق باندې کله چې طلاق وشي نو بیا رجوع کولی شي ورنه د رجوع ضرورت څه دی؟ دې نه معلومه شوه چې په حالت حیض کې طلاق ورکول ګناه ده او که چا ورکه نو طلاق واقع شو،دا مسئله پاتې شوه چې په دغه حیض سره متصل چې کوم طهر دی په هغې کې د طلاق ورکولو په ځای حضور اکرم ﷺ دا ولې وفرمایل چې راتلونکي حیض نه وروسته چې کوم طهر دی په هغې کې طلاق ورکړه، د دې حکمت علماو دا ښودلی دی چې کیدی شي په دې تاخیر سره شاید د خاوند د طلاق اراده بدله شي، یا یې د سزا په طور باندې یې دا مؤخر کړه، چې تا جلتي وکړه په حیض کې دې طلاق ورکړه او س یو طهر نه د بلکې د دوه طهرونو انتظار وکړه، بهر حال دا یوه تنبیه ده چې اولی ده او واجب نه ده.(المرقات ۶/۴۱۶.۴۱۵)

## ښځې ته د طلاق اختیار ورکول

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ | عَائِشَةَ | قَالَتْ: | خَيَّرَنَا | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| عائشه رضي الله عنها وایي چې اختیار راکړو مونږ له نبي علیه السلام (کچرې تاسو د دنیا او دنیا د زیب وزینت خواهش مندئ | | | | | | | | | |
| فَاخْتَرْنَا | اللهَ | وَرَسُولَهُ | فَلَمْ | يَعُدَّ | ذَلِكَ | عَلَيْنَا | شَيْئًا | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱) | |
| نو مال به درکړم او د الله او رسول او آخرت طلبګار نو بیشماره اجرو ثواب) او نبي علیه السلام دا اختیار زمونږ دپاره هیڅ کې هم شمار نه کړه | | | | | | | | | |

**توضیح**: **فاخترنا الله**: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چې حضور اکرم ﷺ مونږه ته په

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۶۷ رقم الحديث ۵۲۶۲ ومسلم في صحيحه ۲/۱۱۰۳ رقم الحديث (۱۴۷۷.۲۴) وأبوداؤد في السنن ۲/۶۵۳ رقم الحديث ۲۲۰۳ والترمذي في السنن ۳/۴۸۳ رقم الحديث ۱۱۷۹ والنسائي في ۶/۱۶۰ رقم الحديث ۳۴۴۱ وابن ماجه ۱/۶۶۱

طلاق کې اختیار راکړه مونږه الله او دالله رسول اختیار کړه او طلاق مو اختیار نه کړه.په داسې صورت که یو سړی ښځې ته داسې ووایي "چې ته خپل نفس اختیار کړه یا ما اختیار کړه" او که چیرې ښځې خپل ځان اختیار نه کړه خپل خاوندیې اختیار کړههٔ نو په دې صورت کې طلاق واقع نه شو، ځکه چې ښځې خپل حق او اختیار استعمال نه کړه، نو د جمهورامت په نزد هیڅ هم نشته، حضرت علي او حضرت زید بن ثابت رضي الله عنهما په نزد صرف په اختیار ورکولو سره طلاق رجعي یا بائن واقع کیدو قائل دي. حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کیدی شي دهغو حضراتو میلان طرف ته اشاره فرمایلې وې چې صرف اختیار ورکولو باندې څه نه کیږي، او که چیرې ښځې خپل ځان او طلاق اختیار کړه نو طلاق واقع شو البته د امام شافعی او امام مالک په نزد طلاق رجعي واقع شو او د امام ابو حنیفه په نزد طلاق بائن واقع شو او د امام مالک په نزد درې طلاق واقع شول.(المرقات ۴۱۷/۶)

## یو څیز په خپل ځان باندې حرام کولو حکم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | قَالَ: | فِي | الْحَرَامِ | يُكَفِّرُ |
| د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغوی وویل (چې د یو څیز) حرامولو باندې کفاره ورکول دي او | | | | | | |
| لَقَدْ | كَانَ | لَكُمْ فِي | رَسُولِ اللهِ | أُسْوَةٌ | حَسَنَةٌ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| (په دې باره کې) ستاسو دپاره رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې د تابعداری بهتره نمونه ده. (بخاری ومسلم) | | | | | | |

**توضیح: قال فی الحرام یکفر**: یعني که یو کس یو څیز په ځان باندې حرام کړي نو هغه څیز خو حلال دی او حلال به وي، کله چې ده هغه څیز استعمال کړه نو د قسم کفاره به په هر صورت کې اداء کوي،که هغه څیز فی نفسه حلال وي که حرام، مثلاً که چا د قسم په نیت دا وویل چې شراب په ما باندې حرام دي او د هغه نیت د خبر ورکول نه وو بلکې قسم یې کړی وو، نو اوس که هغه شراب وڅکل نو د قسم کفاره په ده لازم شوه، چې څه هم وي شراب څکل حرام دي که یو کس خپلې ښځې ته داسې وویل چې ته په ما باندې حرامه یې نو هغه به (ایلاء) وي، چې د هغې تفصیل تیر شوی دی او که چا وویل چې دالله تعالی حلال کړی شوې ټول څیزونه په ما باندې حرام دي، په مظاهر حق کې یې لیکلي دي چې فتوی داسې ده چې داسې ویلو سره په هغه کس ښځه طلاقه شوه اګر چې هغه د طلاق نیت نه وو کړې. د حضرت ابن عباس هم دا مسلک دی او د ائمه احنافو هم دا مسلک دی،په دې ایت کې هغه پیښې ته

(۱) أخرجه البخاري فی صحیحه ۸/۶۵۶ ومسلم فی صحیحه ۲/۱۱۰۳ رقم الحدیث (۱۴۷۷.۲۴) رقم الحدیث ۱۱۷۹ والنسائی في ۶/۱۶۰ رقم الحدیث ۳۴۴۱وابن ماجه فی ۱/۶۶۱ رقم الحدیث ۲۰۵۲ والدارمي في ۲/۲۱۵ رقم الحدیث ۲۲۶۹ وأحمدفي المسند ۶/۴۵

اشاره ده چې حضور په ځان باندې شهد حرام کړې وو بيا يې د قسم ماتو لو کفاره اداء کړه راتلونکې حديث کې دې واقعې ته په تفصيل سره اشاره ده.(المرقات ۶/۴۱۸)

## د شهدو څکلو واقعه

﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْكُثُ عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ

حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي كريم ﷺ به حضرت زينب بنت جحش رضي الله عنها كره

وَشَرِبَ عِنْدَهَا عَسَلًا فَتَوَاصَيْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ

پاتې كيدو او شهد به يې څكل يوه ورځ ما او حضرت حفصه رضي الله عنها يو بلې سره مشوره وكړه چې

أَنَّ أَيَّتَنَا دَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْتَقُلْ: إِنِّي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ مَغَافِيرَ

نبي كريم ﷺ په مونږ كې چاكره راغی نو ورته به وايو چې ستاسو د خولې نه د مغافيرو بوی راځي،

أَكَلْتَ مَغَافِيرَ؟ فَدَخَلَ عَلَى إِحْدَاهُمَا فَقَالَتْ لَهُ ذَلِكَ

ولې تاسو مغافير خوړلي دي؟ كله چې يې په دې دواړو كې د يوې كره (عائشهؓ يا حفصهؓ) كره تشريف راوړلو

فَقَالَ: «لَا بَأْسَ شَرِبْتُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ

نو هغې ورته هغه خبره وكړه، نبي ﷺ وفرمايل چې څه خبره نه ده ما زينب بنت جحش كره شهد څكلي دي

فَلَنْ أَعُودَ لَهُ وَقَدْ حَلَفْتُ لَا تُخْبِرِي بِذَلِكِ

او اوس به زه شهد نه څكم .ما قسم وخوړلو دا خبره چا ته مه كوه (ځكه دې سره به د زينب زړه مات شي چې

أَحَدًا» يَبْتَغِي مرضاة أَزْوَاجِهِ

اوس به هغې كره شهد نه څكم) د دې وجې نه د حضرت ﷺ مقصد خپلې بيبيانې خوشحالول وو،

فَنَزَلَتْ: (يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ

نو په دې باره كې دا ايت نازل شو يعني اى نبي تاسو په خپل ځان باندې ولې حراموئ كوم چې

مَا أَحَلَّ اللهُ لَكَ تبتغي مرضاة أَزْوَاجِكَ) الْآيَةَ متفق عليه.(۱)

الله ستاسو د پاره حلال كړې دي، صرف د خپلو بيبيانو د خوشحالولو د پاره په ځان باندې (بخاري ومسلم)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۶۵۶ رقم الحديث ۴۹۱۲ ومسلم في ۲/۱۱۰۰ رقم الحديث (۲۰-۱۴۷۴) وأبوداؤد في السنن ۴/۱۰۵ رقم الحديث ۳۷۱۴ والنسائي في السنن ۶/۱۵۱ رقم الحديث ۳۴۲۱

**توضیح**: ریح مغافیر: دا د مغفور جمع ده دا د جهاو و غیره د کومې ونې د میوې نوم دی چې د کنډو په شان وي، ددې بوی خراب وي، چونکه رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرشتو سره خبرې کولې دې د پاره به يې د خولې د بوی ډېر خیال ساته، رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د مازیګر په وخت کې د حضرت زینب بنت جحش کره تشریف وړلو حضرت زینب به په حضوراکرم باندې شات څکلول، د حضور اکرم شات ډیر خوښ وو، په حضرت عائشې باندې د حضور اکرم د جدائي او د حضرت زینب کره په ډیر وخت تیرولو ډیره سخته تیریدله، او حضرت حفصې سره يې مشوره وکړه او یوه منصوبه يې تیاره کړه چې دواړو به وایو چې ستاسو د خولې نه د مغافیر بوی راځي، نو دواړو همداسې وکړل، حضور اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ما مغافیر نه دي خوړلي البته شهد مې څکلي دي، نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې آو داسې کیدی شي چې شاتو مچو به د هغې ونې د میوې رس راښکلي وي او په شهدو کې به يې ګډ کړي وي چې د هغې اثر په شاتو باندې راغلی دی، دا داسې اوریده مفروضه وه څنګه چې یو چا د خپل اوریدو انتقال ذهن د مفروضې باره کې ویلي دي:

*کس کو باغ میں جانے نہ دینا — کہ ناحق خون پروانے کا ہوگا*

بهرحال حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شهد په خپل ځان باندې حرام کړل الله تعالی د قسم د کفارې ادا کولو حکم وکړو، د حضرت عائشې او د حضرت حفصې چې کومه منصوبه وه دا د کونج (پټه) معامله وه، له دې وجې نه الله تعالی په سختو الفاظو سره تنبیه وفرمایله که چیرې تاسو توبه ونه وېستله نو یاد وساتئ چې الله تعالی او حضرت جبرایل نبی اکرم سره دي او ټول نیک او صالح خلق هم نبی کریم سره دي. دا خیال وکړئ چې د نبی کریم د پاره هرقسمه بیبیانې موجودې دي او د بیبیانو ورته کمی نشته. (المرقات ۶/۴۱۹،۴۱۷)

## الْفَصْلُ الثَّانِي

﴿۶﴾ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا طَلَاقًا فِي غَيْرِ

حضرت ثوبان وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کومه ښځه د خپل خاوند نه بغیر ضرورته طلاق اخلي نو په هغې د جنت

مَا بَأْسٍ فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ».

خوشبو (بوی کول) حرام دي. یعنې کله چې په میدان حشر کې د الله نیک بندګانو ته د جنت خوشبو رسیږي نو په دې ښځه دا خوشبو حرام ده

| |
|---|
| رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ والدارمي[۱] |
| روایت کړې دې مسند احمد ،والترمذی،وابوداؤد،وابن ماجه او سنن دارمی |

## طلاق بد شیز نه دی

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَبْغَضُ الْحَلَالِ |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روایت دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې په روا ثیزونو کې د |
| إِلَى اللهِ الطلاقُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۲] |
| الله په نزد د ټولو نه خراب ثیز طلاق دی.(ابوداؤد) |

**توضیح: ابغض الحلال:** دلته دا سوال دی چې کوم ثیز حلال دی نو بیا قابل نفرت ولې شو حلال خو جائز وي؟ ددې جواب دادی چې دلته د حلال لفظ د حرام په مقابله کې استعمال شوی دی چې طلاق حرام نه دی حلال دی، اوس د حلال ډیرې درجې دي خواه واجب درجه وي، د سنت درجه وي د مباح درجه وي یا خلاف اولی ناخوښه مکروه درجه وي دا ټولې مرحلې دحلالو په ضمن کې راځي، لهذا دلته فی نفسه د طلاق دحلال کیدو باوجود دا کار مبغضوض ګرځول شوی دی.دویم جواب هم دې سره مشابهت لري لیکن دالفاظو په تعبیر کې فرق دی هغه دا چې طلاق ورکول حلال او مباح دي لیکن د الله تعالی په نزد قابل نفرت او مکروه دی، ډیر داسې ثیزونه شته چې مکروه او ناخوښه وي لیکن هغه مباح او حلال وي، مثلاً فرض مونځ بغیر شرعي عذر نه په کور کې کول یا په غصب شوې زمکه باندې مونځ کول اګر چې مباح دی او فرض مونځ سره ذمه فارغه شوه لیکن ددې باوجود مکروه او ناخوښه دی.( المرقات ۶/۴۲۱،۴۲۰)

## د نکاح نه مخکې د طلاق ورکولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې |
| «لَا طَلَاقَ قَبْلَ نِكَاحٍ وَلَا وَلَا عَتَاقَ إِلَّا بَعْدَ مِلْكٍ وَلَا وِصَالَ فِي صِيَامٍ |
| چې د نکاح نه مخکې طلاق نه کیږي، د مالک کیدو نه مخکې غلام نه شي آزادولی د نیول شوې روژې (یعني د روژه ماتې نه |

---

(۱) أخرجه أبوداؤد فی السنن ۲/۶۶۷ رقم الحديث ۲۲۲۶ والترمذي ۳/۴۹۳ رقم الحديث ۱۱۷۸ وبن ماجه ۱/۶۶۲ رقم الحديث ۲۰۵۵ وأحمد فی المسند ۵/۲۷۷ والدارمي في ۲/۲۱۶ رقم الحديث ۲۲۷۰

(۲) أخرجه أبوداؤد فی السنن ۲/۶۳۱ رقم الحديث ۲۱۷۸ وابن ماجه في ۱/۶۵۰ رقم الحديث ۲۰۲۸.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَا | يُتْمَ | بَعْدَ | احْتِلَامٍ |
| بغیر مسلسل روژې نیول جائز ندي دبالغ کیدو نه پس څوک یتیم کیږي نه (د ځامو ریلار نه وي او هغه بالغ شي نو هغه ته به یتیم نه وایي | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | رَضَاعَ | بَعْدَ | فِطَامٍ | وَلَا | صَمْتَ | يَوْمٍ | إِلَى | اللَّيْلِ». |
| دېیو ځکلو د مودې نه پس پې ځکل په رضاعت کې نه دي شامل او تو له ورځ خاموش او سیدل جائز نه دي | | | | | | | | |

رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ[1]

(یا د دې څه ثواب نشته) (شرح السنه)

**توضیح**: **لا طلاق قبل نکاح**: طلاق په دوه قسمه دی: یو طلاق تنجیزي، یعنې دا طلاق فورًا بغیر د څه شرط نه واقع کیږي، دویم طلاق بالشرط دی، چې څه شرط سره مشروط او معلق وي.

یوې ښځې سره د نکاح کولو نه مخکې تنجیزي طلاق د چا په نزد جائز نه دی، مثلاً یو سړې یوې اجنبي ښځې ته ووایي چې ته په ما باندې طلاقه یې دا کلام بالاتفاق لغوه دی. معلق بالشرط طلاق بیا په دوه قسمه دی: یو قسم کې اضافت او نسبت د نکاح خپل ملک طرفه ته نه وي، مثلاً یو کس ووایي چې که فلانکۍ ښځې نکاح وکړه نو هغه دې طلاقه وي، دا طلاق هم د طلاق تنجیزي په شان لغوه دی، که وروستو ئي نکاح وکړه نو طلاق نه واقع کیږي او نکاح یې درسته ده. دویم قسم هغه دی چې په دې کې سړی اضافت او نسبت خپل ملک طرفه ته وکړي او ووایې چې (**ان نکحتک فأنت طالق اوان نکحت فلانة فهي طالق**) په دې صورت کې د فقهاو اختلاف دی. (المرقات ۶/۴۲۳)

**د فقهاؤ اختلاف**: د جمهورو په نزد دا هم لغوه دی ځکه چې دا د نکاح نه مخکې طلاق دی محل د طلاق نه نشته دی نو وقوع د طلاق هم نشته دی، امام ابو حنیفه فرمایي که په دې صورت کې محل صالح نه وی نو ټیک ده، لیکن څنګه چې محل صالح شي نو طلاق به واقع شي. (المرقات ۶/۴۲۳)

**دلائل**: د جمهورو دلیل زیر بحث حدیث دی چې پکې (**لا طلاقَ قبل نکاحٍ**) واضح الفاظ موجود دي، د امام مالک او احمد بن حنبل روایات اګر چې مختلف دي لیکن د هغوی یو یو روایت د امام شافعي سره دی، لهذا دا جمهور یو طرف ته دي، دائمه احنافو یو دلیل د موطا امام مالک روایت دی امام مالک فرمایي: **مالک بلغه ان عمر بن الخطاب وعبد الله بن عمر و عبدالله بن مسعود**

---

([1]) أخرجه البغوي في شرح السنة ۹/۱۹۸ رقم الحديث ۲۳۵۰.

**وسالم بن عبدالله والقاسم بن محمد وابن شهاب وسلیمان بن یسار کانوا یقولون اذا حلف الرجل بطلاق المرأة قبل ان ینکحها ثم (ای حنث) ان ذلک لازم له اذا نکحها.** (صفحه ۵۲۸)

په دې موطا امام مالک کې دي چې یو کس د قاسم بن محمد او سلیمان بن یسار نه ددې مسئلې تپوس وکړو چې یو سړې یوې ښځې سره د نکاح نه مخکې ظهار وکړو نو ددې څه حکم دی؟ نو دواړو جواب ورکړو چې که دغه کس دې ښځې سره نکاح وکړه نو تر څو چې یې کفاره د ظهار نه وي اداء کړې نو هغې ښځې له به نزدې نه ورځي. (موطا مالک ۵۲۸)

همداسې د ترمذی په صفحه ۲۲۳ باندې هم یو قول دی دحضرت ابن مسعود داحنافو دلیل دی، ددې ټولو دلیلونو نه دا معلومه شوه چې د ائمه احنافو مسلک مبرهن او مدلل بالدلائل دی.

**جواب**: باقي جمهورو د زیر بحث روایت نه چې کوم دلیل نیولی دی چې دا روایت په تنجیزي صورت باندې محصول دی چې دټولو په نزد ناجائز دی، همدا اختلاف جمهورو او احنافو دلفظ د (کلما) سره طلاق ورکولو کې دی، جمهور طلاق واقع کیدو باندې قائل نه دي، او احناف یې مني، همداسې مسئله د اعتاق هم ده.

**ولا وصال**: وصال ذ هغو مسلسل روژو نوم دی چې بغیر د افطار نه وي داسې قسم روژې د امت د پاره منع دي ها د نبی کریم ﷺ په خصوصیاتو کې وو د پیغمبر علیه السلام دپاره منع نه وې.

**لا یتم بعد البلوغ**: یعنې د یتیم مسائل او فضائل د هغه د بلوغت نه مخکې مودې پورې محدود وي. نو چې کله بالغ شی نو هغه ته یتیم نه شې ویلی کیدی بیا خو به ټولې دنیا ته یتیمانان ویلی کیدل. (المرقات ۴۲۲/۶)

**ولا صمت یوم**: یعنی د خاموشۍ روژه نشته دی وړومبنو امتونو کې به خاموشه روژه وه څنګه چې حضرت مریم ویلي وو (انی نذرت للرحمان صوماً فلن اکلم الیوم انسیاً) (سورة نساء آیت۲٦) خاموش اوسیدو کې فائده ده لیکن د خاموشۍ روژه ددې امت په عباداتو کې نشته.

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه پلار حضرت شعیب د خپل نیکه نه نقل کوي چه رسول ﷺ وفرمایل |
| «لَا نَذْرَ لِابْنِ آدَمَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ وَلَا عِتْقَ فِيمَا |
| د ابن آدم نذر په هغه څیز کې صحیح نه دی د کوم چې هغه مالک نه دی د هغه وینځې یا غلام آزادول هم صحیح |

لَا يَمْلِكُ وَلَا طَلَاقَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

نه دي د کوم چې هغه مالک نه دی نو هغه ښځې ته طلاق ورکول هم ټیک نه دي د کوم چې هغه مالک نه دی. او

وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ: «وَلَا بَيْعَ إِلَّا فِيمَا يملك»[1]

ابوداؤد په خپل روایت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي چې هغه څيز خرڅول هم صحيح نه دي چې د کوم هغه اصالتًا يا وکالتًا ولايةً مالک نه دی.

## د طلاق بتة مسئله

﴿۱۰﴾ وَعَنْ رُكَانَةَ بْنِ عَبْدِ يَزِيدَ أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ سُهَيْمَةَ الْبَتَّةَ

حضرت رکانه بن عبد يزيد په باره کې روايت دی چې هغه خپلې ښځې سهيمه له طلاق بته ورکړو او بيائې

فَأَخْبَرَ بِذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم وَقَالَ: وَاللهِ مَا أَردتُ إِلَّا وَاحِدَةً

د دې ذکر رسول کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وکړه او وې ويل په الله قسم ما د يو طلاق نيت کړی وو

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَاللهِ مَا أَرَدْتَ إِلَّا وَاحِدَةً؟» فَقَالَ رِكانةُ:

رسول کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تري تپوس وکړو (ته ربنتيا وايې) چې تا د يو طلاق نيت کړی وو؟ رکانه وويل

والله مَا أَردتُ إِلَّا وَاحِدَةَ فَرَدَّهَا إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

آو په الله مې دې قسم وي ما د يو طلاق نيت کړی وو چنانچه رسول کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه ښځه هغه

فَطَلَّقَهَا الثَّانِيَةَ فِي زَمَانِ عُمَرَ وَالثَّالِثَةَ فِي زَمَانِ عُثْمَانَ.

ته واپس کړو بيا رکانه هغې ښځې له دويم طلاق د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خلافت کې ورکړه او دريم طلاق يې د عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په

رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهُ وَالدَّارِمِيُّ إِلَّا أَنَّهُمْ

خلافت کې ورکړو دا روايت ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه، او دارمي نقل کړی دی، ليکن ترمذي ابن ماجه

لَمْ يَذْكُرُوا الثانيةَ وَالثَّالِثَةَ (ضَعِيف)[2]

او دارمي په خپل روايت کې د دويم او دريم طلاق ذکر نه دی کړی.

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/٦٤۰ رقم الحديث ۲۱۹۰ والترمذي في السنن ۳/٤۹٦ رقم الحديث ۱۱۸۱ وابن ماجه في السنن ۱/٦٦۰ رقم الحديث ۲۰٤۸ وأحمد في المسند ۲/۱۹۰

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱/٦٥٥ رقم الحديث ۲۲۰٦ والترمذي ۳/٤۸۰ رقم الحديث ۱۱۷۷ وابن ماجه في ۱/٦٦۱ رقم الحديث ۲۰٥۱ والدارمي في ۲/۲۱٦ رقم الحديث ۲۲۷

**توضيح**:البته: لفظ بتة او البتة يو څيز دی چې دکټ کولو او قطع کولو معنی يې ده د ښځې او خاوند په مينځ کې د نکاح د تعلق ختمولو دپاره چې خاوند کوم لفظ استعمالوي، يعنی لفظ طلاق (بته يا البته ) سره مقيد کوي چې ددې مفهوم دا شو، داسې طلاق چې کوم دنکاح رشته بالکل ختمه کړي او ښځه د نکاح نه بالکل اوباسي، اوس که يو کس طلاق البته سره مقيد کړه نو آيا د دې سړې د نيت اعتبار به کيږي يا يو طلاق به وي، که دوه يا درې واقع کيږي، په دې کې د فقهاء کرامو څه اختلاف دی.( المرقات ۴۲۵/۶)

**دفقهاؤ اختلاف** : د امام مالک رحمه الله قول دی چې په دې لفظ سره درې طلاقه واقع کيږي نو ښځه مغلظه شوه د نيت اعتبار نشته، جمهور فرمايې چې ددې لفظ د استعمالولو والا کس نيت ته اعتبار شته دی، بيا د شوافعو او احنافو ددې نيت په تفصيل کې اختلاف دی، امام شافعی فرمايې که يو کس ديو طلاق رجعی نيت وکړي نو دا هم صحيح دی دوه هم صحيح دي او ددريو طلاقو هم نيت کولی شي چې په دې سره ښځه مغلظه شي، ائمه احناف فرمائي چې دې لفظ سره طلاق رجعی نه بلکې يو طلاق بائن واقع کيږي، که د يو طلاق نيت يې وکړو يا د دريو طلاقو نيت يې وکړو نو دا هم صحيح دی، د دوو نيت نشي کولی، د (البتة) لفظ مصدر دی او دمصدر اطلاق په دوو باندې نه شي کيدی ځکه چې دوه خالص عدد دی او دمصدر اطلاق په قليل اوکثير باندې کيږي، ليکن عدد محض ته نشي ويلی، بهرحال يو طلاق سره ښځه بائن کيږي، اوکه د دريو نيت يې کړی وي نو مغلظه به شي.( المرقات ۴۲۵/۶)

**والله ما اردت الا واحدة**: چونکه دا د کنائي الفاظ دی دی دپاره د طلاق ورکولو والا نيت له اعتبار دی. دې وجې نه رسول کريم ﷺ باربار د حضرت رکانه نه تپوس کولو چې دا د يوه اراده وه يا ددريو، هغه به قسم خوړي چې د يو اراده وه چونکه په دې الفاظو سره د عربو عادت وو په دې باندې به يې د يو طلاق اراده کوله، لهذا په دې باندې به يې عمل کولو .( المرقات ۴۲۵/۶)

**فردها**: امام شافعي فرمايې چې چونکه حضرت رکانه ديو طلاق اراده کړې وه او هغه رجعي وو لهذا صرف(**راجعتها الی نکاحي**)په الفاظو سره يې ښځه په نکاح کې واپس کړه ، د امام ابو حنيفه په نزد په دې لفظ سره يا طلاق بائن واقع کيږي که د يو يا دوو طلاقو اراده يې کړې وي يا يې د هيڅ اراده نه وي کړي، که د دريو طلاقو اراده يې کړې وي نو درې طلاقه واقع کيږي. خلاصه داده چې د الفاظ کنائي دي او کنائي الفاظو سره يو طلاق بائن واقع کيږي، لهذا د (**ردها**) مطلب دا شو چې

رسول کريم ﷺ د نوي نکاح سره دهغه ښځه هغه ته واپس کړه. (المرقات ۴۲۵/۶)

## په ټوقو کې هم طلاق واقع کيږي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ثَلَاثٌ |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه ددې حديث راوي دی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل چې درې شيزونه |
| جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ: النِّكَاحُ وَالطَّلَاقُ وَالرَّجْعَةُ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| داسې دي چې د هغې عزم هم عزم او قصد دی، او ټوقې يې هم عزم او قصد دی. ۱.نکاح ۲.طلاق ۳.رجعت |
| وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1] |
| روايت کړي دي ترمذی او ابوداؤد ترمذي وايي چې دا حديث حسن غريب دی. |

## په حالت اکراه کې د طلاق مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې ما رسول کريم ﷺ نه دا اوريدلي دي چې فرمايل يې چې د اکراه |
| «لَا طَلَاقَ وَلَا عَتَاقَ فِي إِغْلَاقٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه قيل: معنى الإغلاق: الإكراه[2] |
| په حالت کې نه طلاق کيږي او نه آزادي. (روايت کړي دي ابو داؤد، او ابن ماجه) او بيان کوي چې د اغلاق معنی اکراه ده. |

**توضيح**: لا طلاق فی اغلاق: اغلاق د غلق نه دی، اکراه د زبردستۍ په معنی ده، ددې دويمه معنی علماو غوسه او غضب کړې ده، ددې مطلب دا شو انسان او ترشي يا طبيعت يې د ځناورو په شان شي په داسې حالت کې د انسان عقل په ځای نه وي او د مدحوهوشۍ او په بدحواسۍ په عالم کې انسان ډوب شي نو په دې حالت کې طلاق معتبر نه دی، ځکه د انسان هوش او حواس په ځای نه وي. په عامه غوسه کې طلاق واقع کيږي ځکه چې طلاق په غصه کې ورکړی کيږي په مينه کې نه، ځنګه چې شرک او بدعت د مينې د لارې راځي، بعضو د اغلاق معنی ليونتوب بيان کړې ده، يعنی په ليونتوب او پاګل کيدو کې د طلاق او عتاق اعتبار نه وي، بهر حال صاحب کتاب د اغلاق معنی اکراه کړې ده په دې حالت کې په طلاق کې د فقهاء کرامو اختلاف دی. (المرقات ۴۲۸/۶، ۴۲۷)

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۶۴۳/۲ رقم الحديث ۲۱۹۴ والترمذي في ۴۹۰/۳ رقم الحديث ۱۱۸۴ وأبن ماجه في ۶۵۸/۱ رقم الحديث ۲۰۳۹

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۶۴۲/۲ رقم الحديث ۲۱۹۳ وابن ماجه في ۶۶۰/۱ رقم الحديث ۲۰۴۶ وأحمد في المسند ۲۷۶/۶

**د فقهاو اختلاف** : د دريوواړو ائمو په نزد باندې دداسې کس طلاق نه واقع کيږي چې په طلاق ورکولو کې ورباندې زبردستي وشي چې ورته ''مکره'' ويلی شي. په دې مسئله کې حضرت امام مالک رحمه الله ډير محنت برداشت کړی دی او د وخت حکمرانانو د طرفه ډير مشقتونه او چت کړې دي ځکه يو بد کس شکايت کړی وو چې امام مالک د ''مکره'' طلاق صحيح نه ګڼړي نو داسې به د وخت د خليفه د اکراه په صورت کې بيعت هم معتبر نه وي، د مدينې په بازارونو کې ورته ډير تکليفونه ورکړی شوې وو بيايې ترې معافي وغوښتله، ائمه احناف او د نورو ډيرو صحابو او د تابعينو په نزد باندې د **"مکره"** طلاق واقع کيږي او صحيح هم دی.

**دلائل** : د جمهورو دليل د حضرت عائشې مذکور حديث دی چيرته چې اغلاق د اکراه په معنی سره دی. لهذا د اکراه په صورت کې طلاق نه واقع کيږي، د جمهورو دويم دليل هغه مشهور حديث دی (**رفع عن امتي الخطأ والنسيان وما استکرهوا عليه**) د جمهورو دريم دليل دحضرت ابن عمر هغه فيصله ده چې يو سړې بل کس په طلاق ورکولو مجبور کړه هغه طلاق ورکړه نو حضرت ابن عمر وفرمايل (**ليس هذا بطلاق ارجع الی اهلک**) (المرقات ۴۲۸/۶، ۴۲۷)

ائمه احناف ددې حديث نه مخکې دحضرت ابوهريره د حديث نه دليل نيولی دی چې ددې الفاظ دا دي (**ثلاث جدهن جد وهزلهن جد النکاح والطلاق والرجعة**) (ترمذی، ابوداؤد) دليل په داسې شکل دی چې په ټوقو کې کوم کس طلاق ورکړي په هغې کې د هغه مرضي شامل نه ده نو د (فقدان رضا) باوجود طلاق واقع شو نو د اکراه په صورت کې هم فقدان رضا دی نو دلته هم طلاق واقع کيدل پکار دي. (المرقات ۴۲۷/۶)

داحنافو دويم دليل د حضرت صفوان طائي هغه روايت دی چې د يوې ښځې خپل خاوند سره بغض وو يوه ورځ دهغې خاوند اوده وو هغې چاړه رواخستله او د خاوند په سينه کښناسته او بيايې خاوند ته وويل چې ماله درې طلاقه راکړه ګني حلالوم دې، خاوند ورته ډير منت وکړه او هغې ونه منله او هغې له يې درې طلاقه ورکړل بيا هغه کس رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طرف ته لاړو او ټول حال يې ورته بيان کړه. نو رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل (لاقيلوله فی الطلاق) يعنې طلاق مغلظه کې رجوع نشته. (المرقات ۴۲۸/۶)

داحنافو دريم دليل هغه حديث دی چې په کې درې قسمه خلق مرفوع القلم دي (**عن علي قال قال رسول الله صلی عليه وسلم رفع القلم عن ثلاثة عن النائم حتی يستيقظ وعن الصبي حتی يبلغ وعن المعتوه**

**حتى يعقل)**(ترمذی ابوداؤد) په دې حديث کې معتوه مغلوب الحال ته مرفوع القلم ړېلی شو او د نابالغ او د اوده شوې کس دا کار ناقابل اعتبار دی،دا واضحه اشاره ده چې دې نه علاوه د يو عاقل او بالغ او د هوش اوحواسو مالکانو خلقو افعال معتبر دي، په دې کې طلاق مکره هم دی چې صحيح او د نافذ په حکم کې دی، داحنافو د ليل د حضرت عمر رضي الله عنه هغه فيصله هم ده چې په يو کس خپلې ښځې جبر وکړو او په زوره طلاق يې حاصل کړه کله چې مقدمه حضر عمر رضي الله عنه ته راغله نو هغوی طلاق نافذ کړه او حضرت عمر بن عبد العزيز هم د مکره طلاق نافذ کړه.(عمدة القاری)

**جواب** : د جمهورو د وړومبنې دليل جواب دادی چې د اغلاق ډيرې معانې دي بعضو د تنګی معنی اخستی ده، بعضو د غوسې، او بعضو د اکراه معنی بيان کړې ده،بعضو د درې طلاقو په يو ځای ورکولو مطلب ترې اغستی دی، بعضو ترې د ليونتوب معنی اخستې ده، کله چې دې لفظ کې دومره امکانات دي نو په دې باندې صرف اکراه حمل کيدی نشي نه دا لفظ د دې د پاره مقرر شوی دی نو دليل هم صحيح نه دی، علماء احناف فرمايي چې مونږه د مجمل لفظ نه د اکراه په ځای د تنګۍ معنی اخلو ځکه چې په يو ځاې درې طلاقه ورکولو سره تنګي پيدا کيږي، مطلب دا شو چې کله درې طلاقه بيل بيل ورکولو کې ګنجائش دی نو يو سړی په يو ځای درې طلاقه ورکولو کې خپل ځان ولې په تنګۍ کې اچوي، لهذا (لاطلاق فی الاغلاق) مطلب دا شو چې درې طلاقه په يو ځای مه ورکوه خپل ځان په سختۍ کې مه اچوه، مثلاً يو غريب سړی دی او دهغه يو غلام دی هغه غلام هغه آزاد کړه نو شريعت وايي چې په خپل ځان باندې سختي مه راوله او که چا خپل ځان په سختۍ کې واچولو او په يو ځای يې طلاق ورکړل نو طلاق به واقع شي او د عتق حکم به هم نافذ شي.احنافو د جمهورو د دويم دليل دا جواب ورکړی دی چې (رفع عن امتي) چې درفع نه مراد د آخرت ګناه او مؤاخذه ده چې غلطۍ سره يا هيرې سره يا اکراه سره چې کوم کار وشي نو هغه د آخرت په اعتبار سره معاف دی او دا نه چې د دنيا په کار کې معاف دی، ځکه چې په دنيا کې د قتل خطا په وجه ديت راځي حالانکه دغه هم د خطا يو عمل دی، معلومه شوه چې ددنيا حکم معاف نه دی.د جمهورو د دريم دليل جواب دا دی چې د مرفوعو احاديثو په موجودګۍ کې دهغو آثارو او واقعو هيڅ اعتبار نشته. دارنګې ددې حضراتو په دې هم اتفاق نشته بلکې اختلاف دی لهذا په مرفوع احاديثو باندې به عمل کيږي، علماء احنافو کې ملا علي قاري په فتح القدير کې لس احکامات جمع کړي دي چې پکې داکراه په صورت کې هم حکم نافذ کيږي، د ملاعلي قاري شعر دا دی:

**يصح مع الاکراه عتق ورجعة نکاح وايلا طلاق مفارق**

وفی الظهار والیمین ونذر وعفو لقتل شلب عنه مفارق

## د لیونی طلاق نه واقع کیږي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُّ طَلَاقٍ جَائِزٌ |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې هر طلاق واقع کيږي |
| إِلَّا طَلَاقَ الْمَعْتُوهِ وَالْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: |
| مګر د بې عقله او مغلوب العقل طلاق نه واقع کيږي، امام ترمذی دا روايت نقل کړی دی او وايي چې |
| وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَعَطَاءُ بْنُ عجلانَ الرَّاوِي ضعيفٌ ذاهبُ الحَدِيث (صَحِيح)[1] |
| دا حديث غريب دی او ددې يو راوي عطاء بن عجلان ضعيف شمارلی کيږي ځکه چې دده په حافظه کې به حديث نه محفوظ کيدو. |

**توضيح:** الا طلاق المعتوه: معتوه معنی کم عقل او مدهوش دی، معتوه عموما داسې کس وي چې په يو وخت کې يې عقل کار نه کوي او بل وخت يې عقل په ځای شي، علامه ابن همام فرمايې چې معتوه هغه کس دی چې ناقص عقل وي او د سوچ ماده يې کمه وي په خبرو کې يې څه ربط نه وي خلق نه وهي او نه ورته کنځل کوي، اوپه ددې مقابله کې مجنون دی، مجنون هغه وي چې کنځل کوي فضول خبرې کوي خلق په کاڼو ولي، زين العرب فرمايې چې د معتوه په مفهوم کې مجنون، اوده شوی کس، مدهوش او داسې بيمار چې عقل يې کار نه کوي دا ټول داخل دي، اوس که چيرې د معتوه په مفهوم کې مجنون او پاګل داخل کړی شي نو (والمغلوب على عقله) دا جمله (معتوه) دپاره عطف تفسير جوړيږي، او مطلب دا شو چې د معتوه يعنې مجنون او پاګل طلاق نه واقع کيږي، د عطف تفسير تائيد په دې روايت سره هم کيږي چې په هغې دا جمله بغير د واو نه راغلې ده. او که چيرې دا جمله د ماقبل دپاره عطف تفسير نه شي نو بيا ددې جملې نه مراد سکران اختستی شي، او ددې به طلاق حکم زير بحث راشي او مجنون په معتوه باندې قياس کيدی شي چې کله د معتوه د طلاق اعتبار نشته نو د مجنون خو بيا په طريق اولی سره نشته. (المرقات ۴۲۹/۶)

**د سکران د طلاق حکم:** د کوم سړي عقل چې د نشې په وجې سره ضائع شي نو دداسې کس طلاق په واقع کيدو يا نه کيدو کې د فقهاو اختلاف دی، د امام ابو حنيفه او امام مالک او د نورو سلفو صالحينو په نزدد (سکران) طلاق واقع کيږي. اګر چې دا زائل العقل دی ليکن د معصيت او د نشې کولو د جرم په وجه

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۳/۴۹۴ رقم الحديث ۱۱۹۱

سره بطور زجراً د هغه طلاق نافذ شو، او دا د امام شافعي او امام احمد قول هم دی، د امام شافعي او امام احمد بن حنبل دويم قول دا دی چې د سکران طلاق نه واقع کيږي، همدا رايه د علامه کرخي او امام طحاوي او اسحاق بن راهويه هم ده، دا حضرات فرمايي چې د وقوع طلاق د پاره طلاق او عتاق ضروري دي او سکران زائل العقل دی، لهذا د دوی طلاق نه واقع کيږي، د شوافعو او حنابلو يو قول د جمهورو سره دی دې د پاره د سکران مسئله اتفاقي او اجماعي پکار ده. (المرقات ۴۲۹/۶)

## درې کسان مرفوع القلم دي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ: |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې درې کسان مرفوع القلم دي (يعنې د هغو درېو کسانو اعمال |
| عَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ وَعَنِ الصَّبِيِّ |
| په اعمالنامه کې نه ليکلی کيږي يو اوده شوی کس تر څو پورې چې بيدار شوی نه وي، دويم هغه هلک |
| حَتَّى يَبْلُغَ وَعَنِ الْمَعْتُوهِ حَتَّى يعقل". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد (صَحِيح) [1] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ |
| کوم چې بالغ نه وي دريم بې عقل کس چې د هغه عقل درست نه شي (ترمذی، ابوداؤد) دارمي دا روايت |
| عَنْ عَائِشَةَ وَابْنُ مَاجَهْ عَنْهُمَا [2] |
| د حضرت عائشهؓ نه او ابن ماجه د حضرت عائشې نه او حضرت علي نه نقل کړی دی. |

## د طلاق تعداد کې د سړي اعتبار دې يا د ښځې

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «طَلَاقُ الْأَمَةِ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د دې حديث راويه ده چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چه د وينځې د پاره |
| تَطْلِيقَتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ [3] |
| دوه طلاقه دي او د عدت موده ئې دوه حيضه ده. (ترمذی، ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي) |

---

(1) أخرجه أبوداؤد في ٤/٥٦٠ والترمذي في ٤/٢٤ رقم الحديث ١٤٢٣ وأحمد في المسند ١/١٥٥

(2) أخرجه ابن ماجه في ١/٦٥٨ رقم الحديث ٢٠٤١ والدارمي ٢/٢٢٥ رقم الحديث ٢٢٩٦ الجامع الصغير ٢/٢٧٣ رقم الحديث ٤٤٦٢

(3) أخرجه أبوداؤد في السنن ٢/٦٣٩ رقم الحديث ٢١٨٠ والترمذي في ٣/٤٨٨ رقم الحديث ١١٨٢ وابن ماجه في ١/٦٧٢ رقم الحديث ٢٠٨٠ والدارمي ٢/٢٢٤ رقم الحديث رقم ٢٢٩٤

**توضيح:** **طلاق الامة:** په دې حديث کې داسې دوه مسئلو طرف ته اشاره ده چې په دې کې د فقهاء اختلاف دی: په دې کې اوله مسئله داده چې په دې خبره خو د ټولو فقهاو اتفاق دی چې د آزاد او د غلام په طلاق کې فرق دی د(حر) طلاقه دري دي او غلام ته صرف د دوه طلاقو اختيار دی، اختلاف په دې کې دی چې په دوه طلاقو کې يا په دريو طلاقو ورکولو کې د ښځې حالت ته اعتبار دی او که د خاوند حالت ته اعتبار دی، يعنې طلاق بالرجال دی يا بالنساء دی.

**دفقهاو اختلاف** :د ائمه احنافو په نزد د طلاقو دتعداد ذارمدار د ښځې په حالت باندې دی که ښځه آزاده (حره) او شريفه وي نو خاوند ته د دريو طلاقو حق حاصل دی بيا که خاوند آزاد وي او که غلام، که ښځه وينزه وي نو دهغې خاوند ته د دوه طلاقو اختيار دی، که خاوند آزاد وي او که رقيق، ائمه ثلاثه يعنی د جمهورو په نزد دخاوند حالت ته اعتبار دی که خاوند حر وي نو هغه ته د درې طلاقو اختيار دی يا وينزه وي، او که خاوند غلام دی نو هغه ته د دوه طلاقو اختيار دی خواه که ښځه آزاده وي يا وينزه وي، يعنې دلته طلاق بالرجال دی طلاق بالنساء نه دی.( المرقات ۴۳۱/۶)

د فقهاء کرامو په نزد دويمه اختلافی مسئله داده چې په قرآن کريم دا صفا راغلي دي چې د آزادې ښځې دعدت موده درې حيضه ده په قرآن کريم کې دا الفاظ راغلې دي(**والمطلقات يتربصن بالفسهن ثلاثة قروء**) (بقره ۲۲۸)

په دې کې خو دچا هم اختلاف نشته البته اختلاف په دې کې دی چې د لفظ قروء نه مراد اطهار دي او که درې حيضه دي، امام مالک او امام شافعی فرمائي چې د (قروء) مصداق طهر دی دې وجې نه د طلاق شوې ښځې عدت درې طهره دی، ائمه احناف فرمايي چې د قروء مصداق حيض دی لهذا عدت درې حيضونو تيريدو سره مکمل کيږي.

**دلائل** : جمهورو د وړومبنی مسئلې دپاره دطبرانی د روايت نه دليل نيولی دی چې (**الطلاق بالرجال والعدة بالنساء رواه الطبراني عن ابن مسعود موقوفاً**) دې حضراتو سره ددويمې مسئلې د ثبوت دپاره څه مرفوع حديث نشته.( المرقات ۴۳۲/۶)

ائمه احنافو دخپلو دواړو مسئلو دپاره دزير نظر دې صريح او صحيح حديث نه دليل نيولی دی د حديث په اولنی حصه په واضحه توګه باندې ذکر دي چې د وينزې دوه طلاق دي چې ترې نه معلومه شوه چې دطلاق په تعداد کې د خاوند څه اعتبار نشته بلکې د ښځې اعتبار دی، دې وجې نه يې وفرمايل چې د وينزې خاوند چې څنګه وي طلاق به يې د دوو نه زيات نه وي.(المرقات ۴۳۲/۶)

احنافو د خپلې دويمې مسئلې ثبوت ددې حديث د دويمې حصې نه دليل نيولى دى چې د وينزې د عدت موده دوه حيضه ده .دې نه معلومه شوه چې عدت بالاطهار نه دى بلکه عدت بالحيض مقرر دى، ددې دويمې مسئلې دپاره احنافو په ابو داود شريف کې د فاطمه بنت ابى حبيش د صفا او واضح حديث نه دليل نيولى دى د حديث الفاظ دادي (**فقال لها رسول الله صلى الله عليه وسلم انما ذالک عرق فانظري اذا اتى قرءک فلا تصلي فاذا مر قروءک فتطهري ثم صلي مابين القرء الى القرء**)(ابو داؤد صفحه ۳۷) په دې حديث کې څلور ځله (قروء) لفظ راغلى دى او څلورځله د حيض دپاره استعمال شوى دى او طهر دپاره يوځل هم نه دى استعمال شوى، لهذا د انصاف تقاضا ده او د ټولو فقهاو نه د انصاف درخواست دى چې په دې صاف او واضح حديث باندې ټول متفق شي.

**جواب** : جمهورو چې د خپلې دعوې دپاره کوم دليل پيش کړى دى دهغې جواب دادى چې **"الطلاق بالرجال"** مطلب دادى چې دطلاق ورکولو حق صرف زوج ته حاصل دى او د ښځې په ذمه صرف دعدت موده تيرول دي لهذا د حديث د جمهور دليل نشي کيدى.(المرقات ۶/۴۳۲)

## دسختې مجبورۍ نه بغير په خلع اغستو باندې وعيد

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْمُنْتَزِعَاتُ |
| حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې دخپل خاوند نافرماني کولو والا |
| وَالْمُخْتَلِعَاتُ هُنَّ الْمُنَافِقَاتُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ [1] |
| او دخپل خاوند نه خلع اغستو والا ښځې منافقې دي. (نسائي) |

**توضيح**: **هن المنافقات**: يعني کومې ښځې چې د سختې مجبورۍ نه بغير يا شوقيه شکل باندې خلع کول غواړي او دخاوند اطاعت نه کوي نو دغه ښځې منافقې دي ځکه چې په ژبه او په ښکاره احوالو کې د اسلام احکام منې خو زړه کې يې نافرماني کوي، او د خاوند سره د دورنګۍ معامله کوي، نن سبا د ښځو دا کاروبار جوړ شوى دى چې پيسې ورکوي او طلاق واخلي او نورو خاوندانو سره نکاح کوي.(المرقات ۶/۴۳۲)

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۶/۱۶۸ رقم الحديث ۳۴۶۱ وأحمد في المسند ۲/۴۱۴

## دښځې د پوره مال په بدله کې خلع کول مکروه دي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ | نَافِعٍ | عَنْ | مَوْلَاةٍ | لِصَفِيَّةَ | بِنْتِ | أَبِي | عُبَيْدٍ | أَنَّهَا | |
| حضرت نافع دصفيه بنت ابو عبيد يوې آزادې کړی شوې وينزې نه روايت کوي چې صفيه دخپل ټول | | | | | | | | | |
| اخْتَلَعَتْ | مِنْ | زَوْجِهَا | بِكُلِّ | شَيْءٍ | لَهَا | فَلَمْ | يُنْكِرْ | ذَلِكَ | |
| مال په بدله کې د خپل خاوند (حضرت عبد الله بن عمر) نه خلع وکړه او انکار ونه کړه د هغې نه | | | | | | | | | |
| عَبْدُ اللهِ بْنُ عمر. رَوَاهُ مَالِكٌ [1] | | | | | | | | | |
| عبد الله بن عمر. (رواه مالک) | | | | | | | | | |

**توضيح: بكل شيءٍ لها:** يعنې د ښځې د ټول مال په بدله کې خاوند خلع قبول کړه او طلاق يې ورکړه دا صورت اګرچې مکروه دی خو چې رضامندي وي نو بيا جائز دی. علامه ابن همام فرمايي چې د شيخ مزني مسلک دی چې د خلې په صورت کې هم جائز نه دی، او اهل ظواهر وايي که د خاوند نه دښځې سخت نفرت وي او خاوند اندازه ولګوي چې اوس زه د ښځې حقوق نه شم اداء کولی او ښځه زما حقوق نه شي اداء کولی نو په دې صورت کې خلع کول جائز ده، ګني نه ده جائز. (المرقات ۴۳۳/۶)

د جمهورو فقهاو په نزد خلع کول جائز ده، او د قرآن د ايت نه هم ثابته ده او منسوخ نه ده، البته خبرې پکې شته چې خاوند څومره مهر ادا کړی دی چې ښځه به د خلع په بدله کې هغومره مال ورکوي يا ډېر اداء کولی شي؟ ملا علي قاري په مرقات کې دې باره کې ډېر روايات نقل کړې دي چې خاوند څومره مهر مقرر کړی دی د خلع د پاره زيات مال اغستل جائز نه دي خو په آخر کې يې ليکلي دي په دې مسئله کې د صحابه کرامو په وخت کې اختلاف وو، او بعضو صحابه کرامو د ټول مال په بدله کې خلع کول جائز کړې ده. صاحب هدايه ليکلې دي که نافرماني په ښځه کې نه وي بلکې په خاوند کې غلطي وي نو په دې صورت کې د ښځې نه مال اخستل منع دي. خو حرام ورته نه شې ويلی ځکه چې په رواياتو کې تعارض دی، بهر حال د مهر نه زيات مال اخستل مکروه دي او خلع جائز ده پوره تفصيل په مرقات کې دی. (المرقات ۴۳۳/۶)

---

[1] أخرجه مالک في المؤطأ ٢/٥٦٥ رقم الحديث ٣٢ من كتاب الطلاق.

## په یو وخت کې درې طلاقه ورکول حرام دي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۸﴾ وعَن مَحْمُود بن لبيد قَالَ: أُخْبِرَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلٍ | | | | | | | |
| حضرت محمود بن لبید وایي چې کله رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د هغه کس باره کې وویلی شو چې | | | | | | | |
| طَلَّقَ | امْرَأَتَهُ | ثَلَاثَ | تَطْلِيقَاتٍ | جَمِيعًا | فَقَامَ | غَضْبَانَ | |
| هغه خپلې ښځې ته په یو وخت کې درې طلاقه ورکړې دي نو رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په غوسه شو او ودرېدو | | | | | | | |
| ثُمَّ | قَالَ: | «أَيُلْعَبُ | بِكِتَابِ | الله | عَزَّ وَجَلَّ | وَأَنَا | |
| او وې فرمایل چې د الله تعالی کتاب پورې ټوقې کولی شي (او الله تعالی پورې ملنډې کولی شي) او زه ستاسو | | | | | | | |
| بَيْنَ | أَظْهُرِكُمْ؟» | حَتَّى | قَامَ | رَجُلٌ | فَقَالَ: | | |
| په مینځ کې موجود یم؟) په مجلس نبوي کې موجود صحابه کرامو کې یو کس چې دا واورېدل نو ودرېده او عرض یې وکړو | | | | | | | |
| يَا رَسُولَ الله أَلَا أَقْتُلُهُ؟. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1] | | | | | | | |
| یا رسول الله ! زه دا کس قتل نه کړم؟ (نسائي) | | | | | | | |

**توضیح:** ثلاث تطلیقات: د حضرت امام ابو حنیفه په نزد درې طلاقه په یو ځل ورکول بدعت او حرام دي، د امام شافعي په نزد درې طلاقه په یو ځل ورکول خلاف اولی دي حرام نه دي، په پورتنۍ حدیث کې په یو ځل درې طلاقه ورکول حرام معلومیږي، د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې غوسه کول په حرامو کیدی شي، نو ددې مطلب دا نه دی چې طلاق و نه شو داسې ډیر احکامات دي چې د ممانعت باوجود حکم یې نافذ شوی دی لکه په حالت حیض کې طلاق ورکول منع دي لیکن حضرت ابن عمر چې طلاق ورکړه نو وشو، په دې باندې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سخت ناراضه شو او د رجوع کولو حکم یې ورکړه (د جمعې داذان نه پس بیع او شرا ممنوع دي لیکن په کولو سره کیږي، د مغصوبه زمکې غصب کول منع دي او مونځ پرې کیږي لهذا، غیر مقلدین ددې روایاتو نه دلیل نه شي نیولی په کومو کې چې د درې طلاقو ورکولو نه ممانعت دی، د ممانعت باوجود طلاق واقع کیږي، بهرحال الله تعالی انسان ته د طلاق ورکولو دپاره مهلت ورکړی دی چې یو طلاق ورکړه او بیا سوچ وکړه او بیا څه موده پس بل طلاق ورکړه او بیا سوچ وکړه کیدی شي په دې دوران کې دهغه په دماغو کې او په غوسه کې څه بدلون راشي نو ښځې ته به د رجوع کولو موقعه په لاس ورشي، او که یو کس درې طلاقه په یو مجلس کې ورکړي نو هغه کس د الله تعالی

---

[1] أخرجه النسائي في ۶/۱۴۲ رقم الحديث ۳۴۰۱.

حکم نه مخ اړوي او خپل ځان په ډېر مشقت کې اچوي هغه طرف ته د قرآن کریم دا ایت اشاره کوي (الطلاق مرتان.....تا......ولا تتخذوا آیات الله هزوا) ملنډې او ټوقې هم دا دي چې د الله تعالی د حکم نه لاپرواهي وشي په دې وجه رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غوسې په حالت کې وفرمایل چې (أیلعب بکتاب الله عزوجل) او په دې جمله باندې یو کس دا عرض وکړو چې یا رسول الله ! آزه دا کس قتل نه کړم؟ دې صحابی دا سوچ وکړو چې کوم کس د قرآن پورې ټوقې کوي هغه کافر کیږي، لهذا د ده قتل کول پکار دي، حالانکه حضور اکرم دا ارشاد زجر، توبیخ، تغلیظ او تشدید باندې مبني وو، د علماء امت په دې باندې اتفاق دی که یو سړی خپلې ښځې ته وویل (انت طالق ثلاثا) نو درې طلاقه به واقع شي، او اهل ظواهر په دې کې اختلاف کوي دا مسئله په اوم حدیث کې رروانه ده. (المرقات ۶/۴۳۶)

## مسئلة الطلاق الثلاثة

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَن مَالك بلغه أَن رَجُلًا قَالَ لِعَبْدِ الله بْنِ عَبَّاسٍ: |
| حضرت امام مالک د دې حدیث راوي دی چې ما ته دا حدیث رارسیدلی دی چې یو کس حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل |
| إِنِّي طَلَّقْتُ امْرَأَتِي مِائَةَ تَطْلِيقَةٍ فَمَاذَا تَرَى عَلَيَّ؟ فَقَالَ ابْن عَبَّاس: |
| چې ما خپلې ښځې له سل طلاقه ورکړي دي تاسو دې باره کې څه وایئ؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل |
| طلقت مِنْك بِثَلَاث وَسَبْعٌ وَتِسْعُونَ اتَّخَذْتَ بِهَا |
| چې ستا ښځه په دریو طلاقو جدا شوه او اوه نوي طلاقه باقي پاتې شو چې په دې ذریعه تا ګویا د الله تعالی |
| آيَاتِ الله هُزُوًا. رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأ[1] |
| ایتونو پورې ټوقې وکړې. (موطا) |

**توضیح:** قال الله تعالی (فان طلقها فلا تحل له من بعدُ حتی تنكح زوجًا غیره) (البقرة ۲۳) قال ابن عباس طلقت منک بثلاث: حضرت ابن عباس نه چې کوم کس سوال وکړه نو په جواب کې یې ورته وویل چې په دریو طلاقو ستا ښځه ستا نه جدا شوه.

**د دریو طلاقو حکم**: د دین اسلام د ټولو علماو او د څلورو مذاهبو او د ټولو فقهاو په دې باندې اتفاق دی چې که یو کس خپلې ښځې له په یو مجلس کې درې طلاقه ورکړل نو طلاق وشو او ښځه مطلقه شوه .

---

(۱) أخرجه مالک في المؤطأ ۲/۵۵۰ رقم الحديث ۱ من كتاب الطلاق.

او تر څوپورې چې یې بله نکاح نه وي کړې د اولني خاوند د پاره نه حلالیږي، او تر څو پورې چې ورسره بل خاوند جماع نه وي کړې او طلاق ورنه کړي نو ورومبني خاوند دپاره حلال نه ده.

ددې خطرناکې مسئلې باره کې د غیر مقلدینو د ټول امت نه جدا فتوی ده چې درې طلاقه ورکولو سره یو طلاق واقع کیږي د حیرانتیا خبره خو دا ده چې یو عام کس ورته وایې چې مولوی صاحب ما درې طلاقه ورکړې دي او دا ورته وایې چې نه دا ستا یو طلاق واقع شوی دی لاړ شه او ښځې سره جماع وکړه په دې کې هیڅ حرج نه شته، هغه کس ورته وایې ما درې طلاقه په یو ځای ورکړې دي نو بیا ورته مولوی صاحب وایې چې درې درې نه وو بلکې یو دی کور ته ځه او په آرام کینه، اهل علم او اهل درد او اهل عرف او د دنیا په ټولو ژبو کې او ددې په اصطلاحاتو په باندې نظر اچولو والا حضرات فرمایې چې د دنیا په ټولو په ژبو کې ددې اعدادو او شمار دپاره خاص الفاظ مقرر دي نو کله چې هغه الفاظ ویلی کیږي نو دهغې نه هغه متعارفې او مروجې معاني واضحه شي. په عربی کې (ثلاث) دریو ته ویلی شي او فارسي کې دېته (سه) وایې پښتو کې (درې) انګریزی کې (تهری) او اردو کې (تین) ورته ویلی شي. اوس که یو کس په دریو الفاظو سره طلاق ورکوي نو ټول عقلمند خلق به هم دا وایې چې یو او بیا یو او بیا یو نو درې طلاقه واقع شو، او که کوم کس داسې وایې چې ددې دریو نه یو طلاق واقع شو نو هغه عرف ماتونکی دی، او د ژبو اصطلاحات مسخ کونکی دی دده په ذمه دي او په ده لازم دي چې د ټولو اصولو نه یو اړخ ته چې کومه دعوی ده کړې ده د هغې دلیل پیش کړي، که نه نو د عامو عقلاو او د عرف عام په خبره باندې عمل کوي، او هغه کس ته به ویل کیږي چې ستا او ستا د معاملې مثال د هل تثلیث پشان دی، ځکه هغه خلک عیسی علیه السلام او حضرت جبریل علیه السلام او الله تعالی دریواړه یو خدای مني او بیا وایې چې دا ریواړه په حقیقت کې یو دي، درې دي مګر یو دي، کوم او ښیار شاعر دغه خلک داسې پوهه کړي دي:

تثلیث کے قائل نے بھی اللہ کو کہا ایک　　　لو تین کی سوئی تین پہ کھڑی ہے اور بجا ایک

د دې تمهیدي کلماتو نه وروسته اوس د جانبینو دلائل بیانولی شي

**دلائل**: ۱. دغیر مقلدینو ورومبنی دلیل د مسلم شریف روایت دی چې الفاظ یې دا دي (وعن ابن عباس رضی الله عنهما قال کان الطلاق علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم وابی بکر وسنتین من خلافة عمر طلاق الثلاث واحدة فقال عمر بن الخطاب ان الناس قد استعجلوا فی امر کانت لهم فیه اناة فلو امضیناه علیهم فامضاه علیهم) (مسلم جلد ۱ صفحه ۴۷۸)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس فرمايي چې د حضور اکرم ﷺ او دابو بکر صديق په زمانه کې او د حضرت عمر د عهد خلافت په ابتدائي دوه کالو کې درې طلاقه به یو وو دې نه پس حضرت عمر وفرمايل چې خلق په دې کې ډيره جلتي کوي چې په کې دوی دپاره سهولت وو که مونږه دوی له درې طلاقه نافذ کړو نو دا به بهتره وي په باره کې په هغوی درې طلاقه نافذ شول، د استدلال طرز داسې دی: دحضور اکرم ﷺ او د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په زمانه کې درې طلاقه به یو شمارلی کيدل، درې طلاقه درې مقررول د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه فيصله وه دا مونږ ته قبوله نه ده بلکه مونږته د حضور اکرم ﷺ او د حضرت ابو بکر صديق اکبر رضي الله عنه فيصله قبلول پکار دي.

۲.دغير مقلدينو دويم دليل دادی، د باب حديث نمبر ۱۰ د حضرت رکانه روايت دی چې هغه د رسول کريم ﷺ په زمانه کې خپلې ښځې له (بتة) سره طلاق ورکړی وو او رسول الله ﷺ هغه ته رجوع کولو اختيار ورکړی وو معلومه شوه چې يو نشست کې درې طلاقه ورکولو سره يو طلاق رجعي واقع کيږي اورکانه رجوع وکړه او حضور انکار ونه فرمايلو او د(بتة) الفاظو سره درې طلاقه ورکولی شي، د رکانه په روايت کې بعضو راويانو دا هم نقل کړې دي چې هغه (ثلاثا) الفاظو سره درې طلاقه ورکړې وو او بيا هم رسول کريم ﷺ د رجوع کولو حکم ورکړی وو، معلومه شوه چې په يوځای درې طلاقه ورکول په حقيقت کې يو طلاق شو.

۳.اهل ظواهرو د هغو ټولو رواياتو نه هم دليل نيولی دی چې په کې د دريو يا د دريو نه زيات طلاقه ورکولو سخت ممانعت راغلی دی او حضور اکرم او صحابو په دې باندې د ډيرې غوسې اظهار کړی دی. جمهورو فقهاء، علماء د امت او ائمه اربعه فرمايي چې که درې طلاقه که په يو طهر کې وي او که په بيلو بيلو طهرونو کې وي په يو مجلس کې وي يا په بيل بيل مجلس کې وي په حالت حيض کې وي که درې طلاقه په يوځای وي يا په بيلو بيلو الفاظو سره وي په هر صورت کې درې طلاقه واقع کيږي. د جمهورو فقهاو او تابعينو په حق کې د قرآن او حديث قطعي نصوص او دصحابه کرامو او تابعينو د فيصلو ګڼ شمير کې دلائل موجود دي چې د هغې راجمع کول نه يو کتاب جوړيږي خو دلته يو څو دليلونه پيش کولی شي.

۱.جمهور امت د قرآن کريم د دې ايت نه دليل نيولی دی ﴿**فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِن بَعْدُ حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ**﴾ په دې ايت کې دا خبره يقيني طور باندې واضحه شوه چې په اسلام کې د دريو طلاقو وجود شته او درې طلاقه ورکولو سره ښځه مغلظه کيږي، او دويم خاوند سره نکاح او د حلالې نه بغير دوړومبې خاوند دپاره نه حلاله کيږي.

۲. امام بخاری په بخاری شریف جلد ۲ صفحه نمبر ۷۹۱ کې د طلاق ثلاثه دپاره مستقل باب (باب من اجاز الطلاق الثلاث) او د قرآن کریم ایت (الطلاق مرتان فامساک بمعروف او تسریح باحسان) نه یې دلیل نیولی دی دوی یا خو د (مرتان) نه تثنیه د تکریر په معنی سره اخستې ده چې مرهٔ بعد مرهٔ طلاق ورکول جائز دي چې پکې درې طلاقه داخل دي یا دوی (اوتسریح باحسان) نه دلیل نیولی دی ځکه چې تسریح د پریخودو په معنی سره راځي دا پریخودل که په یو طلاق وي یا په دریو طلاقو ټول په کې شامل دي.

۳. امام بخاری په بخاری شریف کې هم په پورتنې صفحه باندې یو باب تړلی دی (باب من اجاز الطلاق الثلاث) ددې لپاره امام بخاري د عویمر عجلاني د لعان اوږده قصه نقل کړې ده ددې په آخره کې دي (فطلقها ثلاثا) بدرالدین عینی فرمایې چې حضور اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عویمر درې طلاقه نافذ کړل، د دېنه معلومه شوه چې درې طلاقه درې طلاقه وي.

۴. د بخاری شریف په دې صفحې باندې د حضرت رفاعه د ښځې واقعه هم امام بخاري د دریو طلاقو د واقع کیدو د ثبوت په باره کې نقل کړې ده په دې حدیث کې دا الفاظ دي (لاحتی یذوق عسیلتک و تذوق عسیلته) یعنې ته خپل خاوند ته تر هغې وخته پورې رجوع نشې کولی تر څو پورې چې د نوې خاوند مزه وانخلې او هغه ستا نه مزه وانخلې، دا روایت صاحب مشکوة هم په صفحه ۲۸۴ باندې نقل کړی دی لیکن په دې کې د الفاظ دي (لاحتی تذوق عسیلته ویذوق عسیلتک)

۵. جمهورو د محمود بن لبید د روایت نه هم دلیل نیولی دی کوم چې ددې حدیث نه مخکې ۱۸ نمبر باندې تیر شوی دی چې پکې دا الفاظ دي. (طلق امراته ثلاث تطلیقات جمیعا) چې په کوم باندې رسول کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سخت غوسه شوی وو لیکن په دې مجلس کې په یو ځای درې طلاقه حضور صلی الله علیه وسلم هم تسلیم کړل او دایې یو مقرر نه کړه.

۶. سنن نسائی (باب احلال المطلقه ثلاثا) کې امام نسائي په کې ډیر احادیث نقل کړې دي چې په کې درې طلاقه واقع کیدل معلوم شوې دي، د حضرت ابن عمر په روایت کې داسې الفاظ راغلي دي: عن ابن عمر رضی الله عنه قال سئل النبي صلی الله علیه وسلم عن الرجل یطلق امرأته ثلاثا فیتزوجها الرجل فیغلق الباب ویرخی الستر ثم یطلقها قبل ان یدخل بها لا تحل للأول حتی یجامعها الآخر. (سنن نسائی جلد ۲ صفحه ۱۰۱)

یعنې د رسول کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دیو کس باره کې سوال وکړی شو چې یو کس خپلې ښځې له درې طلاقه ورکړل او بیا دویم سړي ورسره نکاح وکړه او د جماع نه مخکې یې طلاق ورکړه نو ایا دا ښځه

د ورومبي خاوند دپاره حلاله شوه ؟ رسول كريم ﷺ ورته وفرمايل تر څو پورې چې ورسره دې ثوې خاوند جماع نه وي كړې نو دا د ورومبني خاوند دپاره حلاله نه ده.
۷. زير بحث حديث نمبر ۱۹ نه هم جمهورو دليل نيولى دى چې په مشكوة شريف كې د موطا امام مالك په حوالې سره ذكر كړى شوې دې.كيدى شي دا د حضرت ابن عباس د هغه كس باره كې فتوى وي چې درې طلاقه دې واقع شول او درې كم سل دې په ګناه كې شامل شو.
۸.جمهور امت د حضرت عبد الله بن مسعود د يوې فتوې نه هم دليل نيولى دى پيغمبر عليه السلام ته د يو دوو كسانو متعلق وينا وشوه چې يو خپلې ښځې له سل طلاقه وركړې دي او بل د ستورو په برابر طلاقه وركړې دي پيغمبر عليه السلام ورته په جواب كې وفرمايل چې هغه ښځه ترې جدا شوه.
او داسې يو كس خپلې ښځې له سل طلاقه وركړې وو نو حضرت ابن مسعود په دې الفاظو سره فتوى وركړه **(بانت منک بثلاث وسائرهن معصية)** (مصنف ابن ابي شيبة) يعنې په دريو طلاقو ښځه جدا شوه او نور ستا په ګناه كې شامل شول.
او داسې دحضرت ابن عمر فتوى ده.**(من طلق امراته ثلاثا فقد عصى ربه و بانت امرأته ـ مصنف ابن ابي شيبة)** چا چې په يوځاى درې طلاقه وركړل نو هغه د خپل رب نافرماني وكړه او دهغه ښځه د هغه نه جدا شوه او د بل روايت د الفاظ هم دي (لم تحل له حتى تنكح زوجًا غيره).
۹.د طلاق ثلاثه واقع كيدو باره كې دحضرت ابن عباس ډېر اقوال دي او دې باره كې د هغه ډيرې فتوې مشهورې دي، زير بحث حديث كې هم د حضرت ابن عباس حكم او فتوى ده چې په سلو طلاقو كې په دريو باندې ښځه طلاقه شوه نورو باندې د قرآن كريم پورې ټوقې وشوې، مصنف ابن ابى شيبه او سنن بيهقى كې د حضرت ابن عباس ډيرې فتاوي منقول دي چې ښكاره پته لګي چې په يوځاى درې طلاقه واقع كيږي او ښځه مغلظه كيږي.
۱۰.حضرت مجاهد د خپل استاذ حضرت ابن عباس نه يوه فتوى داسې نقل كوي **(قال رجل لابن عباس طلقت امرأتي مائة قال تاخذ ثلاثا وتدع سبعاً وتسعين)** [بيهقى] او په دې مقام كې د حضرت سعيد بن جبير فتوى هم سنن بيهقى نقل كړې ده، هغه وفرمايل چې كه يو سړى خپلې ښځې له درې طلاقه وركړي نو ښځه په هغه حرامه شوه، بهرحال د صحابو او تابعينو ډېرې فتاوي او بې شميره فيصلې موجودې دي چې يو ځاى درې طلاقه وركولو سره ښځه جدا كيږي، او بل خاوند سره نكاح او جماع نه بغير په ورومبني خاوند باندې حرامه شوه، سلف او خلف فقهاء په دې باندې متفق دي.صحابه او تابعين په دې باندې متفق دي، د قرون وسطى علماء په دې باندې اتفاق كوي، عربو اوعجمو علماو په دې باندې اتفاق كړى دى، د سعودى عرب لويو لويو مفتيانو په دې فتوى ده، د سعودي قاضي القضاة شيخ ابن باز د طلاق ثلاثو په واقع كيدو باندې يو كتاب هم ليكلى دى،دامت په دې اتفاق ته چې وګورو نو په

اهل ظواهرو او په غير مقلدينو باندې حيراتتيا راځي او افسوس هم، او د امت نه په ځانله کيدو باندې بې اختياره د شاعر حال په ياد کې راځي هغه ويلي دي:

**لزلوا بمكة في قوافل نوفل ۔ و نزلت بألبيداءِ أبعد منزل**

يعنې ټول خلک د نوفل په قافله کې شامل شول، مکې ته لاړل او زه يو اځې په لرې ځنګلو کې پاتې شوم.

**جوابونه:** دغير مقلدينو د ورومبني دليل جواب دادی چې شارح مسلم علامه نووي ددې حديث چې کوم مطلب بيانوي هغه د حديث دشارحينو په شريکه فيصله ده دې ټولو له پکار دی چې دحديث هم هغه مفهوم خپل کړي کوم چې شارحينو بيان کړی دی، د علامه نووي د خبرې خلاصه داده: چې رسول کريم ﷺ په وخت کې دخلقو عادتونه داسې ووچه ديو طلاق سره به يې زيات نور الفاظ هم ويل **انت طالق طالق طالق** ورومبی طلاق مقصود وو دادې د مضبوطيدو دپاره دويم او دريم ځل باندې به يې دا کلمې ويلې، درې طلاق ورکول څه عادت يا رواج نه وو ليکن روستو زمانه کې خلقو دطلاق دپاره دا الفاظ ويل شروع کړل.په دې باره کې حضرت عمر وفرمايل چې اوس خلقو دا تاکيدي سهولت نظرانداز کړی دی او درې ځله طلاق ورکول په کلکه نه دي بلکې استيناف اراده کوي او درې طلاقه ورکوي، نو اوس به دا درې وي. دا ياد ساتل پکار دي چې حضرت عمر څه شرعي حکم بدل نه کړه بلکې دخلقو عادتونه او اعمال او دخلقو رواج ئې بدل کړه، ګويا دا حکم د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم په عهد مبارک کې هم داسې وو، که د خلقو عاداتونه د هغې وخت د فاروقی دور په شان وو ليکن په هغه وخت کې غالب عادت يو طلاق ورکول وو او بيا روستو غالب عادت درې طلاقه ورکول شو نو د دريو.طلاقو ورکولو عام حکم نافذ شو ځکه چې درې طلاقو ورکولونيت سره طلاق ورکول د حضور په زمانه کې هم درې طلاقه ګڼل کيدل، عمر فاروق د دې دريو حکم نافذ کړه.

علماو دا هم ليکلي دي چې عمر فاروق د صحابه کرامو په مشورې سره دا حکم نافذ کړه او يو صحابي هم په دې باندې اعتراض ونه کړه لهذا په دې د صحابه کرامو اجماع وشوه، غير مقلدين حضرات په ژبه باندې دا نه وايي چې مونږ دصحابه کرامو فيصله نه منو ليکن که غور وکړی شي نو هغوی د خپل عمل نه دا ظاهره کړې ده چې هغوی د صحابه کرامو اجماعي فيصلو پابند نه دي، مثلاً شلو رکعاتو تراويحو کې دا حضرات په خپل عمل سره د صحابه کرامو اجماعي فيصله رد کوي په طلاق ثلاثو کې هم دا حال دی، د جمعې دپاره اذان کولو کې دا حضرات وايي چې دا د حضرت عثمان داخل کړی شوی عمل دی، د شرابو حد اتيا کوړې او داسې قسمه ډېرو فيصلو کې دا حضرات د صحابه کرامو خبرو سره ټکراويږي، حالانکه حضور اکرم ﷺ فرمايلي دي

(علیکم بسنتي و سنة الخلفاء الراشدین المهدیین).

د غیر مقلدینو دویم دلیل د حضرت رکانه روایت دی چې په کې د (بتة) لفظ راغلی دی چې ددې نه دا حضرات درې طلاقه اخذ کوي، ددې جواب دادی چې ددې حدیث په متن کې ډیر اضطراب دی، په بعضو روایاتو کې راغلي دي چې حضرت رکانه د (ثلاثة) په لفظ سره طلاق ورکړی دی، او په بعضو روایاتو کې راغلي دي چې هغه د (البتة) لفظ د طلاق دپاره استعمال کړی دی.
او د بعضو روایاتو نه دا معلومیږي چې حضرت رکانه یو طلاق ورکړی وو، په نیل الاوطار جلد ۶ صفحه ۲۴۱ کې ددې تفصیل موجود دی. دې وجې نه امام بخاری د حضرت رکانه حدیث ضعیف ښودلی دی، او امام احمد بن حنبل د دې حدیث ټول طرق ضعیف ښودلي دي، او علامه ابن عبدالبر هم دا روایت ضعیف کړی دی، سنن ابوداؤد شریف د متعدد طرقو نه دا معلومیږي چې ددې حدیث په سند کې هم ډیر اضطراب دی، امام ابو داؤد په دې روایت کې د لفظ (بتة) سره طلاق صحیح ګرځولی دی او (ثلاثا) لفظ یې کمزوری او غیر صحیح کړی دی (ابو داؤد جلد ۱ صفحه ۲۹۸) د حضرت رکانه روایت که صحیح هم وي او په دې کې څه اضطراب هم نه وي بیاهم ددې مطلب واضح دی چې د (البتة) لفظ د کنائي الفاظونه یو لفظ دی او د کنائیه الفاظو کې د ټولو په نزد ددې الفاظو استعمالولو والا نیت ته به اعتبار وي، هم دې وجې نه د حضرت رکانه نه رسول کریم ﷺ باربار دا تپوس کولو چې ددې الفاظو نه تا څه اراده کړې وه هغوی عرض وکړو چې ما د یو طلاق اراده کړې وه بیا رسول کریم ﷺ په یو طلاق فیصله وکړه، او دا هغه ښځه یې هغه ته واپس کړه.
که حضرت رکانه داویلي وی چې ما د دریو طلاقو اراده کړې وه رسول کریم ﷺ به ضرور دا فیصله کوله چې اوس د رجوع کولو ګنجائش نشته. ځکه چې د دریو طلاقو نه پس د رجوع کولو حق نه وي. که درې طلاقه هم د حضور اکرم ﷺ په نزد باندې یو طلاق وو نو حضرت رکانه نه یې باربار د قسم سره د یو طلاق اقرار اخستلو ضرورت څه وو حضور به ورته صفا صفا فرمایلي وو چې که دیو نیت دې وو یا د دریو نیت دې وو طلاق یو وشو د دریو سوال نه پیدا کیږي، که دانصاف په نظر سره وکتلی شي د حضرت رکانه روایت د غیرمقلدینو دلیل نشي جوړیدی بلکې د جمهورو فقهاو دلیل کیدی شي ځکه چې غیرمقلدین وایي که د دریو نیت وکړي یا د دریو دپاره صفا الفاظ استعمال کړي طلاق صرف یو واقع کیږي، حالانکه د حضرت رکانه په حدیث کې د یو یا درېو د نیت

فرق ظاهرولو دپاره باربار د هغه نه سوال کيږي، په حقيقت کې روايت بالمعنى دى او هغه د لفظ د (بتة) نه د دريو طلاقو مفهوم اخذکړه او (ثلاثا) الفاظ يې نقل کړه .په اصل روايت کې صرف د (البتة) لفظ دى څنګه چې د ابو داؤد نه معلوميږي.

غير مقلدينو ددې عمومي رواياتونه دليل نيولى دى چې په يو ځاى درې طلاقه ورکولو باندې ممانعت راغلى دى او دايې ناخوښه کړي دى، ددې جواب دادى چې ممانعت او وعيد په خپل ځاى صحيح دى او کله چې منع شوى کار وشي نو د هغې به څه اثرات نه پريوځي؟

د جمهورِ امت دا خيال دى چې څوک يو ممنوع کار په غلطۍ سره وکړي نو د هغې اثر به وي، درې طلاقه ورکول اګرچه يو ناخوښه عمل دى ليکن ددې ناجائز خراب او مکروه کار کولو سره به ضرور غلط اثرپريوځي، صحابه کرامو د دريو نه زيات طلاقه ورکول ناخوښه ګرځولې دي او دسخت خفګان څرګندونه يې کړې ده.

ددې باوجود په سلو طلاقو کې يې درې طلاقه نافذ کړل، او په حالت د حيض کې يې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طلاق د حضوراکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خفګان او دغمجن کيدو باوجود نافذ کړه.

لهذا درې طلاقه په يو ځاى ورکولو چه کوم خفګان وو دهغې باوجود صحابو او تابعينو او جمهور امت دا درې طلاقه نافذ کړل، د احتياط او انصاف تقاضا داده چې د جمهورو د مسلک فتوى ورکول پکار دي.

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ لِيْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا مُعَاذُ |
| حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمايل چې اى معاذ! الله تعالى |
| مَا خَلَقَ اللهُ شَيْئًا عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَحَبَّ إِلَيْهِ |
| چې په زمکه باندې څومره مستحب څيزونه پيدا کړي دي د هغه په نزد د ټولو نه زيات خوښ څيز غلام او |
| مِنَ الْعَتَاقِ وَلَا خَلَقَ اللهُ شَيْئًا عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَبْغَضَ إِلَيْهِ |
| وينځه آزادول دي او الله تعالى چې په زمکه کې کوم حلال څيزونه پيدا کړي دي په هغې کې د ټولو نه زيات ناخوښه |
| مِنَ الطَّلَاقِ». رَوَاهُ الدَّارَ قُطْنِيُّ (متفق عليه)[1] |
| څيز طلاق ورکول دي. (دار قطني) (بخاري ومسلم) |

---

(۱) أخرجه الدارقطني في السنن ٤/٣٥ رقم الحديث ٩٤ من كتاب الطلاق.

# بَابُ الْمُطَلَّقَةِ ثَلَاثًا

## د مطلقې مغلظې حکم

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: جَاءَتِ امْرَأَةُ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې يو ورځ د رفاعه قرظي ښځه رسول کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضره شوه |
| فَقَالَتْ: إِنِّي كُنْتُ عِنْدَ رِفَاعَةَ فَطَلَّقَنِي فَبَتَّ طَلَاقِي |
| او عرض يې وکړو چې د رفاعه په نکاح کې وم او هغه ماله طلاق راکړه او درې طلاقه يې راکړل او ما |
| فَتَزَوَّجْتُ بَعْدَهُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الزَّبِيرِ وَمَا مَعَهُ إِلَّا مِثْلُ هُدْبَةِ الثَّوْبِ |
| بيا د رفاعه نه پس عبد الرحمن بن زبير سره نکاح وکړه خو عبد الرحمن د ښځې قابل نه دی |
| فَقَالَ: «أَتُرِيدِينَ أَنْ تَرْجِعِي إِلَى رِفَاعَةَ؟» |
| رسول کريم صلى الله عليه وسلم چې دا واوريدل نو ورته يې وفرمايل چې ته واپس رفاعه له تلل غواړې ؟ |
| قَالَتْ: نَعَمْ قَالَ: «لَا حَتّٰى تَذُوقِي |
| هغې عرض وکړو چې آو نبي عليه السلام ورته وفرمايل چې ته ترهغه وخته پورې رفاعه سره نکاح نشې کولی |
| عُسَيْلَتَهُ وَيَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ» (۱) |
| تر څو پورې چې عبد الرحمن تا نه مزه وانه خلي او ته د هغه نه. (بخاری و مسلم) |

**توضيح: عبد الرحمن بن زبير:** زبير د زاء په فتحې سره دی، ددې نه مراد حضرت زبير نه دی بلکې بل کوم کس دی. (المرقات ۴۴۱/۶)

**هدبة الثوب:** د کپړې هغه څوکه چې زوړنده وي او جوړه شوې نه وي د بته (هدبة الثوب) ويلی شي. هاء باندې ضمه ده او دال باندې سکون دی دې ته کناره (څنډه) هم ويلی شي. (۲) دا نامردۍ طرف ته

---

(۱) أخرجه البخارى في صحيحه ۵/۲٤۹ رقم الحديث ۲٦۳۹ ومسلم في ۲/۱۰۵۵ رقم الحديث (۱٤۳۳.۱۱۱) والترمذي في السنن ۳/٤۲۷ رقم الحديث ۱۱۱۸ والنسائى في ٦/١٤٦ رقم الحديث ۳٤۰۸ وابن ماجه في ۱/٦۲۱ رقم الحديث ۱۹۳۲ والدارمي ۲/۲۱۵ رقم الحديث ۲۲٦۸.

(۲) المرقات ۴۴۱/۶

اشاره ده په بعضو رواياتو کې راغلي دي چې عبد الرحمن وويل (إنما أبثها بثا) يعني زه يې الوزوم په الوزولو سره، زه نامره نه يم، علماو تطبيق کړی دی چې عبد الرحمن هم رشتيا ويلي دي لکن دغه ښځه د دې نه د ډير قوت خواهشمنده وه دهغې د وينا هم ټيک وه خو هغې په تشبه ورکولو کې ډير زور نه کار واخسته او کونډې ښځې سره واده کولو کې خو خرابي ضرور وي، ددې حديث نه دا خبره هم ثابته شوه چې درې طلاقه درې واقع کيږي، او دويمه خبره دا ثابته شوه چې د حلالې نه بغير د وړومبني خاوند دپاره ښځه نه حلاليږي، او دريمه خبره دا ثابته شوه چې حلاله يو حقيقت دی چې انکار ترې نه شي کيدی، ددې خراب صورتونه بهرحال خراب وي ليکن ددې د وجود نه انکار نه شي کيدی، البته که يو کس دې نکاح له او حلالې له د حلالې په ځای بل نوم تجويز کړي نو د اصطلاحاتو کې په بدلون کې څه بخل نه شته. څلورمه خبره دا ثابته شوه چې زوج ثاني دپاره جماع ضروري ده او (حتى تنكح زوجا غيره) (البقرة ۲۳) کې صرف نکاح مراد نه ده بلکې جماع ترې مراد ده. حضرت سعيد بن مسيب وړومبی صرف نکاح کافی کړې وه خو بيا روستو د حديث عسيله په وجه يې رجوع وکړه. (المرقات ۶/۴۲، ۴۴۱)

## د حلالې بيان

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| (۲) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: لَعَنَ رسولُ اللهِ |
| حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنها وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم لعنت فرمايلي دي په |
| المحلِّلَ والمُحلَّلَ لَهُ. رَوَاهُ الدَّارِمِيّ (صَحِيح)[1] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ عَلِيٍّ |
| محلل او محلل له باندې (روايت کړي دارمي) ابن اماجه دا روايت د حضرت علي رضي الله عنه |
| وَابْنِ عَبَّاسٍ وَعقبَة بن عَامر[2] |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه او د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه نه نقل کړی دی. |

**توضيح**: لعن المحلل: **محلل** يعني حلال کولو والا زوج ثاني ته وايي او (**محلل له**) يعني د چا

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/٤۲۷ رقم الحديث ۱۱۲۰ والنسائی ٦/١٤٩ رقم الحديث ٣٤١٦ والدارمي في ۲/۲۱۱ رقم الحديث ۲۲۵۸ وأحمد في المسند ۱/٤٤٨.

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/٦۲۲ رقم الحديث ۱۹۳٤

دپاره چې حلاليږي زوج اول ته وايې، دحلالې صورت دادی چې يو کس خپلې ښځې له درې طلاقه ورکړل عدت پوره کيدو نه پس هغه دې طلاق شده ښځې سره دوباره نکاح کول غواړي نو دا کس اوس هغې سره نکاح نشي کولی او که دغې ښځې بل کس سره نکاح کړې وي او جماع يې ورسره هم کړې وي او هغه پخپله طلاق ورکول غواړي نو دعدت پوره کيدو نه پس اوس دا د وړومبني خاوند دپاره حلاله شوه او دا دحلالې هغه جائز صورت دی کوم چې په قرآن کريم کې (**حتى تنكح زوجاً غيره**) سره بيان شوی دی، دا خبره ياد ساتل پکار دي چې په زوج ثاني باندې دا لازم نه دي چې ورله طلاق وزکړي او که طلاق يې ورنه کړه نو بيا دهغه ښځه ده خو که هغه په رضا سره طلاق ورکړه نو په ښځه عدت تيرول لازم دي بيا چيرته نکاح کولی شي. (المرقات ۶/۴۲،۴۴۱)

**د حلالې مکروه تحريمي صورت**: که دوم خاوند دا شرط ولګولو چې د جماع نه پس به طلاق درکړم، يا ښځې شرط ولګولو يا وړومبني خاوند دا شرط ولګولو يا دوم خاوند دا شرط کيخودو چې دومره پيسې به راکوې نو حلاله به کوم ټول صورتونه مکروه تحريمي دي، داد نکاح د مقاصدو سره منافي ده په نکاح کې هميشه والی دی او په دې کې عدم دوام شرط لګولی شویٔ دی.

د جمهورو ائمو په نزد دا حلاله صحيح نه ده او جماع نه بغير دا ښځه د وړومبني خاوند دپاره حلاله نه ده ځکه چې دا شرائط فاسد دي نو نکاح هم فاسده شوه نو حلاله صحيح نه ده، ائمه احناف فرمايې چې دا فاسد شرائط به پخپله فاسد شي او نکاح به صحيح پاتې شي ځکه چې فاسد شرائطو سره عقد نکاح نه فاسديږي، او چې کله عقد نکاح صحيح شو نو حلاله هم صحيح شوه نو ښځه د وړومبني خاوند دپاره حلاله شوه. جمهورو په دې حديث کې لفظ (لعنَ) ليدلی دی او لفظ د (محلل) يې نه دی ليدلی چې په کې د حلالې مفهوم پروت دی.

اوس سوال دادی چې په دې حديث کې په حلاله والاو باندې لعنت ولې دی؟ ددې جواب دادی چې دلعنت تعلق د حلالې د هغې صورتونو سره دی کوم چې مکروه تحريمي دي، ددغې صورتونو په وجه په بعضې رواياتونو کښ (محلل) ته (تيس مستعار) يعنې د سوال چيلی (پسه) ويلی شوی دی، او په دې حديث کې په هغه باندې لعنت ويلی شوېدی، اوس دويم سوال دادی چې په دې حديث کې په (محلل له) يعنې زوج اول باندې هم لعنت دی دد قصور څه دی؟ نو علماء فرمايې دا ځکه چې هغه مغلظه طلاق ورکړه اودزوج ثاني يې حلاله کړه په دې مکروه صورتونو کې هغه هم شو نو په دې وجه هغه هم د لعنت مستحق شو، خلاصه دا چې که په حلاله کې دا مکروه صورتونه وي او د ژبې نه په واضحه طور باندې ناجائز شرائطو اظهار نه وې نو فی نفسه په حلاله مؤاخذه

نشته .بلکې بعضې د ډیرې مجبورۍ په حالت کې قابل اجر هم کیدی شي. د قرآن کریم ایت کې (**حتی تنکح زوجا غیره**) (**البقرة : ۲۳**) یو عام مفهوم دی، علامه ابن همام په فتح القدیر کې د حلالې ممنوع او قابل لعنت صورت دا بیان کړی دی که طلاق شده ښځې د یو سرپرست د اجازت نه بغیر نکاح کړې وه نو په دې صورت کې که زوج ثاني جماع هم وکړي نو دا حلاله صیحح نه ده او زوج اول دپاره حلاله نه ده او په دې باندې فتوی ده. (المرقات ۶/۴۴۴)

## د ایلاء مسئله

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: أَدْرَكْتُ بِضْعَةَ عَشَرَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت سلیمان ابن یسار (تابعي) وايي چې ما د لسو نه د ډیرو د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو نه دا اوریدلي دي |
| كُلُّهُمْ يَقُولُ: يُوقَفُ الْمُؤْلِي. رَوَاهُ فِي شرح السنة[1] |
| چه ایلاء کولو واله به ایسارولی شي. (روایت دي په شرح السنه کښې) |

**توضیح: یوقف المؤلي:** یعني ایلاء کولو والا ایساروئ او هغه د دې پابند کول چې ته کله ایلاء وکړې نو اوس به څلور میاشتې پس د وطي کولو نه پس ښځې ته رجوع وکړه یا طلاق ورکړه که چیرې دا سې نه کوې نو قیدیږې کړه او جیل کې یې واچوه دا د دې جملې ظاهري مطلب دی چې د جمهورو موافق دی. (المرقات ۶/۴۴۵)

په لغت کې ایلاء قسم ته ویلې شي امرؤ القیس د خپلې محبوبې په انکار او قسم خوړلو متعلق وايي:

**ويومًا على ظهر الكثيب تعذرت ۔۔۔ علي وآلت حلفةً لم تحللِ**

په اصطلاح کې ایلاء هغې ته ویلې شي چې یو کس دا قسم وخوري چې هغه به څلورو میاشتو پورې یا د دې نه زیاتې پورې خپلې ښځې سره جماع نه کومه دا ایلاء ده، اوس که دې سړې د څلورو میاشتو په مینځ کې خپلې ښځې سره جماع وکړه نو ایلاء ختمه شوه نو دا سړی حانث شو، اوس به د قسم کفاره اداء کوي، او که څلور میاشتې تیرې شوې او رجوع یې ونه کړه نو د ائمه احنافو په نزد یو طلاق بائن واقع شو د قاضي د جدا کولو ضرورت نشته او نه به هغه کس په طلاق ورکولو یا رجوع کولو باندې نه مجبوره کوي. (المرقات ۶/۴۴۵)

جمهور ائمه فرمايي چې څلور میاشتې تیریدو نه پس طلاق خود بخود طلاق نه واقع کیږي بلکې

---

(1) أخرجه البغوی في شرح السنة ۹/۲۳۷ رقم الحديث والدارقطني في السنن ۴/۶۱ رقم الحديث ۱۴۸ من كتاب الطلاق.

ايلاء کولو واله ته به ويلی شي چې خپلې ښځې ته رجوع وکړه يا طلاق ورکړه خو هغه کس نه طلاق ورکوي او نه رجوع کوي نو اوس قاضی ته دا اختيار دی چې هغه قيد کړي، چې هغه خو يا طلاق ورکړي يا رجوع وکړي خو هغه کس که هيڅ هم ونه کړل نو قاضی به اوس هغې له طلاق ورکړي اودواړه به يو بل نه جدا کړی چې يو طلاق بائن به وي پورتنی روايت په ښکاره د جمهورو دليل دی ځکه چې ايلاء کولو والا به څلورو مياشتو نه مخکې په رجوع يا طلاق باندې نه شي مجبوره کولی، معلومه شوه چې څلورو مياشتو تيريدو نه پس داسې معامله کول دي،که د مودې تيريدو نه طلاق بائن واقع کيدو نود (يوقف المُؤلي) څه ضرورت وو؟ ائمه احنافو ددې ايت نه استدلال کړی دی **للذين يؤلون من نسائهم تربص اربعة اشهرٍ فان فاؤا فان الله غفور رحيم وان عزموا الطلاق فان الله سميع عليم**، (**البقرة: ۲۲۶**) اوس ددې ايت نه يوه دا خبره واضحه شوه چې د ايلاء کم نه کم موده څلور مياشتې ده، ددښه په کمه کې ايلاء نه کيږي بلکې صرف قسم به وي، دغير مقلدينو په نزد د څلورو مياشتو نه کمه هم ايلاء وي، ايلاء دپاره څه موده شرط نه ده. د مصنف ابن ابي شيبه په يو روايت کې دي چې (**لا ايلاء فيما دون اربعة اشهرٍ**) دا روايت هم د اهل ظواهرو مسلک رد کوي، د اسلام نه مخکې د جاهليت په دور کې ايلاء به دوه کالو پورې اوږده وه او اسلام دې دپاره څلور مياشتې مقرر کړې، ددې ايت نه داحنافو د مسلک مطابق دويمه خبره دا ثابته شوه چې د څلورو مياشتو د تيرويدو نه پس يو طلاق بائن واقع کيږي، ځکه په ايت کې دي که د ايلاء کولو والا په څلورو مياشتو کې دننه رجوع ونه کړه نو هغه دطلاق اراده وکړه (**وان عزموا الطلاق**) دې نه احنافو په ځای دليل نيولی دی، دلته د قاضی د فيصلې هيڅ ضرورت نشته دی ځکه چې ايلاء يوه کورنی معامله وي او په دې کې د قاضي او د هغه د عدالت هيڅ کار نشته، د قاضی مداخلت په لعان کې وي په ايلاء کې نه، لهذا دلته چې جمهورو دا تفريق د قاضی دپاره ضروري کړی دی د دې هيڅ ضرورت نشته.

داحنافو د مسلک مطابق لوی لوی صحابه کرامو لکه حضرت عثمان، حضرت علي او حضرات عبادله ثلاثه يعنې حضرت عبد الله بن مسعود او عبد الله بن عمر او عبد الله بن عباس د ټولو په نزد د ايلاء دڅلورو مياشتو تيريدو نه پس په ښځه يو طلاق بائن واقع شو، ملا علی قاری ددې ډير ښه تفصيل بيان کړی دی. دلته د اختصار په طور باندې يو روايت نقل کول هم کافي دی.

(**عن ابن عباس وابن عمر قالا اذا آلی ولم يفئ حتی مضت اربعة اشهر فهی تطليقة بائنة رواه ابن ابي شيبة**) (مرقات جلد ۶ صفحه ۲۹۹)

بهرحال احنافو خپل دلائل د زیر بحث پورتني جملې په مقابله کې راجح ګرځولې دي چې په ایلاء کې د رجوع کولو یوه طریقه خپلې ښځې سره جماع کول دي، او دویمه طریقه د ژبې په ذریعې سره کول دي کومې ته چې رجوع بالقول ویلی شي. (المرقات ۶/۴۴۸،۴۴۶)

## د ظهار حکم

﴿۴﴾ وَعَن أَبِي سلمة: أَنَّ سَلْمَانَ بْنَ صَخْرٍ وَيُقَالُ لَهُ: سَلَمَةُ بْنُ صَخْرٍ الْبَيَاضِيُّ

حضرت ابو سلمه وایې چې یو صحابی سلمان بن صخر چې ورته سلمه بن صخر بیاضي ویلی شي

جَعَلَ امْرَأَتَهُ عَلَيْهِ كَظَهْرِ أُمِّهِ حَتَّى يَمْضِيَ رَمَضَانُ

خپله ښځه يې د خپل ځان د پاره د خپلې د مور د شا په شان وګرځوله تر هغه وخته پورې چې رمضان ختم شي

فَلَمَّا مَضَى نِصْفٌ مِنْ رَمَضَانَ وَقَعَ عَلَيْهَا لَيْلًا

رمضان نیم هم نه وو تیر شوی چې هغه یوه شپه خپلې ښځې سره کوروالی وکړه کله چې سحر شو

فَأَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ لَهُ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

نو هغه د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو او قصه يې ورته بیان کړه، نبی علیه السلام ورته وفرمایل

«أَعْتِقْ رَقَبَةً» قَالَ: لَا أَجِدُهَا قَالَ:

چې یو غلام آزاد کړه هغه عرض وکړو چې د دې طاقت نه لرم، رسول کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل

«فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ» قَالَ: لَا أَسْتَطِيعُ قَالَ:

چې دوه میاشتې روژې ونیسه، هغه عرض وکړو چې دا هم طاقت نه لرم نبی صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل

«أَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا» قَالَ: لَا أَجِدُ

چې شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکړه. هغه عرض وکړو چې د دې هم طاقت نه لرم. بیا

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِفَرْوَةَ بْنِ عَمْرٍو: «أَعْطِهِ

رسول کریم صلی الله علیه وسلم یو بل صحابی حضرت فروه بن عمرو ته وفرمایل چې ده له د کجهورو هغه

ذَلِكَ الْعَرَقَ» وَهُوَ مِكْتَلٌ يَأْخُذُ

تهیلۍ ورکړه (کومه چې یو سړي راوړې ده) (عرق د کجورو د پاڼو نه جوړې شوې تهیلۍ ته ویلی شي)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَمْسَةَ | عَشَرَ | صَاعًا | أَوْ سِتَّةَ | عَشَرَ | صَاعًا |

چې په کې پنځلس یا شپاړس صاعه (چه په کې دوه نیم پنځوس یا شپږ پنځوس سیره کجورې راځي)

«لِيُطْعِمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] وروى أَبُو دَاوُد وابنُ مَاجَه والدارمي عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ

چې شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکړي (ترمذی) ابو داؤد ابن ماجه او دارمی دا روایت د سلیمان بن یسار نه

عَنْ سَلَمَةَ بْنِ صَخْرٍ نَحْوَهُ قَالَ: كُنْتُ امْرَأً

او هغه د حضرت سلمة بن صخر نه داسې نقل کړی دی چه په کې د حضرت سلمه دا الفاظ هم دي ما به خپلو ښځو سره

أُصِيبُ مِنَ النِّسَاءِ مَا لَا يُصِيبُ غَيْرِي وَفِي روايتهما

دومره نزدیکت ساته چې زما په شان به بل چا دومره نه شو کولی د دې دواړو یعنې د ابو داؤد او دارمی په روایت

أَعْنِي أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيِّ: «فَأَطْعِمْ

کې دا الفاظ هم دي چه رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شپیتو غریبانانو له خوراک ورکولو په ځای دا هم فرمایلي دي

وَسْقًا مِنْ تَمْرٍ بَيْنَ سِتِّينَ مِسْكِينًا»[2]

چې شپیتو غریبانانو له یو وسق کجورې ورکړه.

**توضیح: کظهر امه:** د مشکوة شریف په بعضو نسخو کې **(باب المطلقه ثلاثا)** نه پس د «وفیه ذکر الظهار والایلاء» الفاظو په عنوان کې ذکر دي په دې وجه په دې باب کې د ایلاء حدیث هم دی او د ظهار حدیثونه هم راغلي دي، یا ایلاء او ظهار هم د طلاق یو قسم دی دې دپاره د طلاق په بابونو کې ددې ذکر شوی دی، زیر بحث د حضرت ابؤ سلمه په حدیث کې د ظهار حکم بیان شوی دی، ظهار هغې ته ویی شي. چې یو سړی خپلې ښځې ته یا دهغې د بدن اهمې او مشهورې حصې د خپلو محرماتو ابدیو د جسم د هغه حصې سره تشبیه ورکړي کومې حصې ته چې کتل د هغه دپاره حرام دي، لکه چې خپلې ښځې ته داسې ووایي چې ته په ما باندې د مور د ملا پشان حرامه یې یا ستا سر یا خېټه زما د مور د خیټې پشان ده، ذې الفاظو نه پس خپلې ښځې سره جماع کول او مینه کول ټول حرام شو، او که دظهار کفاره ورکړي نو بیا جماع کول جائز به شي که دکفارې نه مخکې یې جماع وکړه نو په هغه

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۵۰۳ رقم الحديث ۱۲۰۰

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۶۰ رقم الحديث ۲۲۱۴ والدارمي في ۲/۲۱۷ رقم الحديث ۲۲۷۳ وأحمد في المسند ۵/۴۳۶

استغفار لازم شو صرف د ظهار کفاره به اداء کوي نوره وربانديې څه جرمانه نشته، البته د کفارې اداء کولو نه مخکې دې جماع نه کوي.

**حتی یمضي رمضان** دې جملې نه معلومه شوه چې موقت ظهار (یو خاص مقرر شوې موده) جائز دی او کله چې مقرر شوې موده تیره شي نو ظهار به ختم شي، ابن همام فرمایلي دي چې کوم کس د یو خاص وخت دپاره ظهار وکړه (مثلاً داسې یې وویل چې رمضانه پورې ظهار دی) نو دا قید صحیح دی او خپلې مقرر شوې مودې تیریدو نه پس ظهار باطل شو.

**اطعم ستین** د ظهار د کفارې ترتیب دادی چې اول خو غلام ازادول دي که غلام نه وي نو دوه میاشتې روژې به نیسی، خو غلام ازادولو نه مخکې جماع کول حرام دي، او داسې روژې پوره کولو نه مخکې جماع کول حرام دي مګر دې د دېنه د کفارې اعاده لازم نه ده صرف استغفار غوښتل لازم دي، که روژې نه شي نیولی نو بیا به شپیته غریبانانو له ډوډۍ ورکوي خو دې نه مخکې جماع کول حرام دي، او که جماع یې وکړه نو استغفار به وغواړي او د کفارې اعاده نشته.

**سوال**: دلته دا سوال پیدا کیږي چې شپیته مسکینانو ته ۱۶ صاعه کجورې یې د کفارې په طور اداء کړې، حالانکې د فقه په کتابونو کې دي چې که کجورې ورکول وي نو هر مسکین له د صدقه فطر په مقدار به کفاره ورکوي نو په دې حساب سره شپیته صاعه کجورې پکار دي؟

**جواب**: رسول کریم صلی الله علیه وسلم حضرت سلمه ته وفرمایل چې دا کجهورې په مسکینانو باندې صرف خرچ کړه ددې دا مطلب نه وو چې دا پوره کفاره ده بلکې مطلب یې داوو چې څومره کجورې موجود وې هغه تقسیم کړه نورې دخپل طرف نه شاملې کړه، په بعضو روایاتو کې دا تفصیل دی چې دا سړی پخپله غریب وو نو هغه له یې ټولې کجورې ورکړې او کفاره یې روستو اداء کړهه.

دریم جواب دادی چې په دې روایت کې د ابو داؤد او دارمی په حوالې سره د یو وسق ذکر موجود دی او وسق ۶۰ صاعه وي، نو اوس په کې هیڅ شک نشته، هغه کس ته وویلی شو چې شپاړس ۱٦ صاعه ذل واخله او دخپل طرف نه نورې کجهورې ورسره شاملې کړه او یو وسق پوره کړه، فقهاو لیکلي دي چې که ظهار د کفارې دپاره یو کس روژې نیسي نو په روژو کې داسې ترتیب پکار دی چې په مینځ کې یې منهیه ورځې رانشي، امام ابو حنیفه نه په یو روایت کې دي چې که ظهار کولو والا د روژو په مینځ کې جماع وکړه نو روژې به بیا د سر نه نیسی، او د امام ابو یوسف او د جمهورو مسلک دادی چې استیناف نشته صرف استغفار دې کوي، د جمهورو په نزد د ظهار د کفارې دپاره غلام ازادول ضروري دي، احناف فرمایې چې په قرآن کریم کې د مطلق غلام ذکر دی لهذا مسلمان کیدل افضل دي لیکن واجب نه دی، که غلام وي یا وینزه وي، بالغ وي یا نابالغ وي ټول جائز دي

ځکه ایت مطلق دی راتلونکی حدیث نمبر ۵ او حدیث نمبر ٦ تشریح هم په دې توضیح کې راغله (المرقات ۴۵۱/۶، ۴۵۰)

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ صَخْرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت سلیمان بن یسار (تابعی) د حضرت سلمه بن صخر نه نقل کوي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ددې |
| فِي الْمُظَاهِرِ يُوَاقِعُ قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ قَالَ: «كَفَّارَةٌ وَاحِدَةٌ». |
| ظهار کولو والا باره کې کوم چې د کفارې ادا کولو نه مخکې جماع وکړي و فرمایل چې په ده باندې یوه کفاره |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| واجب شوه. (روایت کړې دې ترمذی او ابن ماجه) |

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿٦﴾عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ رَجُلًا ظَاهَرَ مِنِ امْرَأَتِهِ |
| حضرت عکرمه د حضرت ابن عباس نه نقل کوي چې یو سړي خپلې ښځې سره ظهار وکړو او بیا یې |
| فَغَشِيَهَا قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ: |
| د کفارې اداء کولو نه مخکې جماع وکړه، دې نه پس د رسول کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شو، نبی علیه السلام |
| «مَا حَمَلَكَ عَلَى ذٰلِكَ؟» قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ رَأَيْتُ بَيَاضَ |
| هغه ته وفرمایل چې کوم یو څیز ته په دې باندې مجبوره کړې هغه عرض وکړو چې د څوار لسمې سپوږمۍ |
| حِجْلَيْهَا فِي الْقَمَرِ فَلَمْ أَمْلِكْ نَفْسِي أَنْ وَقَعْتُ عَلَيْهَا فَضَحِكَ |
| شپه وه او زما نظر د هغې په پازیب باندې پریوت او ما په ځان قابو ونه ساتله او جماع مې وکړه نو په خندا شو |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَرَهُ أَنْ لَا يَقْرَبَهَا |
| رسول کریم صلی الله علیه وسلم چې دائې وا وریدل هغه ته یې دا حکم ورکړو چې اوس دوباره هغې سره جماع تر هغې |
| حَتَّى يُكَفِّرَ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ. وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ وَقَالَ: |
| وخته پورې مه کوه تر څو چې کفاره اداء نه کړې (ابن ماجه) ترمذی هم دا سې روایت نقل کړی دی او ویلي یې دي |

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۵۰۲ رقم الحديث ۱۱۹۸ وأخرجه ابن ماجه ۱/۶۶۶ رقم الحديث ۲۰۶٤

هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ مُسْنَدًا وَمُرْسَ

چې دا حدیث حسن صحیح غریب دی. ابو داؤد او نسائی هم داسې روایت مسندا و مرسل نقل کړی د

وَقَالَ النَّسَائِيُّ: المُرسل أَوْلى بالصَّوابِ من المسْنَدِ[1]

او نسائی ویلي دي چې د مسند په نسبت مرسل ډېر صحیح دی.

## د ظهار باره کې نورې مسئلې

## الْفَصْل الأول

﴿۱﴾ عَن مُعَاوِيَة بنِ الحكمِ قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت معاویه بن حکم وایي چې زه د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم

فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ جَارِيَةً كَانَتْ لِي تَرْعَى غَنَمًا لِي فَجِئْتُهَا وَقَدْ

او ما عرض وکړو ای د الله رسوله! زما یوه خادمه ده چې زما چیلۍ یې څرولې کله چې زه د هغې خواته لاړم نو ما په

فَقَدَتْ شَاةً مِنَ الْغَنَمِ فَسَأَلْتُهَا عَنْهَا فَقَالَتْ: أَكَلَهَا الذِّئْبُ

چیلو کې یوه کمه بیا مونده نو د هغې چیلۍ باره کې مې تپوس وکړو چه څه شوه؟ هغې وویل چې شرمخ وخوړله

فَأَسِفْتُ عَلَيْهَا وَكُنْتُ مِنْ بَنِي آدَمَ فَلَطَمْتُ وَجْهَهَا

ما له په دې باندې غوسه راغله او چونکې بنی آدم یم دې وجې نه ما هغه خادمه په مخ باندې یوه سپېړه ووهله،

وَعَلَيَّ رَقَبَةٌ أَفَأُعْتِقُهَا؟ فَقَالَ

او په دې وخت کې په ما باندې یو برده (یعني یو غلام یا وینزه آزادول واجب دي) رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا

لَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيْنَ اللهُ؟» فَقَالَتْ:

واورېدل نو هغه خادمه یې راوغوښتله او تپوس یې تري نه وکړو چې الله تعالی کوم ځای کې دی؟ هغې وویل چې

فِي السَّمَاءِ فَقَالَ: «مَنْ أَنَا؟» فَقَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللهِ

آسمان کې، بیا رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تري نه تپوس وکړو چې زه څوک یم؟ هغې عرض وکړو چې تاسو د الله رسول یې،

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَعْتِقْهَا». رَوَاهُ مَالِكٌ وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ

دې نه پس رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې دا آزاده کړه. (رواه مالک) د مسلم په روایت کې داسې دي

[1] أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۶۶۶ رقم الحديث ۲۰۵۶

| |
|---|
| قَالَ: كَانَتْ لِي جَارِيَةٌ تَرْعَى غَنَمًا لِي قِبَلَ أُحُدٍ وَالْجَوَّانِيَّةِ |
| چې حضرت معاویه وویل چې زما یوه خادمه وه چه د احد په غر کې او د جوانیه په طرفونو کې به یې زما چیلۍ څرولې |
| فَاطَّلَعْتُ ذَاتَ يَوْمٍ فَإِذَا الذِّئْبُ قَدْ ذَهَبَ بِشَاةٍ مِنْ غَنَمِنَا |
| .یوه ورځ ما چې خپلې چیلۍ ولیدلې نو ما ته معلومه شوه چې شرمخ زما د چیلو نه یوه چیلۍ او چته کړې ده |
| وَأَنَا رَجُلٌ مِنْ بَنِي آدَمَ آسَفُ كَمَا |
| زه هم د بنی آدمو نه یو سړی یم او څنګه چې (د یو نقصان په وجه) د آدم اولاد ته غوسه ورځي هم د غسې |
| يَأْسَفُونَ لَكِنْ صَكَكْتُهَا صَكَّةً فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| هم دغسې ماله هم غوسه راغله لیکن هغه ما سپېړه ووهله، او بیا زه د رسول کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم |
| فَعَظَّمَ ذَٰلِكَ عَلَيَّ قُلْتُ: |
| رسول کریم ﷺ دا واقعه زما د پاره یو اهم حکم ورګرځوه او وې فرمایل چې دا لویه ګناه ده ما عرض اوکړو |
| يَا رَسُولَ اللهِ أَفَلَا أُعتِقُها؟ قَالَ: |
| چې یا رسول الله ﷺ! نو زه دا خادمه آزاده کړم؟ رسول کریم ﷺ و فرمایل چې هغه |
| «ائتِنِي بِهَا؟» فأتيتُه بِهَا فَقَالَ لَهَا: «أَيْنَ اللهُ؟» قَالَتْ: |
| خادمه ماته راوله، نبی عَلَیْهِ السَّلَام ترې نه تپوس وکړو چې الله تعالی کوم ځای کې دی؟ هغې جواب ورکړو |
| فِي السَّمَاءِ قَالَ: «مَنْ أَنَا؟» قَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللهِ |
| چې آسمان کې، بیا رسول کریم ﷺ وفرمایل چه زه څوک یم؟ هغې وویل تاسو د الله تعالی رسول یې. |
| قَالَ: «أعتِقْهَا فإِنَّهَا مؤْمنةٌ»[1] |
| رسول کریم ﷺ ورته وفرمایل چې دا خادمه آزاده کړه ځکه دا مسلمانه ده. |

**توضیح**: **والجوانیه**: د احد غر سره نزدې یو ځای دی چې نوم یې جوانیه دی، دې لفظ کې په واو باندې شد دی او جیم باندې فتحه ده. (المرقات ۴۵۴/۶)

**فاطلعت**: طاء مشدد ده، پټ پټ کتو ته ویلی شي. **اسف**: په همزه مد دی او سین مفتوح دی. د سمع یسمع نه، په معنی د دردمند او غمګین دی د باب افعال نه په غصه کې اچولو ته ویلی شي (**فلما آسفونا**) د باب افعال نه دی په دې حدیث کې علامه طیبی او ملا علي قاري دواړو دا لفظ د غصې

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۳۸۲ رقم الحديث (۳۷،۳۳) ومالک في المؤطأ ۲/۷۷۶ رقم الحديث ۸ من كتاب العتق

او غضب دپاره استعمال کړی دی. (المرقات ۶/۴۵۴)

**لکن:** دا لفظ د استدراک دپاره استعمال شوی دی (**أي واردت ان اضربها ضرباً شديدًا ولكن**) یعنې ډیر وهل مې پریخودل او صرف یوه سپیړه مې ورکړه. (المرقات ۶/۴۵۴)

**صككتها:** د **نصرَ ينصرُ** نه صحا و صكة په مخ باندې سپیړه ورکولو ته ویلی شي. (المرقات ۶/۴۵۴)

**این الله:** رسول کریم ﷺ د هغې خادمې نه دا سوال دې دپاره نه وو کړی چې هغه دالله تعالی مکان اومقام بیان کړي بلکې د حضور اکرم ﷺ مقصد دا وو چې صرف دومره معلومه کړي چې دا خادمه مؤمنه ده که نه، چونکه د مشرکینو عربو دا عقیده ده چې الله تعالی سره څومره خدایان شریک دي هغه په زمکه کې دي او په آسمان کې چې کوم رب دی هغه الله دی،کله چې خادمې جواب ورکړو (په آسمان کښ) نو ددې مطلب دادی چې هغه واحد لاشریک بادشاه په آسمان کې دی دهغه شریک نشته، په دې وجه رسول کریم ﷺ و فرمایل چې دا آزاده کړه ځکه چې دا مؤمنه ده، او بهتره داده چې د ظهار د کفارې دپاره د ازادولو والا غلام یا وینزه مسلمان وي، او که مسلمان نه وي هم کفاره اداء کیږي، د احنافو هم دا مسلک دی البته جمهور فرمایې چې د غلام په ازادولو کې مسلمان کیدل ضروري دي، هغوی پورتنې حدیث نه دلیل نیولی دی. (المرقات ۶/۴۵۴)

احناف فرمایي چې په قرآن کریم د ظهار دکفارې ترتیب داسې دی (**والذين يظاهرون من نسائهم ثم يعودون لما قالوا فتحرير رقبةٍ من قبل ان يتماسا الخ**) (المجادله : ۳) (**فمن لم يجد فصيام شهرين متتابعين من قبل ان يتماسا فمن لم يستطع فاطعام ستين مسكينا**) (المجادله : ۴)

په دې ترتیب سره د (رقبة) لفظ مطلق دی که هغه مسلمانه وي او که کافره وي خو د حدیث په رڼا کې مسلمان کیدل افضل دي،دلته په دې دوه روایتونو کې په ظاهر ه معمولی شان تضاد معلومیږي، ځکه د موطا د مالک د یو روایت نه دا معلومیږي چې هغه صحابی و فرمایل چې زما په ذمه یو غلام آزادول دي، نو زه ددې په بدله کې دا خادمه آزادولی شم چې هغه کفاره هم اداء شي او هغه د وهلو د پیښمانیتا هم علاج وشي.دلته د مسلم شریف د روایت نه دا معلومیږي چې حضرت معاویه بن حکم هغه خادمه د سپیړې وهلو په وجه آزاده کړې وه ددې تضاد جواب دادی چې دلته څه نشته صرف دومره خبره ده چې د موطا مالک په روایت کې داسې تفصیل دی، او د مسلم په روایت کې اجمال دی نو دا اجمال ددې تفصیل په رڼا کې کتل پکار دي چې ددې صحابی په ذمه یوه بله کفاره هم وه لیکن هغه وغوښتل چې د وهلو د کفارې نیت هم وکړي نو نیت به صحیح وي او که نه؟ نو حضور اکرم ﷺ و فرمایل چې دا صحیح دی.

# باب اللعان

## د لعان بيان

قال الله تعالى (والذين يرمون أزواجهم و لم يكن لهم شهداءُ إلا أنفسهم فشهادة أحدهم اربع شهادات بالله إنه لمن الصادقين، والخامسةُ أن لعنة الله عليه إن كان من الكاذبين، و يدرء عنها العذاب أن تشهدَ اربع شهاداتٍ بالله إنه لمن الكاذبين، والخامسةَ أن غضبَ الله عليها إن كان من الصادقين) (النور: ۲)

لعان د فعال په وزن باندې د باب مفاعلې مصدر دی، د دې ماده لعنت دی، چونكه خاوند او ښځه يو بل لره د الله د رحمت نه لرې كوي، يا د رشتې د زوجيت نه يو بل لره لرې كوي، دې وجې نه ورته د لغت په اعتبار سره لعان وويل شو، دارنګې په قسمونو كې د لعنت لفظ صراحةً موجود دی، دې وجې نه يې د دې معاملې نوم لعان كيخوده. (النور: ۲)

**د لعان اصطلاحي مفهوم : د لعان اصطلاحي تعريف:** د لعان په تعريف كې د فقهاء كرامو اختلاف دی، د ائمه احنافو په نزد دلعان تعريف دارنګې دی (شهادات مؤكدات بالأيمان) يعنى په كلكه دقسمونو ګواهي نوم لعان دی، لهذا لعان د حنفيو په نزد ګواهي د قسم سره دی، د لعان دپاره د ګواهۍ ټول شرائط موجود كيدل ضروري دي په نابالغ او مجنون كې د ګواهۍ اهليت نه وی،لهذا هغوی يې هم نشې كولی، داسې د كافر اومسلمان په مينځ كې هم نشته،دارنګه د محدود في القذف هم لعان نه شي كولی، ځكه دا ټول خلق دګواهۍ دپاره اهليت نه لري نو د لعان هم اهل نه دي.

د جمهورو په نزد د لعان تعريف دا دی (**أيمان مؤكدات بلفظ الشهادة**) د هغوی په نزد باندې لعان د باب اليمين نه دی، د هغوی په نزد چې څوک د يمين او د قسم اهل وي نو هم هغه به د لعان اهل هم وي، دهغوی په نزدباندې محدود في القذف اوغيرمسلم كافر لعان كولی شي.(المرقات ۶/۴۵۶)

**د لعان حقيقت :** د لعان صورت او حقيقت دادی چې كله خاوند په ښځه باندې د زنا تور ولګوي او ښځه انكار وكړي او ووايې چې تا په ماباندې د دروغو تور ولګوه اوس دا ثابت كړه، دارنګې به دا ښځه د خپل خاوند خلاف عدالت ته لاړه شي او قاضی ته به فرياد وكړي قاضی به يې خاوند راوغواړي او ددې دعوې د ثبوت دپاره به ترې څلور ګواهان طلب كړي، كه تور ثابت شو نو ښځې باندې درجم حكم نافذ شو اوكه خاوند څلور ګواهان پيش نه كړی شو نو اوس به د دواړو په مينځ كې دلعان حكم نافذ كيږي، د لعان طريقه داده چې وړومبی به خاوند وايې چې زه الله تعالى ګواه جوړومه چې ماپه دې ښځې چې كوم د زنا تور لګولی دی په هغې كې زه رښتينې يم څلور ځله به ښځې طرف ته

اشاره وکړي او قسم به وخوري او پنځم ځل به داسې قسم خوري که په دې الزام کې دورغژن یم نو په مابانديې د الله تعالی لعنت وي، او دې نه پس به ښځه داسې قسم وخوري چې زه الله تعالی گواه جوړومه چې زما دې خاوند چې په مابانديې د زنا کوم تور لګولی دی هغه په دې کې دروغژن دی، د څلور ځله قسم خوا ړولو نه پس په پنځم ځل به دا ښځه وایې چې دې خاوند په مابانديې کوم تور لګولی دی که چیرې دا په دېکې رښتینې وي نو په مابانديې دې دالله تعالی غضب وي.

**دلعان حکمت** : دا یاد ساتل پکار دي چې د لعان دا حکم د حد زنا نه پس راغلی دی، دا یو جدا قانون دی چې صرف د ښځې او خاوند سره خاص دی، او په دې کې یې د خاوند د عزت او عظمت او د هغه دغیرت د احترام خیال ساتلی شوی دی، ځکه که خاوند مثلاً خپله ښځه په خپلو سترګو په زنا لیدلې وي او که د زنا نسبت دژبې سره کوي او څلور ګواهان نه وي نو خاوند به په ملا باندې اتیا کوړې وهي، دا یو جدا مصیبت دی که خاوند د ښځې په غلط حرکت باندې خاموشي اختیار کړه نو ټول عمر به په دې پښیمانه وي، او همیشه لپاره به غیظ او غضب او غم او الم کې وي، شریعت خاوند ته ددې مصیبت نه دبچ کیدلو دپاره د حدزنا نه علاوه یوه بله لاره ښودلې ده، که ګواه نه وي نو قسمونه دې وخوري او لعان دې وکړي او که خاوند ددواړو نه انکارکوي نو قاضی به په دواړو کې په یو عمل کوي یعنې قید کولی یې شي او که نه نو حد قذف هم لګولی شي.

**دلعان په نتیجه کې د فقهاو اختلاف** : په ښځه او خاوند کې چې کله دلعان عمل مکمل شي نو دې نه پس به څه کیږي په دې کې دفقهاو اختلاف دی، امام شافعي او امام مالک او یوبل قول کې امام احمد فرمایي چې د لعان نه پس به د ښځې او خاوند په مینځ کې پخپله بیلتون راشي، ائمه احناف او یو قول کې امام احمد فرمایي صرف په لعان کولو سره د ښځې او خاوند په مینځ کې تفریق نه راځي، بلکې د قاضي د بیلولو او د فیصلې ضرورت پکې شته.

**دلائل** : جمهورو د حضرت ابن مسعود او حضرت عمر فاروق دیو روایت او اثر نه دلیل نیولی دی کوم چې عبدالرزاق مصنف کې نقل کړی دی چې الفاظ یې دادي (**المتلاعنان لا یجتمعان ابدًا**) دلیل څه دارنګې دی چې په دې روایت کې ویلی شوې دي چې د لعان نه پس ښځه او خاوند بالکل نشي یوځای کیدی که په لعان سره فرقت رانغی نو د ښځې او خاوند په مینځ کې اجتماع لازم شوه چې ددې روایت د تشریح خلاف ده. ائمه احناف د حضرت عویمر عجلانی د روایت نه دلیل نیولی دی چې پکې دا الفاظ دي (**کذبت علیها ان امسکتها فطلقها ثلاثًا**) ددې روایت نه دوه خبرې ثابتې شوې: چې دلعان نه پس درې طلاقه ورکړی شو که دلعان نه پس پخپله فرقت راتلو نو ددریو طلاقو څه ضرورت وو، دویمه خبره دا واضحه شوه چې په یوځل درې طلاقه نافذیږي، دریمه دا خبره واضحه شوه چې حضرت عویمر پخپله

فرمايې چې دلعان نه پس كه ما دا ښځه خپل ځان سره وساتله نو ددې مطلب دا شو چې ما په دې ښځې دورغ ويلي دي، دې دپاره زه دې ښځې ته طلاق وركومه داييان ددې خبرې واضحه دليل دى چې صرف دلعان سره جدائي نه واقع كيږي، كه دې سره جدائي راتلى نو عويمر به پخپله دا بيان نه كوو ،ائمه احناف د سنن ابى داؤد د يو حديث نه دليل نيولى دى چې دعويمر عجلانى قصه ده چې په كې دا الفاظ راغلې دي چې ترېنه معلوميږى چې لعان نه پس بيلتون يو مسنون عمل دى(**فمضت السنة بعد فى المتلاعنين ان يفرق بينهما ثم لايجتمعان ابدا**) (ابوداؤد ،جلد ۱ صفحه ۳۰۶) احنافو د حضرت ابن عمر په دې باب كې د دويم حديث نه هم دليل نيولى دى چې په هغې كې دا الفاظ دي (ففرق بينهما) ددې ټولو رواياتو نه دا معلوميږي چې صرف لعان د بيلتون وجه نشي جوړې دى بلكې د قاضى ضرورت هم پكې وي چې دا خبره د عقلي دليل نه هم واضحه كيږي، ځكه چې دلعان ټوله مسئله د قاضى سره په عدالت كې وي، چې په هغې كې دعوى ده، ګواهى ده او قسم دى، چې كله دا ټوله معامله دعدالت لاندې چليږي نو د ښځې اوخاوند مسئله ولې د عدالت د اختيار نه بهر ده، پاتې شوه د ايلاء مسئله، نو لعان په ايلاء باندې نه شي قياس كولى، ځكه چې ايلاء يوه كورنۍ معامله ده چې په هغې كې د قاضي مداخله نشته، باقي د (**المتلاعنان لا يجتمعان أبدًا**) مطلب دا دى چې د لعان د تكميل نه بعد د ښځې او خاوند جدائي د هميشه دپاره ده، او په دې مطلب كې د چا اختلاف نشته او نه دا مطلب د چا خلاف دى.

## په زنا كې د قتل كولو حكم :كه يوسړې خپله ښځه په حالت زنا كې په خپلو سترګو وليدله نو هغه يې وژلى شي كه نه؟

په دې كې ډيرتفصيل دى، خلاصه داده چې كه چيرې خاوند خپل ښځه په حالت زنا كې وليدله نو دغېرت په وجه يې دواړه ووژل نوامید دى چې دالله په نزد به مؤاخذه نه وي، فقهاو دې باره كې يوه جمله ليكلې ده (**وله قتلهما**) چې خاوند دواړه وژلى شي چونكه ظاهري شريعت دقانون مطابق يې خلاف ورزي وكړه ، دې وجې نه جمهور علماء فرمايي چې شرعى عدالت ته دې دغه كس راولي او په قصاص دې ووژلى شي.

**تشريح لغات**: (انظروا) دا لفظ د نظر نه د انتظار په معنى دى، يعنې اوګورئ او انتظار وكړئ.( المرقات ۴۵۹/۶) (**اسحم**) يعنې جسم تور شو. ( المرقات ۴۵۹/۶) (**ادعج العينين**)د سترګو توروالې چه كله تور شان وى او سپين والې سپين قسم وى هغه ته ادعج العينين وائى. ( المرقات ۴۵۹/۶)(**اليتين**) دا د الية تثنيه ده د مقعد يو جانب ته ويلى شي. ( المرقات ۴۵۹/۶) (**خدلج**

الساقين) لام مشدد دی پيړۍ پوندۍ ته ويلی شي (فلا أحسب) د سين کسره او ضمه دواړه ويل کيږي د (أظن) په معنی سره دی (المرقات ۴۵۹/۶) (احيمر) دا د احمر تصغير دی د سور په معنی سره دی (و حرة) درېواړو حروفو باندې زور دی يو ورکوټي سور حيوان ته ويلی شي، په منجد کې يې ليکلي دي د ورکوټي قد او سور رنګ والا ښځې ته وحرة ويلی شي. اشعة اللمعات کې شيخ عبد الحق د دې متعلق ليکلي دي، يعنې وحره د هغه سور چينجي نوم دی کوم چې ځمکې سره جوخت ځي، پښتو کې ورته (چارمکۍ) د دې بهترين مصداق دی. اوس د هغه حديث تشريح ملاحظه کړئ کوم چې مخکې تير شو. (المرقات ۴۵۹/۶، اشعة اللمعات ۱۷۶/۲)

## اَلْفَصْلُ الأَوّل

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ: إِن عُوَيْمِر الْعَجْلَانِيَّ |
| حضرت سهل بن سعد ساعدي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي چې يو صحابي عويمر عجلاني د نبي عَلَيهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شو |
| قَالَ: يَا رَسُولَ الله أَرَأَيْتَ رَجُلًا وجدَ معَ. امرأتِهِ |
| او عرض يې وکړو چې يا رسول الله! ماته د هغه کس باره کې ووايي چې خپلې ښځې سره يو پردی سړی بيامومي |
| رجُلاً أيقتُله فتقتُلُونه؟ |
| او هغه ته دا يقين وو چې هغه سړي د هغه ښځې سره زنا کړې ده ايا هغه هغه سړی قتل کړي؟ که هغه يې قتل کړو |
| أمْ كَيفَ يَفعل؟ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| نو د مړي وارثان به هغه ووژني په دې صورت کې هغه څه وکړي نبي عَلَيهِ السَّلَامُ چې دا واوريدل نو وې فرمايل |
| «قدْ أُنْزِلُ فِيكَ وَفِي صَاحِبَتِكَ فَاذْهَبْ فَأْتِ بِهَا» قَالَ سَهْلٌ: |
| چې ستاسو (ښځې او خاوند) په قضيه کې وحې نازله شوې ده پخپله ښځه راوغواړه، حضرت سهل وايي |
| فَتَلَاعَنَا فِي الْمَسْجِدِ وَأَنَا مَعَ النَّاسِ |
| چې عويمر خپله ښځه راوغوښتله او ښځې او خاوند په مسجد نبوي کې لعان وکړو او زه هم د نورو خلقو سره |
| عِنْدَ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا فَرَغَا قَالَ عُوَيْمِرٌ: |
| رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره موجود ووم، کله چې دواړه ښځه او خاوند د لعان نه فارغ شول نو عويمر وويل |

كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رسولَ الله إِن أَمسكْتُها

چې که چیرې زه دا ښځه په کور کې وساتم نو ګویا ما په هغې د دروغو تور لګولی دی دینه پس هغه

فطلقتها ثَلاثًا ثُمَّ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "انْظُرُوا فَإِنْ

هغې ښځې له درې طلاقه ورکړل، بیا نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې که چیرې دې د دې

جَاءَتْ بِهِ أَسْحَمَ أَدْعَجَ الْعَيْنَيْنِ عَظِيمَ الْأَلْيَتَيْنِ

موجوده حمل نه داسې ماشوم پیدا شو چې دارنګه تور او سترګې ډیرې تورې او دواړه ئې لوې او

خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ فَلَا أَحسب عُوَيْمِر

دواړه پونډۍ یې دغوښې نه ډکې وې زه دې نه علاوه نورنه پوهیږم چې عویمر دې ښځې باره کې څه ویلي وو

إِلَّا قَدْ صَدَقَ عَلَيْهَا وَإِنْ جَاءَتْ

رښتیا یې ویلی وو (ځکه چې عویمر د کوم سړې طرف ته د زنا نسبت کړی دی) او که د ښځې نه

بِهِ أُحَيْمِرَ كَأَنَّهُ وَحَرَةٌ فَلَا أُحْسِبُ

داسې ماشوم پیدا شو چې دارنګه سور او بامنی رنګ والا وو نو بیا زه د دې نه علاوه نور څه نه شم ویلی

عُوَيْمِرًا إِلَّا قَدْ كَذَبَ عَلَيْهَا فَجَاءَتْ

چې عویمر هغې باره کې دروغ ویلي وو (یعنې عویمر دارنګه سور وو کله چې د هغې ښځې ماشوم پیدا شو

بِهِ عَلَى النَّعْتِ الَّذِي نَعْتُ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو هغه په هغه رنګ او صورت کې وو کوم باره کې چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تصدیق کړی وو (یعنې د هغه سړې په شان وو

مِنْ تَصْدِيقِ عُوَيْمِرٍ فَكَانَ

د کوم طرف ته چې عویمر د زنا نسبت کړی وو نو د عویمر خبره رښتیا شوه) دې نه پس هغه ماشوم د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د ارشاد

بَعْدُ يُنْسَبُ إِلَى أمه (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

**"الولد للفراش وللعاهر الحجر"** مطابق خپلې مور طرف ته منسوب کړه. (بخاری ومسلم)

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ٩/٤٤٦ رقم الحديث ٥٣٠٨ ومسلم في ٢/١١٢٩ رقم الحديث ١٤٩٢/١ وأبوداؤد في السنن ٢/٦٧٩ رقم الحديث ٢٢٤٥ والنسائي في ٦/١٧٠ رقم الحديث ٣٤٦٦ وابن ماجه في ١/٦٦٧ رقم الحديث ٢٠٦٦ مالك في المؤطأ ٢/١٥٦٦ رقم الحديث ٣٤

﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاعن بَين رجل وَامْرأته
حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم د يو سړي او د هغه د ښځې په مينځ کې دلعان حکم وفرمایلو

فانتفى مِنْ وَلَدِهَا فَفَرَّقَ
چنانچه دلعان په وجه هغه سړی د هغې ښځې د ماشوم نه لرې شو (يعنې د ماشوم نسب يې د هغه سړي نه لرې کړه)

بَيْنَهُمَا وَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالْمَرْأَةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
او رسول کریم صلی الله علیه وسلم د ښځې او خاوند په مينځ کې بيلتون راوستو او ماشوم يې ښځې ته حواله کړو. (بخاری ومسلم)

وَفِي حَدِيثِهِ لَهُمَا
او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په يو بل روايت کې چې بخاری او مسلم نقل کړی دی دا الفاظ دي

أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَظَهُ وَذَكَّرَهُ
چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم هغه سړي ته نصيحت وکړو او د آخرت عذاب يې ورته وریاد کړه چې دروغ ونه وايي)

وَأَخْبَرَهُ أَنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ ثُمَّ
او ددې خبرې نه يې خبر کړه چې د دنيا عذاب د آخرت د عذاب نه اسان دی بیا رسول کریم صلی الله علیه وسلم

دَعَاهَا فَوَعَظَهَا وَذَكَّرَهَا
هغه ښځه راوغوښتله او هغې ته يې هم نصيحت وکړو او د آخرت د عذاب يې ورته وریاد کړو

وَأَخْبَرَهَا أَنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَن من عَذَاب الْآخِرَةِ. اخرجه البخاري (صَحِيح)[1]
او هغې ته يې ددې خبرې نه خبر کړه چې د دنيا عذاب د آخرت د عذاب نه اسان دی.

## دلعان کولو والا حساب به په آخرت کې کيږي

﴿۳﴾ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ
حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دلعان والا سړي او ښځې ته وفرمایل (چې مونږه

لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ: «حِسَابُكُمَا عَلَى اللهِ
صرف د ظاهري احوالو په بنیاد باندې څه حکم نافذ کولی شو نو مونږه د لعان په صورت کې نافذ کړو. البته ستا حساب به د الله په نزد

أَحَدُكُمَا كَاذِبٌ
وي ځکه چې په تاسو کې به یو ضرور دروغژن وي (بیا رسول کریم ﷺ سړي ته وفرمایل چې)

لَا سَبِيلَ لَكَ عَلَيْهَا» قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَالِي
د ښځې باره کې ستا د پاره هیڅ لاره نشته سړي عرض وکړو یا رسول الله! او زما مال (ما چې کوم مهر ورکړی دی هغه به زما نه ځي؟)

قَالَ: «لَا مَالَ لَكَ
رسول کریم ﷺ ورته وفرمایل چې په هغه مال کې ستا هیڅ حق نشته (یعني ورکړی شوي مهر کې ستا هیڅ حق نشته)

إِنْ كُنْتَ صَدَقْتَ عَلَيْهَا
او که تا دې ښځې باره ربښتیا ویلي دي (یعنې ستا د وینا مطابق که دې ښځې په ربښتیا بدکاري کړې وي) نو د مال

فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا وَإِنْ كُنْتَ كَذَبْتَ
د هغه څیز بدله شوه چې تا د هغې شرمګاه حلاله کړې وه او که تا د هغې ښځې باره کې دروغ ویلي وي

عَلَيْهَا فَذَاكَ أَبْعَدُ
نو په دې صورت کې هم د مهر واپس اخستل هم ستا د پاره بعید دي یعنی د ربښتیا ویلو په صورت کې د مهر واپس

وَأَبْعَد لَكَ مِنْهَا» (صَحِيح)[1]
اخستو حق نشته نو د دروغو په صورت کې خو بالکل نشته. (صحیح)

## د آیت لعان شان نزول

﴿۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ هِلَالَ بْنَ أُمَيَّةَ
حضرت ابن عباس رضی الله عنه وایي چې هلال بن امیه د نبی ﷺ مخکې په خپلې ښځې باندې د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٩/٤٩٦ ومسلم في صحيحه ٢/١١٣١ رقم الحديث (١٤٩٣.٥) وأبوداؤد في السنن ٢/٦٩٢ رقم الحديث ٢٢٥٧ والنسائي في ٦/١٧٧ رقم الحديث ٣٤٧٦ وأحمد في المسند ٢/١١

قَذَفَ امْرَأَتَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرِيكِ بْنِ سَحْمَاءَ
شريک بن سحماء صحابي سره د زنا تور ولګولو (يعني هلال وويل چې شريک زما ښځې سره زنا کړې ده)
فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْبَيِّنَةَ
نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هلال ته وفرمايل چې د خپل تهمت د پاره ګواه پيش کړه ګني د دروغو تور لګولو
أَوْ حَدًّا فِي ظَهْرِكَ» فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ
په وجه باندې به ستا په ملا حد جاري کړی شي (يعنې اتيا کوړې) هلال عرض او کړو چې اې د الله رسوله!
إِذَا رَأَى أَحَدُنَا عَلَى امْرَأَتِهِ رَجُلًا يَنْطَلِقُ يَلْتَمِسُ الْبَيِّنَةَ؟
که په مونږه کې يو کس څوک د خپلې ښځې سره په بدکارۍ وويني نو هغه به ګواه تلاش کوي؟ (يعنې اول صورت خو دا دی
فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «الْبَيِّنَةَ
چې دومره موقع کوم ځای کې وي چې ګواه تلاش کړي) خو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم دا فرمايل چې ګواه پيش کړه
وَإِلَّا حَدٌّ فِي ظَهْرِكَ» فَقَالَ هِلَالٌ: وَالَّذِي
ګني تا باندې به حد جاري کړی شي. بيا هلال عرض وکړو چې قسم دې وي زما په هغه ذات باندې
بَعَثَكَ بِالْحَقِّ إِنِّي لَصَادِقٌ فَلَيُنْزِلَنَّ اللهُ
چې تاسو يې په حق سره مبعوث کړې يې، زه رښتينې يم او ما ته يقين دی چې الله تعالى به زما باره کې ضرور حکم نازل کړي
مَا يُبَرِّئُ ظَهْرِي مِنَ الْحَدِّ فَنَزَلَ جِبْرِيلُ وَأَنزل عَلَيْهِ:
او زه به د حد نه بري شم. آخر څه موده پس حضرت جبريل تشريف راوړلو او نبي عَلَيْهِ السَّلَام باندې دا آيت نازل شو يعنې
(وَالَّذين يرْمونَ أَزْوَاجهم) فَقَرَأَ حَتَّى بَلَغَ (إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ)
هغه خلق چې په خپلو بيبيانو باندې تور لګوي. الخ (او بيا دې نه پس يې څو ايتونه تر (ان کان من الصادقين) پورې تلاوت کړل.
فَجَاءَ هِلَالٌ فَشَهِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:
دې نه پس هلال د رسول کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او ګواهي يې ورکړه او نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل
«إِنَّ اللهَ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ؟»
چې بېشکه الله تعالى ښه پوهېږي چې په تاسو کې يو دروغژن دی پس تاسو کې څوک دی چې توبه اوباسي

ثُمَّ قَامَتْ فَشَهِدَتْ فَلَمَّا

دېنه پس د هلال ښځه ودرېده او لعان یې وکړه (یعني څلور ځله یې د خپلې پاکدامنۍ ګواهي ورکړه) او کله چې

كَانَتْ عِنْدَ الْخَامِسَةِ وَقَفُوهَا

پنځمه ګواهي یې ورکوله نو صحابه کرامو منع کړه چې ښه سوچ وکړه چې دې پنځم ځل باندې ګواهي ورکولو سره به

وَقَالُوا: إِنَّهَا مُوجِبَةٌ

ستاسو مینځ کې بیلتون واجب شي. او یا که ته دروغژنه یې نو د آخرت عذاب به درباندې واجب شي

فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَتَلَكَّأَتْ وَنَكَصَتْ حَتَّى ظَنَنَّا

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې ښځې دا واورېدل نو ودرېده او روسته شوه او مونږ ته دا ګمان وشو چې دا

أَنَّهَا تَرْجِعُ ثُمَّ قَالَتْ:

به خپلې خبرې نه روسته شي لیکن بیا هغې وویل چې زه (د لعان نه بچ کېدو او د خپل خاوند د الزام تصدیق کولو

لَا أَفْضَحُ قَوْمِي سَائِرَ الْيَوْمِ

سره خپل قوم ټول عمر نه رسوا کومه دا یې وویل او په پنځم ځل یې ګواهي ورکړه چې کله لعان پوره شو

فَمَضَتْ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَبْصِرُوهَا فَإِنْ

نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دواړو په مینځ کې بیلتون وکړو نبیٰ وفرمایل چې دې ته ګورئ که چیرې دې

جَاءَتْ بِهِ أَكْحَلَ الْعَيْنَيْنِ سَابِغَ الْأَلْيَتَيْنِ خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ

داسې ماشوم پیدا شو چې سترګې یې تورې ډوډۍ ئې درانه او پنډۍ یې ډکې وې نو دا به د

فَهُوَ لِشَرِيكِ بْنِ سَحْمَاءَ» فَجَاءَتْ بِهِ كَذَلِكَ

شریک بن سحماء وي ځکه چې هغه داسې وو. نو چې کله دې ښځې ماشوم پیدا شو نو هغه د شریک په شان وو

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ لَا مَا مَضَى مِنْ كِتَابِ اللهِ

نو رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چه که د کتاب الله پورتنی حکم نه وی نو ما به دې ښځې سره

لَكَانَ لِي وَلَهَا شَأْنٌ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ (صَحِيح)[1]

بلهمعامله کوله(چې د نورو دپاره به عبرت وه. (روایت کړې دې بخاری)

**توضیح**: **فلینزلن الله**: دلعان حکم په شعبان ۹هجری کې راغلی وو او دتولونه مخکې دلعان حکم په هلال بن امیه باندې نافذ شو، دېنه مخکې د عویمر عجلانی په روایت کې د (قد انزل فیک) دالفاظو نه معلومیږي چې لعان حکم ددوی باره کې نازل شوی وو، لیکن علماو دا تطبیق کړی دی چې دلعان حکم عام دی نودهر چاباره کې دا ویلی شي چې ستا متعلق دا حکم راغلی دی، یا اصل حقیقت دادی چې حکم خو دعویمر متعلق راغلی وو خو عمل پرې هلال بن امیه د ټولو نه مخکې وکړه یا ممکن ده چې ددواړو متعلق دا حکم نازل شوی وي.

**البینة**: یعني ګواه پیش کړه دا لفظ منصوب دی. (المرقات ۴۶۱/۶)

**وقفوها**: یعني خلقو هغه د قسم خوړلو نه منع کړه. (المرقات ۴۶۱/۶)

**انها موجبة**: یعني پنځم ځل باندې قسم خوړولو سره دلعان حکم ثابتیږي او د آخرت عذاب به واجب شي. (المرقات ۴۶۱/۶)

**(فتلکات)** کاف مشد د دې د **(توقفت)** په معنی سره دی یعني دا ښځه لږه ایساره شوه. (المرقات ۴۶۱/۶)

**(ونکصت)** یعني روستو شوه او وقفه یې وکړه **(سائر الیوم)** یعني خپل قوم همیشه دپاره نشم رسوا کولی دې جملې سره هغې ښځې دخپل جرم اقرار وکړو او بیا دې غریبې ته پته هم ونه لګیده چې هغې قسم وخوړو او څه یې پټ کړل او څه یې ظاهر کړل. (المرقات ۴۶۱/۶)

## دزناثبوت په څلورو ګواهانو سره ثابتیږي

﴿۵﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ: لَوْ وَجَدْتُ مَعَ أَهْلِي رَجُلًا

حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایې چې یو صحابی (سعد) وویل چې که چیرې زه خپلې ښځې سره یو پردی سړی بیاموم

لَمْ أَمَسَّهُ حَتَّى آتِيَ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ؟

نو زه به ورسره لاس نه لګومه؟ نو تر هغې پورې چې څلور ګواهان پیش نه کړم (یعني نه به یې وهم او نه به یې وژنم؟)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۴٤۹ رقم الحديث ۱۸٤۸ وأبوداؤد في السنن ۲۲/٦۸٦ رقم الحديث ۲۲٥٤ والترمذي في ۵/۳۰۹ رقم الحديث ۳۱۷۹ وابن ماجه في ۱/٦٦۸ رقم الحديث ۲۰٦۷

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «نَعَمْ» | قَالَ: | كَلَّا | وَالَّذِي |

رسول کریم ﷺ ورته وفرمایل چې آو، سعد عرض وکړو هرګزنه قسم مې دې وي په هغه ذات

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَعَثَكَ | بِالْحَقِّ | إِنْ | كُنْتُ | لَأُعَاجِلُهُ | بِالسَّيْفِ |

باندې چې تاسو يې په حق سره راليږلي يې دې نه مخکې چې زه څلور ګواهان پيش کړم زه به فوراً په توري

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَبْلَ | ذَلِكَ | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «اسْمَعُوا | إِلَى | مَا | يَقُولُ |

سره د هغه قصه ختمه کړم. رسول کریم ﷺ ناستو کسانو ته وفرمايل چې واورئ! څه وايي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَيِّدُكُمْ | إِنَّهُ | لَغَيُورٌ | وَأَنَا | أَغْيَرُ | مِنْهُ |

ستاسو سردار (سعد) په دې کې شک نشته چې دا ډير غيرت مند دی زه د تاسو نه زيات غيرت مند يم

وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّي». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

او الله تعالى د ټولو نه زيات غيرت مند دی (مسلم)

**توضيح: اسمعوا الى ما يقول سيدكم**: دلته د سوال پيدا کيږي چې د سعد د خبرې نه دا معلوميږي چې هغه د نبی اکرم ﷺ د وينا مخالفت وکړو حالانکه هغه ديوې لوی مرتبې صحابی دی؟ ددې جواب دادی چې حضرت سعد د ارشاد نبوی مخالفت ونه کړه بلکې هغوی دخپل طبيعت او پټو جذباتو اظهار وفرمايلو، دا زما د غيرت حال دی چې په دې حالت کې يو سړی خپلې ښځې سره ووينم نو دګواه انتظار کولو نه مخکې به هغه ووژنم، حالانکه د شريعت حکم بل څه دی نو څه څه وکړم؟ په دغه کې د رسول کريم ﷺ په مجلس کې چې کوم کسان ناست وو هغوی ته يې وفرمايل چې واورئ ستاسو سردار څه وايي رسول کريم ﷺ د حضرت سعد ددې غيرت ستاينه وکړه، دا ستاسو سردار دی او د سردارانو طبيعت هم داسې وي ليکن د شريعت حکم داسې نه دی بلکې ددې نه جدا دی، رسول کريم ﷺ د حضرت سعد دخبرې مرسته ونه فرمايله بلکې رسول کريم ﷺ دهغه عذر بيان کړه، مظهر رحمه الله وايي چې حضرت سعد د نبي کريم ﷺ حکم لغوه نه کړه بلکې د حضرت سعد د سوال مقصد داؤ چې د نبي کريم ﷺ له طرفه اجازه ملاو شي چې په داسې حالت کې داسې سړی قتل کړی شي، رسول الله ﷺ د وژلو نه انکار وفرمايلو او ډير په ښه طريقه يې حضرت پوهه کړو او حضرت سعد پرې خاموشي

---

[1] أخرجه مسلم في ۲/۱۳۵ رقم الحديث (۱۴۹۸.۱۶)

اختيار کړه. (المرقات ۶/۴۶۵)

**هفته ۱۹ ذيقعده ۱۴۱۷هـ دالله تعالى نه سوا بل هيڅ څوک غيرت مند نشته**

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ: قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ: لَوْ رَأَيْتُ رَجُلًا مَعَ امْرَأَتِي |
| حضرت مغيره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت سعد داسې ويلي وو که چيرې ما يو پردى سړى د خپلې ښځې سره وليدلو |
| لَضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ غَيْرَ مُصْفِحٍ |
| نو زه به هغه په توره ووژنمه او د تورې په شانه بلکې د تورې په تيز طرف به يې ووژنم (يعنې په تورې به د هغه خاتمه وکړم) |
| فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| کله چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې خبرې نه خبر شو (چې سعد داسې وايي) نو رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو ته وفرمايل |
| «أَتَعْجَبُونَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ؟ وَاللهِ |
| چې تاسو ته د سعد په دې غير معمولي غيرت مندۍ باندې حيرانيتا نه کيږي؟) د الله تعالى په ذات باندې مې دې قسم وي |
| لَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّي وَمِنْ أَجْلِ غَيْرَةِ اللهِ |
| چه زه د ده نه زيات غيرت مند يم او الله تعالى زما نه زيات غيرت مند دى او الله تعالى د خپل غيرت |
| حَرَّمَ اللهُ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلَا أَحَدَ |
| په وجه ټول ګناهونه (فواحش) حرام کړي دي که هغه ښکاره ګناه وي يا پټه ګناه وي او عذر د الله تعالى |
| أَحَبُّ إِلَيْهِ الْعُذْرُ مِنَ اللهِ مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ بَعَثَ الْمُنْذِرِينَ وَالْمُبَشِّرِينَ |
| نه زيات بل چاته محبوب نه دى، او دې د پاره الله تعالى ويرولو والا او زيرى ورکولو والا (يعنې پيغمبران) راليږلي دي، |
| وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْمِدْحَةُ مِنَ اللهِ وَمِنْ أَجْلِ ذَلِكَ وَعَدَ اللهُ الْجَنَّةَ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| دا رنګې تعريف کول د الله تعالى نه زيات بل څوک نشي خوښولى په دې وجه يې د جنت وعده کړې ده. |

**توضيح**: **غير مصفح**: ددې مطلب دا دى چې د تورې په تيز طرف باندې يې ووژنم. د تورې غاړه يا شاه او پلنوالى باندې نه وو هم مراد ترينه قتل کول دي. **مُصْفِح** د ميم په ضمه د صاد په سکون او د فا په کسرې سره هم دې چه د ضارب صفت دې او د فاء په فتحې سره دې نو دا به د تورو صفت

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۳۹۹ رقم الحديث ۷۴۱۶ ومسلم في ۲/۱۱۳۶ رقم الحديث (۱۴۹۹.۱۷) والدارمي في السنن ۲/۲۰۰ وأحمد في المسند ۴/۲۴۸

جوړېږي بعضو فا مشدد وئیلي ده تهول حال واقع دې. (المرقات ۶/۴۶۶)

**والله اغیر مني:** دسړي دداخلي کیفیت تغیر نوم غیرت دی، چې دخپل خاندان متعلق بدې خبرې لیدو سره پیدا کیږي. اوس سوال دادی چې په دې مفهوم سره د غیرت اطلاق په الله څنګه کولی شي داخو ناممکنه ده؟ دې وجې نه علماء لیکلي دي چې د الله تعالی دغیرتمند کیدو مطلب دادی چې الله دبندګانو په ګناه کولو باندې غصه کیږي او خفه کیږي، نو دا لفظ دحیاء او د رحمت دا الفاظو پشان یو لفظ دی، چې دهغې اطلاق دابتدا په اعتبار سره په الله نه کیږي البته دغایې او نهایې او انجام اونتیجې په اعتبار سره کیدی شي. (المرقات ۶/۴۶۶) (العذر) دې لفظ نه دوه مفهومه اخستی کیدی شي: وړومبی دا چې الله تعالی ته دا خبره خوښه ده چې دهر سړې عذر ختم کړي او دچا عذر پاتې نه شي چې د قیامت په ورځ چا سره د دلیل موقع پاتې نه شي، دې وجې نه الله تعالی پیغمبران ځیری ورکوونکي او ویره ورکوونکي رالیږلي دي، ددې لفظ دویم مطلب هغه عام او مشهور مطلب دی چې کله یو کس د الله مخکې دخپل جرم عذر پیش کوي او عاجزانه درخواست کوي معافی غواړي نو الله تعالی هغه دټولو نه زیات قبلوي او معاف یې کړي. (المرقات ۶/۴۶۷)

(المدحة یعنې الله تعالی خپل تعریف دټولونه زیات خوښوي ځکه چې هغه د ټولو خوبیانو مالک دی، او ټول دکمال صفات په الله کې دي ارشاد دی چې **الکبریاءُ ردائي والعظمةُ إزاري** همداوجه ده چې الله تعالی خپل تعریف پخپله کړی او نورو ته هم پکار دي چې د الله تعالی تعریف وکړي او د جنت وعده هم هغو کسانو سره ده چې څوک دالله تعالی ډیر تعریف کونکي وي (المرقات ۶/۴۶۷)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: «إِنِ اللهَ تَعَالَى يَغَارُ | | | | | | |
| حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایې چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې الله تعالی غیرت مند دی او | | | | | | |
| وَإِنَّ | الْمُؤْمِنَ | يَغَارُ | وَغَيْرَةُ | الله | | |
| مومن هم غیرت مند دی (یعنې غیرت په اصل کې د الله تعالی صفت دی چې په مومن کې هم دی) او د الله تعالی دغیرت | | | | | | |
| أَنْ | لَا | يَأْتِيَ | الْمُؤْمِنُ | مَا | حَرَّمَ | الله» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| تقاضا داده چې مومن دې هغه کار نه کوي کوم چې الله تعالی حرام کړی دی. (بخاری ومسلم) | | | | | | |

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳۱۹ رقم الحديث ۵۲۲۳ ومسلم في ٤/۲۱۱٤ رقم الحديث (۲۷٦۱.۳٦) والترمذي في السنن ۳/٤۷۱ رقم الحديث ۱۱٦۸ وأحمد في المسند ۲/۳٤۳

## د خيالي شكونو په بنياد باندې تهمت نه لګول

﴿۸﴾ وَعَنْهُ أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:
حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو كليوال د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې حاضر شو او عرض ئې وكړو
إِنَّ امْرَأَتِي ولدَتْ غُلَاماً أسودَ وَإِنِّي
چه زما د ښځې داسې ماشوم شوى دى چې تور دى (په دې وجه هغه زما پشان نه دى) ما دهغې نه
أنكرته فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
انكار كړى دى (يعني ما وويل چې دا زما ماشوم نه دى) رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا واوريدل نو وې فرمايل
«هَلْ لَكَ مِنْ إِبِلٍ؟» قَالَ: نَعَمْ قَالَ: «فَمَا
چې تا سره اوښان شته؟ هغه عرض وكړو چې آو شته، رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا كوم
أَلْوَانُهَا؟» قَالَ: حُمْرٌ قَالَ: «هَلْ
رنګ والا دي؟ هغه عرض وكړو چې سور رنګ يې دى رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمائيل چې په
فِيهَا مِنْ أَوْرَقَ؟» قَالَ: إِنَّ فِيهَا لَوُرْقًا قَالَ:
هغې كې غنم رنګه شته دې؟ هغه وويل آو غنم رنګى پكې شته . رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمائيل
«فَأَنَّى تُرَى ذَلِكَ جَاءَهَا؟» قَالَ: عِرْقٌ
چې ستا څه خيال دى چې دا غنم رنګى اوښ د كوم ځاى نه راغى هغه عرض وكړو چې يو رګ به وي چې
نَزَعَهَا. قَالَ: «فَلَعَلَّ
هغې ته به تلى وي (يعني د هغه په اصل كې به غنم رنګى تير شوى وي چې د هغې پشان به دا هم وي) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل
هَذَا عِرْقٌ نَزَعَهُ» وَلَمْ يُرَخِّصْ لَهُ
چې دا ماشوم به د يو داسې رګ په وجه تور وي چې ورته به تلى وي. او داسې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه
فِي الِانْتِفَاءِ مِنْهُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]
كليوال ته د ماشوم نه د انكار كولو اجازت ورنه كړو.

(1) أخرجه البخاري ۱۳/۲۹۶ رقم الحديث ۷۳۱۴ مسلم ۲/۱۱۳۷ رقم الحديث (۱۸. ۱۵۰۰) وأبوداؤد ۶۹۴/۲ رقم الحديث ۲۲۶۰ الترمذي ۳۸۲/۳ رقم الحديث ۲۱۲۸ والنسائي ۶/۱۷۸ رقم الحديث ۳۴۷۸ ابن ماجه ۱/۶۴۵ رقم الحديث ۲۰۰۲ واحمد في المسند ۲/۲۳۳

**توضيح**: **غلامًا اسود**: دا دې کليوال په ذهن کې دا خبره وه چې زما دا ماشوم تور ولې دی او زه پخپله سپين يم او زما ښځه سپينه ده، دا ماشوم آخر د چا دی په دې وجه هغه شک وکړو حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ډير په حکمت او په ساده طريقه دا کليوال د کليوالی په انداز کې پوهه کړو ځکه چې داوښانو په معامله کې دا کليوال ماهر وو هغه په حقيقت باندې پوهه شو او خاموش شو.

علامه طيبي فرمايي چې په معمولي او کمزورو خبرو باندې دخپل ماشوم نه انکار کول منع دي بلکې دې باره کې مضبوط دلائل او پوره ګواهان ضروري وي، مثلاً ښځې سره يې کوروالی ونه کړو او ماشوم پيدا شو يا دکوروالي نه پس دشپږو مياشتو نه کمه موده کې ماشوم پيدا شو په دې صورتونو کې انکارکول جائز دي يواځې د خيالي شکونو په بنياد باندې تور لګول جائز نه دي.(المرقات ۴۶۸/۶، ۴۶۷)

## د ولد زنا نسب د زاني نه ثابت نه دي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ عُتْبَةُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ عَهِدَ إِلَى أَخِيهِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ: |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې عتبه بن ابی وقاص رضي الله عنه خپل ورور سعد بن ابی قاص رضي الله عنه وصيت وکړو |
| أَنَّ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ مِنِّي فَاقْبِضْهُ إِلَيْكَ فَلَمَّا كَانَ عَامُ الْفَتْحِ أَخَذَهُ سَعْدٌ |
| چه د زمعه د خادمې هلک زما د نطفې نه دی هغه تر ځنه ته واخله د فتح مکې په کال سعد هغه هلک واخستو |
| فَقَالَ: إِنَّهُ ابْنُ أَخِي وَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ: أَخِي فَتَسَاوَقَا |
| او وې ويل چې دا زما وراره دی او عبد بن زمعه وويل چې دا زما ورور دی، بيا هغوی خپله مسئله |
| إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَعْدٌ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ أَخِي كَانَ عَهِدَ إِلَيَّ فِيهِ |
| نبی عليه السلام له يوړله او سعد وويل چې دا هلک زما د ورور دی هغه ماته دده باره کې وصيت کړی وو |
| وَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ: أَخِي وَابْنُ وليدة أَبِي وُلِدَ على فراشه |
| عبد بن زمعه وويل چې دا هلک زما ورور دی او زما د پلار د خادمې ځوی دی چې زما د پلار په بستره پيدا |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ |
| شوی دی رسول صلی الله عليه وسلم د دواړو خبرې واوريدې نو وې فرمايل چې عبد بن زمعه ته دې ماشوم هم حق دار يې |
| الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ» |
| ځکه چې ماشوم د صاحب فراش طرف ته منسوب وي او زاني د پاره (د نسب او ميراث نه) محرومي وي |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | قَالَ | لِسَوْدَةَ | بِنْتِ | زَمْعَةَ: | «احْتَجِبِي مِنْهُ» |

(یا دا چې زاني د سنګسارۍ حقدار دی) او بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت سوده بنت زمعه ته وفرمایل چې ته ددې هلک نه پرده کوه

لِمَا رَأَى مِنْ شَبَهِهِ بِعُتْبَةَ فَمَا رَآهَا حَتَّى لَقِيَ اللهَ

ځکه چې د عتبه په شان راځي او بیا حضرت سوده ددې هلک مخې له کله هم رانغله. تر دې چې وفات شوه

وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: «هُوَ أَخُوكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ مِنْ أَجْلِ

په یو روایت کې دي چې پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل عبد بن زمعه! هغه هلک ستا ورور دی د دې وجې نه

أَنَّهُ وُلِدَ عَلَى فِرَاشِ أَبِيهِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

چې هغه هلک د هغه د پلار په بستره پیدا شوی دی. (بخاري و مسلم)

**توضیح**: "ان ابن ولیدة زمعة" ددې حدیث په مطلب باندې د پوهیدو نه مخکې په دې ځان پوهول پکار دي چې یو سعد بن ابی وقاص دی، دویم عتبه بن ابی وقاص دی چې دواړه ورونه دي، حضرت سعد مسلمان شوی وو او عتبه په کفر کې مړ شو بلکې عتبه هغه بدبخته وو چې په جنګ احد کې یې د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غابنونه مبارک شهیدان کړې وو. عتبه د زمعه د خادمې سره زنا کړې وه، زمعه د حضرت سودې رضي الله عنها د پلار نوم وو او د هغه د ځوی نوم عبد وو کوم چې په دې حدیث کې یې ذکر دی. د جاهلیت په دور کې چې به کله یو کس د خادمې سره زنا وکړه نو چې ماشوم به پیدا شو نو هغه ماشوم به د هغه کس اود هغه په اولاد کې به وو، هم ددې اصولو مطابق عتبه خپل ورور حضرت سعد ته وصیت کړی وو چې د زمعه د خادمې نه چې کوم ماشوم دی هغه زما د نطفې نه دی، لهذا هغه په قبضه کې واخله کله چې مکه فتحه شوه نو حضرت سعد هغه هلک واخستلو او وې ویل چې دا زما وراره دی، عبد بن زمعه وویل چې دا زما ورور دی چې دا زما د پلار د خادمې نه پیدا شوی دی، دا مسئله چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورسیدله نو رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوی قانون نافذ کړه او هلک یې زمعه ته حواله کړه، د جاهلیت قانون یې په دغه مبارک فرمان سره مات کړه چې (الولدُ للفراش وللعاهر الحجر) یعنې بچی به د هغه چا وي د چا په بستره چې پیدا شوی وي، او د زاني دپاره محرومي ده، یا مطلب دا دی چې د زاني دپاره

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ٥/٣٧١ رقم الحديث ٢٧٤٥ ومسلم في ٢/١٠٨٠ رقم الحديث (١٤٥٧.٣٦) وأبوداؤد في السنن ٢/٧٠٣ رقم الحديث ٢٢٧٣ والترمذي في السنن ٣/٤٦٣رقم الحديث ١١٥٧ والنسائي في ٦/١٨١ رقم الحديث ٣٤٨٧ وابن ماجه في ١/٦٤٦

سنګساري او کانې دي. بهرحال فیصله دا سې وشوه چې په هلک کې د عتبه مشابهت وو په دې وجه رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت سودې ته وفرمایل چې ته د دې هلک نه پرده کوه او هغې د مرګ تر وخته پورې د هغه نه پرده کوله. د دې واقعې نه دا خبره واضح کیږي چې د قرائنو او علاماتو او د مشابهت اعتبار نشته بلکې په فراش او زوجیت باندې دارمدار دی. (المرقات ۶/ ۴۷۰.۴۶۹)

## په اثبات دنسب کې د قیافه شناس قول معتبر دی که نه؟

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ وَهُوَ مَسْرُورٌ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایې چې یوه ورځ نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ډیرې خوشحالۍ سره زما طرف ته تشریف راوړلو |
| فَقَالَ: "أَيْ عَائِشَةُ أَلَمْ تَرَيْ أَنَّ مُجَزِّزًا الْمُدْلِجِيَّ دَخَلَ فَلَمَّا رَأَى |
| او وې فرمایل چې عائشې تا ته معلومه نه ده نن مجزز مدلجي مسجد نبوی ته راغی چه کله یې ولیدل |
| أُسَامَةَ وَزَيْدًا وَعَلَيْهِمَا قطيفةٌ قد غطيا رؤوسهما وَبَدَتْ أَقْدَامُهُمَا |
| اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره چې څادرې اغوستې وو (اوده وو) او سرې پټ وو او خپې یې ښکاره وې |
| فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ الْأَقْدَامَ بَعْضُهَا من بعضٍ" (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| نو هغه وویل چې د دوی پښې دیو بل په شان دي (یعني دا پښې چې د دې دوو سړو دي هغه یو پلار او یو ځوی دی) |

**توضیح: ان مجزز المدلجي:** مجزز د مکبر په وزن دی، د عربو د یو مشهور قیافه شناس نوم وو د هغه تعلق چونکه قبیلې د مدلج سره وو په دې وجه دې قبیلې ته منسوب دی، په عربو کې په قیافه شناسۍ کې یې د سند حیثیت لرلو او پوره اختیار او معیار وو، حضرت زید بن ثابت ډیر ښائسته وو او د هغه ځوی اسامه بن زید چې د حضرت ام ایمن نه پیدا شوی وو هغه د خپلې مور په شان غنم رنګی وو، نو منافیقنو دا خبره مشهوره کړې وه چې اسامه د خپل پلار نه نه دی ځکه چې زید بن ثابت ډیر ښائسته وو او ځوی یې تور ولې دی، رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا خبرې واوریدې نو ډیر به خفه کیدو او د دې باره کې به یې سوچ کولو چې څه چل وشي چې خلق دا خبره قبوله کړي. یوه ورځ مجزز مدلجي مسجد نبوی ته راغی، حضرت اسامه او حضرت زید په یو څادر کې پراته وو او مخونه یې پټ کړې وو مجزز دوی ولیدل نو وې ویل چې دا پښې خو د پلار او ځوی کیدی شي په دې سره حضور اکرم صلی الله لعیه وسلم ډیر خوشحاله شو، ځکه د دغې پروپیګنډې د ماتولو د پاره د دې سند ضرورت وو، ګني اسماني وحې به راغلې وه مګر عامه معاشره کې د قیافه شناسۍ ډېر اعتبار وو. (المرقات ۶/ ۴۷۳)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۵۶ رقم الحديث ۶۷۷۱ ومسلم في ۲/۱۰۸۲ رقم الحديث (۱۴۵۹.۳۸) وأبوداؤد في السنن ۶۹۸/۲ رقم الحديث ۲۲۶۷ والنسائي في ۶/۱۸۴ رقم الحديث ۳۴۹۴ وابن ماجه في ۲/۷۸۷ رقم الحديث ۲۳۴۹ وأحمدفي المسند۶/۲۲۶

**د فقهاو اختلاف** : د جمهورو په نزد باندې د نسب د ثبوت دپاره د نورو دلائلو نه علاوه قیافه شناسي یو مؤثر دلیل دی، دغو حضراتو د زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی، احناف فرمایي چې قیافه شناسي د ثبوت د نسب دپاره کافي نه ده، ځکه قیافه د هغه علم نوم دی چې په هغې سره د کوم شي د هغه د داخلي نشاناتو نه پته لګیږي، او دا تخمین او اندازه ده د کوم نه چې قطعي او یقیني علم نه حاصلیږي، او د نسب د ثبوت دپاره یقیني علم ضروري دی، دې وجې نه په شریعت کې د یقیني امورو اعتبار دی، لهذا قیافه بې اعتباره ده، باقي جمهورو چې د کوم حدیث نه استدلال کړی دی، په هغې کې حضور اکرم ﷺ ته د وحې په ذریعه معلومه وه چې اسامه د زید ځوی دی، لیکن د منافقانو طعن او پروپیګنډه د قیافه شناس په فیصلې سره ختمه شوه، دې وجې نه پیغمبر علیه السلام د قیافه شناس په خبره باندې خوشحاله شو، دا د ثبوت نسب دپاره دلیل نه دی بلکې د دفع د طعن دپاره دلیل دی، په دې اختلاف باندې دا خبره تفریع ده: چې د دوه کسانو په شریکه یوه وینزه ده او د دواړو د جماع په نتیجه کې د هغې بچی پیدا شو، نو جمهور وایي چې قائف کومه فیصله وکړه د هغې مطابق به بچی د هغه کس وي، احناف وایي چې په دغې صورت کې به بچی د دواړو په مینځ کې مشترک مملوک وي، او وینزه به د دواړو ام ولده وي، اګر چې په حقیقت کې به دا بچی په دواړو کې د یو کس وي، لیکن د قائف د فیصلې اعتبار نشته دی، ځکه په دې د شریعت مدر نه دی قائم، احنافو د حضرت عمر رضي الله عنه په هغې فیصلې سره دلیل نیولی دی چې شریح حضرت عمر رضي الله عنه نه د خط په ذریعه باندې د دې مسئلې تپوس وکړه، نو حضرت عمر رضي الله عنه وویل چې دواړه آقاګان په دې ماشوم کې شریک دي، دوی به د ماشوم وارثان وي او ماشوم به د دوی وارث وي، د حضرت علي رضي الله عنه هم دارنګه فیصله وه، ګویا چې د صحابو اجماع راغله، ملا علي قاري نور روایات هم نقل کړي دي. (المرقات ۴۷۴،۴۷۳/۴)

## د خپل پلار نه انکار کولو والا دوزخي دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ وَأَبِي بَكْرَةَ قَالَا: |
| حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه او حضرت ابوبکره رضي الله عنه دواړه د دې حدیث راویان دي چې |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنِ ادَّعَى |
| رسو کریم ﷺ و فرمایل چه کوم کس چې خپل ځان د پلار په ځای د دویم کس سره تړي او هغه |

| |
|---|
| إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ غَيْرُ أَبِيهِ فَالْجَنَّةُ عَلَيْهِ حرام» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| په دې پوهه دی چې دا زما پلار نه دی نو په هغه جنت حرام دی. (بخاري ومسلم) |

**توضيح**: من ادعى الى غير ابيه: يعنې خپل نسب يې پټ کړه او د خپل پلار په ځای بل کس ته پلار وويله نو په هغه جنت حرام دی، د دې اوله وجه داده چې کوم کس د خپل پلار په ځای بل کس ته ځان منسوب کوي او حرام عمل په ځان باندې حلالوي نو په حقيقت کې يو حرام کار ته حلال وايي او دا کفر دی، نو د کفر په وجه باندې په ده جنت حرام دی، دويم جواب دادی چې د خول اولې باندې په ده جنت حرام دی، دريم جواب دادی چې ددې ګنا ه په وجه په ده جنت حرام شو .ليکن قيامت کې به فيصله په معجون مرکب باندې کيږي، څلورم جواب دادی: چې دا کلمه يې تغليظًا، تشديدًا، او تهديدًا وفرمايله، راتلونکي روايت نمبر ۱۲ کې (فقد کفر) الفاظ اغلي دي، هلته که د کفر نه مراد کفر حقيقي شي نو د دې ځای جوابونو نه دويم پريږده او باقي جوابونه د هغه حديث دپاره هم دي، او که هلته د کفر نه مراد کفران نعمت واخستلى شي نو بيا هيڅ کوم اعتراض نه راځي. (المرقات ۴۷۷/۴)

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چه تاسو (يو غير کس سره د خپل نسب |
| «لَا تَرْغَبُوا عَنْ آبَائِكُمْ فَمَنْ رَغِبَ |
| منسوبولو سره) د خپل پلار نه مخ مه اړوئ کوم کس چې د خپل پلار نه مخ واړولو (يعنې هغه د خپل نسب نه |
| عَنْ أَبِيهِ فقد كفر» (متفق عليه)[2] |
| انکار وکړو) نو هغه په حقيقت کې کفران نعمت وکړه. (بخاري ومسلم) |

وَذُكِرَ حَدِيثُ عَائِشَةَ «مَا مِنْ أَحَدٍ أَغْيَرُ من الله» فِي «بَابِ صَلَاةِ الخسوف»

## د يو سخت زړي پلار شقاوت

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَمَّا نَزَلَتْ آيَةُ الْمُلَاعَنَةِ: |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی هغوی دلعان ايت نازليدو په وخت د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه دا واوريدل |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۵۴ رقم الحديث ۶۷۶۶ ومسلم في ۱/۸۰ رقم الحديث (۶۳.۱۱۵۴) وابن ماجه في السنن ۲/۸۷۰ رقم الحديث ۲۶۱۰ والدرامي في ۲/۴۴۲ رقم الحديث ۲۸۶۰ وأحمد في المسند ۵/۳۶

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱۲/۴۵ رقم الحديث ۶۷۶۸ ومسلم في ۱/۸۰ رقم الحديث (۶۲.۱۳) وأحمد في المسند ۲/۵۲۶.

«أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَدْخَلَتْ عَلَى قَوْمٍ مَنْ لَيْسَ مِنْهُمْ فَلَيْسَتْ مِنَ اللهِ

چه کومه یوه ښځه هغه څوک په یو قوم کې داخل کړي چې هغه د هغې نه ندی نو د الله په نزد د هغه

فِي شَيْءٍ وَلَنْ يُدْخِلَهَا اللهُ جَنَّتَهُ وَأَيُّمَا رَجُلٍ

هیڅ درجه نشته او الله به یې هیڅ کله د خپلو نیکو بندګانو سره جنت ته داخل نه کړي او کوم کس چې

جَحَدَ وَلَدَهُ وَهُوَ يَنْظُرُ إِلَيْهِ

د خپل ماشوم نه انکار وکړي او د هغه طرف ته ګوري او هغه پوهیږی چې دا زما ماشوم دی) نو

احْتَجَبَ اللهُ مِنْهُ وفضَحَهُ

الله تعالی به د هغه نه پرده کوي یعنې د الله تعالی دیدار به یې نه نصیب کیږي او الله تعالی به ئې رسوا کړي

على رؤوسِ الْخَلَائِقِ فِي الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ والدارمي[1]

په ټولو خلقو کې (یعنې په میدان حشر کې چې ټول خلق راجمع شي نو د هغوی په مینځ کې به یې ذلیل کړي.

**توضیح: ادخلت**: یعنی زنا چې وکړي نو د بل قوم ماشوم خپل خاوند او د هغه قوم ته منسوب کوي. د ښځې د پاره حرام دی او جنت هم ورله حرام دی او داسې که یو سړی د خپل ماشوم نه انکار کوي نو په هغه باندې هم جنت حرام دی، خلاصه دا شوه چې ښځې له نه دي پکار چې زنا وکړي او هغه حرامزاده خپل خاوند ته منسوب کړي او نه دې دا خاوند د خپل حقیقي بچي نه انکار کوي(**وهو ينظر اليه**)یعنې ماشوم د حسرت په نظر پلار ته بق بق ګوري او هغه سخت زړی ترې انکار کوي، بعضو شارحینو د وهو ينظر مفهوم دا بیان کړی دی چې پلار خپل ځوی ته ګوري او پیژني یې هم چې دا زما ځوی دی او بیا ترې هم انکار کوي په دې صورت کې د هو ضمیر پلار طرف ته راجع کوي.(المرقات ۴۷۸/۴)

## بدکارې ښځې ته طلاق ورکول اولی دی

﴿۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابن عباس رضي الله عنه وایي چې یو ورځ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې یو کس حاضر شو

فَقَالَ: إِنَّ لِي امْرَأَةً لَا تَرُدُّ يَدَ لَامِسٍ

عرض یې وکړو چه زما ښځې له څوک ورله لاس وروړی (یعنې کوم کس چې ورسره د بدکارۍ اراده وکړي نو هغه انکار نه

---

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۹۵ رقم الحديث ۲۲۶۳ والنسائي في ۶/۱۷۹ رقم الحديث ۳۴۸۱ وابن ماجه ۲/۹۱۶ رقم الحديث ۲۷۴۳ والدارمي في ۲/۲۰۴ رقم الحديث ۲۲۳۸

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «طَلِّقْهَا» | قَالَ: |

کوي)نبي ﷺ ورته وفرمايل چې هغې له طلاق ورکړه، هغه عرض وکړو چه دا ممکنه نه ده

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنِّي | أُحِبُّهَا | قَالَ: | «فَأَمْسِكْهَا |

ځکه چې زما ورسره (ډيره) مينه ده نبي عليه السلام ورته وفرمايل چې بيايې نګراني کوه چې په

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذا». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ | وَالنَّسَائِيُّ | وَقَالَ | النَّسَائِيُّ: | رَفَعَهُ | أَحَدُ | الرُّوَاةِ |

بدکارۍ اخته نه شي.(ابو داؤد، نسائي، ) او نسائي دا هم ويلي دي چې ددې روايت په راويانو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | ابْنِ | عَبَّاسٍ | وَأَحَدُهُمْ | لَمْ | يرفعهُ |

کې يو راوي حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته وصل کړی دی او يو راوي دا حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته نه دی

قَالَ: وَهَذَا الحَدِيث لَيْسَ بِثَابِت.[1]

وصل کړی. نسائي دا هم وايي چې دا حديث ثابت نه دی .

**توضيح**: **لاترديدلامس**: يعنې دچا لاس لګول نه منع کوي او نه يې دفع کوي،ددې حديث په مطلب او مقصد بيانولو کې دشارحينو مختلف خيالات دي،ابن الاعرابی (رحمه الله) فرمايې چې **(لاترد يدلامس)** سره د دې ښځې فسق اوفجور طرف ته يې اشاره کړې ده. علامه خطابي (رحمه الله) هم داسې مطلب بيان کړی دی؛ امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايې چې ددې جملې مطلب دادی چې دا ښځه بې وقوفه ده چې خپل مال هر چا ته حواله کوي اوڅوک د خپل مال نه نه منع کوي،علامه توربشتي (رحمه الله) هم داسې توجيه کړې ده، ملا علي قاري فرمايې چې دا معنی اخستل د دوه وجونه ډيره اولی ده: اوله وجه داده چې که چيرې دې نه زنا مراد واخلې نو دا خو قذف دی نو حضور اکرم ﷺ به ددې تور ضرور ثبوت غوښتلو او که نه نو په درو به يې وهلو. دويمه وجه دا چې که دا ښځه بدکاره وی او خبره دبدکارۍ وی نو حضور اکرم به ددې ښځه په نکاح کې د ساتلو اجازت نه ورکولو بلکې دجدائي حکم به يې فرمايلو، د قاضي عياض رحمه الله داخيال دی چې ښځه په دې غلط کار کې اخته ده او فاجره ښځه نکاح کې ساتل حرام نه دي، خاص طور باندې چې يو سړی دښځې په مينه کې اخته وي، نو که داسې ښځې له د طلاق ورکولو حکم ورکوي نو ممکن ده چې هغه ددې نه هم په زياته ګناه کې اخته شي، د مذکوره سړې دپاره يې د ډيرې مجبورۍ په وجه

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ٢/٥٤١ رقم الحديث ٢٠٤٩ والنسائي في ٦/١٦٩ رقم الحديث ٣٤٦٤

اجازت ورکړه او په هغه باندې دا واجب کړه چې ددې ښځې د تهذيب او تاديب پوره خيال دې ساتي.(فامسکها اذا) يعنې داسې ښځه پرېخودل پکار دي او که په نکاح کې يې ساتي نو هغه به ددې مکروه او ناخوښه کار نه بچ ساتي.ياد ساتئ چې دا حديث ضعيف دی يا ثابت هم نه دی، او دا يوه جزئي پېښه ده معلومه نه ده چې دا ځوک وو دهغه ايماني کيفيت څه وو او دهغه خانداني غيرت څه وو او خصوصي حالت يې څه وو هغه وخت کې دمنافيقينو زمانه وه .په بذل مجهود کې يې ليکلې دي چې ماته ددې سړې باره کې معلومه نشوه. په اصابه کې يې ليکلې دي چې دهغه سړې نوم هشام وو او حضور اکرم يا د قريشو غلام ووۀ علامه ابن کثير ليکي چې هغه کس ته دخپلې ښځې باره کې پته نه وه البته د قرائنو په بنياد باندې يې دا خبره کوله چې صرف وهم او ګمان وو ، دويم طرف ته د هغه مينه يقني وه په دې وجه حضور اکرم په نکاح کې د ساتلو اجازت ورکړو، ابن جوزي دا روايت خالص موضوع ګرځولی دی، ليکن علامه سيوطی دا خبره رد کړې ده،ابن حجر دا حديث صحيح ګرځولی دی. په دې حديث باندې دا اعتراض دی چې په احاديثو کې په ديوث دپاره سخته زورنه راغلې ده، او دلته د ديوث تعريف په دې کس صادقيږي؟ ددې جواب دادی چې وعيدونه د هغه ديوث دپاره دي دي کوم چې خپله ښځه په بدکارۍ باندې ويني او خاموش پاتې کيږي، او دلته دا سړی خاموش نه شو بلکې په ښکاره يې وينا وکړه او هغه هم صرف د شک او اوهامو او دقرائن بعيدو په بنياد باندې، دلته د ديوث تعريف نه صادقيږي.(المرقات ۴/۴۸۰،۴۷۹)

## مسئلة الاستلحاق

﴿۱۵﴾وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه دخپل نيکه نه نقل کوي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې

قضى أَن كل مستلحَقٍ استلحَق بَعْدَ أَبِيهِ الَّذِي

حکم ورکولو فيصله وکړه چې دکوم هلک نسب دهغه دپلار د مرګ نه پس چې کوم طرف ته يې نسبت کړی وو ملاو کړو

يُدْعَى لَهُ ادَّعَاهُ وَرَثَتُهُ فَقَضَى

او دهغه دعوی دهغه دپلار وارثانو وکړه نو دهغه باره کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وکړو چې هغه

أَنَّ كُلَّ مَنْ كَانَ مِنْ أَمَةٍ

هلک چې ورسره يې نسب ملاو کړی دی (چې د داسې خادمې نه وي چې دصحبت په وخت کې د هغه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يملكها | يَوْمَ | أَصَابَهَا | فقد | لحق | بِمن | استلحقه |
| دپلار په ملکیت کې وه | | | نو هغه کس به ورسره په نسب کې شامل شي چا چې شامل کړی دی | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَيْسَ | لَهُ | مِمَّا | قُسِمَ | قَبْلَهُ | مِنَ | الْمِيرَاثِ | شَيْءٌ |
| او کوم مال چې ده نه مخکې تقسیم شوی وي په هغې کې به یې حصه نه وي | | | | | | | |

وَمَا أَدْرَكَ مِنْ مِيرَاثٍ لَمْ يُقْسَمْ فَلَهُ نَصِيبُهُ وَلَا يَلْحَقُ إِذَا كَانَ

او کوم چې نه وي تقسیم شوی نو په هغې کې به ورته حصه ملاویږي. او که هغه هلک داسې وو چې

أَبُوهُ الَّذِي يُدْعَى لَهُ أَنْكَرَهُ

نسبتيې کوم پلار طرفته کیږي چې کوم یو انکار کړې وو نو هغه هلک بدهغه د مرګ نه پس پهوارثانو کې نه وي او د هغه پلار وارث به نه وي،

فَإِنْ كَانَ مِنْ أَمَةٍ لم يَملِكْها

او دا رنګه چې د غه هلک دیوې داسې خادمې نه پیدا شوی وو چې د صحبت په ورځ د پلار ملکیت نه وه

أَوْ من حُرَّةٍ عَاهَرَ بِهَا فَإِنَّهُ لَا يُلْحَقُ بِهِ وَلَا يَرِثُ

یا یو داسې آزادې ښځې نه وو چې هغې سره د هغه پلار زنا کړې وه نو هغه هلک بد پلار په وارثانو کې نه وي او نه ورته مال ملاویږي،

وَإِنْ كَانَ الَّذِي يُدْعَى لَهُ هُوَ الَّذِي ادَّعَاهُ

اګرچې پخپله هغه سړي (یعنی پلار) طرف ته چې د هغه هلک نسبت شوی دی دعوی کړې وه [1]

فَهُوَ وَلَدُ زِنْيَةٍ مِنْ حُرَّةٍ كَانَ أَوْ أَمَةٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد. [2]

لهذا هغه هلک حرامي دی که د خادمې نه وي او که د آزادې ښځې نه پیدا شوی وي. (ابوداؤد)

**توضیح:** **ان کل مستلحق:** د استلحاق معنی ده ملاوول، یا شامل کول، علامه خطابی (رحمه الله) فرمایې چې په دې حدیث کې د هغه احکامو بیان دی چې ابتداء د اسلام کې حضور اکرم صلی الله

---

([1]) (دا جمله د وړومبي حکم پښان باندې ده چې که هلک د زنا نه پیدا شوی وي نو هغه د هغه د پلار په وارثانو کې شاملول جائز نه دي، ځکه چې که هغه زناکار پخپله زندګۍ کې هغه سره د نسب دعوي هم وکړي چې دا زما ځوی دی نو بیا هم د هغه هلک سره نسب نه ملاویږي)

([2]) أخرجه أبوداؤد في السنن ٢/٦٩٦ رقم الحديث ٢٢٦٥ وابن ماجه في ٢/٩١٧ رقم الحديث ٢٧٤٦ والدرامي في ٢/٤٨٣ رقم الحديث ٣١١٢ وأحمد في المسند ٢/٢١٩

علیه وسلم ته به مخې ته راتلل او پیغمبر علیه السلام به دهغې باره کې فیصله کوله. دعلامه خطابی وینا ده چې دجاهلیت په زمانه به بدکار خلق او بدکارې خادمې ګرځیدې راګرځیدې او ددې بدکارۍ په وجه به چې کوم ماشوم پیدا شو نو زناکار به دعوی کوله چې دا ماشوم زما دی او مالک یې راکړئ او مالک به هم دعوی کوله چې دا ماشوم زما دی ځکه چې زما د خادمې نه پیدا شوی دی ځنګه چې د زمعه دخادمې قصه مخکې حدیث کې تیره شوه، د داسې تنازع د ختمولو باره کې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یوه ضابطه مقرر کړه، د هغې ضابطې وضاحت په دې حدیث کې دی، هغه یې په مثال سره داسې فهم کې راوسته: مثلاً زید یو کس دی هغه مړ شو د هغه دمرګ نه پس د هغه وارثانو دعوی وکړه چې فلانکی خادمې فلانکی بچی د زید دی، چې مونږ سره په نسب او په میراث کې شریک دی، لهذا دا مونږ له راکړئ،اسلام په یو څو شرائطو باندې د هغه وارثانو دا دعوی منلې ده. البته کومو وارثانو چې په دې دعوی کې حصه نه ده اخستې نو دهغوی سره په نسب او په میراث کې شریک نه دی،داستلحاق په صحت کې چې په دې حدیث کې کوم شرائطو طرف ته اشاره شوې ده هغه مثبت او منفي شرطونه لاندې دي:

۱.وړومبی شرط دادی چې دا خادمه د زید په ژوند کې د هغه په ملکیت کې راغلې وې او که د آزادې حرې ښځې باره کې دا دعوی وې نو هغه به د زید په نکاح کې وې، ددې شرط منفی اړخ دادی که چیرې دا خادمه دزید په ملکیت کې نه وې راغلې او یایې په نکاح کې نه وې راغلې نو په دې صورت کې دا هلک ولد زنا دی نه دهغه استلحاق صحیح دی او نه یې په وارثت کې شاملولی شي بلکې که زید په خپل ژوند کې هم دا دعوی وکړي نو هم ټیک نه ده. ځکه چې دا هلک ولد زنا دی.

۲.داستلحاق د صحت دپاره دویم شرط دادی مثلاً چې زید په خپله زندګۍ کې هم ددې هلک اقرار او اعتراف وکړي او اعلان یې هم کړی وي چې دا ماشوم په جائزه طریقه زما دی، او ددې شرط منفي صورت دادی چې که زید په خپل ژوند کې ددې ماشوم نه انکار وکړه چې دا زما ماشوم نه دی نو دزید دمرګ نه پس دا ماشوم د هغه په نسب او وارثت کې شریک نه دی.

۳.دریم شرط دادی چې کوم مال د وارثانو په مینځ کې تقسیم شوی دی په هغې کې ددې ماشوم حصه نشته او کوم مال چې اوسه پورې تقسیم شوی نه دی او راتلونکي وخت کې به تقسیمیږي په هغې کې به دا ماشوم برابر شریک وي، ددې وضاحتونو نه پس به ان شا الله ددې حدیث په ټولو اړخونو باندې پوهیدل اسان شي په دې وجه دې حدیث کې دبعضو جملو ترکیبي وضاحت هم ضروري دی چې مفهوم یې نور هم واضح شي، او په عبارت کې جوړ هم پیدا شي،په دې حدیث کې (قضی ان کل مستلحق) کې د (ان) اسم (کل مستلحق) دی او ددېنه وروستنی عبارت د (مستلحق) صفت دی او د (ادعاه) جمله د (ان) خبر دی او دې نه پس (فقضی ان من کان) (اعاده بعد عهد) دپاره دی یعنی د قضی دلړوالي د وجې نه یې دوباره ذکر کړو ځکه چې په مینځ کې یې

ډیرې خبرې راغلې په دې وجه یې په دې فاء تفصیلیه داخل کړی شوه.(المرقات ۴۸۱/۴، ۴۸۰)

## د غیرت صورتونه

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَن جابِرِ بنِ عتيكٍ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت جابر بن عتیک وایې چې نبي کریم ﷺ فرمایل چې (دخپلو بیبیانو او خادمو باره کې) |
| «مَنَ الْغَيْرَةِ مَا يُحِبُّ اللهُ. وَمِنْهَا مَا يُبْغِضُ اللهُ فَأَمَّا الَّتِي يُحِبُّهَا اللهُ |
| بعضې غیرت الله تعالی ته خوښ دی او بعضې غیرت ناخوښه دی، چې کوم غیرت الله تعالی ته خوښ دی |
| فَالْغَيْرَةُ فِي الرِّيبَةِ وَأَمَّا الَّتِي يُبْغِضُهَا اللهُ |
| هغه د شک او شبې په ځای پیدا کیدو والا غیرت دی او چې کوم غیرت یې ناخوښه دی چې کوم |
| فَالْغَيْرَةُ فِي غَيْرِ رِيبَةٍ وَإِنَّ مِنَ الْخُيَلَاءِ |
| غیرت د شک او شبې نه بغیر پیدا کیږي او دارنګه بغض او تکبر الله تعالی ته خوښ وي او بعضې |
| مَا يُبْغِضُ اللهُ وَمِنْهَا مَا يُحِبُّ اللهُ فَأَمَّا الْخُيَلَاءُ الَّتِي يُحِبُّ اللهُ |
| ناخوښه وي چې کوم تکبر الله تعالی خوښ وي او هغه تکبر هم الله تعالی ته خوښ دی کوم چې |
| فَاخْتِيَالُ الرَّجُلِ عِنْدَ الْقِتَالِ وَاخْتِيَالُهُ عِنْدَ الصَّدَقَةِ |
| مال دلګولو په باره کې وي د الله تعالی په لاره کې (یعنې صدقه او خیرات په خوشالئ ورکوي) |
| وَأَمَّا الَّتِي يُبْغِضُ اللهُ فَاخْتِيَالُهُ فِي الْفَخْرِ» وَفِي رِوَايَةٍ: |
| او کوم تکبر چې الله تعالی ته ناخوښ دی (په خپل نسب باندې فخر او غرور دی. بل روایت کې دي |
| «فِي الْبَغْيِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| چې کوم تکبر الله ته ناخوښی دی هغه د ظلم تکبر دی. (احمد. ابوداؤد، نسائی) |

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۱۱۴ رقم الحديث ۲۶۵۹ والنسائي في ۵/۷۸ رقم الحديث ۲۵۵۸ والدارمي في ۲/۲۰۰ رقم الحديث ۲۲۲۶ وأحمد في المسند ۵/۴۴۵

## الفصل الثالث

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او حضرت شعیب د خپل نیکه نه روایت کړی دی چې |
| قَالَ: قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ فُلَانًا ابْنِي |
| چې یو سړی (مجلس نبوي) کې ودریده او عرض یې وکړه چې یا رسول الله ! فلانکی هلک زما بچی دی |
| عَاهَرْتُ بِأُمِّهِ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| ما د جاهلیت په زمانه کې دهغه د مور سره زنا کړې وه. رسول کریم ﷺ ورته وفرمایل چې د |
| «لَا دِعْوَةَ فِي الْإِسْلَامِ ذَهَبَ أَمْرُ الْجَاهِلِيَّةِ |
| جاهلیت په زمانه کې چې کومې خبرې تیرې شوې دي د اسلام په زمانه کې دهغې دعوی نشې کولی |
| الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| ماشوم د صاحب فراش دی او زنا کار د پاره به کاڼی (یعنی محرومي ده یا سنګساري ده) (ابوداؤد) |

## هغه څلور ښځې چا سره چې لعان نه کیږي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل |
| "أَرْبَعٌ مِنَ النِّسَاءِ لَا مُلَاعَنَةَ بَيْنَهُنَّ: |
| چه څلور قسمه ښځې دي چې دهغوی (او دهغوی د خاوندانو) په مینځ کې لعان نه کیږي. یو هغه |
| النَّصْرَانِيَّةُ تَحْتَ الْمُسْلِمِ وَالْيَهُودِيَّةُ |
| نصرانیه (یعنی عیسایه ښځه) چې دیو مسلمان په نکاح کې وي او دویمه یهودیه (یعنی یهودنه ښځه) |
| تَحْتَ الْمُسْلِمِ وَالْحُرَّةُ تَحْتَ الْمَمْلُوكِ |
| چې دیو مسلمان په نکاح کې وي، او دریمه هغه آزاده ښځه چې دیو غلام په نکاح کې وي، او |

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۷۰۶ رقم الحديث ۲۲۷۴

| |
|---|
| وَالْمَمْلُوكَةُ تَحْتَ الْحُرِّ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1] |
| څلورمه هغه خادمه چې ديو آزاد په نکاح کې وي. (ابن ماجه) |

**توضيح**: لاملاعنة: يعنې څلور قسمه ښځې دي که چيرې دوی سره دلعان مسئله راشي نو دهغو ښځو او دهغوی دخاوندانو په مينځ کې لعان نه کيږي مثلاً يوه يهودي ښځه ده يا عيسايېه ښځه ده چې ديو مسلمان په نکاح کې دي او مسلمان خاوندپرې دزنا تور ولګولو او هغې ترديد وکړو نود هغوی په مينځ کې به لعان نه کيږي، او هم داسې يوه آزاده ښځه چې ديو غلام په نکاح کې ده يا يوه وينزه ديو آزاد خاوند په نکاح کې ده نو د دوی په مينځ کې هم لعان نه کيږي، ددې وجه داده چې لعان يو قسم ګواهي ده او تعريف ئې داسې دی (شهادت مؤکدات بالايمان) او دا څلور قسمه خلق د شهادت اهل نه دي ديهودی، عيسايۍ، کومې چې کافرې دي، او دوه غلامان دي، او د کافر او دغلام دواړو ګواهي صحيح نه ده، لهذا د دوی په مينځ کې لعان نشته، د دې حديث نه د احنافو د هغه موقف تائيد کيږي چې لعان دشهادت د قسمونو نه دی. (المرقات ۶/۴۸۳)

## دلعان په ځای دګناه اعتراف کول بهتر دي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ رَجُلًا |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې يو ځل کله چې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په حکم باندې دوه لعان کونکو |
| حِينَ أَمَرَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ أَنْ يَتَلَاعَنَا أَنْ يَضَعَ يَدَهُ عِنْدَ الْخَامِسَةِ |
| (يعنی ښځې او خاوند په يو بل لعان کولو نو نبی عليه السلام يو کس ته حکم ورکړو چه لاس کيږده په پنځم ځل باندې |
| عَلَى فِيهِ وَقَالَ: «إِنَّهَا مُوجِبَةٌ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ (صَحِيح)[2] |
| لعان کولو په وخت د هغوی په خوله باندې او وې فرمايل چې پنځم ځل ګواهي واجب کيږي. (نسائی) |

**توضيح**: ان يضع: مطلب داشو چې حضوراکرم صلی الله عليه وسلم متلاعنينو ته دلعان حکم ورکړو خو هلته موجود يو کس ته يې حکم وکړه چې کله په پنځم ځل ګواهي ورکوي نو دهغه په خوله باندې لاس کيږده چې لعان مکمل نه شي او دپنځم ځل ګواهی نه به منع شي او هغه کس به رښتيا ووايې او دته به ددنيا سزا ملاو شي او د آخرت د سزا نه به بچ شي، دنبی کريم به دا کوشش وو چې ښځه او خاوند د

---

(1) أخرجه ابن ماجه في ۱/۶۷۰ رقم الحديث ۲۰۷۶

(2) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۸۸ رقم الحديث ۲۲۵۵ والنسائي في ۶/۱۷۵ رقم الحديث ۳۴۷۲

لعان نه بچ کړي او ربنتیا ووایي او ددنیا سزا ورته ملاو شي او دآخرت سزا او عذاب نه بچ شي.( المرقات ۴۸۴/۶)

## شیطان ښځه او خاوند په خپل مینځ کې بدگمانه کوي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ | عَائِشَةَ: | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

حضرت عائشه رضی الله عنها باره کې نقل کړی شوې دي چې یو ځل د شعبان په پنځلسمه شپه نبی صلی الله علیه وسلم

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خَرَجَ | مِنْ | عِنْدِهَا | لَيْلًا | قَالَتْ: |

د هغې د خوانه پاسیدو او لاړو نو حضرت عائشه رضی الله عنها وایي په دې باندې ماله ډیر غیرت راغی بیا چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَغِرْتُ | عَلَيْهِ | فَجَاءَ | فَرَأَى | مَا | أَصْنَعُ |

کله نبی صلی الله علیه وسلم واپس تشریف راوړلو او چې زه په کوم حالت کې مبتلا وم هغې ته یې چې وکتل نو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | «مَالَكِ | يَا | عَائِشَةُ | أَغِرْتِ؟» | فَقُلْتُ: |

وې فرمایل چې عائشې: په تا څه شوې دي؟ آیا ته ما باندې غیرت کوې؟ ما عرض وکړو چې

وَمَا لِي؟ لَا يَغَارُ مِثْلِي عَلَى مِثْلِكَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

زما په رنگې ښځه به ستاسو په شان سړي باندې غیرت ولې نه کوي؟ نبی صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل

«لَقَدْ جَاءَكِ شَيْطَانُكِ». قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ أَمَعِي شَيْطَانٌ؟

چې په اصل کې ستا شیطان ستا خواله راغلی وو ما عرض وکړو چې یا رسول الله! زما سره شیطان شته؟

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | «نَعَمْ» | قُلْتُ: | وَمَعَكَ | يَا | رَسُولَ | اللهِ؟ قَالَ: |

نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل آو. ما عرض وکړو ای د الله رسوله! ستاسو سره هم شته؟ نبی علیه السلام وفرمائیل

«نعم وَلَكِن أعانني عليهِ حَتَّى أسلَمَ». رَوَاهُ مُسلم[1]

آو، لیکن الله زه په هغې باندې غالب کړی یم او زه یې د هغه د وسوسو نه محفوظ کړی یم (مسلم)

**توضیح: مالک اغرت:** یعنې په تا څه شوې دي په څه غیرت کې اخته شوې یې؟ په پنځلسم د شعبان په مدینه منوره کې دا واقعه شوې وه چې کله دحضرت عائشې نمبر وو او رسول کریم صلی الله علیه وسلم هغی کره وو نو رسول کریم صلی الله علیه وسلم د شپې په څه حصه کې جنة البیقع ته

(۱) أخرجه مسلم في صحیحه ۲۱۶۸/٤ رقم الحدیث (۲۸۱۵.۷۰) وأحمد في المسند ۱۱۵/٦

شریف یوړو چې د خپلو ملګرو د پاره د مغفرت دعاء وکړي. حضرت عائشې ته خیال راغی چې حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې په نمبر کې بلې ام المؤمنین کره تلی دی، دې د پاره وریسې روستو روستو تلله بیا چې کله ورته معلومه شوه چې قبرستان ته یې تشریف وړی وو نو زر واپس شوه، او په خپل ځک باندې پښیمانه شوه او رنګ ئې بدل شو، حضور تپوس وکړو. **(مالک اغرت)** حضرت عائشې چه کوم جواب ورکړی وو هغه د اعلی مینې یوه نمونه وه، او وې فرمایل چې زما په رنګې ښځه به ستاسو په شان خاوند باندې ولې غیرت نه کوي؟ حضور اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ذاته شیطان په وسوسه کې اچولې وې. (المرقات ۴۸۴/۶)

**(امعي شیطان)** دا سوال د حضرت عائشې د ډیرې پاکیزګۍ او د ډیرې تقوی او د الله تعالی نه په ویرې باندې دلیل دی ځکه چې د هغې په خیال کې هم نه وه چې شیطان هم یو آفت دی او هغه دوسوسو اچولو د پاره راتلی شي. (المرقات ۴۸۵/۶)

**حق اسلم:** اسلم د باب افعال نه د ماضي صیغه هم ویلی شوې ده، معنی یې دا شوه چې شیطان زما اطاعت کړی دی او ما په وسوسو کې نشي اچولی، او دا صیغه د **(اسلم)** د واحد متکلم هم ده او معنی یې داشوه چې زه د هغه نه محفوظ یم تفصیل په اولني جلد کې تیر شوی دی. (المرقات ۴۸۵/۶)

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

# باب العدة

## د عدت او واويلا كولو بيان

قال الله تعالى (إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاء فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِن بُيُوتِهِنَّ) (سورة طلاق:۱)

و قال تعالى (أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ) (سورة طلاق:٦)

وقال تعالى (وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا) (سورة بقرة :۲۳۰)

و قال تعالى (وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِن نِّسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ) (سورة طلاق:۴)

و قال تعالى (وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ـــــ وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ). (سورة طلاق : ۴)

عدة د باب نصر ينصر مصدر دى او په لغت كې شميرې ته ويلى شي،او ښځه هم دخپل د خاوند د مرګ نه وروسته خپلې د عدت ورځې شماري او په اصطلاح كې د ښځې د خاوند د فراق نه پس دير خاص مودې پورې نكاح او دمنافي د عدت څيزونو نه ځان ساتلو ته عدت ويلى شي. دا فرقت ياخود طلاق په وجه كيږي او يا د خاوند دوفات په وجه،دعدت د تيرلو يو څو طريقې دي: اول په درې حيضونو سره عدت تيرول دي. دويم وضع د حمل سره چې عدت متعلق وي په دې شرط چې ښځه حامله وي. دريم عدت بالاشهر دى چې ښځه وړه وى يا د ماهوارى راتلو يادبود او الى په وجه مايوسه وى نو عدت به په دريو مياشتو سره تيروي، او كه د ښځې خاوند مړ شوې وي نو بيا به څلور مياشتې او لس ورځې د عدت تيروي د قرآني اياتونو او دراتلونكو احاديثو په تفصيلاتو كې په ښځې باندې عدت تيرول لازم دي په ټولو مسلمانانو ښځو باندې لازم دي چې د عدت ورځې ضرور تيروي او د الله تعالى د دې حكم نه دې لاپرواهي نه كوي، په علماو باندې لازم دي چې په خپلو وعظونو كې د داسې مسئلو باره كې هم ضرور بيان كوي، او فقهاء احنافو چې د احاديثو په رڼا كې كوم دفعات مقرر كړي دي او هغه دې مسلمانانو ته په ښكاره ښكاره بيانوي چې دا مړه شوې سنت رژوندې شي. وينږې له كه خاوند طلاق وركړو نو دهغې عدت دوه حيضه دى او كه حيضه يې نه راځى نو بيايې دوه نيمې مياشتې عدت دى او كه خاونديې مړ شي نو بيايې دوه مياشتې او پنځه ورځې عدت دى.

# په عدت کې د نفقې او د اوسيدو مسئله

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ: أَنَّ أَبَا عَمْرِو بْنَ حَفْصٍ

ابو سلمه د فاطمه بنت قیس نه نقل کوي چې ابو عمرو بن حفص فاطمه بنت قیس له (چې د هغه ښځه وه)

طَلَّقَهَا الْبَتَّةَ وَهُوَ غَائِبٌ

درې طلاقه ورکړل او هغه په خپله موجود نه وو (يعني عمرو چيرته بل ځای کې وو او د چا په ذريعه يې ورته

فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا وَكِيلُهُ الشَّعِيرَ

وويل چې ما تا له طلاق درکړه) بيا دا ابو عمرو وکيل فاطمې له (د نفقې په شکل) څه ڼيزونه ورو ليږل.

فَسَخِطَتْهُ فَقَالَ: وَاللهِ

د فاطمه په خيال د هغه ڼيزونو مقدار کم وو نو هغه په هغې خفه شوه) هغه کس ورته وويل چې په الله قسم!

مَالَكِ عَلَيْنَا مِنْ شَيْءٍ

ستا په مونږ باندې هيڅ حق نشته دی (ځکه چې تا ته درې طلاق ملاو شوې دي او د دې د خرچې هيڅ حکم نشته)

فَجَاءَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فاطمې چې دا واوريدل نو د رسول کريم ﷺ په خدمت کې حاضره شوه او نبي ﷺ ته يې

فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ: «لَيْسَ لَكِ

ټوله واقعه بيان کړه رسول کريم ﷺ ورته وويل چې ستا په ابو عمرو باندې نفقه واجب نه ده

نَفَقَةٌ» فَأَمَرَهَا أَنْ تَعْتَدَّ فِي بَيْتِ أُمِّ شَرِيكٍ

بيا فاطمې ته رسول کريم ﷺ حکم ورکړو چې ته ام شريک کره خپل عدت پوره کړه بيا

ثُمَّ قَالَ: «تِلْكِ امْرَأَةٌ يَغْشَاهَا أَصْحَابِي

بيا حضور ﷺ وفرمايل چې ام شريک کره زما صحابه کرام او د هغې خپل خپلوان ځي راځي

اعْتَدِّي عِنْدَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ فَإِنَّهُ رَجُلٌ أَعْمَى

په دې وجه هغې کره ستا کيناستل بهتر نه دي ته ام مکتوم کره خپلې د عدت ورځې تيرې کړه ځکه چې هغه يو ړوند سړی دی

تَضَعِينَ ثِيَابَكِ فَإِذَا حَلَلْتِ فَآذِنِينِي».

هلته ته خپلې کپړې اينبودی شې او چې کله ته حلاله شې (يعني ستا د عدت ورځې پوره شي) نو ما ته به اطلاع

قَالَتْ: فَلَمَّا حَلَلْتُ ذَكَرْتُ لَهُ

راکړئ (چه زه ستا د دویمې نکاح غم وکړم) فاطمه وایې چې کله زه حلاله شوم نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته مې عرض وکړو

أَنَّ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ وَأَبَا جَهْمٍ خَطَبَانِي

چې معاویه ابن ابی سفیان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابو جهم د نکاح پیغام رالیږلی دی (ستا سو څه رایه ده؟)

فَقَالَ: «أَمَّا أَبُو الْجَهْمِ فَلَا يَضَعُ عَصَاهُ عَنْ عَاتِقِهِ

نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې د ابو جهم خبره خو داده چې هغه خپله همسا د خپلې اوږې نه نه لرې کوي

وَأَمَّا مُعَاوِيَةُ فَصُعْلُوكٌ لَا مَالَ لَهُ

او معاویه داسې سړی دی چې هغه سره مال او اسباب نشته (لهذا زما په رایه کې خو مناسب داده چې ته

انْكِحِي أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ» فَكَرِهْتُهُ

اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره نکاح وکړه. او ما اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره نکاح وکړه، ما د هغه سره نکاح کول نه خوښول،

ثُمَّ قَالَ: «انْكِحِي أُسَامَةَ» فَنَكَحْتُهُ فَجَعَلَ اللهُ

بیایې وفرمایل چې د اسامه بن زید سره نکاح وکړه، نو ما د هغه سره نکاح وکړه او الله تعالی په دې نکاح کې

فِيهِ خَيْرًا وَاغْتَبَطْتُ

ډیر خیر او برکت واچولو چه زمونږ ملګرتیا دومره ښه وه او زمونږ یو بل سره دومره محبت او مینه پیدا شوه

وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهَا: «فَأَمَّا أَبُو جَهْمٍ فَرَجُلٌ ضَرَّابٌ لِلنِّسَاءِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ

او په یو روایت کې د فاطمې الفاظ دا دي چې ابو جهم داسې سړی دی چې ښځې ډیرې وهي (مسلم)

وَفِي رِوَايَةٍ: أَنَّ زَوْجَهَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا فَأَتَتِ

او د مسلم په یو بل روایت کې دا هم دي چې فاطمې له خپل خاوند درې طلاقه ورکړې وو کله چې راغله

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «لَا نَفَقَةَ لَكِ

نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چه ستا خرچه ستا په خاوند باندې نه ده

| |
|---|
| إِلَّا أَنْ تَكُونِي حَامِلًا» (صَحِيح)[1] |
| او که ته حامله وې نو بیا ستا خرچه په هغه باندې واجب وه. |

**توضیح**: **طلقها البتة**: البتة نه دریو طلاقو سره مطلقه مغلظه ښځه مراد ده کومې ته چې مطلقه مبتوته هم ویلی شي، کومه ښځه چې په طلاق رجعی سره طلاقه شوې وي نو دهغې نفقه او سکنی په خاوند باندې لازم دي، او که ښځه په دریو طلاقو مطلقه مغلظه وي او حامله هم وي نو د ماشوم دپیدا کیدو پورې خرچه په خاوند باندې لازم ده، او که ښځه مطلقه مغلظه غیر حامله وي نو ددې په خرچه کې دفقهاء کرامو اختلاف دی. (المرقات ۴۸۵/۴)

## د مطلقې مغلظې په نفقې اوسکنی کې دفقهاو اختلاف

امام احمد بن حنبل ،اسحاق بن راهویه او د اهل ظواهرو په نزد باندې د مطلقې مغلظې غیر حاملې دپاره نه نفقه شته او نه سکنی شته، نه ډوډۍ شته او نه مکان، د امام مالک او امام شافعی په نزد سکنی شته او نفقه نشته، داحنافو په نزد باندې د دې مطلقې دپاره سکنی هم شته او نفقه هم شته یعنې ډوډۍ او مکان دواړه په خاوند لازم دي.

**دلائل**: امام احمد بن حنبل او اهل ظواهر غیر مقلدین د فاطمه بنت قیس دروایت نه دلیل نیولی دی په هغې کې دا الفاظ دي (**لا نفقة لک الا ان تکوني حاملاً**) او په دې حدیث کې دې ته حکم ورکړی شوی دی چې ته ام مکتوم کره اوسه چې ترې معلومه شوه چې هغې ته د مکان حق هم نشته، امام شافعی او امام مالک د سکنی د ثبوت دپاره دقرآن کریم د ایت نه دلیل نیولی دی (**اسکنوهن من حیث سکنتم من وجدکم**) (سورة طلاق : ۴) او دنفقې د نفې دپاره یې د دې ایت نه دلیل نیولی دی (**وان کن اولات الاحمال فانفقوا علیهن حتی یضعن حملهن**) (سورة طلاق : ۴) د دلیل طریقه د مفهوم مخالف په طور دی، چې نفقه به صرف معتدې حاملې ښځې ته ملاویږي، لهذا کومه ښځه چې مطلقه مطلقه نه وي نو هغې ته به په یو صورت کې هم نفقه نه ملاویږي، دې حضراتو د فاطمې بنت قیس د حدیث نه دلیل نیولی دی، ائمه احناف او سفیان ثوری د وجوب سکنی دپاره دقرآن کریم په دوه ایتونو سره دلیل نیولی دی یو ایت دادی چې (**اسکنو هن من حیث سکنتم من وجدکم**) (سورة طلاق : ۱) دا ایت په

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۱۱٤ رقم الحديث (۱٤۸۰.۳٦) وأبوداؤد في السنن ۲/۷۱۲ رقم الحديث ۲۲۸٤ والنسائي في ٦/۷٥ رقم الحديث ۳۲٤٥ وأحمد في المسند ٦/٤۱۳ ومالک في المؤطأ في ۲/٥۸۰ رقم الحديث ٦۷ من كتاب الطلاق.

سکنی باندې دلیل دی، دویم ایت دادی چې (**ولا تخرجوهن من بیوتهن ولا یخرجن**) (سورة طلاق) دا ایت هم د مکان په ورکولو باندې صریح دلیل دی، او په ضمني طور باندې دا ایت نفقه ورکول هم واجبوي، ځکه چې د ښځې په وېستلو او وتلو باندې پابندي شوه نو لازمي طور خرچه ورکول پکار دي، د شریعت د قواعدو مطابق هم نفقه ورکول پکار دي .ځکه دلته د هغې ښځې حبس د خاوند د حق په وجه باندې راغی ځکه چې عدت د نکاح په اثراتو کې یو اثر دی او د نکاح په وجه چې کله په خاوند باندې نفقه لازم وه نو اوس چې د نکاح داثر په وجه باندې کوم قید راغلی دی نو په دې کې هم په خاوند باندې نفقه فرض شوه،احنافو د حضرت عمر د عامې فیصلې او د صحابه کرامو د اجماع نه هم د نفقې د لازم کیدو دلیل نیولی دی، د فاطمه بنت قیس د روایت نه د جواب دپاره د حضرت عمر رضي الله عنه روایت راروان دی.(المرقات ۴۸۶/۴)

**جواب** :احناف د فاطمه بنت قیس د روایت نه جواب ورکوي چې دا روایت په ډیرووجوهاتو باندې معلل دی، حضرت عمر فاروق چې دا حدیث واوریده نو وې فرمایل چې (**لا ندع کتاب ربنا وسنة نبینا بقول امراة نسیت او شبه لها سمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول لها السکنی والنفقة**)
(مرقاه جلد ۶ ص ۳۲۵)

سعید بن مسیب وائي چې فاطمه بنت قیس ته نان نفقه په دې وجه ملاونشوه چې د هغې په ژبه کې سخت والی او تیزي وه ،ګویا چه ناشیزه وه او ناشیزه ته نان نفقه نه شي ورکولې.(المرقات ۴۸۶/۴)

د حضرت اسامه بن زید په نکاح کې چې کله راغله نو هغه پرې کاڼي وورول او د هغې قول یې مسترد کړه او د ناراضګۍ اظهار یې وکړه، حضرت عائشه فرمایي چې ولې فاطمه بنت قیس سره د الله ویره نه وه چې وایې چې هغې دپاره نه نفقه وه او نه سکنی ؟ددې اقوالو نه علاوه زیر بحث حدیث کې د هغه حدیث جواب موجود دی ځکه چې د فاطمه بنت قیس خاوند د ېته څه د غنمو دانې رلیږلې وې خو دې کې وګڼلې او واپس یې کړې، بیایې حضور اکرم ته شکایت وکړو نو حضرت د ډیرې نفقې نه انکار وکړو په اصل کې دا د نان نفقې نه انکار نه وو، شوافعو او مالکیو چې ددې ایت د مفهوم مخالف نه کوم دلیل نیولی دی احناف د هغې جواب ورکوي چې مونږ مفهوم مخالف نه منواونه په دې کې زمونږ دپاره څه دلیل شته، او خاصکر د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په قراءت کې دا الفاظ دي (**والفقوا علیهن من وجدکم**) ددې صراحت نه پس مونږ د نفقې نه انکار نه شو کولی او شوافعو ته په طور د الزام باندې احناف دا جواب ورکوي چې کله تاسو سکنی ومنله نو د بې چاره ښځې وژل غواړئ او ورته وایې چې په کور کې پرته اوسه او عدت تا باندې واجب دی،

او خوراک څښاک به درته نه ملاویږي دا خو عجیبه فیصله ده.او باقي فاطمه بنت قیس ته مکان ولې ملاو نشو؟ ددې جواب حضرت عائشه پخپله ورکوي چې د فاطمې کور د ښار نه لرې په یو ورانه علاقه کې وو او هلته هغه نشوه رسیدېی، او حضرت سعید بن المسیب د وینا مطابق د حضرت فاطمې بنت قیس په ژبه کې سختوالی وو او هر وخت به یې جنګ جګړې کولې په دې وجه هغه د کور د سهولت نه محرومه شوه.(المرقات ۴۸۸/۴)

**تضعین ثیابک**: ددې جملې یو مطلب دادی چې هلته به ته د عدت په حالت کې زیب او زینت پریږدې، دویم مطلب یې دا شو چې هلته نه به ته چیرته بهر نه وځې، دریم مطلب یې دادی چې هلته به تاته د پردې ضرورت نه وي، ځنګه چې یو مخامخ سړې نه په کتو کې مکمل پرده کولی شي، دا مطلب یې بالکل نه دی چې کپړې مه استعمالوه، بهر حال دې جملې نه معلومیږي چې ښځه یو پردي سړې ته کتلی شي که د فتنې خطره نه وي، نو بعضې علماء د جواز قائل دي، او بعضې وایې چې ښځو له سړو ته کتل منع دي ځکه چې د قرآن اعلان دی چې **(قل للمؤمنات یغضضن من ابصارهن)** (النور:۲۱) نو ددې حدیث مطلب دا شو چې ابن ام مکتوم په سترګو معذوره وو هغه تاته نشي کتلی او ته به په خپله هم ورته نه ګورې نو تاته به او سیدل اسان وي، او د پردې او حجاب مکمل انتظام به هم وي **(فلا یضع عصاه)** یعنې ابو جهم هر وختې د ادب د پاره همسا ورسره وي **(ضراب للنسا)** د مبالغې صیغه ده یعنې ښځې ډیرې زیاتې وهونکی دی دا هم دهغه ماسبق کنائی الفاظو **(فلایضع عصاه)** تشریح ده (المرقات ۴۷۸/۶) **(فصعلوک)** ډیر فقیر او مفلس ته ویلی شي. (المرقات ۴۷۸/۶)**(لامال له)** ګویا دایې صفت کاشفه دی یعنې معاویه مفلس فقیر دی، چونکه د حضور اکرم نه یې مشوره اخستې وه په دې وجه **(المستشار مؤتمن)** د دې قاعدې مطابق رسول کریم ﷺ ورته پول حال واضح بیان کړو. (المرقات ۴۷۸/۶)

**دحدیث فائدې** د فاطمې بنت قیس په دې حدیث کې د امت د پاره ډیر په کار راتلو والا تعلیمات دي: ۱.که خاوند نه وي او په یوه مستنده ذریعه باندې طلاق ورکړي نو جائز دی.۲.سړې د پاره خپل حق اخستو د پاره دوکیل نیول جائز دي.۳.فتوی اخستلو او ورکولو کې د پردي سړي او ښځې سره خبرې اترې کول جائز دي.۴.ښځه چې د عدت تیرولو د پاره کوم کور کې وي د ضرورت او حاجت د پاره بل ځای ته تلی شي.۵.که د فتنې ویره نه وي نو د یوې نیکې ښځې زیارت د ثواب په نیت باندې د رشته دارو سړو د پاره مستحب دی ځنګه چې ام شریک کره تلل راتلل وو.۶. مطلقې

مغلظې ښځې ته دعدت په زمانه کې د نکاح تعریض کول جائز دي.۷.دیو کس دنکاح په پیغام باندې د
بل کس دنکاح پیغام ورکول جائز دي چې د وړومبی نه ورسره جوړ نه وي.۸.د غائب کس نقص بیانول هغه
وخت جائز دي چې کوم وخت د مشورې په طور باندې جواب ورکولی شي څنګه چې حضور اکرم
جواب ورکړو.۹-په کلام کې دمجاز استعمال جائز دی څنګه چې نبي عَلَيۡهِ‌السَّلَام وفرمایل (**لایضعُ
عصاهُ**) د نکاح په رشته کې به مالداري د نظر نه نشي غورځولی.

﴿۲﴾ وَعَن عائشةَ قَالَتْ: إِنَّ فَاطِمَةَ كَانَتْ فِي مَكَانٍ وَحِشٍ

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنۡهَا وایې چې فاطمه بنت قیس چې په کوم مقام کې اوسیده هغه یو وران ځای وو

فَخِيفَ عَلَى نَاحِيَتِهَا فَلِذَلِكَ رَخَّصَ لَهَا النَّبِيُّ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم

او هلته ورته په هغې ویره وه نو په دې وجه نبی صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ ورته د (عدت د ورځو تیرولو د خپل کور

تَعْنِي النُّقْلَةِ وَفِي رِوَايَةٍ:

په ځای د ابن ام مکتوم کور ته ولیږله چې اساني ورته پیدا شي) په یو بل روایت کې دا الفاظ هم دي

قَالَتْ: مَا لِفَاطِمَةَ؟ أَلَا تَتَّقِي اللهَ؟

چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنۡهَا وویل چې فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنۡهَا باندې څه شوي دي ولې هغه د الله نه نه ویریږي؟

تَعْنِي فِي قَوْلِهَا: لَا سُكْنَى وَلَا نَفَقَةَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

دې نه د حضرت عائشهؓ مراد د فاطمه دا قول دی چې نه نفقه واجب ده او نه د سکنی تردید کول دي (بخاری)

﴿۳﴾ وَعَن سعيدِ بنِ المسيِّبِ قَالَ: إِنَّمَا نُقِلَتْ فَاطِمَةُ

حضرت سعید بن مسیب وایې چې فاطمه (دعدت په وخت کې د هغې دخاوند د کور نه په دې وجه

لِطُولِ لِسَانِهَا عَلَى أَحمائِها. رَوَاهُ فِي شرح السّنة (صَحِيح)[2]

بل ځای ته ولیږله چه هغې به د خاوند د خپلوانو سره ژبه سخته استعمالوله. (شرح السنه)

---

(۱) أخرجه البخارى في صحيحه ۹/٤۷۷ رقم الحديث ۵۳۵۲ ومسلم في ۲۰/۱۱۲۱ رقم الحديث (١٤٨١.٥٤) وأبوداؤد في السنن ۲/۷۱۸ رقم الحديث ۲۲۹۲

(۲) أخرجه البغوى في شرح السنة ۹/۲۹٤ رقم الحديث ۲۳۸٤.

## دعدت په حالت کې دکور نه دوتلو حکم

(۴) وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: طُلِّقَتْ خَالَتِي ثَلَاثًا

حضرت جابر رضی الله عنه وايي چې زما ترور ته درې طلاقه ورکړې شو (او هغه عدت کې کیناسته) بیا هغې

فَأَرَادَتْ أَنْ تَجُدَّ نَخْلَهَا فَزَجَرَهَا رَجُلٌ

یوه ورځ اراده وکړه چې (چې دکور نه ووځم او کجهوې په راوړم نو یو کس هغه دکور نه دبهر وتلو نه منع کړه

أَنْ تَخْرُجَ فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:

هغه دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضره شوه او واقعه یې ورته بیان کړه نو نبی صلی الله علیه وسلم و فرمایل

«بَلَى فَجُدِّي نَخْلَكِ فَإِنَّهُ عَسَى أَنْ تَصَدَّقِي

په دې کې څه نقصان نشته لاړه شه خپلې کجورې وشوکوه کیدی شي ته دغه کجورې د الله په لاره

أَوْ تَفْعَلِي مَعْرُوفًا». رَوَاهُ مُسْلِم (صَحِيح)[1]

کې ورکړې یاد احسان ذریعه شي. (مسلم)

**توضیح: فقال بلی فجدي**: جدي د واحد مونث دامر صیغه ده جداد دکجورو شوکولو په معنی سره راځي، ددې حدیث نه دهغې ښځې د کور نه د وتو او د نه وتو حکم معلومیږي چې دعدت په حالت کې کور کې ناسته وي، په دې کې داسې تفصیل دی چې دکومې ښځې خاوند مړ شوی وي او عدت تیروي نو په دې کې تقریباً د ټولو علماو اتفاق دی چې هغه د ورځې په وخت کې دکور نه بهر وتی شي ځکه چې نفقه دهغې په خپل سر باندې ده نو ددې مجبورۍ په حالت کې وتی شي او دشپې هم وتی شي (اذلا نفقة فتحتاج الی الخروج) ځکه چې نفقه دهغې په خپله ذمه باندې ده نو د وتلو دپاره محتاجه ده، او دا پرې لازم دي چې شپې دپاره به هغې کور ته راځي چې په کوم کور کې دعدت ورځې تیروي، اوس پاتې شوه طلاقه شوې ښځه چې هغه وتی شي که نه؟ په دې کې دفقهاو اختلاف دی. (مرقات ۴۹۳/۶)

**دفقهاو اختلاف**: د جمهورو په نزد طلاقه شوې ښځه دورځې وتی شي، ائمه احناف فرمائي چې دسختې مجبورۍ نه بغیر دخپل د عدت والا کور نه نشي وتی.

**دلائل**: ائمه جمهور د حضرت جابر دروایت نه دلیل نیولی دی چې دحضرت جابر ترور ته نبي اکرم د

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۱۲۱ رقم الحديث (۱۴۸۳.۵۵) وأبوداؤد في السنن ۲/۷۲۰ رقم الحديث ۲۲۹۷ والنسائي في ۶/۲۰۹ رقم الحديث ۳۵۵۰ وابن ماجه في ۱/۶۵۶ رقم الحديث ۲۰۳۴ والدارمي في ۲/۲۲۲ رقم الحديث ۲۲۸۸.

کجورو شو کولو او باغ ته د تلو اجازت ورکړی وو، ائمه احناف د قرآن کريم د ايت نه دليل نيولی دی

ايت دادی (ولاتخرجوهن من بيوتهن ولا يخرجن) (سورة الطلاق : ۱)دا مطلق ايت به د حضرت جابر په خبر واحد سره نشي مقيد کولی، لهذا بغير د څه ضرورت نه به طلاقه شوې ښځه دعدت د کورنه بهر نه شي وتی، او که ډير ضرورت پيښ شي نو بياد شپې وتل او واپس هغه کور ته راتلل کوم کور کې چې د عدت دپاره ناسته وي جائز دي، احنافو د مجبورۍ په حالت کې د وتلو د جواز دپاره د حضرت جابر ددې حديث نه دليل نيولی دی، حضور اکرم ﷺ ددې ښځې اجازت په (لعلک ان تصدقي وتفعلي معروفا) سره مقيد کړی دی، نو دا د يو ضرورت او حاجت طرف ته اشاره ده، که صاحب نصاب شوه نو زکوة به ورکړي که زکوه نه وي نو په نفلي صدقاتو سره به چاسره ښېګړه وکړي، معلومه شوه چې ديني او دنياوي حاجت دپاره وتل جائز دي کني جائز نه دي. امام طحاوی د حضرت جابر يوه فتوی نقل کړې ده چې وتل جائز نه دي، نو معلومه شوه چې زير بحث حديث منسوخ دی، د صوبه سرحد په علماو لازم دي چې هغوی دا مسئله عوامو ته واضحه کړي او بيان يې کړي، ځکه هلته په ديکې سستي ده، دلته يو بل صورت دی که د معتدې ښځې کور وغورځيږي يا د غلو يا د ډاکوانو ويره وي او يا د هغې کور خرچ د هغې د وس نه بهر وي نو په دې صورت کې بل کور ته تلی شي.(مرقات : ۶/۴۹۴،۴۹۳)

## دحاملې ښځې عدت په وضع د حمل دی

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ: أَنَّ سُبَيْعَةَ الْأَسْلَمِيَّةَ نُفِسَتْ بَعْدَ وَفَاةِ |
| حضرت مسور بن مخرمه وايي چې د سبيعه اسلميه دخاوند د وفات نه يو څو ورځې پس ماشوم وشو |
| زَوْجِهَا بِلَيَالٍ فَجَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَأْذَنَتْهُ |
| نو دنبی کريم ﷺ په خدمت کې حاضره شوه او د دويمې نکاح اجازت يې وغوښتلو نو |
| أَنْ تَنْكِحَ فَأَذِنَ لَهَا فنكحت. (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| نبی ﷺ ورله د نکاح کولو اجازت ورکړو او هغې نکاح وکړه. (بخاری) |

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۴۷۰ رقم الحديث ۵۳۲۰ والنسائي في ۶/۱۹۰ رقم الحديث ۳۵۰۶ وابن ماجه في ۱/۶۵۴ رقم الحديث ۲۰۲۹ وأحمد في المسند ۴/۳۲۷

## دعدت په ورځو کې رانجه لګول منع دي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَن أُمِّ سلمةَ قَالَتْ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وائي چې يوه ښځه راغله او دنبي صلى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کښې حاضره شوه |
| فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ الله إِنَّ ابْنَتِي تُوُفِّيَ عَنْهَا زَوْجُهَا |
| او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله! چې زما دلور خاوند مړ شوی دی (چې دهغې په وجه په عدت کې ده) |
| وَقَدِ اشْتَكَتْ عَيْنُهَا أَفَنَكْحُلُهَا؟ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او دهغې سترګې خوګيږي نو دهغې په سترګو رانجه ولګوم؟ رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل |
| «لَا» مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا كُلُّ ذَلِكَ يَقُولُ: |
| چې نه، هغې دوه يا درې ځله تپوس وکړو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هر ځل هم هغه جواب ورکړو |
| «لَا» قَالَ: «إِنَّمَا هِيَ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعشرٌ وَقد كَانَت إِحْدَاهُنَّ فِي الجاهليَّةِ |
| چې نه. او وې فرمايل چې عدت څلور مياشتې او لس ورځې دی دجاهليت په زمانه کې به په تاسو |
| تَرْمِي بِالْبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الْحَوْلِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| کې يوې ښځې (يعنې کونډې) به پوره کال تيريدو نه پس (داوښانو) پچې غورځولې. (بخاري ومسلم) |

**توضيح**: **افنكحلها**: دوفات نه پس چې کوم عدت وی يعنې څلور مياشتې او لس ورځې ايا ښځه په کې رانجه لګولی شي يا نه؟ په دې کې دفقهاو اختلاف دی.

**دفقهاو اختلاف** دامام احمد بن حنبل په نزد که عذر وی او که نه وی دعدت په ورځو کې ښځه په سترګو کې رانجه نه شی لګولې. امام شافعي وائي چې دمجبورۍ په حالت کې يې دعلاج دپاره لګولی شي خو شپې دې لګوي او دورځې دې صفا کوي. امام مالک او امام ابوحنيفه وائي چې دمجبورۍ په حالت کې يې دعلاج دپاره استعمالولی شي، امام احمد دزير بحث حديث نه دليل نيولی دی. جمهور وايي کيدی شي دې ښځې دسترګو دخوږ بهانه کړې وي او مراد يې زينت وو، او حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته داصل حقيقت پته لګيدلې وه نو په دې وجه يې اجازت ورنه کړه، يا کيدی شي دا يو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۴۸۴ رقم الحديث ۵۳۳۶ ومسلم في ۲/۱۲۴ رقم الحديث ۱۴۸۸ وأبوداؤد في السنن ۲/۷۲۱ رقم الحديث ۲۲۹۹ والنسائي في ۶/۲۰۵ رقم الحديث ۳۵۳۸ وابن ماجه في ۱/۶۷۳ رقم الحديث ۲۰۸۴

خاص قسم سرمه وه چې د هغې نه يې منع وفرمايله، په دې حديث کې د تاويل يوه واضحه قرينه دا هم ده چې د حضرت ام سلمه نه په يوه موقعه باندې د رنجو لګولو د مسئلې تپوس وکړی شو نو دسخت مرض په وخت يې اجازت ورکړو. (کذا فی سنن ابی داؤد جلد ۱ ص ۳۱۵، مرقات: ۴۹۵/۶)

## په کافرانه نظام کې په ښځه باندې ظلم کيده او اسلام ورله مقام ورکړو :ترمي بالبعرة علی راس

**الحول:** په دې جمله کې نبي کريم صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جاهليت د زمانې په ښځو باندې د بې ځايه ظلمونو کولو طرف ته اشاره وکړه، او مقصد دا وو چې دين اسلام کې اسانتيا ده تاسو ته معلومه نه ده چې په زمانه د جاهليت کې به د ښځې د عدت افسانه څه وه، پيغمبر عليه السلام چې کومې قصې او افسانې طرف ته اشاره کړې ده چې د هغې ذکر چې کوم کتابونو کې شوې دې د هغې خلاصه داده: چې په جاهليت کې به چې کله سړی مړ شو نو هغه به د خفګان او عدت تيرولو د پاره په يوه تنګه او تياره کوټه کې داخله شوه، د هغې کوټې دروازه به بند کړی شوه او د بهر نه به يې ورله پلستر ورکړه او دې ښځې له به يې د سپې په لوښي کې خوراک ورکولو، هم دې کوټه کې به اوده کيدله او هم په دې کې ناسته پاسته وه، غول متيازې به يې هم په دې کې کولې، او ټول کال به يې يوه جوړه کې او ټول کال په يو ځاې کې تيرولو او کال پوره کيدو نه پس کله به چې کوټه سخته زهريله شوه نو هغو خلقو به سپی يا ځناور يا پرنده د ننه کړو او هغه ځناور به د هغې ښځې د اعضاء مخصوصه پورې لګيا وو څټلو به يې، او کله چې به د سخت زهريله ګيس په وجه هغه ځناور مړ شو نو هغو خلقو به ويل چې ډير ښه عدت يې تير کړو بيا به يې هغه ښځه بهر ته راوخکله او په يو خر باندې به يې سوره کړه چې د هغې مخ به د خر د لکۍ طرف ته وو او د هغې په لاسونو کې به يې داوښانو يا چيلو د ګندګۍ ډکه ټوکری وه (مينګنې هغې ګندګۍ ته ويلی شي چې د ګولې په شان ګول جوړې شوې وي) او يوه يوه ګوله به يې غورځوله او ماشومانو به ورپسې وروستو چغې وهلې کله به يې چې آخرۍ ګوله وغورځوله نو عدت به ختم شو، نبي کريم صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ګويا اشاره وفرمايله چې يو خو کافرانه نظام او د هغوی انسانيت سوز سلوک او بل طرف ته د اسلام رحمت او شفقت او د عزت او عظمت نظام؟ په دواړو کې لوی فرق دی چا څه ښه ويلي دي:

چراغ مرده کجا نور آفتاب کجا  ببين تفاوت راه کجا است تا بکجا

جاهليت په زمانه کې به غمرازې يو کال پورې وه، او کله به يې په قبر باندې خيمې لګولو سره ژړاګانې کولې، د عدت هم يو جاهلانه رسم وو او کال تيرولو نه پس به کور ته راتلل، يو شاعر وايي:( المرقات ۴۹۵/۶)

الی الحول ثم اسم السلام عليکما  ومن يبک حولا کاملا فقد اعتذر

ترجمه: يو کال ما ستا په قبر باندې تير کړو او ډير مې وژړل اوس تاسو دواړو ته سلام کومه وابن ځم او ټول کال ژړا والا د ژړا حق اداء کړو.

## څو مره مودې پورې خفګان کول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ وَزَيْنَبَ بِنْتِ جحش عَنْ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ام حبيبه رضي الله عنها او حضرت زينب بنت جحش رضي الله عنها د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې |
| قَالَ: «لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِالله وَالْيَوْمِ الْآخِرِ |
| نبي عليه السلام وفرمايل چې کومه ښځه په الله تعالى او د آخرت په ورځ باندې ايمان ساتي نو د هغې دپاره صحيح نه ده |
| أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ |
| چه په مړي دې د دريو ورځو نه زيات خفګان وکړي مګر په خاوند خفګان چې څلور مياشتې او |
| وَعَشْرًا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او لس ورځې دی. (بخاری و مسلم) |

**توضيح**: **ان تحد**: دا لفظ د باب افعال نه احداد د په وزن د اعداد دی، علامه ابن همام فرمايي چې دا لفظ مجرد د نصر او ضرب د باب نه هم راځي، احداد او حداد د زينت او عطرياتو او سنګار پريښودو ته ويلی شي، په دې کې د غم مفهوم پروت دی، په دې وجه ورته غمرازي ويلی شي په اسلام کې د خاوند د مرګ نه علاوه په چا باندې د درې ورځو نه زيات خفګان کول جائز نه دي، شيعه ګان د حضرت امام حسين هر کال خفګان نمانځي دا حرام دي، اسلام د انساني طبيعت او فطرت لحاظ ساتلی دی په طبعي طور باندې انسان درې ورځو پورې غمژن وي د دې نه زيات د زينت د پريخودلو عادت جوړول پکار نه دي، البته د زړه خفګان او د سترګو د اوښکو تلو دپاره کوم حد نشته دی، د حضرت ام حبيبه متعلق د ابو داؤد په يو روايت کې دي چې کله د هغې د پلار انتقال وشو نو درې ورځې پس يې عطر راوغوښتل او په لاسونو يې ومږل او وې فرمايل چې ماته د دې ضرورت نه وو خو د رسول کريم صلى الله عليه وسلم نه مې اوريدلې دي بيا يې دا حديث بيان کړه. (ابوداود ج۱ صفحه۳۱۴).

---

(1) أخرجه البخاری في صحيحه ۹/۴۸۴ رقم الحديث ۵۳۳٤ ومسلم في ۲/۱۱۲۳ رقم الحديث (۱٤۸٦.۵۸) وأبوداؤد في السنن ۲/۷۲۱ رقم الحديث ۲۲۹۹ والترمذي في ۳/۵۰۱ رقم الحديث ۱۱۹٦ والنسائی في ٦/۱۹۹ رقم الحديث ۳۵۲۷ والدارمي في ۲/۲۲۰ رقم الحديث ۲۲۸٤

ښځې دپاره دخاوند غم دټولو غمونونه زيات دی ځکه چې دې سره دهغې ټول کور وران شي نو شريعت ددې ښځې دپاره د فطری صدمې خيال ساتلی دی او څلور مياشتې او لس ورځې يې دخفګان کولو اجازت ورکړی دی او بيايې پرې لازم کړی هم دی، ملا علی قاری په مرقات کې ليکلي دي چې عموما په هلک کې درې مياشتې پس ساه راځي او په جينۍ کې څلور مياشتې لګي نو شريعت څلور مياشتې او لس ورځې مقرر کړې دي چې د هر قسمه ماشوم پيدا کيدل يقيني شي په بعضو ماشومانو کې حرکت ډير کمزوری وي نو شريعت د څلورو مياشتو او لس ورځو اضافه وکړه چې د ښځې د حامله کيدو يا نه کيدو ښه پته ولګي.(المرقات ۴۹۸/۶)

## عدت والا ښځې دې د عطر ياتو نه ډډه کوي

| |
|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تُحِدُّ امْرَأَةٌ عَلَى مَيِّتٍ |
| حضرت ام عطيه وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې يوه ښځه دې په مړی باندې د درې |
| فَوْقَ ثَلَاثٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا |
| ورځو نه زيات خفګان نه کوي او دخاوند په مرګ باندې څلور مياشتې او لس ورځې خفګان کولی شي |
| وَلَا تَلْبَسْ ثَوْبًا مَصْبُوغًا إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ وَلَا تَكْتَحِلُ |
| او (دعدت په وخت کې) دعصب نه علاوه نورې څه رنګينې جامې دې نه اغوندي، او نه دې رانجه |
| وَلَا تَمَسُّ طِيبًا إِلَّا إِذَا طَهُرَتْ نُبْذَةً مِنْ قُسْطٍ |
| او خوشبو لګوي البته د حيض نه د پاکيدو نه پس لږ شان قسط يا اظفار استعمالولی شي نو څه |
| أَوْ أَظْفَارٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ: «وَلَا تَخْتَضِبْ»[1] |
| نقصان په کې نشته دی. او په ابو داؤد کې دا سې الفاظ راغلي دي چې په دې ورځو کې په وېښتو او لاسونو باندې نکريزې نه لګوي. |

**توضيح**: **ولا ثوباً مصبوغاً**: يعنی رنګينې کپړې دې د زيب او زينت دپاره نه استعمالوي که هغه په زعفراني رنګ کې وي يا په بل رنګ کې وي، او که بله کپړه ملاو نه شي نو بيا رنګينې کپړې استعمالولی شي او په دې کې دې د زينت خيال نه کوي ځکه چې ستر پټول فرض دی.(المرقات ۴۹۹/۶)**الا ثوب عصب**: عصب په يمن کې يو خاص قسم څادر دی دلته دعصب نه مراد هغه رنګين

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۴۹۲ رقم الحديث ۵۳۴۱ ومسلم في ۲/۱۱۲۸ رقم الحديث (۶۶/۹۳۸) وأبوداؤد في السنن ۲/۷۲۵ رقم الحديث ۲۳۰۲ والنسائی ۶/۲۰۴ رقم الحديث ۳۵۳۶ وأحمد في المسند ۵/۸۵.

څادر دی چې د جوړولو نه مخکې د هغې تارونو له رنګ ورکولی شي او کله چې څادر تيار شي نو په هغې کې سپين او سور رنګ راشي د داسې قسمه څادر استعمالول جائز دي. (المرقات ۴۹۹/۶)

طهرت: يعني کله چې حيض نه ښځه پاکه شي (نبذه) نون باندې ضمه ده او د لفظ په استثناء سره منصوب دی، د لګ څيز په معنی سره دی. (المرقات ۵۰۰/۶)

اى شيئًا يسرا (من قسط) دا لفظ په باب د طب کې باربار راغلی دی ددې ترجمه ګهټ يا ګربتی ده، دلته ترې نه يو خاص قسم عطر مراد دي. ملا علی قاری ليکلي دي چې عود هندي چې د خوشبو او دوائي کار ترې نه اخستی شي ښځې يې د حيض دغسل نه پس استعمالوي چې بدبو ختمه شي (المرقات ۵۰۰/۶) (او اظفار) دا يو قسم خوشبو ده چې تکړې يې د نوکانو په شان وي. (المرقات ۵۰۰/۶)

# دعدت په حالت کې د مکان د بدلولو حکم

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۹﴾عَن زَيْنَب بنت كَعْب: أَنَّ الْفُرَيْعَةَ بِنْتَ مَالِكِ بْنِ سِنَانٍ وَهِيَ أُخْتُ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَخْبَرَتْهَا |
| حضرت زينب بنت کعب فرمايي چې فريعه بنت مالک بن سنان چې دابو سعيد خدری خور ده ماته وويل |
| أَنَّهَا جَاءَتْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْأَلُهُ |
| چه هغه (فريعه) د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې دې تپوس دپاره حاضره شوه چې هغه خپل |
| أَنْ تَرْجِعَ إِلَى أَهْلِهَا فِي بَنِي خُدْرَةَ فَإِنَّ زَوْجَهَا |
| د عدت ورځو تيرولو دپاره د خپل مورپلار بنی خدره کره لاړه شي ځکه چې د هغې خاوند خپلو |
| خَرَجَ فِي طَلَبِ أَعْبُدٍ لَهُ أَبَقُوا فَقَتَلُوهُ قَالَتْ: فَسَأَلْتُ |
| غلامانو پسې تلی وو او هغو غلامانو هغه قتل کړو چنانچه فريعه وايي چې ما پوښتنه وکړه |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَرْجِعَ إِلَى أَهْلِي فَإِنَّ زَوْجِي |
| د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چې زه خپلې پلار ګانی کره لاړه شم ځکه چې زما خاوند زه په کوم |
| لَمْ يَتْرُكْنِي فِي مَنْزِلٍ يَمْلِكُهُ وَلَا نَفَقَةٍ |
| کور کې پرېښودلې وم هغه يې مالک نه وو (يعني د هغه په ملکيت کې نه وو) او نه ماسره د خوراک څښناک دپاره څه شته |
| فَقَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «نَعَمْ» |
| فريعه وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا واوريدل نو وې فرمايل چې بهتره ده چې ته خپلې |

نیولی دی او هغه داسې دی چې حضور اکرم ﷺ ورله اول اجازت ورکړو او بیایې منع کړه ددې منع کولو سره اولنی حکم منسوخ شو، یا داسې به ووایو چې دا په عدت کې د عذر او ضرورت په وخت کې دخاوند دکور نه وتل د ټولو په نزد جائز دي، حضور اکرم صلی الله علیه وسلم اول دا ښځه کمزورې ګڼله نو د تلو اجازت یې ورکړو بیا پیغمبر علیه السلام ته معلومه شوه چې دا خو معذوره نه ده نو بیایې منع کړه.

باقي فریق اول چې ویلي دي چې امر د استحباب دپاره دی نو جواب دا دی چې په استحباب باندې دلته کومه قرینه نشته بلکې د وجوب قرینه موجود ده، چې د اجازت نه وروسته یې منع فرمایلې ده، یاد لرئ د کومې ښځې چې خاوند مړ شي نو د ضرورت د وجې نه په ورځ او څه حصه د شپې کې د کور نه بهر وتلی شي، لیکن بغیر د ضرورت نه د تفریح او چکر دپاره وتل جائز نه دي. (المرقات ۵۰۲/۶)

**په اوه قسمه ښځو باندې غمرازي نشته** : امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې اوه قسمه ښځې داسې دي چې دهغوی خاوند مړ شي نو په هغوی غمرازي واجب نه ده دهغې تفصیل یې په درمختار کې داسې لیکلی دی:

۱.کافره یعنی یهودیه ، نصرانیه باندې غمرازي کول واجب نه دي. ۲. په لیونۍ باندې، ۳.په وړه باندې. ۴. دنکاح فاسدې والا ښځې باندې ،۵. وطی بشبهة یعنې په غلط فهمۍ کې چې چا سره جماع شوې وي او هغه په عدت کې ناسته وي نو هغې باندې غمرازي نشته .۶.هغه ښځه چې د طلاق رجعي په عدت کې ناسته وي نو په هغې غمرازي نشته. ۷. په ام ولده باندې.

یاد ساتئ چې غمرازي د عدت په ورځو کې کیناستل او د زیب او زینت ترک کولو نوم دی، د طلاق رجعي په عدت کې زینت ترک کول نشته بلکې زینت اختیارول دي چې خاوند ورته رجوع وکړي، او که دکومې ښځې خاوند مړ شوی وي یا دې ته طلاق مغلظه یا طلاق بائن ورکړی شوی وي نو دعدت په موده کې پرې ترک د زینت لازم دی چې ورته خفګان ویلی شي.

## دعدت په ورځو کې ځان ډولې کول منع دي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ | أُمِّ | سلمَةَ | قَالَتْ: | دَخَلَ | عَلَيَّ | | | | |
| حضرت ام سلمه (چه دنبی ﷺ زوجه مطهره ده) روایت کوي زما کره تشریف راوړلو یوه ورځ | | | | | | | | | |
| رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | حِينَ | تُوُفِّيَ | أَبُو | سَلَمَةَ |
| رسول الله ﷺ چې کله زما د وړومبني خاوند ابو سلمه انتقال وشو او زه دعدت دپاره ناسته ومه | | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَدْ | جعلتُ | عليّ | صَبِراً | فَقَالَ: | | |
| نو هغه وخت ما په مخ باندې ايلوا لګولې وه نبي ﷺ چې ورته وکتل نو وې فرمائيل چې | | | | | | |
| «مَا | هَذَا | يَا | أُمّ | سَلَمَة؟». | | |
| اې ام سلمه ! دا څه شی دی؟ (يعنې تا دعدت په ورځو کې په مخ باندې څه لګولې دي؟) ما عرض وکړو | | | | | | |
| قُلْتُ: إِنَّمَا | هُوَ | صَبِرٌ | لَيْسَ | فِيهِ | طِيبٌ فَقَالَ: «إِنَّهُ | يَشُبُّ الْوَجْهَ |
| چې دا خو ايلوا ده چې په دې کې څه قسمه خوشبو نشته نبي ﷺ وفرمايل ايلوا مخ ځوانوي | | | | | | |
| فَلَا | تَجْعَلِيهِ | إِلَّا | بِاللَّيْلِ | | | |
| (يعنې مخ چمک دار کيږي او رنګ يې ښه کيږي) لهذا دا ته مه لګوه که په څه وجه يې لګول ضروري وي نو د شپې يې لګوه | | | | | | |
| وَتَنْزِعِيهِ | بِالنَّهَارِ | وَلَا | تَمْتَشِطِي | بِالطِّيبِ | | |
| او د ورځې يې صفا کوه (ځکه چې د شپې د سنګار ګمان نه وي) او هم داسې خوشبوداره ږمنځ هم | | | | | | |
| وَلَا | بِالْحِنَّاءِ | فَإِنَّهُ | خضاب، | | | |
| مه استعمالوه او مه په نکريزو سره ږمنځ کوه ځکه نکريزې د سور رنګ د پاره وي (او په دې کې خوشبو وي | | | | | | |
| قلتُ | بأيّ | شيءٍ | أمتشطُ | يا | رسولَ | الله ا |
| او د غم رازې په حالت کې دا منع دی) ما عرض وکړو يا رسول الله نو بيا زه په کوم څيز باندې ږمنځ کومه؟ | | | | | | |
| قالَ | بالسدرِ | تُغلفينَ | به | | | |
| نبي ﷺ راته وفرمايل چې ديرې په پاڼو باندې ږمنځ کوه او ددې پاڼو سره خپل سر پټوه (يعنې په | | | | | | |
| راسكِ». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد | وَالنَّسَائِيّ [1] | | | |
| خپل سر باندې دو مره ديرو پاڼې اچوه چې ټول سر دې پټ شي. (ابو داؤد ، نسائی) | | | | | | |

**توضيح**: (صبر) په صاد باندې فتحه ده او باء باندې کسره ده ديوې ترښې دوائي نوم دی چې ورته (ايلوا) ويلی شي.

یو شاعر ویلي دي:

لا تحسب المجد تمرا الت آکله لن تبلغ المجد حتی تلعق الصبرا

یعني د بزرګۍ حاصلول څه دکجور خوړل نه دي تر څوپورې چې ایلوا ونه څټې بزرګۍ ته نه شې رسیدی (شب یشب) د نصر نه د ځوانۍ په معنی سره دی، مطلب دادی چې ایلوا ددې(المرقات ۵۰۳/۶)

(شیره) ده چې مخ ځوان کوي (امتشاط) معني یې ده ږمنځول، او خوشبوداره ږمنځ منع ده (السدر) دبیرې پاڼې ترې مراد دي) (تغلفین) غلاف او سر پټول ترې مراد دي. ددې څیزونو د منع کیدونه معلومه شوه چې نن سبا ددې نوي دور ټول لپ سټک، ناخن پالش، او نور قسمه کریم او زیب وزینت او دځان ډولي کولو ټول څیزونه منع دي. او هم داسې هر قسمه عطر او خوشبوداره پوډر او خوشبوداره صابن وغیره منع دي ځکه چې په کې په بعضو څیزونو کې سنګار او زینت دی او بعضې خوشبو والا دي. (المرقات ۵۰۳/۶)

## معتده ښځه دې کالي (زیورات) نه استعمالوي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهَا | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: |
| حضرت ام سلمه رضي الله عنها د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل | | | | | | | |
| «الْمُتَوَفَّى | عَنْهَا | زوجها | لَا | تَلْبسُ | الْمُعَصفَرَ | مِنَ الثِّيَابِ | وَلَا |
| چې دکومې ښځې خاوند مړ شي چه نه دې کسم (زیړ رنګ) باندې رنګ شوي کپړه اچوي، نه دې | | | | | | | |
| الْمُمَشَّقَةَ | وَلَا | الْحُلِيَّ | وَلَا | تَخْتَضِبُ | | | |
| په ګیرو (ګل ارمني) باندې رنګ شوې کپړه اچوي نه دې کالي اچوي او نه دې په پښو لاسونو | | | | | | | |
| وَلَا | تَكْتَحِلُ». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ | وَالنَّسَائِيُّ[1] | | | |
| نکریزې لګوي او نه دې رانجه لګوي. (ابو داؤد، نسائی) | | | | | | | |

**توضیح**: (المعصفر) ای المصبوغ بالمعصفر یعنې په کسم (زیړ رنګ) سره رنګ شوې کپړه المشقة میم اول باندې ضمه ده ثانی باندې زبر دی شین مشدد دی ای المصبوغة بالمشق بکسر المیم وهو الطین الاحمر دې ته ګیرو (خاوره، ګل ارمني) ته ویلی شي.

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۷۲۷ رقم الحدیث ۲۳۰۴ والنسائی فی ۶/۲۰۳ رقم الحدیث ۳۵۳۵ وأحمد في المسند ۶/۳۰۲

په دې سره کېږې رنګ کولی شي **الممشقه** په دې وجه تانیث سره راغلی دی چې د (**الحلة**) یا د (**الثیاب**) محذوف موصوف صفت دی.

(**الحلی**) په حا باندې ضمه هم صحیح ده او کسره هم صحیح ده او په یاء باندې شد دی د حلیة جمع ده چې کالو ته ویلی شي، صاحب هدایه لیکلي دي چې د بیمارۍ یا خارښ یا د سپګو په وجه معتدې لره په غمرازۍ (عدت) کې د ریښمو کپړه استعمالول جائز دي، یعنې بغیر د مجبورۍ او بغیر د څه ضرورت نه ریښم استعمالول منع دي، امام مالک فرمایي چې تور رنګ واله ریښم او کالي استعمالول جائز دي خو شارحین حدیث لیکي چې د کالو نه خوصفا ممانعت دی په رنګ شوې کپړو کې هر قسمه رنګ منع دی، سوا د معصب نه لهذا تور ریښم هم منع دي (المرقات ۶/۵۰۴)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د طلاق شوې د عدت باره کې یو بحث

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ: أَنَّ الْأَحْوَصَ هَلَكَ بِالشَّامِ حِينَ |
| حضرت سلیمان بن یسار وایي چې احوص په ملک شام کې وفات شو په هغه وخت کې چې د هغه |
| دَخَلَتِ امْرَأَتُهُ فِي الدَّمِ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ وَقَدْ كَانَ طَلَّقَهَا |
| د ښځې دریمه ماهواري شروع شوې وه او احوص د خپل مرګ نه مخکې هغې له طلاق ورکړی وو، |
| فَكَتَبَ مُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ إِلَى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ يَسْأَلُهُ عَنْ ذَلِكَ |
| خط اولیکه حضرت معاویه بن ابی سفیان حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه ته د دې مسئلې معلومولو د پاره |
| فَكَتَبَ إِلَيْهِ زَيْدٌ: إِنَّهَا إِذَا دَخَلَتْ فِي الدَّمِ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ |
| حضرت زید رضي الله عنه حضرت معاویه رضي الله عنه له جواب ورکړو چې کله د دې ښځې دریم حیض شروع شو |
| فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ وَبَرِئَ مِنْهَا لَا يرِثُها |
| نو هغه د احوص نه جدا شوه او احوص د هغې نه جدا شو، نه احوص د هغې وارث شو او نه هغه ښځه |
| وَلَا تَرِثُه. رَوَاهُ مَالِك [1] |
| د احوص وارثه شوه. (مالک) |

[1] أخرجه مالک في المؤطأ ۲/۲۷۷ رقم الحدیث ۵۶ من کتاب الطلاق.

**توضيح**: **من الحيضه الثالثه**: دمسئلې صورت دا وو چې حضرت احوص خپلې ښځې له طلاق ورکړی وو او دهغه ښځه په عدت کې ناسته وه هغه په دريم حيض کې داخله شوې وه چې دهغې دخاوند انتقال وشو، اوس دا شک پيدا شو چې اوس به دا ښځه څلور مياشتې او لس ورځې په عدت کې کيني او بيا به د خپل خاوند وارثه شي او که نه دهغې د طلاق عدت ختم شو او دخپل خاوند نه به وارثه نه شي جوړيدی، هم د مسئله حضرت معاويه دحضرت زيد بن ثابت نه دخط په ذريعه معلومه کړه حضرت زيد په جواب کې وفرمايل چې کله دا ښځه په دريم حيض کې داخله شوه نوهغه وخت د طلاق والا عدت ختم شو، او هغه آزاده شوه او دخاوند په ميراث کې به ورته هيڅ نه ملاويږي، ځکه چې دهغې دخاوند نه تعلق بالکل ختم شو.

دې بيان نه دا معلومه شوه چې دحضرت معاويه د حضرت زيد نه دمسئلې معلومولو مقصد دا وو چې ايا دا ښځه په ميراث کې وارثه کيدی شي يا نه، يابې دا معلومول چې ايا ددې ښځې عدت هغه طلاق والا عدت به وي يا د وفات والا عدت به تيروي، حضرت زيد جواب ورکړو چې کله دا په دريم حيض کې داخله شوه نودهغې عدت ختم شو نه به اوس هغې ته دخاوند په ميراث کې څه ملاويږی اونه ورته د وفات دعدت ضرورت شته، ځکه چې خاوند سره دهغې تعلق ختم شوی وو، ددې روايت نه شوافع د **عدت بالاطهار** مسئله ثابتول غواړي ځکه چې دهغوی په نزد دقرآن کريم ايت (**ثلاثة قروء**) نه اطهار مراد دي چې کله دريم حيض شروع شو نو دښځې درې طهره پوره شو او عدت يې ختم شو. داحنافو په نزد عدت بالحيض دی ددې روايت جواب ائمه احناف داسې ورکوي چې دا د حضرت زيد رضي الله عنه مسلک وو مونږه دنورو صحابو مسلک اخلو چې په کې خلفاء راشدين او نور اکابر صحابه شامل دي، دارنګه دا قول د صحابي دی او احنافو د مرفوعو احاديثو نه دليل نيولی دی، دارنګې د حضرت زيد نه د **طلاق الامة اثنتان وعدتها حيضتان** روايت هم ثابت دی چې ترېنه عدت بالحيض ثابت دی.

نو معلومه شوه چې راوي دخپل مروي نه خلاف فتوی ورکړه نو قابل دليل نه شو بهر حال مضبوط دلائل د احنافو سره دي. (المرقات ۵۰۴/۶)

## دطلاقې شوې دعدت يوه عجيبه مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَيُّمَا امْرَأَةٍ طُلِّقَتْ |
| سعيد بن مسيب وايي چې حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه فرمائي چې کومې ښځې له طلاق ورکړی |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَحَاضَتْ | حَيْضَةً | أَوْ | حَيْضَتَيْنِ | ثُمَّ | رُفِعَتْهَا | حيضتُها | فإنَّها | تنتظِرُ | تسعةَ | أشهرٍ |
| شوی وي او هغې ته یو ځل یا دوه ځله حیض راشي بیا بند شو نو بیا به هغه نهه میاشتې انتظار کوي | | | | | | | | | | |
| فَإِنْ | بَانَ | لَهَا | حَمْلٌ | فَذَلِكَ | | | | | | |
| که په دې موده کې حمل ښکاره شو نو حکم یې ښکاره دی نو چې څه پیدا شو نو عدت پوره شو نو | | | | | | | | | | |
| وَإِلَّا | اعْتَدَّتْ | بَعْدَ | التِّسْعَةِ | الْأَشْهَرِ | ثلاثةَ | أشهرٍ | | | | |
| عدت پوره شو او که حمل ښکاره نه وو نو بیا به نهه میاشتو نه پس درې میاشتو پورې د عدت ورځې تیروي | | | | | | | | | | |
| ثُمَّ | حلَّتْ. | رَوَاهُ مَالِكٌ[1] | | | | | | | | |
| او دې نه پس به حلاله شي (یعني د عدت نه دې بهر راوځي. (مالک) | | | | | | | | | | |

**توضیح**: **طلقت** دا د مجهول صیغه ده د طلاق په معنی سره (المرقات ۶/۵۰۵) (**اوحیضتین**) یعني د عدت تیرولو دپاره طلاقه شوې ناسته ښځه چې کله یو یا دوه حیضه راغلل نو وینه بنده شوه د دې مفهوم دپاره دپاره یې دا جمله ارشاد وفرمایله (**ثم رفعتها حیضتها**) رفعتها دا د مجهول صیغه ده او **حیضتها** یې نائب فاعل دی او په رفعتها کې چې کوم د هاء ضمیر دی نو منصوب بنزع الخافض دی اصل عبارت داسې دی (**ثم رفعت حیضتها عنها**) او رفع د حیض نه مراد د حیض بندیدل دي. (المرقات ۶/۵۰۶)

(**فانها تنتظر**) دا د (**ایما امرأة**) شرط دپاره جواب د شرط دی (**فذالک**) دا مبتدا ده او د دې خبر محذوف دی (**اي فذالک ظاهر حکمه**) یعني د دې حکم خو ظاهر دی چې په وضع د حمل سره عدت ختمیږي (**والا**) په دې کې ان شرطیه مدغم دی اصل عبارت داسې دی (**وان لم یبن**) یعني که حمل ظاهر نه شو (المرقات ۶/۵۰۶).

(**اعتدت**) دا په اصل کې (**فاعتدت**) دی او د شرط جواب دی (**بعد التسعه الاشهر**) دلته یې په **التسعة** مضاف باندې الف لام داخل کړی دی حالانکه نحاة دا نه خوښوي ځکه په دې کې ثقل دی او څه فائده یې نشته؟

د دې جواب علماء دا ورکوي چې مضاف باندې **الف لام** داخلول د اهل کوفو دلغت مطابق دی چې د هغوی په نزد جائز دی او دې کې هیڅ بدوالی نشته، لکه (**الثلاثة الاثواب**) کې بعضې علماء وائي چې

---

[1] أخرجه مالک في المؤطأ ۲/۵۸۲ رقم الحديث ۷۰ من کتاب الطلاق

د **"التسعة"** نه **"الاشهر"** بدل واقع دی او دا هم د عربو په لغت کې شائع دی.

په دې روایت کې چې کومه مسئله بیان شوې ده د هغې صورت دادی چې مثلاً یوه ښځه طلاقه شوې حیض والا ده چې هغې دریو حیضو سره عدت تیرول شروع کړل او چې کله یو یا دوه حیضه تیر شول نو وینه بنده شوه نو اوس د دې ښځې عدت د حاملې ښځې عدت سره بدل شو، او کله چې د حمل موده نهه میاشتې هم تیرې شوې نو معلومه شوه چې هغه حامله نه ده نو اوس په هغې د آیسې عدت تیرول لازم شو، آئسه هغې ښځې ته وائي چې د حیض راتلو نه مایوسه شي نو د هغې عدت په میاشتو سره دی، لهذا اوس به درې میاشتې نورې هم په عدت کې تیروي او د ډیرې مودې پرواه به نه کوي، په دې روایت کې حضرت عمر فاروق دا مسئله بیانوي.

ملاعلی قاری رحمه الله د فتح القدیر په حوالې سره دلته د تفریع په طور باندې د **"طلاق الفار"** مسئله بیان کړې ده (فار) تختیدونکي کس ته ویلی شي او طلاق الفار مطلب هم دا دی چې یو کس په لاعلاجه مرض کې اخته دی د صحت امیدې نشته دی هغه په دې مرض کې ښځې له په دې وجه طلاق ورکړو چې هغه د میراث نه محرومه کړي اوس هغه ښځه د طلاق عدت تیروي چې په دې کې د خاوند انتقال وشو.

فقهاء احناف فرمایې چې اوس به دا ښځه د **"ابعد الاجلین"** عدت تیروي یعنې څلور میاشتې او لس ورځې موده اګر چې اوږده ده نو په دې به عدت تیروي، او که عدت بالحیض وي نو دغه عدت به تیروي، عدت بالحیض موده هغه وخت اوږده کیږي چې دیو حیض نه پس څو میاشتو پورې طهر اوږد شو او څلورو میاشتو او لسو ورځو نه موده زیاته شوه، اوس به دا ښځه د طلاق والا عدت تیروي چې کوم عدت چې د وفات زوج نه زیات دی، کومې زمانې ته چې ورسیږي ښځه آئسه کیږي په دې کې مختلف اقوال دي: یو قول دادی چې ۵۵ کاله د ایاس د عمر زمانه ده، بل قول ۶۰ کاله دریم قول ۷۰ کاله زمانه د ایاس ده. (المرقات ۶/۵۰۷، ۵۰۶)

## باب الاستبراء

استبراء په لغت کې طلب برات او د یو څیز د څه عیب نه پاکولو په معنی سره راځي، او فقهي اصطلاح کې د وینزې رحم د حمل نه خالي کولو طلب کول استبراء ده، اسباب د استبراء تجدد د ملک دی یعنې د وینزې مالک کیدل که هغه د ملک اخستلو په ذریعه وي یا په میراث سره وي یا هبې سره وي یا د مال غنیمت په تقسیم سره وي، الغرض چې د هرې وجې نه حاصل شي، کله چې تجدد د ملک متحقق شو نو استبراء لازم شوه، د استبراء حکمت دا دی چې د وینزې نه پیدا شوې ماشوم کې اشتباه د نسب ختمه شي، ځکه چې استبراء نه بغیر د وطي په ذریعه چې ماشوم پیدا کیږي په دې کې دا شک او شبه هم وي چې دغیر د نطفې نه به وي، او که چیرې خپل طرف ته یې نسبت کوي نو شک دی چې د بل کس ماشوم ځان ته منسوب نه کړي، او که بل طرف ته یې منسوب کوي نو شک دی چې خپل ماشوم بل چاته منسوب نه کړي، او دا ټول صورتونه شرعًا حرام دي د دې باب په وړومبني حدیث کې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دې طرف ته اشاره کړې ده.

### د استبراء تفصیل

د جمهورو په نزد اصل مذهب دا دی چې په ملکیت کې کومه وینزه وي که ذوات حیض وي نو استبراء د رحم د پاره یو حیض کافي دی او که په وجه د کم عمرۍ یا د زیات عمر په وجه حیض نه راځي نو استبراء د پاره یوه میاشت کافي ده د استبراء د رحم نه مخکې جماع کول حرام دي او که په ملکیت کې راغلې وینزه حامله وه نو استبراء د رحم د پاره وضع د حمل کافي ده، پاتې دا استبرا وړې، غټې، باکرې او ثیبې ټولو د پاره لازم دی.

**سوال**: اوس سوال دا دی چې د استبراء ضرورت خو هلته پیښیږي چیرته چې د اشتغال رحم امکان وي، چې په نسب کې اشتباه رانشي، ځکه ممکنه ده چې د غیر نطفه په رحم کې موجوده وي، لیکن کوم ځای کې چې د اشتغال رحم بالکل امکان نه وي نو هلته د استبراء ضرورت څه دی؟ مثلاً وینزه وړه ده یا باکره ده یا دیوې ماشومې وینزه وه یا د خادمې مالکه یوه ښځه وه یا مالک د هغې خادمې محرم وو په دې ټولو صورتونو کې د اشتغال رحم امکان نشته نو د قیاس تقاضا ده چې په دې صورت کې استبرا نه شته.

**جواب**: د دې سوال جواب جمهور فقهاء داسې ورکوي چې د استبراء سره متعلق نصوص او احادیث مطلق دي لهذا مونږه نصوص واخستل او قیاس مو پریښودو دې وجې نه بطور امر تعبدي مونږه هر ځای کې استبراء ضروري وګڼله، د مطلق نصوصو مطلب دا دی چې جنګ حنین او جنګ اوطاس په موقع باندې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې خبردار اوسئ چې حاملې وینزې سره

د وضع د حمل پورې جماع مه کوئ، غير حاملې سره د يو حيض راتلو پورې جماع مه کوئ، دلته غير حاملې لفظ عام دی، د باکرې، صغيرې، وغيره ذکر نشته، او مطلق جمهورو قبول کړه او قياس يې پريخودو، ددې باب په فصل ثالث کې روايت نمبر ۴ چې د کوم روايت امام مالک کړی دی په هغې کې داسې راغلې دي چې وينزه حيض واله نه وي نو بيا درې مياشتې عدت دی، دا روايت متروک العمل دی، د ابن شهاب زهري نه علاوه چاهم په دې عمل نه دی کړی ځکه چې د يو حيض يا يوې مياشتې نصوص عام دي، دا رنګې روايت نمبر ۵ کوم چې د حضرت ابن عمر نه نقل شوی دی هغه هم د جمهورو فقهاو په نزد متروک العمل دی چې په کې راغلې دي چې باکرې د پاره استبراء نشته دی.

## استبراء نه بغير جماع حرامه ده

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِامْرَأَةٍ |
| حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ورځ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تير شو د يوې ښځې په خوا کښې |
| مُجِحٍّ فَسَأَلَ عَنْهَا فَقَالُوا: |
| چې د هغې زر ماشوم پيدا کيدو والا وو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې باره کې تپوس وفرمايلو چې دا |
| أَمَةٌ لِفُلَانٍ قَالَ: |
| ښځه آزاده ده او که خادمه ده؟ صحابه کرامو عرض وکړو چه د فلانکي سړي خادمه ده، نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تپوس وکړو |
| «أَيُلِمُّ بِهَا؟» قَالُوا: نَعَمْ. قَالَ: «لَقَدْ |
| چې هغه سړی ورسره جماع کوي؟ صحابو عرض وکړو چې آو، نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ما |
| هَمَمْتُ أَنْ أَلْعَنَهُ لَعْنًا |
| اراده وکړه چې په دې کس باندې لعنت وليږم چې هغه سره قبر پورې لاړ شي يعنې داسې لعنت چې |
| يَدْخُلُ مَعَهُ فِي قَبْرِهِ كَيْفَ يَسْتَخْدِمُهُ |
| هميشه وي او د هغې اثر د مرګ نه پس هم وي، هغه به څنګه خپل ځوی ته د خدمت د پاره ووايي |
| وَهُوَ لَا يَحِلُّ لَهُ؟ أَمْ كَيْفَ يُوَرِّثُهُ |
| او ځوی نه خدمت اخستل جائز نه دي، يا هغه غلام کول حلال نه دي يا څنګه به يې خپل وارث جوړ کړي |

| |
|---|
| وَهُوَ لَا يحلُّ لَهُ؟». رَوَاهُ مُسلم[1] |
| کله چې د غیر ځوی خپل وارث جوړول حلال نه دي. (مسلم) |

**توضیح**: **بامراۃ مجح**: دا موصوف صفت دی او دمجح په میم باندې ضمه ده او دې نه پس جیم باندې کسره ده او دې نه پس حاء ده چې پرې شد دی او کسرې والا تنوین دی، ولادت ته نزدې حاملې ښځې ته ویلی شي .(المرقات ۵۰۸/۶) **(ایلم بها)** دا د المام نه دی مراد ترې نه جماع ده (المرقات ۵۰۸/۶) **(یستخدمه)** دا د استخدام نه دی دخادم یا غلام جوړولو په معنی سره دی. **(وهو)** ضمیر د استخدام طرف ته راجع دی یعنې د خپل ځوی نه غلام جوړول حرام دي حلال نه دي. (المرقات ۵۰۸/۶) **(کیف یورثه)** دا د باب تفعیل نه دی د وارث جوړولو په معنی سره راځي یعنې د بل کس ځوې خپل وارث څنګه جوړوي او حال دا دی چې دا حلال نه دی. (المرقات ۵۰۸/۶)

دحدیث مطلب دا شو چې داستبراء نه مخکې وطي کول دلعنت سبب داسې شو چې دې سره په نسب کې اشتباه راځي که داستبرا نه مخکې یې وطي وکړه او شپږ میاشتې پس ماشوم پیدا شو نو اوس به دا ماشوم دچا وي دا هم یو ګمان دی چې د نوي مالک ځوی دی اوهغه دځوی په ځای غلام کړه او غلام پشان ترې نه خدمت اخلي اودا هم ګمان دی چې دا ماشوم د بل چا هم کیدی شي او دا نوی مالک یې خپل ځوی جوړ کړي نو دا دواړه صورتونه حرام دي او په دې حرامو کې دا کس د استبراء نه کولو په وجه باندې اخته شو، معلومه شوه چې استبراء نه کول باعث لعنت او موجب حرمت دی . (المرقات ۵۰۸/۶)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۲﴾عَن أَبِي سعيدِ الخدريّ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په طریقې د رفع سره نقل کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ فِي سَبَايَا أَوْطَاسٍ: «لَا تُوطَأُ حَامِلٌ |
| د اوطاس په غزا کې د کبرو شووو وینزو باره کې وفرمایل چې حاملې ښځې سره تر هغې وخته پورې جماع مه کوئ |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۰۶۵/۲ رقم الحديث ۱۴۴۱.۱۳۹ وأبوداؤد في السنن ۶۱۴/۲ رقم الحديث ۲۱۵۶ والدارمي في ۲۹۹/۲ رقم الحديث ۲۴۷۸ وأحمد في المسند ۴۴۶/۶

حَتَّى تَضَعَ وَلَا غَيْرُ ذَاتِ حَمْلٍ حَتَّى

ترڅو چې دهغې څه پیدا شوې نه وي او غیر حاملې سره هم ترهغه وخته پورې جماع مه کوئ ترڅو

تَحِيضَ حَيْضَةً». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ[1]

چې یې یو حیض رانشي. (روایت کړې دې احمد، ابوداؤد، دارمی)

﴿۲﴾ وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَوْمَ حُنَيْنٍ:

حضرت رویفع بن ثابت الانصاری وایې چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حنین دغزا په ورځ وفرمایل

«لَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

دا خبره صحیح نه ده دهغه چا دپاره چې کوم کس په الله او په قیامت باندې ایمان ساتي چې هغه دبل

أَنْ يَسْقِيَ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ»

کس پټې په خپلو اوبو باندې سیراب کړي (یعني هغه ښځې سره جماع کول چې بطور وینزه په لاس ورغلې وي

يَعْنِي إِتْيَانَ الْحَبَالَى «وَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ

او هغه دبل کس دنطفې نه حامله شوې وي، جائز نه ده) دا هم جائز نه ده دهغه دپاره چې کوم کس

يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَقَعَ عَلَى امْرَأَةٍ

په الله او آخرت باندې ایمان ساتي چې هغه د کافرانو نه په جنګ کې ګیرې شوې وینزو سره هغه وخته

مِنَ السَّبْيِ حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا وَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ

پورې جماع وکړي ترڅو چې دهغې استبراء نه وي شوې دا هم ټیک نه ده دهغه چا دپاره کو کس

يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَبِيعَ مَغْنَمًا

چې په الله او د آخرت په ورځ باندې ایمان ساتي چې هغه مال غنیمت خرڅ کړي ترڅو چې هغه

حَتَّى يُقَسَّمَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

تقسیم شوی نه وي (یعني په مال غنیمت کې څه قسمه خیانت ونه کړي). روایت کړې دې (ابو داؤد)

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۱٤ رقم الحديث ۲۱۵۷ والدارمي في ۲/۲۲٤ رقم الحديث ۲۹۹۵ وأحمد في المسند ۳/۶۲

| |
|---|
| وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيّ إِلَى قَوْله «زرع غَيره»[1] |
| او امام ترمذی دا روایت د لفظ د زرع وغیره پورې نقل کړی دی. |

## د استبراء رحم یوه مسئله

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۴﴾ عَن مَالِكٍ قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت امام مالک رحمه الله وایي چې ماته دا حدیث را رسیدلی دی چې رسول کریم ﷺ |
| كَانَ يَأْمُرُ بِاسْتِبْرَاءِ الْإِمَاءِ بِحَيْضَةٍ |
| د یوې وینزې په یو حیض سره د استبراء حکم فرمایلی دی په شرط د دې چې هغې وینزې ته حیض راځي |
| إِنْ كَانَتْ مِمَّنْ تَحِيضُ وَثَلَاثَةِ أَشْهُرٍ |
| او که چیرې یوه وینزه داسې وه چې هغې ته حیض نه راتلو نو هغې د پاره د دریو میاشتو موده پورې |
| إِنْ كَانَت مِمَّن لاتحيض وَيَنْهى عَن سقْيِ مَاء الْغَيْر (اخرجه مالك)[2] |
| د استبراء حکم ورکولو او نبی کریم ﷺ منع کړې ده د خړوبولو د اوبو د غیر نه. |

**توضیح: وثلاثة اشهر**: دې نه مخکې دا مسئله تیره شوې ده چې جمهورو د عامو روایاتو په نظر کې د وینزې د استبراء د پاره یو حیض حکم ورکړی دی که چیرې حیض نه راځي نو د یوې میاشتې حکم دی، خو د دې روایت مطابق د حیض نه راتلو په صورت کې یې د دریو میاشتو عدت تیرولو مسئله ښودلې ده په دې روایت باندې حضرت ابن شهاب زهری وغیرو عمل کړی دی، جمهور فرمایي چې په اصل کې کوم عدت مقرر شوی دی هغه یو حیض دی او ظاهره ده چې دیو حیض بدل یوه میاشت کیدل دي نه درې میاشتې.

**عن سقي ماء الغير**: یعنې خپلې اوبه او نطفه د بل د نطفې سره مه شاملوئ مطلب دا شو چې وینزې سره استبراء د رحم نه مخکې جماع نه کول پکار دي. (المرقات ۶/۵۱۰)

---

(۱) أخرجه أبوداؤد فى السنن ۲/٦١٥ رقم الحديث ۲۱۵۸ والترمذي في ۳/٤۳۷ رقم الحديث ۱۱۳۱ وأحمد في المسند ٤/۱۰۸

(۲) أخرجه مرقات المفاتيح ٦/٤٦٥ رقم الحديث ۳۳٤۰

## پیغلې وینځې د پاره د استبراء حکم

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ | ابْنِ | عُمَرَ: | أَنَّهُ | قَالَ: | إِذَا | وُهِبَتْ | الْوَلِيدَةُ | الَّتِي | تُوطَأُ |
| حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې هغه وفرمایل چې کله داسې وینځه چې د هغې سره جماع کیدی شي | | | | | | | | | |
| أَوْ | بِيعَتْ | أَوْ | أُعْتِقَتْ | فَلْتَسْتَبْرِئْ | رَحِمَهَا | بِحَيْضَةٍ | | | |
| هبه کړی شي یا خرڅه کړی شي یا آزاده کړی شي هغه له پکار دي چې په یو حیض باندې خپل رحم پاک | | | | | | | | | |
| وَلَا | تُسْتَبْرَئُ | الْعَذْرَاءُ. | رَوَاهُمَا | رزين [1] | | | | | |
| کړی او د پیغلې د پاره د پاکولو ضرورت نشته. (دا دواړه روایتونه رزین نقل کړي دي) | | | | | | | | | |

**توضیح:** **ولا تستبرئ العذراء:** عذراء پیغلې جینۍ ته ویلې شي د حدیث شریف ظاهری مطلب دا دی چې پیغلې جینۍ له د استبراء ضرورت نشته ځکه چې دا خبره متعین ده چې د هغې رحم د غیر د نطفې نه پاک دی په دې روایت باندې قاضي شریح وغیرو عمل کړی دی، لیکن د جمهورو فقهاو مسلک هغه دی چې کوم مخکې لیکلی شوی دی چې د جنګ او طاس د وینځو باره کې د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم فرمان عام دی چې غیر حاملو د پاره یو حیض دی نو په دې کې پیغله هم راغله.

خلاصه دا ده چې باب استبراء کې د حضرت ابن عمر دا روایت نمبر ۵ او د حضرت امام مالک روایت نمبر ۴ متروک الظاهر او متروک العمل دي. (المرقات ۵۱۲/۶)

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

[1] خرجه مرقاة المفاتیح ۶/۱٦۵ رقم الحدیث ۳۳٤۱

# بَابُ النَّفَقَاتِ وَحقِّ المملوكِ
## عام نفقات او د غلامانو د حقونو بيان

قَالَ اللهُ تَعَالٰى: لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ مِّنْ سَعَتِهٖ ؕ وَ مَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهٗ فَلْيُنْفِقْ مِمَّآ اٰتٰىهُ اللّٰهُ (طلاق:۷)

قَالَ اللهُ تَعَالٰى: وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ (بقرة ۲۳۳)

قَالَ اللهُ تَعَالٰى: وَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ (بنی اسرائیل : ۴۵)

انفاق او نفقه خرچ کولو ته ویلی شي (وما انفقتم من نفقةٍ) (بقرة : ۲۷۰) په ایت کې هم د خرچ ذکر دی، ملاعلي قاري د دې شرعي او اصطلاحي تعریف داسې کړی دی (وفي الشرع الادرار علی الشیٔ بما به بقاءه) یعني نفقه د هر هغه څیز نوم دی چې د هغې په وجه باندې زندګي بچ کیږي او باقي پاتې کیدو کې کار ورکوي، لکه روټی، کپړه او مکان، د وجوب نفقه اسباب مختلف کیدی شي مثلاً لکه د ښځې نفقه جدا ده، د مور پلار نفقه جدا ده، د بچو نفقه جدا ده د غلامانو نفقه جدا ده او کله د خپلو خپلوانو او مساکینو نفقه جدا واجب کیږي، په سړي باندې د ښځې نفقه په هغه وخت کې واجب کیږي کله چې ښځه خپل ځان خاوند ته حواله کړي خواه ښځه وړه وي که لویه مسلمانه وي که کتابیه وي او که ښځه نافرمانه وي نو د هغې نفقه په خاوند باندې لازم نه ده، بهتره دا ده چې ښځه او خاوند په مینه سره دې او سیږي چې خاوند به یې ګټي او ښځه به یې د احتیاط سره خرچ کوي که داسې ماحول نه وي او ښځې د قاضي په ذریعه خپلې د خرچې مطالبه وکړه نو قاضي به ورله خرچ مقرر کوي او ښځې ته به یې حواله کوي او خرچه به د خاوند د طاقت مطابق وي چې په نه دې پکې اسراف وي او نه څه تنګي، که چیرې ښځه په کومه غټه بیماری کې اخته وي نو دا خرچه په خاوند نه ده بلکې په مور پلار باندې ده البته د وړو بیمارو خرچه په خاوند باندې ده او که چیرې یوه ښځه حج د پاره ځي نو د هغې خرچه په دې باندې ده په خاوند باندې نه ده .ښځې له کور ورکول چې جدا وي، که په مشترکه کور کې او سیږی نو بیا ورله بیل کور ورکول واجب نه دي، که د خاوند په کور کې ښځې له بیله کوټه ورکړی شي چې هغه په دې کې خود مختاره وي نو د کور حق اداء شو او دا کافي ده. ښځه مور پلار کره په میاشت کې یو ځل تلی شی په دې کې خاوند هغه نشي منع کولی او نورو رشته دارو کره په کال کې یو ځل تلی شي په دې تلو راتلو کې یې خاوند منع کولی شي. که د عدت په ورځو کې ښځه مرتده شوه نو په خاوند باندې یې نفقه واجب نه ده او نه یې د نابالغه بچو نفقه د پلار په ذمه ده. (المرقات ۵۱۲/۶)

مور پلار او د اصولو یعني د پلار، نیکه او نیا که محتاجه وي نو د هغوی خرچې په اولاد باندې واجب دي که اولاد یې مالي لحاظ سره ښه وي که هغوی په خپله محتاجه وي نو بیا واجب نه ده، محتاج پلار ته

دا حق حاصل دی چې هغه د خپل ځوی منقوله څیزونه خرڅولی شي لیکن غیر منقول جائیداد یې نه شي خرڅولی البته مورته دا حق حاصل نه دی، په مالک باندې د خپل غلام او وینځې خرچ خوراک واجب او ضروري دی، که چیرې هغه انکار وکړي نو غلام بیا په خپله په ګټلو کې خود مختار دی، که چیرې څه څناورېې ساتلی وي نو د هغوی خوراک په هغه باندې واجب دی، که هغه ورباندې خرچ نه کوي نو هغه به په خرچ کولو باندې مجبورولی شي، یا خرچ کوه او دا حیوانات خرڅ کړه.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## ښځې ته د خپل خاوند د مال نه خرچ کولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: إِنَّ هندا بنت عتبة قَالَت: يَا رَسُول الله |
| ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها وایې چې هند بنت عتبه عرض وکړو چې ای د الله رسوله ! |
| إِن أَبَا سُفْيَان رجل شحيح وَلَيْسَ يعطيني |
| (زما خاوند) ابو سفیان ډیر شوم او لالچي دی ما له دومره خرچه نه راکوي چې زما او زما د بچو د |
| مَا يَكْفِينِي وَوَلَدي إِلَّا مَا أخذت مِنْهُ وَهُوَ يعلم |
| ضرورت د پاره کافي شي که زه د هغه د مال نه د هغه د اجازت نه بغیر څه واخلم چې هغه ته پته نه وي |
| فَقَالَ: «خذي مَا يَكْفِيك وولدك |
| او هغې سره زمونږه ضرورتونه پوره شي نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د خپل ځان او بچو د پاره چې د |
| بِالْمَعْرُوفِ» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| شریعت مطابق وي د هغه د مال نه یې اغستی شی. (بخاري ومسلم) |

**توضیح: بالمعروف**: یعنی د دستور مطابق واجبي ضرورتونو پوره کولو د پاره د خوراک څښاک څیزونه اخستی شي، مطلب دا دی شریعت چې څنګه اجازت کړی دی د هغې مطابق یې اخله، د خاوند د مال نه د اخستو نه مراد هغه مال دی چې د هغې تعلق د خوراک او څښاک څیزونو سره وي، که د خاوند صریحي اجازت نه وي نو صرف دَلالةً اجازت هم کافي دی د ښځې د پاره، لیکن د ټولو احادیثو نه دا معلومیږي چې د یو معمولي غونډې څیز هم بغیر د اجازت نه استعمالول جائز نه دي، او بعضې احادیثو نه معلومیږی چې استعمالول جائز دي، د احادیثو نه پته لګي چې اجازت اغستل بهتر دي، ځکه چې بعضې معمولي څیز هم

---

(۱) أخرجه البخاري في ۹/۵۰۷ رقم الحديث ۵۳٦٤ ومسلم في ۳/۱۳۳۸ رقم الحديث (۱۷۱٤.۷) وأبوداؤد في السنن ۳/۸۰۲ رقم الحديث ۲۲۵۹ وابن ماجه في ۲/۷٦۹ رقم الحديث ۲۲۹۳.

دخاوند دپاره ډیر اهم وي. بعضې څیزونه دعلاقې دحالاتو مطابق اهمیت لري لکه دیخنی په موسم کې دغر دپاسه دماچس تیلی هم ډیر قیمتي وي، بعضې خاوندان دسخت طبیعت مالکان وي او په وړه خبره ورله غوسه ورځي، او بعضې صبر ناک وي نو بهتره داده چې دخاوند نه د اجازت اخستلو نه پس هغه څیز استعمال شي.

ددې مسئلې تفصیل په مشکوة شریف کې په جلد اول صفحه نمبر ۱۷۲ (**باب صدقة المراة من مال الزوج**) کې تیرشوی دی. هلته یې وګورئ: علامه نووی رحمه الله ددې حدیث یو څو فائدې بیان کړې دي.

۱. په سړې باندې دښځې او بچو نفقه واجب ده. ۲. دضرورت مطابق واجب ده. ۳. دفتوی په وخت کې پردی ښځې سره خبرې کول جائز دي. ۴. دمسئلې تپوس کولو په وخت کې دکس عیب ظاهرول جائز دي. ۵. دخاوند په شان ښځه هم دبچو دخرچ ذمه داره ده. ۶. دڅه ضرورت یا شرعي کار دپاره ښځه درالافتاء ته تلی شي کله چې د خاوند صراحةً یا دلالةً اجازت وي. ۷. قاضي یا حاکم دیوې معاملې حکم جاري کولی شي دګواه نه بغیر، خو چې معلومات یې درست وي. (المرقات : ۶/۵۱۳)

## په اسلام کې دغلامانو سره دحسن سلوک کولو حکم

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «إِذا أَعْطَى الله |
| حضرت جابر بن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کله الله تعالی په |
| أَحدكُم خيرا فليبدأْ بِنَفسِهِ |
| تاسو کې چاله مال او دولت ورکړي نو هغه له پکار دي چې وړومبی په خپل ځان او بیا په خپل |
| وَأهل بَيته». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] |
| اهل او عیال باندې خرچ کوي (مسلم) |
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: «للمملوك |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغلام باره کې وفرمایل چې دهغه د |
| طَعَامه وَكسوته وَلَا يُكَلف من الْعَمَل إِلَّا |
| روټۍ او کپړې ذمه داري دهغه په مالک باندې ده او دا دې دهغه نه هغومره کار اخلي چې څومره |

[1] أخرجه مسلم فى صحيحه ۳/۱۴۵۳ رقم الحديث (۱۸۲۲.۱۰)

مَا يُطِيقُ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

دهغه طاقت وي (مسلم)

﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِخْوَانُكُمْ

حضرت ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايې چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې غلامان ستاسو ورونه دي

جَعَلَهُمُ اللهُ تَحْتَ أَيْدِيكُمْ

(او ديني اعتبار سره ستاسو په شان دي) هغوی هم الله تعالی (ستاسو ازمينبت دپاره) ستاسو ماتحت کړي دي

فَمَنْ جَعَلَ اللهُ أَخَاهُ تَحْتَ يَدَيْهِ

لهذا الله تعالی چې کوم کس د ورور ماتحت جوړ کړي (يعنی چې ديو مالک غلام جوړ شي)

فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ

نو هغه له پکار دي چې هغه چې څه شی پخپله خوری نو په هغه باندې هم هغه څه خوري، څنګه چې

وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ وَلَا يُكَلِّفْهُ

اغوندي هم هغسې دې هغه ته اغوندوي دهغه نه دې داسې کار نه اخلي چې دهغه د طاقت مناسب نه وي

مِنَ الْعَمَلِ مَا يَغْلِبُهُ فَإِنْ كَلَّفَهُ مَا يَغْلِبُهُ فَلْيُعِنْهُ عَلَيْهِ» (صَحِيحٌ)[2]

که داسې کار ترې واخلي چې دهغه د طاقت نه بهر وي نو په کار ده ته چې هغه هم ورسره مدد وکړي.

﴿۵﴾ وَعَن عبد الله بن عَمْرو جَاءَهُ قَهْرَمَانٌ لَهُ فَقَالَ لَهُ:

د حضرت عبد الله بن عمرو باره کې منقول دي چې (يوه ورځ) هغه ته د هغه کارنده راغی هغه ترې تپوس وکړو

أَعْطَيْتَ الرَّقِيقَ قُوتَهُمْ؟ قَالَ: لَا قَالَ:

چې تا خپلو غلامانو او وينزو له خوراک ورکړی دی؟ هغه وويل چې نه. هغه ورته وفرمايل چې

فَانْطَلِقْ فَأَعْطِهِمْ فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

واپس لاړ شه او هغوی له خوراک ورکړه، ځکه چې ما د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي

---

(1) أخرجه مسلم ٣/١٢٨٤ رقم الحديث (١٦٦٢.٤١) ومالک في المؤطأ ٢/٩٨٠ رقم الحديث ٤٠ من كتاب الاستيذان. وأحمد ٢/٢٤٧

(2) أخرجه البخارى في صحيحه ١٠/٤٦٥ رقم الحديث ٦٠٥٠ ومسلم في ٣/١٢٨٢ رقم الحديث (١٦٦١.٣٨) وأبوداؤد في السنن ٥/٣٦٠ رقم الحديث ٥١٥٧ والترمذي ٤/٢٩٤ رقم الحديث ١٩٤٥ وأحمد في المسند ٥/١٦١

«كَفَى بِالرَّجُلِ إِثْمًا أَنْ يَحْبِسَ عَمَّنْ يَمْلِكُ قُوتَهُ». وَفِي رِوَايَةٍ:

چې د سړي د ګناه د پاره دومره کافي ده چه هغه خپل مملوک له خوراک ورنه کړي. او بل روايت کې

«كَفَى بِالْمَرْءِ إِثْمًا أَنْ

داسې الفاظ دي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د سړي د ګناه د پاره دا بس ده چه د چا روزي د هغه

يُضَيِّعَ مَنْ يَقُوتُ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)[1]

لاس کې ده (يعني اهل او عيال او غلامان او وينځې) او د هغوی روزی ضائع کړي. (مسلم)

**توضيح**: دلته د (قهرمان) نه مراد وکيل او کارنده دی (المرقات: ۵۱۴/۶)

**(قوت)** روزی ته وئيل شي. (المرقات: ۵۱۴/۶) **(يضيع)** ضائع کولو ته ويلی شي (المرقات: ۵۱۴/۶)

**(من يقوت) ای قوت من يقوت** يعنې د چا په ذمه چې د چا روزي وي هغه ضائع کول. (المرقات: ۵۱۴/۶)

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَنَعَ لِأَحَدِكُمْ خَادِمُهُ

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايلکه چې په تاسو کې د چا خادم

طَعَامَهُ ثُمَّ جَاءَهُ بِهِ وَقَدْ

د هغه د پاره خوراک تيار کړي او بيا هغه خوراک هغه ته راوړی شي نو د کوم خوراک د تيارولو د پاره

وَلِيَ حره ودخانه

چې هغه ګرمي او غرمه او لوګی برداشت کړی وي د هغې تقاضا داده چې مالک هغه غلام د ځان سره کينوي

فليقعده مَعَه فَلْيَأْكُلْ وَإِنْ كَانَ الطَّعَامُ مَشْفُوهًا قَلِيلًا

(او د هغه سره خوراک وخوري) او که خوراک لږ غوندې وي او خوړونکي ډير وي نو د هغه خوراک

فَلْيَضَعْ فِي يَدِهِ مِنْهُ أُكْلَةً أَوْ أُكْلَتَيْنِ». رَوَاهُ مُسلم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

نه دې يوه يا دوه مړۍ د غلام په لاس کې کيږدي (مسلم)

---

([1]) أخرجه مسلم في صحيحه ٢/٦٩٢ رقم الحديث (٩٩٦.٤٠) وأبوداؤد في السنن ٢/٣٢١ رقم الحديث ١٦٩٢ وأحمد في المسند ٢/١٩٣

([2]) أخرجه البخاري في صحيحه ٩/٥٨١ رقم الحديث ٥٤٦٠ ومسلم في ٣/١٢٨٤ رقم الحديث (١٦٦٣.٤٢) وأبوداؤد في السنن ٤/١٨٥ رقم الحديث ٣٨٤٦ والترمذي ٤/٢٥٢ رقم الحديث ١٨٥٣ والدارمي في ٢/١٤٦ رقم الحديث ٢٠٧٤ وأحمد في المسند ٢/٤٠٩.

دمشفوها تفسیر په قلیلاً سره شوی دی

﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عبد الله بن عمر رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ نه روایت دی چې رسول کریم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ و فرمایل کله چې

قَالَ: «إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا نَصَحَ لِسَيِّدِهِ وَأَحْسَنَ عِبَادَةَ

یو غلام د خپل مالک خیر خواهي کویي (یعني دهغه د زړه نه خدمت کوي) او بیا د الله عبادت هم

اللهِ فَلَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

په ښې طریقې سره کوي نو هغه ته دوچند ثواب ملاویږي. (بخاری و مسلم)

﴿۸﴾ وعَن أَبِي هريرةَ رضي الله عنهُ قال قال رسولُ الله صلى الله عليه وسلم: نعمّا للمملوكِ

او حضرت ابو هریره رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ وایي چې چې رسول الله صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ فرمایلي دي د یو غلام د پاره د دي نه ښه

أَن يتوفاهُ اللهُ بحُسنِ عبادةِ ربه

کومه خبره کیدلی شي چې هغه د خپل مالک بهترین خدمت وکړي او د خپل رب ښه عبادت وکړي، چې خپل ځان آفرین

و طاعةِ سيدهِ نعمّا له) متفق عليه.[2]

ته حواله کړي (یعني د خپل مالک حقیقي اطاعت، عبادت، او د مالک مجازی فرمان منلو کښې تیره کړی)

## غلامانو سره غیر اخلاقي حرکات کول نه دي پکار

﴿۹﴾ وَعَنْ جَرِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

حضرت جریر رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ و فرمایل چې کله یو غلام و تښتي نو دهغه

«إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلَاةٌ». وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ قَالَ:

یو مونځ هم نه قبلیږي. په یو روایت کې د حضرت جریر نه دا الفاظ هم نقل دي چې نبی صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ و فرمایل

«أَيُّمَا عبد أبق فقد بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ». وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ

چې کوم غلام و تښتیده نو د هغه ذمه ختمه شوه. او په یو بل روایت کې د حضرت جریر نه دا سې الفاظ

---

[1] أخرجه البخاری في صحيحه ٥/١٧٥ رقم الحديث ٢٥٤٦ ومسلم في ٣/١٢٨٤ رقم الحديث (١٦٦٤.٤٣) وأبوداؤد في السنن ٥/٣٦٥ رقم الحديث ٥١٦٩ ومالک فى المؤطأ ٢/٩٨١ رقم الحديث ٤٣ وأحمدفي المسند٢/١٠٢

[2] أخرجه البخاری فی صحيحه ٥/١٧٥ رقم الحديث ٢٥٤٩ ومسلم في ٣/٢٨٥ رقم الحديث (٦٦٧.٤٦) وأحمدفى المسند٢/٢٧٠

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | «أَيُّمَا | عَبْدٍ | أَبَقَ | مِنْ | مَوَالِيهِ | فَقَدْ | كَفَرَ |
| نقل دي چې (نبی ﷺ وفرمايل) چې کوم غلام دخپلو مالکانو نه وتښتيده نو هغه کافر شو | | | | | | | |
| حَتَّى يَرْجِعَ إِلَيْهِم». رَوَاهُ مُسلم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | | | | |
| تر څو چه واپس رانشي. (روايت کړې دې مسلم او بخاری) | | | | | | | |

**توضيح: فقد برئت منه الذمة:** مطلب دادی چې کوم غلام دخپل مالک نه وتښتيده او مرتد شو او دارحرب ته لاړو نو اسلام خو دهغه د ځان او مال او د عزت حفاظت ورکړی وو نو اوس هغه پاتې نه شو، او کوم ځای کې چې هغه غلام ملاو شي نو هغه به واجب القتل وي. دذمې د ختميدو مطلب دادی چې د اسلامي قانون مطابق دهغه د مال او ځان د حفاظت چې کوم معاهده شوې وه اوس هغه پاتې نشوه او چونکه دا غلام مرتد شو نو دهغه مونځ هم اوس قبول نه دی، او که هغه غلام مرتد شوی هم نه وي او صرف دخپل مالک نه تښتدلی وي او ميدان جنګ ته هم نه وي تلی او يو اسلامي ملک ته تلی وي نو قتل ئې جائز نه دی نو په دې وخت کې (**فقد برئت منه الذمة**) مطلب به يې دا وي چې دمالک په ذمه چې دده کوم خرچ خوارک وو او جنايت برداشت کول وو هغه به اوس نه وي.

دويم جواب دا شو که دمسلمان غلام د وژلو خبره وي نو دا تشديدًا تغليظا زجرًا او تهديدًا ده (**فقد كفر**) ددې جملې مطلب دا دی چې که غلام دا تښتيدل جائز او حلال ګڼي نو په دې هغه کافر شو، يا فقد کفر نه مراد ناشکري ده چې هغه دخپل مالک ناشکری وکړه.

دريمه توجيه داده چې دا جمله يې هم تشديداً تغليظاً فرمايلې ده. (المرقات: ۵۱۹/۶)

## په غلام باندې دزنا تور لګول جرم دی.

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَ: | سَمِعْتُ | أَبَا | الْقَاسِمِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَقُولُ: |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې ابو القاسم (نبی کريم ﷺ) نه ما اوريدلي دي چې فرمايل يې | | | | | | | | | | | |
| «مَنْ | قَذَفَ | مَمْلُوكَهُ | وَهُوَ | بَرِيءٌ | مِمَّا | | | | | | |
| چې کوم کس په خپل غلام باندې دزنا تهمت ولګوي او په حقيقت کې هغه ددې خبرې نه پاک وي نو | | | | | | | | | | | |
| قَالَ | جُلِدَ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | | | | | | | | |
| دقيامت په ورځ به دغې کس له کروړې ورکولی شي او که دغه غلام په حقيقت کې داسې نه وي چې | | | | | | | | | | | |

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۸۳ رقم الحديث (۷۰/۱۲۴) والنسائي في السنن ۷/۱۰۲ رقم الحديث ۴۰۴۹ وأحمد في المسند ۴/۳۶۵

| |
|---|
| إِلَّا أَنْ يَكُونَ كَمَا قَالَ» متفق عليه (صَحِيح)[۱] |
| څنګه د هغه باره کې ويلی شوي وو .نوبيا به هغه مالک ته کروړې نه شي ورکولی. (بخاري و مسلم) |

**توضيح**: په دې حديث کې يې په غلام باندې د دروغو تور لګول جرم ګرځولی دی او دادګناه کار دی او په قيامت کې د دې سزا کروړې ورکول دي دې نه اندازه کيږي چې په دې دنيا کې د تور لګولو په وجه مالک ته کروړې ورکولو سزا نشته يعني حد قذف به نه لګي خو په شرعی عدالت کې پرې تعزيري حکم لګيدی شي. (المرقات : ۵۱۹/۶)

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي فرمايل يې چې څوک |
| «مَنْ ضَرَبَ غُلَامًا لَهُ حَدًّا لَمْ يَأْتِهِ أَوْ لَطَمَهُ |
| خپل غلام له داسې سزا ورکړي چې دهغه څه جرم نه وي (يعنی بې ګناه وي) يا سپيړه ورکړي نو |
| فَإِن كَفَّارَته أَن يعتقهُ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[۲] |
| دهغې کفاره داده چې هغه غلام آزاد کړي. (مسلم) |
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: كُنْتُ أَضْرِبُ غُلَامًا لِي فَسَمِعْتُ مِنْ خَلْفِي |
| حضرت ابو مسعود انصاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) ما خپل غلام وهه نو ما خپل شانه دا آواز |
| صَوْتًا: «اعْلَمْ أَبَا مَسْعُودٍ لله أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ |
| واوريده ابو مسعود! ياد ساته الله تعالی په تا باندې د دېنه زيات طاقت لري څومره چې ته په دې |
| عَلَيْهِ» فَالْتَفَتُّ فَإِذَا هُوَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| غلام باندې لرې چې کله م روستو وکتل نو رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وو، ما عرض وکړه ای د الله رسوله! |
| هُوَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللهِ فَقَالَ: |
| (ماته په دې خپل کار باندې پښيماني دا اوس) زه دا د الله تعالی په لاره کې آزادوم نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۱۸۵ رقم الحديث ۶۸۵۸ ومسلم في ۳/۱۲۸۲ رقم الحديث (۱۶۶۰،۳۷) وأبوداؤد في السنن ۵/۳۶۳ رقم الحديث ۳۱۶۵ والترمذي في ۴/۲۹۵ رقم الحديث ۱۹۴۸ وأحمد في المسند ۲/۵۰۰

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۷۹ رقم الحديث (۱۶۵۷،۳۰) وأحمد في المسند ۲/۶۱

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| «أَمَا | لَوْ | لَمْ | تَفْعَلْ | لَلَفَحَتْكَ | النَّارُ | أَوْ |
| چې یاد ساته! که چیرې تا دا غلام نه وی آزاد کړی نو ته به د دوزخ اور سوزولې . یا یې وفرمایل چې | | | | | | |
| لَمَسَّتْكَ | النَّارُ». | رَوَاهُ | مُسلم[1] | | | |
| تا پورې به د دوزخ اور لګیدلی وو. (مسلم) | | | | | | |

**توضیح**: لله: لام ابتدائیه تاکیدیه دی او دا مبتدا ده او (اقدر) د دې خبر دی او (علیک) جار مجرور د اقدر سره متعلق دی او (منک) د اقدر اسم تفضیل د پاره مفضل علیه دی او (علیه) جار مجرور د (علیک) د کاف خطاب نه حال واقع دی عبارت داسې دی. (اي الله اقدر منک حال کونک قادراعلیه) لفح د فتح یفتح نه دی چې دا په اور باندې د سوزیدلو په معنی سره دی "او" شک د پاره دی (لمستک) د نیولو په معنی سره دی یعنې که ته خپل غلام په ظلم سره وهې او معاف کوې یې نه نو د دې ظلم په وجه به ته په اور سوزولی شې، علامه نووی فرمائي چې په دې حدیث کې غلامانو سره د نرمۍ سلوک کولو حکم راغلی دی او د امت په دې باندې اتفاق دی چې غلام د وهلو په وجه آزاد ول واجب نه دی، مستحب او ښه داده چې هغه آزاد کړې د ښه مخکې چې کوم حدیث تیر شوی دی چې په هغې کې د کفارې لفظ موجود دی چې د وهلو، ګناه او د ظلم اثرات ختمولو کفاره د غلام آزادول دي، دا ټول استحبابي امور دي او غلامانو سره د ښه سلوک ترغیب ورکړی شوی دی او دا د اسلام یو لوی شان دی ځکه چې اسلام د مالک نه د غلام د پاره انصاف اخستی دی چې د دنیا په یو قانون کې نشي موندلی او نه د دنیا هیڅ یو قانون داسې نمونه پیش کولی شي. اسلام د الله تعالی نه بعضې باغي مخلوق ، د غلامۍ طوق اچولی دی، او الله تعالی دا حکم ورکړی دی چې زما دا بنده زما د بندګۍ نه مخ ګرځوي، د دې وجې نه دا به زما د غلامانو غلام وي، مګر د دې سزا باوجود د الله تعالی د دې آفاقي دین اسلام هغو غلامانو ته هغه حقونه ورکړي دي کوم چې هیچا نه دي ورکړي، یو طرف ته الله تعالی غلامانو ته د اطاعت حکم کړی دی او بل طرف ته یې آقاو ته د نرمۍ درس ورکړی دی کوم چې ټولې دنیا لپاره د حقوقو ورکولو نمونه ده. (المرقات : ۵۱۹/۶، الکاشف : ۴۲۴/۴)

---

(1) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۸۱ رقم الحديث (۱۶۵۹.۳۵) وأبوداؤد في السنن ۵/۳۶۱ رقم الحديث ۵۱۵۹ والترمذي في السنن ۴/۲۹۶ رقم الحديث ۱۹٤۸

## د اولاد په ګټه کې د پلار حق دی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ: أَنَّ رَجُلًا |
| حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کړي دي چې (یوه ورځ) یو کس د |
| أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنَّ لِي مَالًا وَإِنَّ وَالِدِي |
| نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې خاضر شو او عرض ئې وکړو چې زه مالداره یم او زما پلار |
| يَحْتَاجُ إِلَى مَالِي قَالَ: «أَنْتَ وَمَالُكَ لِوَالِدِكَ |
| ماته محتاجه دې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې ته او ستا مال دواړه ستا د پلار د پاره دي ځکه |
| إِنَّ أَوْلَادَكُمْ مِنْ أَطْيَبِ كَسْبِكُمْ كُلُوا مِنْ كَسْبِ أَوْلَادِكُمْ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَابْنُ مَاجَةَ[1] |
| چې ستاسو اولاد ستاسو بهتره ګټه ده لهذا د خپل اولاد د ګټې نه خورئ. (ابو داؤد، نسائی، ابن ماجه) |

**توضیح**: په دې حدیث کې د مور او پلار د حقونو بیان دی مطلب دا دی چې ځنګه په اولاد باندې د پلار اطاعت او خدمت لازم دی همداسې د اولاد په مال کې هم پلار ته دلګولو حق حاصل دی ګویا دا حدیث د دې خبرې دلیل دی چې د پلار خرچه په ځوی باندې واجب ده د دې حدیث په رڼا کې دا مسئله هم بیانولی شي چې که چیرې پلار د ځوی مال پټ کړو یا د هغه خادمې سره یې زنا وکړه نو په ده باندې شرعی حد نه جاری کیږي ځکه چې دلته د ملکیت شبه پیدا شوه، اولاد چونکه د پلار د محنت نتیجه ده په دې وجه اولاد یې د پلار ګټه ښودلې ده او د اولاد ګټه یې د پلار د پاره بهترینه حلاله ګټه ښودلې ده او په دې باندې ئې د پلار حق ثابت کړی دی. (المرقات: ۴۲۱،۴۲۲/۶)

## په تربیت کولو کې د یتیم د مال حکم

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْهُ وَعَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ: أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې (یوه ورځ) د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فَقَالَ: إِنِّي فَقِيرٌ لَيْسَ لِي شَيْءٌ |
| په خدمت کې یو کس حاضر شو او عرض یې وکړو چې زه ډیر غریب سړی یم او ماسره څه هم نشته او زما په |

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۸۰۲ رقم الحديث ۳۵۳۰ وابن ماجه في ۲/۷۶۹ رقم الحديث ۲۲۹۲، وأحمد في المسند ۲/۲۱۴

| | | |
|---|---|---|
| وَلِي | يَتِيمٌ | فَقَالَ: |
| نګرانۍ کې يو يتيم هم دی (نو ايا زه د هغه د مال نه خوړلی شم؟) نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل چې ستا په | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| «كُلْ | مِنْ | مَالِ | يَتِيمِكَ | غَيْرَ | مُسْرِفٍ |
| نګرانۍ کې چې کوم يتيم دی نو ته د هغه د مال نه خوړلی شې خو شرط دا دی چې فضول خرچی په | | | | | |
| وَلَا مُبَادِرٍ وَلَا مُتَأَثِّلٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1] | | | | | |
| کې نه وي او ځان دپاره جمع کول نه وي. (ابو داؤد، نسائی، ابن ماجه) | | | | | |

**توضيح: اني فقير:** يعنی د يتيم ما شوم مال دی او هغه زما په تربيت کې دی او غريب او محتاجه يم نو زه د هغه يتيم د مال نه خوړلی شم؟ پيغمبر عليه السلام د يتيم د سرپرست او فقير مولی ته د يتيم د مال نه د ضرورت او حاجت په وخت کې د څه اخستو اجازت ورکړو خو په دې کې يې درې شرطونه وفرمايل:
۱. چه د اسراف شبه په کې نه وي، دې ته په غير مسرفٍ سره اشاره ده. ۲. انتهائي د ضرورت او حاجت په وخت کې څه اخستل، او د يتيم د بلوغت نه مخکې د هغه مال هضم کول مقصود نه دی، دې شرط ته په (غير مبادر) سره اشاره شوې ده ځکه چې بادر يبادر مبادرةً فهو مبادر د جلتۍ کولو په معنی سره دی. ۳. د تربيت کولو په دوهوکو او بهانو سره د يتيم مال ذخيره کول مقصود نه دی، دې ته شرط ته په (**غير متأثل**) سره اشاره ده. تأثل د ذخيره کولو په طور باندې جمع کولو ته ويلی شي. (المرقات: ۶/۴۲۴)-

## امت ته د نبی کريم صلی الله عليه وسلم پيغام

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ | أُمِّ | سَلَمَةَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | أَنَّهُ كَانَ |
| حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبی کريم نه نقل کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپل د مرض الموت په وخت | | | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَقُولُ | فِي | مَرَضِهِ: | «الصَّلَاةَ | وَمَا | مَلَكَتْ |
| کې فرمائيل چې مونځ قائم ساتئ او چې کوم خلق ستاسو په ملکيت کې دي لکه (غلامان او وينځې) | | | | | |

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۲۹۲ رقم الحديث ۲۸۷۲ والنسائي في ۶/۲۵۶ رقم الحديث ۳۶۶۸ وابن ماجه في ۲/۹۰۷ رقم الحديث ۳۶۶۸ وابن ماجه في ۲/۹۰۷ رقم الحديث ۲۷۱۸

أَيْمَانُكُمْ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان[1] وَرَوَى أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ عَنْ عَلِيٍّ نَحْوَهُ[2]

دهغوی حقونه ادا کوئ. (بیهقي) او احمد او ابوداؤد داسې روایت دحضرت علي نه نقل کړی دی.

**توضيح**: الصلوة: دا لفظ منصوب دی ددې فعل (الزموا) محذوف دی يعنې مونځ قائم ساتئ او ددې حقوق پوره کوئ (وما ملکت ايمانکم) يعنې په ماتحتو باندې ظلم مه کوئ او دهغوی حقونه اداء کوئ دغلامانو او وينزو حق دادی چې دهغه مالک هغوی ته خوراک ورکوي او دطاقت مطابق ورله کپړې ورکوي او ناحقه باندې وهل او کنځلو کولو نه دې ځان ساتي. دلته که ددې جملې لږ نور هم وضاحت وشي چې په ماتحتو کې ټول نوکران، د حاکم رعايا او د کور اهل او عيال تردې چې ساتلې شوې ځناور اوپرندې ټول داخل دي او اسلام ددې ټولو اقسامو د حقونو صفا اعلان کړی دی، دا حديث دحضور اکرم صلى الله عليه وسلم دوفات په وخت دامت په نامه يو پيغام دی، دې نه پس پيغمبر عليه السلام د امت باره کې يو لفظ هم ارشاد ونه فرمايلو بلکې (**اللهم الرفيق الاعلى**) يې وفرمائيل او دنيا نه رخصت شو په دې دوه جملو کې حضور اکرم ﷺ حقوق الله او حقوق العباد دواړه جمع کړل په ورومبنۍ جمله دالصلوة سره يې حقوق الله طرف ته اشاره وکړه او په دويمه کې حقوق العبادو طرف ته اشاره ده، دحضور اکرم ﷺ نوم اخستونکو مسلمانانو له پکار دي چې د نبی کريم ﷺ په دې مبارک فرمان باندې عمل وکړي.دنيا فاني ده دلته چې څه دي هغه تلونکي او راتلونکي دي، داد دوکې ټټۍ ده صرف زمونږ په سترګو د غفلت پټۍ دي:

**فسوف ترى إذا انكشف الغبارُ افرس تحت رجلک أم حمارُ**

## دغلامانو دحقونو پوره کولو تاکيد

﴿١٦﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ الله عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

ابوبکر صديق رضي الله عنه دنبی کريم ﷺ نه نقل کوي چې نبی ﷺ وفرمايل چې غلام

«لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ سَيِّئُ الْمَلَكَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْن مَاجَه

يا وينځې سره د بد سلوکۍ کولو والا به جنت ته نه داخليږي. (ترمذی،ابن ماجه)[3]

**توضيح**: سئ الملكة: ملكه طبيعت او اخلاق او مزاج ته ويلی شي يعنې مثلاً چې يو آقا او مالک

---

([1]) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ٦/٣٦٩ رقم الحديث ٨٥٥٣

([2]) أخرجه ابن ماجه في السنن ١/٥١٩ رقم الحديث ١٦٢٥ وأحمدفي المسند٦/٢٩٠ وأحمدفي المسند٦/٢٩٠

([3]) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٢٩٥ رقم الحديث ١٩٤٦ وابن ماجه في ٢/١٢١٧ رقم الحديث ٣٦٩١ وأحمدفي المسند١/٤

دی دهغه یو غلام دی هغه مالک د هغه غلام په حق کې ظلم او زیاتی کوي او بد اخلاقي ورسره کوي. دې حدیث نه پس حدیث نمبر ۱۷ کې د ملکې اخلاق او طبیعت په معنی سره استعمال شوی دی او علامه طیبی هم د ملکة نه د ښو اخلاقو معنی اخستې ده، لیکن نهایه د ابن اثیر کې دې ملکه صنیع یعنې د معاملې او سلوک په معنی سره دی، د دواړو معنی قریب ده.

**لا یدخل الجنة:** دې نه مراد دخول اولي دی یعنې سزا تیرولو نه به پس جنت ځي، دا د تغلیظ او تشدید د اصولو مطابق دی. (المرقات: ۴۲۴/۶، الکاشف ۴۲۸/۶)

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ رَافِعِ بْنِ مَكِيثٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «حُسْنُ الْمَلَكَةِ |
| حضرت رافع بن مکیث نقل کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل چې خپل مملوک سره د حسن سلوک ښېګړه |
| يُمْنٌ وَسُوءُ الْخُلُقِ شُؤْمٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ |
| دخیرا و برکت باعث جوړیږي او خپل مملو سره بد سلوکي کول د بې برکتی باعث وي. (ابو داؤد) |
| وَلَمْ أَرَ فِي غَيْرِ الْمَصَابِيحِ مَا زَادَ عَلَيْهِ فِيهِ مِنْ قَوْلِهِ: |
| او دچې ما د مصابیح نه علاوه بل کتاب کې هغه لفظ نه دی لیدلی کوم چې صاحب مصابیح په دې حدیث کې نقل کړی دی |
| «وَالصَّدَقَةُ تَمْنَعُ مِيتَةَ السُّوءِ |
| (او هغه اضافي الفاظ دادي) چې نبی ﷺ دا هم فرمائیلي دي چې صدقه او خیرات خراب مرګ نه بچ |
| وَالْبِرُّ زِيَادَةٌ فِي الْعُمُرِ»[1] |
| کول کوي او نیکي عمر زیاتوي. |
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا ضَرَبَ |
| حضرت ابو سعید رضي الله عنه وائي چې رسول کریم ﷺ وفرمائیل (مثلاً) که په تاسو کې |
| أَحَدُكُمْ خَادِمَهُ فَذَكَرَ اللهَ |
| څوک خپل غلام وهي او هغه الله یاد کړي (یعنی داسې ووایي چې د الله په خاطر مې معاف کړه) |
| فَارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ |
| نو ته (د وهلو نه خپل لاس ودروه. دا روایت ترمذی نقل کړی دی او شعب الایمان کې د بیهقی په روایت کې |

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۵/۳۶۱ رقم الحديث ۵۱۶۲ وأحمد في المسند.

| |
|---|
| لَكِنْ عِنْدَهُ «فَلْيُمْسِكْ» بدل «فارفعوا أَيْدِيكُم» (حسن)[1] |
| "فارفعوا ایدکم" په ځای فلیمسک نقل دی او ددواړو لفظونو یو مطلب دی. |

## کم عمره غلامان دخپلو سرپرستونه مه جدا کوئ

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي أَيُوبَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ |
| حضرت ابو ایوب وائي چې ما درسول کريم ﷺ نه اريدلي دي فرمايل يې چې کوم کس د |
| فَرَّقَ بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا فَرَّقَ اللهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَحِبَّتِهِ |
| مور او ځوی ترمينځه جدائي راولي نو دقيامت په ورځ به الله تعالى دهغه او د هغه د خپلوانو |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ والدارمي (ضَعِيفٌ)[2] |
| (عزيزانو) په مينځ کې جدائي راولي. (ترمذی، دارمی) |

**توضيح: مـن فـرق:** يعنې د وينځې او دهغې دځوی په مينځ کې جدائي راولي په دې حديث کې (والدة) نه مراد وينځه ده (ولد) نه مراد يې ماشوم دی، کوم دې چې پخپله هم غلام دی د دوی په مينځ کې د جدائي راوستلو مطلب دادی چې چې وينځه يې خرڅه کړه يا چاته يې هبه کړه او د څه روغې په صورت کې يې بيله کړه او ماشوم يې پاتې شو په دې باندې به هغه کم عمره ماشوم ته ډيره تکليف وي او مور به يې ډيره پريشانه وي دا هغه خلق محسوسولی شي چې په چا چې دا مصيبت راشي، اسلام داسې تکليف رسونکي صورت نه په سختئ سره منع کړې ده په دې حديث کې دماشوم په قيد سره يې غټان ددې حکم نه خارج کړل، لهذا دا وعيد ونه نابالغه ماشوم سره خاص دي، او د مور او ځوی ذکر يې بطور مثال ورکړی دی مراد ترې نه نابالغه ماشوم د هغه د ذي رحم محرم نه جدا کول دي، خواه مور وي، پلار وي، نيانيکه وي، ورور خور وي، ټول ترې نه مراد دي. ائمه احنافو کې د امام ابو يوسف په نزد باندې بالکل ناجائز دی مګر د طرفينو په نزد مکروه تحريمي دی، د اسلام دين رحمت دی او قانون د شفقت دی، دې د غلامانو دومره خيال ساتلی دی نود نورو نيک خلقو به په کې څومره مقام وی، نن سبا د دنيا خلق د بين الاقوامي قوانينو ډنډوره کوي او د جينوا د کنوينشن د دفعات زوراو شور سره پرچار کوي، کله چې هلته دنبائسته الفاظولين لګيدلي وي او دهغه جوړونکي

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٢٩٧ رقم الحديث ١٩٥٠.

(2) أخرجه الترمذي في السنن ٣/٥٨٠ رقم الحديث ١٢٨٣ والدارمي في ٢/٢٩٩ رقم الحديث ٢٤٧٩ وأحمد في المسند ٥/٤١٣.

په هغه باندې د عمل کولو والا نه دي، او نه وربانديې عمل کيږي، ليکن اسلام د غلامانو او د نورو انسانانو حقوق د ايمان او عمل جزء جوړ کړي دي، د افسوس خبره ده چې نن سبا د دنيا خلکو فطرت او فطري قوانين د نظره غورځولي دي، او مصنوعي او د ځان نه جوړ شوي قوانينو پسې روان دي، او مسلمان د شريعت په ځای د هغو ګمراهانو تقليد کوي. (المرقات : ۴۲۸/۶)

﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: وَهَبَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غلامين أُخْوَيْنِ

حضرت علی رضي الله عنه فرمائي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم ماله دوه غلامان راکړل چې هغوی خپلو کې ورونه وو

فَبعتُ أحدهمَا فَقَالَ لِي رَسُول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا عَلِيُّ مَا فَعَلَ غُلَامُكَ؟»

بيا ما په هغوی کې يو خرڅ کړو نو رسول کريم صلی الله عليه وسلم ما نه تپوس وکړو چې علي! ستا يو غلام څه شو؟

فَأَخْبَرْتُهُ. فَقَالَ: «رُدَّهُ رُدَّهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه[1]

ما نبی عليه السلام ته ووئيل (چې يو غلام ما خرڅ کړو) نبی عليه السلام وفرمائيل چې هغه راواپس کړه، هغه راواپس کړه.

﴿۲۱﴾ وَعَنْهُ أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَ جَارِيَةٍ وَوَلَدِهَا فَنَهَاهُ

حضرت علی رضي الله عنه باره کې نقل دي چې (يو ځلې) هغوی يوه وينځه او د هغې ځوی ديو بل نه جدا کړل منع وفرمايله

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ فردَّ البَيْعَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد مُنْقَطِعًا[2]

نبی عليه السلام د دې نه، هغه (يعنی حضرت علی) دا بيع فسخ کړه. ابو داؤد دا روايت بطريق انقطاع نقل کړی دی.

## غلام سره د احسان کولو اجر

﴿۲۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ

حضرت جابر د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه نقل کړي دي چې نبی عليه السلام وفرمائيل چې په کوم کس کې دا درې خبرې وي

يَسَّرَ اللهُ حَتْفَهُ وَأَدْخَلَهُ جَنَّتَهُ:

الله تعالی به په هغه مرګ اسان کړي او جنت کې به يې داخل کړي. ۱. کمزورو او ضعيفانو سره نرمي کول

رِفْقٌ بِالضَّعِيفِ وَشَفَقَةٌ عَلَى الْوَالِدَيْنِ وَإِحْسَانٌ إِلَى الْمَمْلُوكِ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

۲. په مور پلار باندې شفقت کول ۳. د خپل مملوک سره احسان کول. دا روايت امام ترمذی نقل کړی دی

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۵۸ رقم الحديث ۱۲۸٤ وابن ماجه في ۲/۷۵۵ رقم الحديث ۲۲٤۹ وأحمد في المسند ۱/۹۷

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۱٤٤ رقم الحديث ۲۶۹۶.

وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[١]

او وئيلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

## دمونځ ګزار د وهلو ممانعت

﴿۲۳﴾وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم وَهَبَ لِعَلِيٍّ غُلَامًا

حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت علی له يو غلام ورکړو او حکم

فَقَالَ: «لَا تَضْرِبْهُ فَإِنِّي نُهِيتُ عَنْ ضَرْبِ أَهْلِ الصَّلَاةِ

يې ورکړو چې دا به غير شرعی طور باندې نه وهې ځکه (زما د رب له طرفه) زه يې دمونځ ګزارو دوهلو نه منع کړی يم

وَقَدْ رَأَيْتُهُ يُصَلِّي». هَذَا لفظ المصابيح[٢]

او ما دا غلام په مونځ کولو ليدلی دی. دا الفاظ (په مشکوة کې مذکور دي) دا لفظ د مصابيح دی

وَفِي «الْمُجْتَبَى» لِلدَّارَقُطْنِيِّ: أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ:

او د دار قطنی په تصنيف مجتبی کې منقول دي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائيل

نَهَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ضَرْبِ الْمُصَلِّينَ (أخرجه الدارقطني).[٣]

چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږه د مونځ ګزارو د وهلو نه منع کړي يو. (دارقطني)

**توضيح**: **لاتضربه**: يعنې شرعی جواز نه بغير غلام مه وهه ځکه چې دا مونځګزار دی، دې حديث نه دمونځ ګزار دعزت او عظمت او دهغه فضيلت دالله تعالی په نزد په نورو مخلوقاتو باندې واضح دې او دمزې خبره داده چې حضور اکرم فرمايې چې زه خپل رب دمونځ ګزار د وهلو نه منع کړی يم، علامه طيبی فرمايې چې کله الله تعالی په دنيا کې مونځ ګزار دوهلو نه منع فرمايلې ده نو دهغه د لوی احسان او کرم نه اميد ساتو چې د قيامت په ورځ به هغه مونځ ګذار په عذاب کې اخته او ذليل او رسوا کوي نه. (المرقات: ۵۳۰/۶)

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٥٦٦ رقم الحديث ٢٤٩٤

(٢) أخرجه أحمد في المسند ٥/٢٥٨

(٣) أخرجه الدارقطني في السنن ٢/٤٥ رقم الحديث ٨ من باب الشديد في ترک الصلاة

## د غلام د معاف کولو حکم

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عبد الله بن عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ وایي چې (یوه ورځ) د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یو سړی حاضر شو |
| فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ كَمْ نَعْفُو عَنِ الْخَادِمِ؟ |
| او عرض یې وکړو چې یا رسول الله! مونږ څو ځل د خپل غلام یا وینځې خطاګانې معاف کوو |
| فَسَكَتَ ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ الْكَلَامَ |
| نبی صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ خاموش شو (او څه جواب یې ورنه کړو) هغه کس بیا هم هغه سوال وکړو نو دې |
| فصمت فلمّا كانتِ الثّالثةُ قالَ:[1] |
| ځل کې بیا هغوی خاموش شو بیا چې یې په دریم ځل هم دا سوال وکړو نو نبی صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل |
| «اعفُوا عَنْهُ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعِينَ مَرَّةً». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو[2] |
| چې هره ورځ اویا ځله (ابو داؤد) ترمذی دا روایت د حضرت عبد الله بن عمر نه نقل کړی دی. |

**توضیح**: **فسکت**: حضور اکرم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ په دې وجه خاموشه شو چې د سوال کونکي سوال مناسب نه وو ځکه چې معافي کول خو یو خوښ شوی عمل دی او په تعداد سره یې پابند کول نه دي پکار، یا رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په دې وجه خاموش شو چې نبی صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ د وحې انتظار کولو یا په دې وجه چې سوال کونکی او اوریدونکی د دې سوال جواب بنه په غور سره واوري (سبعین مرة) دا اویا ځل عدد په عربی کې د کثرت دپاره استعمالیږي، دلته هم واضح ده چې دا عدد د کثرت دپاره استعمال شوی دی. (المرقات: ۵۳۱/۶)

## د مریي باره کې یو هدایت

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ابو ذر رَضِیَ اللهُ عَنهُ وائي چې رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل ستاسو مریانو او وینځو کې چې |
| «مَنْ لَاءَمَكُمْ مِنْ مَمْلُوكِيكُمْ |
| څوک ستاسو اطاعت او خدمت ستاسو د خواهش مطابق کوي او ستاسو د مزاج موافق وي |

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۵/۳۶۲ رقم الحديث ۵۱۶۴ وأحمد في المسند ۲/۱۱۱

(۲) أخرجه الترمذي في ۴/۲۹۶ رقم الحديث ۱۹۴۹

فَأَطْعِمُوهُ مِمَّا تَأْكُلُونَ وَاكْسُوهُ مِمَّا تَكْسُونَ

نو هغوی له هغسې خوراک ورکوئ کوم چې تاسو خورئ او هغسې جامې ورکوئ څنګه چې ئې ته پخپله اغوندئ

وَمَنْ لَا يُلَائِمُكُمْ مِنْهُمْ فَبِيعُوهُ

او کوم غلام او وینځه چې ستا د مزاج موافق نه وي نو هغې ته تکليف مه ورکوئ بلکې خرڅ يې کړئ

وَلَا تُعَذِّبُوا خَلْقَ اللهِ». رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد (صَحِيح)(۱)

د الله مخلوق له تکليف ورکول صحيح نه دي. (احمد، ابو داؤد)

**توضيح**: لائمکم: دا باب مفاعله د يلائم ملائمة نه د موافقت په معنی سره دی د مزاج او د خواهش مطابق او موافق مری مراد دی يعنی کله چې مری ستا د مزاج مطابق وي او اطاعت کونکی وي نو هغه وساته او د هغوی د حقوقو خيال ساته مناسب خوراک ورکوه مناسب لباس ورکوه او که چيرې داسې نه وي خا مخا يې په عذاب کې مه اچوه او مه خپل ځان په پريشانی کې اچوه بلکه خرڅ يې کړه (المرقات: ۵۳۲/۶)

## څناور سره د ښه سلوک کولو حکم

﴿۲۶﴾ وَعَن سهلِ بنِ الحَنظَلِيَّةِ قَالَ: مَرَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَعِيرٍ

حضرت سهل بن حنظليه وائي چې (يوه ورځ) رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو اوښ سره خواه کې تيرشو

قَدْ لَحِقَ ظَهْرُهُ بِبَطْنِهِ فَقَالَ:

چې وي کتل نو (د لوږې تندې او د زيات بوج له وجې يې ملا خيټې سره لګيدلې وه) نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

«اتَّقُوا اللهَ فِي هَذِهِ الْبَهَائِمِ الْمُعْجَمَةِ فَارْكَبُوهَا

چې د دې بې زبانه باره کې د الله تعالی نه ويريږئ او په هغوی باندې په داسې حال کې سورلې کوئ

صَالِحَةً واتْرُكوها صَالِحَةً». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد(۲)

چې کله هغه په پوره طاقت کې وي او هغه په ښه حالت کې پريږدئ چې ستړی نه وي. (ابو داؤد)

**توضيح**: (لحق ظهره) يعنی د ولږې د لاسه کمزوری شوی وو. (المعجمة) بې زبانه څناور و ته ويلی شي چې د هغوی په وينا قدرت نه وي، عربو عجمو ته په دې وجه عجم ويلي دي چې د هغوی

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۵/۳۵۹ رقم الحديث ۵۱۵۷ وأحمد في المسند ۵/۱۶۸

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۴۹ رقم الحديث ۲۵۴۸ وأحمد في المسند ۴/۱۸۰

په نزد عجم ګونګیان دي، د حدیث مطلب دا دی چې بې زبانه څناور دخپلې لوږې او تندې بیان خو نشي کولی په دې وجه دهغوی خیال ساتئ او په یو مقرر وخت ورله خوراک ورکوئ. علماو لیکلې دي چې دې حدیث نه معلومه شوه چې کومو خلقو څناور یا مارغان ساتلې دي نو په هغوی باندې یې خوراک څښاک واجب دی. (صالحهٔ) یعنې ډیر خوراک څښاک ورکوه او صحتمندیې ساته، یا پرې سوارلې یا دبوج کار کوه او دکار اغستونه پس چې داپه ښه حالت کې وي نو بیا یې څرد پاره پرېږدئ چې داپخپله خوښه خوراک وکړي، اسلام درحمت او شفقت مذهب دی چې په دې کې د انسانانو او غلامانو نه علاوه دڅناورود حقو قوپوره پوره خیال ساتلی دی کوم خلق چې په قانون باندې عمل نه کوي نو دا دهغوی خپل قصور دی د اسلام دقانون هیڅ قصور نه دی. (المرقات: ۶/۵۳۴)

## دیتیم دمال باره کې حکم

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: لَمَّا نَزَلَ قَوْلُهُ تَعَالَى (وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه وائي چې کله دالله تعالی دا ارشاد نازل شو ''دیتیم مال خواله مه ورځئ |
| إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحسن) |
| مګر دا چې د نیکی په بنیاد باندې وي'' (یعنې امانت او دیانت سره د نیکی په بنیاد باندې وي) او |
| وَقَوْلُهُ تَعَالَى: (إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا) |
| د الله تعالی دا قول: چې کوم خلق په ښکاره په ظلم سره خوري'' نو چې کوم خلقو سره (یعنې دچا په نګرانی کې) |
| الْآيَةَ انْطَلَقَ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ يَتِيمٌ فَعَزَلَ طَعَامه من طَعَامِهِ وَشَرَابَهُ مِنْ شَرَابِهِ |
| یتیم وي هغوی ډیر احتیاط شروع کړه او دهغوی د خوراک څښاک سامان ئې دخپل دخوراک څښاک دسامان نه جدا کړل |
| فَإِذَا فَضَلَ مِنْ طَعَامِ الْيَتِيمِ وَشَرَابِهِ شَيْءٌ حُبِسَ لَهُ |
| تردې چې دهغو یتیمانو دخورا څښاک نه به چې څه پاتې شول او هغه به ئې او چت کړل او کېښودل به یې |
| حَتَّى يَأْكُلَهُ أَوْ يَفْسُدَ فَاشْتَدَّ ذَلِكَ عَلَيْهِمْ |
| چې هغه به هغه یتیم بل وخت وخوړولو یا به خراب شول دا خبره دهغو نګرانانو دپاره ډیره ګرانه شوه |
| فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى: |
| نو هغوی رسول کریم صلی الله علیه وسلم ته ددې ذکر وکړو الله تعالی دا ایت نازل کړه'' او چې کوم خلق |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| (وَيَسْأَلُونَكَ | عَنِ | الْيَتَامَى | قُلْ | إِصْلَاحٌ |

د نبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دیتیمانو ماشومانو باره کې تپوس کوي نو ورته وفرمائي چې دهغوی د مصلحت

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَّهُمْ | خَيْرٌ | وَإِن | تُخَالِطُوهُمْ | فَإِخْوَانُكُمْ) |

رعایت ساتل ډیر بهتر دي او که چیرې تاسو د هغوی سره خرچه شامله کړئ نو هغه ماشومان ستاسو (دیني ورونه دي''

فَخَلَطُوا طَعَامَهُمْ بِطَعَامِهِمْ وَشَرَابَهُمْ بِشَرَابِهِمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1]

ددې ایت نازلیدو نه پس هغو نګرانانو دیتیمانانو خوراک څښاک خپل خوراک سره شامل کړه. (ابو داؤد، نسائی)

**توضیح: لما نزل قوله تعالی:** د اسلام په شروع کې د یتیمانانو د مالونو باره کې دا وړومبنی ایت نازل شو نو دهغوی نګرانان ډیر پریشانه شول هغه ایت مکمل طور باندې داسې نازل شو.

(**ان الذین یاکلون اموال الیتٰمٰی ظلما انما یاکلون فی بطونهم نارا وسیصلون سعیرا**) (سورة نساء ۱۰)

ددې وعید په وجه خلقو د یتیمانانو خوراک بیل پخول شروع کړل دې نه یو طرف ته یتیمانو ته دا نقصان وشو چې خوراک به کم یا زیات وو نو خراب به شو، دویم طرف ته نګرانانو ته دا تکلیف وو چې دهغوی خوراک به بیل پخیده بیل به یې کیخوده او بیل به یې خوړلو په دې وجه الله تعالی اساني پیدا کړه او بیا دا ایت نازل شو: **ویسئلونک عن الیتٰمٰی قل اصلاح لهم خیر وان تخالطوهم فاخوانکم في الدین والله یعلم المفسد من المصلح ولو شاء الله لاعنتکم** (سورت بقرة ۲۲۰)

مطلب دادی چې الله تعالی دیتیمانو باره کې خیرخواه او بد خواه هم پیژني لهذا دیتیمانو مالونه خپلو مالونو سره شامل خو کړئ خو دیتیمانو سره همدردي او خیر خواهي په هر صورت کې لازم ده، خپل نیتونه مه خرابوئ او خپلو اعمالو ته نقصان مه ورکوئ، د دوکې او فریب نه ځان په هر حالت کې ساتئ مخکې به درسره الله تعالی مهرباني کوي. (المرقات: ۵۳۵/۶)

## د پلار او ځامنو یا د دوه ورونو په مینځ کې بیلتون مه راولئ

﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابو موسی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغه کس باندې لعنت فرمایلی دی

مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الْوَالِدِ وَوَلَدِهِ وَبَيْنَ الْأَخِ وَبَيْنَ أَخِيهِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ وَالدَّارَقُطْنِيُّ[2]

چې کوم کس د پلار او د ځوی په مینځ کې یا د دوه ورونو په مینځ کې جدائي راولې. (ابن ماجه، دراقطنی)

---

([1]) أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۲۹۱ رقم الحديث ۲۸۷۱ والنسائي في ۶/۲۵۶ رقم الحديث ۳۶۷۰.

([2]) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۷۵۶ رقم الحديث ۲۲۵۰

**توضیح:** **من فرق:** د دې بیلتون نه هغه جدائي هم مراد کیدی شي چې د نابالغه ماشوم او د هغه د سرپرست ذی رحم محرم په مینځ کې د یو خرڅولو او د بل پرینښودو سره پیدا کیږي چې د هغې تفصیل د حضرت ابو ایوب انصاری په حدیث نمبر ۱۹ کې تیر شوی دی خو دلته د دې حدیث کې د جدائي دا مفهوم اخستی شي چې یو سړی د غیبت چغلۍ او شرارت سره د دوه ورونړو یا پلار او ځوی تر مینځه جدائي پیدا کوي هغه ملعون دی. (المرقات: ۵۳۵/۶)

﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُتِيَ بِالسَّبْيِ أَعْطَى أَهْلَ الْبَيْتِ جَمِيعًا كَرَاهِيَةَ أَنْ يفرق بينهم. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1]

حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې کله به د څه جنګ وغیره نه قیدیان راوستلی شول نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د یو کور خلق په مونړه کې یو کس له راکړل (یعنې په قیدیانو کې به چې په یو کور کې څو مره افراد وو هغه به یې یو کس ته حواله کړل) ځکه چې په هغوی کې جدائي راوستل نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ناخوښه وه. (ابن ماجه)

## کوم خلق خراب دي

﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِشِرَارِكُمْ؟ الَّذِي يَأْكُلُ وَحْدَهُ وَيَجْلِدُ عَبْدَهُ وَيَمْنَعُ رِفْدَهُ». رَوَاهُ رزين[2]

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یوه ورځ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل چې زه تاسو ته دا ونه وایم چې په تاسو کې بد خلق څوک دي؟ (نو واورئ) خراب هغه سړی دی چې یوائې خوراک کوي او خپل غلام په ناحقه باندې وهي او د خپل بخشش او عطاء نه چا ته فائده نه رسوي. (رزین)

**توضیح:** **شرارکم:** یعنې د ټولو نه خراب خلق څوک دي؟ د دې نه پس نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د چا د جواب انتظار ونه فرمایلو بلکې خپله یې درې قسمه خلق په خرابو خلقو کې شمیر کړل.

**او الذی یاکل وحده:** یعنې یو هغه قسم خلق دي چې د انتهائي تکبر او حرص او لالچ په وجه یوائې خوراک کوي.

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في ۲/۷۵۵ رقم الحديث ۲۲۴۸

(۲) أخرجه مرقاة المفاتيح ۶/۴۸۸ رقم الحديث ۳۳۷٤

۲.**ويجلد عبده:** مطلب دا چه خپل غلام بغير د څه شرعي جواز نه وهي.

۳.**ويمنع رفده:** **رفد يرفد** ضرب يضرب نه مصدر دی، دې راء باندې کسره ده عطيه کول او يا د چا عطيه زياتولو ته ويلی شي مطلب دا دی چې يو مستحق او صاحب حق نه خپله عطيه بندول او د خپلې عطاء او بخښې نه چا ته فائده نه ورکول، کنجوس او شوم دی، دټول حديث خلاصه داده چې په خلقو کې بد ترين کس هغه دی چې بخل او بداخلاقی ګير کړی وي، په جامع صغير کې د ابن عساکر په حواله سره دا روايت د حضرت معاذ نه منقول دی چې په هغې کې څه تفصيل هم دی او ترغيب کې حافظ منذري دا روايت د حضرت ابن عباس نه نقل کړی دی په هغې کې زياته اضافه ده، ددې ټولو خلاصه او مفهوم داسې دی چې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام حضرت معاذ ته وفرمائيل چې په تاسو کې دټولو نه خراب سړی څوک دی؟ بيائې وفرمائيل .۱.چې يو ائې خوراک کوی۲. چې يو ائې سفر کوي
۳. چې خپله عطيه بندوی. ۴. چې خپل غلام وهي، او ددې نه هم زيات خراب کس درته وښايم
۵.چې خلقو سره بغض ساتي او خلق ده سره بغض ساتي، ددې نه هم زيات بدترين کس درته ونه ښايم.
۶.چې خپل آخرت د نورو دپاره خرڅوي، ددې نه درته زيات بدترين کس ونه ښايم.
۷.چې دين خرڅ کړي د دنيا دپاره، د حضرت ابن عباس په روايت کې داسې هم راغلې دي چې زه تاسو ته ستاسو خراب کس ونه ښايم؟ صحابه عرض وکړو ضرور وښائي نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ستاسو بد کس هغه دی چې يو ائې سفر کوي خپله عطيه بندوي او خپل غلام وهي، ددې نه درته زيات خراب کس وښايم؟ صحابه عرض وکړو وښائي نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل
۸.کوم خلق چې د نورو خطاګانې نه معاف کوي ددې نه هم درته خراب کس وښايم؟ صحابه کرامو ووئيل چې يا رسول الله وښائي نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل
۹.چې د ښېګړې تمه ترې نشي کولی او د هغه د شر نه نور خلق په امن کې نه وي.
۱۰.او د نورو معافي او پښيمانتيا نه منظوروي. (المرقات : ۵۳۴/۶)

## د جهاد په وجه په امت کې ديتيمانو او غلامانو ډيروالی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۱﴾وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | | | | | | | | |
| حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې حديث راوي دی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل چې | | | | | | | | |
| «لَا | يَدْخُلُ | الْجَنَّةَ | سَيِّئُ | الْمَلَكَةِ» | | | | |
| خپل غلام او وينځې سره بدی کولو والا به جنت ته نه داخليږی، صحابو چې دا واوريدل نو عرض | | | | | | | | |
| قَالُوا: | يَا | رَسُولَ | الله | أَلَيْسَ | أَخْبَرْتَنَا | أَنَّ | هَذِهِ | الْأُمَّةَ |
| يې وکړو چې ای د الله رسوله ! تاسو مونږ ته دا نه دې ويلي چې ستاسو امت کې به غلامان وينځې | | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَكْثَرُ | الْأُمَمِ | مَمْلُوكِينَ | وَيَتَامَى؟ | قَالَ: | «نَعَمْ | فَأَكْرِمُوهُمْ | |
| او یتیمانان په اعتبار سره نورو امتونو ته زیات وي نبي صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ورته وفرمائیل چې آو. (د هغوی سره احسان کوه) | | | | | | | |
| كَكَرَامَةِ | | أَوْلَادِكُمْ | | | وَأَطْعِمُوهُمْ | | |
| او هغه احسان دادی چې ته هغوی د خپل اولاد پشان ساته او د نرمی او رحم ورباندې کوه، او هغه خوراک ورکوه | | | | | | | |
| مِمَّا | تَأْكُلُونَ». | قَالُوا: | فَمَا | تنفعنا | الدُّنْيَا؟ | | |
| کوم چې ته خوري صحابه کرامو عرض وکړو چې یارسول الله! مونږ ته په دنیا کې ګټه راکونکې کوم یو څیز دی | | | | | | | |
| قَالَ: | «فَرَسٌ | تَرْتَبِطُهُ | تُقَاتِلُ | عَلَيْهِ | فِي | سَبِيلِ | الله |
| نبي صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ورته وفرمائیل چې یو اس چې تا د الله په لاره کې د جنګیدو دپاره ساتلی وي او | | | | | | | |
| وَمَمْلُوكٌ | | يَكْفِيكَ | | فَإِذَا | | | |
| غلام چې ستا کفایت وکړي (یعنې چې هغه ستا دنیاوي کارونه کوي چې ته فارغیږې او آخرت دپاره کار وکړې شې) | | | | | | | |
| صَلَّى | فَهُوَ | أَخُوكَ». | رَوَاهُ | ابْنُ | مَاجَهْ[1] | | |
| او که چیرې ستا غلام مونځ کوي نو هغه ستا ورور دی (لهذا هغه سره د ښېګړې سلوک کوه) (ابن ماجه) | | | | | | | |

**اکثر الامم مملوکین:** مطلب دادی چې په امت کې به د جهاد عمل زیات وي چې د هغې په وجه به کافران ډیر په قید کښې راځي نو غلامان به ډیر وي او په جنګ کې به مسلمانان ډیر شهیدان کیږي نو یتیمان ماشومان به ډیر وي.

سوال دا وشو چې دومره زیات غلامان او یتیمان وي نو هغوی سره به دا حسن سلوک څنګه کیږي نبي صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمائیل چې مشکله خو به وي لیکن جنت ته تللو دپاره دا ضروری ده چې خپل غلامان د خپل اولاد پشان ساتئ او د هغوی اکرام کوئ په دې سره به د غلامانو سره چې کومه بداخلاقي شوې وي دا به د هغې کفاره جوړه شي، بیا صحابه کرامو پوښتنه وکړه چې په دنیا کې ګټه ورکولو واله څیز کوم یو دی چې جهاد دپاره اس او د خدمت دپاره یو غلام ګټه ورکولو واله څیزونه دي او که چیرې هغه مونځ کوي نو بیا هغه ستا ورور دی یا د ورور په شان دی نو او س به ورسره د ورڼرو پشان سلوک کوئ.

---

(1) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۲۱۷ رقم الحديث ۳۶۹۱

# بَابُ بُلُوغِ الصَّغِيرِ وَحَضَانَتِهِ فِي الصِّغَرِ

## دبچو پالنه او دبلوغت بیان

قال الله تعالی(وَإِذَا بَلَغَ الأَطْفَالُ مِنكُمُ الْحُلُمَ فَلْيَسْتَأْذِنُوا كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ)(النور: ۵۹)

**حضن يحضن حضنا وحضانةً**: د باب د نصر نه د حاء په کسرې سره دی، د مور خپل ماشوم د پالنې په غرض سره په خپلې غیږه کې اخستل او د چرګې خپل بچې او اګۍ د خپلو وزرو لاندې کول او پټولو ته ''حضانة'' ویلی شي او بیا دا لفظ د تربیت دپاره استعمالول شروع شو چنانچه ''حاضنة'' هغه ښځې ته ویلی شي چې د خپل بچي پالنه او تربیت کوي او دلته ''حضانة'' د تربیت د دې عمل نوم دی په دې باب کې د ماشوم د تربیت او د پالنې حق چا ته حاصل دی او د تربیت موده د هلک او د جینۍ څومره مقرر شوې ده، په دې وړومبي حدیث کې تفصیل ملاحظه وکړئ.(مرقات: ۵۳۸/۶)

## اَلْفَصْلُ الأول

### د بلوغت عمر پنځلس کاله دی

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: عُرِضْتُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وائي چې د احد دغزا په ورځ (جهاد کې تلو دپاره) زه یې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عَامَ أُحُدٍ وَأَنَا ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ سَنَةً فَرَدَّنِي ثُمَّ عُرِضْتُ عَلَيْهِ عَامَ الْخَنْدَقِ

ته پیش کړم چې زما عمر څلوارلس کاله وو نو زه نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واپس کړم، بیا د خندق دغزا په

وَأَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً فَأَجَازَنِي

موقع باندې چې زما عمر پنځلس کاله شو او زه یې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته پیش کړم نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ما ته

فَقَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ:

په جهاد کې د تلو اجازت راکړو حضرت عمر بن عبدالعزیز فرمایي چې هم دغه عمر د جنګیدونکو

هَذَا فَرْقُ مَا بَيْنَ الْمُقَاتِلَةِ والذرية (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

ځوانانو او د هلکانو په مینځ کې فرق کونکی دی. (بخاری و مسلم)

---

([1]) أخرجه البخاری فی صحیحه ۵/۲۷۶ رقم الحدیث ۲۶۶٤ ومسلم في ۳/۱٤۹۰ رقم الحدیث (۱۸٦۸.۱۹) والترمذي في ۳/٦٤۱ رقم الحدیث ۱۳٦۱ وابن ماجه في ۲/۵۸۰ رقم الحدیث ۲۵٤۳.

**توضیح**: **ابن خمس عشرة سنة**: دا خبره خو معلومه شوې ده چې جینۍ د نهه کالو نه مخکې نه بالغه کیږي او هلک د دولسو کالو نه مخکې طبعي حالت مطابق نه بالغ کیږي د غیر طبعي نظام اعتبار نشته، دیورپ دګنده ماحول او فحاشۍ په وجه د وخت نه مخکې بالغ شي دماشومانو بلوغت په دوه قسمه دی: (۱) بلوغت بالعلامات (۲) بلوغت بالسنین. دهلک دبالغ کیدو درې نښې دي اول داچې احتلام ورته وشي، دویم داچې انزال ورته وشي، دریم داچې د احبال صلاحیت په کې راشي یعنې یوه ښځه دحامله کولو صلاحیت په کې پیدا شي .دجینۍ دبالغ کیدو هم درې نښې دي: اول داچې ماهواري یې شروع شي، دویم داچې احتلام ورته وشي، دریم داچې دحمل ایسارولو صلاحیت په کې پیدا شي. دې ځای پورې دعلماو په دې کې هیڅ اختلاف نشته البته یوه نښه داهم ده چې ورته (انبات شعر) یعنې زیرناف ویښته راوتل شروع شي په دې کې دفقهاو اختلاف دی چې ایا زیرناف ویښته د بالغ کیدو په نښو کې دي یا نه؟ دجمهورو په نزد زیرناف ویښته شروع کیدل دبالغ کید و یو علامت دی او داحنافو په نزد دبالغ کیدو دپاره علامت نه دی.
جمهورو د حضور اکرم ﷺ او د صحابه کرامو دهغې فیصلې نه دلیل نیولی دی چې دبنو قریضه قیدیان وو . چې دکوم قیدی به زیرناف ویښته وو نو هغه به بالغ ګڼلی شو نو هغه به قتلولی شو او چې دچا به نه وو نو هغه به یې پریخودو او غلام به یې جوړ کړو. احناف فرمائي چې زیرناف ویښته دبلوغت دپاره هغه وخت نښه تصور کولی شي چې کله دبلوغت نورې نښې لکه احتلام، انزال نه وي او د عمر اندازه هم نه وي نو دا د یو وقتي ضرورد لاندې وي.عام طورباندې زیرناف ویښته شروع کیدل دهلک دبالغ کیدو وخت وی ،خودلته مسئله دقتل کولو او نه قتل کولو ده او صرف دا احتیاط دپاره وو دا څه عامه ضابطه او قانون نه وو. (مرقات : ۵۳۹/۶، ۵۳۸)
**په بلوغ بالسنین کې دفقهاو اقوال**: که په هلک یا جینۍ کې دبلوغت نښې ښکاره نه شي نو بیا به دکلونو په حساب سره معتبرولی شي دې ته بلوغ بالعمرویلی شي یعنې کله چې هلک یاجینۍ دپنځلسو کالو شي نو دواړه به په بالغو کې شمیرلی کیږي دا حکمًا بلوغ دی چې یو علامت هم موجود نه وي،دادصاحبینو او د جمهورو مسلک دی، دداؤد ظاهري په نزد کله چې دبلوغت یوه نښه هم ښکاره نشي نو دې وخته پورې بلوغت نه ثابت کیږي دهغه په نزد باندې دبلوغت دپاره دعمر حد نشته، دامام مالک هم دا قول دی. د امام ابوحنیفه په نزد باندې چې هلک کله داتلسو او جینۍ د اولسو کالو شي نو دواړه به بالغ شمیرلی کیږي، دعلماء احنافو فتوی د صاحبینو په قول ده، او داد جمهورو مسلک هم دی، او د امام ابو حنیفه یو قول د پنځلسو کالو هم دی، دا زیر بحث حدیث دجمهورو دپاره واضح دلیل دی که قریب البلوغ مراهق اقرار وکړو چې زه بالغ شوی یم نو دهغه وینا معتبره ده او په عدالت کې به قاضی فیصله هم په دې بنیاد کوي

(هذا فرق) يعنې پنځلس کالو عمر والا دجنګيدو وي او دې نه کم مثلا د څوارلسو کالو والا په ماشومانو کې راځي .حضرت عمر بن عبد العزيز هم دا فرمايلي دي چې حضرت ابن عمر کله دڅوارلسو کالو وو نو نبی کريم ﷺ ورته په جنګ احد کې دجنګيدو اجازت ورنه کړه او په جنګ خندق کې دپنځلس کالو شو نو بيا ورته اجازت ملاو شو، که چيرې په يو دفاعی جهاد کې يو وړوکی ماشوم د مسلمانانو جماعت زيات بنودلو دپاره لاړ شي نو دا به نشي منع کولی. (مرقات : ۵۳۸،۵۳۹/۶)

## دلانجې په صورت کې د ماشوم تربيت (پرورش) د چا حق دی؟

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: صَالَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ عَلَى ثَلَاثَةِ |
| حضرت براء بن عازب رضي الله عنه وائي چې نبی کريم ﷺ د حديبيې په ورځ (کفارو سره) په دريو خبرو |
| أَشْيَاءَ: عَلَى أَنَّ مَنْ أَتَاهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ |
| صلحه وکړه يو دا چې د مشرکانو نه که چيرې يو کس نبی ﷺ طرف ته راشي نو نبی عليه السلام |
| رَدَّهُ إِلَيْهِمْ وَمَنْ أَتَاهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ |
| به يې واپس کوي. دويم دا چې که د مسلمانانو نه که چيرې مشرکانو طرف ته کوم کس لاړ شي نو |
| لَمْ يَرُدُّوهُ وَعَلَى أَنْ يَدْخُلَهَا |
| هغه به نه شي واپس کولی او دريم دا چې نبی ﷺ به راتلونکی کال (مدينې نه) مکې ته |
| مِنْ قَابِلٍ وَيُقِيمَ بِهَا |
| تشريف راوړي او خپله عمره قضاء وکړي او (او د عمرې اداء کولو او د مې دپاره) به په مکه کې |
| ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَلَمَّا دَخَلَهَا |
| صرف درې ورځې ايسار شي او راتلونکي کال کې چې کله نبی ﷺ مکې ته تشريف راوړلو او خپل |
| وَمَضَى الْأَجَلُ خَرَجَ |
| مقرر شوی وخت يې پوره کړو (يعنې درې ورځې تيرې شوې) او نبی ﷺ د مکې نه د واپسی |
| فَتَبِعَتْهُ ابْنَةُ حَمْزَةَ تُنَادِي: يَا عَمِّ يَا عَمِّ فَتَنَاوَلَهَا عَلِيٌّ |
| واپسی اراده وکړه نو د حمزه لور ای زما تره ای زما تره وويل او د نبی ﷺ روستو ولګيده حضرت علي رضي الله عنه |
| فَأَخَذَ بِيَدِهَا فَاخْتَصَمَ |
| د هغې د ځان سره د بوتلو اراده وکړه او لاس يې ورله ونيولو (يعنې ځان سره يې بوتله) دې نه د |

فِيهَا عَلِيٌّ وَزَيْدٌ وَجَعْفَرٌ

حضرت حمزه د لور د پالنې باره کې د حضرت علي، حضرت زيد، او د حضرت جعفر په مينځ کې لانجه راغله

قَالَ عَلِيٌّ: أَنَا أَخَذْتُهَا وَهِيَ بِنْتُ عَمِّي.

حضرت علي ؓ خو داسې ويلي دي چې اول خو دا ما شومه ما اخستې ده او دا زما د تره لور ده (زه ئې د پالنې حق لرم)

وَقَالَ جَعْفَرٌ: بِنْتُ عَمِّي وَخَالَتُهَا تَحْتِي

او حضرت جعفر داسې وويل چې دا زما د تره لور ده او د دې ترور زما په نکاح کې ده (زه د پالنې حق لرم)

وَقَالَ زَيْدٌ: بِنْتُ أَخِي

او حضرت زيد داسې وويل چې دا زما وريره ده (نو په دې وجه د دې د پرورش حق ما ته حاصل دی)

فَقَضَى بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَالَتِهَا

نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې لانجې فيصله داسې وکړه هغه يې خپلې ترور ته حواله کړه (چې د

وَقَالَ: «الْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْأُمِّ». وَقَالَ لِعَلِيٍّ:

حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نکاح کې وه) او وې فرمايل چې ترور د مور په ځای وي بيا يې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

«أَنْتَ مِنِّي وَأَنَا مِنْكَ» وَقَالَ لِجَعْفَرٍ:

ته وفرمايل چې زه ستا نه يم او ته زما نه يې. او حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې وفرمايل چې ته ما سره

«أَشْبَهْتَ خَلْقِي وَخُلُقِي». وَقَالَ لزيد: «أَنْت أخونا ومولانا» (متفق عليه)[1]

په پيدايښت او اخلاقو کې مشابه يې. او حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې وفرمايل چې ته زمونږ ورور او محب يې.

**توضيح**: **الخالة بمنزلة الام**: د ورکوټې ماشوې د پرورش حق ورومبی د هغې مور ته حاصل دی خواه که طلاق ورکړې شوې وي يا نه، که چيرې مور ته طلاق ورکولو نه پس دا ماشوم د پالنې نه انکار وکړي نو هغه به مجبوروله نشي او که د مور د پالنې نه علاوه بل څوک يې نه وي نو د ماشوم د بچ کولو د پاره به مور په پيو ورکولو باندې مجبوره کولې شي، او که مورېې موجود نه وي يا مړه شوې وي نو د ماشوم د پرورش حق نيا ته حاصل دی، که د مور د طرف نه وي او که د پلار د طرف نه وي. که نيا هم

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۳۰۴ رقم الحديث ۲۷۰۰ ومسلم في ۳/۱۴۰۹ رقم الحديث (۹۰.۱۷۸۳) والترمذي في السنن ۴/۲۷۶ مرقات : رقم الحديث ۱۹۰۴

موجود نه وي نو بيا حقيقي خور ته، او دې نه پس ميرنۍ خور ته حق حاصل دی، او که په دوی کې يو هم موجود نه وي يا دپالنې اهل نه وي نو بيا ترور ډيره حقداره ده (که دپلار خور وي او که دمور خور وي) او که په مور پلار کې يو مسلمان وي او دويم غير مسلم وي نو دپالنې حق بيا مسلمان ته حاصل دی، که مور مرتده شوه نو دماشوم دپالنې حق دهغې نه ختم شو او که مور بدکاره يا بدکرداره وي نو بيا هم دپالنې نه محرومه شوه، او که چيرې مور د ماشوم دپالنې په زمانه کې نکاح وکړه نو اوس به دا کتلی شي که هغې دماشوم په کورنۍ کې نکاح کړې وه نو پالنه يې نه ختميږي او که بهريې نکاح کړې وه نو دپالنې نه محرومه شوه، ام ولده يا وينزې ته د پرورش حق حاصل نه دی البته که مور ذميه وي نو دپالنې حق ورته حاصل دی، شرط په کې دا دی چې ماشوم دپوهې عمر ته نه وي رسيدلی، دپالنې وخت اوه کاله يا نهه کاله مقرر شوی دی .صاحب قدوری ليکلي دي که چيرې ماشوم پخپله دخوراک څښاک انتظام کولی شي پخپله د اودس يا د کپړو بدلولو قابل وي نو دهغه دپرورش حق ختم شو، اوس پلار په زبردستۍ دا ماشوم په خپله قبضه کې اخستلی شي، او که چيرې جينۍ وي نو دحيض راتلو پورې دپالنې حق مور يا نيا ته حاصل دی، په دې حديث کې حضوراکرم ﷺ ترور دمور په ځای ګرځولې ده. (مرقات : ۵۴۰/۶) **(ياعم ياعم)** حضوراکرم ﷺ چونکه دحضرت حمزه رضاعی وروروو نو په دې وجه دحمزه لور نبی ﷺ دتره په نوم ياد کړو، حديبيه دمکې نه پنځلس ميله فاصلې باندې دجدې طرف ته پورته ده د صلح حديبيې واقعه په ۶ هجری کې پېښه شوې وه کفارو نبی کريم ﷺ دعمرې نه منع کړو او راتلونکي کال کې د عمرې دقضاء په وخت کې ورسره دحمزه لور ملاو شوې وه (بنت اخي) دحضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه او دحضرت حمزه رضي الله عنه په مينځ کې حضوراکرم ﷺ ورورلي قائمه کړه په دې وجه حضرت حمزه او حضرت زيد دواړه ورونه شول نو نبی ﷺ وفرمايل چې دا زما وريره ده، حضوراکرم ﷺ دهغوی دخوشحالولو دپاره يو څو خصوصي جملې ارشاد وفرمايلې خو دپالنې حق يې حضرت جعفر رضي الله عنه ته ورکړو، ملا علی قاري ليکي چې حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه چې کله دخپل ځان باره کې دا جملې واوريدلې نو دخوشالۍ نه په ټوپونو شو (اَخونا) ددې نه هم هغه ورورلی مراد ده او د (مولانا) نه مراد محبوب دی. (مرقات : ۵۴۰/۶، ۵۳۹)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللّٰه بْنِ عَمْرٍو: |
| حضرت عمرو بن شعيب دخپل پلار نه او هغه دخپل نيکه حضرت عبد الله بن عمرو نه نقل کوي چې |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّ | امْرَأَةً | قَالَتْ: | يَا | رَسُولَ | الله | إِنَّ | ابْنِي | هٰذَا | كَانَ | بَطْنِي |

يوې ښځې عرض وکړو چې يا رسول الله ! چې دا زما ځوی چې دی (ډيرې مودې پورې) زما خېټه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَهُ | وِعَاءً | وَثَدْيِي | لَهُ | سِقَاءً |

دده دپاره لوښی وو (يعنې ډيرې مودې پورې زما په خيټه کې وو) زما سينه دده دپاره يو مشک وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَحِجْرِي | لَهُ | حِوَاءً | وَإِنَّ | أَبَاهُ | طَلَّقَنِي |

او زما غيږه دده دپاره زانګو وه (يعنی ډيرې مودې پورې زما په غيږه کې لوی کيدو) اوس دده

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَأَرَادَ | أَنْ | يَنْزِعَهُ | مِنِّي |

پلار ماله طلاق راکړی دی او زما دا ځوی ما نه په زبردستۍ اخلي. رسول کريم ﷺ چې دا

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَسُولُ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «أَنْتِ | أَحَقُّ | بِهِ |

واوريدل نو وې فرمايل چې دده ماشوم دتهولو نه زياته دپرورش حقداره هم ته يې تر څو پورې چې

مَا لم تنكحي». رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد[1]

بله نکاح ونه کړې (روايت کړې دې احمد او ابوداؤد)

**توضيح:** وعا: لوښي ته وعا ويلی شي، (مرقات: ۵۴۱/۶) (سقاء) مشکيزې ته ويلی شي. (مرقات: ۵۴۱/۶) او (حواء) غيږې ته او زانګو ته ويلی شي يعنی دپيدا کيدو نه مخکې زما خيټه دماشوم دپاره دلوښي او کور په شان وه او پيدا کيدو نه پس زما سينه د ته دپيو ورکولو دپاره يوه مشکيزه وه او دده دپالنې دپاره زما غيږه دده دپاره په مثال دزانګو وه.

ددې حديث نه په ظاهره باندې د راتلونکي دحضرت ابوهريره رضي الله عنه د روايت سره واضح تعارض دی، ځکه چې په دې کې غلام ته اختيار ورکړی شوی دی او دلته مورته يې دپالنې حق ورکړی دی؟ ددې جواب دادی چې په دې حديث کې يو قانون او ضابطه بيان شوې ده او راتلونکي دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په دواړو رواياتونو کې يو جزئي، عارضي، او احتمالي صورت بيان دی نو په دې کې تاويل شوی دی چې تفصيل يې راروان دی. (مرقات: ۵۴۱/۶)

---

(1) أخرجه ابوداؤد في السنن ۲/۷۰۷ رقم الحديث ۲۲۷۶ وأحمد في المسند ۲/۱۸۲

## دپالنې د مودې نه پس دتخيير غلام مسئله

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيَّرَ غُلَامًا |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايې چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو هلك ته اختيار وركړو كه هغه غواړي |
| بَيْنَ أَبِيهِ وَأُمه. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| نو خپل پلار سره دې اوسي او كه غواړي نو مور سره دې اوسي. (ترمذى) |

**توضيح:** خير غلاما: په مور پلار كې جدائي راتلو نه پس د كم عمره اولاد د پالنې حقدار د هغوى مور ده په دې كې د چا اختلاف نشته، البته د كم عمرۍ وخت مقررول په دې كې د فقهاو اختلاف دى.

**دفقهاو اختلاف** : ائمه احناف او مالكيه حضرات فرمائي چې ترڅو پورې ماشوم عقلمندۍ وخت ته نه وي رسيدلى تر هغه وخت پورې د پالنې حقداره يې مور ده او چې كله په ښو او بدو باندې پوهه شي نو د پالنې حق دار ييا پلار دى، د سن شعور باره كې احناف فرمائي چې كله ماشوم پخپله خوراك څښاك كولى شي يا پخپله استنجاء كولى شي او كپړې بدلولى شى نو دا ماشوم باشعوره دى. بعضو احنافو د سن شعور د پاره اوه كاله ښودلې دي او د جينۍ د پاره يې نهه كاله او د هلك د پاره يې اوه كاله ښودلې او فتوى په اوه كالو ده، احناف فرمايې چې په دې عمر كې ماشوم پلار ته حواله كول پكار دي ځكه چې په تعليم او تربيت ،ادب او ثقافت كې د پلار سوچ ډير قوي وي، او اوس ماشوم ته د هغه څيزونو ضرورت وي. او د دې نه كم عمره هلك يا جينۍ د واړه به د مور په پرورش كې وي ځكه چې په دې وخت كې مور په بهترې طريقې سره پالنه كولى شي،د شوافعو او حنابلو په نزد باندې به ماشوم اوه كالو پورې د مور په پرورش كې وي د دې نه پس به ماشوم ته اختيار وركولى شي چې هغه په مور او پلار كې د كوم سره او سيدل غواړي د هغه خوښه ده، خلاصه دا ده چې احناف په يو صورت كې هم د ماشوم د تخيير په حق كې نه دي، او شوافع د اوو كالو نه پس د ماشوم د تخيير قائل دي. (مرقات : ۵۴۱/۶)

**دلائل** : احنافو او مالكيو د براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه دليل نيولى دى چې حضور اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت حمزه ماشومه د هغې ترور ته حواله كړه او داسې د دې نه پس د عمرو بن شعيب د روايت نه يې دليل نيولى دى چې په هغې كې دي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماشوم مور ته حواله كړه او كم عمره ماشوم ته د اختيار وركولو هيڅ كومه خبره نه ده فرمايلې هم داسې هغه ټول رواياتونه د دې حضراتو دليلونه دي. موطا مالك او بيهقى كې يو روايت دى چې صديق اكبر

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۶۳۸ رقم الحديث ۱۳۵۷ وأحمد في المسند۲/۲۴۶.

عاصم بن عمر خپلې مور ته حواله کړه او اختيار يې ورنه کړو دادصحابه کرامو مخکښې فيصله وه نو اجماع د صحابو شوه، قصه داسې وه چې حضرت عمر خپلې يوې ښځې ته طلاق ورکړې وو دهغې يو ماشوم پيدا شو يوه ورځ حضرت عمر مسجد قباء سره تيريده نو هغه هلک هلته لوبې کولې نو حضرت عمر اوچت کړو نو جګړه جوړه شوه نو صديق اکبر دمور په حق کې فيصله وکړه، شوافعو او حنابلو د زير بحث حديث نه دليل نيولى دى چې په کې صفا بيان شوى دى چې حضور اکرم په مور پلار کې ديو باره کې اختيار ورکړى دى او دې سره متصل دحضرت ابوهريره په روايت کې تفصيل دى. (مرقات : ۵۴۱،۵۴۲/۶) **جواب** : احناف او مالکيه دحضرت ابوهريره درواياتونو داسې جواب ورکوي چې چيرته په احاديثو کې داختيار خبره راغلې ده هغه د باشعوره او بالغ او (مميز) ماشوم باره کې ده، ځکه چې په احاديثو کې تصريح ده او ورسره اوم نمبرحديث کې هم داجمله موجود ده چې مورروويل **وقدسقاني ولفعني** اودې سره وروستني روايت کې دا الفاظ دي **وقد نفعني وسقاني من بئر ابي عنبة** يعنې دې ماشوم ما دپاره د ابو عنبه د کوهي نه اوبه دڅکلو دپاره راوړې وې، د دې بيا ن نه واضحه شوه چې هغه ماشوم بالغ وو نو د داسې ماشوم داختيار باره کې دڅا اختلاف نشته ځکه چې بالغ خوداختياره وي. بل جواب دادى چې دلته دمجبورۍ په بنياد باندې مور او پلار کې يې ديو باره کې يې اختيار ورکړو، دادې وجه داوه چې دهغه هلک پلار کافر وو او حضور ﷺ غوښتل چې دا ماشوم دمور پالنې ته لاړ شي، که چيرې رسول کريم ﷺ وړومبى دمور په حق کې فيصله کړې وه نو بيا به اعتراض پيدا کيده چې دمسلمان طرف داري يې وکړه نو په دې وجه يې ماشوم له اختيار ورکړو، ابو داؤد شريف کې دي چې هلک ته اختيار ملاويدو نه پس هغه د پلار طرف ته لاړلو نو حضور دعاء وفرمايله(**اللّٰهم اهده**)اې الله دده رهنمائي وکړې نو هلک مور باره کې فيصله وکړه دحضور اکرم ﷺ دعاء پيغمبري حصوصيت وو نو په دې باندې څوک نه شي قياس کيدى . بهرحال عامه ضابطه هغه ده کومه چې مالکيانو او احنافو خپله کړې ده، باقي په جزئياتو کې به تاويل کولى شي. (مرقات : ۵۴۵/۶)

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعنهُ قَالَ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې يوه ښځه د رسول کريم ﷺ په خدمت کې حاضره شوه او |
| فَقَالَتْ: إِنَّ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ |
| عرض يې وکړو چې زما خاوند غواړي چې زما څوى بوځي حالانکه هغه ماله اوبه راکوي او دهغه نه |

بِابْنِي وَقَدْ سَقَانِي وَنَفَعَنِي

ماته فائده ده (يعنې هغه اوس داسې عمر ته رسيدلی دی چې زه د هغه د خدمت نه فائده اخلم)

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَذَا أَبُوكَ وَهَذِهِ أُمُّكَ

نبی كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (هغه هلک ته) وفرمايل چې دا ستا پلار دی او دا ستا مور ده په دې کې چې ستا

فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ». فَأَخَذَ بِيَدِ أُمِّهِ فَانْطَلَقَتْ بِهِ.

کوم خوښ وی د هغه لاس ونيسه. هغه هلک د خپلې مور لاس ونيولو او هغه يې خپل ځان سره بوتلو.

رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ[1]

(روايت کړې دې ابو داؤد او نسائی او دارمی)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿٦﴾ عَنْ هِلَالِ بْنِ أُسَامَةَ عَنْ أَبِي مَيْمُونَةَ سُلَيْمَانَ

حضرت هلال ابن اسامه حضرت د ابو ميمونه نه چې د هغه نوم سليمان وو او په اهل مدينه کې د چا

مَوْلًى لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ قَالَ: بَيْنَمَا أَنَا جَالِسٌ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ

آزاد کړی شوی غلام نه نقل کوي چې هغوی وويل چې (يوه ورځ) زه د حضرت ابو هريره سره ناست وم

جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ فَارِسِيَّةٌ مَعَهَا ابْنٌ لَهَا وَقَدْ طَلَّقَهَا زَوْجُهَا

چې هغه ته د فارس يوه ښځه راغله چې هغې سره د هغې هلک هم وو او هغې له خاوند طلاق ورکړی وو او د

فَادَّعَيَاهُ فَرَطَنَتْ لَهُ تَقُولُ:

ښځې او خاوند په مينځ کې د دې هلک باره کې لانجه وه دې ښځې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په فارسی

يَا أَبَا هُرَيْرَةَ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي. فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ:

ژبه کې خبرې وکړې چې ابو هريره زما خاوند زما د ماشوم بوتلل غواړي. حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته او فرمائيل

اسْتَهِمَا عليهِ رَطَنَ لَهَا بِذَلِكَ.

چې تاسو دواړه قرعه اندازي وکړئ (چې د چا په نوم ېچه راووتله هغه دې بوځي) حضرت ابو هريره هم هغې ښځې ته

---

([1]) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۷۰۸ رقم الحديث ۲۲۷۷ والنسائي في ۶/۱۸۵ رقم الحديث ۳۴۹۶ وابن ماجه في ۲/۷۸۷ رقم الحديث ۲۳۵۱ والدارمي ۲/۲۲۳ رقم الحديث ۲۲۹۳

فَجَاءَ زَوْجُهَا وَقَالَ: مَنْ يُحَاقُنِي فِي ابْنِي؟

په فارسي ژبه کې جواب ورکړو بیا دهغه ښځې خاوند راغی او وې ویل چې زما دځوی باره کې ما سره څوک

فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: اللَّهُمَّ إِنِّي لَا أَقُولُ هَذَا

جګړه کوي حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې یا الله! دا خبره زه دخپل طرف نه نه کومه حقیقت

إِلَّا أَنِّي كُنْتُ قَاعِدًا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَتْهُ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ:

دا دی چې زه یو ورځ د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست وم چې یوه ښځه راغله او هغې وویل

يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي وَقَدْ نَفَعَنِي

چې ای د الله رسوله! چې زما خاوند زما دځوی بوتلل غواړي او بېشکه دا ماته فائده راکوي

وَسَقَانِي مِنْ بِئْرِ أَبِي عِنَبَةَ وَعِنْدَ النَّسَائِيِّ:

او د ابو عنبه د کوهي نه ماله اوبه راوړي او په نسائی کې دا الفاظ دي چې هغه (د ښار نه بهر په ډېره

مِنْ عَذْبِ الْمَاءِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

فاصله باندې) خوږې اوبه په ما باندې څکوي. چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا واوریدل نو وې فرمایل

«اسْتَهِمَا عَلَيْهِ». فَقَالَ زَوْجُهَا مَنْ يُحَاقُنِي

چې تاسو په خپل مینځ کې قرعه اندازي وکړئ، خاوند وویل چې ما سره څوک جګړه کوي زما د

فِي وَلَدِي؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَذَا أَبُوكَ وَهَذِهِ أُمُّكَ

ځوی باره کې؟ بیا رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه هلک ته وفرمایل چې دا ستا مور ده او دا ستا پلار دی

فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ» فَأَخَذَ بيد

په دې دواړو کې چې ستا کوم خوښ وي دهغوی لاس ونیسه، چنانچه هلک د مور لاس ونیولو (او

أمه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد. وَالنَّسَائِيُّ لكنه ذكر المسند. وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ هِلَال بن أُسَامَة[1]

هغه یې خپل ځان سره بوتله) روایت کړې دې ابوداؤد او نسائی او روایت کړې دې دارمی د هلال بن اسامه)

**توضيح**: **امرأة فارسية**: یو مطلب یې دا هم دی چې دا ښځه د فارس او سیدونکې وه، دویم مطلب یې دا کیدی شي چې فارسیه نه مراد عجمیه ده، یعنې چې یوه عجمي ښځه وه عربو به عام طور باندې عجمیان د فارس او فارسي په نوم یاد ول رطنت یعنې دې ښځې په فارسي یا عجمي ژبه خبرې وکړې

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۷۰۸ رقم الحديث ۲۲۷۷ والدارمي في ۲/۲۲۳ رقم الحديث ۲۲۹۳

رطن لها بذلک: يعني ابو هريره هم دغې ښځې سره په فارسي يا عجمي ژبه خبرې وکړې چې دغې راوي په عربي ژبه کې بيان کړې. رطانة د راء کسره او فتحه دواړو سره، په حقيقت کې هغه کلام ته ويلی شي چې څوک پرې نه پوهيږي بيا د دې اطلاق په عجمي کلام باندې وشوځکه چې عرب د عربي نه علاوه په بل لغت باندې نه پوهيدل په دې وجه هغوی د عربي کلام نه علاوه بل کلام ته عجمي ويل شروع کړل يعني د ګونګيانو کلام. ابوهريره که په فارسي کې جواب ورکړی وي نو د هغوی په مينځ کې څوک ترجمان نه ؤ د دې نه دا معلومه شوه چې د عجمو په علاقو کې د جهاد کولو سره صحابه کرامو د فارسي وغيره ژبه لږه غوندې زده کړې وه، دلته چې ابوهريره ته د کوم ماشوم لانجه پيش شوه هم دا سې معامله حضور اکرم ﷺ ته هم راغلې وه نو ابوهريره د هغې تذکره وکړه په دې وجه رسول کريم ﷺ غلام ته اختيار هم ورکړی وو او د قرعه اندازۍ په ذريعه يې هم فيصله کړې وه. ابوهريره قرعه اندازي ولې اختيار کړه او تخييرېې ولې پريخودو؟ د دې جواب دا چې ابوهريره رضي الله عنه هم د حضور اکرم ﷺ په شان په تخيير او قرعه اندازۍ دواړو سره فيصله وکړه څنګه چې زيلعي د ابن حبان نه روايت نقل کړی په هغې کې دي **ان اباهريره خير غلاما بين ابيه وامه)** خو راوي د اختصار نه کار اخستی دی او د تخيير ذکريې پريخودلی دی، اوس دلته دويم سوال دا پيدا کيږي چې د قرعه اندازۍ شرعی حيثيت څه دی کله چې په دې حديث کې هم د قرعه اندازۍ ښکاره ثبوت ملاويږي؟ نو د دې تحقيق دا دی چې د امام شافعي او د اسحاق بن راهويه خيال دی چې په قرعه اندازۍ سره حق ثابتيږي، او د دې حضراتو د زيربحث حديث نه دليل نيولی ، خو ائمه احناف وائي چې د قرعه اندازۍ دوه حيثيتونه دي: يو حيثيت دا چې قرعه اندازي د تطييب قلب دپاره وي، د هريو حصه مقرروي مګر راجح او مرجوح دپاره قرعه اندازي وي نو دا جائز دی او د دې نه انکار په احنافو کې چا هم نه دی کړی. دويم حيثيت دا دی چې د دې نه د حق جديد اثبات وشي چې يو ته حق ملاو شي او بل محروم پاتې شي . دا رنګې قرعه اندازۍ باره کې احناف وائي چې دا په ابتداء د اسلام کې وه چې د قمار حکم نه ؤ راغلی او چې کله په قمار او جوارۍ پابندي ولګيده نو د قرعه اندازۍ دا قسم هم ختم شو خلاصه دا چې قرعه اندازي که احد المتساويين کې ترجيح دپاره او تطيب قلب دپاره وي نو جائز ده او که د حق جديد د اثبات دپاره وي نو جائز نه ده بلکه منسوخ ده، طحاوي د دې دپاره د دې د منسوخ کيدو ذکر کړی، باقي په دې زير بحث حديث کې په اصل کې د صلحې صورت جوړ شو ، حضور اکرم ﷺ د لانجې ختمولو دپاره د قرعه اندازۍ حکم وفرمايلو او بطور حجت شرعيه يې په قرعه اندازۍ سره فيصله نه وه کړې. (مرقات : ۵۴۴/۶، ۵۴۳)

# کتاب الْعتْق

## د غلام د آزدولو بیان

قَالَ اللّٰهُ تعالی: فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ۔ وَمَآ اَدْرٰکَ مَا الْعَقَبَةُ (سورت بلد)

وَقَالَ تعالی: فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ (النساء: ۹۲)

**عتق**: په څو معنو سره راځي (۱) په معنی دقوت په دې اعتبار سره بیت الله ته عتیق ویلی شي ځکه چې بیت الله په هره زمانه کې د هرسړي دست برد او قوت او ملکیت دخپل ځان نه دفع کوي (۲) په معني دقديم (زوړ) سره راځي په دې اعتبارسره بیت الله د یو قدیم کور په نوم سره یادولی شي دالله تعالی ارشاد دی (**وليطوفوا بالبيت العتيق**) (سورة الحج ۲۹) (**ثم محلها الي البيت العتيق**) (سورة الحج۲۳) (۳) په معنی دحسن اوجمال او شرافت او آزادۍ سره، په دې اعتبارسره صدیق اکبر ته عتیق ویلی شوی دی چې هغه ښائسته هم وو او شریف او سردار هم وو او د اُور نه آزاد هم وو (٤) د مملوکیت نه د وتلو په معنی هم راځي دلته په کتاب کې هم دا معني مراده ده یعنې دغلامۍ او مملوکیت او کمزورۍ نه وتل قوت او آزادۍ او حریت طرفته راتلل دا دعتق لغوي معنی ده، او په شرعي اصطلاح کې دعتق تعریف هم داسې کولی شي (**قوة حكمية يصير المرء بها اهلا للشهادة والولاية والقضاء**) یعنې عتق هم ددې حکمي او معنوي قوت او طاقت نوم دی دکومې په ذریعې سره چې سړی د قضاء او ګواهۍ او دتصرف کولو اهل جوړیږي، اسلام چې دیو کافر انسان دغلام جوړولو کوم اجازت ورکړی دی نو ددې یوه معقوله وجه داده چې کله هغه هم داسې یو کافر دخپل خالق او مالک او دخپل رازق باغي جوړیږي نو الله تعالی حکم ورکوي چې کله زما یو بنده زما بندګي او غلامي نه اختیاروي نو اوس به دا زما دغلامانو غلام جوړیږي، اوس دا سړی به د انسانانو د زمرې نه په وتلو سره د څناورو په زمره کې داخلیږي (**اولئک کالانعام بل هم اضل**) (سورة اعراف: ۱) اوس به ده سره دځناورو په شان سلوک کولی شي، لهذا د ده خرڅول اخستل او خدمت ترېنه اخستل دا ټول جائز شول، دا مضمون داسې په پوهه کې راتلی شي چې کله دې کافرانو دخپل رب د اطاعت او فرمانبردارۍ نه مخ واړولو نو ددوی حیثت دمالک او حاکم دپاره د باغي فوج په شان شو نو اوس دحکومت وفادار فوج یعنې مسلمانانو ته حکم دی چې دې باغیانو پسې ولګي تردې پورې چې دا باغیان یا واپس شي د وفادارۍ اعلان وکړي یا قتل کړی شي یا قید کړی شي، بین الاقوامي قوانین

په دې قاعده او ضابطه باندې ګوته نه شي اوچتولی بلکه ددې قاعدې تائید پوره دنيا باشعوره انسانان کوي، بيا د افسوس مقام به وي چې کچيرې څوک بدظنه ملحد يا زنديق په اسلام باندې په دې وجه اعتراض کوي چې اسلام دبعضو سرکشو په قابو کې راوستلو دپاره د غلامۍ سزا تجويز کوي بيا چې کله ددې باغي فوج زور مات شي او بعضې افراد يې قيد شي او غلام جوړشي نو اسلام ددوی ډيره زياته نګراني او خيرخواهي کوي او په ډير تاکيد سره ددې خيرخواهۍ حکم ورکوي چې ددې په آزادولو کې ئې ډير لوی ثواب ګرځولی دی، همدا وجه ده چې نبي اکرم صلي الله عليه وسلم دخپل عمر مبارک د هرکال په برابرۍ يو غلام آزاد کړی دی نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پخپله ۶۳ غلامان آزاد کړي دي، حضرت عائشه رضي الله عنها ۶۷ غلامان آزاد کړي دي حضرت ابن عباس رضي الله عنه ۷۰ غلامان آزاد کړي دي حضرت ابن عمر زر(۱۰۰۰) غلامان آزاد کړل، حضرت عبدالرحمان بن عوف رضي الله عنه ديرش زره (۳۰۰۰۰) غلامان آزاد کړل او صديق اکبر او عثمان غني رضي الله عنهما بې شماره غلامان آزاد کړل. غرض دا چې دغلام جوړولو په دې قانو کې ډير زيات حکمتونه او فائدې دي يو طرفته باغي مخلوق ادب او فرمانبرداري زده کړي او بل طرفته ده ته د مسلمان جوړولو موقعې ورکړی شي په زرګونو نه په لکونو غلامان مسلمان جوړيدو سره د دنيا وآخرت کامياب کيدو سره جنت ته لاړل، آخر حضرت حسن بصري رحمه الله او ا بن سيرين رحمه الله په شان د علم غرونه او د دين اسلام نامتو شخصيات هم ددې غلامۍ په پل باندې تيرشول او د امت مسلمه امامان جوړشول، دريم د دې غلامانو آزادوونکو ته چې کوم لوی ثواب ملاويږي هغه به هم په احاديثو کې تاسو ولولئ، بهرحال کوم چې ملحدان خلق دي په اسلام او د اسلام په حکمونو اعتراض کوي هغوي دالله تعالی غضب ته دعوت ورکوي او هغوی ددې نه نه شرميږي چې هغوي څومره شريفان او څومره آزاد او غريبانان مسلمانان او غير مسلمو لره په ناحقه د غلامۍ په زنځيرونو کې تړلي دي.

*خدا کو کیا منہ دکھاؤ گے ظالم — شرم تم کو مگر نہیں آتی*

د غلام د آزادولو دپاره شرط دادی چې د غلام آزادولو والا آقا بالغ وي نابالغ بچی نه وي، عقل مند وي ليونی نه وي چې کوم غلام آزادوي هغه ددې مالک وي خود مختاره وي، په بعضو صورتونو کې د غلام آزادول واجب دي لکه په کفاره کښې، بعضو صورتونو کې مستحب وي او په بعضو صورتونو کې مباح وي لکه د چا د ايصال ثواب دپاره د غلام آزادول، په بعضو صورتونو کې غلام لره آزادول صرف د ثواب او عبادت عمل وي لکه يو غلام لره صرف د الله تعالی د رضا حاصلولو دپاره آزادول، او په بعضو صورتونو کې د غلام آزا دول ګناه ده، کله چې د آزادولو نه پس د هغه د بدمعاشۍ او د فساد خطره وي يا د مرتد کيدو يره وي.

## الفصل الاوّل

## د برده د آزادولو اجر

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کوم سړی یو مسلمان

أَعْتَقَ رَقَبَةً مُسْلِمَةً أَعْتَقَ اللهُ بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا

برده لره د غلامۍ نه نجات ورکړي الله تعالی به د ده هر اندام د دې غلام د اندام په بدله کې د دوزخ

مِنَ النَّارِ حَتَّى فَرْجَهُ بِفَرْجِهِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

د اور نه خلاص کړي تر دې پورې چې د ده شرمګاه ته به د غلام د شرمګاه په بدله کې (خلاصي ورکړې شي)

**توضیح**: رقبة مسلمة: دلته د مسلمان د څټ قید څه احترازي قید نه دی بلکه صرف افضلیت او ثواب ته دې اضافه کې اشاره ده ورنه د غیرمسلم (غلام) آزادولو کې هم ډیر ثواب دی (بکل عضوٍ) د اندامونو د ذکر کولو نه پس د فرج او شرمګاه ذکر کول په خاص طور یا خو په دې وجه وکړی شو چې په کلام کې ښه ترغیب او تشویق پیدا شي، یا د دې اندام ذکر په دې وجه وکړی شو چې د دې نه د زنا په شان ګناه کبیرې نو اشاره وکړی شوه چې د غلام په آزادولو سره دومره لوی جرمونه هم معاف کیږي او د وړو جرمونو به څه وایې، د اندامونو د تذکرې باره کې علماو لیکلې دي چې آزادوونکي ته پکار دي چې د خپل جنس مثل لره آزاد کړي یعني کچیرې سړی دی نو هغه دې غلام آزاد کړي او کچیرې ښځه وي نو هغه دې ښځه آزاده کړي دې د پاره چې د اندامونو ښه تقابل وشي، دا رنګه چې غلام مقطوع الذکر او خصي نه وي نو د دې آزادول بیا اولی او بهتر دی، ملا علي قاري رحمه الله په مرقاة کې د فتح القدیر په حوالې سره نقل کړې دي چې د غلام د آزادولو محاسن او فضائل په چا باندې پټ نه دي په دې وجه په آزادولو سره غلام د کفر د اثراتو نه آزادیږي چې په حقیقت کې دا د مرګ مترادف دی، ځکه چې په غلامۍ کې د سړي اختیار نه وي او نه پکې د ګواهۍ او حکمرانۍ اهلیت وي نه په جمعه او اخترونو کې شریکیدی شي او نه حج او جهاد ته په آزادانه طور سره تللی شي نه په څه ځیز کې تصرف کولی شي نو دا غلامي په معنوي طور سره مرګ دی لکه چې کافر په معنوي طور سره مړی دی، کچیرې یو مسلمان کوم غلام ته آزادي ورکوي نو ګویا چې ده غلام ته نوی ژوند ورکړلو

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۵۹۹ رقم الحديث ۶۷۱۵ ومسلم في ۲/۱۱٤۷ رقم الحديث ۱۵۰۹.۲۳ والترمذي في السنن ٤/۹۷ رقم الحديث ۱۵٤۱ وأحمد في المسند ۲/٤٤۷ .

ددې حکمت پیش نظر د الله تعالی په نزد آزادونکی د دوزخ نه آزادیږي د ده هر اندام د دوزخ نه خلاصی بیامومي، او په دې وجه د اعتاق ډیر زیات فضائل په احادیثو کې ذکر دی. (المرقات ۵۴۸/۶)

## د ټولو افضل عمل کوم یو دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ؟ |
| او حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه تپوس وکړو چې کوم عمل بهتر دی |
| قَالَ: «إِيمَانٌ بِالله وَجِهَادٌ فِي سَبِيلِهِ» |
| نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې په الله تعالی باندې ایمان راوړل او د هغه په لاره کې جهاد کول |
| قَالَ: قُلْتُ: فَأَيُّ الرِّقَابِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: «أَغْلَاهَا ثَمَنًا |
| ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې ما عرض وکړو چې کوم یو غلام آزادول بهتر دي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې |
| وَأَنْفَسُهَا عِنْدَ أَهْلِهَا». قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ أَفْعَلْ؟ |
| کوم قیمت ګران وی او خپل مالک ته ډیر خوښ وي. ما عرض وکړو کچیرې ما داسې ونه کړل |
| قَالَ: «تُعِينُ صَانِعًا أَوْ تَصْنَعُ لِأَخْرَقَ» |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل د کارکوونکي مدد کوه یا کوم سړی چې د څیز په جوړولو باندې نه پوهیږي د هغه |
| قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ أَفْعَلْ؟ |
| هغه څیز جوړ کړه. ما عرض وکړو کچیرې زه دا هم ونه کړی شم (نو زه څه وکړم؟) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل |
| قَالَ: «تَدَعُ النَّاسَ مِنَ الشَّرِّ فَإِنَّهَا صَدَقَةٌ تَصَدَّقُ بِهَا |
| خلقو ته د بدۍ رسولو نه ځان وساته. یاد ساته! دا ښه خصلت دی چې د کوم په ذریعه سره ته خپل |
| عَلَى نَفْسِكَ» (متفق عليه)[1] |
| نفس سره ښېګړه وکړې. (بخاري ومسلم) |

**توضیح: أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ:** د ایمان په افضل کیدو کې خو هیڅ یوه خبره نشته دی په دې وجه د ایمان نه بغیر د هیڅ یو عمل اعتبار نشته دی، مګر علماو په دې کې کلام کړی دی چې د ایمان نه پس د ټولو نه افضل عمل ایا جهاد دی که مونځ؟ صاحب د فتح القدیر په دې کلام کړی دی. بهرحال د علماو یوه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۱۴۸ رقم الحديث ۲۵۱۸ ومسلم في ۱۰/۸۹ رقم الحديث (۸۴،۱۳۶) وابن ماجه في السنن ۲/۸۴۳

طبقه دې طرف ته تلې ده چې ایمان نه پس د ټولو نه افضل عمل جهاد دی، زیر بحث حدیث د دغو خلقو دپاره دلیل دی، دغه شان د کتاب الحج په ابتدائي احادیثو کې هم د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه په یو حدیث کې دا الفاظ موجود دي: (**قال سئل رسول الله صلي الله عليه وسلم اي العمل افضل قال ايمان بالله ورسوله قيل ثم ماذا قال الجهاد في سبيل الله**) (مشکوة صفحه ۲۲۱)

د دې نه معلومیږي چې ایمان نه پس جهاد په ټولو عملونو کې افضل عمل دی دارنګه په بخاري شریف کې یو روایت دی (**جاء رجل الي النبي صلي الله عليه وسلم فقال دلني علي عمل يعدل الجهاد قال لا اجده**)(بخاري) یعني یا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته په اسلام کې داسې یو عمل اوښایه چې د جهاد برابروي نبي علیه السلام وفرمائیل چې زه د جهاد برابر عمل نه مومم، په دې روایت کې هم هغو خلقو د ایمان نه پس د جهاد په افضلیت باندې استدلال کړی دی، بل طرفته د علماو یوه لویه طبقه دې طرف ته تلې ده چې د ایمان نه پس افضل عمل مونځ دی، کتاب الصلوة کې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په روایت کې راغلي دي چې د ایمان نه پس افضل عمل "**الصلوة لوقتها**" دی (مشکوة صفحه ۵۸) هلته په دې حدیث باندې په حاشیه کې صاحب د لمعات پوره تفصیل فرمایلی دی او بنده هم د توضیحات په اول جلد کې په دې باندې تفصیلي بحث کړی دی، دلته د مونځ او جهاد متعلق د تطبیق صورت علماو دا خودلی دی چې علی الاطلاق او عمومي فضیلت مونځ ته حاصل دی اګرچه د جهاد فضیلت هم موجود دی د دینه بهتر تطبیق دا دی چې جهاد کله د فرض کفایه په درجه کې وي نو مونځ د دې نه افضل دی ځکه چې مونځ په هر حالت کې فرض عین دی مګر کچیرې جهاد فرض عین شي نو جهاد د مونځ نه افضل کیږي (اشعة اللمعات) (**تعين صانعا**) صانع صنعت پیشه، سوداګر او کاریګر ته وایې یعنې کوم کاریګر او پیشه ور او د سوداګر سړي چې کاروبار نه چلیږي یا د هغه خرچه د هغه د اهل او عیال دپاره کافي نه ده، یا هغه سړی کاریګر خو دی مګر د کار جوړولو نه عاجز دی نو د داسې سړي مدد وکړئ چې په کوم صورت کې وي چې د هغه کاروبار شروع شي (المرقات ۵۴۹/۶) (**او تصنع لأخرق**) اخرق ناتجربه کار او د کاروبار نه ناخبره سړي ته وایې مطلب دا دی چې یو د فن ماهر سړی دی هغه لره پکار دي چې کاروبار او صنعت او حرفت او د مهارت نه ناواقفه سړي سره د هغه په فن کې مدد وکړي د دواړو جملو مطلب د یو مسلمان ورور سره د مدد کولو ترغیب دی. (المرقات ۵۴۹/۶)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وائي چې (یوه ورځ) د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یو باندې چې راغی |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | عَلِّمْنِي | عَمَلًا | يُدْخِلُنِي | الْجَنَّةَ |

او عرض يې وکړو چې تاسو ماته يو داسې عمل او ښائې د کوم په ذريعه سره چې جنت ته داخل شم؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | «لَئِنْ | كُنْتَ | أَقْصَرْتَ | الْخُطْبَةَ |

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل چې اګرچه تا مختصر سوال وکړو مګر د ډير اهم تفصيل د طلب تپوس دې وکړو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَقَدْ | أَعْرَضْتَ | الْمَسْأَلَةَ | أَعْتِقِ | النَّسَمَةَ | وَفك | الرَّقَبَةَ» |

(بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ته دا عمل او خودلو) چې ته نفس لره آزاد کړه او غلام ته نجات ورکړه. بانړه چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | أَو | ليسَا | وَاحِدًا؟ | قَالَ: |

عرض وکړو چې آيا دا دواړه خبرې (نفس آزادول او غلام ته نجات ورکول) يو نه دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| "لَا | عِتْقُ | النَّسَمَةِ: | أَنْ | تَفَرَّدَ | بِعِتْقِهَا | وَفَكُّ | الرَّقَبَةِ: |

نه! د نفس آزادول خو دا دي چې ته په آزادولو کې يواځې او مستقل يې او د غلام آزادول دا دي چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَنْ | تُعِينَ | فِي | ثَمَنِهَا | وَالْمِنْحَةَ: |

ته ددې په قيمت اداء کولو کې د هغه مدد وکړې پيو والا منحه (څاروی) ورکړې او په ظالم رشته دار

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْوَكُوفَ | وَالْفَيْءَ | عَلَى | ذِي | الرَّحِمِ | الظَّالِمِ | فَإِنْ | لَمْ | تُطِقْ | ذَلِكَ |

باندې مهرباني او احسان وکړې چې په تا باندې ظلم کوي کچيرې تا نه دا ونه شي نو په اوږې باندې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَطْعِمِ | الْجَائِعَ | وَاسْقِ | الظَّمْآنَ | وَأْمُرْ | بِالْمَعْرُوفِ | وَانْهَ | عَنِ | الْمُنْكَرِ |

خوراک او خوروه او په تږي باندې اوبه وڅکوه. دا رنګه (خلقو ته) د ښېګړې تلقين او تبليغ کوه او د بدۍ نه يې منع کوه.

فَإِنْ لم تطق فَكُفَّ لِسَانَكَ إِلَّا مِنْ خَيْرٍ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان.[1]

کچيرې ته دا هم ونه کړې شې نو بيا (کم نه کم دومره خو وکړه چې) د ښې خبرې نه علاوه خپله ژبه بنده کړه.

**توضيح**: **أَعْتِقِ النَّسَمَةَ وَفك الرَّقَبَةَ** نسمه روح ته وايي او په نفس هم ددې اطلاق کيږي **(الرَّقَبَة)** د غلام د آزادولو په معني سره دی **(وَفك)** فاء باندې ضمه ده او کاف باندې تشديد مفتوح او مکسور دواړه قسمه لوستلی شي دا هم د غلام د آزادولو په معنی سره دی دا دواړه لفظونه د معنې په اعتبار سره نزدې نزدې دي بلکې يو وو په دې وجه سوال کولو والا تپوس وکړو چې دا دواړه خو يو دي نبي عليه السلام ورته فرق او خودلو چې عتق هغه وي چې مثلاً تا يواځې چالره آزاد کړو په دې آزادۍ کې ته مستقل يې او **(فك)** هغه وي چې مثلاً تا ديو غلام په آزادولو کې چاسره په پيسو کې مدد وکړو،

---

(1) أخرجه أحمد في المسند٤/٢٩٩ والبيهقي في شعب الايمان ٤/٦٦ رقم الحديث ٤٣٣٥٠.

ددې باريک فرق نه دا خبره ثابتيږي چې د شارع کلام بالکل سرسري نه دي ګنړل پکار ځکه چې شارع هم په باريک اشارو کې کله مسئله بيانوي ځکه چې په قرآن او حديث کې ددې نظائر موجود دي، په دې د پوهيدو ضرورت دی لهذا په معتق، مولی، مدبر، مکاتب، ام ولده رقيق وغيره الفاظو کې فرق کول پکار دي. ( المرقات ۶/۵۵۰) **(المنحة)** د ميم کسره (زير) دی د ورکړې په معني سره وي دلته د منحة نه هغه اوښه يا غوا چيلۍ مراد ده چې د مال خاوندېې محتاج ته په دې وجه ورکوي چې هر کله په هغې کې پۍ وي هغه ترې پۍ حاصلوي هر کله چې پۍ ختم شي نو بيا مالک ته واپس کړی شي په عربو کې دارنګه ډير زيات رواج وو. ( المرقات ۶/۵۵۱) **الوكوف** واو مفتوح او ددې نه پس کاف باندې پيش دی دا د منحة صفت دی **کثير اللبن** څاروی مراد دی چې د هغې پۍ داسې مسلسل بهيدو سره څڅيږي څنګه چې اوبه د چت نه بهيدو سره راڅڅيږي **وکف** د چهت راڅڅيدو ته وايي. **الفيء** د رجوع او مهربانۍ او نرمۍ په معنی سره دی **(منحة او الفيء)** دواړه د فعل د مقدر کيدو د وجې نه منصوب دي **اي وامنح المنحة واثر الفيء**. ( المرقات ۶/۵۵۱)

| |
|---|
| **﴿۴﴾ وَعَن عَمْرو بن عبسة أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ بَنَى مَسْجِدًا** |
| او حضرت عمرو بن عبسه راوي دی چې نبي کريم ﷺ وفرمائيل چې يو سړې (وړوکی يا لوی) مسجد |
| لِيُذْكَرَ اللهُ فِيهِ بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ |
| جوړ کړي چې په دې کې د الله تعالی ذکر وکړی شي نو د هغه دپاره به په جنت کې يو لوی کور جوړ کړی |
| وَمَنْ أَعْتَقَ نَفْسًا مُسْلِمَةً كَانَتْ فِدْيَتَهُ مِنْ جَهَنَّمَ. |
| شي او څوک چې يو مسلمان غلام لره آزاد کړي نو هغه غلام به دده دپاره د دوزخ د اُور نه د خلاصي سبب وي |
| وَمَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي سَبِيلِ الله |
| او کوم سړی چې د الله په لاره کې (يعني په جهاد کې يا حج کې يا طلب د علم کې او يا اسلام کې څنګه چې په يو روايت کې |
| كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ» |
| فرمائيلي شوي دي) بوډا شي نو د هغه بوډوالی به د قيامت په ورځ د هغه دپاره نور (رڼا) وي (د کوم په وجه |
| رَوَاهُ فِي شرح السّنة (ضَعِيف)[1] |
| چې د هغې ورځې نه خلاصی مومي) دا حديث مصابيح والا (په خپل اسناد سره) شرح السنة کې نقل کړی دی. |

(1) أخرجه النسائي في السنن ۲/۳۱ رقم الحديث ۲۸۸ والبغوي في الشرح ۹/۳۵۵ رقم الحديث ۲۴۲۰ وأحمد في المسند ۴/۱۱۳

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د عالم د پاره روايت بالمعنى جائز دى

﴿۵﴾ عَن الغريف بن عَيَّاش الديلمي قَالَ: أَتَيْنَا وَاثِلَةَ بن الْأَسْقَع

حضرت غريف بن عياش ديلمي (تابعي) وايي چې مونږ د واثله بن اسقع رضي الله عنه په خدمت کې حاضر

فَقُلْنَا: حَدِّثْنَا حَدِيثًا لَيْسَ فِيهِ زِيَادَةٌ وَلَا نُقْصَانٌ

شو او عرض مو وکړو چې مونږ ته څه حديث بيان کړه چې په کې کمي بيشي نه وي حضرت واثله بن اسقع رضي الله عنه

فَغَضِبَ وَقَالَ: إِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَقْرَأُ

(دې خبرې اوريدو سره) غصه شو او وې ويل چې تاسو شپه او ورځ قرآن شريف لولئ او ستاسو

وَمُصْحَفُهُ مُعَلَّقٌ فِي بَيْتِهِ فَيَزِيدُ وَيَنْقُصُ

قرآن ستاسو په کورونو کې زوړند وي مګر ددې باوجو هم (د سهوې او خطا باوجود) کمي بيشي کيږي

فَقُلْنَا: إِنَّمَا أَرَدْنَا حَدِيثًا سَمِعْتَهُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم

مونږ عرض وکړو چې زمونږ مطلب خو صرف دا دی چې تاسو د نبي عليه السلام نه کوم حديث اوريدلی وي هغه مونږ ته بيان کړه،

فَقَالَ: أَتَيْنَا رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو حضرت واثله رضي الله عنه دا حديث بيان کړو (يو ورځ) مونږ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې

فِي صَاحِبٍ لَنَا أَوْجَبَ يَعْنِي النَّارَ بِالْقَتْلِ

د خپل يو دوست معامله يوړله چې هغه په (خود کشی کولو سره يا بل چا له په قصد سره) قتل کولو سره خپل ځان د پاره د دوزخ اور

فَقَالَ: «أعتقوا عَنهُ يُعتِق الله بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا

واجب کړې وو نبي عليه السلام وفرمائيل چې د هغه سړي د طرف نه (غلام) آزاد کړئ الله تعالى به ددې غلام

من النَّار». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ [1]

هر اندام په بدله کې (د دوزخ) د اور نه خلاصی ورکړي. (ابو داؤد)

---

(1) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/٢٧٣ رقم الحديث ٣٩٦٤

**توضیح** : **فَغَضِبَ** حضرت واثله بن اسقع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پو هه شو چې دا خلق د نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژبې مبارکې الفاظ بعينه هم هغه شان د نقل کولو مطالبه کوي څنګه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ارشاد فرمايلې وو په دې وجه غوسه شو مګر کله چې دې حضراتو صحابي لره پو هه کړو چې زمونږ مطلب دا دی نو دهغه غوسه ختمه شوه .**ومصحفه معلق** هغه وخت قرآن شريف په مجلد شکل کې نه وو بلکه په جدا جدا شيزونو باندې ليکلی شوی وو بيا دې تولو منتشرو شيزونو لره يې په يوه کپړه کې تړل او يو ديوال ته به يې زوړند کړي وو ، هم دې پس منظر لره په دې الفاظو سره بيان کړی شو ، ددې کلام نه معلومه شوه چې روايت بالمعنی کول جائز دي، هرکله چې مفهوم او مقصود يو وي، نخبة الفکر وغيره د اصول حديثو په کتابونو کې يې ليکلي دي چې روايت بالمعنی سيوا دعالم نه بل څوک نه شي کولی ( المرقات ۵۵۲/۶) **اوجب يعني النار بالقتل** يعنې هغه خودکشي کړې وه چې په هغې سره واجب النار شوی وو ، يا هغه بل څوک سړی قتل کړی وو او په غلطۍ سره يې هغه لره قتل کړی وو او دې سوال کوونکو خيال وکړو چې قتل خطاء هم موجب د دوزخ دی په دې وجه هغوی داسې الفاظ اداء کړل چې هغه واجب النار وو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل چې غلام آزاد کړه کفاره کافي ده، د زجاجة المصابيح په حاشيه کې دهغې مصنف ليکلي دي چې د غلام آزادولو د حکم نه پس ورکړی شوی وي او د قتل په وجه سره چې کومه سزا وه هغه کيدی شي چې دې خلقو د مخکې نه پوره کړی وي.

## د غلام په حق کې سفارش کول بهترينه صدقه ده

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ |
| او حضرت سمره بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل بهترينه صدقه هغه |
| الشَّفَاعَةُ بِهَا تُفَكُّ الرَّقَبَةُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيّ فِي «شعب الإِيمَان»[1] |
| سفارش دی چې د هغې په نتيجه کې (د غلام) څټ ته خلاصی حاصل شي. |

**توضیح** : **الشفاعة** : د سفارش مطلب دا دی چې سفارش کولو سره يې يو غلام آزاد کړو يا يو سړی خپل غلام لره قتلول غواړي يا هغه وهل غواړي يا دهمکي ورکوي په دې تنازعه کې سفارش کولو سره هغه مظلوم غلام لره بچ کول دا بهترينه صدقه ده .

---

(1) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۲۴ رقم الحديث ۷۶۸۲.

# باب اعتاق العبد المشترک وشری القریب والعتق في المرض

## د عبدِ مشترک او د مرض په حالت کې غلام لره د آزادولو بیان

**قال الله تعالی: (فکاتبوهم ان علمتم فیهم خیرا) (النور: ۳۳)**

د پاسني باب او عنوان لاندې چې د کومو مسائلو او احکامو متعلق احادیث راځي هغه مسائل او احکام په درې قسمه باندې وي یو خو د عبد مشترک مسائل او احکام دي په باب کې یو عنوان ددې دپاره قائم دی او ددې متعلق احادیث مذکور دي، د باب دویم عنوان دادی چې کچیرې یو سړی یو غلام واخستلو او هغه غلام ددې اخستونکي نزدې رشته دار ثابت شو نو صرف په اخستلو سره به هغه آزاد شي، څه احادیث ددې عنوان متعلق دي، دریم عنوان دادی چې کچیرې څوک په مرض الموت کې خپل غلام آزاد کړي نو ددې څه حکم دی؟ دا ټول مسائل او په دې کې د فقهاو اختلاف او د احادیثو نه استدلال په دې باب کې به بیانیږي، دارنګه په دې باب کې به د مدبر، ام ولده او مکاتب متعلق احادیث هم راځي.

### د شریک غلام د آزادولو مسئله:

### الْفَصْلُ الأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چې کوم سړی په یو (مشترک) |
| «مَنْ أَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِي عَبْدٍ وَكَانَ لَهُ مَالٌ |
| غلام کې خپله حصه آزاده کړي (نو هغه د پاره بهتره دا ده چې) کچیرې د ده سره دومره مال وي چې |
| يَبْلُغُ ثَمَنَ الْعَبْدِ قُوِّمَ الْعَبْدُ قِيمَةَ عَدْلٍ |
| (ددې غلام د باقي حصو) د قیمت برابر وي نو په انصاف سره به د دې غلام قیمت به لګولی شي او |
| فَأُعْطِيَ شُرَكَاؤُهُ حِصَصَهُمْ وَعَتَقَ عَلَيْهِ الْعَبْدُ |
| ددې غلام نورو شریکانو ته به د هغوی د حصو قیمت ورکړي هغه غلام به د هغه د طرف نه آزاد شي |
| وَإِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او کچیرې د هغه سره دومره مال نه وي بیا به ددې غلام هغه حصه چې دې سړي آزاده کړه هغه به آزاده وي |

(1) أخرجه البخاری فی صحیحه ۵/۱۵۱ رقم الحدیث ۲۵۲۲ ومسلم في ۲/۱۱۳۹ رقم الحدیث (۱۵۰۱.۱) وأبوداؤد في السنن ۴/۲۵۶ رقم الحدیث ۳۹۴۰ والترمذي في ۳/۶۲۹ رقم الحدیث ۱۳۴۶ والنسائی في ۷/۳۱۹ رقم الحدیث ۴۶۹۹ وابن ماجه في ۲/۸۴۴ رقم الحدیث ۲۵۲۸.

**توضیح**: من اعتق شرکا له: شرکا. په یو غلام کې د څو شریکانو نه د یو حصې ته شِرْکًا ویلی شوی دی (المرقات ۵۵۵/۶) یو قِنٌ مطلق دی او دویم حُر مطلق دی د دې دواړو په مینځ کې درجات دي مثلاً مکاتب، مدبر، ام ولده، او معتق البعض د دې ټولو جدا جدا احکام دي د حضرت عمر رضي الله عنه مذکوره حدیث کې دا مسئله بیان شوې ده چې کله د دوه سړو په مینځ کې یو غلام [illegible] یو شریک خپله حصه آزاده کړي نو اوس به څه کیږي په دې کې د فقهاو اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف**: جمهور، امام مالک رحمة الله، امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمایې چې کچیرې آزادوونکی مالدار وي نو هغه له پکار دي چې د شریکوال د حصې قیمت هم اداء کړي او پوره غلام د هغه د طرف نه آزاد کړی شي او ولاء هم آزادوونکي ته ملاو شي، او کچیرې آزادوونکی غریب وي نو د هغه د شریکوال حصه به غلامه وي د هغوي په نزد د غلام په اعتاق کې تجزي جائز ده، لهذا نیم غلام آزاد دی، یوه ورځ به دا د مالک په خدمت کې تیروي او یوه ورځ به آزاد او فارغ عیش کوي. (المرقات ۵۵۵/۶)

**صاحبین**: امام ابویوسف او امام محمد یعني صاحبین فرمایې چې کچیرې آزادوونکی مالدار وي نو د غلام بقیه نیم قیمت به دویم شریکوال ته اداء کوي او غلام به د هغه د طرف نه آزاد شي او ولاء به هم ده ته ملاویږي او کچیرې آزادوونکی غریب وي نو غلام به پخپله سعي او محنت کولو سره پیسې وګټي او خپل نیم قیمت به شریک مالک ته ورکړي نو آزاد به شي دې ته استسعاء ویلی شي، بهرحال د صاحبینو په نزد په هرصورت کې غلام آزادیږي ځکه چې د هغوي په نزد (اعتاق تجزي) لره نه قبلوي او دې آزادوونکي د خپل شریک حصه برباد کړه، لهذا د ضمان په طور به د خپل شریکوال د دې حصې قیمت اداء کوي کچیرې ده سره مال وي، او که نه وي په غلام استسعاء لازم ده.

**امام ابوحنیفه**: امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي چې کچیرې مشترک غلام لره آزادوونکی مالدار وي نو دهغه شریک ملګري ته د دریو خبرو اختیار حاصل دی یا خو به هغه هم خپل حصه آزادوي په ولاء کې به دواړه شریک وي، یا هغه آزاد کونکی به د خپل ملګري نه د هغه حصه په قیمت واخلي، یا به غلام سعي کولو سره خپله حصه وصول کړي، او کچیرې آزادوونکی پخپله غریب وي نو د هغه شریک ملګري ته به د دو خبرو اختیار حاصل وي: یا خو به هغه هم د الله تعالی د پاره خپله حصه آزاده کړي، او یا دې د غلام نه محنت واخلي او خپل حق دې ترې وصول کړي.

**په اعتاق کې د تجزیې بحث**: دا یو ځانله مشکل بحث دی چې آیا اعتاق تجزي قبلوي یا نه؟ د جمهورو په نزد اعتاق تجزي قبلوي، د امام ابوحنیفه په نزد هم اعتاق تجزي قبلوي ،البته د فقهي او اجتهادي اختلاف

د وجې نه په مسئله کې فرق راغی چې کومه پاس بیان کړی شوه، د صاحبینو مسلک دادی چې اعتاق قطعًا تجزي نه قبلوي همدا وجه ده چې د مشترک غلام یوه حصه هم کچیرې یو شریک آزاده کړه نو پوره غلام به هغه وخت آزاد شي، د دې بنیادي اختلاف په وجه د مسئلې په ثمراتو او نتائجو باندې اثر پریوځي، او په فقهاو کې اختلاف راغی دا خبره د یاد ساتلو ده چې امام ابوحنیفه چې د کوم اعتاق تجزي او د عدم تجزي خبره کوي هغه اعتاق بمعنی ازله ملک دی یعنې د یو شریک ملک زائل شو او د دویم ملک باقي دی، او صاحبین چې کوم اعتاق ته غیر متجزي وایې هلته اعتاق بمعني اثبات الحریة دی لهذا کله چې یو شریک خپله حصه آزاده کړه او دویم شریک له نقصان ورسیدو نو په دې کې تضمین یا استسعاء لازم ده، د احنافو امامانو په خپل مینځ کې چې کوم اختلاف دی دا په حقیقت کې د اعتاق تفسیر دی صاحبینو د اعتاق تفسیر اثبات الحریة سره کړی دی په اثبات الحریة کې د تجزي څوک هم قائل نه دي، او امام ابوحنیفه د اعتاق تفسیر په ازاله د ملک سره کړی دی او ازاله د ملک کې د تجزي ټول فقهاء قائل دي، لهذا دا اختلاف ګویا لفظي اختلاف دی یا دا د تعبیر او تفسیر اختلاف دی په دې مسئله کې د پوره بحث خلاصه دا راووتله چې د جمهورو په نزد د مشترک غلام آزادولو والا کچیرې په حالت د یسار کې (مالداری) وي نو هغه به خپل شریکوال ملګري ته ضمان اداء کوي، او کچیرې په حالت د اعسار او تنګدستی کې دی نو د شریک د پاره نه ضمان شته او نه استسعاء بس څومره غلام چې آزاد شي هغه حصه به آزاده وي او څومره حصه چې باقي پاتې شوه هغه غلام دی، یو ورځ به د خپلې نیمې حصې د مالک خدمت کوي او په دویمه ورځ به آزاد ګرځي، د دې حضراتو په نزد اعتاق تجزي قبلوي، امام ابوحنیفه په دې صورت کې فرمائي چې د معتق د مالداری په حالت کې دده شریکوال ته د دوو خبرو اختیار حاصل دی (۱) تضمین (۲) استسعاء (۳) لله في الله آزادول . او که معتق د غریبی په حالت کې وو نو دده شریکوال ته د دریو خبرو اختیار حاصل دی: (۱) مجانًا (بلا عوضه) دې خپله حصه آزاده کړي (۲) غلام نه دې استسعاء وکړي د امام صاحب رحمه الله په نزد هم اعتاق تجزي قبلوي، د صاحبینو په نزد د یوې حصې د آزادۍ په صورت کې پوره غلام به په هر صورت کې آزادیږي، ځکه چې په اعتاق کې د صاحبینو په نزد تجزي نشته دی، لهذا معتق باندې په حالت یسار کې د خپل شریک د پاره تضمین لازم دی او په حالت د اعسار کې په غلام باندې سعي لازم ده . د څو اصطلاحي الفاظو تشریح : په دې بحث کې د څوثقیلو الفاظو تشریح ضروري ده د دې د پاره چې قارئینو د پاره آساني وي: (۱) **تضمین** د دې معنی ضمان اداکول او تاوان ورکول، مطلب دا چې کله مالدار ملګري د بل ملګري سره شریک غلام کې خپله حصه آزاده کړه نو هغه دې د خپل ملګري د حصې تاوان ورکوي (۲) **استسعی** دا د محنت او کسب او د ګټې طلب کولو په معنی دی مطلب دا چې د غلام آزادولو والا چې کله غریب وي نو د ده خپل شریک ملګری

به د غلام نه د خپلې حصې د قيمت برابرګټه وصولوي (۳) ولاء: کوم سړی چې غلام آزاد کړي نو د غلام د مرګ نه پس د ده ميراث به آزادولو والا ته ملاويږي د دې ميراث نوم ولاء ده کچيرې دواړو کسانو غلام آزاد کړونو ولاء به دواړو ته ملاويږي (۴) معتق: دا د اسم فاعل صيغه ده يعني آزادولو والا دي يو غلام آزادولو والا ته معتق وائي (۵) تجزي: دا لفظ دلته د اعتاق سره استعمال شوی دی دا جزء جزء او ټکړې ټکړې کيدو په معنی دی په اعتاق کې تجزي ده د دې مطلب دا دی چې جزوئي اعتاق او جزوئي آزادي معتبره ده. (۶) حالت يسار: يسار مالدارۍ ته وايي حالت يسار کې يعني د مالدارۍ په حالت کې او حالت اعسار يعني د تنګدستۍ په حالت کې. (۷) مجانا: يعني مفت آزادول.

**د فقهاؤ دلائل**: جمهورو د اول فصل د ړومبي حديث يعني د زير بحث د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د حديث نه استدلال کړی دی، جمهور فرمايې چې دا حديث بالکل واضح دی چې کچيرې آزادولو والا مالدار وي نو هغه به دويم شريکوال ته صرف ضمان اداء کوي او کچيرې غريب وي نو بيا به غلام پاتې وي، بل څه صورت نشته دی، صاحبينو د بخاري او مسلم د ابوهريره رضي الله عنه د حديث نه استدلال کړی دی چې په دې باب کې حديث نمبر۲ دی، دارنګه صاحبينو د حديث نمبر ۱۰ نه استدلال کړی دی دواړه حديثه په واضح طور باندې ذکر دي چې اعتاق تجزي نه قبلوي بلکه د آزادولو والا کچيرې مالداره وي نو هغه به خپل شريکوال ته تاوان ورکوي او کچيرې غريب وي نو د غلام به سعي کوي د حديث الفاظ دا دي: (قال ان کان غنيا ضمن وان کان فقيرا سعى العبد في حصة الاخرى)

امام ابوحنيفه رحمه الله د جمهورو او د صاحبينو د دواړو د استدلالاتو نه خپل مسلک ثابت کړی دی او امام طحاوي رحمه الله هم د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه يو اثر په طور د دليل پيش کړی دی، شاه انورشاه صاحبؒ د مسند احمد د يو روايت او د مصنف عبدالرزاق يو روايت دا امام ابوحنيفهؒ د مسلک په تائيد کې نقل دي، بهرحال د صاحبينو مسلک ظاهري احاديثو ته په نظر سره ډير واضح دی او بيا د جمهورو مسلک واضح دی.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې نبي عليه السلام وفرمائيل چې کوم سړی |
| «مَنْ أَعْتَقَ شِقْصًا فِي عَبْدٍ أُعْتِقَ كُلُّهُ |
| (د مشترک) غلام نه خپله حصه آزاده کړي نو هغه غلام پوره آزاد شو (دا آزادي به د هغه آزادونکي سړي د طرف نه ګڼلی شي) |
| إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ |
| او کچيرې يو سړي سره (دومره) مال وي (چې هغه د خپلې حصې نه علاوه د باقي حصو قيمت اداء کولی |

فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ

شي نو نورو شريكانو ته دې دهغوی د حصو قيمت ورکړي) او کچيرې د ده سره دومره مال نه وي نو بيا به

مَالٌ اسْتُسْعِيَ العبد غير مشقوق

هغه غلام (د باقي حصو) په قدر (محنت مزدوري) يا د نورو شريكانو په خدمت کولو باندې به مامور

عَلَيْهِ» متفق عليه (صَحِيح)(۲)

کولی شي مګر غلام لره (په څه) مشقت کې دې مبتلا نه کړی شي (چې د هغه د طاقت نه بهر وي). (بخاري ومسلم)

## مسئلة الاعتاق في مرض الموت

﴿۳﴾ وَعَن عمران بن حُصَيْن: أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ سِتَّةَ مَمْلُوكِينَ لَهُ عِنْدَ مَوْتِهِ

او حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه راوي دی چې يو سړي د خپل مرګ په وخت کې خپل شپږ غلامان

لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُمْ

آزاد کړل او دې سړي سره د دې غلامانو نه علاوه نور مال نه وو (بيا د دې سړي د وفات نه پس چې کله

فَدَعَا بِهِم رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته پته ولګيده نو نبي عليه السلام) هغه غلامان راوغوښتل او (د دوو دوو په تعداد کې)

فَجَزَّأَهُمْ أَثْلَاثًا ثُمَّ أَقْرَعَ بَيْنَهُمْ فَأَعْتَقَ اثْنَيْنِ

يې د دوی درې حصې کړې او بيا يې د دوی په مينځ کې قرعه واچوله د غه شان يې په دوی کې دوو لره آزاد کړل

وَأَرَقَّ أَرْبَعَةً وَقَالَ لَهُ قَوْلًا شَدِيدًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ

او څلور يې پرېخودل او د آزادولو والا په باره کې يې (د ناراضګی اظهار) د پاره سخت الفاظ و فرمائيل.

وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْهُ وَذَكَرَ:

او د نسائي په روايت کې چې د حضرت عمران رضي الله عنه نه نقل دی د دې الفاظو په ځای دا الفاظ دي

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ۵/۱۳ رقم الحديث ۲۵۰۴ ومسلم في ۲/۱۱۴۰ رقم الحديث (۱۵۰۳.۳) وأبوداؤد في السنن ۴/۲۵۴ رقم الحديث ۳۹۳۷ والترمذي في ۳/۶۳۰ رقم الحديث ۱۳۴۸ وابن ماجه في ۲/۸۴۴ رقم الحديث ۲۵۲۷ وأحمدفى المسند ۲/۲۵۵

«لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ لَا أُصَلِّيَ عَلَيْهِ» بَدَلَ:

چې ما خو دا اراده کړې وه چې ددې سړي د جنازې مونځ ونه کړم. او د ابوداؤد په روایت کې داسې دي

وَقَالَ لَهُ قَوْلًا شَدِيدًا وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: قَالَ:

چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام (ددې سړي په حق کې په طور د زورنې) داسې وفرمائیل چې زه دده د دفن کولو

«لَوْ شَهِدْتُهُ قَبْلَ أَنْ يُدْفَنَ لَمْ يُدْفَنْ فِي مَقَابِرِ الْمُسْلِمِينَ» اخرجه مسلم (صَحِيحٌ)[٣]

نه مخکې دده جنازې ته رسیدلی وی نو د مسلمانانو په قبرستان کې به مې نه دفن کولو.

**توضیح**: اعتق ستة مملوکین: مملوکین د مملوک جمع ده یعني شپږ غلامان دې سړي آزاد کړل او همدا شپږ غلامان دده ټوله سرمایه وه په مرض الوفات کې په دې غلامانو کې دده د ورثو حق وو په دې آزادولو سره دې سړي د ورثو حق ضائع کړو په دې وجه نبي علیه السلام د ناراضګی اظهار وکړو او بیایې دا غلامانو درې حصې کړل قرعه (خسنی) یې واچولو په دریمه حصه کې یې عتق نافذ کړو او څلور غلامان یې پریخوستل، ددې حدیث نه دا مسئله معلومه شوه چې کچیرې یو کس د خپل مرګ په مرض کې خپل غلامان آزاد کړي او هغه سره ددې غلامانو نه علاوه بل څه مال نه وي نو دا عتق به په دریمه حصه کې نافذ وي په دې کې دټولو فقهاو اتفاق دی، البته دا مسئله چې کوم کوم غلام به آزاد وي او د آزادۍ د صورت به څه کیفیت وي په دې کې اختلاف دی. (المرقات ٦/٥٥٩، ٥٦٠)

**د فقهاو اختلاف**: جمهور فرمائي چې ټول غلامان به په دریو حصو کې تقسیمیږي بیا به د دریمې حصې د آزادۍ د تعین دپاره قرعه اچولی شي مثلا د شپږو غلامانو درې حصې جوړولو سره د قرعې په ذریعې سره یوه دریمه حصه یعني دوه به آزاد شي او دوه حصې یعني څلور به بدستور سابق غلامان پاتې شي چې وارثانو ته به ملاویږي لکه څنګه چې د عمران بن حصین رضي الله عنه په روایت کې بیان کړی شو.

امام ابوحنیفهؒ فرمائي چې په مذکوره صورت کې چې څومره غلامان وي د هر هر غلام به دریمه حصه آزادیږي او د باقي دوو حصو په آزادولو کې به غلام پخپله سعي او محنت کولو سره ګټه کوي او پیسې به به راوړي مالک ته به یې اداء کوي او خپل ځان به خلاصوي، ګویا چې د مرض الموت دا اعتاق به په ثلث مال کې نافذ ګڼلی شي او دا ثلث به په ټول مال کې شائع کیږي. (المرقات ٦/٥٦٠)

**دلائل**: جمهورو د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه د روایت نه استدلال کړی دی چې د ظاهري

---

(٣) أخرجه مسلم فی صحیحه ٣/١٢٨٨ رقم الحدیث (١٦٦٨.٥٦) وأبوداؤد فی السنن ٤/٢٦٦ رقم الحدیث ٣٩٥٨ والترمذي في ٣/٦٤٥ رقم الحدیث ١٣٦٤ والنسائی فی ٤/٦٤ رقم الحدیث ١٩٥٨ وابن ماجه في ٢/٧٨٦ رقم الحدیث ٢٣٤٥ وأحمد في المسند ٤/٤٢٨.

الفاظو په لحاظ سره په خپله مدعا باندې واضح دليل دی امام ابوحنيفهؒ فرمائي چې قرعه اندازي د اثبات حق دپاره نه وي بلکه دتطييب د خاطر دپاره وي، ها! د اسلام په ابتداء کې به قرعه اندازي د اثبات د حکم دپاره وه مګر روستو جواري حرامه کړی شوه نو دقرعه اندازۍ حکم هم موقوف شو او قرعه اندازي صرف د مقرره حصص د تعيين دپاره د تطييب خاطر په وجه باقي ده، د اثبات حق په باره کې منسوخ ده، امام طحاوي رحمه الله د قرعه اندازۍ د دې صورت په منسوخ کيدو باندې ډير دلائل پيش کړې دي، د مصنف عبدالرزاق يو روايت هم ددې په نسخ باندې دال دی چې دهغې الفاظ دادي :

**(روى عبدالرزاق بأسناد رجاله ثقات ان رجلا من بني عذرة اعتق مملوكا له عند موته وليس له مال غيره فاعتق رسول الله صلي الله عليه وسلم ثلثه وامره ان يسعى في الثلثين)**

همدا شان د مسند احمد د حديث نه په واضح طور باندې معلوميږي چې دهر غلام به يو ثلث آزاد وي.

جواب : ددې حديث تعلق د حرمت د قمار نه مخکې زمانې سره دی کله چې د قمار د حرمت حکم راغی نو داثبات د حق دپاره د قرعه اندازۍ حکم هم حرام وګرځيده، په قرآن او حديث کې د قمار حرمت څه پټ امر نه دی، لهذا د اثبات د حق دپاره د قرعه اندازۍ حکم منسوخ شوی دی، دويم جواب دادی چې ددې حديث واقعه يو جزئي واقعه ده ددې نه ضابطه نه شي جوړيدی، په حديث کې يو څو احتمالات هم کيدی شي او ددې الفاظو کې اضطراب هم دی، په بعضو کې د آزادولو او په بعضو کې د مدبر جوړولو الفاظ دي، په بعضو کې دشپږ غلامانو ذکر دی او په بعضو کې د يو غلام ذکر دی.

## د پلار حق څنګه ادا کيدې شي

| | |
|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل چې هيڅ يو ځوی د خپل | |
| «لَا يَجْزِي وَلَدٌ وَالِدَه إِلَّا أَن يجده مَمْلُوكا فيشتريَهُ | |
| پلار بدله نه شي ورکولی مګر په دې صورت کې چې کله هغه خپل پلار لره غلام وموميي او هغه واخلي | |
| فيعتقه». (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | |
| او آزادیې کړي. (بخاری مسلم) | |

**توضيح : فيعتقه** : کچيرې څوک سری خپل ذي رحم محرم يا خصوصًا د پلار مالک شي او په څه

---

([1]) أخرجه في صحيحه ۲/۱۱۴۸ رقم الحديث (۱۵۱۰.۲۵) وأبوداؤد في السنن ۵/۳۴۹ رقم الحديث ۵۱۳۷ والترمذي في ۴/۲۷۸ رقم الحديث ۱۹۰۶ وابن ماجه في ۲/۱۲۰۷ رقم الحديث ۳۶۵۹ وأحمد في المسند ۲/۲۳۰

طريقې سره دده په ملکيت کې راشي نو هغه به آزاديږي په دې کې د چا هم اختلاف نشته البته د آزادۍ په کيفيت او تفصيل کې لږ شان اختلاف دی: (المرقات ۶/۵۶۰)

**د فقهاؤ اختلاف**: د اهل ظواهرو غيرمقلدينو حضراتو په نزد ذي رحم محرم صرف په اخستو سره نه آزاديږي بلکې د اخستو نه پس به آزادول غواړي بيا به آزاديږي، د جمهورو فقهاؤ په نزد صرف په مالک جوړيدو سره آزاديږي د آزادولو ضرورت نشته.

**دلائل**: اهل ظواهر د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د زير بحث روايت نه استدلال کوي چې په دې کې د فيعتقه په الفاظو کې فاء د تعقيب مع الوصل دپاره ده يعنې مخکې اخستل او د اخستو نه پس د څوی پلار لره ازادول، معلومه شوه چې صرف په مالک جوړيدو سره نه آزاديږي بلکه د مالک جوړيدو نه پس آزادول ضروري دي. جمهورو فقهاؤ د حضرت سمرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د راتلونکي روايت نمر ۶ نه استدلال کړی دی چې په کې دا الفاظ راغلي دي (من ملک ذا رحم محرم فهو حر) دغه شان د ابن عمررضي الله عنه روايت دی کوم چې امام نسائي نقل کړی دی چې دهغې الفاظ دا رنګه دي (عن ابن عمر انه عليه السلام قال من ملک ذا رحم محرم عتق عليه) په دې دواړو حديثونو کې په نفس ملک سره د اعتاق حکم لګولی شوی دی د مستقلې آزادۍ څه ذکر نشته دی معلومه شوه چې صرف مالک جوړيدل د آزادۍ دپاره کافي دي. (المرقات ۶/۵۶۰)

**جواب**: د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت کې (فيعتقه) کې فاء د سببيت دپاره ده په دې صورت کې به ترجمه داسې وي چې هغه خپل پلار لره غلام وموندلو او هغه يې د دې دپاره واخستلو چې هغه آزاد کړي، د دې مسئلې تفصيل د حضرت سمره رضي الله عنه د حديث نمبر٦ لاندې هم راځي. (مرقات ۶/۵۶۱)

## مدبر غلام خرڅول جائز دي يا نه؟

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ جَابِرٍ: أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ دَبَّرَ مَمْلُوكًا وَلَمْ يَكُنْ لَهُ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې يو انصاري خپل غلام لره مدبر کړو او هغه سره د دې غلام نه علاوه |
| مَالٌ غَيْرُهُ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| نور هيڅ مال نه وو کله چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د دې پته ولګيده نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل |
| «مَنْ يَشْتَرِيهِ مني؟» فَاشْتَرَاهُ نعيم بن النَّحَّامِ بِثَمَانِمِائَةِ |
| چې دا غلام زما نه څوک اخلي؟ دا رنګه يو سړي نعيم بن نحام دې غلام لره د اتو سوو (۸۰۰) |

دِرْهَمٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: فَاشْتَرَاهُ نُعَيْمُ

درهمو په عوض کې واخستلو (بخاري ومسلم) د مسلم په روایت کې داسې دي چې یو سړي نعیم

بْنُ عَبْدِ اللهِ الْعَدَوِيُّ بثمان مائة دِرْهَم فجاء بِهَا

بن عبدالله عدوي دې غلام لره د اتو سوو (۸۰۰) درهمو په عوض کې واخستلو هغه اته سوه ۸۰۰ درهمه

إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَفَعَهَا إِلَيْهِ

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې پیش کړل او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه اته سوه درهم هغه سړي ته ورکړل (د چا چې

ثُمَّ قَالَ «ابْدَأْ بِنَفْسِكَ

غلام وو) او وې فرمائیل چې ته دا رقم د ټولو نه مخکې په خپل ځان باندې خرچ کړه د دې په ذریعې

فَتَصَدَّقْ عَلَيْهَا فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ فَلِأَهْلِكَ فَإِنْ

سره ثواب حاصل کړه او د دې نه پس که څه بچ شي نو په خپل اهل باندې خرچ کړه که هغوی باندې

فَضَلَ عَنْ أَهْلِكَ شَيْءٌ فَلِذِي قَرَابَتِكَ فَإِنْ

د خرچ کولو نه پس هم څه بچ شي نو دا خپل نزدې رشته دارانو باندې خرچ کړه که هغوی باندې هم د

فَضَلَ عَنْ ذِي قَرَابَتِكَ شَيْءٌ فَهَكَذَا وَهَكَذَا» يَقُولُ:

خرچ کولو نه پس څه پاتې شي نو دې لره دارنګه او دارنګه خرچ کړه. راوي وائي چې د دارنګه نه

فَبين يَدَيك وَعَن يَمِينك وَعَن شمالك (اخرجه البخاري ومسلم)(۵)

مراد دا دی چې) دا د خپل وړاندې ښي او ګس طرفته خرچ کړه (متفق علیه)

(یعني ستا مخې او ښي او ګس طرفته چې کوم سوال کوونکي جمع وي هغوي ته یې د الله دپاره ورکړه.)

**توضیح**: دبر مملوکا: غلام لره مدبر جوړول دارنګه وي چې مالک خپل غلام ته واوایې چې ته زما د مرګ نه پس آزادیې **(یعني اثبات العتق عن دبر)** مدبر په دوه قسمه دی: یو مدبر مطلق دی او بل مدبر مقید دی، مدبر مطلق هغه وي چې مالک هغه ته وواېي چې زما د مرګ نه پس ته آزادیې او مدبر مقید هغه دی چې مالک هغه ته وواېي چې زما په دې موجوده بیماری کې کچیرې زه مړ شوم نو ته آزادیې، اوس د مدبر مطلق په خرڅولو یا نه خرڅولو کې د فقهاو اختلاف دی: (المرقات ۵۶۲/۶)

(۵) أخرجه البخاري ۱۱/۶۰۰ رقم الحديث ۶۷۱۶ ومسلم في ۳/۱۲۸۹ رقم الحديث (۹۹۷.۵۸) والترمذي في ۳/۵۲۳ رقم الحديث ۱۲۱۹.

**د فقهاؤ اختلاف**: امام شافعيؒ او امام احمد بن حنبلؒ فرمائي چې د مدبر خرڅول جائز دي، امام ابوحنيفهؒ او امام مالکؒ فرمائي چې داسې غلام چې مدبر وي د هغه آزادول خو جائز دي مگر د دې خرڅول يا چا ته هبه کول يا په بله طريقه باندې د خپل ملک نه ويستل د بل په ملک کې ورکول جائز نه دي، ها! خپل ځان سره يې د خادم په طور ساتلى شي کچيرې وينځه ده نو هغې سره جماع هم کولى شي او بل ته يې په نکاح هم ورکولى شي مگر د خپل ملک نه ويستل جائز نه دي، د مدبر مقيد حکم د دې نه مختلف دى د هغه خرڅول هبه کول جائز دي خپل ځان سره يې ساتل هم جائز دي او د خپل ملک نه ويستل يې هم جائز دي او د مالک د مرگ نه پس مدبر مقيد به هم داسې آزاد شي څنگه چې مدبر مطلق آزاديږي. (المرقات، ۵۶۲،۵۶۳/۶)

**دلائل**: شوافعو او حنابلو د زير بحث د حضرت جابر رضي الله عنه د روايت نه استدلال کړى دى چې د هغې الفاظ بالکل واضح دي نبي عليه السلام فرمائي (**من يشتريه**) د حضرت نعيم په باره کې دي چې (فاشتراه) نو په خرڅولو او اخستلو کې څه شبهه نشته دى، لهذا د مدبر بيع جائز ده ، د احنافو ائمو او مالکيانو د حضرت ابن مسعود، حضرت عمر، حضرت عثمان وغيره اکثرو صحابو رضي الله عنهم اجمعين او د تابعينو د رواياتو او آثارو نه استدلال کړى دى، دارنگه په البدائع و الصنائع کې د امام ابوحنيفه رحمه الله دا مقوله نقل ده هغوي فرمائي (**لو لا قول هئولاء الاجلة لقلت بجواز بيع المدبر**) کچيرې د علم د دې غرونو قول مخې ته نه وى نو ما به د مدبر د بيعې د جواز فتوى ورکوله، احنافو او مالکيانو د دارقطني د يو روايت نه هم استدلال کړى دى چې د هغې الفاظ دارنگه دي (**المدبر لا يباع ولا يوهب وهو حر من ثلث المال**) (بحواله نصب الراية جلد ۳ صفحه ۲۸۵) دا حديث اگرچه موقوف دى مگر د غير مدرک بالقياس په صورت کې موقوف حديث د مرفوع په حکم کې وي.[٦]

**جواب**: د مذکوره حديث يو جواب دادى چې دا حديث په مدبر مقيد باندې محمول دى او د مدبر مقيد په بيع کې زمونږ اختلاف نشته دى، دويم جواب دادى چې نبي عليه السلام د هغه مدبر مدبريت ختم کړو او د هغې نه پس يې هغه خرڅ کړو دا د نبي عليه السلام خصوصيت وو، دريم جواب دادى چې دلته د بيعې اطلاق په اجاره باندې شوى دى او اجاره باندې د بيعې اطلاق کيږي نو دلته د بيعې نه بيع الخدمة يعني اجاره مراد ده، او د بعضې رواياتو نه ثابته ده چې د دې مدبر لره يې په اتو درهمو باندې په اجاره ورکړى وو. (نصب الرايه جلد ۳ صفحه ۲۸۶)

**تنبيه**: د مشکوة شريف په ټولو نسخو کې د لته نعيم بن نحام ليکلى شوى دى، شارحين وائي چې دا د

---

(٦) المرقات ۵۶۴/۶ نصب الرايه : ۲۸۵/۳

کاتب غلطي ده ځکه چې نعيم هغه د صحابي نوم دی او نحام د هغه لقب دی ځکه چې په حديث کې راځي چې نبي عليه السلام وفرمائيل چې په جنت کې زه کله داخل شوم نو ما د نعيم (نحمة) واوريده نحمه پټ غونډې آواز يا ټوخی کول، غاړه تازه کولو آواز ته وايي په دې وجه دده لقب نحام شو، کُنيې دده د پلار نوم عبدالله دی او حضرت نعيم په مکه مکرمه کې مسلمان شوی وو بيا د صلح حديبه په زمانه کې يې مدينې ته هجرت وکړو ده سره د خاندان څلويښت کسان هم وو دا د شام په زمکه په يوه غزوه کې شهيد شو. (مرقاة ملاعلي قاري) (المرقات ۵۶۲/۶، ۵۶۱)

## ذي رحم په ملکيت کې راتلو سره آزاديږي

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾ عَنْ | الحسن | عَنْ | سَمُرَةَ | عَنْ | رَسُولِ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت حسن بصري رحمه الله د حضرت سمره رضي الله عنه نه او هغه د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې | | | | | | | | | |
| قَالَ: | «من | | | ملك | | ذَا | | | رحم |
| نبي عليه السلام وفرمائيل چې کوم سړی که په اخستلو سره او که په هبه کولو يا د وراثت په ذريعې) سره د خپل ذي محرم | | | | | | | | | |
| محرم | فَهُوَ | حُرٌّ». | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَأَبُو دَاوُدَ | وَابْنُ | مَاجَه.[۷] | | |
| د خپل ذي رحم محرم مالک شو نو هغه به آزاديږي. (روايت کړی دی ابوداؤد او ابن ماجه) | | | | | | | | | |

**توضيح: من ملک ذا رحم محرم:** ذي رحم محرم نه هغه خلق مراد دي چې د هغوی په خپل مينځ کې هم نکاح نه کيږي مثلاً تره، وراره، ترور (د پلار خور) خاله (د مور خور)، نانا (د مور پلار) ناني (د مور مور) دادا (د پلار پلار) دادي (د پلار مور) اصول او فروع، اوس د فقهاو په دې کې اختلاف دی چې کوم يو قرابت موجب د حريت دی او کوم نه دی. (المرقات ۵۶۵/۶)

**د فقهاو اختلاف:** د امام شافعيؒ په نزد قرابت ولادت يعني اصول او فروع موجب د حريت دي، لهذا دا حريت پلار نيکه موريانې او نياګانې پورته پورې او ځامن او لونړه لاندې پورې ټولو کې ثابتيږي. او قرابت اخوت وغيره کې حريت نه ثابتيږي، احناف مالکيان او حنابله جمهور فرمائي چې د هر قسمه قرابت والا چې کله د خپل ذي رحم محرم مالک جوړ شي نو هغه غلام به آزاديږي که قرابت ولادت وي او يا قرابت

---

(۷) أخرجه أبوداؤد في السنن ۴/۲۵۹ رقم الحديث ۳۹۴۹ والترمذي في ۳/۶۴۶ رقم الحديث ۱۳۶۵ وابن ماجه في ۲/۸۴۳ رقم الحديث ۲۴ وأحمد في المسند ۲۰/۵.

اخوت وي. (المرقات ۶/۵۶۵)

**دلائل**: شوافع حضرات فرمائي چې دمالک او آقا د رضامندۍ نه بغير صرف په اخستلو سره د غلام آزاديدل خلاف قياس دي مګر د قرابت ولادت يعني اصولو اوفروعو کې دا حکم خلاف القياس ثابت شوی دی، لهذا دا نص به په خپل مورد کې بند او منحصر وي نو د اصولو او فروع نه سوا اخوت وغيره ته به شامل نه وي، جمهورو د حضرت سمره رضي الله عنه زير بحث حديث نه استدلال کړی دی چې په خپل مفهوم او مضمون کې مطلق دی چيرته چې ذي رحم محرم الفاظ راغلي دي، لهذا دا مطلق به په خپل اطلاق باندې جاري ساتلی شي په دې کې د قرابت ولادت څه تخصيص نشته دی، نو اصول اوفروع او اخوت وغيره ټولو ته به شامل وي، شوافعو ته دا جواب دی چې کله صريح حديث موجود وي نو د قياس څه ضرورت دی. (المرقات ۶/۵۶۶)

## مسئلة بيع ام الولد

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذَا |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائيل چې کله |
| وَلَدَتْ أَمَةُ الرَّجُلِ مِنْهُ فَهِيَ مُعْتَقَةٌ عَنْ دُبُرٍ |
| د چا وينځه د هغه د (نطفې) نه بچی وزيږوي نو هغه وينځه به دده د مرګ پسې يا يې دا وفرمائيل |
| مِنْهُ أَوْ بَعْدَهُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ (صَحِيح)[۸] |
| چې دده د سرې د مرګ نه پس آزاده شي. (دارمي) |
| ﴿۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عنه قَالَ: بِعْنَا أُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې مونږ د ماشومانو ميندې (ام ولدې) لره خرڅه کړه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| وَأَبِي بَكْرٍ فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ |
| او د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې مګر چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خليفه شو نو |
| نَهَانَا عَنْهُ فَانْتَهَيْنَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (صَحِيح)[۹] |
| هغوی مونږ ددې نه منع کړو او مونږ ددې نه منع شو (رواه ابوداؤد) |

(۸) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۸٤۱رقم الحديث ۲۵۱۵والدارمي ۲/۳۳٤ رقم الحديث ۲۲۷۳ وأحمد في المسند ۱/۳۰۳

(۹) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/۲٦۲ رقم الحديث ۳۹۵٤ وابن ماجه ۲/۸٤۱ رقم الحديث ۲۵۱۷

**توضيح**: اذا ولدت امة الرجل: ام ولده هغه وينځې ته وايي چې د مالک په جماع کولو سره د هغې بچي شوی وي د ام ولدې په خرڅولو او نه خرڅولو کې دفقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: اهل ظواهرغيرمقلدين وايي چې دام ولدې خرڅول جائزدي مګرد جمهوروفقهاؤاو تابعينوپه نزددام ولدې خرڅول جائزنه دي، شيخ ابن قدامه په عدم جوازباندې دصحابو اجماع نقل کړې ده

**دلائل**: اهل ظواهر د حضرت جابر رضي الله عنه دحديث نمبر۸ نه استدلال کوي چې (**بعنا امهات الاولاد علي عهد رسول الله صلي الله عليه وسلم**) جمهور د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د حديث نمبر۷ نه استدلال کوي چې په هغې کې (**فهي معتقة**) الفاظ راغلي دي نو کله چې د ماشوم په زيږيدو سره ام ولده آزاده شوه او په هغې باندې دعتق حکم ولګيدو بيا دهغې خرڅول به څنګه جائزوي، د جمهورو دويم دليل دحضرت ماريه قبطيه رضي الله عنها واقعه ده چې دنبي عليه السلام وينځه وه چې مقوقس بادشاه په طور د تحفې د مصر نه دنبي عليه السلام په خدمت کې راليږلې وه دهغې نه چې کله ابراهيم (دنبي عليه السلام ځوی) پيدا شو نو نبي عليه السلام وفرمايل (**اعتقها ولدها**) د جمهورو دريم دليل زير بحث د حضرت جابر رضي الله عنه حديث نمبر۸ دی چې په هغې کې د امهاتو د اولاد د خرڅولو ممانعت حضرت عمر رضي الله عنه دصحابه کرامو رضي الله عنهم په مشورې سره فرمايلی وو ټولو صحابه کرامو قبول کړی وو، نو په عدم جواز باندې دصحابو اجماع وشوه، اهل ظواهر اکثر او زيات ددې مسائلونه انکارکوي چې دصحابه کرامو په مبارکه زمانه کې منضبط شوې، د درې طلاقو په بحث کې ددې تفصيل تيرشوی دی. **جواب**: اهل ظواهرو ته جواب دادی چې مخکې ام ولده خرڅول جائز وو بيا منسوخ شو د صديق اکبر رضي الله عنه زمانه کښې وه داخلي او بيروني خطرات وو په دې وجه هغوی د مسائلو منضبط کيدو دپاره فارغ نه وو، بيا دعمرفاروق رضي الله عنه زمانه کې دام ولدې په خرڅولو پابندي ولګيده او د عدم جوازعام اعلان وشو، د حضرت عمر رضي الله عنه د زمانې دا يوه واقعه نه ده بلکه داسې ډير واقعات مخې ته راغلي دي دا د صحابو کرامو رضي الله عنهم په مشورې او اتفاق سره کيده چې د اجماع امت حيثيت لري.

## د معتق غلام د مال حکم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا | | | | | | |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم وفرمائيل چې کچيرې يو سړی خپل غلام | | | | | | |
| وَلَهُ | مَالٌ | فَمَالُ | الْعَبْدِ | لَهُ | إِلَّا | أَنْ |
| آزاد کړي او ددې غلام سره څه مال وي نو دغلام هغه مال د هغه د مالک دی ها کچيرې مالک | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَشْتَرِطَ | السَّيِّدُ». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ | وَابْنُ | مَاجَهْ | (صَحِيحٌ)[١٠] |

ددې شرط وکړي (نو بيا هغه مال به د غلام وي) روايت کړې دې ابو داؤد او ابن ماجه.

**توضیح** : وله مال: دلته سوال دا پيدا کيږي چې دا خبره فيصله شوې ده چې غلام د هيڅ يو مال مالک نه وي د هغه په ملکيت کې چې څه وي هغه به د آقا وي نو بيايې دلته څنګه وفرمائيل (وله مال) ددې جواب دادی چې دا غلام مثلاً ماذون وي چې مالک ورته د ذاتي ګټې وتې اجازت ورکړی وي نو هغه د محنت او مزدورۍ کولو سره مال جمع کړی وي نو د آزادۍ په وخت به دا مال د غلام وي يا د مولی په دې کې اختلاف دی: (المرقات ۶/۵۷۲)

**د فقهاؤ اختلاف** : د امام مالک رحمه الله، حسن بصري رحمه الله او د اهل ظواهرو مسلک دادی چې دا مال د غلام دی هغه ته به ملاوېږي، د جمهور فقهاؤ مسلک دادی چې د غلام د عتق په وخت کې چې کوم مال د غلام سره دی هغه دده د مولی دی ها کچیرې هغه وخت مولی دا ووائي چې دا مال به د غلام وي نو دا به د هغه مولی د طرف نه غلام د پاره صدقه او هبه وي. (المرقات ۶/۵۷۲)

**دلائل** : امام مالک رحمه الله وغيره حضرات د زير بحث د حضرت عمر رضي الله عنه د حديث نه استدلال کړی دی د استدلال طرز داسې دی چې د (**فمال العبد له**) ضمير (عبد) طرفته راجع دی او چونکه عبد نزدې هم دی لهذا د ضمير حق همدا دی چې (**العبد**) طرفته راجع کړی شي، مطلب د حديث به داسې وي چې د غلام هغه مال به د غلام وي ها کچيرې مولی دا شرط اولګوي چې د غلام مال به زما وي نو د هغه شرط به منلی شي، دې حضراتو د مسند احمد د يو روايت نه استدلال هم کړی دی د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت دی (**عن ابن عمر عن النبي صلى الله عليه وسلم قال من اعتق عبدًا وله مال فالمال للعبد**) (رواه احمد) په دې روايت کې هيڅ ضمير نشته بلکه تصريح ده چې مال به غلام ته ملاوېږي. (المرقات ۶/۵۷۲)

**جمهورو فقهاؤ** هم د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د زير بحث حديث نمبر ۱ نه استدلال کړی دی، د استدلال طرز داسې دی چې (**فمال العبد له**) کې د له ضمير مولی طرف ته راجع دی، مطلب دا شو چې د غلام مال به مولی ته ملاوېږي ها کچيرې مولی دا شرط ولګولو چې دا مال به غلام ته ملاوېږي نو بيا مال به د غلام وي او د مولی د طرف نه به هبه او صدقه شي، جمهورو د بخاري او مسلم د روايت نه استدلال کړی دی چې د هغې الفاظ دا دي (**من باع عبدا وله مال فماله للبائع**) ددې روايت نه د زير بحث حديث تشريح او تفسير

---

([١٠]) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/٢٧٠ رقم الحديث ٣٩٦٢ وابن ماجه في ٢/٨٤٥ رقم الحديث ٢٥٢٩

هم وشو چې (فمال العبد له) کې د له ضمیر مولی طرف ته راجع دی، جمهورو د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د روایت نه هم استدلال کړی دی چې دهغې الفاظ دادي چې (وعن ابن مسعود قال سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقول من اعتق عبدا فماله للذي اعتق) (بیهقي) ملاعلي قاريؒ په مرقات کې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه نور روايات هم د جمهورو په حق کې نقل کړي دي.

**جواب**: مالکیانو او اهل ظواهرو چې د مسند احمد کوم روایت د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه نقل کړی دی ملاعلي قاري فرمائي دا روایت خطا دی (قیل الحدیث خطأ) لهذا هغه قابل استدلال نه دی، باقي په زیر بحث حدیث کې د له ضمیر مولی طرف ته راجع دی نو دا د جمهورو مستدل دی، بنده عرض کوي چې زیر بحث حدیث کې (ان یشترط السید) الفاظ ددې توجیه سره په ظاهره موافقت نه خوري د اسلوب کلام تقاضا ده چې ضمیر د غلام طرفته راجع شي والله اعلم. (المرقات ۵۷۲/۶)

## د پوره غلام آزادولو ترغیب

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ | الْمَلِيحِ | عَنْ | أَبِيهِ: | أَنَّ | رَجُلًا |
| او حضرت ابو ملیح (تابعي) د خپل پلار (حضرت اسامه بن عمر رضي الله عنه) نه روایت کوي چې یو | | | | | |
| أَعْتَقَ شِقْصًا مِنْ غُلَامٍ فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: | | | | | |
| سړي په غلام کې یوه حصه آزاد کړه کله چې نبي علیه السلام ته ددې ذکر وکړی شو نو نبي علیه السلام وفرمائیل | | | | | |
| «لَيْسَ لِلّٰهِ شَرِيكٌ» فَأَجَازَ عتقه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (جيد)[1] | | | | | |
| چې د الله تعالى څوک شریک نشته، او بیایې دا حکم وکړو چې دا غلام دې بالکل آزاد کړی شي. (ابو داؤد) | | | | | |

**توضیح**: **لیس لله شریک**: مطلب دادی چې په هیڅ یو عبادت کې د الله تعالی سره څوک شریک کول نه دي پکار او اعتاق عبادت دی، لهذا کله چې څوک سړی نیم غلام آزاد کړي او نیم غلام پریږدي نو ګویا دا سړی په دې غلام کې د الله تعالی سره شریک شو نیم د الله تعالی دی او نیم دده دی او د الله تعالی سره څوک شریک نشته دی، نو دا عمل مناسب نه دی، ددې حدیث نه معلومه شوه چې اعتاق تجزي نه قبلوي، او همدا مسلک د صاحبینو رحمهما الله دی مګر د جمهورو او امام ابو حنیفهؒ په نزد اعتاق تجزي قبلوي دهغوی په نزد ددې حدیث مطلب دادی چې نبي علیه السلام د پوره غلام آزادولو ترغیب ورکړی دی چې کله آزادول وي نو بیا پوره ثواب وګټه. (مرقاة ۵۷۲/۶)

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/٢٥١ رقم الحديث ٣٩٣٣ وأحمد في المسند ٥/٧٤ .

## د مشروط آزادئ یوه واقعه

﴿۱۱﴾ وَعَنْ سفينة قَالَ: كُنْتُ مَمْلُوكًا لِأُمِّ سَلَمَةَ

او حضرت سفینه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې (مخکې) زه د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په ملکیت کې وم (یوه ورځ) هغې

فَقَالَتْ: أُعْتِقُكَ وَأَشْتَرِطُ عَلَيْكَ

ماته وفرمائیل چې زه ستا آزادول غواړم مګر دا شرط درباندې لګوم چې ته کومه پورې هم ژوندی

أَنْ تَخْدُمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عِشْتَ فَقُلْتُ:

یې نو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت به کوې. ما عرض وکړو (چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت خو

إِنْ لَمْ تَشْتَرِطِي عَلَيَّ مَا فَارَقْتُ

زما دپاره د سعادت او خوش بختۍ د ټولو نه لویه ذریعه ده) کچیرې تا دا شرط نه لګوو نو بیا به

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عِشْتُ فَأَعْتَقَتْنِي وَاشْتَرَطَتْ عَلَيَّ.

هم زه د خپل زړه نه د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه جدا کېدم نو دارنګه حضرت ام سلمه رضي الله عنها زه آزاد کړم

رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ (حسن)[۱۲]

او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خدمت شرط په ما باندې ولګیدو. (ابو داؤد، ابن ماجه)

**توضیح**: **وعن سفينة رضي الله عنه**: حضرت سفینه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ام المؤمنین حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا غلام وو هغې ته نبي علیه السلام د خدمت دپاره ورکړی وو حضرت ام سلمه رضي الله عنها آزاد کړو او دنبي علیه السلام د خدمت شرط یې ولګوو، ویلی شي چې سفینه د هغه لقب وو او د هغه په اصل نوم کې اختلاف دی بعضو رباح خودلی دی، بعضو مهران ویېلی دی، بعضو روحان خودلی دی، ویلی شي چې دا د فارس وو ده ته د سفینه ویلو وجه دا شوه چې یو ځل نبي علیه السلام سره په سفر کې وو څه کسان په سفر کې ستړي شول نو هغوی خپله وسله او نور سامان ده په اوګو باندې واچوه، دارنګه هغه ډیر سامان راوچت کړی وو نو نبي علیه السلام وفرمائیل (الت سفينة) یعنې ته خو کشتۍ یې. (مرقاة ۵۷۲/۶) بس دا نوم یې شو د شام په زمکه د جهاد په دروان کې دا د نورو صحابه کرامو سره ګرفتار شوی وو. بیا دا د قید نه راوتختیدلو او د ځنګل په نامعلومه لار باندې روان وو مخې ته یې زمری راغی، ده ورته وفرمائیل ای ابوالحارث زه د محمد عربي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غلام سفینه یم، زمری د لکۍ په خوزولو سره ده د حفاظت دپاره رامخکې شو او هغه یې آبادۍ طرفته بوتلو، علامه خطابي فرمائیلي

---

(۱۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/٢٥٠ رقم الحديث ٣٩٣٢ وابن ماجه في ٢/٨٤٤ رقم الحديث ٢٥٢٦ وأحمد في المسند ٥/٢٢١

دي چې دا په حقیقت کې د ام سلمه رضي الله عنها وعده وه مګر د شرط په نوم سره یې یاد ولي شي، او اکثرو فقهاو د غلام د آزادولو نه پس دغه شرط لګول صحیح نه دی ګڼلی، ځکه چې دا داسې شرط دی چې د ملکیت سره متعلق نه دی ځکه چې غلام خو به آزاد شي او د آزاد سړي نه د اجرت او مزدورۍ نه علاوه فائده نه شي اوچتولی. تفصیل د پاره ملاعلي قاري مرقات اوګورئ. (مرقاة ۵۷۲/۶)

## د مکاتب احکام

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار او هغه د نیکه نه او هغه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نقل کوي چې |
| قَالَ: «الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ مِنْ مُكَاتَبَتِهِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائیل چې مکاتب به (تر هغه وخته پورې) غلام وي کله پورې چې د ده بدل کتابت |
| دِرْهَمٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (ضَعِيف)[۱۳] |
| کې یو درهم هم باقي وي. (ابوداؤد) |

**توضیح: المکاتب عبد**: مکاتب هغه غلام ته وایې چې مولی ده ته ویلي وي چې دومره پیسې اداء کړه نو ته آزاد یې، اوس کچیرې یو روپۍ هم باقي وي نو جمهور فرمایي چې هغه به غلام وي آزاد به نه وي، او کچیرې د آخري روپۍ ورکولو نه عاجزه شو نو په مکمل طور باندې به غلام وي. د جمهورو نه علاوه بعضې علماء او ابراهیم نخعي ویلي دي چې مکاتب څومره پیسې ادا کړې نو دومره آزاد دی او څومره پیسې چې باقي پاتې دي نو دومره به غلام وي، دې حضراتو د راتلونکي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د روایت نمبر ۱۰ نه استدلال کړی دی، اوس د دې زیر بحث حدیث او د حدیث نمبر ۱۰ په مینځ کې په ظاهر تعارض هم دی: جمهورو د واضحو احادیثو نه استدلال کړی دی او تقریبا پوره امت په دې نظریه باندې قائم دی چې مکاتب آخري روپۍ د اداء کولو پورې به غلام وي، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روایت امام ترمذي ضعیف ګرځولی دی لهذا هغه روایت د نورو صحیح روایاتو په مقابله کې قابل د استدلال نه دی دارنګه په دې روایت باندې د ابراهیم نخعي نه علاوه بل هیڅ چا عمل نه دی کړی. (مرقاة ۵۷۲/۶)

## د ښځو د خپل مکاتب غلام نه د پردې حکم

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا كَانَ |
| او حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وائي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (ښځو ته) وفرمائیل چې کله په تاسو کې |

(۱۳) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲۴۲/۱ رقم الحديث ۳۹۲۶

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عِنْدَ | مكاتب | إحدا | كن | وَفَاء |

دیوې (ښځې) د مکاتب غلام سره دومره پیسې وي چې په هغې سره هغه بدل کتابت اداء کولی شي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فلتحتجب | مِنْهُ». | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَأَبُو دَاوُدَ | وَابْنُ مَاجَهْ [١١] |

نو دې (مالکې) له پکار دي چې هغه ددې مکاتب نه پرده کوي. (ترمذي ابوداؤد، ابن ماجه)

**توضیح**: فلتحتجب: یعنې مکاتب سره د بدل کتابت موجود شو نو هغه مالکې له پکار دي چې دده نه پرده کوي کله چې هغه غلام وو نو دده هغه نه پرده نه وه مگر اوس پرده کول دي، اوس سوال دا دی چې په احادیثو کې په صفا طور باندې راغلې دي چې مکاتب باندې کچیرې یو درهم هم باقي وي نو هغه غلام دی نو دلته د هغه ازادول گرځولو او د پردې حکم څنگه ورکړی شو؟ ددې جواب علماو دا ورکړی دی چې د پردې حکم بطور تقوی او بطور احتیاط ورکړی شو، دویم جواب دا دی چې اوس دا هغه ښځه د پردې تیاری وکړي د پردې دپاره دې ذهني طور سره تیاره اوسي ځکه چې څه وخت هم هغه غلام آزادیدی شي، بعضو دا جواب ورکړی دی چې دا حکم د امهات المؤمنین سره خاص وو ځکه چې دهغوی شان هم ځانله وو، اوس پاتې شوه دا خبره چې د غلام نه د مالکې پرده ضروري ده یا ضروري نه ده ددې تفصیل د باب النظر الی المخطوبه په حدیث نمبر ۳ کې تیرشوی دی. (مرقاة ۶/۵۷۴)

## د مکاتب د طرف نه د جزوئي ادائیگۍ مسئله

﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | "مَنْ | كَاتَبَ | عَبْدَهُ | عَلَى | مِائَةِ | أُوقِيَةٍ |

وفرمائیل چې کچیرې یو کس خپل غلام لره د سلو اوقیو په بدل کې مکاتب کړو او غلام ټولې اوقیې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَدَّاهَا | إِلَّا | عَشْرَ | أَوَاقٍ | أَوْ | قَالَ: |

اداء کړې مگر لس اوقیې یې ادا نه کړی شوې یایې دا وفرمائیل چې لس دیناره یې اداء نه کړی شو (دلته راوي ته شک

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَشَرَةَ | دَنَانِيرَ | ثُمَّ | عَجَزَ |

شوی دی چې نبي علیه السلام لس اوقیې فرمائیلې وې که د لسو دینارو ذکریې کړی وو) او بیا هغه د

---

(۱۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/٢٤٤ رقم الحديث ٣٩٢٨ والترمذي في ٣/٥٢٦ رقم الحديث ١٢٦١١ وابن ماجه في ٢/٨٣٢ رقم الحديث ٢٥٢٠.

فَهُوَ رَقِيقٌ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه.[۱۵]

دې باقي د اداء کولو نه عاجزه شو نو هغه مکاتب به غلام وي.

﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذَا

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل کچيرې

أَصَابَ الْمُكَاتَبُ حَدًّا أَوْ مِيرَاثًا وَرِثَ بِحِسَابِ

يو مکاتب د ديت يا ميراث مستحق شي نو هغه ته به (ددې ديت يا ميراث نه) صرف دومره قدرې

مَا عَتَقَ مِنْهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ

ملاويږي څومره قدرې چې هغه آزاد دی (ابوداؤد ترمذي) او د ترمذي په يو روايت کې داسې دي

قَالَ: «يُودَى الْمُكَاتَبُ بِحِصَّةِ مَا

چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل مکاتب ته په ديت کې د هغه د حصې په قدر مال ورکولی شي کوم چې ده

أَدَّى دِيَةَ حر وَمَا

د خپلې آزادۍ د قيمت (يعني بدل کتابت) کې اداء کړي وو د هغې حصې په قدر به قيمت ورکولی شي

بَقِيَ دِيَةَ عبد». وَضَعفه[۱۶]

چې څومره اوس بطور غلام باقي دی. دې روايت ته ترمذي ضعيف ويلی دی.

**توضيح: اصاب حدا او ميراثا:** يعني د ديت يا ميراث مستحق شي (اصاب) د موندلواو د مستحق جوړيدلو په معنی دی (ورث) د حسب په وزن باندې د معلوم صيغه ده په بعضو نسخو کې د مجهول هم ده (بحسب) دا لفظ د حساب او مقدار په معنی سره دی (وفي رواية له) دا ضمير ترمذي طرف ته راجع کيږي (يودي) دا د مجهول صيغه ده ودي يدي دية نه دی دلته د **يُعطي** د ورکولو په معني سره دی (ادّی) د دال مشدد سره اداء کولو په معني سره دی (دية حر) دا منصوب دی او د **يؤدی** دپاره مفعول به دی او د (ما ادی) مفعول به محذوف دی چې النجوم دی چې معنی يې حصه او قسط دی او (دية عبد) هم

---

(۱۵) أخرجه أبوداؤد في ٤/٣٤٤ رقم الحديث ٣٩٢٧ والترمذي في ٣/٥٢٦ رقم الحديث ١٢٦١ وابن ماجه في ٢/٨٤٢ رقم الحديث ٢٥١٩ وأحمد في المسند ٢/١٧٨.

(۱٦) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/٧٠٦ رقم الحديث ٤٥٨٢ والترمذي في ٣/٥٦٠ رقم الحديث ١٢٥٩ والنسائي في ٨/٤٦ رقم الحديث ٤٨١١.

منصوب دی اصل عبارت داشان دی (**اي يعطي المكاتب دية حر بحساب ما اداه من النجوم ويعطي دية العبد بحساب ما بقي علية**) يعني مكاتب ته به د خپلې آزادۍ په حساب سره دومره مال [illegible] څومره چې هغه د خپلې آزادۍ دپاره اداء کړی دی او څومره د غلامۍ حصه چې پاتې شوه په هغې [illegible] سره به هغه ته دیت ورکولی شي، په دې حدیث باندې په یو مثال سره پوهیدل پکار دي چې مثلاً زید مکاتب وو هغه نیم بدل کتابت اداء کړی وو چې دهغه پلار مړ شو او دا واحد یواځې وارث وو نو دپلار په میراث کې به نیم میراث زید ته ملاویږي دا د میراث مثال شو، د دیت مثال داسې دی چې مثلاً دې مکاتب د خپل بدل کتابت نیم مال اداء کړی وو چې دا چا قتل کړو اوس به د دې مکاتب وارثانو ته دده د دیت نه نیم مال ملاویږي او نیم مال به د دې مکاتب مالک ته ملاویږي، ګویا د غلامۍ چې کومه حصه وه د هغې دیت به دده مالک ته ملاویږي او د آزادۍ چې کومه حصه وه هغه به دده ورثو ته ملاویږي، بهرحال په دې حدیث باندې صرف ابراهیم نخعي عمل کړی دی د باقي جمهورو فقهاو په نزد دا حدیث معمول به نه دی بلکې هغه حدیث معمول به دی په کوم کې چې راغلي دي (**المكاتب عبد ما بقي عليه من مكاتبته درهم**). (مرقاة ۶/۵۷۵، ۵۷۴)

## د مالي عبادت ثواب مړي ته رسیږي

## الفصل الثّالث

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ الْأَنْصَارِيِّ: أَنَّ أُمَّهُ |
| د حضرت عبدالرحمن بن ابوعمره انصاري (تابعي) په باره کې نقل دي چې د هغه والدې (یوه ورځ) |
| أَرَادَتْ أَنْ تَعْتِقَ فَأَخَّرَتْ ذَلِكَ إِلَى أَنْ تُصْبِحَ فَمَاتَتْ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ: |
| دغلام د آزادولو اراده وکړه مګر هغه د راتلونکي سحر کیدو نه مخکیې وفات شوه. عبدالرحمن وائي |
| فَقُلْتُ لِلْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ: |
| چې ما حضرت قاسم بن محمد ته (ددې صورت حال ذکر وکړو او دهغه نه) مې تپوس وکړو چې کچیرې |
| أَيَنْفَعُهَا أَنْ أُعْتِقَ عَنْهَا؟ فَقَالَ الْقَاسِمُ: |
| زه د خپلې مور د طرف نه (هغه غلام) آزاد کړم نو په دې سره به هغې ته فائده ورسي؟ حضرت قاسم رحمه الله |
| أَتَى سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ رَسُولَ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم |
| وفرمائیل چې (یو ځل) حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه د نبي علیه السلام په خدمت کې حاضر شو |

| |
|---|
| فَقَالَ: "إِنَّ أُمِّي هَلَكَتْ فَهَلْ يَنْفَعُهَا أَنْ أُعْتِقَ عَنْهَا؟ |
| او عرض يې وکړو چې زما والده (سمدست) وفات شوه کچیرې زه د هغې د طرف نه غلام آزاد کړم |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «نعم». رَوَاهُ مَالِك.[۱۷] |
| نو په دې سره به هغې ته فائده ورسي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چې آو فائده به ورته ورسي. |

**توضیح**: (عبدالرحمن ابن ابي عمرة) دا صحابي نه دی بلکه تابعي دی عمره په عین باندې فتحه او په میم باندې سکون دی (فماتت) د سحر کیدو نه مخکې وفات شوه او دا نیک کار پاتې شو په دې وجه علماؤ لیکلي دي (وفي التاخير آفات فالعجلة محمودة في الطاعات) (مرقاة ۶/۵۷۶) (فقال القاسم) دا قاسم بن محمد د صدیق اکبر نمسی دی او د مدینې منورې په مشهورو اوو (۷) فقهاؤ کې دی د فقهاء سبعو تذکره چا په دې دوو شعرونو کې کړې ده.

الا کل من لا يقتدي بأئمة فقسمته الضيزى من الحق خارجه

فخذهم عبيد الله عروة قاسم سعيد ابوبكر سليمان خارجه

قاسم بن محمد د حضرت سعد رضي الله عنه واقعه بیان کړه چې په کې دسائل د سوال جواب دی، دې حدیث نه د ایصال ثواب مسئله را وځي ددې تفصیل د حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه په حدیث کې شته دی، دلته پوهه شه چې د مالي عبادت ثواب مړي ته رسیږي په بدني عباداتو کې د فرائض او واجباتو نه رسي. ها ! د نفلي ایصال ثواب جائز دی. (مرقاة ۶/۵۷۷)

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ: تُوُفِّيَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ |
| او حضرت یحیی بن سعید (تابعي) وائي چې (ناڅاپه) وفات شو، عبدالرحمن ابن ابوبکر رضي الله عنه |
| فِي نَوْمٍ نَامَهُ فَأَعْتَقَتْ عَنْهُ عَائِشَةُ أُخْتُهُ |
| د خوب حالت کې (اوده وو) دا رنګه عائشه رضي الله عنها چې د هغه خور وه د هغه د طرف نه يې |
| رِقَابًا كَثِيرَةً. رَوَاهُ مَالِك.[۱۸] |
| ډیر غلامان آزاد کړل. (مالک) |

(۱۷) أخرجه مالک في الموطأ ۲/۷۷۹ رقم الحديث ۱۳ من كتاب العتق

(۱۸) أخرجه مالک في الموطأ ۲/۷۷۹ رقم الحديث ۱٤ من كتاب العتق

**توضيح**: نام نومة: يعنې د خوب په حالت کې ئې وفات وشو حضرت عائشې رضي الله عنها دې سمدستي مرګ لره ښه ونه ګڼه په دې وجه يې د كفارې په طور څو غلامان آزاد كړل يايې په دې وجه آزاد كړل چې د حضرت عبدالرحمن په نامه دومره غلامان آزادول وو د حضرت عبدالرحمن وفات مكې مكرمې ته نزدې (حُبْشي) مقام كې شوى وو او هلته نه راوړلى شو او په جنت المعلى كې دفن كړى شو، حضرت عائشې رضي الله عنها د هغه په قبر باندې د حاضرۍ په وخت دوه شعرونه هم لوستلي وو چې د مشكوة په اول جلد كې په باب الجنائز صفحه ۱۱۹ كې ذكر دي. (مرقاة ۵۷۷/۶)

وكنا كندماني جذيمة حقبة من الدهر حتي قيل لن يتصدعا

فلما تفرقنا كاني ومالكا لطول اجتماع لم نبت ليلة معا

## د خرڅ شوي غلام مال به چا ته ملاويږي؟

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنِ |
| او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما وائي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل چې كوم سړى يو |
| اشْتَرَى عَبْدًا فَلَمْ يَشْتَرِطْ مَالَه فَلَا شَيْءَ لَهُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيّ (صَحِيح)[19] |
| غلام واخلي او د هغه د مال شرط ونه كړي نو اخستونكي ته به د هغه د مال نه څه هم نه ملاويږي. (دارمي) |

**توضيح**: فلم يشترط: يعنې يو سړې غلام واخستو او د دې غلام په لاس كې څه مال وو مشتري د عقد كولو په وخت كې د دې شرط نه لګولو چې دا مال به زما وي لكه څنګه چې غلام به زما وي نو د خرڅولو نه پس به دا مال هغه مشتري ته نه ملاويږي ځكه چې هغه مال په حقيقت كې د غلام د مولى دى او هغه مولى ته به واپس كولى شي، او كچيرې مشتري شرط ولګولو چې د دې غلام دا مال به هم ما ته راكوې نو مال به مشتري ته ملاويږي او د مالک د طرف نه به دا د هبې او عطيې په حكم كې شماروي. (مرقات ۵۷۷/۶)

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

---

(۱۹) أخرجه مرقاة المفاتيح ٦/٥٢٤ رقم الحديث ٣٤٠٥

# كتاب الْإِيمَان وَالنُّذُور

## د قسمونو او نذرونو بيان

قال الله تعالى: ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغْوِ فِيٓ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ۚ فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ۖ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ۚ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ ۚ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ ۚ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾ (مائده: ۸۹)

**ايمان**: د يمين جمع ده او يمين قسم ته وائي، يمين د يسار ضد دی قسم ته يمين په دې وجه وائي چې عربو به د عهد او د پيمان په دوران کې د يو بل په لاس کې لاس ورکولو او دا معامله به يې په ښي لاس سره کوله. علامه ابن همام فرمائي چې د يمين لفظ په لغوي طور باندې قسم، ښي لاس او په قوت کې په مشترکه طور باندې استعماليږي. علماؤ د قسم اصطلاحي تعريف داسې کړی دی **اليمين في الشرع توكيد الشئ بذكر اسم الله او صفته** دلته د قسم او نذر متعلق څلور بحثونه دي چې په ترتيب سره ليکلی شي. (المرقات ۵۷۸/۶)

**بحث اول د قسم اقسام**: د قسم درې قسمونه دي: اول يمين غموس دی، دويم يمين لغوه دی، دريم يمين منعقده دی: (۱) يمين غموس د بته وايي چې په تيره شوې زمانه چا په دروغه قسم وخوړو چې په الله قسم ما دا کار کړی وو حالانکه هغه ته معلومه ده چې هغه دا کار نه دی کړی، په يمين غموس کې څه کفاره نشته دی، دا گناه کبيره ده د دې په وجه سره دې کس ته په دوزخ کې غوټې ورکولی شي غمس او غموس د غوټې په معنی سره دی. (۲) دويم قسم يمين لغوه دی دا هغه قسم دی چې په خبرو خبرو کې د قسم د ارادې نه بغير سړی وائي والله بالله يا په خدای قسم يا په قسم سره وايم يا سړی داسې قسم خوري چې د هغه خيال او گمان دا وو چې واقعي دا کار داسې وو مگر هغه نه غلطي وشوه هغه کار داسې نه وو دا ټول يمين لغوه دی، په دې کې کفاره نشته، نه کبيره گناه ده، اگرچې مسلمان له د دې نه هم بچ کيدل پکار دي، امام شافعي رحمه الله فرمايي ما د الله تعالی د نوم د لوئې په خاطر نه په دورغه قسم خوړلی دی او نه په رښتيا مې قسم خوړلی دی. (۳) دريم قسم يمين منعقده دی دا هغه دی چې يو سړی ښه په غور او فکر سره په آينده زمانه د څه کار د نه کولو قسم وخوري بيا قصدًا د دې خلاف ورزي وکړي نو دا سړی به حانث کيږي، او س به دا د يمين کفاره اداء کوي په عربي کې د قسم الفاظ والله بالله تالله دي.

**دويم بحث د قسم کفاره**: د قسم د ماتولو کفاره داسې ده چې يو غلام به آزادوي يا به لسو مسکينانو باندې دوه وخته متوسط خوراک خوړلی شي يا به لس مسکينانو ته کپړې وراغوستلې شي کچيرې يو

سړی په دې درې قسمه کفارو باندې قادر نه وي نو پرله پسې به درې روژې نيسي د قسم ماتولو نه مخکې د احنافو په نزد د قسم کفاره نشته دی دغه شان د کافر په قسم باندې کفاره نشته دی د ماشوم يا د اوده سړې يا د ليوني پاگل د قسم اعتبار نشته په دې وجه په دوی کفاره هم نشته.

**دريم بحث د قسم الفاظ** : په قسم کې د الله تعالى ذاتي اسم يا صفتي اسم استعماليږي لهذا دهغې احترام ضروري دی چې هغه مات نه کړی شي او د الله تعالى د اسم مبارک بې ادبي ونه شي او نه دی د دې مبارک نوم په پريخودلو سره بل چا ته دا عظمت ورکړی شي چې د هغه په نوم قسم وخوړلی شي. همدا وجه ده چې د پلار نيکه د نومونو نه د قسم ممانعت راغلی دی هم دغه شان ستا په جان او په سر قسم خوړل جائز نه دي لکه کوم شاعر ويلي دي

*اتنا ہو تیرے تیغ کا شرمندہ احسان*

*سر میرا تیرے سر کی قسم اٹھ نہیں سکتا*

د قسم مدار په عرف باندې دی په دې وجه د الله تعالى په هغه صفاتو باندې قسم نه شي خوړلی چې په عام عرف کې د قسم د پاره نشي استعماليدی لکه رحمت، مغفرت وغيره صفات دي، او په کومو صفاتو چې قسم په عرف کې خوړلی شي لکه عظمت او بزرگي شان وغيره، نو په هغې سره قسم واقع کيږي په عام طور باندې شريعت د قسم الفاظ والله، بالله، تالله خودلې دي لعمر الله په الفاظو سره هم خوړلی شي دا هم قسم دی. د دې مطلب دا دی چې ستا په عمر درکونکي قسم. په قسم کې د ان شاء الله استعمالولو سره د قسم اثر ختميږي په دې شرط چې دا لفظ متصلاً استعمال کړی شي، دې ته په قسم کې استثناء ويلی شي.

**څلورم بحث د نذر قسمونه** : نذر دلته د قسمونو سره په دې وجه يوځای کړې شو چې دواړه ديو قسم څيزونه دي دا رنگه کله چې د قسم ماتولو کفاره اداء کولی شي نو هغه د قسم کفاره وي نذر منلو ته ويلی شي، غير واجب څيز لره په خپل ځان باندې د واجب کولو نوم نذر دی نذر چې کله د گناه نه وي نو د ټولو فقهاؤ په نزد دا جائز دی د قرآن اعلان دی **(وليوفوا نذورهم)**. (سورة الحج ۲۹) د الله نه سوا د چا د نوم نذر منل جائز نه دي : په تفسير کبير کې د نذر تعريف دا سې شوی دی **النذر ما الزمه الانسان على نفسه** د نذر دوه قسمونه دي: يو نذر مطلق دی دا هغه دی چې نذر منونکی عمل لره د څه ورځ يا وخت سره مقيد نه کړي، دويم نذر مقيد دی دا هغه وي چې نذر منونکی عمل لره د څه مياشتې يا خاص وخت سره مقيد کړې . د ړومبني مثال لکه څوک ووائي **لله علي صوم شهر** د دويم مثال **لله عليّ صوم شهر رجب هذا السنة** د نذر د صحيح کيدو د پاره درې شرطونه دي: (۱) ړومبی شرط دا دی چې نذر د دا سې څيز وي چې د هغې جنس

په شريعت کې مشروع او واجب وي لکه مونځ، روژه، حج وغيره، دارنګه که چا داسې نذر ومنلو چې کچيرې زما فلانی کار وشو نو زه د فلاني بيمار پوښتنه کوم دا نذر صحيح نه دی، ځکه چې عيادت په شريعت کې داسې جنس نه دی چې واجب نه دی.(۲) د صحت د نذر دپاره دويم شرط دادی چې هغه منذور عمل د ګناه د قسم نه نه وي ځکه چې په حديث کې دي **لا نذر في معصية** لکه څوک نذر ومني کچيرې زما فلانی کار وشو نو زه به د فلاني بزرګ په قبر باندې څادر خوروم يا به مولود کوم يا به ګياروي شريف (يوولسمه) مناووم يا به د غوث اعظم مونځ کوم د داسې قسم نذرونو پوره کول جائز نه دي، لهذا ددېنه د وتلو دپاره د يمين کفاره اداء کولو سره د ګناه نه بچ کيدل ضروري دي. (۳) دريم شرط دادی چې د کوم څيز نذر کوم سړی مني نو في الحال يا آينده دده په ذمه فرض يا واجب نه وي مثلاً داسې ووايي کچيرې زما کار وشو نو زه د ماسخوتن مونځ کوم يا به د رمضان روژې نيسم. بهرحال د ناجائزه نذرونو نه مسلمان له ځان ساتل پکار دي څنګه چې جائز نذرونه پوره کول ضروري دي. د نذر دپاره دا هم ضروري دي چې هغه په تابعداری کې وي او په مقصود دي اطاعت کې وي په وسائلو کې نه وي او په ژبه سره وي د الفاظو په ادائيګۍ سره وي صرف د زړه نيت سره نه وي او د نذر د پوره کولو يې پوره پخه اراده وي.

## الْفَصْلُ الأَوَّل

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَكْثَرُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يحلف: |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما راوي دی چه اکثر به چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم داسې قسم خوړلو |
| «لَا ومقلب الْقُلُوب». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| قسم دی د زړونو په اړونکي باندې. (بخاري) |

**توضيح**: لا ومقلب القوب په عربي کلام کې د قسم نه مخکې د لا کلمه زياتول معروف او مشهور دي لکه **لا اقسم بهذا البلد**، **لا اقسم بيوم القيامة**. د الله تعالى په کلام کې راغلې دې، علامه طيبي فرمائي چې د لا کلمه د سابق کلام نفي دپاره راځي **ولا نفي للكلام السابق** يعني چې کوم ستا خيال دی هغه صحيح نه دی زه قسم کولو سره وايم چې حقيقت داسې دی. حضرت مولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله په معارف القرآن کې ليکلې چې د قسم نه مخکې حرف لا زائد دی کله چې قسم د يو مخالف

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۵۱۳ رقم الحديث ۷۳۹۱ وأبوداؤد في السنن ۳/۵۷۷ رقم الحديث ۳۲۶۳ والدارمي في السنن ۲/۲۴۵.

د خبرې د رد د پاره خورلی شي نو د هغې په شروع کې حرف لا د هغه سړي د باطل خيال د نفي د پاره زائد استعمالیږي او د عربو په محاوراتو کې دا استعمال معروف او مشهور دي زمونږ په ژبه کې هم بعضې وختونو کې د څه قابل تاکيد مضمون د پاره د بيان نه مخکې ويلی شي نه مخکې خپل مقصد بيانولی شي (معارف القرآن ج۸ص۶۲۳) بعضو علماؤ ويلي چې د قسم نه مخکې دا لا د تحسين کلام د پاره ذکر کولی شي، بعضو ويلې دي چې دا لا د مضمونِ د قسم د نفې د تاکيد د پاره ذکر کولی شي مطلب دا چې د قسم حاجت او ضرورت نشته مګر زه بيا هم قسم خورم. دلته نبي اکرم ﷺ د الله تعالى په صفتي اسم باندې قسم خوري معلومه شوه دا جائز دي او دا هم معلومه شوه چې قسم د ضرورت نه بغير د کلام د تاکيد د پاره خوړلی شي. دا رنګه نبي عليه السلام چې کوم قسمونه خوړلې دي په هغې کې د امت د پاره ډير لوی فائده مند تعليم پټ دی، په غير الله قسم مه خورئ او **والذي نفس محمد بيده** سره نبي عليه السلام دا تعليم ورکړو چې زه د الله تعالى بنده يم پخپله خدای نه يم زما د ځان مالک هم هغه الله دی په دې سره د الله تعالى عظمت او لوئي بيانول مقصود دي.

## په غير الله د قسم خوړلو ممانعت

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: | «إِنَّ | اللهَ يَنْهَاكُمْ |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم ﷺ وفرمائيل چې الله تعالى تاسو د دې خبرې نه منع کوي | | | | | | | | | | |
| أَنْ | تَحْلِفُوا | بِآبَائِكُمْ | مَنْ | كَانَ | | | | | | |
| چې تاسو په خپلو پلارانو قسم او خورئ، کوم سړی چې قسم خوري نو هغه له پکار دی چې هغه د الله تعالى | | | | | | | | | | |
| حَالِفًا | فَلْيَحْلِفْ | بِاللهِ | أَوْ | ليصمت» | (صَحِيح)[1] | | | | | |
| (په نوم سره يا د هغه په صفاتو) قسم او خوري يا چوپ پاتې شي. (بخاري ومسلم) | | | | | | | | | | |

**توضيح**: (ينهاكم ان تحلفوا بآبائكم) د پلار نيکه ذکر په طور د مثال دی مراد دا دی چې په غير الله قسم خوړل جائز نه دي. د پلار نيکه ذکر دلته په دې وجه وشو چې د عربو په معاشره کې خلقو به د پلار نيکه په نومونو قسمونه خوړل په دې وجه ئې دا په خاص طور باندې ممنوع وګرځول او د غير الله په نوم قسم خوړل په دې وجه ناجائز ګرځولی شوی دی چې مقسم به د چا په نوم چې قسم خوړلی شي

---

([1]) أخرجه البخاري فى صحيحه ۱۱/۵۳۰ رقم الحديث ۶۶۴۶ ومسلم ۳/۱۲۶۶ رقم الحديث (۳-۱۶۴۶) وأبوداؤد في السنن ۳/۵۶۹ رقم الحديث ۳۲۴۹ والترمذي في ۴/۹۳ رقم الحديث ۱۵۳۴ والنسائي في ۷/۴ رقم الحديث ۳۷۶۷ وابن ماجه في ۱/۲۷۷ رقم الحديث ۲۰۹۴.

دهغه دعظمت او لوی شان مقصود او متصور کیږي په دې وجه دا عظمت د الله تعالی سره خاص دی، په غیر الله قسم خوړلو سره د غیر الله مشابهت د الله تعالی سره پیدا کیږي چې د شرک یوه حصه ده. (المرقات ۵۸۰/۶، ۵۷۹)

**سوال**: دلته یوه شبه پیدا کیږي چې د نبي علیه السلام نه په یوه موقعه باندې نقل دي چې نبي علیه السلام وفرمائیل **افلح وابیه** ددې د مذکوره حدیث سره واضح تعارض دی.

**جواب**: ذدې جواب دا دی چې دا ددې ممانعت نه مخکې خبره ده ممانعت روستو راغلی دی، یوه بله شبهه ده چې الله تعالی په څو څیزونو قسم خوړلی دی ددې څه مطلب دی؟ نو ددې جواب دادی چې الله تعالی خالق او مالک دی د هغه د پاره د امور تکلیفیو دا پابندي نشته دی، دارنګې الله تعالی چې په کومو څیزونو قسم خوړلی دی هغه په حقیقت کې الله تعالی په خپل وحدانیت باندې په طور د ګواه پیش کړې دي هلته نور تصورات نشته دی، حضرت ابن عباس رضی الله عنه د غیر الله د قسم خوړلو متعلق فرمایلي دي چې کچیرې زه د الله تعالی په نوم یوه ورځ کې سل قسمونه وخورم او هغه مات کړم، هغه ددې نه بهتر دي چې زه د غیر الله په نوم قسم وخورم. (المرقات ۵۸۰/۶)

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَحْلِفُوا بِالطَّوَاغِي |
| او حضرت عبد الرحمن بن سمره وائي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل مه په بتانو قسم خورئ |
| وَلَا بِآبَائِكُمْ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او مه په خپلو پلارانو قسم خورئ (مسلم) (طواغي د طاغیة جمع ده بتانو ته وائي) |
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې نبي علیه السلام وفرمائیل چې کوم |
| "مَنْ حَلَفَ فَقَالَ فِي حَلِفِهِ: بِاللَّاتِ وَالْعُزَّى |
| سړی قسم وخوري او په خپل قسم کې دا الفاظ اداء کړي چې زه په لات او عزی قسم خورم نو هغه له |
| فَلْيَقُلْ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ. وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ: |
| پکار دي چې هغه لا اله الا الله ووائي کوم سړی چې خپل دوست ته دا ووائي چې راځه مونږ دواړه |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۲۶۸/۳ رقم الحديث (۶/۱۶۴۸ والنسائي في السنن ۷/۷ رقم الحديث ۳۷۷۴ وابن ماجه في ۶۷۸/۱ رقم الحديث ۲۰۹۵ وأحمد في المسند ۶۲/۵.

جلد 5 25

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تَعَالَ | أقامرك | فليتصدق " | (مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ)[1] |
| جواري کوو نو هغه له پکار دي چې هغه صدقه او خیرات وکړي. (بخاري ومسلم) | | | | |

**توضیح**: **من حلف**: یعني لات او منات او په بتانو د قسم خوړلو نه پس **لا اله الا الله** ووائي مطلب دا چې کچیرې نو مسلم سهواً دا قسم او خوري او په غلطئ سره دا کلمه په ژبې سره او ووائي نو **لا اله الا الله** به په طور د استغفار وايي او کچیرې د زړه نه په طور د عقیدې په بتانو باندې داسې قسم وخوري نو دا سړی مرتد شوا وس به دا د تجدید ایمان او د مسلمان کیدو دپاره **لا اله الا الله** ووائي (المرقات ۵۸۰/۶)

**اقامرک** مقامره د قمار نه ده د جوارئ کولو په معنی سره دی، کچیرې یو مسلمان د جوارئ کولو دعوت ورکړي نو هغه د ګناه دعوت ورکولو سره ګناه او کړه او ددې کفاره داده چې دا سړی صدقه وکړي، د حدیث نه معلومه شوه چې د جوارئ کولو دعوت او ددې ترغیب ورکول هم ګناه ده نو کوم کس چې پخپله په دې قبیح کار کې مبتلا وي نو هغه به څومره ګناهګار ریږي (المرقات ۵۸۰،۵۸۱/۶)

## د غیرو په مذهب باندې د قسم خوړلو حکم

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ حَلَفَ | | | | | | | | |
| او حضرت ثابت بن ضحاک وائي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل چې کوم کس د اسلام نه | | | | | | | | |
| عَلَى | مِلَّةٍ | غَيْرِ | الْإِسْلَامِ | كَاذِبًا | فَهُوَ | كَمَا | قَالَ | |
| خلاف په بل مذهب په دروغه قسم وخوړلو نو هغه به داسې وي څنګه چې هغه او وئیل او یو انسان | | | | | | | | |
| وَلَيْسَ | عَلَى | ابْنِ | آدَمَ | فِيمَا | لَا | يَمْلِكُ | وَمَنْ | |
| باندې د هغه څیز نذر پوره کول واجب نه دي د کوم چې هغه مالک نه وي او کوم کس چې (په دنیا کې) | | | | | | | | |
| قَتَلَ | نَفْسَهُ | بِشَيْءٍ | فِي | الدُّنْيَا | | | | |
| په څه څیز (مثلاً چاړه وغیره) سره ځان هلاک کړو نو هغه به د قیامت په ورځ په هغه څیز سره په عذاب کې | | | | | | | | |
| عُذِّبَ | بِهِ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | | | | | |
| مبتلا کولی شي (یعنې که یو کس چاړه (په خیټه) کې منډلو سره خودکشي وکړه (او چه دالله تعالی د طرف نه د خلاصی حکم نه وی | | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۵۳۶ رقم الحديث ۶۶۵۰ ومسلم في ۳/۱۲۶۷ رقم الحديث (۱۶۴۷.۵۹ وأبوداؤد في السنن ۳/۵۶۸ رقم الحديث ۱۲۴۷ والترمذي في ۴/۹۹ رقم الحديث ۱۵۴۵ والنسائي في ۷/۷ رقم الحديث ۳۷۷۵ وأحمد في المسند ۲/۳۰۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | لَعَنَ | مُؤْمِنًا | فَهُوَ | كَقَتْلِهِ |
| نو مسلمان په عذاب کې مبتلا وي او کوم سړی چې په يو مسلمان لعنت وکړي نو هغه هم داسې دی لکه هغه مسلمان يې چې قتل کړو | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | قَذَفَ | مُؤْمِنًا | بِكُفْرٍ | فَهُوَ | كَقَتْلِهِ |
| او همداسې چې کوم کس په يو مسلمان باندې د کفر تهمت ولګولو نو ګويا هغه هغه مسلمان قتل کړو | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنِ | ادَّعَى | دَعْوَى | كَاذِبَةً | لِيَتَكَثَّرَ | بِهَا |
| او کوم کس چې په دروغه دعوې وکړي دې دپاره چې په مال کې زياتوالی وکړي نو الله تعالى به د | | | | | |

| |
|---|
| لَمْ يَزِدْهُ اللهُ إِلَّا قِلَّةً» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| هغه په مال او دولت کې کمی وکړي. (بخاري و مسلم) |

**توضيح: على ملة غير الاسلام:** د اسلام نه علاوه په غير ملت باندې قسم خوړل داسې دی مثلاً څوک مسلمان ووائي چې کچيرې زه فلانی کار وکړم نو زه به يهودي،نصراني،هندو، سيک،قادياني، آغاخاني يم يا به د اسلام نه بيزاريم يا به د قرآن نه بيزاره يم يا به د مکې نه بيزاره يم يا به د الله تعالى او د کلمې نه بيزاره يم، اوس کچيرې دې کس د دې خلاف کار وکړو نو اوس به څه کيږي؟ نو په زير بحث حديث کې دي چې هغه سړی به هم داسې وي. ( المرقات ۵۸۲/۶،۵۸۱)

اوس په فقهاؤ کې بعضې شوافع فرمائي چې د ظاهري حديث په اعتبار سره دا سړی کافر شو ځکه چې ده د اسلام حرمت ختم کړو او په کفر باندې يې د رضا مندۍ اظهار اوکړو.. مګر جمهور علماء فرمائي چې په دې قسم سره به دا سړی کافر نه وي ځکه چې د کفر تعلق د اعتقاد او قصد او ارادې سره دی او ددې سړي اراده د کفر نه ده بلکه د نفس د منع کولو دپاره يې دا کار کړی دی او ددې سړي د طرف نه دا کار د زجر او توبيخ يو عمل دی، په دې صورت کې د جمهورو په نزد زير بحث حديث په تشديد او تغليط باندې محمول دی لکه څنګه **من ترک الصلوة متعمدًا فقد کفر** والا حديث په زجر او توبيخ باندې محمول دی. ( المرقات ۵۸۲/۶)

په درالمختار کې يې ليکلي دي چې په دې مسئله کې زياته صحيح خبره دا ده چې دا رنګه قسم خوړلو والا کچيرې د خپل قسم خلاف کار وکړي نو هغه به کافر نه وي په شرط د دې چې دده مقصد کافر جوړيدل نه وي مګر که هغه پوهيږي چې په دې قسم خلاف کولو سره سړی کافر کيږي او بيا هم خلاف ورزي کوي نو هغه به

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/٤٦٤ رقم الحديث ٦٠٤٨ ومسلم في ۱/۱۰٤۰ رقم الحديث (۱۱۰.۱۷٦) والترمذي في السنن ٤/۹۸ رقم الحديث ۱٥٤۳ والنسائي في ۷/٥ رقم الحديث ۳۷۷۰ وابن ماجه في السنن ۱/٦۷۸ رقم الحديث ۲۰۹۸ وأحمد في المسند ۳۳٤.

په دې صورت كې كافر شي ځكه چې په دې صورت كې هغه په رضا او رغبت سره په كفر باندې راضي شو. او د دې حديث سره متعلق دا بحث دى چې آيا دا يمين دى يا نه، او د دې كفاره شته يا نه؟ نو د مالكيانو او شوافعو په نزد چونكه دا يمين او قسم نه دى لهذا په دې كې كفاره نشته، دا سړى لوى ګناهګار شو او ده ته د استغفار كولو ضرورت دى او هيڅ كفاره پرې نشته دى، د احنافو او حنابلو بلكه د جمهورو مسلك دا دى چې په دې كې كفاره ده ځكه چې دا قسم دى او په قسم كې د حنث په صورت كې كفاره وي. ( المرقات ۵۸۲/۶)

**ومن ادعى دعوى:** يعنې يو كس په دروغه دعوى وكړي د دې دپاره چې دده په مال او دولت كې اضافه وشي نو الله تعالى دده مال لره كموي، او په دې حديث كې اكثر دا قاعده بيان كړى شوې ده چې اكثر خلق صرف د مال او دولت په راغونډولو او په مال كې د اضافه كولو په خاطر خلقو ته خود دل كوي چې زه داسې د جاه او جلال خاوند يم او زما دا رنګه لوى شان دى، يا زه داسې د كمال بزرګ يم دا رنګه د زمانې علامه يم، الغرض شيخي ښايې خلقو ته او كمالات او فضائل بيانوي خلقو ته، د دې دپاره چې دده سره خپلې فائدې كې اضافه وكړي الله تعالى به دده فائدې كموي. ( المرقات ۵۸۳/۶)

**لعن مؤمنا :** تهمت كچيرې ثابت شي نو هغه موجب د قتل دى لهذا چې كوم كس په يو مسلمان باندې د دروغو تهمت ولګوي نو دا د مسلمان د قتل په شان دى او كه د كفر تهمت هم ثابت شي نو دا موجب د قتل دى نو څوک چې د كفر په دروغه تهمت په چا لګوي دا دده د قتل په شان دى. ( المرقات ۵۸۳/۶)

## كچرې په قسم ماتولو كې خير وي نو ماتول يې پكار دي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنِّي وَاللهِ |
| او حضرت ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل په الله تعالى باندې قسم! كچيرې زه |
| إِنْ شَاءَ اللهُ لَا أَحْلِفُ عَلَى يَمِينٍ فَأَرَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا |
| په څه شيز باندې قسم او خورم او بيا د هغه قسم خلاف كول بهتر وګنم نو زه خپل قسم ماتوم او |
| إِلَّا كَفَّرْتُ عَنْ يَمِينِي وَأَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| د هغې كفاره ادا كوم او هغه كار اختياروم چې كوم بهتر وي. (بخاري ومسلم) |

(1) أخرجه البخارى في صحيحه ۱۱/۶۰۱ رقم الحديث ۶۸۱۸ ومسلم في صحيحه ۳/۱۲۶۹ رقم الحديث (۱۶۴۹.۷) وأبوداؤد في السنن ۳/۵۸۳ رقم الحديث ۳۲۷۶ والنسائى في ۷/۹ رقم الحديث ۳۷۸۰.

**توضيح**: الا كفرت عن يميني: يعني قسم برقراره نه ساتم بلکه ښه کار کولو سره به دې قسم لره ماتوم او کفاره به اداء کوم (المرقات ۵۸۴/۶)

## مسئلة اداء الكفارة قبل الحنث

د يمين د کفارې په ادا کولو کې په بعضو احاديثو کې د کفارې ورکولو الفاظ مخکې راغلي دي او د حانث کيدو الفاظ روستو راغلي دي او په بعضو احاديثو کې د حانث کيدو الفاظ مخکې ذکر دي او د کفارې ورکولو الفاظ روستو راغلي دي هم په دې وجه د فقهاؤ په دې کې اختلاف دی چې کفاره د حانث کيدو نه مخکې ده يا پس ده.

**د فقهاؤ اختلاف**: امام مالک، امام شافعي، او امام احمد بن حنبل جمهور فرمائي چې قبل الحنث کفاره ادا کولی شي گويا د قسم خوړلو د وجې نه کفاره لازم شوه. امام ابو حنيفه فرمائي چې قبل الحنث کفاره نه شي ادا کولی حنث په کفاره باندې مقدم دی. ترڅو پورې چې سړی حانث شوی نه وي نو کفاره نه لازميږي. (المرقات ۵۸۴/۶)

**دلائل**: جمهورو د قرآن عظيم د آيت نه استدلال نيولی دی (ذلک كفارة ايمانكم اذا حلفتم) د استدلال طرز داسې دی چې په آيت کې يې حلف او يمين د کفارې دپاره د سبب او وجې او د علت په طور باندې بيان کړي دي، لهذا قسم خوړلو سره کفاره ادا کيدی شي د حانث کيدو ضرورت نشته دی. جمهورو د حضرت ابو موسی رضي الله عنه د زير بحث روايت او د راتلونکي د حضرت عبدالرحمن بن سمره د حديث نمبر ۲ او د دې نه پس د حضرت ابو هريره رضي الله عنه د حديث نمبر ۸ نه هم استدلال کړی دی چې په کې د کفارې ذکر مقدم دی او د حنث ذکر روستو کړی شوی دی، ديو شاعر شعر هم د جمهورو په ذوق باندې دی. (المرقات ۵۸۴/۶)

حَلَفَ الزَّمَانُ لَيَأْتِيَنَّ بِمِثْلِهِ      حَنِثَتْ يَمِينُكَ يَا زَمَانُ فَكَفِّرِ

يعنې قسم خوړلو سره ته حانث شوې د حانث کيدو نور ضرورت نشته دی او س کفاره اداء کړه.

امام ابو حنيفه رحمه الله د حضرت عبدالرحمن بن سمره د حديث د آخرې حصې نه استدلال کړی دی چې په کې دا الفاظ دي (**فات الذي هو خير و كفر عن يمينك**) دلته د صراحت سره مخکې حنث ذکر دی او واو عاطفه سره د کفارې ذکر دی، د امام ابو حنيفه رحمه الله عقلي دليل دا دی چې کفاره ادا کول د جرم د وجې نه وي او قسم خوړل څه جرم نه دی ځکه چې د انبياء کرامو عليهم السلام او اولياء عظامو او علماء کرامو په کلام کې په کثرت سره قسم موجود دی کله چې قسم خوړل جرم نه دی نو هغه د کفارې دپاره څنگه سبب جوړ شو؟ ها! حانث کيدل جرم دی چې د الله تعالی د نوم مبارک بې احترامي وشوه هغه د کفارې دپاره سبب جوړيږي نو کومه پورې چې حنث نه راځي نو کفاره نشته دی. (المرقات ۵۸۵/۶)

احنافو په جمهورو باندې اشکال هم کړی دی چې په حقیقت کې یو الزامي سوال دی هغه دا چې مثلاً یو سړې قسم وخوړو او بیایې د خپل قسم پوره خیال وساتلو او حانث نه شو بلکه په خپل قسم کې بری الذمه شو نو دهیچا په نزد هم په دې سړې باندې کفاره نشته دی، کچیرې صرف په قسم خوړلو سره کفاره لازمیږي نو په دې سړې باندې د حانث کیدو نه بغیر کفاره ورکول لازم دي حالانکه د دې جمهور هم قائل نه دي.

**جواب** : جمهورو چې د کوم آیت نه استدلال کړی دی احناف فرمائي چې هلته د **اذا حلفتم** نه پس د و حنثتم لفظ محذوف دی یعني د قسم خوړلو نه پس چې کله حانث شې نو بیا **کفاره اداء** کړه د دا محذوف داسې دی څنګه چې **اذا قمتم الي الصلوة** کې وانتم محدثون محذوف دی.

باقي په احادیثو کې واو مطلق د جمع د پاره دی د ترتیب د پاره نه دی یعنې کفاره هم ادا کړه او حانث هم شه او نیک کار هم کوه، هسې خو د عربي محاورې ذوق دا ښائي چې په احادیثو کې د ترتیب هیڅ پابندي نه ده لګول شوې د جمهورو احترام په خپل ځای مسلّم دی مګر د دې احادیثو نه د هغوي مسلک ثابتول ډیر لرې معلومیږي. ( المرقات ۶/۵۸۴)

## د امارت مطالبه مه کوئ ګیر به شئ

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عبد الرحمن بن سمره رضی الله عنه وائي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم (یوه ورځ ما ته) وفرمائیل |
| «يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ سَمُرَةَ لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ |
| ای عبد الرحمن! د سردارۍ خواهش مه کوه (یعنې د دې خبرې خواهش مه کوه چې زه دې د فلاني ځای حاکم او |
| فَإِنَّكَ إِنْ أُوتِيتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ إِلَيْهَا |
| سردار جوړ کړی شم) ځکه چې ستا په غوښتو باندې که تا ته سردارې درکړی شي نو ته به سردارۍ ته |
| وَإِنْ أُوتِيتَهَا عَنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا |
| وسپارلی شي او که بغیر د طلب نه چیرته سردارې درته ملاو شي نو په هغې کې به ستا مدد کولی شي |
| وَإِذَا حَلَفْتَ عَلَى يَمِينٍ فَرَأَيْتَ غَيْرَهَا |
| دا رنګه کچیرې ته په څه خبره باندې قسم خورې نو بیا او ګوره کچیرې د دې قسم خلاف د دې قسم د |
| خَيْرًا مِنْهَا فَكَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ وَأْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ». وَفِي رِوَايَةٍ: |
| پوره کولو نه بهتر وي نو ته د دې قسم کفاره ورکړه او هغه کار وکړه چې بهتر دی او په یو روایت کې |

| |
|---|
| «فَأْتِ الَّذِي هُوَ خير وَكفر عَن يَمِينك» (صَحِيح)[1] |
| داسې دي چې هغه څیز په عمل کې راوله چې بهتر دی او د خپل قسم کفاره ادا کړه. (بخاري ومسلم) |

**توضیح**: **لاتسال الامارة**: یعني امارات او حکومت کول څه معمولي کار نه دی بلکه یوه لویه ذمه داري ده هر سړی د دې ذمه دارۍ بوج او چتولی نه شي کچیرې د حرص او لالچ د سردارۍ او قیادت په خواهش کې راشې او د دې مطالبه کولو سره یې حاصل کړې نو د الله تعالی مدد به د ر سره شامل حال نه وي نو ناکام به شې، او کچیرې حرص او خواهش دې نه وي او خلقو مجبوره کړې او ذمه دارېې جوړ کړې نو د الله تعالی مدد به د ر سره وي نو کامیاب به یې. ( المرقات ۵۸۶/۶)

**غیره خیرا**: یعني کچیرې د ګناه قسم دې خوړلی وي چې په الله قسم زه به د مور پلار سره خبرې نه کوم نو د دې قسم ماتول به واجب وي او کفاره به ورکول وي او کچیرې د یو مستحب کار د نه کولو قسم یې وخوړو مثلاً د یوې میاشت پورې به د خپلې ښځې سره کوروالی نه کوم نو دارنګه قسم ماتول به مستحب او افضل وي یاد ساتل پکار دي چې د بخاري شریف په روایت کې دي چې حضرت عبدالرحمن بن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کابل فتح کړو او په چوک کې ودرېدو د مال غنیمت په باره کې یې تقریر وکړو د ابوداؤد شریف جلد۱ صفحه ۱۷۷ کې دي چې دوی د کابل د فتح په موقع باندې صلوة خوف وکړو ذکر شوې حدیث هم د دې عبدالرحمن بن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی. ( المرقات ۵۸۷/۶)

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل کچیرې یو سړی د څه |
| «مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ فَرَأَى خَيْرًا مِنْهَا |
| خبرې قسم او خوري او بیا هغه دا خیال وکړي چې (د دې خلاف کول) د قسم پوره کولو نه بهتر دي |
| فَلْيُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهِ وليفعل». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| نو هغه له پکار دي چې هغه کفاره اداء کړي او هغه کار وکړي (یعنې قسم مات کړي). (مسلم) |

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۱۲۳ رقم الحديث ۷۱٤٦ ومسلم في صحيحه ۳/۱۲۷۳ رقم الحديث( ۱۶۵۲،۱۹) وأبوداؤد في السنن ۳/۵۸٤ رقم الحديث ۳۲۷۷ والترمذي في ٤/۹۰ رقم الحديث ۱۵۲۹.

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۷۲ رقم الحديث (۱۶۵۰-۱۲) والترمذي في السنن ٤/۹۲ رقم الحديث ۱۵۳۲ ومالك في المؤطأ ۲/٤۷۸ رقم الحديث ۱۱ من كتاب النذور

## په ناجائز قسم کلکیدل مناسب نه دي

﴿۹﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَاللهِ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل په الله تعالی قسم په تاسو

لَأَنْ يَلَجَّ أَحَدُكُمْ بِيَمِينِهِ

کې چې کوم کس په خپل قسم باندې ټینګ ودریده (یعني دهغې قسم پوره کولو ضد کول) چې د

فِي أَهْلِهِ آثَمُ لَهُ عِنْدَ اللهِ من

خپل اهل او عیال متعلق وي د الله تعالی په نزد ده لره زیات ګناهګار جوړوي په نسبت دد ې چې هغه دې

أَنْ يُعْطِيَ كَفَّارَتَهُ الَّتِي افْتَرَضَ اللهُ عَلَيْهِ» متفق عليه (صَحِيحٌ)[1]

قسم لره مات کړي او ګدې کفاره ادا کړي چې په ده باندې فرض کړی شوې ده. (بخاري و مسلم)

**توضیح: لان یلج لج یلج:** د سمع او ضرب نه دی، سختې جګړې کولو او په څه کار باندې ټینګ ودریدلو ته وائي مطلب دا دی چې قسم خوړلو سره ددې په ماتولو کې د الله تعالی هتک او بې ادبي ده د الله تعالی د نوم عظمت خلاف ورزي خو یقینًا ګناه ده مګر ددې ګناه نه هغه ګناه زیاته ده چې یو سړی د خپلې ښځې او بچو نه د قطع تعلق قسم او خوري او بیا په ضد باندې ټینګ ولاړ وي او ټینګ پاتې شي هغه لره پکار دي چې د قطع تعلق قسم مات کړي او د کفارې فریضه چې کومه الله تعالی مقرره کړې ده هغه دې ادا کړي. بعضو شارحینو د آثم لفظ د اسم تفضیل په معنی سره اخستی دی، بعضو د **الصیف احر من الشتاء** په طرز باندې نفس فعل یعني د اثم په معنی اخستی دی (کذافي الطیبي). (المرقات ۵۸۹/۶، الکاشف ۲۴/۷)

## د جګړې په صورت کې به د قسم ورکونکي د نیت اعتبار وي

﴿۱۰﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَمِينُكَ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمائیل چې ستا سو قسم هغه وخت صحیح کیږي

عَلَى مَا يُصَدِّقُكَ عَلَيْهِ صَاحِبُكَ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)[2]

هر کله چې ستا ملګری (یعني قسم ورکونکی) تا لره ربښتوني وګڼي. (مسلم)

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۵۱۷ رقم الحديث ۶۶۲۵ ومسلم في ۳/۱۲۷۶ رقم الحديث (۱۶۵۵-۲۶) وأحمد في المسند ۲/۳۱۷.

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۷۴ رقم الحديث (۱۶۵۳-۲۰) وأبوداؤد في السنن ۳/۵۷۲ رقم الحديث ۳۲۵۵ والترمذي في ۳/۶۳۶.

**توضیح**: صاحبک: یعنې د دوو سړو څه مالي تنازعه وي او مدعي منکر له قسم ورکوي په دې کې به د قسم ورکونکي د نیت اعتبار وي د قسم خوړولو والا د نیت اعتبار به نه وي مثلاً قسم خوړونکی د ژبې څه الفاظ ادا کوي او په زړه کې د څه توریې یا د تاویل نیت پټوي نو د دې اعتبار صحیح نه دی. مثلاً رستم دوستم ته ووئیل چې تا زما خر وژلی دی دوستم قسم او خوړلو چې ما خر نه دی وژلی او په نیت کې د رستم د خر په ځای د فریدون د خر قسم خوري نو د دې به اعتبار نه وي، په راتلونکي روایت کې د (**علی نیة المستحلف**) الفاظو مطلب هم دا دی **مستحلف** یعنې قسم ورکونکی ها! کچیرې دیو حق تلفی مسئله نه وي یا کوم سړی مظلوم وي نو بیا په قسم کې د توریې او تاویل اعتبار به وي. (**ملخصا من زجاجة المصابیح**). ( المرقات ۵۸۹/۶)

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْيَمِينُ عَلَى |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائیل د قسم اعتبار د قسم ورکونکي په |
| نِيَّةِ الْمُسْتَحْلِفِ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] |
| نیت باندې دی. (روایت کړې دې مسلم) |

## په لغو قسم باندې به مواخذه (نیول) نه وي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ الله عَنهَا قَالَت: أُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: (لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغْوِ فِي |
| د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روایت دی چې دا ایت یعنې الله تعالی ستاسو په لغو قسم باندې مواخذه نه کوي |

| |
|---|
| أَيْمَانِكُمْ) فِي قَوْلِ الرَّجُلِ: لَا وَاللهِ وَبَلَى وَاللهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ |
| دا د هغه سړي په حق کې نازل شو چې **لا والله** او **بلی والله** به یې ویل. (بخاري) په شرح السنه کې دا |
| لَفْظُ الْمَصَابِيحِ وَقَالَ: رَفَعَهُ بَعْضُهُمْ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ الله عنها.[2] |
| روایت په لفظ د مصابیح نقل کړی شوی دی او دا یې وئیلي دي |

---

(۱) أخرجه مسلم فی صحیحه ۳/۲۷٤ رقم الحدیث (۱۶۵۳-۲۱) وابن ماجه في السنن ۱/۶۸۵ رقم الحدیث ۲۱۲۰.

(۲) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۱ رقم الحدیث ۶۶۶۳ وأبوداؤد في السنن ۳/۵۷۳ رقم الحدیث ۳۲۵٤ ومالک في المؤطأ ۲/۲۷۷ رقم الحدیث ۹ من کتاب النذور.

**توضيح**: لا والله.: د اهل عربو دا عادت دی چې په خپل مينځ کې د خبرو په وخت کې په خبره خبره په دې الفاظو سره قسم خوري لا والله بلی والله. د دې خلقو په دې الفاظو سره قسم خوړل مقصود نه وي بلکه په کلام کې زور پيدا کولو د پاره يا په طور د تکيه کلام د غه شان قسم خوري همدا يمين لغوه دی چې پکې نه کفاره شته او نه ګناه. (المرقات ۵۹۰/۶)

د احنافو امامانو د قسم دې صورت ته هم لغو ويلی دی چې يو سړی په څه خبره باندې قسم اوخوري او د هغه په خيال کې دا وي چې زه صحيح قسم خورم مګر په حقيقت کې د هغه نه غلطي کيږي، بهرحال د دې شرعي سهولت مطلب دا نه دی چې يو مسلمان خامخا خپله ژبه په قسم کې ګنده کړي او چې کله ژبه خوزوي نو په قسم يې خوزوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وائي چې نبي عليه السلام وفرمائيل تاسو مه په خپلو پلارانو قسم خورئ |
| وَلَا بِأُمَّهَاتِكُمْ وَلَا بِالْأَنْدَادِ وَلَا تَحْلِفُوا بِاللهِ إِلَّا وَأَنْتُمْ صَادِقُونَ». |
| او مه په خپلو ميندو او مه په بتانو، او په الله قسم هم په داسې صورت کې خورئ کله چې تاسو رښتوني يئ |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.[1] |
| (يعني په دروغه قسم مه خورئ که د دې تعلق د تيرې يا د آينده زمانې سره وی) |

## د غير الله په نوم قسم خوړل شرک دی

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل چا چې د الله تعالی |
| يَقُولُ: «مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللهِ فَقَدْ أَشْرَكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ (صَحِيح)[2] |
| نه په غير بل چا باندې قسم وخوړلو هغه شرک وکړو. (ترمذي) |

**توضيح**: **فقد اشرک**: مطلب دا دی چې په اصل کې محلوف به معظم وي يعني په چا چې قسم

---

([1]) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۵۶۹ رقم الحديث ۳۲۴۸ والنسائي في ۷/۵ رقم الحديث ۳۷۶۹.

([2]) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۵۷۰ رقم الحديث ۳۲۵۱ والترمذي ۴/۹۳ رقم الحديث ۱۵۳۰ وأحمد في المسند۲/۸۶

خوړلی شي هغه به معظم هم (يعني عظمت مند) ګڼلی شي او هغه به ضار اونافع هم ګڼلی شي هغه به خپل امورو ضامن او کله به هغه غيب دان هم ګڼلی شي، نو کوم کس چې د الله تعالی نه سیوا بل چا لره داسې معظم وګڼلو او قسم یې پرې وخوړلو نو هغه شرک جلي یا شرک خفي وکړو ځکه چې هغه د الله تعالی بعضې صفاتو کې غیر الله لره شرک کړو، او په داسې تعظیم کې د الله تعالی سره غیر الله لره شریک ګرځول شرک في التعظیم دی لهذا وې فرمائیل فقد اشرک هغه شرک وکړو او کچیرې یې داسې عقیده نه وي بلکه صرف د قدیم عادت مطابق ځوی یا پلار یا د نیکه په نومونو قسم وخوري نو دا اګرچه ګناه ده مګر په دې کې شرک نشته دی. (المرقات ۵۹۲/۶)

## په امانت د قسم خوړلو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ حَلَفَ بِالْأَمَانَةِ |
| او حضرت بریده رضی الله عنه وائي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چې کوم کس په امانت قسم |
| فَلَيْسَ مِنَّا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد.[1] |
| او خوړلو هغه زمونږ نه نه دی. (ابوداؤد) |

**توضیح**: **بالامانة**: چونکه امانت د الله تعالی په نومونو کې نشته دی بلکې د الله تعالی په فرائضو کې دی په دې وجه داسې قسم خوړل نه منعقد کیږي او کوم چې یې وفرمایل چې زمونږ نه نه دی دا په دې وجه چې دا طریقه د عیسائیانو ده هغوي په عباداتو قسم خوري ګویا چې د غیر الله په نوم قسم شو نو ناجائز دی.

ها! کچیرې دا امانت په ځای چا امانة الله وویل یا یې د بل لفظ الله تعالی طرف ته اضافت وکړو نو د امام ابوحنیفه په نزد به قسم منعقد شي ځکه چې دا په هغه وخت کې صفتي اسم جوړ شو چې د امین نه به مشتق وي د نورو امامانو په نزد د اضافت سره هم قسم نه منعقد کیږي او نه به کفاره لازمیږي. (المرقات ۵۹۴/۶)

**لیس منا**: ددې مطلب دا دی چې صرف داسې قسم مسئله کې دا سړی د اهل اسلام په طریقه نه دی ددې مطلب دا نه دی چې دا سړی کافر شو، یا یې دا مطلب دی چې دا کلام د اسلوب حکیم په طور باندې دی چې ددې سړي زمونږ سره تعلق نشته دی، ظاهره ده چې کوم سړی د محبوب د طرف نه دا قسم اعلان واوري نو هغه به ددې فعل نه ځان ساتي یا دا تشدید او تغلیظ دی. (المرقات ۵۹۴/۶)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۵۷۱ رقم الحديث ۳۲۵۲ وأحمد في المسند ۵/۳۵۲.

## د اسلام نه د بيزارۍ د قسم حکم

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَالَ: |
| او حضرت بريده رضي الله عنه وائي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل چې کوم سړی داسې ووائي |
| إِنِّي بَرِيءٌ مِنَ الْإِسْلَامِ فَإِنْ |
| چې (کچيرې ما داسې کړې وي يا مې داسې نه وي کړې) نو زه د اسلام نه بري يم لهذا کچيرې هغه |
| كَانَ كَاذِبًا فَهُوَ كَمَا قَالَ وَإِنْ كَانَ |
| په خپله خبره کې دروغژن وي نو هغه داسې شو څنګه چې هغه ووئيل او کچيرې په خپله خبره کې |
| صَادِقًا فَلَنْ يَرْجِعَ إِلَى الْإِسْلَامِ سَالِمًا". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.[1] |
| رشتيني دی بيا به هم اسلام طرفته پوره واپس نه راځي. (روايت کړې دې ابو داؤد، نسائي، ابن ماجه) |

**توضيح**: **فان کان کاذبا**: په دې حديث د پوهيدو د پاره به د قسم صورت داسې وي چې يو سړې ووېل چې کچيرې ما فلانی کار وکړو يعني مثلاً د مسلمانانو د پاره مې کنده و نه کنسته نو زه به د اسلام نه بيزاره يم په دې قسم کې اګرچه داسړی دروغژن وي نو واقعي د اسلام نه بيزاره شو د **فهو کما قال** هم دا مطلب دی ملاعلي قاري رحمه الله د دې حديث د دې جملې لاندې ليکي چې دا جمله د تغليظ، تشديد، تحديد، زجر او توبيخ په طور باندې ده په دې سره واقعًا دا سړی کافر نه شو مګر دا يمين غموس دی چې پکې ګناه ده کفر نه دی. **وان کان صدقًا** او کچيرې په خپل خيال او قسم کې رشتيني دی يعنې هغه داسې قسم وخوړلو چې کچيرې ما فلانی کار نه وي کړی نو زه به د اسلام نه بيزاره يم، او في الواقع هغه رشتيني دی هغه هغه کار کړی دی نو بيا به هم دا سړی د ګناه نه خالي نه پاتې کيږي ځکه چې شريعت د داسې قسم خوړلو نه منع کړې ده او هغه داسې قسم وخوړلو او ګناه يې وکړه. (المرقات ۵۹۵/۶)

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې به (په بعضې موقع باندې) |
| إِذَا اجْتَهَدَ فِي الْيَمِينِ قَالَ: «لَا وَالَّذِي |
| په خپل قسم کې زور پيدا کول غوښتل نو داسې قسم به يې خوړلو په هغه پاک ذات باندې مې قسم |

١

[1] أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۵۷٤ رقم الحديث ۳۲۵۸ والنسائي ۷/٦ رقم الحديث ۳۷۷۲ وابن ماجه في ۱/٦۷۹ رقم الحديث ۲۱۰۰.

| |
|---|
| نفس أَبُو الْقَاسِمِ بِيَدِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (ضَعِيف)[۱] |
| دچا په لاس کې چې د ابو القاسم ساه ده. (ابو داؤد) |

## د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو قسم مطلب

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَن أَبِي هُرَيْرَة قَالَ: كَانَتْ يَمِينُ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا حَلَفَ: |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله قسم خوړلو نو د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قسم |
| «لَا وَأَسْتَغْفِرُ اللهَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه (صَحِيح) مَرْفُوع[۲] |
| به داسې وو. لا واستغفر الله. (روایت کړې دي ابو داؤد، ابن ماجه) |

**توضیح**: **لا واستغفر الله**: قاضي عیاض رحمه الله وائي د دې مطلب دا دی اي استغفر الله ان کان الامر علی خلاف ذلک: یعني اګرچه دا به صراحةً قسم نه وي مګر دا مشابه بالقسم دی ځکه چې په دې کې د کلام انتهائي تاکید مقصو دی چې کچیرې په دې کې لږغوندې خلاف واقع خبره وي نو زه استغفار کوم، لهذ دا د قسم په نوم سره یادولی شي. د علامه طیبي د کلام خلاصه دا چې په حقیقت کې د لا په ضمن کې قسم پرروت دی او **واستغفر الله** په دې مخذوف باندې عطف دی او عبارت داسې دی لا اقسم بالله واستغفر الله. او س قسم سره یې استغفر الله په دې وجه راوړی دی چې د لا په ضمن کې کوم قسم دی هغه یمین لغوه دی او نبي علیه السلام به اکثر د یمین لغو نه پس استغفر الله ویله. (المرقات ۶/۵۹۶) (الکاشف ۳۱/۷)

## د قسم سره د انشاء الله د یو ځای کولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عليه وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل څوک چې په څه خبره |
| حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ فَقَالَ: إِنْ شَاءَ الله فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ" |
| باندې قسم وخوري او قسم سره انشاء الله هم ووائي نو په ده باندې به د حنث (اطلاق) نه وي |

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۵۷۷ رقم الحديث ۳۲۶۴ وأحمد في المسند۳/۴۸

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۵۷۷ رقم الحيث ۳۲۶۵ وابن ماجه في ۱/۶۷۷ رقم الحديث ۲۰۹۳ وأحمد في المسند۲/۲۸۸

| |
|---|
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ وَذَكَرَ التِّرْمِذِيُّ جَمَاعَةً |
| (ترمذي) ابوداؤ، نسائي، ابن ماجه دارمي) دارنګه امام ترمذي د څه محدثينو په باره کې ذکر کړي دي چې هغوی |
| وَقَفُوهُ عَلَى ابْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ[1] |
| دا روايت په ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې موقوف کړی دی (يعني دهغو محدثينو په نزد دا روايت د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ارشاد دی) |

**توضيح**: انشاء الله: کچيرې قسم،طلاق، عتاق وغيره عقودو او فسوخو کې د ان شاء الله لفظ متصل استعمال کړی شي نو د هيچا په نزد به هم هغه قسم يا کوم عقد نه منعقد کيږي صرف د حضرت ابن عباس طرف ته منسوب دي چې هغه انشاء الله ره يو کال پس هم مؤثر ګڼي. حضرت مجاهد يې څو کالو پورې مؤثر مني او سعيد بن جبير يې د څلور مياشتو پورې مؤثر مني. د امام مالک رحمه الله په نزد ان شاء الله متصل وي او که منفصل وي د دې څه اثر په څه عقد و عهد باندې نه پريوځي قسم به واقع کيږي ځکه چې ټول امور د الله تعالى په مشيت کې دي، نو د دې لوستل يا نه لوستل برابر دي قسم وغيره به برقرار پاتې کيږي مګر دا رائې د دې قسم ټولو احاديثو نه مخالف ده په دې وجه د دې څه اعتبار نشته دی. اوس پاتې شوه دا خبره چې د ان شاء الله متصل او منفصل کيدو څه حد دی؟ نو بعضو ويلي دي چې په مجلس کې د کلام د جريان پورې هغه وخت دی او کله چې کلام بدل شي يعني بل کلام شروع شي نو اوس د ان شاء الله اثر ختم شو، احنافو همدا مسلک خپل کړی دی، بعضو وئيلي دي ترڅو پورې چې مجلس قائم دی نو ان شاء الله به د مجلس د قيام پورې مؤثر وي، شوافعو هم دا مسلک خپل کړی دی، ځکه چې د دواړو اصول او قواعد همداسې دي چې يو فريق په مجلس کې د مسائلو د اختتام اعتبار کړی دی او دويم فريق يعني احنافو د سلسله کلام د اختتام اعتبار کړی دی. ( المرقات ۶/۵۹۷،۵۹۶)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ عن أَبِي الأحوص عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قُلْتُ: |
| او ابو احوص عوف بن مالک د خپل پلار (حضرت مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه روايت کوي هغوی وائي چې ما عرض وکړو |
| يَا رَسُولَ اللهِ! أَرَأَيْتَ ابْنَ عَمٍّ لِي آتِيهِ |
| اې د الله رسوله! تاسو زما د تره د ځوی په باره کې څه حکم ورکوئ چې کله زه (د خپل څه ضرورت په موقع باندې) د دې نه |

[1] أخرجه أبوداؤد فى السنن ۳/۵۷۵ رقم الحديث ۳۲۶۱ والترمذي في ۴/۹۱ رقم الحديث ۱۵۳۱ والنسائي في ۷/۲۵ رقم الحديث ۳۸۳۰.

فَلَا يُعْطِينِي وَلَا يَصِلُنِي ثُمَّ

(څه مال واسباب) غوارم نو هغه ماله (څه) نه راکوي او ما سره حسن سلوک نه کوي مګر کله چې د هغه ماته څه ضرورت

يَحْتَاجُ إِلَيَّ فَيَأْتِينِي فَيَسْأَلُنِي

پیښ شي نو ماله راځي او ما نه غواړي مګر ما (هغه ته د دې عمل په سزا ورکولو کې چې پخپله خو ماته څه نه راکوي مګر

وَقَدْ حَلَفْتُ أَنْ لَا أُعْطِيَهُ وَلَا أَصِلَهُ

ما نه غوښتو د پاره راځي) په دې خبره قسم خوړلی دی چې زه به نه ده ته څه ورکړم او نه به ورسره حسن سلوک وکړم

فَأَمَرَنِي أَنْ آتِيَ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ

نبي عليه السلام (دې او ريدو سره) ماته وفرمايل چې زه هغه کار وکړم چې بهتر دی (يعني د هغه ضرورت

وَأُكَفِّرَ عَنْ يَمِينِي. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ

پوره کړم او د هغه سره حسن سلوک وکړم) او د قسم ماتولو کفاره ورکړم. (نسائي، ابن ماجه) او د

وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ

ابن ماجه په روايت کې دا الفاظ دي چې مالک ووئيل چې ما عرض وکړو چې يا رسول الله! زما د

يَأْتِينِي ابْنُ عَمِّي فَأَحْلِفُ أَنْ لَا أُعْطِيَهُ وَلَا أَصِلَهُ

تره ځوی ماته (د څه غوښتو د پاره) راځي نو زه دا قسم وکړم چې نه خو به څه ورکړم او نه به ورسره حسن

قَالَ: «كَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

سلوک او کړم نبي عليه السلام دې (او ريدو سره) وفرمائيل چې ته خپل قسم (مات کړه او د دې) کفاره ورکړه.

---

(1) أخرجه النسائي في السنن ٧/١١ رقم الحديث ٣٧٨٨ وابن ماجه ١/٦٨١ رقم الحديث ٢١٠٩ وأحمد في المسند ٤/١٣٦ رقم الحديث ٢١٠٩.

# بَابٌ فِي النذور

## د نذرونو بيان

**قال الله تعالیٰ: (وليوفوا نذورهم وليطوفوا بالبيت العتيق) (سورة الحج: ۲۹)**

**وقال تعالیٰ: (يوفون بالنذرِ ويخافون يوماكان شره مستطيراً) (سورة الدهر ۷)**

نذر ينذر د باب نصر او ضرب دواړو نه د نذر منلو په معنى سره دی د باب افعال نه د يرولو په معنى سره راځي، دلته نذر د منبنتې او منلو په معنى سره استعمال شوی دی او نذور د جمع صيغې په راوړلو سره دې کې اشاره شوه چې قِسمونه يې ډير دي په تفسير کبير کې د نذر تعريف داسې ذکر دی **النذر ما آلزمه الانسان على نفسه** يعنې غير واجب څيز لره په خپل ځان باندې د لازمول او واجبولو نوم نذر دی مثلاً څوک داووائي چې زما فلانې کار کچيرې وشي نو په ما باندې د الله تعالى د پاره دوه روژې لازم دي **د نذر دوه قسمونه دي:** نذر مطلق او نذر مقيد په ړومبي قسم کې وسعت وي، او په دويم قسم کې وسعت نه وي بلکه د کوم وخت نذر چې ومني په هغه وخت به يې اداء کول وي. د غير الله په نوم نذر او نياز حرام دی، که د نقدو پيسو په صورت کې وي يا د ځناور د حلالې په صورت کې وي، يا د خوراکونو په شکل کې وي، يا په زياراتو باندې د څادرونو خوروَل وي يا څه بل صورت وي ټول حرام دي. د نذر د پاره ضروري ده چې هغه په داسې اطاعت کې وي چې د هغې د جنس حکم په شريعت کې وي مثلاً مونځ روژه وغيره، لهذا دا نذر لازم نه دی چې چا نذر ومنلو چې زه به د بيمار پوښتنه وکړم ځکه چې عيادت څه واجب نه دی صرف مستحب دی د نذر ټول تفصيل د قسم په ابتدائي مباحثو کې تيرشوی دی. هسې خو کله چې صاحب مشکوة دلته په مستقل طور باندې د نذرونو باب ايخودلی دی نودې لره د قسم په باب کې د قسم لاندې ذکر کول نه وو پکار. شايد هلته د کاتبانو نه سهوًا شوی وي، شيخ عبدالحق اشعة اللمعات کې ليکلې دي چې هلته د نذر بيان په ضمني طور باندی وو اصل بيان د قسم وو او دلته نذر لره مستقل جدا ذکر کړی شو.

### د نذر منلو پس منظر

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه روايان دي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائيل

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| «لَا | تَنْذُرُوا | فَإِنَّ | النَّذْرَ | لَا | يُغْنِي | مِنَ | الْقَدَرِ | شَيْئًا | وَإِنَّمَا | |
| چې تاسو نذر مه منئ ځکه چې نذر د تقدير څه ځيز لرې کولی نه شي البته د نذر په ذريعې سره د | | | | | | | | | | |
| يُسْتَخْرَجُ بِهِ من الْبَخِيلِ» متفق عليه (صَحِيح)[١] | | | | | | | | | | |
| بخيل (شوم) (څه مال ضرور) خرچ کيږي. (بخاري ومسلم) | | | | | | | | | | |

**توضيح**: **لاتنذورا**: په بره ذکر شوي حديث کې د نذر د ممانعت په صراحت سره ذکر دی حالانکه قرآن عظيم د نذر په جواز او ددې د پوره کولو حکم کوي دارنګه په ډيرو حديثونو سره د نذر د جواز پته لګي. ددې اعتراض جواب دادی چې په حقيقت کې دلته په دې حديث کې د سخي او بخيل او کنجوس سړي موازنه شوې ده او د دواړو تقابل بيان کړی شوی دی چې د سخي سړې شان دادی چې هغه بغير د عرض او بغير د لالچ او بغير د نذر نه د الله تعالى په لار کې مال لګوي هغه صرف د خپل رب راضي کول غواړي او د مال ورکولو په عوض کې څه شرط نه لګوي. مګر بخيل او کنجوس ته ددې توفيق نه ملاويږي هغه کچيرې د خپل مال خرچ کول هم غواړي نو د هغې د پاره نذر واسطه جوړوي او د زړه د غرضونو د پوره کولو باره کې وايې کچيرې الله تعالى زما کار وکړو يا يې ددې نقصان نه بچ کړم نو زه به د هغه په نوم باندې دومره مال لګوم نو په دې حديث کې د سخي د ايثار د صفت بيان دی او د کنجوس د اغرضو او د مقاصدو او د لالچ او د سوداګرۍ بيان دی، دې پوره پس منظر لره مخې ته ايخودلو سره په حديث شريف کې د نذر ممانعت شوی دی او هم په دې وجه بعضې علماؤ ملطقًا نذر منلو لره مکروه ليکلی دی. مګر صحيح خبره دا ده چې په اصولي طور باندې نذر يو مشروع او جائز امر دی البته د څه خارجي وجوهاتو په وجه سره نذر مکروه کيږي. (المرقات ۵۹۹/۶، ۵۹۸)

☆ دارنګه قاضي عياض رحمه الله فرمايې چې کله نذر منونکی ووايي چې کچيرې الله تعالى زما کار وکړي نو زه به دا کار کوم کنه نو نه به يې کوم دارنګه شرط لګولو سره اخلاص ختميږي نو نذر مکروه کيږي. (المرقات ۵۹۸/۶)

☆ علامه طيبي رحمه الله فرمايې چې کچيرې د نذر منونکي دا عقيده وي چې په نذر سره به تقدير الهي بدل شي او پخپله دا نذر نافع او ضار دی (د جلب منفعت او دفع مضرت کار کوي) نو د غه شان نذر منل حرام دي او کچيرې په نذر منلو کې عقيده خو خرابه نه وي مګر صرف د خودغرضۍ او مطلب پوره کول مقصود وي نو دا نذر مکروه دی، ځکه چې په نيت کې خلوص نشته او کچيرې په خالص نيت سره د اطاعت په غرض سره نذر

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١١/٤٩٩ رقم الحديث ٦٦٠٩ ومسلم في ٣/١٢٦١ رقم الحديث (١٦٤٠-٥) والنسائي في ٧/١٦.

مني نو دا مستحب دی، بهرحال په حديث مذکور کې د غلطې عقيدې په وجه سره د نذر ممانعت راغلی دی او د اخلاص په نيت سره د نذر ترغيب راغلی دی مطلق نذر نه منع کول مقصود نه دي، په زيربحث حديث کې **فان النذر لايغني من القدر شيئًا** الفاظو کې چې کوم علت طرف ته اشاره شوې ده په دې سره د علامه طيبي د تفصيل او توضيح تائيد کيږي. ( الکاشف ۷/۳۵،۳۴)

## د معصيت په نذر کې د کفارې حکم

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ | عَائِشَةَ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: | «مَنْ |
| او د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائيل چې کوم سړي دا سې | | | | | | | | | | |
| نَذَرَ | أَنْ | يُطِيعَ | اللهَ | فَلْيُطِعْهُ | | | | | | |
| نذر ومنه چې په هغې سره د الله تعالی اطاعت کيږي نو هغه له پکار دی چې هغه د الله تعالی اطاعت | | | | | | | | | | |
| وَمَنْ | نَذَرَ | أَنْ | يَعْصِيَهُ | | | | | | | |
| وکړي (يعني دې نذر له دې پوره کړي) او کوم سړي چې داسې نذر ومني چې هغې سره د الله تعالی معصيت | | | | | | | | | | |
| فَلَا | يَعْصِهِ». | رَوَاهُ | الْبُخَارِيّ | (صَحِيح)[۱] | | | | | | |
| (نافرماني) کيږي نو هغه دې د هغه نافرماني نه کوي (يعني داسې نذر دې نه پوره کوي.) (بخاري) | | | | | | | | | | |

**توضيح : فلا يعصه** : په دې د ټولو اتفاق دی چې د معصيت نذر منل جائز نه دی، مثلاً دا نذر چا ومنلو چې کچيرې زما ورک شوی ځوی پيدا شو نو زه به د شادولا په مزار باندې څادر غوړوم رقص (ګډا) به کوم، د دې نذر پوره کول د هيچا په نزد هم جائز نه دي مګر اختلاف په دې کې دی چې د معصيت نذر کې کفاره شته دی که نشته دی. ( المرقات ۶/۶۰۰)

**د فقهاؤ اختلاف** : د امام شافعي او امام مالک رحمهما الله په نزد نه د معصيت نذر جائز دی او نه د دې پوره کول جائز دي او نه په دې کې کفاره شته دی، د امام ابوحنيفه او امام احمد بن حنبل رحمهما الله په نزد د معصيت نذر ماتول ضروري دي او بيا په دې کې کفاره اداء کول واجب دي چې کفاره د يمين ده. ( المرقات ۶/۶۰۰)

**دلائل** : امام شافعي او امام مالک رحمهما الله د زيربحث حديث نه استدلال کوي دا رنګه د راتلونکي

---

(۱) أخرجه البخاری في صحيحه ۱۱/۵۸۱ رقم الحديث ۶۶۹۶ وأبوداؤد في السنن ۳/۵۹۳ رقم الحديث ۳۳۸۹ والترمذي ۴/۸۸ رقم الحديث ۱۵۲۶ والنسائی في ۷/۱۷ رقم الحديث ۳۸۰۶ وابن ماجه ۱/۶۸۷ رقم الحديث ۲۱۲۶.

دحضرت عمران بن حصین رضي الله عنه دحدیث نمبر ۲ نه هم استدلال کوي، طرز د استدلال داسې دی چې دلته د کفارې ذکر نشته دی کچیرې د معصیت په نذر کې کفاره وه نو په دې حدیث کې به یې ذکر وو . امام ابوحنیفه او امام احمد بن حنبل رحمهما الله د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه د حدیث نمبر ۱ نه استدلال کړی دی الفاظ یې دا دي **كفارة النذر كفارة اليمين** بیا د فصل ثاني د حضرت عائشې رضي الله عنها د حدیث نمبر ۱ نه یې استدلال کړی دی چې په هغې صفا الفاظ دي چې **لا نذر في معصية وكفارته كفارة اليمين** هم دې سره یې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د حدیث نمبر ۱۰ نه استدلال کړی دی. د احنافو د ائمو بعضو علماو د دې قسم د نذر په کفاره کې څه فرق کړی دی هغه دا چې په دې نذر کې کچیرې معصیت لذاته یعني شرب خمر (شراب څکل) یا د زنا کولو نذر دی نو نه د دې پوره کول جائز دي نه په دې کې کفاره شته دی، او کچیرې په نذر کې معصیت لغیره دی مثلاً د اخترونو یا د ایام تشریق د روژو نذر یې ومنلو نو د دې په ماتولو کې به د یمین کفاره راځي دا شان په دواړه قسمه روایاتو باندې عمل وشو. ( المرقات ۶/۶۰۰)

**جواب** : باقي مذکوره زیربحث حدیث کې د کفارې ورکولو او نه ورکولو ذکر کچیرې نشته دی نو د ذکر عدم کیدل د دلیل عدم کیدل خو نه کیږي مګر په زیربحث حدیث کې د کفارې ذکر خو نشته دی مګر نورو احادیثو کښې د دې ذکر موجود دی، لهذا د کفارې ورکولو حکم به خپلولی شي هغو حضراتو چې د عمران بن حصین رضي الله عنه د حدیث نه استدلال کړی دی د هغوی هم دا جواب دی.

**لطیفه** : وایې چې امام ابوحنیفه رحمه الله شیخ شعبي رحمه الله ته راغی او د معصیت د نذر د مسئلې تپوس یې ترې وکړو هغوی وفرمایل چې کله د ګناه او معصیت نذر ومنلی شي نو په دې کې هیڅ کفاره وغیره نشته دی، امام ابوحنیفه وفرمایل چې بیا په ظهار کې کفاره ولې ده حالانکه هغه هم ګناه ده ځکه چې خپلې ښځې ته مور ویل څومره بده خبره ده.؟ شعبي حیران شو او وې فرمائیل : **انت من الآرائيين** تاسو د اصحاب رائې نه یې، شیخ شعبي رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله استاذ دی.

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ | عِمْرَانَ | بْنِ | حُصَيْنٍ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چې کوم | | | | | | | | | | |
| «لَا | وَفَاءَ | لِنَذْرٍ | فِي | مَعْصِيَةٍ | وَلَا | فِيمَا | | | | |
| نذر د ګناه باعث وي هغې لره پوره کول جائز نه دي او نه د هغه څه نذر پوره کول جائز دي چې د هغې | | | | | | | | | | |

لَا يَمْلِكُ الْعَبْدُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِي رِوَايَةٍ: «لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةِ الله» مسلم (صَحِيح)[۳]

بنده مالک نه وي. (مسلم) او په يو روايت کې دي چه د ګناه نذر پوره کول جائز نه دي (مسلم)

## د قسم او نذر کفاره يو شان ده

﴿۴﴾ وَعَن عقبَة بن عَامر عَنْ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل

«كَفَّارَةُ النَّذْرِ كَفَّارَةُ الْيَمِينِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (صَحِيحٌ)[٤]

د نذر کفاره د قسم د کفارې په شان ده. (روايت کړې دې مسلم)

## د ناممکنه خبرو نذر مه پوره کوئ

﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ الله عَنْهُمَا قَالَ: بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (يوه ورځ) مونږ ته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه فرمايله چې ناڅاپه د

إِذَا هُوَ بِرَجُلٍ قَائِمٍ فَسَأَلَهُ عَنْهُ فَقَالُوا:

هغوی نظر په يو سړي باندې پريوتلو چې ولاړ وو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د هغه سړي متعلق تپوس وکړو وي فرمايل چې

أَبُو إِسْرَائِيلَ نَذَرَ أَنْ يَقُومَ وَلَا يَقْعُدَ وَلَا يَسْتَظِلَّ

نو خلقو ورته ووېل چې دده نوم ابو اسرائيل دی او ده دا نذر منلی دی چې ولاړ به وي کيني به نه، نه به، سوري ته

وَلَا يَتَكَلَّمَ وَيَصُومَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

راځي او نه به (بالکل) خبرې کوي او (هميشه) به روژې نيسي نبي عَلَيْهِ السَّلَام دې (اوريدو سره) او فرمائيل

«مُرُوهُ فَلْيَتَكَلَّمْ وَلْيَسْتَظِلَّ وَلْيَقْعُدْ وَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۵]

چې ده ته ووائي چې خبرې کوي، سوري ته راشي، کيني او خپله روژه دې پوره کړي. (بخاري)

**توضيح**: **ابو اسرائيل نذر ان يقوم** يعني رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې دا سړی ولې ولاړ دی خلقو ورته ووېل چې دا ابو اسرائيل دی ده نذر منلی دی چې ولاړ به وي دې سړي چې د کومو خبرو نذر منلی دی په هغې کې خو په بعضو باندې عمل کول آسان او ممکن وو مګر په بعضو باندې عمل کول

---

(۳) أخرجه مسلم ۳/۱۲۶۵ رقم الحدبث ۱۶۴۵-۱۳، الترمذي ۴/۹۹ رقم الحديث ۱۵۲۸ والنسائی ۷/۲۶ رقم الحديث ۳۸۳۲.

(۴) أخرجه مسلم فی صحيحه ۳/۱۲۶۵ رقم الحديث (۱۶۴۸-۱۳) والترمذي في السنن ۴/۹۹ رقم الحديث ۱۵۲۸ والنسائی ۷/۲۶ رقم: ۳۸۳۲

(۵) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۱/۵۸۶ رقم الحديث ۶۷۰۴ وأبوداؤد في السنن ۳/۵۹۹ رقم الحديث ۳۳۰۰ وابن ماجه ۱/۶۹۰ رقم: ۲۱۳۶

ناممکن وو نو په کومو خبرو چې عمل کول ممکن وو د هغې د پوره کولو حکم ورکړی شو او په کومو چې عمل کول ممکن نه وو د هغې د نه پوره کولو حکم ورکړی شو. دا رنګه نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ده ته د روژې د پوره کولو حکم ورکړو چې پوره کال دې روژې نیسي مګر ایام منهیه دې نه خارج دي، یعنې عید الفطر، عید الاضحی او د ایام تشریق درې ورځې ایام منهیه دي، کچیرې یو کس په دې ورځو کې د روژو نذر ومني نو د احنافو امامانو په نزد ددې ماتول او بیا کفاره ورکول به لازم وي. یادساتئ!

همیشه روژې نیول دهغه چا دپاره جائز دي چې ددې د نیولو طاقت لري. **ان یقوم** یعنې د همیشه ودریدلو نذر یې منلی وو نو ددې پوره کول ممکن نه وو ځکه چې دا د چا د وس خبره نه ده او په مونځ کې د سجدې او قعدې دپاره ناسته فرض ده په دې وجه یې ددې نذر د ماتولو حکم ورکړو.

**لایتکلم** دا هم ممکنه نه وه ځکه چې په مونځ کې لوستل د قراءت په صورت کې فرض دی. د قرآن عظیم تلاوت دی او د کوم مسلمان د سلام جواب ورکول واجب دي، دارنګې د صله رحمی دپاره د رشته دارانو سره خبرې کول د هغوی حق دی په دې وجه یې ددې نذر د ماتولو حکم ورکړو. **ولایستظل** یعنې کله به هم سوري ته رانشي دا هم ممکن نه وو ځکه چې همیشه په نمر کې ودریدل خود کشي ده او د جمعې د مونځ دپاره جماعت ته راتلل ضروري وو په دې وجه یې ددې نذر د ماتولو حکم ورکړو ددې حدیث نه دا خبره معلومه شوه چې هر هغه کار او عمل په کوم سره چې انسان مشقت او چتوي او قرآن او حدیث ددې حکم نه وي ورکړی لکه پیدل خپې ابله خپې ګرځیدل یا په نمر کې کیناستل دا د ثواب کار نه دی( المرقات ۶/۲۰۶۰۱،۶۰۲) (زجاجة المصابیح ج، ص۵۹۵)
ددې عبارت نه معلومه شوه چې پیدل جماعتونه چلول او هغوي په مشقت کې اچول هر کله چې تول سهولتونه موجود وي دا محل د بحث دی د شریعت حکم واضح کیدل پکار دي. د اجتهاد ضرورت دلته نشته دی.

## د مشي الی بیت الله د نذر حکم

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ | أَنَسٍ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | رَأَى | شَيْخًا |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ( د بیت الله د سفر په دوران کې) یو بوډا ولیدلو | | | | | | | | | |
| يُهَادَى | بَيْنَ | ابْنَيْهِ | | | | | | | |
| چې (د بوډا والي او کمزوری د وجې نه) د خپلو دواړو ځامنو په مینځ (د هغوي په اوږو باندې لاس ایخی وو) په لاره روان وو. | | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | «مَا | بَالُ | هَذَا؟» | قَالُوا: | نَذَرَ | أَنْ | يَمْشِيَ | إِلَى | بَيْتِ الله |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تپوس وکړو چې په ده څه شوې دي؟ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وکړو چې دې سړي د پیدل تللو نذر منلی دی | | | | | | | | | |

| |
|---|
| قَالَ: «إِنَّ اللهَ تَعَالَىٰ عَنْ تَعْذِيبِ هٰذَا نفسه لَغَنِيٌّ». |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې داسې ځان په عذاب (تکليف) کې اچولو سره د الله تعالى څه پرواه نشته دی. |
| وَأمره أَن يركب (صَحِيحٌ)[٦] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ |
| بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه سړي ته په سورلۍ د تللو حکم وکړو (بخاري ومسلم) او د مسلم په يو روايت کې |
| عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «ارْكَبْ أَيُّهَا الشَّيْخُ فَإِنَّ اللهَ |
| داسې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې بوډا ته وفرمائيل چې مشره په سورلۍ باندې ځه ځکه چې الله تعالى |
| غَنِيٌّ عَنْكَ وَعَن نذرك» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[٧] |
| ستا نه او ستا د دې نذر نه بې نيازه دی. |

**توضيح** : رأى شيخاً: د شيخ نه مراد بوډا او کمزوری سړی دی. ( المرقات ۶/۶۰۲)

**يهادى** دا د مجهول صيغه ده د دوو سړو په اوګو باندې لاس ايخودل په مشکل سره تللو ته وايې د بين ابنيه لفظ په دې خبره دلالت کوي چې ده ته ځو مره تکليف وو ( المرقات ۶/۶۰۲)

**بأل** په معنې د حال دی او **نفسه** د تعذيب مصدر د پاره مفعول به دی. ( المرقات ۶/۶۰۲)

کچيرې چا د بيت الله د زيارت د پاره د پيدل تللو نذر ومنلو او داسې يې وويل چې زه به پيدل خپې ابله خپې بيت الله ته ځم نو د دې متعلق د علماء کرامو اقوال مختلف دي، امام شافعي رحمه الله فرمايې چې کچيرې د پيدل تللو طاقت او قدرت يې شته نو لاړ دې شي ورنه د عجز او مجبورۍ په صورت کې دې سور شي او نذر دې مات کړي، او دم دې اداء کړي هم دا د دې کفاره ده، د امام شافعي رحمه الله يو قول دا هم دی چې د عجز په صورت کې هيڅ هم نشته دی او که د قدرت په صورت کې يې نذر مات کړو سور شو نو دم دی. امام ابو حنيفه رحمه الله فرمائي چې داسې د نذر نه پس د پيدل تللو قدرت يې وي او که نه وي په دې سړي باندې پيدل تلل لازم نه دي بلکه ده ته اختيار دی چې هغه سور شي او سفر وکړي او يو د کفارې په طور ادا کړي د دې دواړو مسلکونو اتفاقي خبره خو دومره ده چې داسې نذر منلو سره نذر منعقد کيږي او پيدل تلل لازم دي مګر کچيرې په دې څوک عمل نه کوي او د دې نذر

---

(٦) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٧٨ رقم الحديث ١٨٦٥ ومسلم في ٣/١٢٦٣ رقم الحديث (١٦٤٢-٩) والنسائي في السنن٣٠/٨ رقم الحديث ٣٨٥٤ وأحمد في المسند٣/١١٤

(٧) أخرجه مسلم في صحيحه ٣/١٢٦٣ رقم الحديث (١٦٤٣-١) وابن ماجه في السنن ١/٦٨٩ رقم الحديث ٢١٣٥.

ماتول غواړي نو هغه به څه کوي؟ نو شوافع فرمائي چې د مجبورئ په صورت کې دم دی او د مجبورۍ نه کیدو په صورت کې پیدل تلل متعین دي، مګر احناف فرمائي چې کچیرې په پیدل تللو باندې د قدرت باوجود هم که د اسې نذر ماتول غواړي او په سورلۍ باندې سور تلل غواړي نو د اسې کولی شي البته یو دم به اداء کول وي ادنی دم چیلی دی او چرته چې د بدنې ذکر دی نو هغه مستحب دی. ( المرقات ۶/۶۰۳)

**سوال** : دلته یو سوال پیدا کیږي چې نذر خو د هغه څیز منلی شي چې د هغې په جنس کې څه فعل شرعًا واجب وي او بیت الله طرف ته پیدل سفر کول څه واجب فعل نه دې نو د قیاس تقاضا دا ده چې په هغه سړې باندې په دې نذر کې دې څه هم لازم نه وي حالانکه د عامو علماو په نزد د دې نذر په ماتولو کې په دې سړي باندې دم لازم دی.

**جواب** : د قیاس تقاضا خو دا ده او همد اسې کول پکار دي مګر استحسانًا یعنې د قیاس خفي په وجې سره دا نذر معتبر ګرځولی شي ځکه چې د خلقو په عرف کې په د اسې قسمه الفاظو سره حج یا عمره لازم ګڼلی شي او په قسم او نذر کې د عرف ډیر دخل دی، دویمه وجه دا ده چې د حضرت علي رضي الله عنه نه یو اثر نقل دی چې په د اسې نذر منلو سره حج یا عمره لازمیږي نو په دې وجې سره قیاس پریخودلی شو.

**سوال** : هر کله چې د نذر د ماتولو کفاره د قسم ماتولو د کفارې په شان ده نو بیا د نذر ماتولو په وجې سره دم ولې لازمیږي د قسم کفاره ولې نه راځي.؟

**جواب** : د دې سوال جواب دا دی چې د نذر معامله د حج او عمرې سره تړلې ده او حج او عمره کې چې کله نقصان راځي نو هغه د م سره پوره کولی شي. **قال ونقائص النسک تجبر بالدم** ګویا چې دا د حج او عمرې خصوصیت دی. **کذا في زجاجة المصابیح مختصرًا.**

باقي چا چې د پیدل حج نذر و منلو نو په هغه لازم دي چې د کور نه طوافِ زیارت پورې پیدل لاړ شي همدا راجح دی او کچیرې دا نذر یې په عمره کې و منلو نو د سر خریلو پورې به پیدل وي. کچیرې چا وویل چې په ما باندې تر بیت الله پورې پیدل تلل د الله تعالی د پاره نذر دی نو د هغه د نیت به اعتبار وي چې هغه د حج په نیت سره ویلي وو که د عمرې په نیت سره یې ویلي وو یاد ساته! چې دا پیدل نذر به هغه وخت لازمیږي کله چې څوک د مشي الی بیت الله الفاظ و وایي کچیرې چا د **ذهاب الی بیت الله** الفاظ اداء کړل نو هیڅ به هم نه لازمیږي ها! د عرف اعتبار دی.

## د نذر منونکي په وارثانو باندې نذر پوره کول واجب دي یا نه ؟

﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ سَعْدَ بن عبَادَة رَضِيَ الله عَنهُم اسْتَفْتَى

او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی چې حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَذْرٍ كَانَ عَلَى أُمِّهِ فَتُوُفِّيَتْ

نه د هغه نذر متعلق د مسئلې پوښتنه وکړه کوم چې د هغه مور منلی وو او د هغې د پوره کولو نه مخکې

قَبْلَ أَنْ تَقْضِيَهُ فَأَفْتَاهُ أَنْ

هغه وفات شوه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم حضرت سعد رضي الله عنه ته فتوی ورکړه چې هغه دې د خپلې

يَقْضِيَهُ عَنْهَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[8]

مور د طرف نه دا نذر پوره کړي. (بخاري و مسلم)

**توضیح : فافتاه ان یقضیه عنها** د حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه مور څه نذر منلی وو د دې متعلق څه یقیني وضاحت ملاؤ نه شو بعضې علماؤ فرمایلي دي چې هغې د روژې نیولو نذر منلی وو، بعضې علماء وایې د غلام د آزادولو نذر وو او بعضې وایې چې د صدقې نذریې منلی وو. مګر صحیح خبره دا ده چې د هغې نذر مبهم وو د نذر معین او د نذر مطلق تذکره هم نه وه، د دارقطني په یو روایت کې دي چې نبي صلی الله علیه وسلم حضرت سعد رضي الله عنه ته وفرمایل چې د خپلې مور د طرف نه کوهی وکنه او وقف یې کړه نو هغوی هم داسې وکړل او بیایې وفرمایل چې دا د حضرت سعد رضي الله عنه د مور دپاره دی. اوس دلته دا مسئله بیانولی شي چې کچیرې یو کس د نذر پوره کولو وصیت کړی وي نو کتلی به شي که چیرې دنذر تعلق د مال سره دی نو د مړي د دریمې حصې د مال نه به نذر پوره کړی شي. او د مړي په وارثانو باندې د حکم پوره کول لازم دي او کچیرې د مړي مال نه وي نو په وارثانو باندې د نذر پوره کول لازم نه دي، ها کچیرې وارثان یې د خپل طرف نه په طور د احسان پوره کول غواړي نو دا تبرع او احسان دی، او که د نذر تعلق د مال په ځای د عباداتِ بدنیو سره دی نو د دې وصیت پوره کول د جمهورو علماو په نزد جائز نه دی ځکه چې **لایصلي احد عن أحدٍ ولا یصوم أحد عن احد** صریح حدیث پکې دی. اهل ظواهرو د زیربحث حدیث په ظاهر باندې عمل کړی دی

(۸) أخرجه البخاري فی صحیحه ۱۱/۵۸۳ رقم الحدیث ۶۶۹۸ ومسلم فی ۳/۱۲۶۰ رقم الحدیث (۱۶۳۸-۱) والترمذي فی السنن ۴/۸۹ رقم الحدیث ۱۵۴۶ والنسائي فی ۷/۲۰ رقم الحدیث ۳۸۱۷ وابن ماجه فی ۱/۶۸۹ رقم الحدیث ۱۵۴۶.

چې په وارث باندې د مورث نذر پوره کول په هر حال کې لازم دي. ( المرقات ۶/۶۰۲)

**د ايصال ثواب مسئله** : د دې حديث په اشارو سره علماو د ايصال ثواب مسئله راويستلې ده، د ايصال ثواب مطلب دا دی چې د ژوندو خلقو د اعمالو ثواب مړو ته رسيږي يا نه رسيږي، په دې مسئله کې د عربو او عجمو علماؤ کې دوه قسمه آراء ګانې چليږي: د مصر يو عالم محمد احمد عبدالسلام په دې مسئله کتاب ليکلی دی، چې د هغې نوم دی **القراءة للاموات هل يصل ثوابها اليهم** دا کتاب د نيم نه زيات د ايصال ثواب په نفې کې دی. او د نيم نه څه کم آخري حصه د ايصال ثواب په اثبات کې دی، زه د دې مسئلې تفصيل بيانولی نه شم صرف دومره خبره ده چې د اهل سنت والجماعت او د معتزلو په مينځ کې د مخکې ډيرې زمانې نه دا اختلاف په زُور او شور سره وو، معتزلو د ايصال ثواب نه انکار کولو او اهل سنت ئې اثبات کولو او س خو علماء د دې مسئلې د پاره فارغ هم نه دي. بهرحال په عبادات ماليو باندې اجماع ده چې د دې ثواب مړو ته رسي او په عبادات بدنيو کې د فرائضو او سننو او واجباتو ثواب کوم بل چا ته نه شي بخښلی ځکه چې دا د هرسړي ذاتي عمل دی او د هغه خپله ذمه داري ده، او س خبره د نوافلو پاتې شوه مثلاً د نفلي مونځ، روژې، او د قرآن تلاوت وغيره خو جمهور علماء هم د دې د ايصال ثواب قائل او عامل دي، البته امام شافعي رحمه الله ته منسوب دي چې هغه د تلاوت قرآن د ايصال ثواب قائل نه دی مګر د ايصال ثواب متعلق ډير احاديث شته دی چې په دې باندې حجت دی همدا وجه ده چې اکثر شوافع په دې مسئله کې د خپل امام سره نه دي. خلاصه دا ده چې کچيرې د تاريخ تعين کوم کس ضروري نه ګڼړي لکه د اهل بدعتو په نزد د ريمه، او مه، څلويښتي او يوولسمه د تعين سره هغوي دا ضروري هم ګڼي، نو بيا ايصال ثواب صحيح دی مړي ته به ثواب رسي، ها کچيرې د مړې د ايصال ثواب د پاره د قرآن ختم وي نو په هغې باندې د قاري د پاره خوراک کول يا عوض اخستل جائز نه دي، کچرې عوض ئې واخستو نو ثواب به نه قاري ته ملاويږي او نه به مړي ته ملاويږي،. ها کچيرې د برکت د پاره د قرآن ختم وي مثلاً نوی کور يا دوکان کې، نو په تلاوت سره برکت راځي د دې په عوض کې خوراک کول جائز دی په شرط د دې چې د نابالغ يتيمانو مال نه وي، د ايصال ثواب د ختم قرآن د پاره دا شرط دی چې د هرقسمه نمود او نمائش او د اشتهار او تشهير او د غرض او اغراضو نه پاک وي ورنه جائز به نه وي، نه به ثواب کيږي، ايصال ثواب که د ډيرو مړو د پاره و کړی شي نو د حضرت ګنګوهي د فتوې مطابق دا ثواب به په ټولو تقسيميږي د نورو مفتيانو حضراتو خيال دا دی چې هريو ته به پوره ثواب ملاويږي، مثلاً مړو ته يې د يو قرآن ثواب وبخښه نو هريو ته به د پوره قرآن ثواب ملاويږي د دې مسائلو د پاره فتاوی رشيديه او ګورئ خصوصًا ص ۲۳۰ وغيره. ( المرقات ۶/۶۰۴)

عقود رسم المفتي وغيره کتابونو نه يوه ضابطه معلوميږي چې کوم د استيجار على الطاعات متعلق دی چې هر هغه طاعت او عبادت چې په هغې باندې اجرت وانه خستی شي نو د دې طاعت او منصبِ شريعت د ختميدو خطره ده نو په دې باندې اجرت اخستل د مجبوری په درجه کې د متاخرينو په نزد جائز دی لکه امامت، اذان،

تعلیم او تعلم او تدریس دی، او که د شریعت څه منصب نه ختمیږي لکه تراویح او د ایصال ثواب ختمونه وغیره نو په دې باندې اجرت اخستل جائز نه دي، ځکه چې تراویح په ورو سورتونو هم اداء کیدی شي، لهٰذا د شرعي منصب د ختمیدو خطره نشته دی. باقي دعاملانو عمل او تعویذونه دا طاعت نه دی بلکې یو علاج دی په دې باندې اجرت اخستل جائز دي اګرچه د عوامو په نزد باندې د طعن باعث دی.

## په صدقه کولو کې د خپل ضرورت لحاظ ساتل پکار دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي |
| او حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه وائي چې ما عرض وکړو ای د الله رسوله! چې زما د مکمل او پوره توبې تقاضا خو داده |
| أَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي صَدَقَةً إِلَى اللهِ وَإِلَى رَسُولِهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| چې زه خپل ټول مال نه یو طرف ته شم او زه هغه د الله او د هغه رسول د پاره خیرات کړم رسول صلی الله علیه وسلم وفرمایل |
| «أَمْسِكْ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ». قُلْتُ: فَإِنِّي أُمْسِكُ سَهْمِي الَّذِي بِخَيْبَرَ. |
| چې ستا په حق کې بهتره داده چې ته څه مال وساتې ما عرض وکړو چې زه د خپل خیبر حصه ساتم. |
| وَهَذَا طرف من حديث مطول اخرجه البخاري (صَحِيح)[٩] |
| دا روایت د یو اوږد حدیث ټکړه ده. (بخاری و مسلم) |

**توضیح**: کعب بن مالک د تبوک د پاره د نبي صلی الله علیه وسلم د طرف نه د نفیر عام اعلان شوی وو په دې وجه په هر عاقل او بالغ باندې په جهاد کې وتل فرض عین شوې وو حضرت کعب بن مالک او دهغه دوه ملګري حضرت هلال بن امیه او حضرت مراره بن ربیع رضي الله عنهم روستو پاتې شوې وو د دې دریواړو د نومونو د پاره لفظ د (مکه) دې یاد ساتلی شي ځکه چې د هر یو نوم نه ړومبی حرف په دې لفظ کې موجود دی دغه شان په معرج کې په کوم آسمان کې چې د کوم نبي سره د حضور صلی الله علیه وسلم ملاقات شوی وو چې د کوم چې په احادیثو کې په ترتیب سره واقعه بیان شوې ده نو دهغې د یادولو د پاره به د ( المرقات ۶/۶۰۵،۶۰۴)

اعیاهما جمله یاد ساتلی شي د دې جملې هر ړومبی حرف د آسمانونو په ترتیب سره د دې نبي د نوم د ړومبي حرف سره موافق دی مثلاً الف آدم علیه السلام د پاره دی او په ړومبي آسمان کې ورسره ملاقات شوی وو. دغه شان قابل وهابیل کې قاتل معلومولو د پاره قاف په ذهن کې دې وساتلی شي د چا په نوم کې چې ړومبی قاف وي هغه قاتل دی، دغه شان د جلالین دوه مصنفین جلال

(۹) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۱/۵۷۲ رقم الحدیث ۶۶۹۰ ومسلم فی ۴/۲۱۲۷ رقم الحدیث(۲۷۶۹-۵۳) وأبوداؤد في السنن ۳/۶۱۲ رقم الحدیث ۳۳۱۷ والترمذي ۵/۲۶۳ رقم الحدیث ۳۱۰۲ والنسائی ۷/۲۳ رقم الحدیث ۳۸۲۶.

الدين سيوطي او جلال الدين محلي کې د حروف هجا و په اعتبار سره ړومبی حرف سين دی، او
دويم حرف ميم دی د اولې حصې مصنف سيوطي دی او د دويمې حصې محلي دی د غه تعم فعم.
اسع، زيد په دې حروفو کې د هر نبي نوم او په هغوی نازل شوې او ژبان (ژبې) طرفته اشاره ده
مثلاً تعم ته وګوره ت تورات، ع عبرانئی کې، ميم موسی عَلَيْهِ السَّلَام باندې نازل شوی دی فعم
ف فرقان په ع عربي کې م په محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې نازل شو. اسع الف انجيل، سين سرياني ژبه
کې، ع عيسي عَلَيْهِ السَّلَام باندې نازل شو. په زيد ز، زبور، ي، يوناني ژبه کې، د داؤد عَلَيْهِ السَّلَام باندې
نازل شو، بهرحال نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ټول مال د صدقه کولو نه منع کړو
او د صديق اکبر يې تعريف وکړو هرکله چې هغوی د غزوه تبوک په موقع باندې ټول مال پيش کړو
وجه د فرق دا ده چې د هريو ايماني کيفيت جدا جدا وو. ددې حديث تعلق باب النذور سره داسې
دی چې د حضرت کعب مال پيش کول ګويا د نذر په وجه سره وو.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

﴿۱۰﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةٍ

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل د ګناه نذر پوره کول جائز نه دي

وَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ الْيَمِينِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.[١٠]

او ددې نذر کفاره د قسم د کفارې په شان ده. (ابوداؤد، ترمذي، نسائي)

## د غير معين نذر کفاره

﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وائي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل چې کوم سړي غير معين نذر

«مَنْ نَذَرَ نَذْرًا لم يسمه

ومني (يعني صرف دا وايي چې زه نذر منم او د دې تعين نه کوي چې د څه څيز نذر مني مثلاً د روژې نذر مني

فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ. وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا

يا د صدقې؟) نو ددې نذر کفاره د قسم کفاره ده دارنګه که يو کس د څه داسې څيز نذر ومني چې

(١٠) أخرجه أبوداود في السنن ٣/٥٩٥ رقم الحديث ٣٢٩٢ والترمذي ٤/٨٧ رقم الحديث ١٥٢٥ والنسائي ٧/٢٦ رقم الحديث ٣٨٣٤

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا | يُطِيقُهُ | فَكَفَّارَتُهُ | كَفَّارَةُ | يَمِينٍ. |
| د هغه په وس کې نه وي (مثلا غر او چتول یا بیت الله ته پیدل تلل وغیر) نو ددې کفاره د قسم کفاره ده | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | نَذَرَ | نَذْرًا | أَطَاقَهُ | فَلْيَفِ | بِهِ». |
| او کوم سړی چې د داسې څیز نذر ومني چې دهغې د پوره کولو هغه طاقت لرلی شي نو هغه له پکار دي چې دا نذر پوره کړي | | | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ | وَابْنُ | مَاجَه | وَوَقَفَهُ | بَعْضُهُمْ | عَلَى | ابْنِ | عَبَّاسٍ |
| (ابوداؤد، ابن ماجه) بعضې حضراتو دې حدیث لره په حضرت ابن عباس رضي الله عنه باندې موقوف کړې دې. | | | | | | | | |

**توضیح:** لم یسمه یعنې نذر یې مطلق ذکر کړو د څه خاص فعل نوم یې وانخستلو چې په ما باندې د الله تعالی د پاره روژه یا حج دی یا عمره ده مګر که په زړه کې د څه څیز نیت وي نو په هغې به عمل کول وي، ورنه دا نذر مطلق دی ددې کفاره د یمین د کفارې په شان ده، ددې حدیث دا مطلب د امام ابوحنیفه او امام مالک رحمهما الله په نزد باندې دی، د شوافعو په نزد باندې په دې حدیث کې د نذر لجاج او جدال بیان دی یعنې کچیرې یو کس نذر ومنلو چې کچیرې ما فلانی کس سره خبرې وکړې نو په ما باندې د یو میاشت روژې یا حج لازم وي اوس کچیرې هغه خبرې وکړې او نذرئې مات کړو نو په ده باندې کفاره د یمین به راځي، په ظاهر حدیث کې د لم یسمه د الفاظو نه د احنافو او مالکیو د رائې تائید کیږي. ( المرقات ۶/۶۰۶)

## د کفارو سره مشابهت مه ساتئ

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ قَالَ: نَذَرَ رَجُلٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ثابت بن ضحاک وائي چې یو سړی نذر او منلو د نبی صلی الله علیه وآله وسلم په زمانه کې |

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَنْ | يَنْحَرَ | إِبِلًا | بِبُوَانَةَ |
| چې هغه به په بوانه کې (چې د مکې په نشیبي علاقه کې د یو ځای نوم دی) اوښ حلالوي بیا هغه سړی | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَتَى | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَأَخْبَرَهُ |
| رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی او نبي علیه السلام ته یې د خپل نذر خبر ورکړو رسول الله صلی الله علیه وسلم | | | | | | |

| |
|---|
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَلْ كَانَ فِيهَا وَثَنٌ مِنْ أَوْثَانِ |
| (د صحابو رضي الله عنهم نه) تپوس وکړو چې د جاهلیت په زمانه کې په دغه ځای کې څه بت وو چې د |

(۱) أخرجه أبوداؤد فی السنن ۳/۶۱۴ رقم الحدیث ۳۳۲۲ وابن ماجه ۱/۶۹۷ رقم الحدیث ۲۱۲۸.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْجَاهِلِيَّةِ | يُعْبَدُ؟» | قَالُوا: | لَا | قَالَ: | |

هغه عبادت کولی شو؟ صحابو رضی الله عنهم عرض وکړو چې نه! بیا نبي صلی الله علیه وسلم تپوس وکړو

«فَهَلْ كَانَ فِيهِ عِيدٌ مِنْ أَعْيَادِهِمْ؟» قَالُوا: لَا

چې هلته د کفارو په میلو کې به څه میله لګیده؟ صحابو عرض وکړو چې نا! ددې نه پس نبي علیه السلام

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَوْفِ بِنَذْرِكَ فَإِنَّهُ

(هغه سړي لره مخاطب) کولو سره وفرمائیل چې ته خپل نذر لره پوره کړه ځکه چې دا سې نذر

لَا وَفَاءَ لِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةِ اللهِ وَلَا فِيمَا

پوره کول جائز نه دي چیرته چې د ګناه څه خبره وي، دا رنګه په بني آدم باندې د هغه څیز د نذر پوره

لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (حسن)[12]

کول هم ضروري نه دي چې د ده په ملکیت کې نه وي.

**توضیح**: بیوانه د مکې مکرمې سره نزدې په ینبع مقام کې د سمندر په غاړه د یو چراګاه (د څاروو څرولو د ځای) نوم دی په باء باندې پیش او واو مفتوح غیر مشدد دی د نجد په علاقه کې هم د اوبو د یو کودر نوم بوانه دی هغه مراد نه دی. (المرقات ۶/۶۰۸)

وثن د بت په معنی دی جمع یې اوثان دی **عید** جمع یې اعیاد دی د جاهلیت په زمانه کې چې به کوم کوم ځای میلې لګیدې د هغې ځایونو خاص خاص نومونه وو هم ددې تپوس پیغمبر علیه السلام وکړو دې دپاره چې دوی ته معلومه شي چې په دې ځای د کافرانو څه شعار خو نشته دی، کله چې پته ولګیده چې څه خصوصي علامه یې نشته دی نو هلته یې ورته د حلالې اجازت ورکړو، ددې نه معلومه شوه چې د کافرانو سره مسلمانانو لره په خپلو افعالو او اقوالو او په خپلو عباداتو او عاداتو کې مشابهت نه دی ساتل پکار ځکه چې **من تشبه بقوم فهو منهم** د مذکوره حدیث نه معلومه شوه چې د نذر دپاره چې د کوم مکان تعین وکړی شي او په هغې عمل کول ممکن وي نو هم هلته نذر لره پوره کول لازم دي. (المرقات ۶/۶۰۸)

[12] أخرجه أبوداؤد فی السنن ۳/۶۰۷ رقم الحدیث ۳۳۱۳

## د فتح په تمنا کې د تمبل وهلو نذر

﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جده رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ:

او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه روایت کوي چې یوې ښځې عرض اوکړو

يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي نَذَرْتُ أَنْ أَضْرِبَ عَلَى رَأْسِكَ بِالدُّفِّ

چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ما دا نذر منلی دی چې (کله تاسو د جهاد نه تشریف راوړئ نو) زه به ستاسو په مخکې تمبل وهم؟

قَالَ: «أَوْفِي بِنَذْرِكِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَزَادَ رَزِينٌ:

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې ته خپل نذر پوره کړه. (ابو داؤد) او رزین رحمه الله په دې روایت کې دا

قَالَتْ: وَنَذَرْتُ أَنْ أَذْبَحَ بِمَكَانِ كَذَا وَكَذَا

الفاظ نقل کړي دي چې دې ښځې (داهم) ووئیل چې ما دا نذر منلی دی چې زه به په فلاني فلاني

مَكَانٌ يَذْبَحُ فِيهِ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ فَقَالَ:

مقام باندې چرته چې د جاهلیت په زمانه کې خلقو څاروي حلالول څاروی حلالوم نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تپوس وکړو

«هَلْ كَانَ بِذَلِكِ الْمَكَانِ وَثَنٌ مِنْ أَوْثَانِ الْجَاهِلِيَّةِ يُعْبَدُ؟» قَالَتْ: لَا قَالَ:

چې آیا هلته د جاهلیت د بتانو نه څه بت وو؟ دې ښځې ورته ووئیل چې نه! بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تپوس وکړو

«هَلْ كَانَ فِيهِ عِيدٌ مِنْ أَعْيَادِهِمْ؟» قَالَتْ: لَا قَالَ:

چې هلته د کافرانو د میلو نه څه میله به لګیده؟ دې ښځې ورته ووئیل چې نه! نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل

«أَوْفِي بِنَذْرِكِ» (صَحِيح)[۱۳]

چې ته خپل نذر پوره کړه.

**توضیح**: ان اضرب علي راسک بالدف....**دُف** په دال باندې ضمه افصح ده فتحه هم جائز ده، ددې جملې مطلب دا دی چې ستاسو مخې ته به تمبل وهم، عامو شارحینو همدا مطلب اخستی دی مګر دا حاصل معنی دی کچیرې حقیقي د[illegible] باندې عمل وکړی شي چې ستا په سر باندې به تمبل وهم نو هم ممکن ده. ځکه چې تمبل وهونکې وینځې چې کله ولاړې وي تمبل وهي او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به په ناسته تشریف فرما وي نو دا به په سر باندې تمبل وهل وي. او ترجمه به دا وي چې ستاسو په سرباندې به.

---

[۱۳] أخرجه أبوداود فی السنن ۳/۶۰۶ رقم الحديث ۳۳۱۲

تمبل وهم، شیخ عبدالحق رحمه الله په فارسی هم دا ترجمه کړې ده او بیایې په یعني سره حاصل د معنی بیان کړ دی. (المرقات ۶/۶۰۹)

**سوال**: دلته یو سوال مشهور دی کوم چې علامه خطابي داسې بیان کړی دی فرمائي چې تمبل وهل څه طاعت او نیک عمل نه دی د زیات نه زیات یو مباح عمل دی حالانکه نذر منلو دپاره د طاعت کیدل ضروري دي نو دا نذر څنګه صحیح کیدی شي.؟

**جواب**: علامه خطابي رحمه الله په جواب کې فرمائي چې اګرچې تمبل وهل یو مباح امر دی مګر کله چې دا تمبل وهل د نبي علیه السلام سره د ډیر زیات محبت او عقیدت سره متعلق وي او د جهادي معرکو نه صحیح سالم فاتحانه انداز کې د واپس راتلو سره متعلق وي چې په هغې سره د کافرانو سرونه ښکته او غمګین کیدل وو او د منافقانو توهین او تحقیر او تذلیل وو نو په دې وجه سره اوس دا عمل د نورو نیکو په شان شو نو ددې نذر صحیح شو. (المرقات ۶/۶۰۹)

## د دریمې حصې د مال صدقه کافي ده

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي لُبَابَةَ: أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او د حضرت ابولبابه رضي الله عنه نه روایت دی چې هغه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو چې زما د |
| إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَهْجُرَ دَارَ قَوْمِي الَّتِي أَصَبْتُ فِيهَا الذَّنْبَ |
| توبې تکمیل دا دی چې زه د خپل قوم کور پریږدم چیرته چې زما نه ګناه شوې ده او دا چې زه خپل |
| وَأَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي كُلِّهِ صَدَقَةً قَالَ: «يُجْزِئُ |
| ټول مال خیرات کولو دپاره د هغې نه یو طرف ته ته شم. نبي علیه السلام وفرمایل چې د دریمې |
| عَنْكَ الثُّلُثُ». رَوَاهُ رزين (صَحِيح)[11] |
| حصې د مال صدقه ستا دپاره کافي ده. (رزین) |

**توضیح**: ان اهجر دار قومي په مدینه منوره کې د خندق د جنګ په موقعه باندې په څلورمه هجری کې بنو قریظو چې کله د عهد شکني وکړه (وعده یې ماته کړه) نو دجنګ خندق نه دفارغید وسره مسلمانانو د نبي علیه السلام په ملګرتیا کې پنځویشت ورځو پورې د یهودو بني قریظو محاصره کړې وه کعب بن اسد چې د یهودیانو لیډر وو هغه دا رنګه تقریر وکړو. ای یهودیانو! ای د پیغمبرانو اولاده!

(۱۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۶۱۳ رقم الحديث ۱۳۱۹ ومالك في المؤطأ ۲/۴۸۱ رقم الحديث ۱۶ من كتاب النذور واحمد في ۳/۵۰۶.

د دې مشکل نه د وتلو دپاره په دريو خبرو کې د يوې انتخاب وکړئ. (۱) يا ايمان راوړئ، او تاسو ته پته ده چې دا هم هغه نبي آخر زمان دی د کوم چې تاسو انتظار کولو (۲) کچيرې داسې نه وي نو خپل بچي او ښځې پخپله قتل کړئ بيا په مسلمانانو باندې په يوځای حمله وکړئ هغوی نيست اونابود کړئ يا پخپله مړه شئ. (۳) يا داسې وکړئ چې سمدست د خالي (شنبې) په ورځ په مسلمانانو حمله وکړئ هغوي به په بې خبرۍ کې وي مونږ به بيا د خالي د ورځې د جنګ د وجې نه استغفار او توبه وکړو. قوم دخپل سردار يوه خبره هم ونه منله. بيا په دې خبره فيصله [illegible] شايد چې څه حل راوځي ابولبابه رضي الله عنه چونکه دبنو قريظو سره اوسيدو دهغه هلته کور وو او دهغوی سره يې پخوانی تجارتي او معاشرتي تعلقات هم وو کله چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په اجازت سره د هغو محلونو ته لاړو او دښځو او ماشومانو ژړاګانې يې واوريدې نو نرم شو، يهوديانو د هغه نه تپوس وکړو چې کچيرې مونږ د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم سره د خپلو محلونو نه راکوز شو نو هغه به مونږ سره څه سلوک کوي؟ ابولبابه رضي الله عنه مرۍ طرف ته اشاره وکړه يعنې تاسو حلالوي. دا يې ووېل چې ده ته اوس هوش راغی. دوه قدمه مخکې روستو شوی نه وو چې پښيمانه شو چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ راز ښکاره کړو نو نيغ په نيغه مسجدنبوي ته راغی او خپل ځان يې يوې ستنې پورې وتړلو داستنه اوسه پورې داسطوانه ابولبابه رضي الله عنه په نوم سره په مسجدنبوي کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د منبر او روضې په مينځ کې په رياض الجنة کې ولاړه ده. اوه ورځو پورې دا تړلی وو نه يې خوراک کوو اونه يې اوبه څکلې صرف دقضاء حاجت دپاره به کولاولی شواوه ورځې پس بيهوشه کيدو سره راپريوتلو آخر الله تعالی دهغه توبه قبوله کړه اودتوبې آيتونه نازل شول. (المرقات ۶/۶۱۰،۶۰۹)

(وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ خَلَطُوْا عَمَلًا صَالِحًا وَّاٰخَرَ سَيِّئًا ۭ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْهِمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۰۲﴾ خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيْهِمْ) (سورة التوبة: ۱۰۲)

خلقو زر زر دده خلاصول غوښتل مګر ده منع کړل او وې فرمايل چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ما په خپلو مبارکو لاسونو خلاصوي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کله دا خلاص کړو نو وې فرمائيل چې زه د بنو قريظو سره خپل کور پريږدم ځکه چې دا کور هم ددې واقعې سبب جوړ شو، او زه خپل ټول مال صدقه کوم ځکه چې دا مالي تجارت هم ددې واقعې سبب جوړ شوی دی، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مال متعلق وفرمايل چې دريمه حصه صدقه کړه، دريمه حصه خيرات کافي دې، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د کور متعلق هيڅ هم ونه فرمائيل شايد چې د کور پريخودلو اشاره يې ورکړه ځکه چې چرته شيطاني

اثرات پريوځي هلته نه منتقل كيدل ضروري دي.

## په څه خاص ځای باندې د مونځ كولو نذر

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَن جَابِر بن عبدالله: أَنَّ رَجُلًا قَامَ يَوْمَ الْفَتْحِ |
| او حضرت جابربن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي چې د فتح مكې په ورځ يو سړی په مسجد نبوي كې ودريدو |
| فَقَالَ: يَا رَسُول الله إِنِّي نَذرتُ لله عَزَّوَجَلَّ إِنْ فَتَحَ الله عَلَيْكَ مَكَّةَ |
| او عرض يې وكړو يارسول الله! ما د الله تعالى د پاره دا نذر منلى وو چې الله تعالى كه تاسو ته د مكې فتح دركړه |
| أَنْ أُصَلِّيَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ رَكْعَتَيْنِ قَالَ: «صل الله عَلَيْهِ وَسلم |
| نو زه به په بيت المقدس كې دوه ركعته مونځ كوم نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمايل چې ته هم دلته (په |
| هَهُنَا» ثُمَّ عَاد فَقَالَ: |
| مسجد حرام كې) مونځ وكړه دې سړي بيا هغه عرض وكړو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم دا جواب وركړو |
| «صل هَهُنَا» ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ فَقَالَ: |
| چې هم دلته مونځ وكړه كله چې هغه په دريم ځل هم دا عرض وكړو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائيل چې اوس تا ته اختيار دی |
| «شَأْنَكَ إِذًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد والدارمي.[۱۵] |
| (يعنى كچيرې دلته مونځ كول نه غواړې نو ته پوهه شه تا ته د خپل نذر مطابق بيت المقدس كې د مونځ كولو اختيار دی). |

**توضيح**: **ان فتح الله** يعنې كچيرې الله تعالى درته د مكې فتح نصيب كړه نو زه به په بيت المقدس كې د شكر په طور دوه ركعته نفل كوم د دې هر مسلمان اندازه كولى شي چې د صحابه كرامو رضي الله عنهم جذبات د **اعلاء كلمة الله** دپاره څومره اوچت وو.

**صل ههنا** يعنې دلته په مكه يې وكړه بيت المقدس ته د تلو ضرورت نشته دی، اوس دلته مسئله دا ده كچيرې يو كس د خپل نذر دپاره د څه مكان او مقام تعين وكړو چې زه به دا عبادت هلته ادا كوم نو دا تعين به برقرار وي يا بل كوم ځای كې هم دا نذر پوره كولى شي، امام زفر رحمه الله فرمايي چې كله تعين وكړي نو هغه سړي باندې لازم دي چې نذر هم هغه ځای كې اداء كړي هغه فرمايي چې اوګوره الله تعالى د وقوف دپاره عرفات مقرر كړی دی د شپې تيرولو دپاره د مزدلفې تعين دی او د رمي

(۱۵) أخرجه أبوداؤد فى السنن ۳/۶۰۲ رقم الحديث ۳۳۰۵ والدارمى فى ۲/۲۴۱ رقم الحديث ۲۳۳۹ وأحمد فى المسند ۳/۳۶۳

جمراتو د پاره منیٰ مقرره ده په دې کې تغیر جائز نه دی. مګر د نورو امامانو باره کې په شرح السنة کې لیکلي دي چې هغوی د ادنیٰ او اعلیٰ فرق کوي یعنې کچیرې نذر یې په افضل ځای کې منلی دی نو په مفضول کې دې نه اداء کوي او کچیرې په مفضول کې یې نذر منلی وي نو په افضل کې دې ادا کړي.

مثلاً چا په مسجد اقصیٰ کې د دوو رکعتو نفلو نذر منلی دی نو هغه یې په مسجد نبوي او مسجد حرام کې اداء کولی شي او کچیرې یې په مسجد نبوي کې د دوو رکعتو نفلو نذر منلي وي نو په مسجد حرام کې یې ادا کولی شي مګر که په مسجد حرام کې یې د دوو رکعتو نفلو نذر منلی وي [illegible] په مسجد اقصی کې یې نه شي ادا کولی، او که په مسجد حرام کې یې د دو رکعتو نفلو نذر منلی دی نو په مسجد نبوي کې ئې نه شي اداء کولی. ملاعلي قاري رحمه الله په مرقات کې لیکلي دي چې امام ابو حنیفه د دې تعین قائل نه دی بلکې د مکان او مقام سره متعین نذر چرته هم پوره کولی شي.

## د نذر څه جزء کچیرې ممکن العمل نه وي نو څه به کوي

﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ أُخْتَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نَذَرَتْ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې د عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خور دا نذر منلی وو چې هغه به

أَنْ تَحُجَّ مَاشِيَةً وَأَنَّهَا لَا تُطِيقُ ذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

پیدل حج کوي مګر هغې د دې طاقت نه لرلو نو نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (حضرت عقبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته) دا وفرمائیل چې

«إِنَّ اللهَ لَغَنِيٌّ عَنْ مَشْيِ أُخْتِكَ

بیشکه الله تعالی ته ستا د خور د پیدل تللو پرواه نشته دی لهذا هغې له پکار دي چې هغه دې پیدل نه

فَلْتَرْكَبْ وَلْتُهْدِ بَدَنَةً». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ

ځي نو) په سورلۍ دې کیني (او د هغې د مال نه د کفارې په طور دې) بدنه ذبح کړي (ابو داؤد دارمي)

وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ: فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَرْكَبَ وَتُهْدِيَ هَدْيًا

دا هم د ابو داؤد په یو روایت کې دي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ امر وکړو چې سوره دې شي او هدیه دې ولیږي

وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ

په یو روایت کې دا الفاظ دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل چې الله تعالی به ستا خور ته د مشقت

لَا يَصْنَعُ بِشَقَاءِ أُخْتِكَ

څه ثواب نه ور کوي (یعني ستا خور چې دا سې قسم مشقت برداشت کوي نو هغې ته به څه ثواب نه ملاویږي)

شَيْئًا فَلْتَرْكَبْ ولتحج

لهذا هغې له پکار دي چې هغه (چې کله پیدل نه شي تلی نو) په سورلۍ دې کیني او د حج سفر دې پوره

وتكفر يَمِينهَا» .[١٦]

کړي او د قسم کفاره دې ورکړي.

**توضیح** : **ولتهد بدنة** هدي هغه څاروي ته ویلی شي چې د کعبې مشرفې د پاره ولیږلی شي دې د پاره چې په حرم کې حلال کړی شي.

**هدیا بالغ الکعبة** د قرآن آیت دی ادنیٰ هدي چیلېیدی او اعلیٰ هدي **بدنه** یعني اوښ او غوا ده. د حج د پاره پیدل تلل استحسانًا او د قیاس خفي دوجې نه او د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د یو اثر د وجې نه د طاعاتو په زمره کې راځي په دې وجه د دې نذر صحیح او واجب تعمیل دی او د پریخودو په صورت کې به کفاره اداء کول وي او د کفارې د دې څاروي متعلق د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قول مطابق **بدنه** یعني اوښ او غوا ذبح کول به وي او په حدیث کې هم د **بدنه** ذکر راغلی دی. بعضې حضرات فرمایي چې په دې صورت کې به بدنه نه بلکه چیلۍ لازم ده د بدنه ذکر د استحباب په طور باندې دی باقي په دې حدیث کې د کفارې نه مراد کفاره د قسم نه ده بلکه کفاره د جنایت ده چې د حج او عمرې سره خاص ده **لایصنع** د صنع نه دی د لایفعل په معنی سره دی صنع کاریگرۍ ته وایې دلته عمل مراد دی **شقاد** شین په فتحې سره د محنت او مشقت په معنی سره دی، ترجمه یې داده چې الله تعالی ستا دخور د دې مشقت په او چتولو هیڅ هم نه کوي ځکه چې هغه د دفعت مضرت او جلب منفعت نه پاک دی **کذا یفهم من المرقات واشعة اللمعات**. (المرقات ۶/۶۱۲)

## د پیاده حج کولو د نذر حکم

﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ عُقْبَةَ بن عامر

او حضرت عبد الله بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د حج د سفر په دوران کې) د

سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أُخْتٍ لَهُ نَذَرَتْ

خپلې خور متعلق د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه تپوس وکړو چې هغې دا نذر منلی وو چې هغه به پیدل،

[١٦] أخرجه أبوداؤد في السنن ۳/۵۹۸ رقم الحدیث ۳۹۸ والدارمي في ۲/۲۴۰ رقم الحدیث ۲۳۳۵ وأحمد في المسند ۱/۲۵۳

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ | تَحُجَّ | حَافِيَةً | غَيْرَ | مُخْتَمِرَةٍ | فَقَالَ: «مُرُوهَا |
| خپې ابله خپې او بربنډ سر حج ته ځي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې هغې ته حکم وکړه چې هغه خپل سر | | | | | |
| فَلْتَخْتَمِرْ | وَلْتَرْكَبْ | وَلْتَصُمْ | ثَلَاثَةَ | أَيَّامٍ» | |
| پټ کړي او په سورلۍ باندې کيني لاړه شي دا رنګه هغې له پکار دي چې درې روژې ونيسي. | | | | | |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ[17] | | | | | |
| (روايت کړې دې ابوداؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي) | | | | | |

**توضيح** : ولتصم ثلاثة ايام يعني درې ورځې دې روژې ونيسي. د حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خور په قصه کې د کفارې اداء کولو متعلق مختلف الفاظ راغلې دي په څه رواياتو کې د دريو ورځو روژو ذکر دی څنګه چې په دې ذکر شوې حديث کې دي او په څه رواياتو کې د هدي ذکر راغلی دی څنګه چې ددې نه مخکې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت نمبر۱۵ کې د هدي ذکردی په دې روايت کې د بدنه ذکر هم دی او هم په دې کې د يمين دکفارې ذکر هم دی ددې نه مخکې په حديث نمبر٦ کې د مشي الي بيت الله د نذر دکفاري متعلق په تفصيل سره مسئله بيان کړی شوې ده دلته په يو نوي انداز سره نوې مسئله ليکلی شي چې بعضو شارحينو دا حديث ليکلی دی او د مغني ابن قدامه حواله يې ورکړې ده. په دې خبره د ټولو فقهاو اتفاق دی چې د مشي الي بيت الله نذر صحيح دی او نذر منونکي لره پيدل حج يا عمره کول پکار دي، او کچيرې پيدل حج تلو نه عاجزه شي نو په سورلۍ دې سور شي لاړه دې شي دلته خو اتفاق دی، اختلاف په دې کې دی چې د مجبورۍ په صورت کې چې کله سرۍ سور شي نو په ده باندې به څه جزا او سزا راځي.؟ ( المرقات ٦/٦١٣،٦١٢)

**د فقهاؤ اختلاف** : د جمهورو خبرې وليکل شوې چې د نذر ماتولو د وجې په دې سړې باندې دم واجب دی ددوی په خپل مينځ کې د اختلاف څه تفصيل تيرشوی دی. امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي چې د نذر ماتولو په صورت کې د يمين کفاره به ادا کول وي که هغه مشي الي بيت الله نذر وي يا څه بل نذر وي.

**دلائل** : د جمهورو په نزد د دم په وجوب باندې څو احاديث دال دي ددې باب حديث نمبر۱۵ چې په فصل ثاني کې د حضرت ابن عباس نه نقل دی په هغې کې د بدنه ذکر دی د هدي ذکر دی دا ټول دم

[17] أخرجه أبوداود في السنن ۳/۵۹٦ رقم الحديث ۳۲۹۳ والترمذي في ٤/۹۸ رقم الحديث ۱۵٤٤ والنسائي في ۷/۲۰ رقم الحديث ۳۸۱۵

دی، د مستدرک حاکم په روایت کې دا الفاظ دي **فليهد هدياً وليركب**.
امام احمد بن حنبل رحمه الله د دې زیربحث د حضرت عبد الله بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حدیث نه استدلال کړی دی په دې کې د درې روژو ذکر دی. ( المرقات ۶/۶۱۲)

**جواب**: د مجموعي روایاتو نه معلومېږي چې د عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خور د دو خبرو نذر منلی وو یو دا چې هغه به په سر باندې لوپټه نه په سروي، دويم دا چې پیدل به خپی ابله خپې حج ته ځي ترک اختمار یعنې لوپټه نه په سرول چونکه معصیت او ګناه ده په دې وجه د ښځې د سر ویښته عورت دی ددې پټول ضروري دي او د معصیت نذر ماتول ضروري وي، او په دې کې په اتفاق سره د یمین کفاره راځي په دې وجه په دې حدیث کې د یمین د کفارې ذکر هم راغی او ظاهره ده چې کله یو سړی د غلام د آزادولو یا مسکینانو ته د خوراک ورکولو طاقت نه لري نو هغه به درې روژې نیسي. ( المرقات ۶/۶۱۲)

د حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خور چې کله د ترک مشي الی بيت الله نذر ماتولو سره سواره شوه نو ددې وجې نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د کفارې په طور د دم ورد کولو حکم ورکړو ځکه چې د نقائص حج کفاره دم سره اداء کیږي. خلاصه دا چې د حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خور ته د یمین د کفارې او هدي دواړو حکم ورکړی شو د یمین کفاره په **ترک اختمار** باندې او هدي په **ترک مشي** باندې په دې وجه دا حدیث د ضابطې دلیل نه شي جوړېدی، بعضې شارحین ددې حدیث دا مطلب اخلي چې کله یو سړی د پیدل تللو نه عاجزه دی نو دم دې ورکړي او کچیرې په دم ورکولو باندې هم قادر نه دی نو ددې په بدله کې دې درې روژې ونیسي **اختمار** د خمار نه دی خمار لوپټې ته وايي او اختمار او **مختمره** دادلوپټې اچولو په معنی سره دی **حافیه** د خپلو نه بغیر پیدل تللو ته وايي ( المرقات ۶/۶۱۲)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَن سعيد بن المسيب: أَنَّ أَخَوَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ بَيْنَهُمَا مِيرَاثٌ | | | | | | | |
| او حضرت سعید بن مسیب رحمه الله وايي چې دوه انصاري رونړه ته د چا میراث ملاو شوی وو | | | | | | | |
| فَسَأَلَ | أَحَدُهُمَا | صَاحِبَهُ | الْقِسْمَةَ | | | | |
| دغه شان دې دواړو ورونو کې يوو رور د بل ورور نه د میراث د تقسیمولو مطالبه اوکړه نو دې | | | | | | | |
| فَقَالَ: | إِنْ | عُدْتَ | تَسْأَلُنِي | الْقِسْمَةَ | | | |
| دويم رور ورته ووئیل (چې زه ددې نذر منم) کچیرې اوس ته بیا ما نه د تقسیم مطالبه کوې نو زما ټول | | | | | | | |
| فَكُلُّ | مَالِي | فِي | رِتَاجِ | الْكَعْبَةِ | فَقَالَ | لَهُ | عُمَرُ: |
| مال به په کعبه کې خرچ کړی شي (کله چې دا صورت حال) د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (په علم کې راغی نو هغوي) او فرمائیل | | | | | | | |

إِنَّ الْكَعْبَةَ غَنِيَّةٌ عَنْ مَالِكَ كَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ

چې کعبه ستا د مال نه بې پروا ده ته د خپل قسم (یعني ناجائزه نذر) کفاره اداء کړه او (د میراث په معامله) کې

وَكَلِّمْ أَخَاكَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ته د خپل رور سره خبرې اترې وکړه (یعني د میراث د تقسیمولو مطالبه پوره کړه) ځکه چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه

يَقُولُ: «لَا يَمِينَ عَلَيْكَ وَلَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةِ الرَّبِّ

اوریدلي دي فرمائیل یې چې په تاسو باندې د دې قسم (یعني د غه شان نذر) پوره کول واجب نه دي او الله تعالی لره د

وَلَا فِي قَطِيعَةِ الرَّحِمِ

نافرمانۍ نذر جائز نه دې او نه داسې نذر پوره کول پکار دي چې د خپلولۍ تعلق پرېکولو متعلق وي

وَلَا فِيمَا لَا يملك». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد.[18]

او د کوم څيز چې انسان مالک نه وي د هغه نذر پوره کول هم لازم نه دي (۱) (ابوداؤد)

(۱) (بلکه کوم نذر چې د ناجائز کیدو په وجه سره پوره نه شي د هغې کفاره ورکول واجب دي).

**تنبیه**: رتاج الکعبة: رتاج غټې دروازې او پهاټک ته وايې مراد کعبه ده. (المرقات ۶/۶۱۳)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

(۱۸) عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "النَّذْرُ نَذْرَانِ:

حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه وايي چې ما د نبي صلی الله علیه وسلم نه دا واوریدل چې نذر په دوه قسمه دي

فَمَنْ كَانَ نَذَرَ فِي طَاعَةٍ فَذَلِكَ لِلهِ

(یو خو دا چې) څوک د طاعت (یعني د الله تعالی د بندګۍ) نذر ومني دا نذر خاص د الله تعالی د پاره دی

فِيهِ الْوَفَاءُ وَمَنْ كَانَ نَذَرَ فِي مَعْصِيَةٍ فَذَلِكَ لِلشَّيْطَانِ

داسې قسمه نذر پوره کول واجب دي او دویم دا چې څوک د ګناه نذر ومني دا نذر د شیطان د پاره دی

وَلَا وَفَاءَ فِيهِ وَيُكَفِّرُهُ مَا

دې نذر پوره کول واجب نه دي بلکه په داسې صورت کې هغه کفاره دې اداء کړي کومه چې د

(۱۸) أخرجه أبوداؤد فی السنن ۳/۵۸۱ رقم الحدیث ۳۲۷۲

يُكَفِّرُ الْيَمِينَ" رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.(١٩)

قسم ماتولو په صورت کې ورکولی شي.

## د ځان قربانولو د نذر مسئله

﴿۱۹﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ قَالَ: إِنَّ رَجُلًا نَذَرَ أَنْ يَنْحَرَ نَفْسَهُ

او حضرت محمد بن منتشر وائي چې يو سړي دا نذر منلی وو چې دا به خپل ځان ذبح کوي (يعني حلالوي) کچرې

إِنْ نَجَّاهُ اللهُ مِنْ عَدُوِّهِ فَسَأَلَ ابْنَ عَبَّاسٍ

الله تعالی ده ته د دشمن نه نجات ورکړو دا رنګه هغه ته د دشمن نه نجات ملاو شو نو ده د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه

فَقَالَ لَهُ: سَلْ مَسْرُوقًا فَسَأَلَهُ

تپوس وکړو حضرت ابن عباس رضي الله عنه ورته وفرمايل چې په دې مسئله کې د مسروق (تابعي) نه تپوس وکړه

فَقَالَ لَهُ: لَا تَنْحَرْ نَفْسَكَ فَإِنَّكَ إِنْ كُنْتَ مُؤْمِنًا

نو هغوي ورته وفرمائيل چې ته ځان مه حلالوه ځکه که ته مسلمان يې نو (په دې صورت کې به) ته د

قَتَلْتَ نَفْسًا مُؤْمِنَةً وَإِنْ كُنْتَ كَافِرًا تَعَجَّلْتَ إِلَى النَّارِ

يو مسلمان د قتل مرتکب شي او که ته کافر يې نو (په دې صورت کې ګويا) ته دوزخ ته په تلو کې جلتي کوې لهذا

وَاشْتَرِ كَبْشًا فَاذْبَحْهُ لِلْمَسَاكِينِ فَإِنَّ إِسْحَاقَ خَيْرٌ مِنْكَ

ستا متعلق دا حکم دی چې ته ګډ واخله او د مسکينانو د پاره هغه حلال کړه حضرت اسحاق عليه السلام ستا نه بهتر وو

وَفُدِيَ بِكَبْشٍ فَأُخْبِرَ ابْنَ عَبَّاسٍ

چې د هغه بدله يو ګډ مقرر کړی شو کله چې دې سړي حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته (د حضرت مسروق د دې فتوې) خبر ورکړو

فَقَالَ: هٰكَذَا كُنْتُ أَرَدْتُ أَنْ أُفْتِيَكَ. رَوَاهُ رَزِينٌ (مُتَّفَق عَلَيْهِ)(٢٠)

نو هغوي ورته وفرمايل چې حقيقت همدا دی ما خپله تا ته د دې فتوې درکولو اراده لرله. (رزين)

**وضيح**: **محمد بن المنتشر** دا جليل القدر تابعي دی د حضرت عائشه رضي الله عنها نه يې احاديث لوستلي

ي دا د مسروق بن اجدع ورارہ دی د همدان قبيلې سره يې تعلق وو او په کوفه کې اوسيدو. (

---

) أخرجه النسائي في السنن ۷/۲۸ رقم الحديث ۳۸۴۵

المرقات ۶/۶۱۵)

مسروق ابن الاجدع همداني. حضرت مسروق بن اجدع ډیر لوی تابعي دی د نبي کریم ﷺ په ژوند مبارک کې پیدا شوی وو مګر ملاقات یې ورسره نه وو شوی، ده د څلور واړو خلفاء راشدینو رضي الله عنهم او د حضرت عائشې رضي الله عنها نه ښه ډیر علم حاصل کړو په دې وجه ده ته په تابعینو کې یو اوچت شان حاصل وو. مره بن شرحبیل فرمایې چې هیڅ یو همدانیه ښځې د مسروق په شاز نامور شخصیت نه دی زیږولی، شعبي رحمه الله فرمائي چې کچیرې د جنت دپاره څوک پیدا شوي دي نو هغوی مسروق، علقمه او اسود کیدی شي، د هغوی وراره محمدبن منتشر همداني چې بصرې ګورنر یو ځل دیرش زره درهمه د هدیې په طور حضرت مسروق ته راولیږل مګر د فاقو باوجو هم حضرت مسروق قبولې نه کړې، ویلی شي چې په ورکوتوالي کې دا چا پټ کړی وو په دې وجه یې نوم مسروق شو، د حضرت مسروق د اوچت شان اندازه ددې نه کولی شي چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په شان حبرالامة دده فتوې غوښتلو دپاره حضرت مسروق ته لیږل کوي او تاکیدیې کوي چې هغه درته څه فتوی درکړه راشه ماته یې ووایه. (المرقات ۶/۶۱۵، ۶۱۴)

**عجیبه مسئله**: ان رجلاً نذر د مسئلې تپوس کولو والا دا سړی د عجیبه نفسیاتي مرض ښکار شوی وو د هغه دا خیال په هغه باندې سور شوی وو کیرې دهغه دشمن ده لره قتل کړو نو په دې کې دده ډیره رسوائي او ذلت به وي په دې وجه یې دا نذر منلی وو چې که الله تعالی ماته د دشمن د پنجې نه خلاصی راکړو نو دهغه په نوم به ځان حلالوم. ددې سړي یو طبعي خواهش وو او د وهم پرستۍ یوه جذبه وه او د خودکشۍ په حقله یې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه د مسئلې پوښتنه وکړه هغوي حضرت مسروق ته ولیږلو حضرت مسروق ورته وفرمایل چې کچیرې ته مسلمان یې او خپل ځان قتل کړې نو ته به د یو مسلمان قاتل شې او که ته کافر یې نو د خپل ځان په جهنم کې غورځولو کې به جلتي وکړې، نو داسې مه کوه بلکه غوره دا ده چې ددې نذر په بدله کې یو ګډ راوله او حلال یې کړه ځکه چې الله تعالی د حضرت اسحاقؑ په بدله یو ګډ قبول کړلو. (المرقات ۶/۶۱۶)

## ذبیح الله حضرت اسماعیل علیه السلام وُ او که حضرت اسحاق علیه السلام؟

یاد ساتئ چې حضرت مسروق د بعضې علماو د رایې مطابق د حضرت اسماعیل علیه السلام په ځای د حضرت اسحاق علیه السلام ذبح کولو طرف ته اشاره وفرمایله دا ډیره د کمې طبقې رایه ده ورنه د قرآن او حدیث قطعي دلائل په دې باندې قائم دي چې ذبیح الله اسماعیل علیه السلام وو په دې مسئله باندې د پوهیدو دپاره د ټولو نه مخکې په دې پوهیدل پکار دي چې امتحان او آزمائش په هغه څیز کې وي چې کوم کې د مرګ په خوله کې د پریوتلو خطره موجوده وي مشقت او محنت او قرباني موجوده وي، او که چیرې خطره د مرګ نه وي بلکه د مخکې نه دپاس کیدو او خطرې نه د بچ کیدل فیصله شوې وي نو هلته امتحان څنګه کیدی شي په دې ضابطې باندې د پوهیدو نه پس اوس راشه اوګوره چې قرآن

عظیم د حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ دپاره کله د صابر لفظ استعمالوي( المرقات ۶/۶۱۶) (**واسماعیل وادریس و ذالکفل کل من الصابرین**) (سورة انبیاء ۸۵) (**ستجدني ان شاء الله من الصابرین**) (صافات ۱۰۲) او کله د حلیم لفظ سره هغه یادوي. **لقوله تعالی ( فبشرناه بغلام حلیم** ) (صافات ۱۰۱) کله په اسلم ځان سپارلو لفظ د هغه دپاره استعمالوي **کقوله تعالی (فلما اسلما وتله للجبین)** (صافات ۱۰۳) مګر کله چې د حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَامُ تذکره کوي نو د هغه پیدائش سره د غلام علیم لقب ورکوي **کقوله تعالی ( قالوا لاتوجل انا نبشرک بغلام علیم**) (سورة حجر ۵۳) چې دهغه نبي کیدو طرف ته اشاره ده کوم چې د نبي کیدو کارتیې ورکړې شوې ده. ده لره په ورکوتوالي کې د ذبحې دپاره پیش کولو فائده او مقصد څه کیدی شي دارنګه د حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَامُ د پیدائش زیري سره الله تعالی په قرآن کریم کې (**ویعقوب نافلة**) لفظ لګولی دی او د حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَامُ د ځوی یعقوب عَلَیْهِ السَّلَامُ زیری یې ورکړی دی **کقوله تعالی ( ووهبنا له اسحاق ویعقوب نافلة**) (سورة انبیاء : ۷۲) (**وکقوله فبشرناها باسحاق ومن وراء اسحاق یعقوب**) (سورت هود : ۷۱)

نو د چا دپیدائش په وخت کې چې دا ضمانت ورکړی شي چې دا هلک لوی شي او دده به اولاد وي ددې ضمانت نه پس د ذبح کولو دپاره پیش کول بې معني دي، معلومه شوه ذبیح حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ و حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَامُ نه وو. نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل **انا ابن الذبیحین** زه د دوؤ ذبیحینو ځوی یم نو یو ذبیح خو د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ والد محترم وو چې د ذبحې دپاره پیش کړې شوې وو او دویم هم حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ کیدې شي ځکه چې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ د حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَامُ په اولاد کې نه وو بلکه د حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ په اولاد کې وو. معلومه شوه ذبیح حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ وو. تورات کې یې لیکلې دي چې الله تعالی حضرت ابراهیم عَلَیْهِ السَّلَامُ ته د خپل نیازبین ځوی د ذبح کولو حکم ورکړی وو او هغه حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ وو حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَامُ نه وو معلومه شوه ذبیح حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ وو. علامه جلال الدین سیوطي رحمه الله فرمایې چې اهل کتابو د تحریف او تکذیب نه کار واخستو د حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَامُ نوم یې اخستی دی. **حسدًا من عند انفسهم** دې دپاره چې حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ ته دا فضیلت حاصل نه شي چې دمسلمانانو دپاره هم اعزاز دی شیعه شنیعه او رافضه مرفوضه هم د امت محمدیه نه ځانله لار اختیارولو دپاره د حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَامُ په ځای حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَامُ ذبیح ګرځولی دی. **تشابهت قلوبهم**.

# كتاب القصاص
## دقصاص بيان

قال الله تبارک وتعالی (وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَآ أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنفَ بِالْأَنفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ فَمَن تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ) (مائدة: ۴۵)

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْأُنثَىٰ بِالْأُنثَىٰ (بقره: ۱۷۸)

و قال الله تعالی (وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ) (بقرة: ۱۷۹)

**د قصاص تعريف** قص يقص د باب نصر ينصر نه قصًا د كټ كولو په معنی سره دی **قص الشعر** يعني په قينچۍ سره يې ويښته كټ كړل او هم ددې باب نه كچيرې مصدر **قصًا** راشي نو د چا دقدم په نښو باندې شاته شاته تللو ته ويلی شي او د بيان وركولو په معنی سره هم راځي البته په صله راوړلو سره فرق كيږي. **قص اثره** د روستو تللو سره خاص دی لكه : **(فارتدا علي آثارهما قصصا)** او **قص الخبر قصصا** دا د خبر وركولو او بيان كولو سره خاص دی لكه: ( المرقات۵/۷)

**( وقص عليه القصص) نحن نقص عليک احسن القصص اقص الامير فلانا من فلان** دا د بدلې او انتقام اخستلو په معنی سره دی او **والجروح قصاص** د مساوات او برابرۍ په معنی سره دی په شرعي قصاص كې د كټ كولو او روستو تللو مفهوم پروت دی ځكه چې د مقتول وارثان د بدلې اخستلو په غرض سره په قاتل پسې روستو روستو ځي دې دپاره چې په هغه باندې قابو موندلو سره هغه داسې كټ كړي لكه څنګه چې هغه قاتل مقتول لره كټ كړی وو هم دلته نه په دې كې د مساوات مفهوم هم راغی، لهذا لغوي طورباندې په قصاص كې دبدلې اخستلو ،مساوات،د قاتل لټول او هغه لره د كټ كولو مفهوم موجود دی او د شرع په اصطلاح كې د قصاص تعريف هم داسې دی . **القصاص هو ان يفعل بالفاعل مثل مافعل** يعني د قاتل ا وجارح سره هم هغه څه كول چې كوم څه يې كړي دي. په اسلامي عادلانه نظام كې قصاص صرف په قتل عمد كې وي په دې وجه دلته دقتل قسمونه بيانول

ضروري دي.

**د قتل قسمونه:** شريعت مطهره چې کوم قتل ناجائز ګرځولی دی ددې پنځه قسمونه دي: (۱) قتل عمد، دا هغه قتل دی چې په قصد سره په څه تيره څيز سره يا په تېوپک سره چا لره ووژني. (۲) قتل شبه عمد، دا هغه قتل دی چې په قصد سره چا لره بغير د قتل د آلې نه ووژني. (۳) قتل خطاء، ددې دوه صورتونه دي اول قتل خطاء في القصد دی دا هغه قتل دی چې د لرې نه څه څيز لره ووينې چې دا ښکار دی او هغې طرف ته غشی اُولي يا ګولی. وچلوي هغه په حقيقت کې سړی وي په ګولی لګيدو سره مړ شي. دويم قتل خطاء في الفعل دی چې ګولی يې په نښه باندې اُويشته مګر لاس يې اوخوزيدو يا ګولی. کړه شوه سړی پرې ولګيدو دا دواړه صورتونه د قتل خطا دي. (۴) جاري مجرا د خطاء، يعنې قائم مقام د خطاء، دا هغه قتل دی چې مثلاً څوک سړی په کټ وغيره کې اوده وو او په خوب کې په ډډه اوړيدلو سره په چا باندې راپريوتلو او هغه لاندې کس په دې سره مړ شو. (۵) قتل تسبب، ددې صورت دادی چې يو کس د بل چا په پټي کې کوهی وکنستو هلته څوک لاړو ورپريوتلو او مړ شو ياد ساتئ د قتل د قسمونو دا تعريفات د امام ابو حنيفه رحمه الله په مسلک کې دي د نورو امامانو په تعريفاتو کې څه فرق دی.

**د قتل موجبات:** د پورته ذکرشوي د قتل په قسمونو کې د هريو قسم جدا جدا احکامات او موجبات دي لکه: (۱) د قتل عمد موجب يو خو ګناه کبيره ده او دويم قصاص دی او دريم د مقتول د ميراث نه د قاتل محروم کيدل دي. (۲) د قتل شبه عمد په وجه سره ګناه کيږي قاتل د ميراث نه محروميږي په قاتل باندې کفاره لازميږي يعنې غلام آزادول يا دوه مياشتې روژې نيول او ديت مغلظه اداء کول چې د قاتل په عاقله باندې راځي. (۳) د قتل خطاء او جاري مجرای خطاء په وجه سره قاتل د مقتول د ميراث نه محروم کيدل، په قاتل باندې کفاره راځي او د قاتل په عاقله باندې ديت راځي په دې کې ګناه نشته دی ها دبې احتياطی جرمانه به اداء کوي. (۴) قتل تسبب کې په عاقله باندې ديت راځي.

**د قصاص حق به چا ته ملاويږي** دا خبره يادساته چې قصاص په قتل عمده کې وي قتل شبه عمد يا قتل خطاء يا جاري مجراي خطاء کې قصاص نشته دی، دارنګه دا خبره هم ذهن کې ساتل پکار دي چې د قصاص حق اګرچه د مقتول د وارثانو دی مګر د قصاص نافذ کول ددې د تنفيذ حق وارثانو ته حاصل نه دی بلکه د نافذ کولو حق صرف د وخت حکومت ته حاصل دی ځکه که چيرې هر سړی په ذاتي طور باندې د قصاص اخستل شروع کړي نو د امن په ځای به بدامني خوره شي ځکه چې د مقتول وارثان به د ډيرې غوسې نه د قصاص په حدودو کې د حد نه تجاوز وکړي دارنګه د قصاص کولو

تفصيلات ددې د واجب كيدو باريک نكات دومره ډير دي چې هر سړى ددې د ادراک نه عاجز دى په دې وجه اسلامي عدالت طرف ته رجوع كول ضروري دي باقي د دنيا موجوده د پهانسۍ نظام قصاص نه دى. دارنګه دا خبره هم ياد ساتل پكار دي چې قصاص كول د خلقو د بقاء او د حفاظت ذريعه ده ځكه چې د يو كس په قصاص كولو سره د ډيرو ځانونو ته تحفظ ملاويږي سعودي حكومت كې صرف د قصاص نظام نافذ دى چې د هغې په وجه سره هلته مكمل امن او امان دى د قصاص نه علاوه هلته د شرعي حدودو نفاذ نشته دى په افغانستان كې د طالبانو د اسلامي خلافت په دور كې چې كله د قصاص نفاذ وو نو هلته څنګه مثالي امن قائم وو او په قصاص كې د فرق بيان به ان شاء الله په كتاب الحدود كې راشي.

## د نفس په بدله كې نفس دى

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | | |
| د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى چې نبي عليه السلام و فرمائيل د يو مسلمان انسان | | |
| "لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ | | |
| وينه تو يول جائز نه دي چې ددې خبرې ګواهي وركوي چې د الله تعالى نه سيوا هيڅ يو معبود نشته دى | | |
| وَأَنِّي رَسُوْلُ اللهِ إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ: | | |
| او بيشكه زه د الله تعالى رسول يم مګر دا چې په دې دريو خبرو كې يوه خبره راپيښه شي (۱) په قصد | | |
| اَلنَّفْسُ | بِالنَّفْسِ | وَالثَّيِّبُ |
| قتل كول چې د وينې په بدله كې وينه (يعني قصاص) واخستى شي (۲) د واده شوې (مسلمان، | | |
| وَالْمَارِقُ | لِدِيْنِهٖ | الزَّانِي |
| مكلف، او آزاد) زنا كول (هغه لره سنګسار كړى شي) (۳) د خپل دين نه وتلو والا او خپلې ډلې لره | | |
| التَّارِكُ | لِلْجَمَاعَةِ" | (متفق عليه)[1] |
| پريخودو والا (يعني چې كوم مسلمان مرتد شي دهغه قتلول جائز دي). (بخاري و مسلم) | | |

**توضيح**: النفس بالنفس: په دې كې اختلاف دى چې آيا صرف د انسان د ذات لحاظ به وي يا د جنس

[1] أخرجه البخارى فى صحيحه ۱۲/۲۰۱ رقم الحديث ۶۸۷۸ ومسلم فى ۳/۱۳۰۲ رقم الحديث (۱۶۷۶-۲۵)

او د انساني صفاتو به هم اعتبار کولی شي یعنې حریت او عبدیت ذکوریت او انوثت او اسلامیت او ذمیت لحاظ به هم وي او که نه.

**د فقهاؤ اختلاف**: جمهور فرمائي چې د صفاتو لحاظ دې وساتلې شي لهذا که یو آزاد کس یو غلام له قتل کړو نو آزاد به د غلام په قصاص کې نه شي وژلی ها آزاد به د آزاد په بدله کې او غلام به د غلام په بدله کې وژلی شي. د احنافو امامانو په نزد په قصاص کې د انساني ذات اعتبار دی د دې زیاتي صفاتو اعتبار نشته دی، لهذا د غلام په بدله کې به د آزاد نه قصاص اخستی شي دارنګه د ښځې په بدله کې به سړی قتلولی شي. ( المرقات ۷/۷)

**دلائل**: جمهورو د آیت (**الحر بالحر والعبد بالعبد والانثى بالانثى**) ( البقرة ۱۷۸) نه استدلال کړی دی د استدلال طرز داسې دی چې د ایت مفهوم مخالف اخستی شوی دی نو د آزاد په بدله کې آزاد دی څوک بل څوک نه او د غلام په بدله کې صرف غلام دی کوم بل څوک نه په دې وجه د غلام په وژلو سره به د آزاد نه قصاص نه شي اخستلی لهذا کچیرې یو آزاد غلام قتل کړو نو د دې آزاد نه به قصاص نه شي اخستی. ( المرقات ۷/۷)

احنافو د دې آیت نه استدلال کړی دی (**وکتبنا علیهم فیها ان النفس بالنفس والعین بالعین**) (مائده: ۴۵)

د احنافو دویم دلیل دا آیت دی (**ولکم في القصاص حیاة یا اولي الالباب**) **بقرة ۱۷۹**

دارنګه احنافو د دې آیت نه هم استدلال کړی دی (**کتب علیکم القصاص في القتلى**) **بقرة ۱۷۹**

په دې ټولو آیتونو کې د مطلق انساني ذات ذکر دی دا فرق نه نشته دی چې څوک د کوم صفت سره متصف دی صرف د نفس په بدله کې د نفس ذکر دی. د احنافو څلورم دلیل زیربحث حدیث هم دی چې په کې مطلق د نفس په مقابله کې د مطلق نفس ذکر دی د څه زیات وصف ذکر نشته دی(المرقات ۷/۷)

**جواب**: احنافو د جمهورو د استدلال نه جواب ورکړی دی چې مونږ د مفهوم مخالف قائل نه یو مونږ د آیت نه ستاسو مفهوم مخالف اخستل نه منو، لهذا ستاسو استدلال په مونږ باندې څه حجت نه نشته دی، دارنګه د آیت مطلب او مفهوم دا دی چې په دې آیت کې الله تعالی د جاهلیت یو نظام مات کړو د جاهلیت په زمانه کې به داسې کیدل د شان او شوکت او شریف قوم د سړې په بدله کې به هغو خلقو د کمزوري او سپک خاندان دوه سړې وژل دې غلط رواج له یې په دې آیت سره ختم کړو، دارنګه مفهوم مخالف دلته نه شي اخستی ځکه چې د منطوق په موجودګۍ کې د مفهوم اعتبار نشته، دارنګه احنافو جمهوروته دا الزامي جواب هم ورکړو چې تاسو د کوم آیت نه استدلال کړی دی په هغې کې د ښځې په بدله کې د ښځې ذکر دی، حالانکه تاسو منۍ چې کچیرې ښځې سړی قتل کړو یا سړې ښځه قتل کړه نو په دواړو کې به قصاص جاري وي نو د خپلې ضابطې مطابق جمهورو پخپله د آیت (

**والانثی بالانثی)** باندې عمل ونه کړو. ( المرقات ۷/۷)

**والثیب الزاني :** یعني واده کړی سړی چې خلوت صحیحه کولو والا وي مسلمان وي مکلف او آزاد وي کچیرې د زنا ارتکاب وکړي نو هغه لره به سنګسارولی شي. ( المرقات ۷/۷)

**المارق لدينه :** مارق د وتلو په معنی سره دی دلته د خپل دین پریخودلو او وتل یعني دین اسلام لره پریخودلو والا ته مارق ویلی شوی دی، ددې نه پس د التارک الفاظ ددې دپاره د صفت مؤکده په صورت کې راوړل شوی دی یعني کوم سړی چې فعلاً قولاً یا اعتقاداً د دین اسلام نه مرتد شي نو درې ورځو پورې به دا پوهه کولی شي کچیرې توبه یې وکړه نو صحیح ده ورنه دا به قتلولی شي، په دې کې د ټولو فقهاؤ اتفاق دی البته کچیرې ښځه مرتده شي نو هغه به قتلولی نه شي په دې کې د فقهاؤ ... ( المرقات ۷/۷)

## د مرتدې ښځې متعلق د فقهاؤ اختلاف

جمهور علماء فرمائي چې ددې حدیث د عموم پیش نظر ښځه به هم د ارتداد په سزا سره قتلولی شي، د احنافو امامان فرمائي چې د ارتداد په سزا کې به ښځه قید کولی شي قتلولی به نه شي.

**دلائل :** جمهورو د بخاري د حدیث نه استدلال کړی دی **من بدل دینه فاقتلوه** په دې حدیث کې عموم دی دارنګه نبي صلي الله علیه وسلم حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمایل **ایما امرأة ارتدت عن الاسلام فادعها فان عادت والا فاضرب عنقها** د جمهورو عقلي دلیل دادی چې کوم جنایت سړی کړی دی د ارتداد هغه جنایت ښځې هم کړی دی لهذا د دواړو سزا یو شان کیدل پکار دي.

د احنافو امامانو په خپل استدلال کې د کتاب الجهاد هغه حدیث پیش کوي چې په هغې کې راغلې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ښځو او ماشومانو د قتل کولو نه منع فرمایلې ده. ( **نهی عن قتل النساء والصبیان)** (ترمذي، ابوداؤد)

د احنافو امامانو د مجعم طبراني د حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ والا روایت نه هم استدلال کړی دی چې دهغې الفاظ داسې دي : **وایما امرأة ارتدت عن الاسلام فادعها فان تابت فاقبل منها وان ابت فاستتبها** (بحواله زجاجة المصابیح ج۳ ص۴)

یعني کچیرې مرتده ښځه توبه نه کوي نو بیا هم په هغې د توبې کولو کوشش کوئ.

احنافو یو حکمت او علت هم نظر کې ساتلی دی او هغه دا چې ښځه ناقص العقل ده لهذا یو حده پورې معذوره ده د پوهه کولو کوشش یې وکړئ دارنګه ښځه په جنګ کونکو کې نه ده کچیرې مرتده شي نو دشمن ته مدد نه شي ورکولی. په خلاف د سړو چې هغوی د مقاتلینو نه دي نو هغوي دې درې ورځو پورې پوهه کړی شي کچیرې منع شو نو صحیح ده ورنه قتلولی به شي.

**الجواب** : جمهورو د احاديثو دعموم نه استدل كړی دی ددې جواب دادی چې ددې عموم نه بڼځه مستثنى ده او داحنافو د مذكوره رواياتو نه په دې عموم كې تخصيص راغلو، د جمهورو دعقلي دليل جواب دادی چې په سرو باندې ښځې دلته نه شي قياس كولی ځكه چې سړی د جنګ په ميدان كې د كافرو مدد كولی شي او ښځه دا مدد نه شي كولی ددې حديث نه ثابته شوه چې د اسلام قبلولو نه پس د چا د قتل اسباب دا درې كيدی شي، جمهورو د مونځ پريخودونكي د قتل حكم هم كړی دی مګر احناف دده د قتل قائل نه دي ها ده لره په جيل كې د قيد كولو قائل دي.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَنْ يَزَالَ |
| او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل چې تر كومه پورې يو مسلمان د خون |
| الْمُؤْمِنُ فِي فُسْحَةٍ مِنْ دِينِهِ مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(١) |
| حرام (يعني ناحق) قتل مرتكب نه شي، نو هغه هميشه د خپل دين په فراخۍ او وسعت كې وي. (بخاري) |

## د قيامت په ورځ به كوم فيصله مخكې او چتولی شي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل د قيامت په ورځ |
| «أَوَّلُ مَا يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي الدِّمَاءِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(٢) |
| به د ټولو نه مخكې چې د كوم څيز متعلق فيصله كولی شي هغه وينه ده. (بخاري ومسلم) |

**توضيح** : اول مايقضي يوم القيامة دلته په دې حديث كې خودلی شوې دي چې د قيامت په ورځ به د ټولو نه مخكې د قتل حساب شروع وي، او د ترمذي وغيره په نورو رواياتو كې د مونځ ذكر دی چې ددې حساب او فيصله به د ټولو نه مخكې وي په دواړو رواياتونو كې واضح تعارض دی؟ ددې يو جواب دادی چې په حقوق الله كې به د ټولو نه اوله فيصله د مونځ وي د مخكې زمانې په مسجدونو كې اكثر دا شعر ليكلی شوی وي: ( المرقات ۷/۹)

روز محشر كه جان گداز بود    اولين پرسش نماز بود

او حقوق العبادو كې به د ټولو نه اوله فيصله د دماء او خون وي نو هيڅ تعارض نشته دی.

ددې تعارض دويم جواب دادی چې په عباداتو كې به د ټولو نه مخكې د مونځ قضيه پيش كيږي او

---

(١) أخرجه البخاري ١٢/١٨٧ رقم الحديث ٦٨٦٢

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ١٢/١٨٧ رقم الحديث ٦٨٦٤ ومسلم في ٣/١٣٠٤ رقم الحديث (١٦٧٨-٢٨)

معاملاتو کې به ړومبی د قتل قضیه راوچتولی شي.

ددې تعارض دریم جواب دادی چې اوامرو او په ماموراتو کې به د تپولو نه مخکې د مونځ حساب اخستلی شي او په منهیاتو او امور منهیو کې به د تپولو نه مخکې د ناحقه وینې حساب وي. ( المرقات۷/۹)

## کوم کس چې کلمه وویله هغه معصوم الدم شو

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ |
| او د حضرت مقداد بن الاسود نه روایت دی چې هغه عرض وکړو ای د الله رسوله! ماته وښایه چې |
| إِنْ لَقِيتُ رَجُلًا مِنَ الْكُفَّارِ فَاقْتَتَلْنَا فَضَرَبَ |
| کچیرې (ماته یو کافر ملاؤ شي او زمونږ په مینځ کې جنګ وشي او هغه کافر زما په یو لاس باندې |
| إِحْدَى يَدَيَّ بِالسَّيْفِ فقطعهما ثُمَّ لَاذَ مِنِّي بِشَجَرَةٍ فَقَالَ: أَسْلَمْتُ لِلّٰهِ |
| ګذار وکړي او کټ یې کړي. بیا دیوې ونې شاته زما نه پناه وغواړي چې زه مسلمان شوم. او په یو |
| وَفِي رِوَايَةٍ: فَلَمَّا أَهْوَيْتُ لِأَقْتُلَهُ قَالَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ |
| روایت کې دا دي چې کله د هغه د وژلو اراده وکړم. نو هغه ووایې چې لااله الا الله، نو آیا زه د هغه د |
| أَأَقْتُلُهُ بَعْدَ أَنْ قَالَهَا؟ قَالَ: «لَا تَقْتُلْهُ» |
| ژبې نه ددې الفاظو وتلو نه پس ده لره قتلولی شم؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل نه هغه لره قتل نه کړې |
| فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهُ قَطَعَ إِحْدَى يَدَيَّ |
| مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو ای د الله رسوله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! هغه زما لاس کټ کړی دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَقْتُلْهُ فَإِنْ قَتَلْتَهُ |
| وفرمایل (ددې باوجود هم) ده لره قتل نه کړې، ځکه کچیرې ته ده لره قتل کړې نو هغه به هغه ځای ته |
| فَإِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ قَبْلَ أَنْ تَقْتُلَهُ وَإِنَّكَ بِمَنْزِلَتِهِ |
| رسي چیرته چې ته د هغه د قتل کولو نه مخکښې وې او ته به هغه ځای ته ځې چرته چې هغه د |

| |
|---|
| قَبْلَ أَنْ يَقُولَ كَلِمَتَهُ الَّتِي قَالَ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۱] |
| كلمې د ويلو نه مخكې وو. (بخاري ومسلم) |

**توضيح : فانه بمنزلتک** يعني هغه به د ايمان او مؤمن په ځای وی **وانک بمنزلته** يعني ته به د کفر په ځای باندې راشې دا حکم، **تشديداً تغليظاً** او **زجرًا** دی **قاله الطيبي** د حديث مطلب دا شو چې د دې غيرمسلم د کلمې ويلو نه پس کچيرې تا دا قتل کړو نوځنګه چې ته د ده دقتل کولو نه مخکې محفوظ الدم وې دغه رنګ اوس هغه محفوظ الدم شو او د هغه دقتل کولو نه پس اوس ته غيرمحفوظ الدم شوې اوځنګه چې هغه د اسلام راوړلو نه مخکې غيرمحفوظ وو اوس ته د هغه دقتل د وجې نه غيرمحفوظ شوې، خلاصه دا چه د اسلام راوړلو نه مخکې د کفر په وجه سره د هغه قتل کول صحيح وو او د اسلام راوړلو نه پس د هغه د قتلولو سره ستا قتلول هم صحيح شو ( المرقات۷/۱۰ الکاشف ۱۶/۷) **لاذ** يلوذ د پناه اخستلو په معنی سره دی ( المرقات۷/۱۰) **بشجرة** دا دمثال په طور دی( المرقات۷/۱۰) **ارايت** يعني ماته خبر راکړه **اهويت** د ټيټولو او وژلو د پاره لاس رامخکې کولو ته وايې قاضي عياض د دې حديث نه دا مسئله راويستې ده چې په مکره باندې د اکراه په صورت کې هم د ده اسلام قبول او معتبر دی. ( المرقات۷/۱۰)

## د كلمه ويونكي قتلول منع دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: بَعَثَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوليږلو مونږ د جهينه قبيلې سره |
| إِلَى أُنَاسٍ مِنْ جُهَيْنَةَ فَأَتَيْتُ عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ فَذَهَبْتُ |
| د مقابلې د پاره دا رنګه (د هغوی سره د مقابلې په دوران کې زه په يو سړي باندې ورغلم او په هغې |
| أَطْعَنُهُ فَقَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ فَطَعَنْتُهُ فَقَتَلْتُهُ |
| مې د نيزې حمله او کړه نو هغه لااله الا الله وويله مګر ما په هغه کې خپله نيزه ننو يستله او قتل مې کړو. |
| فَجِئْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ |
| بيا کله چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې واپس راغلم او هغوي ته مې دا واقعه بيان کړه نو |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۱۸۷ رقم الحديث ومسلم في صحيحه ۱/۹۵ رقم الحديث (۹۵-۱۵۵)

فَقَالَ: «أَقَتَلْتَه وقد شَهِدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ؟»

نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل (صد افسوس) چې تا هغه لره په داسې صورت کې قتل کړو هر کله چې هغه لا اله الا الله وئيلې وه.؟

قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّمَا فَعَلَ ذَلِكَ تَعَوُّذًا

ما عرض اوکړو يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! چې آيا هغه صرف د قتل نه د بچ کيدو د پاره دا کلمه نه وه ويلې.؟

قَالَ: «فهلاً شققت عَن قلبه؟» (صَحِيح)[1] وَفِي رِوَايَةٍ

نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل نو تا ولې د هغه زړه نه څيرې کوو چې کتلې دې وې؟. او روايت هغه کوم چه

جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْبَجَلِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د ابن عبد الله بجلي نه نقل دې په هغې کې دا الفاظ دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام

قَالَ: «كَيْفَ تَصْنَعُ بِلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

وفرمايل چې د قيامت په ورځ به کلمه د لا اله الا الله د خپل ويونکي د پاره يعني (د مقتول) د طرف نه به

إِذَا جَاءَتْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟»

جنګ کولو سره تا ته راشي نو هغه وخت به ته هغه ته څه جواب ورکړې. نبي عَلَيْهِ السَّلَام (د يرې راوستو

قَالَهُ مِرَارًا. رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[2]

د پاره) دا الفاظ څو ځله ارشاد وفرمائيل. (مسلم)

**توضيح: جهينة** حضرت اسامه يې په دې فوجي دسته کې د جهينه قبيلې طرف ته د هغه د ملګرو سره نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ليږلې وو. **فهلا شققت عن قلبه** حضرت اسامه سوچ وکړو چې دا سړی صرف د يرې د وجې نه کلمه وايې د ژبې په سر د ځان بچ کولو د پاره کلمه وائي او دده په زړه کې ايمان نشته دی، دا رنګه دده قتلول جائز دي، يا حضرت اسامه اجتهاد کړی وو چې کله زما توره دده څټ ته ورسيدله نيزه دده طرف ته ورسيده نو په دې حالت د غرغرې کې ددې سړي ايمان معتبر نه دی مګر نبي عَلَيْهِ السَّلَام د حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خيال او اجتهاد غيرصحيح وګرځولو او وې فرمايل چې کله دې سړي کلمه وويله نو تا لره دده د ظاهري اسلام قبلول پکار وو د باطن او دده د زړه کيفيت باندې ته نه پوهيږې او نه

(1) أخرجه البخاري فى صحيحه ۱۲/۱۹۱ رقم الحديث ۶۸۷۲ ومسلم فى ۱/۹۶ رقم الحديث (۹۶-۱۱۵۸)

(2) أخرجه مسلم فى صحيحه ۶/۲۶۹ رقم الحديث ۳۱۶۶ وابن ماجه فى السنن ۲/۸۹۶ رقم الحديث ۲۶۸۶

ددې ضرورت وو تاته، پکار وه چې دده په ظاهري حالت دې فیصله کړې وی او دده د قتل نه منع شوی وې ته پخپله سوچ وکړه کچیرې هغه سړی دا کلمه دقیامت په ورځ د ځان سره راوړي نو ته به څه کوې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ صرف دناراضتیا اظهار وکړو. او دحضرت اسامه نه یې قصاص یا دیت وانخستو ځکه چې اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې سړي لره قتل کړی وو او هغوي د اجتهاد په وجه داسې کړې ووا و په اجتهادي غلطۍ باندې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ هغه زورنه ورکړه او نورېې هیڅ ونه کړل.

بعضې حضرات دې روایت نه جوړولو سره د اهل نفاق او اهل فسادو او زنادقاو سره مقابلې ته جهاد نه وایي او وایې چې دا خلق کلمه هم وایې او ددې خلقو په جواب کې عرض دی چې نن صبا کوم منافقان کلمه وایې هغه د مقابلې نه نه بچ کیږي هغوی وایي چې مونږ به په مقابله کې همیشه دپاره دیوال جوړیږو د حق په لاره کې به رکاوټونه اچوو او وسله به اچوو او تاسو به وژنو مګر تاسو مونږ مه وژنئ ځکه چې مونږ کلمه وایو، د حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ معامله چې دکوم سړي سره راغلې وه په هغه باندې دا خلق نه شي قیاس کیدی هغه سړي وسله غورزولې وه او تسلیم شوی وو او دحق د مقابلې نه یو خواته شوی وو دهغه ظاهري کلمه دهغه د معافۍ دپاره معتبره ګڼلی شوه او هم داسې کول پکار دي مګر د زړونو په پټو کیفیاتو باندې د الله تعالی نه بغیر بل څوک نه پوهیږي مګر دلته دا معامله بله ده دهغوي د زړه دکیفیت پته دهغوي د اعمالو او افعالو نه ښکاري مګر یاد ساته ! د اعلان جهاد او د میدان جهاد د قائم کیدو نه علاوه په ذاتي طور باندې داسې منافقان قتلول جائز نه دي په جهاد کې صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې منافقانو قتل کړې وو. ( المرقات۱۲،۱۱/۷)

## د معاهد دقتل کولو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ |
| او حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل چې کوم سړي |
| قَتَلَ مُعَاهِدًا لَمْ يَرِحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ وَإِنَّ رِيحَهَا تُوجَدُ مِنْ |
| عهدوالا قتل کړي هغه به د جنت خوشبو هم بوئی نه کړي او دجنت خوشبوئي د څلویښتو کالو |
| مَسِيرَةِ أربعينَ خَرِيفًا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| مسافت پورې راځي. (بخاري و مسلم) |

**توضیح**: معاهدا معاهد هغه کافرته ویلی شي کوم چې د امام او دوخت دخلیفه سره دجنګ نه کولو

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۶/۲۶۹ رقم الحدیث ۳۱۶۶ وابن ماجه فی السنن ۲/۸۹۶ رقم الحدیث ۲۶۸۶

عهد او معاهده کړې وي که هغه ذمي وي یا حربيٌ وي یا مستامن وي. ( المرقات ۷/۱۳)

**لم یرح رائحة الجنة:** دا بطور تشدید اوتغلیظ او بطور زجر اوتوبیخ یې فرمایلې دي. یا مراد دادی چې په ابتداء کې به دا سړی ددې خوشبو ادارک نه شي کولی د سزا خوړولو نه پس به یې محسوسوي، یا دا مراد دی چې هغه دې حرام عمل لره حلال ګڼلو نو کافرشو نو دجنت خوشبو یې پرې حرامه شوه. ( المرقات ۷/۱۳)

**اربعین خریفاً:** خریف دخزان موسم ته وائي مراد ترې نه څلویښت کاله دي، سوال دادی چې په حدیث کې د څلویښت کالو ذکر دی په بعضو روایاتو کې د اویاو ۷۰ کالو ذکر دی په بعضو کې دسلو ۱۰۰ کالو ذکر دی په بعضو کې د پنځو سو ۵۰۰ کالو یا د زرو ۱۰۰۰ کالو د مسافت ذکر دی، نو ددې تفاوت وجه څه ده؟ ددې جواب دادی چې دا د خلکو او د هغوی د درجاتو داختلاف او تفاوت د وجې نه دی، دا څه تعارض نه دی . یعنې د پاس درجو والا ته به دلاندې درجو والا په نسبت خوشبو د لرې نه راځي. ( المرقات ۷/۱۳)

## د خودکشي کونکي متعلق وعید

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ تَرَدَّى |
| او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وائي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کوم سړي خپل ځان د غر |
| مِنْ جَبَلٍ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَهُوَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ |
| نه په راغورزولو سره خود کشي وکړه هغه سړی به همیشه دپاره په دوزخ کې غورځولی شي هلته |
| يَتَرَدَّى فِيهَا خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا وَمَنْ تَحَسَّى سُمًّا فَقَتَلَ نَفْسَهُ |
| به همیشه دپاره وي او کله به هم ددې نه نه وځي او کوم سړی چې زهر وڅکي او خود کشي وکړي د |
| فَسُمُّهُ فِي يَدِهِ يَتَحَسَّاهُ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا |
| ده زهر به دده سره وي چې هغه به په دوزخ کې څکي هغه به په دوزخ کې همیشه وي او ددې نه به کله هم نه وځي |
| وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِحَدِيدَةٍ فَحَدِيدَتُهُ |
| او کوم سړي چې د وسپنې (په څه) وسلې (لکه چاړه وغیره) سره خپل ځان مړ کړو د ده هغه وسله به د |
| فِي يَدِهِ يَتَوَجَّأُ بِهَا فِي بَطْنِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا |
| دوزخ په اُور کې دده په لاس کې وي چې هغه به په خپله خیټه کې تومبي او په دوزخ کې به همیشه دپاره |

مخلّداً فِيهَا أبدا» متفق عليه (صَحِيحٌ).[1]

وي ددې نه به کله هم نه وځي. (بخاري ومسلم)

**توضيح** : **من تردى**: د باب تفعل نه دی خپل ځان ذغر وغیره نه راغورزولو ته وايې باب تفعل د تکلف دپاره هم کیدی شي ( المرقات۷/۱۳) **تحسى** دا هم د باب تفعل نه دی حسو د څکلو په معنی سره راځي دلته زهر څکل مراد دي دباب تفعل نه د تکلف معنی ظاهرېږي د کراهت سره په خپل ځان باندې په زبردستی سره زهر څکل. ( المرقات۷/۱۴)

**سما**: په سين باندې زبر،زير،پيش درې واړه حرکات راځي زهرو ته ويلى شي ( المرقات۷/۱۴) د **فسمه** لفظ مبتداء دی او **يتحساه** جمله ددې خبر دی **حديدة** تيره مخ والا د وسپنې وسلې ته وائي **يتوجأ** دا هم د باب تفعل نه دی په چاړه يا چاقو سره خپله خيټه شلولو ته وايې د **بها** ضمير **حديدة** طرفته راجع کيږي. ( المرقات۷/۱۴)

**خالدامخلدا** : د **مخلد** لفظ د **خالدا** دپاره تاکيد دی او **ابدا** هم تاکيد دی هميشه اوسيدو ته وائي دا هميشه اوسيدل يا خو ددې وجې نه به وي چې دې سړي خودکشي حلاله وګڼله او وې کړه نو کافر شو نو په دوزخ کې به اوسيږي يا دا حکم **تشديدًا تغليظًا تهديدًا زجرًا** او**توبيخاً** دی يا دخلود نه مراد اوږده موده ده چې په محاوره کې ويلى شي، همدا جوابات د راتلونکي حديث نمبر۸ دپاره هم دي او ددې نه پس د حضرت جندب د روايت نمبر۹ کې د **فحرمت عليه الجنة** الفاظ راغلي دي هلته هم دغه تغيير سره همدا جوابات ورکولی شي. په دې ټولو احاديثو کې د خودکشئ مختلف صورتونه خودلی شوې دي، اسلام خودکشي په دې وجه سره حرامه کړې ده چې دانسان ځان دده خپل ملکيت نه دی نو ځکه چې بل انسان وژل حرام دي همدغسې خپل ځان وژل هم جرم دی البته خودکشي کول د بل د وژلو نه هم زيات غليظ جرم دی ځکه چې په دې کې بعضې وخت د الله تعالی نه دمايوسی عنصر موندلی شي چې هغه ماته خوراک نه راکوي يايې نه شي راباندې خوړلی، نو په شکايت او مايوسی کې د خپل ژوند ختمول کوي، کچرې دا عنصر نه وي نو دخپل نفس وژل د بل چا د وژلو د جرم نه سپک دی کذافي المرقات. خودکشي ددنيا په هيڅ مهذب قانون کې جائز نه ده او انسان په خپل جوړشوې قانون کې هم دې لره قابل دتعزير جرم ګرځولی دی.اسلام خو آفاقي او فطري قانون دی هغه مخکې دې جرم لره حرام ګرځولی

[1] أخرجه البخارى فى صحيحه ۱/۲۴۷ رقم الحديث ۵۷۷۸ ومسلم فى صحيحه ۱/۱۰۳ رقم الحديث (۱۰۹-۱۷۵) والترمذي فى السنن ۴/۳۳۸ رقم الحديث ۲۰۴۴ والنسائى فى ۴/۶۶ رقم الحديث ۱۹۶۵.

دی. ( المرقات۷/۱۴)

﴿۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الَّذِي يَخْنُقُ نَفْسَهُ

او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چاچې په مرۍ زور كړل او خپل ځان يې مړ كړو

يَخْنُقُهَا فِي النَّارِ وَالَّذِي يَطْعَنُهَا

هغه به په دوزخ كې هم په خپله مرۍ زور كوي او كوم سړي چې په نيزه باندې خپل ځان مړ كړو خودكشي يې وكړه

يَطْعَنُهَا فِي النَّارِ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

هغه به په دوزخ كې (هم) خپل ځان په نيزه وهي مړ كوي به يې. (بخاري)

﴿۹﴾ وَعَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت جندب بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (يوه ورځ) وفرمائيل ستاسو

"كَانَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ رَجُلٌ بِهِ جُرْحٌ

نه مخكې په تيرو شوو خلقو كې يو سړى وو (چه په څه) زخمي شوى وو نو هغه (كله چې د زخم د

فَجَزِعَ فَأَخَذَ سِكِّيناً فَجَزَّ بِهَا يَدَهُ

تكليف د زياتيدو د وجې نه) هغه د صبر لمن پريخوده نو چاړه يې را وخسته او خپل (هغه) لاس يې كټ

فَمَا رَقَأَ الدَّمُ حَتَّى مَاتَ قَالَ اللهُ تَعَالَى:

كړو (په كوم كې چې زخم وو) د دې نتيجه دا شوه چې د زخم وينه ونه دريده او هغه مړ شو الله تعالى وفرمائيل:

بَادَرَنِي عَبْدِي بِنَفْسِهِ

زما بنده د خپل ځان په باره كې زما د فيصلې انتظار ونه كړو (بلكه خپل ځان يې هلاک كړو) لهذا ما

فَحَرَّمْتُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ" متفق عليه (صَحِيح)[2]

په ده باندې جنت حرام كړو. (بخاري ومسلم)

## د خودكشۍ متعلق يوه سبق آموز واقعه

﴿۱۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ: أَنَّ الطُّفَيْلَ بْنَ عَمْرٍو الدَّوْسِيَّ لَمَّا هَاجَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَدِينَةِ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې كله نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هجرت كولو سره مدينې ته تشريف

---

(۱) أخرجه البخاري فى صحيحه ۳/۲۳۷ رقم الحديث ۱۳۶۵ وأحمد فى المسند ۲/۴۳۵

(۲) أخرجه البخاري فى صحيحه ۶/۴۹۶ رقم الحديث ۳۴۶۳/ ومسلم فى ۱/۱۰۷ رقم الحديث (۱۸/۱۱۳)

هَاجَرَ إِلَيْهِ وَهَاجَرَ مَعَهُ

راوړو نو طفیل بن عمرو دوسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم هجرت وکړو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راغی دهغه سره د هغه د قبیلې

رَجُلٌ مِنْ قَوْمِهِ فَمَرِضَ فَجَزِعَ

یو بل سړی هم هجرت وکړو (په اتفاق سره) هغه سړی بیمار شو او (کله چې یې مرض زیات شو)

فَأَخَذَ مَشَاقِصَ لَهُ فَقَطَعَ بِهَا بَرَاجِمَهُ

او دهغه صبر ونه شو نو هغه په غشي باندې د خپلو ګوتو جوړونه کټ کړل ددې په وجه سره دهغه

فَشَخَبَتْ يَدَاهُ حَتَّى مَاتَ فَرَآهُ الطُّفَيْلُ

د دواړو لاسونو نه دومره وینه وبهیده چې هغه مړ شو (دهغه د مرګ نه پس یوه ورځ) طفیل بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

بْنُ عَمْرٍو فِي مَنَامِهِ وَهَيْئَتُهُ حسنةٌ وراٰه

هغه په خوب کې په داسې حالت کې ولیدو چې دهغه هیئت خو ښه وو مګر هغه خپل دواړه لاسونه

مغطياً يَدَيْهِ فَقَالَ لَهُ: مَا صنع بِكَ رَبُّكَ؟ فَقَالَ:

پټ کړي وو. طفیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترینه تپوس وکړو چې ستا رب تا سره څه معامله وکړه؟ هغه سړي وویل

غَفَرَ لِي بِهِجْرَتِي إِلَى نَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چې الله تعالی زما بخښنه په دې وجې سره وکړه چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طرف ته هجرت کړې وو،

فَقَالَ: مَا لِي أَرَاكَ مُغَطِّيًا يَدَيْكَ؟ قَالَ:

بیا ورته طفیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې څه وجه ده چې زه ستا دواړه لاسونه پټ کړي وینم؟ هغه سړي (په ډیر حسرت

قِيلَ لِي: لَنْ تصلح مِنْكَ مَا أَفْسَدْتَ

سره ووئیل) چې (زما د پروردګار د طرف نه) ماته ویلی شو چې کوم څیز تا خراب کړی دی هغه مونږ نه صحیح کوو،

فَقَصَّهَا الطُّفَيْلُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

طفیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خوب نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بیان کړو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل

| |
|---|
| «اَللّٰهُمَّ وَلِيَدَيْهِ فَاغْفِر». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] |
| يا الله! دده دواړه لاسونه هم وبخښې. (مسلم) |

**توضيح : بهجرتي الي نبيه** : يعنې د الله تعالى رسول محمد عربي ﷺ طرفته د هجرت كولو په بركت سره الله تعالى زما د خودكشئ جرم معاف كړو ددې نه معلومه شوه چې هجرت ډير لوى عمل دى او خاصكر مدينې منورې ته د نبي كريم ﷺ طرف ته د صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هجرت ډير لوى عمل وو چې دهغې په بركت سره الله تعالى دهغوى ډيرې لوى لوى خطاګانې معاف كړې، لهذا هيڅ يو كس لره مناسب نه دي چې په صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې ګوته اوچته كړي او د خپل خراب عقل په تله باندې دهغوى تلل شروع كړي. ددې حديث نه معلومه شوه چې لويه ګناه د كفر موجب نه ده او نه د دوزخ د دائمي عذاب ذريعه ده دارنګه د اهل السنت والجماعت هم دا عقيده ده چې د سزا خوړلو نه پس د لوې ګناه مرتكب به د دوزخ نه راوځي. ( المرقات۷/۱۷)

**اللّٰهم وليديه فاغفر**: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په ډير ښكلي انداز سره ددې صحابي دپاره د مغفرت دعاء وغوښته ځكه چې معامله صرف د لاسونو وه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه مقدم كړل فاغفر يې مؤخر كړو او وې فرمائيل اى كريم مولى دده لاسونه وبخښې. ( المرقات۷/۱۷) **مشاقص د مشقص جمع ده** غټې چړې ته ويلى شي براجم د برجمة جمع ده د ګوتو جوړونو ته وائي. **شخبت** ، د نصر او فتح نه راځي د رګونو يا د زخم نه د فوارې په شان وينې جاري كيدو ته وايي. ( المرقات۷/۱۷)

## د مقتول وارثانو ته په قصاص او ديت كې اختيار دى

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَن أَبِي شُرَيحٍ الكعبِيِّ عَنْ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابوشريح كعبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي ﷺ نه روايت كوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (د مكې د فتحې |
| "ثُمَّ أَنْتُمْ يَا خُزَاعَةُ قَدْ |
| په دوران كې چې كومه خطبه ارشاد وفرمايله دهغې آخري الفاظ دا وو) وې فرمايل اى خزاعه! تاسو |
| قَتَلْتُمْ هٰذَا الْقَتِيلَ مِنْ هُذَيْلٍ وَأَنَا وَالله عَاقِلُهُ |
| هغه مقتول چې د هذيل قبيلې كس وو قتل كړى دى او زما په الله تعالى قسم د هغې د خون بها وركولو ذمه واريم |
| مَنْ قَتَلَ بَعْدَهُ قَتِيلًا |
| اوس ددې نه پس (ددې حكم نه خبردار ولى شي) چې كچيرې يو كس چالره قتل كړي نو د مقتول |

(۱) أخرجه مسلم فى صحيحه ۱/۱۰۸ رقم الحديث (۱۱۶-۱۸۴)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَهْلُهُ | بَيْنَ | خِيَرَتَيْنِ: | إِن | أَحَبُّوا | قَتَلُوا |

وارثانو ته په دوو څيزونو كې د يو څيز د اختيار حق حاصل دى. (١) يا دې هغه قاتل مړ كړي

وَإِن أَحَبُّوا أَخَذُوا العَقلَ". رَوَاهُ التِرمذِيُّ وَالشَّافِعِيُّ.[1] وَفِي شرح السنَّة

(٢) او يا دې ترېنه ديت واخلي (ترمذي، شافعي) په شرح السنة كې دا روايت د شافعي رحمه الله په

بِإِسنَادِهِ وَصَرَّحَ: بِأَنَّهُ لَيسَ فِي الصَّحِيحَيْنِ

سند سره مذكور دى او علامه بغوي رحمه الله دا صراحت كړى دى چې دا حديث بخاري او مسلم

عَن أَبِي شُرَيْح وَقَالَ: وَأَخْرَجَاهُ مِنْ

كې د ابو شريح رحمه الله نه نقل نه دى. مګر بغوي ويلې دي چې بخاري او مسلم كې دا روايت د

رِوَايَةِ أَبِي هُرَيْرَةَ يَعْنِي بِمَعْنَاهُ (مُتَّفق عَلَيهِ)[2]

ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه نقل دى حالانكه په هغې كې هم بالمعني منقول دي.

**توضيح**: **فاهله بين خيرتين**: يعني د مقتول وارثانو ته په دوو څيزونو كې د يو څيز حق حاصل دى، ددې واقعې تاريخي پس منظر داسې دى چې د جاهليت په زمانه كې د هذيل قبيلې خلقو د خزاعه يو سړى وژلى وو. د مكې د فتحې په ورځ خزاعو ته په هذيل باندې قوت حاصل شو نو خزاعو د هذيل يو سړى ووژلو او خپله سابقه بدله ئې ترې واخسته نبي عَلَيْهِ السَّلَام د فتنې او فساد د ختمولو د پاره دهغه مقتول ديت په خپله ذمه واخستو ددې نه پس يې د فتح مكې د خطبو په دوران كې په يوه خطبه كې دا شرعي قانون بيان كړو چې كه اوس چا په ناحقه بل چالره قتل كړو نو وراثانو د مقتول ته په دوړ خبرو كې اختيار دى يا خو قصاص واخلي يا ديت واخلي قاتل لره معاف كړي، اوس ددې اختيار متعلق د فقهاؤ په خپل مينځ كې اختلاف دى: (المرقات ۷/۱۸)

**د فقهاؤ اختلاف**: شوافع او حنابله فرمايي چې په قتل عمد كې وارثانو ته د قصاص اخستو هم اختيار دى او د قاتل نه د ديت اخستو هم اختيار دى. كچيرې هغوى د قاتل نه د ديت مطالبه وكړي نو قاتل به ديت اداء كوي. ائمه احناف او مالكيه فرمايي چې د قتل عمد موجب صرف او صرف

---

(١) أخرجه ابوداؤد فى السنن ٤/٦٤٣ رقم الحديث ٤٥٠٤ والترمذى ٤/١٤ رقم الحديث ١٤٠٦ والشافعى فى مسنده ص ٣٤٣ من كتاب الديات والقصاص. واحمد فى المسند ٤/٣٢

(٢) أخرجه البخارى فى صحيحه ١/٢٠٥ رقم الحديث ١١٢ ومسلم فى ٢/٩٨٩ رقم الحديث (١٣٥٥-٤٤٨)

قصاص دی د مقتول وارثان صرف د قصاص مطالبه کولی شي او د قاتل د مرضۍ نه بغیر دا مطالبه نه شي کولی چې مونږ ته دیت راکړه مونږ قصاص نه اخلو. (المرقات ۷/۱۸)

**دلائل**: دا امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله مستدل هم دا حدیث دی او په دې کې د مقتول وارثانو ته د دوو خبرو اختیار ورکړی شوی دی دا حضرات فرمایي کچیرې قاتل په دیت ورکولو باندې راضي نه وي او قصاص ورکولو د پاره تیار وي نو بیا به هم د مقتول وارثان د هغه نه د دیت مطالبه کوي. (المرقات ۷/۱۸)

د احنافو او مالکیانو دلائل د قرآن عظیم الشان هغه آیتونه دي چې په هغې کې د قتل عمد سزا قصاص متعین شوې ده لکه: (**کتب علیکم القصاص في القتلی**) (البقرة: ۱۷۸)

(**وکتبنا علیهم فیها ان النفس بالنفس**) (المائده: ۴۵) (**ولکم في القصاص حیاة یا اولي الالباب**) (البقرة ۱۷۹)

او د حضرت انس رضي الله عنه په روایت کې نبي علیه السلام وفرمایل: **یاانس کتاب الله القصاص** ای انس! په کتاب الله کې خو قصاص دی. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په یو حدیث کې دا الفاظ دي: **العمد قود والخطأ دیة** یعنې په قتل عمد کې خو قصاص دی او په قتل خطا کې دیت دی. دا روایت د نصب الرایه ج۴ ص۳۲۷ سند سره موجود دی.

**جواب**: د زیر بحث د شوافعو او حنابلو د مستدل جواب دا دی چې دلته به د دیت اخستو کې د قاتل د رضا لحاظ ساتل وي دې د پاره چې په ټولو نصوصو کې تطبیق راشي او تعارض پاتې نه شي.

## د ښځې سرې قاتل به قتل کولی شي

۲ محرم الحرام ۱۴۱۸هـ

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ يَهُودِيًّا رَضَّ رَأْسَ جَارِيَةٍ بَيْنَ حَجَرَيْنِ |
| او حضرت انس رضي الله عنه وائي چې یو یهودي د یوې جینۍ سر د دوو کاڼو په مینځ کې وچقولو |
| فَقِيلَ لَهَا: مَنْ فَعَلَ بِكِ هَذَا؟ أَفُلَانٌ؟ |
| (کله چې د جینۍ نهزاعي بیان واخستی شو نو) د هغې نه تپوس وشو چې تا سره چا دا معامله وکړه آیا فلاني سړي؟ |
| حَتَّى سُمِّيَ الْيَهُودِيُّ فَأَوْمَأَتْ بِرَأْسِهَا |
| تر دې پورې چې کله د هغه یهودي نوم واخستی شو نو جینۍ په سر سره اشاره وکړه وېخودلو چې آو هغه داسې وکړل. |
| فَجِيءَ بِالْيَهُودِيِّ فَاعْتَرَفَ فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| بیا هغه یهودي لره حاضر کړی شو او هغه د خپل جرم اقرار وکړو، لهذا رسول کریم صلی الله علیه وسلم هم د غسې د هغه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَرُضَّ | رَأْسُهُ | بِالْحِجَارَةِ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |

یهودي د سر چخنې کولو حکم وکړو او دهغه سر په کاڼو سره وچقولی شو. (بخاري ومسلم)

**توضیح**: رض: دا د باب نصرینصر نه دی چقولو او میده کولو ته وائي. (المرقات۷/۱۸)

**فاومات**: یعنې هغه جینۍ د زخم د وجې نه خبرې نه شوې کولی صرف د اشارې کولو طاقت یې لرلو صحابو د هغې نه تپوس وکړو چې ته چا وهلې یې آیا فلاني وهلې یې یا فلاني ووهلې.؟ کله چې دهغه یهودي نوم واخستی شو نو جینۍ د سر په اشارې سره اوخودلو چې آو دې یهودي وهلې یم په دې سره یهودي په قصاص کې قتل کړی شو ځکه چې هغه د جرم اعتراف کړی وو. د دې حدیث نه معلومه شوه چې کچیرې یو سړې کومې ښځې لره قتل کړه نو دښځې په قصاص کې به سړی قتلولی شي. (المرقات۷/۱۹)

د دې حدیث نه یوه بله مسئله هم واضح کیږي هغه دا چې کچیرې یو کس بل کس لره په درروند کاڼي سره قتل کړو نو قاتل به د قتل عمد مرتکب وي او دهغه نه به قصاص اخستی شي د دې مسئلې ته قتل بالمثقل وایي او په دې کې د فقهاء کرامو اختلاف دی چې په دې کې قصاص دی او که دیت دی.

**دفقهاؤ اختلاف**: جمهور فقهاء او صاحبین فرمائي چې د قتل بالمثقل موجب قصاص دی او دا قتل عمد دی، ځنګه چې په دې حدیث کې دي چې په دروند کاڼي سره یې یوه جینۍ شهیده کړه او دهغه نه قصاص واخستی شو. امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایې چې قتل بالمثقل شبه عمد دی او په شبه عمد کې دیت دی قصاص نشته. (المرقات۷/۱۹)

**دلائل**: جمهورو د زیربحث د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی دی کوم چې په خپله مدعا کې واضح دی، او امام ابو حنیفه رحمه الله دمشکوة شریف صفحه نمبر۳۰۲ باب الدیات فصل ثاني کې د حضرت عبد الله بن عمرو د حدیث نه استدلال کړی دی چې دهغې الفاظ داسې دي:

**الا ان دیة الخطإ شبه العمد ما کان بالسوط والعصا (ابوداؤد)**

امام صاحب فرمایې چې دلته په همساء کې څه فرق نشته که پیره وي یا نرۍ وي نو په دې سره د قتل بالمثقل ضابطه حاصله شوه، احنافو امامانو د مشکوة په ص ۳۰۲ باندې دحضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه هم استدلال کړی دی الفاظ یې دادي: **من قتل في عمیة في رمي یکون بالحجارة او جلد بالسیاط او ضرب بعصا فهو خطأ وعقله عقل الخطإ (ابوداؤد)**

---

[1] أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۲۱۳ رقم الحدیث ۶۸۸۴ ومسلم فی ۳/۱۲۹۹ رقم الحدیث (۱۶۷۲-۱۵) وأبوداؤد فی السنن ۴/۶۶۳.

ویلی شي چې د لغت امام ابو العلاء یو ځل دامام ابو حنیفه رحمه الله سره ملاو شو او تپوس یې وکړو چې کچیرې یو کس بل کس لره په ډیر لوی کاڼي سره ووهلو او قتل یې کړو نو آیا دا به هم شبه عمد وي؟امام صاحب وفرمایل آو: **ولو ضرب بأباقبیس** بعضې ناواقفه خلقو په دې ترکیب باندې اعتراض کړی دی چې د قاعدې مطابق **ولو ضرب بأبي قبیس** کیدل پکار دي مګر دا اعتراض په دوو وجو سره غلط دی: یو خو دا چې په اسماء ستو مکبرو کې څو لغات راځي دا لغت هم په فصیحه عربۍ کې راغلی دی. دویم دا چې امام صاحب د اهل کوفو په لغت باندې خبره کړې ده او اهل کوفه هم داسې وایې شاعر وائي:

**ان اباها وابا اباها** **قد بلغا في المجد غايتاها**

( المرقات۷/۱۹)

د عامې عربۍ دلغت مطابق وابا ابیها لفظ کیدل پکار وو.

**جواب**: د جمهورو د مستدل نه د زیربحث حدیث جواب دادی چې دا قصاص په سیاست باندې محمول وو اګرچه د قاعدې د مخې دلته قصاص نه وو د سیاست قاعده د ټولو فقهاو په نزد باندې مسلمه ده، بعضې علماو په دې موضوع باندې مستقل تصنیفات کړې دي مثلاً علامه عبدالبر بن شحنه لسان الحکام په نوم سره کتاب لیکلی دی، علامه ابن تیمیه السیاسة الشرعیة په نوم سره کتاب لیکلی دی.

**دویم جواب**: ددې حدیث دادی چې دا سړی قطاع الطریق وو ده ددې جینۍ نه بنګړي په زور اخستل او ده وعده هم ماته کړې وه، بهرحال د جمهورو دلیل ښکاره دی او صاحبین هم د جمهورو سره دي.

## مساوات في القصاص

ددې زیر بحث حدیث نه امام شافعي او امام مالک رحمهما الله دا مسئله مستنبط کړې ده چې په قتل او قصاص کې مساوات في الفعل ضروري دی یعني په کاڼي سره به د قتل بدله په کاڼي سره اخستلی شي د زهرو بدله به په زهرو سره، د همسا بدله په همسا سره، او د ګولۍ بدله په ګولۍ سره اخستلی شي، دې دپاره چې مساوات قائم شي، او امام ابو حنیفه رحمه الله او یو قول کې امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمایې چې په قصاص کې مساوات في العمل ضروري نه دی بلکه قصاص دتورې په ذریعې سره متعین دی. ( المرقات۷/۱۹)

**دلائل**: شوافعو او مالکیانو حضرات د زیربحث حدیث نه استدلال کړی دی چې په کاڼي سره د

ويشتلو بدله په كاڼي سره اخستلې شوې ده. احناف او حنابله د لاقود الا بالسيف د حديث نه استدلا ل نيسي، او شوافعو حضراتو چې د كوم عمل نه استدلال كړى دى هغه په سياست باندې محمول دى دې د پاره چې خلقو ته زيات نه زيات عبرت حاصل شي.

## د الله والاو شان

﴿۱۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ وَهِيَ عَمَّةُ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ربيع چې د انس بن مالك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترور (د پلار خور)

ثَنِيَّةَ جَارِيَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وه د يوې انصاري جينۍ غاښونه مات كړل دې جينۍ مقدمه يې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې

فَأَمَرَ بِالْقِصَاصِ فَقَالَ أَنَسُ بْنُ النَّضْرِ عَمُّ

حاضره كړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د بدلې اخستو حكم وفرمائيلو انس بن نضر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض او كړو

أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ لَا وَاللهِ لَا تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا يَا رَسُولَ اللهِ

چې د انس بن مالك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تره وو چې اى د الله رسوله! داسې به نه وي په الله قسم د ربيع غاښونه به نه ماتيږي

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا أَنَسُ كِتَابُ اللهِ الْقِصَاصُ»

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې انس! د الله تعالى حكم د بدلې اخستو دى مګر (دا الله داسې ونه كړل)

فَرَضِيَ الْقَوْمُ وَقَبِلُوا الْأَرْشَ

چې د جينۍ خاندان په غاښونو ماتولو باندې راضي نه شو او ديت مالي معاوضه يې قبوله كړه

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللهِ

دا رنګه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې بعضې د الله تعالى بندګان داسې دي چې په څه خبره باندې

مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللهِ لَأَبَرَّهُ» متفق عليه (صَحِيح)[1]

قسم وخوري نو الله تعالى هغه قسم پوره كوي. ) بخاري ومسلم)

**توضيح**: لا والله تكسر: دلته په دې روايت كې د څو نومونو تعين ضروري دى نو په دې كې ربيع يوه ښځه ده چې د نضر لور ده، دويم مالك نوم چې دى دا د نضر ځوى دى، دريم انس دى چې ديم دى دا د نضر ځوى دى، مالك بن نضر هم د خپل ځوى نوم انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كيخودې وو دغه شان د تره او وراره

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۲۴۶ رقم الحديث ۶۹۰۳ ومسلم في ۳/۱۳۰۲ رقم الحديث (۱۶۷۵-۲۴).

دواړو نوم انسؓ، انس بن مالک دنبي عَلَیْهِ السَّلَام خاص خادم وو د دې روایت راوي انس بن مالک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دی او ربیع د انس ترور (دپلار خورده) او دانس بن نضر خور وه دا د لا والله : قسم هم دی انس بن نضرخوړلی وو او نبي عَلَیْهِ السَّلَام یا انس کتاب الله القصاص خطاب ورته وکړو، د حضرت انس بن نضر دا کلام او قسم دنبي عَلَیْهِ السَّلَام د حکم نه انکار نه وو او نه یې دهغه مخالفت مقصود وو بلکه د الله تعالی په وسیع رحمت باندې یې نظر وو او ددې یې امید وو چې قسم په الله الله تعالی به داسې نه کوي بلکه هغه به هغه مدعیانو لره راضي کړي او دا خلق به دقصاص په ځای باندې دیت قبول کړي، همداسې وشوه، د حضرت انس بن نضر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نیت چونکه ښه وو د الله تعالی دحکم نه انکار نه وو بلکه د رحمت انتظار وو په دې وجه نبي عَلَیْهِ السَّلَام دده تعریف وکړو او دناراضګی اظهار یې ونه کړو.

ارش: دیت ته وایي :

*بهرحال قلندر هرچه گوید دیده گوي.* ( المرقات ۷/۲۰)

## د ذمي په بدل کې د مسلمان نه د قصاص اخستو مسئله

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَن | أَبِي | جُحيفةَ | قَالَ: | سَأَلْتُ | عَلِيًّا | رَضِيَ | اللهُ | عَنْهُ هَلْ عِنْدَكُمْ |
| او حضرت ابو جحیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې ما د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه تپوس وکړو چې تاسو سره د | | | | | | | | |
| شَيْءٌ | لَيْسَ | فِي | الْقُرْآنِ؟ | فَقَالَ: | وَالَّذِي | فَلَقَ | الْحَبَّةَ | |
| قرآن پاک نه علاوه بل څه څیز شته؟ هغوی وفرمایل په هغه ذات قسم چا چې غله پیدا کړې ده او ساه | | | | | | | | |
| وَبَرَأَ | النَّسَمَةَ | مَا | عِنْدَنَا | إِلَّا | مَا | فِي | الْقُرْآنِ | |
| ته یې وجود ورکړی دی ماسره داسې څه څیز نشته دی چې په قرآن کې موجود نه وي ها دقرآن هغه | | | | | | | | |
| إِلَّا | فَهْمًا | يُعْطَى | رَجُلٌ | فِي | كِتَابِهِ | وَمَا | | |
| پوهه (چې ماته راکړې شوې ده) چې یو انسان ته ورکړې شوې وي، دا رنګه مونږ سره څه داسې څیزونه | | | | | | | | |
| فِي | الصَّحِيفَةِ | قُلْتُ: | وَمَا | فِي | الصَّحِيفَةِ؟ | | | |
| چې په کاغذ کې لیکلی شوې دي ماعرض وکړو چې هغه څه څیزونه دي چې په کاغذ کې لیکلی شوې دي | | | | | | | | |
| قَالَ: | الْعَقْلُ | وَفِكَاكُ | الْأَسِيرِ | | | | | |
| هغوی وفرمایل (ناحق قتل) خون بها، ددې مقدار او ددې احکام او قیدي پرېخودلو) ثواب پکې لیکل شوی دی) | | | | | | | | |

| وَأَنْ | لَا | يُقْتَلَ | مُسْلِمٌ | بِكَافِرٍ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او دايي پکې ليکلي دي چې کافر (چې ذمي نه وي) په بدله کې مسلمان به نه شي قتلولی. (بخاري) | | | | | | |

**توضيح** : **هل عندکم شئ** : حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د حضرت ابوجحيفه د سوال کولو او تپوس کولو منشاء د شيعو او روافضو هغه عقيده وه چې دهغې لاندې هغوی وايي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خصوصي طور باندې (علم اسرار) ورکړی وو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه خليفه او وصي جوړکړی وو، دا عقيده نن صبا په روافضو کې عامه ده په دې وجه يې په اذان کې دخليفه او وصي لفظ داخل کړی دی، دارنګه د شيعو داهم عقيده ده چې عامو خلقو ته ديرش سيپارې قرآن ملاو شوی دی، او حضرت علي ته څلويښت سيپارې قرآن ملاو شوی وو چې په هغې کې لس سيپارې د اهل بيتو په فضائلو باندې مشتملې وې چې په دې وخت کې دموجوده قرآن نه غائبې دي ددې خبرو پيش نظر د ابوجحيفه سوال وو چې اوس دحضرت علي د طرف نه ددې خبرو ترديد راغلو بلکه هغوی په ډيرتاکيد سره د قسم په خوړلوسره ددې ترديد وکړو چې د امت په ذهن کې څه قسم شکوک او شبهات پاتې نه شي. ( المرقات۷/۲۱)

**فلق الحبة** : حبه دانې ته وايي اوفلق د شليدو په معنی دی برأ د پيدا کيدو په معنی دی او( المرقات۷/۲۱) **النسمة** : دنون او سين او ميم په فتحو سره، نفس او هر ساه لرونکي ته وايي، عقل ديت ته وائي، فکاک د خلاصولو په معنی سره دی، **الافهماً** يعني الله تعالی چې دخپل کتاب پوهه چاته ورکړي هغه الله تعالی ماته راکړې ده چې دهغې په ذريعې سره زه دالله تعالی دکتاب نه داحکامو او معانو استنباط کوم اوددې اجمالي اشاراتو لره منم ، او د هغې ژورو علومو ته ځان رسوم، حضرت ابن عباس رضي الله عنه د قرآنکريم د هغو ژورو علومو باره کې فرمايي: ( المرقات۷/۲۱)

**جميع العلم في القرآن لکن تقاصر عنه افهام الرجال**

**د فقهاؤ اختلاف** : وان لايقتل مسلم بکافر :ددې حديث ددې جملې نه دفقهاء کرامو په مينځ کې يو اختلافي مسئله رااوچته شوې ده، دفقهاء کرامو په دې کې خو اتفاق دی چې دحربي کافر په قتلولو سره به د مسلمان نه قصاص نه شي اخستی. ( المرقات۷/۲۲)

ها اختلاف په دې کې دی چې که کافر ذمي وي يا معاهد وي نوددې په بدله کې به دقصاص په طور

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ١٢/٢٤٦ رقم الحديث ٦٩٠٣ والترمذی فی السنن ٤/١٧ رقم الحديث ١٤١٢ والنسائی ٨/٢٣ رقم :٤٧٤٤.

باندې مسلمان لره قتلولی شي او که نه؟ د جمهورو امامانو مسلک دادی چې د ذمي په بدله کې به مسلمان نه شي قصاص کولی داحنافو امامانو مسلک دادی چې د ذمي او معاهد په بدله کې نه مسلمان قصاص کې قتلولی نه شي. ( المرقات ۷/۲۲)

**دلائل**: جمهورو د زیر بحث حدیث د دې جملې نه استدلال کړی دی چې : وان لایقتل مسلم بکافر هغوی فرمایې چې په دې جمله کې د کافر لفظ دی چې عام دی که هغه حربي وي یا ذمي معاهد وي مسلمان نه به قصاص او بدله نه شي اخستی، د جمهورو عقلي دلیل دادی چې په کافر او مسلمان کې مساوات نشته دی د ذمي قتل اګرچه جائز نه دی مګر په وجه د کفر د دې په قتل کې یې شبهه د اباحت راغله لهذا قصاص به نه شي اخستی. ( نصب الرایه ۴/۳۳۵) داحنافو امامانو رومبی دلیل د دارقطني روایت دی چې د هغې الفاظ دادي :ان رسول الله صلي الله علیه وسلم قتل مسلما بمعاهد (بحواله نصب الرایة ج۴)

د احنافو امامانو دویم دلیل هغه عامه ضابطه ده چې د هغې ذکر په شو روایاتو کې راغي، او په کوم کې چې د ذمیانو حقوق او د ځان او مال د تحفظ ذمه داري قبوله کړی شوې ده د هغوی د مالونو غلا جرم دی، او د هغوی د ښځو سره زنا یا د زنا تهمت جرم دی، لهذا د هغوی د وینې حفاظت هم دمائهم کدمائنا واموالهم کاموالنا په رڼا کې ضروري دی. (کذا في زجاجة المصابیح ج۳ ص۱۵)

د احنافو امامانو دریم دلیل دحضرت علي رضي الله عنه یو اثر او قصه ده، دوی د ذمي په بدله کې د مسلمان نه قصاص واخستو او وې فرمایل (من کان له ذمتنا فدمه کدمنا ودیته کدیتنا) (نصب الرایه ج۴ ص۳۳۷)

د احنافو امامانو دریم دلیل دحضرت عمر رضي الله عنه هغه فیصله ده چې په هغې کې یې د یو ذمي په بدله کې د یو مسلمان نه یې قصاص واخستو (پاسنی حواله) د صحابه کرامو رضي الله عنهم د هغو فیصلو او د احنافو د مستدلاتو پوره تفصیل په تعلیق الصبیح ج۴ ص ۱۲۶ کښې او ګورئ.

**جواب**: امام طحاوي رحمه الله جواب ورکړی دی چې دلته د دې حدیث کې د کافر نه مراد حربي کافر دی ذمي مراد نه دی او په حربي کافر کې د چا اختلاف نشته دی، دارنګه پاسني روایاتو او د صحابه کرامو رضي الله عنهم فیصلو د زیربحث حدیث په عموم کې خصوص پیدا کړو لهذا د دې نه ذمي مراد نه دی اګرچه ظاهري احادیثو نه عموم معلومیږي هرکله چې د دوی د نقلي دلیل جواب وشو نو د عقلي دلیل وجود ختم شو.

## د مسلمان دوينې اهميت

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| د حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د الله تعالى په |
| «لَزَوَالُ الدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللهِ مِنْ قَتْلِ رَجُلٍ مُسْلِمٍ» |
| نزد د پوره دنيا ختميدل ديو مؤمن سړي د قتل كيدو نه زيات آسان دي. او بعضو راويانو دا حديث موقوف بيان |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ ووقفه بعضهم وَهُوَ الْأَصَحّ[1] |
| كړى دى (يعني دا يې ويلي دي چې دا حديث نبوي نه دى بلكه د عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دى) او همدا زيات صحيح دى |
| وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ[2] |
| دا رنګه ابن ماجه دې روايت لره د عبد الله بن عمرو په ځاى ) د حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل كړى دى. |

**توضيح: لزوال الدنيا:** الله تعالى د دې كائناتو شيزونه د مسلمانانو د پاره پيدا كړي دي د دې د پاره چې هغوى د دې شيزونو نه فائده واخلي او عبادت وكړي لكه چې سعدي بابا فرمايي:

*ابر و باد و مه و خورشيد و فلک در کارند — تا تو نانے بکف آرے و بغفلت نه خوری*

يعني لمر او سپوږمۍ باد او باران او آسمان او زمكه ستا په كار كې لګيدلي دي د دې د پاره چې ته كله د روټۍ ټكړه په لاس كې واخلې نو په غفلت سره يې نه خورې.

اوس چې كله يو سړي يو مسلمان لره قتل كړو نو ګويا چې هغه پوره كائنات لره مړه كړو. همدې مضمون طرف ته د قرآن په دې آيت كې اشاره ده: ( المرقات ۷/۳۴) **من قتل نفسًا بغير نفس او فساد في الارض فكأنما قتل الناس جميعًا.** ( المائده: ۳۲)

## د مسلمان قتلول ډير لوى جرم دى

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَن أَبِي سعيدٍ وَأَبِي هريرةَ عَن رسولِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او د حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل |

[1] أخرجه الترمذى فى السنن ۴/۱۰ رقم الحديث ۱۳۹۵ والنسائى فى ۷/۸۲ رقم الحديث ۳۹۸۶.

[2] أخرجه ابن ماجه فى السنن ۲/۸۷۴ رقم الحديث ۲۶۱۹

| |
|---|
| «لَوْ أَنَّ أَهْلَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ اشْتَرَكُوا فِي دَمِ مُؤْمِنٍ |
| کچیرې (دا ثابته شي چې) آسمان والا او زمکې والا ټول په ټوله د یو مسلمان په قتل کې شریک دي |
| لَأَكَبَّهُمُ اللهُ فِي النَّارِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| نو الله تعالی به دا ټول په دوزخ کې اُلټه واچوي امام ترمذي رحمه الله دې روایت لره نقل کړی دی |
| وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| او ویلې یې دي چې دا حدیث غریب دی. |

**توضیح**: اکبهم: یعني الله تعالی به دا ټول په اُلټه مخ دوزخ ته وغورزوي، علامه طیبي د لغت امام علامه جوهري رحمه الله نه نقل کړې دي چې **کب فعل متعدي** دی او **اکب فعل** لازمي دی او دا به د نوادراتو نه وي چې **اکب فعل** لازم وي او **کب** متعدي وي په دې وجه شارحینو ویلې دي چې دلته اصل لفظ **کبهم الله** دی د کوم راوي په نقل کولو کې غلطي شوې ده، علامه طیبي فرمایې چې د نبي عَلَیهِ السَّلَام کلام معیار دی اهل لغت له دهغې پیروي پکار ده، دارنګه ټولو راویانو هم داسې نقل کړې دي یعنې دې ټولو طرف ته د سهوې نسبت کولو نه بهتر دادی چې جوهري طرف ته د سهوې نسبت وکړی شي جامع صغیر کې دا حدیث د کبهم الله النار الفاظو سره نقل دی. ( المرقات۷/۲۵، الکاشف ۷-۶۶)

## د قیامت په ورځ د مقتول استغاثه

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم نه روایت کوي چې نبي عَلَیهِ السَّلَام وفرمایل چې د |
| "يَجِيءُ الْمَقْتُولُ بِالْقَاتِلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ نَاصِيَتُهُ وَرَأْسُهُ بِيَدِهِ |
| قیامت په ورځ به مقتول خپل قاتل لره داسې نیولی راولي چې د قاتل تندی او سر به د مقتول په لاس |
| وَأَوْدَاجُهُ تَشْخُبُ دَمًا يَقُولُ: يَا رَبِّ قَتَلَنِي |
| کې وي او پخپله به دده د رګونو نه وینه بهیږي او دهغه په ژبه به دا الفاظ وي پروردګاره! (ده) زه قتل |

[1] أخرجه الترمذی فی السنن ۱۱/٤ رقم الحدیث ۱۳۹۸

| | | | |
|---|---|---|---|
| حَقِّي | يُدْنِيَهُ | مِنَ | العرشِ". |
| کړي وم (زما فرياد واورې) ترديې پورې چې مقتول به دې قاتل لره (راخکلی) عرش الهي ته نزدې راولي. | | | |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ وَابْن مَاجَه[1] | | | |
| (روايت کړی دی ترمذي او نسائي او ابن ماجه) | | | |

**توضيح** : ناصيته : دتندي ويښتو ته وايي وراسه يعني دسر باقي ويښته. ( المرقات۷/۲۶)
واوداجه داد ودج جمع ده د غټې د هغه رګونو نوم دی چې دحلالې په وخت کې کټ کولی شي، بعضې شارحين وايي چې دلته دجمع نه تثنيه مراد اخستی شوې ده، بعضې راوياتو کې ودجان الفاظ هم راغلي دي( المرقات۷/۲۶)

تشخب دنصرينصر نه دی د رګونو وينې جاري کيدو ته وائي **دماً** دا تميز **محول عن الفاعل** دی يعنې معنوي طورباندې فاعل دی عبارت به داسې وي تشخب دمهما ددې حديث نه معلومه شوه چې دقيامت په ورځ به مقتول دخپل پوره حق مطالبه کوي او د مظلوميت کيفيت سره به دالله تعالی مخکې حاضروي او الله تعالی به ده لره راضي کوي. ( المرقات۷/۲۶)

## د خپل مظلوميت په ورځ د حضرت عثمان رضي الله عنه تقرير

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ | أَبِي | أُمَامَةَ | بْنِ سَهْلِ | بْنِ حُنَيْفٍ | أَنَّ | عُثْمَانَ بْنَ | عَفَّانَ | رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| او حضرت ابو امامه رضي الله عنه ابن سهل ابن حنيف وايي چې حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه د دار په | | | | | | | | |
| أَشْرَفَ | يَوْمَ | الدَّارِ | فَقَالَ: | أَنْشُدُكُمْ | بِاللهِ | | | |
| ورځ د کورچهت ته وختو او (بلوی شوي خلق يې مخاطب کړل) وې فرمايل چې تاسو نه په الله قسم درکولو سره | | | | | | | | |
| أَتَعْلَمُونَ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: "لَا يَحِلُّ |
| تپوس کوم چې آيا تاسو ته معلومه نه ده چې نبي عليه السلام فرمايلي دي چې د يو مؤمن سړي وينه تويول | | | | | | | | |
| دَمُ | امْرِئٍ | مُسْلِمٍ | إِلَّا | بِإِحْدَى | ثَلَاثٍ: | زِنًى | | |
| (په هيڅ صورت کې هم جائز نه وي مګر دا چې په دريو خبرو کې يوه خبره راپيښه شي (۱) زنا کول پس | | | | | | | | |

[1] أخرجه الترمذى فى السنن ۵/۲۲۴ رقم الحديث ۳۰۲۹ والنسائى فى ۷/۸۵ رقم الحديث ۳۹۹۹ وابن ماجه فى ۲/۸۷۴ رقم الحديث ۲۶۲۱

بَعْدَ إِحْصَانٍ أَوْ كُفْرٍ بَعْدَ إِسْلَامٍ أَوْ قَتْلِ نفْسٍ بِغَيْرِ حق

د نکاح کولو نه(۲) د اسلام راوړلو نه پس کافر کیدل (۳) او چالره په ناحقه قتلول چې د دې په بدله

فَقتل بِهِ"؟ فوالله مَا زَنَيْتُ فِي جَاهِلِيَّةٍ وَلَا إِسْلَامٍ

کې به قتلولی شي. بس په الله قسم، ماخو نه د جاهلیت په زمانه کې زنا کړې ده او نه مې د اسلام په زمانه کې،

وَلَا ارْتَدَدْتُ مُنْذُ بَايَعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا

او کله چې مې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره بیعت کړی دی تر نن پورې د اسلام نه نه یم اوړیدلی او نه ما داسې چالره

قَتَلْتُ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ الله فَبِمَ

قتل کړی دی چې دهغه قتلول الله تعالی حرام کړی وي نو (د الله تعالی د پاره ماته ووائې چې ما په

تَقْتُلُونَنِي؟ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه وللدارمي لفظ الحَدِيث[1]

څه وجه باندې قتلوئ؟ دې روایت لره ترمذي، نسائي او ابن ماجه نقل کړی دی او د حدیث الفاظ د دارمي دي.

**توضیح: اشرف یوم الدار:** یعني د کور ورځ د دې نه د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د محاصرې ورځ مراد ده، ابن سبا یهودي د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلاف په شام، مدینه او کوفه کې پروپیګنډه وکړه وکړه مګر کامیاب نه شو، مصر ته لاړو نو دده پروپیګنډه کامیاب شوه، دا سړی لوی منافق وو د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ګورنرانو خلاف یې په دروغه پروپیګنډې کولو سره یې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یې بدنام کړو په مصر کې ده یو جنګ کولو والا ګروپ تیار کړو او بیا دا ګروپ مدینې منورې ته راغی او بلوی یې شروع کړه یوه ورځ حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د محاصرې په ورځ دخپل کور د چهت نه دې خلقو سره خبرې اترې وکړې. او دخپل قتل د حرمت دلائل یې ورکړل آخر بلوایانو دوي لره د محاصرې په دوران کې شهید کړو تفصیل به یې آینده ان شاء الله راشي. ( المرقات ۷/۲۶)

## هر قاتل دخیر د توفیق نه محروم اوسي

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ عَنْ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو درداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمائیل چې مسلمان

«لَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ مُعْنِقًا صَالِحًا

هغه وخت پورې نیکئ طرف ته وړاندې والی کوي او الله تعالی او دهغه دبندګانو د حقوقو په اداء کولو کې مشغول وي

[1] أخرجه أبوداؤد فی السنن ٤/٦٤٠ رقم الحديث ٤٥٠٢ والترمذى فى ٤/٤٠٠ رقم الحديث ٢١٥٨ والنسائى ٧/٩١ رقم الحديث ٤٠١٩

| |
|---|
| مَالَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا فَإِذَا أَصَابَ دَمًا حَرَامًا بَلَّحَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| ترڅو پورې چې هغه د خونِ حرام مرتکب نه شي او کله چې د خونِ حرام مرتکب شي نو ستړی شي. (ابوداؤد) |

**توضيح**: **منعقاً**: يعني په نيکۍ او ښيګړې کولو کې چست وي الله تعالی هغه ته د نيکۍ طرفته د وړاندې والي توفيق ورکوي **عنق** تيز تلو ته وايي( المرقات۷/۲۷) **صالحا** يعني د حقوق الله او حقوق العباد و په اداء کولو باندې قائم وي دا صفت کاشفه دی( المرقات ۷/۲۷) **بلح** يعنې د هغه تيزي او چستي ختمه شي، اوس هغه د نيک او صالح عمل نه کټ شي او الله تعالی ده ته د نيکۍ توفيق نه ورکوي، تجربه ګواه ده چې قاتل د قتل په وجه سره پټ ګرځي نو د ښکاره عباداتو د موقعو نه محروم شي چې چاپ پټ ګرځي او کله چې دا حالت شي نو د آخرت د ښيګړو سره سره د دنيا د ښيګړو نه او د حلالې ګټې نه هم محروم شي. ( المرقات۷/۲۷)

## په ناحقه قتل ناقابل معافي جرم دی

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «كُلُّ ذَنْبٍ |
| او حضرت ابودرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل چې د هر ګناه متعلق |
| عَسَى اللهُ أَنْ يَغْفِرَهُ إِلَّا مَنْ مَاتَ مُشْرِكًا |
| اميد شته چې الله تعالی يې معاف کريم ګر هغه سړی به نه شي بخښلی چې د شرک په حالت کې مړ شي يا هغه کس |
| أَوْ مَنْ يَقْتُلُ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا».[2] رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَن مُعَاوِيَةَ[3] |
| چې يو مسلمان يې په قصد سره قتل کړی وي. (ابوداؤد) نسائي دې روايت لره د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی. |

**توضيح**: **او من قتل مؤمناً**: د دې حديث نه په ظاهري طور باندې دا معلوميږي چې مؤمن لره قتلولو والا مسلمان به هميشه په دوزخ کې وي او د مشرک په شان به د هغه بخښنه نه کيږي، حالانکه د اهل السنت والجماعت او د عام امت عقيده ده چې د مؤمن قتلول لويه ګناه ده او د کبيره ګناه دوچې انسان **مخلد في النار** نه وي البته د خوارجو او معتزلو دا عقيده ده چې مرتکب د کبيرې به **مخلد في النار** وي، د حديث په ظاهر نه د دې تائيد کيږي د اهل سنت مستدل **ان الله لا يغفران يشرک به**

(۱) أخرجه أبوداؤد فى السنن ٤/٤٦٣ رقم الحديث ٤٢٧٠

(۲) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٤٦٣ رقم الحديث ٤٢٧٠

(۳) أخرجه النسائى فى ٧/٨١ رقم الحديث ٣٩٨٤ وأحمد فى المسند ٤/٩٩

**ویغفر مادون ذلک لمن یشا** دا آیت دی، مذکوره حدیث دهغه سړي په باره کې دی چې دمسلمان قتل جائز ګڼي نو هغه کافر دی مخلد في النار دی، یا داحدیث په تغلیظ اوتشدید او تهدید او توبیخ باندې محمول دی. (المرقات۷/۲۸)

## د پلار نه به د اولاد دپاره قصاص نه شي اخستی

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تُقَامُ |
| او حضرت ابن عباس رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَیْهِالسَّلَام وفرمائیل په مسجدونو کې به حدود |
| الْحُدُودُ فِي الْمَسَاجِدِ وَلَا يُقَادُ بِالْوَلَدِ الْوَالِدُ». |
| نشي جاري کیدی او نه دې د اولاد (دقتل) په بدله کې پلار لره قتل کړی شي (بلکه د پلار نه دې |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ والدارمي (جيد) |
| دیت (یعني مالي معاوضه واخستی شي) (ترمذي، دارمي)[1] |

**توضیح : في المساجد** : دحدیث ددې رومبي جزء مطلب دا دی چې په مسجدونو کې دې حدود مثلا دغلا حد، یا د زنا او شرابو ح، یا د قذف حد جاري نه کړی شي او دغه شان قصاص دې هم په مسجد کې وانه خستی شي دې دپاره چې جماعتونه صرف دفرض مونځونو او سنتو او نوافلو او تلاوت کلام الله دپاره جوړ کړی شوې دي. (المرقات۷/۳۰)

**ولایقادبالولد الوالد** : یعني کچیرې پلار خپل ځوی لره قتل کړي نو ددې مقتول ځوی په بدله کې دې دقصاص په طور قتل نه کړی شي همدا حکم دنیکه او غر نیکه هم دی او همدا حکم د مور او نیاګانو هم دی، د علماء کرامو په دې باندې اتفاق دی کچیرې ځوی مور پلار لره قتل کړل نو دا بدبخته به په قصاص کې قتلولی شي، اختلاف په دې مسئله کې دی کچیرې پلار ځوی لره قتل کړو نو آیا د پلار نه به قصاص اخستی شي او که نه؟ نو جمهور فرمایي چې پلار به د ځوی په قصاص کې نه شي قتلولی ځکه چې پلار ددې ځوی د ژوند ذریعه جوړه شوې ده اوس دا ځوی د خپل پلار د مرګ ذریعه نه شي جوړیدی، په قرآن کریم الله تعالی ځوی ته دمور پلار د شکر په ځای راوړلو حکم ورکړی دی او دوی ته د تکلیف نه ورکولو سخت تاکید فرمایي او دوی ته په نرمۍ سره د راتلو تلقین فرمایي.

دارنګه احادیثو کې د **انت ومالک لابیک** الفاظ راغلي دي چې په هغې سره ځوی د پلار دپاره د

---

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ۴/۱۲ رقم الحدیث ۱۴۰۱ وابن ماجه ۲/۸۸۸ رقم الحدیث ۲۶۶۱ والدارمی ۲/۲۵۰ رقم الحدیث ۲۳۵۷

مملوک مال په شان دی، لهذا اوس به دده نه قصاص نه شي اخستی په دنیا کې د شریعت حکم همدا دی او د آخرت معامله الله تعالی ته حواله ده، البته په دنیا کې به د پلار نه دیت اخستی شي.
امام مالک رحمه الله فرمایي کچیرې پلار ځوی لره په مروّجه طریقې سره مړکړو نومسئله داسې ده څنګه چې جمهور وایې مګر کچیرې پلار ځوی لره حلالولو سره مړ کړو نو بیا ددې ظالمانه او وحشیانه فعل په وجه سره پلار قصاص کولی شي، جمهورو د مذکوره حدیث نه استدلال کړی دی چې د پلار نه به د ځوی په بدله کې قصاص نه شي اخستلی که هغه یې په حلالولو سره قتل کړی وي یا نورو ذریعو سره یې قتل کړي، حدیث چې کله موجود دی نو دامام مالک رحمه الله رایه به پریخودلی شي. ( المرقات۷/۳۰)

## هر سړی د خپل جرم پخپله ذمه دار دی

﴿۲۲﴾ وَعَن أَبِي رِمْثَةَ قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ أَبِي

او حضرت ابو رمثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې د خپل پلار سره حاضر شوم نو

فَقَالَ: «مَنْ هٰذَا الَّذِي مَعَكَ؟» قَالَ: ابْنِي أَشْهَدُ بِهِ

هغوی وفرمایل چې دا تا سره څوک دی؟ پلار صاحب مې ورته وویل چې دا زما ځوی دی تا سو ګواه اوسئ

قَالَ: «أَمَا إِنَّهُ لَا يَجْنِي عَلَيْكَ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل تا ته معلومیدل پکار دي چې نه به دا تا لره د خپلې ګناه په وجه سره مبتلی کړي

وَلَا تَجْنِي عَلَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ

او نه به ته ده لره د خپلې ګناه په وجه سره مبتلی کړې. (ابو داؤد نسائي) او صاحب مصابیح په

وَزَادَ فِي «شَرْحِ السُّنَّةِ» فِي أَوَّلِهِ قَالَ:

شرح السنة کې د دې روایت په شروع کې دا الفاظ نقل کړي دي چې ابو رمثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې کله

دَخَلْتُ مَعَ أَبِي عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى أَبِي الَّذِي بِظَهْرِ

زه د خپل پلار سره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شوم او زما پلار د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په شا مبارکه

رَسُول الله صلی الله عَلَيْهِ وَسلم فَقَالَ: دَعْنِي

باندې مهر نبوت ولید و نو د هغې حقیقت باندې پوهه نه شو او وې ویل چې ما ته اجازت را کړئ چې

أُعَالِجُ الَّذِي بِظَهْرِكَ فَإِنِّي طَبِيبٌ. فَقَالَ:

ستا سو په ملا باندې کوم څیز دی چې د هغې علاج وکړم ځکه چې زه طبیب یم نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل

«أَنْتَ رفيقٌ والله الطبيبُ» اخرجه ابوداود والنسائي.[1]

ته (خوبس) رفيق يې، طبيب (خو) الله تعالى دی.

**توضيح**: ابني اشهد به: يعني دا زما ځوی دی تاسو ګواه اوسئ په دې كلام سره دابو رمثه دپلار مقصد دزمانې د جاهليت يو دستور طرف ته اشاره كول وو په جاهليت كې دا ستور وو چې دپلار په جرم كې به ځوی نيولی شو او د ځوی په جرم كې به پلار نيولی شو ګويا چې هريو به ديوبل په جرم كې قابل دمؤاخذې ګڼلی شو د ابو رمثه دپلار هم مقصد ددې كلام نه دا وو چې دا زما صلبي ځوی دی تاسو پرې ګواه اوسئ كچيرې ده څه جرم وكړو نو زه ددې ذمه داريم. او كچيرې ما څه جرم وكړو نو دا به يې ذمه دار وي، ددې په جواب كې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې داسې به نه وي چې ځوی به دخپل پلار په جرم كې نه مبتلاكيږي او نه به پلار دخپل ځوی په جرم كې مبتلاكيږي، اوس دجاهليت دا غير منصفانه دستورختم شو اوس به هرسړی دخپل جرم په دنيا او آخرت كې ذمه دار وي. (المرقات ۷/۳۱)

**فاني طبيب**: د ابو رمثه پلار د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په ملا مباركه باندې مهرنبوت وليدو نو خيال يې دا وو چې دا څه دانه ده په دې وجه يې عرض وكړو چې تاسو اجازت راكړئ دې دپاره چې زه ددې علاج وكړم دا خبره چونكه په انتهائي بې وقوفتوب باندې مبني وه او په دې كې بې ادبي وه، په دې وجه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ډيرناراضه شو او وې فرمايل بس ته طبيب نه يې بلكه رفيق يې يعني دمرض او بيمارۍ ظاهري حالت ته اوګورې نو دهغې مطابق دوائي تجويز كولو سره وركوې دمرض حقيقت ته رسيدل او شفاوركول ستا كار نه دی ته صرف مريض سره نرمي كولی شې بس نرمي كوه او طبيب په حقيقت كې الله تعالى دی چې دمرض حقيقت هم پيژني او دوائي او علاج هم پيژني او شفاء هم وركوي دنور چا په اختيار كې دا څيزونه نشته دی ته خو صرف مهربان كيدی شې او شفاء وركولو والا نه يې. (المرقات ۷/۳۱)

## د زوي نه به دپلار قصاص اخستلی شي

﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَن سُرَاقَةَ بنِ مَالِكٍ

او حضرت عمرو بن شعيب دخپل پلار نه او هغه دخپل نيكه نه او هغه دسراقه بن مالك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت كوي

قَالَ: حَضَرْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقِيدُ الْأَبَ مِنِ ابْنِهِ

هغوی وويل چې زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت كې حاضرشوم، هغوی د ځوی نه دپلار قصاص اخسته

---

(1) أخرجه أبوداؤد ۴/۶۳۵ رقم الحديث ۴۴۹۵ والنسائى فى ۸/۵۳ رقم الحديث ۴۸۳۲ والدارى ۲/۲۶۰ رقم الحديث ۲۳۸۸.

وَلَا يُقِيدُ الِابْنَ مِن أَبِيهِ. رَوَاهُ التِّرمِذِيُّ وَضَعفه [1]

مگر د پلار نه يې د ځوی قصاص نه اخستو. ترمذي دا روايت نقل کړی دی او دا يې ضعيف هم گرځولی دی.

## دغلام په قصاص کښې به آزاد قتلولی شي او که نه؟

﴿۲۴﴾ وَعَنِ الحسن عَن سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت حسن بصري (تابعي) د حضرت سمره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ (صحابي) نه روايت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل

«مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ قَتَلْنَاهُ وَمَنْ جَدَعَ عَبْدَهُ

چې کوم سړی خپل غلام قتل کړي مونږ به هغه قتلوو او کوم سړی چې (د خپل غلام) (يو) اندام کټ

جَدَعْنَاهُ». رَوَاهُ التِّرمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابنُ مَاجَهُ وَالدَّارِمِيُّ وَزَادَ النَّسَائِيُّ فِي رِوَايَةٍ

کړي مونږ به د هغه اندام کټ کوو (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه دارمي) او د نسائي په يو بل روايت کښې

أُخْرَى: «وَمن خصى عَبده خصيناه». [2]

يې دا الفاظ هم نقل کړې دي. چې کوم سړی خپل غلام له خصي کړي نو مونږ به هم هغه خصي کوو.

**توضيح: من قتل عبده قتلناه:** کچيرې يو غلام آزاد سړي له قتل کړو نو بالاتفاق د هغه غلام نه به قصاص اخستی شي مگر کچيرې کوم آزاد سړې کوم غلام له مړ کړو نو آيا د دې آزاد نه به قصاص اخستی شي او که نه په دې کښې د فقهاو اختلاف دی. (المرقات ۷/۳۲)

**د فقهاؤ اختلاف:** جمهور فرمائي چې د غلام په بدله کښې به حر او آزاد سړی نه شي قتلولی که هغه غلام د ده خپل وي يا د بل چا غلام وي. د احنافو امامان فرمائي چې کچيرې آقا خپل غلام له قتل کړي نو په دې کښې به د آقا نه قصاص نه شي اخستلی مگر کچيرې ده د بل چا غلام مړ کړو نو قصاص به ترې نه اخستی شي. (المرقات ۷/۳۲)

**دلائل:** جمهور آئمه د قرآن پاک د آيت (الحر بالحر والعبد بالعبد) (بقرة: ۱۷۸) نه استدلال کوي او مفهوم مخالف يې اخستی دی چې د آزاد په بدله آزاد دی او د غلام په بدله کښې به د آزاد نه قصاص نه شي اخستلی ځکه چې د ا مسئله مخکښې تيره شوه. ائمه احنافو د نسائي د يو روايت نه استدلال

---

(۱) أخرجه الترمذى ۴/۱۱ رقم الحديث ۱۳۹۹

(۲) أخرجه أبوداؤد فى السنن ۴/۶۵۴ رقم الحديث ۴۵۱۶ والترمذى ۴/۱۸ رقم الحديث ۱۴۱۴ والنسائى ۸/۲۰ رقم الحديث ۴۷۳۶.

کړی دی چې دهغې الفاظ دادي **لايُقاد المملوک من مولاة** (نسائي) دا د احنافو په يوه مدعابانديې دليل دی چې دآقادپاره دغلام نه قصاص نشته دی. داحنافو دلائل دقرآن پاک هغه آيتونه دي چې په هغې کې دنفس په بدله کې د نفس حکم مذکور دی چې دهغې تفصيل په حديث نمبر۱ کې تيرشوی دی. ائمه احنافو ددارقطني او بيهقي دهغه روايت نه استدلال کړی دی : **عن عمروبن شعيب عن ابيه عن جده ان رجلا قتل عبده متعمدًا فجلده النبي صلي الله عليه وسلم مصلأة جلدة ونفاه سنة ومحا سهمه من المسلمين ولم يقده به وامره ان يعتق رقبة**. (زجاجة المصابيح ج۳ ص۱۸) ددې حديث نه ثابته شوه چې دآقانه به قصاص نه شي اخستی. آئمه احنافو دهغه دردناکې قصې نه هم استدلال کړی دی چې په هغې کې ذکر دي چې يو سړې خپله وينځه دزنا په تهمت کې په اُور باندې کينولې وه او دهغې شرمگاه يې سوزولې وه، دحضرت عمرفاروق رضي الله عنه په مخکې مقدمه پيش شوه څوک گواه نه وو نه وينځې دزنا اعتراف وکړو نو حضرت عمرفاروق هغه سړې ته وفرمايل : **لولم اسمع رسول الله صلي الله عليه وسلم يقول لا يقاد مملوک من مالکه لاقدتها منک**. (زجاجة المصابيح جلد۳ص۱۹)

داحنافو عقلي دليل دا دی چې دمولی او د غلام په قصاص کې شبه راغله ځکه چې غلام دمولی په ملکيت کې دی لهذا شبه د قصاص ختمه شوه.

**جواب** : جمهورو او احنافو د ټولو په يوځای کيدو سره ددې حديث جواب ورکول دي ځکه چې دا روايت دباقي ټولو رواياتو او قواعدو سره معارض دی په دې وجه د اندام په بدله کې دا اندام دکټ کولو حکم او دخصي کولو بدله کې دخصي کولو حکم دچا په نزد هم نشته دی، لهذا ددې روايت جواب ورکول دټولو ذمه داري ده: نو اول جواب خو دادی چې دا حکم د زجر اوتوبيخ او تشديد او د تغليظ په بنياد باندې دی، اوپه دې کې داسياسي حکم پټ دی چې قاتل د خپل غلام دقتلولو جرأت ونه کړي او نه د هغه په اندامونو کټ کولو کې جلدبازي وکړي.

**دويم جواب** : دادی چې د عبده، نه دماضي زمانې غلامي مراد ده نه دا چې في الحال دا غلام دی، اوس خو دا آزاد دی مگر په څه وخت کې ددې مولی غلام وو په دې اعتبار سره دې ته غلام ويلی شوی وو لهذا د آزاد سړي پحقله چې کوم حکم په دی حديث کې دی په دې کې دچاهم اختلاف نشته دی.

## ددیت مقدار او د اوښانو نوم

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه روايت كوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| "مَنْ قَتَلَ مُتَعَمِّدًا دُفِعَ إِلَى أولياءِ المقتولِ فإِنْ |
| چې كوم سړى قتل عمد وكړي هغه به د مقتول وارثانو ته حواله كولى شي كه هغوي (دا د مقتول په |
| شاؤوا قَتَلوا وإِنْ شَاؤوا أَخَذُوا الدِّيَةَ: |
| بدله كې) قتلوي او كه دده نه ديت يعني خون بها اخلي او خون بها د (مقدار تعداد) دادى چې |
| وَهِيَ ثَلَاثُونَ حِقَّةً وَثَلَاثُونَ |
| ديرش اوښانې هغه وي چې (ددريو كالو كيدو سره) په څلورم كال كې داخلې شوې وي او ديرش اوښانې |
| جَذَعَةً وَأَرْبَعُونَ خَلِفَةً |
| هغه وي چې پنځم كال كې داخلې شوې وي او څلويښت اوښانې بلاربې وي (ددې نه علاوه) چې په كوم څيز باندې |
| وَمَا صَالَحُوا عَلَيْهِ فَهُوَ لَهُمْ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ (صَحِيح)[1] |
| صلحه وشي نو هغوى به ددې حقدار وي (يعني ديت چې كوم د مقتول د وارثانو حق دى ددې د اصل مقدار تعداد خو دادى) (ترمذي) |

**توضيح**: **حقه بنت مخاض**: هغه ښځه اوښه چې د هغې يو كال پوره شوى وي او په دويم كې داخل شوې وي **بنت لبون**: هغه اوښه چې د هغې دوه كاله پوره شوې وي او په دريم كال كې داخله شوې وي.

**حقه**: هغه اوښه چې د هغې درې كاله پوره شوې وي او په څلورم كال كې داخله شوې وي. ( المرقات ۷/۳۳)

**جذعه**: هغه اوښه چې د هغې څلور كاله پورې شوې وي او په پنځم كال كې داخله شوې وي ددې نه پس ( المرقات ۷/۳۴)

**ثني** ده دا هغه اوښه ده چې په شپږم كال كې داخله شوې وي او كله چې ا وښ په اووم كال كې داخل شي نو هغه ته رباعي وائي او ښځې اوښې ته رباعية وائي او كله چې د اوښ اووه كاله پوره شي او

[1] أخرجه الترمذى فى السنن ۶/۴ رقم الحديث ۱۳۸۷ وابن ماجه ۲/۸۷۷ رقم الحديث ۲۶۲۶ وأحمد فى المسند ۲/۱۸۳

اتم کال کې داخل شي نو هغه ته سدیس وائي او کله چې د اوښ اته کاله پوره شي او نهم کال ته داخل شي نو هغه ته بازل وائي ددې نه پس کچیرې هغه لسم ته هم کال داخل شي نو هغه ته بازل او مخلف هم وائي، ددې نه پس د هیڅ یو عمر کوم خاص نوم نشته دی البته د بازل سره د عام لفظ لګولو سره اندازه کولی شي دغه شان مخلف سره د عام لفظ لګولو سره ویلی شي بازل عام وبازل عامین او مخلف عام او مخلف عامین . امام ابوداؤد رحمه الله د شیخ ریاشي یو شعر هم نقل کړی دی چې پکې دیو حد پورې د عمر په تناسب سره د اوښانو نومونه بیان کړی شوې دي دارنګه فرمائي :

**اذا سهیل اول اللیل طلع فابن اللبون الحق والحق جذع**

**لم یبق من اسنانها غیر الهبع** (ابو داؤد ج۱ ص۲۲۴)

یعنې کله چې سهیل ستوری راووتو نو ابن لبون په حقې سره او حقه په جذعې سره بدل شي ددې تولو اوښانو عمرونه بدلیږي ها چې کوم بې موسمه او د وخت نه مخکې پیدا شوی وي د هغه عمر نه بدلیږي .

**دفقهاؤ اختلاف** : خلفة : ددې جمع خلفات دی بلاربې اوښې ته وایې په قتل عمد کې د قصاص په ځای کچیرې په دیت او خون بها باندې طرفین راضي وي نو د خون بها په حقله د امام شافعي رحمه الله په نزد همدا ترتیب دی چې په دې حدیث کې دي چې دیرش حقه وي او دیرش جذعه وي او څلویښت خلفات یعني بلاربې وي مګر د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د خون بها ترتیب د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د روایت مطابق داسې دی ۲۵ بنت مخاض به وي ۲۵ بنت لبون ۲۵ حقې او ۲۵ جذعې ښځې اوښانې به وي د شوافعو په نزد اثلاثًا دیت اداء کولو کې چې کوم ترتیب دی دا دیت مغلظ دی د احنافو په نزد ارباعًا والا ترتیب دیت مغلظه دی.

**دلائل** : امام شافعي رحمه الله د زیربحث حدیث نه استدلال کړی دی چې په هغې کې د اثلاثًا ترتیب دی. امام ابوحنیفه رحمه الله د حضرت سائب بن یزید د روایت نه استدلال کړی دی چې د هغې الفاظ دادي : **روی الزهري عن السائب بن یزید قال کانت الدیة علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم ارباعًا خمساً وعشرین جذعة وخمسا وعشرین حقة وخمسا وعشرین بنت لبون وخمسا وعشرین بنت مخاض . (کذا في المني تعلیق الصبیح ج۴ ص۱۳۲)**

ائمه احنافو د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د روایت نه هم استدلال کړی دی چې امام ابوداؤد د

هغې په نقل کولو سره سکوت فرمايلی دی چې دا د حديث د صحت نښه ده د حديث الفاظ دا دي.

**عن علقمة والاسود قالا قال عبدالله في شبه العمد خمس و عشرون حقة وخمس وعشرون جذعة وخمس وعشرون بنات لبون وخمس وعشرون بنات مخاض.** (رواه ابو داؤد)

په دې کې هم دارباعًا ترتيب مذکور دی ځنګه چې په برني د حضرت سائب په روايت کې دي د احنافو په نزد دا مذکوره روايات د زيربحث حديث نه راجح دي د کوم نه چې شوافعو استدلال کړی دی.

**وماصالحوا عليه:** يعني خپل مينځ کې که په کمي زياتي باندې طرفين صلحه کولو سره فيصله کوي نو داسې کولی شي.

## د کفر په مقابله کې ټول مسلمانان د يو لاس په شان دي

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت علي کرم الله وجهه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه روايت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائيل په قصاص |
| «الْمُسْلِمُونَ تَتَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ وَيَسْعَى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ |
| او ديت کې ټول مسلمانان برابر دي او يو ادنی مسلمان هم امان ورکولی شي او د لرې والا مسلمان هم |
| وَيَرُدُّ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ وَهُمْ |
| حق لري او ټول مسلمانان د يو لاس په شان دي (يعنې ټول مسلمانان د غير مسلمو په مقابله کې |
| يَدٌ عَلَى مَنْ سِوَاهُمْ أَلَا لَا يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ |
| د يو بل مددګار او د يو لاس په شان دي) او خبردار! د کافر په بدله کې دې مسلمان مړ نه کړی شي او نه دې |
| وَلَا ذُو عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] (صَحِيح) |
| عهد والا (يعنې ذمي) مړ کړی شي تر څو پورې چې هغه په عهد او ضمان کې دی. (ابو داؤد، نسائي) |
| وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَه عَنِ ابْنِ عَبَّاس.[2] |
| او ابن ماجه دې روايت لره د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی. |

---

(1) أخرجه أبوداود في كتاب السنن ٤/١٦٦ رقم الحديث ٤٥٣٠ والنسائي ٨/٢٤ رقم الحديث ٤٧٤٦ وأحمد في المسند ١/١٢٢

(2) أخرجه ابن ماجه في السنن ٢/٨٩٥ رقم الحديث ٢٦٨٣

**توضيح: تتكافأ**: داد كفاءت نه دى چې د مساوات او برابرۍ په معنى سره دى يعنې په ديت اخستو او وركولو او قصاص كې ټول مسلمانان يوشان برابردي په ادنى او اعلى او شريف او رذيل غټ وړوكي كې يا نيک او بدكې يا عالم او جاهل كې يا مالدار او غريب كې يا سړي او ښځه كې د ديت او قصاص هيڅ فرق هم نشته دى، دا نشته دى چې دلوى ذات والا ديت به زيات وي او د وړوكي ذات والا ديت كم مقدار دى، اوس دا د اسلام عادلانه نظام دى او د جاهليت ظالمانه فرق اوس ختم شوى دى چې د اوچتې طبقې او خاندان د يو سړي د قصاص بدله كې به دوه او درې وژلى شي. ( المرقات۷/۳۴)

**ادناهم**: يعني يو كمزورى مسلمان كه څومره ګمنام ولې نه وي يا ښځه او مسلمان غلام ولې نه وي كچيرې يو كافر ته امن وركړي نو ټولو مسلمانانو ته ددې احترام پكار دى او دې كافرته امن وركول پكار دي. ( المرقات۷/۳۴)

**ويرد عليهم اقصاهم** : يعني داسلام دلښكرنه كه يوه وړه دسته جدا شوه او لرې لاړه او جنګيده او مالِ غنيمت ئې حاصل كړو نو په هغوى لازم دي چې هغوى مال غنيمت راوړي او بيت المال كې يې جمع كړي ددې دستې په دې مال باندې خپل څه حق نشته دى. ( المرقات۷/۳۵)

**وهم يد على من سواهم** : يعني ددنيا ټول مسلمانان د كفارو په مقابله كې د مضبوط ديوال په شان يو لاس دي چيرته چې هم په يو مسلمان باندې دكافرو دطرف نه ظلم زياتى كيږي نو په ټولو مسلمانانو باندې فرض دي چې هغوى دخپل مسلمان وړور مدد وكړي په دې حديث كې مسلمانانو ته دا دستاويزي حكم وركړى شوى دى چې څنګه چې **الكفر ملة واحدة** دى هم دغه شان مسلمانان هم دكافرانو په مقابله كې يو لاس دي، ديوبل دمدد كولو د ذمه دارۍ نه بريئ الذمه نه شي كيدى.

د احنافو په نزد دلته دكافر نه حربي كافر مراد دى چې دده په قصاص كې به مسلمان نه شي قتلولى ها دذمي په بدله كې به قتلولى شي دلته د ذمي ځانله ذكركول ددې خبرې دليل دى چې دكافر نه مراد حربي كافر دى او د ذمي حكم جدا دى. ( المرقات۷/۳۵)

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْخُزَاعِيِّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او حضرت ابو شريح خزاعي رضي الله عنه وايي چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا فرمايل واوريدل چې

"مَنْ أُصِيبَ بِدَمٍ أَوْ خَبْلٍ وَالْخَبْلُ: الْجُرْحُ

كوم كس د ناحق قتل يا دزخم دوجې نه غمژن وي (يعنې د كوم كس مورث لره چې په ناحقه قتل كړى

فَهُوَ بِالْخِيَارِ بَيْنَ إِحْدَى ثَلَاثٍ:

شوي وي يا دهغه دبدن څه اندام پريکړې شوې وي) نو هغه په درې څيزونو کې دیو څيز اختيار ولو حقدار دی

فَإِنْ أَرَادَ الرَّابِعَةَ فَخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ:

او کچیرې هغه (په دې درې څيزونو کې د زیات) څلورم څيز طلب کوي نو د هغه لاس اونیسئ (يعني هغه د څلورم څيز نه منع کړئ)

بَيْنَ أَنْ يَقْتَصَّ أَوْ يَعْفُوَ أَوْ يَأْخُذَ الْعَقْلَ

او هغه درې څيزونه دا دي (۱) يا خو دې قصاص واخلي (۲) یا دې معاف کړي (۳) یا دې مالي معاوضه واخلي.

فَإِنْ أَخَذَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا ثُمَّ عَدَا بَعْدَ ذَلِكَ

يا کچیرې هغه په دې درې څيزونو کې يو څيز له اختيار کړي او د دې نه پس بيې د دويم څيز اضافه وکړه نو د ده د پاره

فَلَهُ النَّارُ خَالِدًا فِيهَا مُخَلَّدًا أَبدا ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ[1]

د دوزخ اور دی چې په هغې کې به همیشه او سیږي په دې کې ده له همیشه ایخودلی شي کلمه هم د دې نه نه اوځي. (دارمي)

په دوزخ کې د همیشه او سید و حکم تشدیدا تغلیظا او زجرا او توبیخا او تهدیدا دی.

## دقتل خطاء حکم او دقتل بالمثقل تعريف

﴿۲۸﴾ وَعَن طَاوُس عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت طاوس رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه نه او هغه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې

قَالَ: «مَنْ قُتِلَ فِي عِمِّيَّةٍ فِي رَمْيٍ يَكُونُ بَيْنَهُمْ بِالْحِجَارَةِ أَوْ جَلْدٍ

نبي عليه السلام وفرمايل کوم سړی چې د خلقو په مينځ کې په کاڼو ویشتو کې یا کوړو او همساګانو وهلو سره مړ شي،

بِالسِّيَاطِ أَوْ ضَرْبٍ بِعَصًا فَهُوَ خَطَأٌ

(يعني دا پته و نه لګي) چې د ده قاتل څوک دی نو دا قتل (د ګناه په اعتبار سره) د قتل خطاء په حکم کې به وي

عقله عقلُ الْخَطَإِ وَمَنْ قَتَلَ عَمْدًا فَهُوَ قَوَدٌ

او د ده دیت د قتل خطاء دیت دی او کوم سړی چې په قصد سره و وژلی شو نو د ده قتل قصاص لره واجبوي

وَمَنْ حَالَ دُونَهُ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَغَضَبُهُ

او کوم سړی چې په قصاص اخستو کې حائل (مزاحم) وي په هغه د الله تعالی لعنت او د هغه غضب دی.

---

(۱) أخرجه أبوداؤد فى كتاب ٤١/٦٣٦ رقم الحديث ٤٤٩٦ وابن ماجه فى ٢/٨٧٦ رقم الحديث ٢٦٢٣ والدارمى فى ٢/٢٤٧ رقم: ٢٣٥١

لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيّ[1]

نه به دده نفل قبول کړی شي او نه فرض. (ابو داؤد نسائي)

**توضیح** : عمية : دا لفظ دعين په کسرې او د میم مشدد په کسرې او په یاء مشدده سره دی، دا داسې فتنې او دګولو باران او دکاڼو ویشتو ته وایې چې دهغې دصحیح صورت حال اندازه نه شي کیدی، دحدیث مطلب دادی چې مثلاً د دوو طبقو جنګ دی او د همساګانو په وهلو کې یو سړی مړ شو نودا قتل خطاء دی چې قصاص لره نه واجبوي بلکه دا قتل بالمثقل دی کوم چې دیت لره واجبوي، او دا دیت به په عاقله باندې راځي په حدیث کې چې دکومو څیزونو ذکر دی هغه دمثال په طور باندې دي مراد دادی چې په څه مثقل څیز سره هم ووژلی شي ددې قسم قتل ته فقهاء شبه عمد وایې، د شوافعو او صاحبینو په نزد باندې دشبه عمد تعریف دادی: چې په قصد سره کوم کس په آله غیر قاتله سره یو ځل ووهلی شي چې په هغې سره عمومًا دچا مرګ نه واقع کیږي، لکه وړوکی غوندې کاڼی او وړه همساء سره قتلول. ( المرقات۷/۳۷)

دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد دشبه عمد قتل تعریف داسې دی: هغه قتل چې په قصد سره وکړی شي مګر په داسې څیز سره چې نه تیره وي او نه دیو اندم په جدا کولو کې د تیره پشان وي لکه په کاڼي او همساء سره قتل کول، داحنافو او شوافعو د اختلاف ثمره دا راوځي چې کچیرې کوم یو کس یې په غټ کاڼي سره یا په پیړه همسا سره ووهلو نو دشوافعو په نزد دا قتل عمد دی چې په کې قصاص دی، او داحنافو په نزد به شبه عمد وي، د زیربحث حدیث په ظاهري الفاظو سره دامام ابو حنیفه دمسلک تائید کیږي ځکه چې مطلق کاڼی او مطلقه همسا درونډ او د لوی نه لوی هم کیدی شي دشوافعو په نزد ددې نه سپک څیزونه مراد دي.

**ومن قتل عمدا** : اشعة اللمعات کې شیخ عبدالحق رحمه الله دایې دمجهول صیغه ګرځولې ده او ترجمه کړې یې ده ملاعلي قاري رحمه الله د معروف صیغه ګرځولې ده.

**فهوقود**: یعنې چاچې یو کس لره په آله جارحه سره قصدًا ووژلو نو په قتل سره به قصاص لازم راځي.

**ومن حال**: یعنې کوم سړی چې دقاتل نه په قصاص اخستلو سره حائل وي او خپل اثر رسوخ استعمالولو سره ددې شرعي حکم په نافذ کولو کې رکاوټ جوړ شي نو په هغه به دالله تعالی لعنت نازل وي.

**صرف**: یعنې دده نفلي عبادت به غیرمقبول شي ولاعدل : یعني دده فرضي عبادت به نه قبلیږي. اګرچه عبادت کول به په ده لازم وي، شیخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات کې لیکلې دي دصرف ترجمه یې په توبې سره هم کړې ده او په نفلو سره یې هم کړې ده، فقهاء کرامو په نزد دقتل

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٤/٦٧٧ رقم الحديث ٤٥٤٠ والنسائي في ٨/٣٩ رقم الحديث ٤٧٨٩ وابن ماجه ٢/٨٨٠ رقم الحديث ٢٦٣٥.

پنځه قسمونه دي: (۱) قتل عمد (۲) قتل شبه عمد (۳) قتل خطاء (۴) قتل جاري مجراي خطا (۵) قتل بسبب، دکتاب القصاص په اوله کې د ټولو تعريف په تفصيل سره تېر شوی دی.

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت جابر رضي الله عنه وائي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل (چې دمقتول د ولي او وارثانو نه) چې کوم سړی هم |
| «لَا أُعْفِي مَنْ قَتَلَ بعدَ أَخذ الدية». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد.[1] |
| (دقاتل نه) د ديت (خون بها) اخستو نه پس هغه لره قتل کړي نو هغه به نه معاف کوم بلکه هغه لره به هم د قصاص په طور باندې قتلوم) |
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه وائي چې ما نبي عليه السلام نه دا فرمان اوريدلی دی چې د کوم سړي د بدن کومه |
| «مَا مِنْ رَجُلٍ يُصَابُ بِشَيْءٍ فِي جَسَدِهِ فَتَصَدَّقَ بِهِ |
| حصه زخمي کړی شي او هغه هغه زخمي کونکی (ملزم) لره معاف کړو (يعني د هغه نه يې څه بدله وانخسته بلکه |
| إِلَّا رَفَعَهُ اللهُ بِهِ دَرَجَةً وَحَطَّ عَنْهُ |
| معافي يې ورته وکړه او په تقدير الهي باندې يې صبر وکړو) نو الله تعالى به د دې په وجه سره دده يوه درجه اوچته کړي |
| خَطِيئَةً». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه.[2] |
| او يوه ګناه به ورته معاف کړي. (ترمذي ابن ماجه) |

## په اسلام کې د انساني وينې اهميت

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ: أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخطاب |
| حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله راوي دی چې حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه (خليفة المسلمين) |
| قَتَلَ نَفَرًا خَمْسَةً أَوْ سَبْعَةً بِرَجُلٍ وَاحِدٍ قَتَلُوهُ قَتْلَ غِيلَةٍ |
| د داسې پنځو يا اوو کسانو ډلې لره قتل کړه چې هغوی په دوکې سره يو سړی قتل کړی وو. دا رنګه |

(۱) أخرجه أبوداؤد فی السنن ٤/٦٤١ رقم الحديث ٤٥٠٧ وأحمد فی المسند ٣/٣٦٣

(۲) أخرجه الترمذی فی ٤/٨ رقم الحديث ١٣٩٣ وابن ماجه فی السنن ٢/٨٩٨ رقم الحديث ٢٦٩٣ وأحمد فی المسند ٦/٤٤٨

| |
|---|
| وَقَالَ عُمَرُ: لَوْ تَمَالَأَ عَلَيْهِ أَهْلُ صَنْعَاءَ |
| عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمايل چې کچيرې صنعاء والا ټولو دې سړي لره قتل کړی وو يا يې دقاتلانو مدد کولو |
| لَقَتَلْتُهُمْ جَمِيعًا. رَوَاهُ مَالِكٌ (صَحِيح)[1] وروى البُخَارِيّ عَن ابْن عمر نَحوه[2] |
| نو ما به هغوی ټول قتل کړي وو. (مالک) امام بخاري رحمه الله هم د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې په شان نقل کړی دی. |

**توضيح**: لوتمالأ د ملأ نه دی داتفاق او اتحاد او ديو بل سره دتعاون کولو په معنی سره، اهل صنعاء ديمن د ملک مرکزي ښار دی نن سبا دا ددې ملک دار الخلافه ده، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې ښار نوم ياخو په دې وجه واخستو چې دقاتلانو تعلق ددې ښار سره وو يا دوې د عربو د دستور مطابق دکثرت ظاهرولو دپاره دصنعاء نوم اخستی دی يعنې کچيرې په زرهاوو خلق هم ديو انسان په قتل کې شريک شي نو زه به ټولو لره په قصاص کې وژنم، ددې عدل او انصاف نه معلوميږي چې اسلام دانساني ځان څومره حفاظت کوي مگر نن صبا دانساني حقوقو په نوم جوړشوې تنظيمونه انساني حقونو لره پايمال کوي.

## دقيامت په ورځ به مقتول خپل قاتل نيولی وي الله تعالی ته به فرياد کوي

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَن جُنْدبٍ قَالَ: حَدَّثَنِي فُلَانٌ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې ماته فلاني صحابي دا حديث بيان کړو چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل |
| "يَجِيءُ الْمَقْتُولُ بِقَاتِلِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُولُ: |
| چې د قيامت په ورځ به مقتول خپل قاتل لره (نيولی وي) راولي او (الله تعالی ته به) فرياد کوي، |
| سَلْ هَذَا فِيمَ قَتَلَنِي؟ فَيَقُولُ: قَتَلْتُهُ عَلَى مُلْكِ فُلَانٍ". |
| چې دده نه تپوس وکړئ چې ده زه ولې قتل کړی وم.؟ دا رنګه قاتل به ووائي چې ما دا دفلاني سړي په سلطنت |
| قَالَ جُنْدُبٌ: فَاتَّقِهَا. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[3] |
| کې قتل کړی وو. جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (ددې حديث د بيانولو نه پس) وويل چې تاسو ددې نه بچ شئ. (نسائي) |

(۱) أخرجه مالک فی المؤطأ ۲/۸۷۱ رقم الحديث ۱۳ من کتاب العقول

(۲) أخرجه البخاری فی ۱۲/۲۲۷ رقم الحديث ۶۸۹۶

(۳) أخرجه النسائی فی ۷/۸۴ رقم الحديث ۳۹۹۸

**توضیح** : **علي ملک فلان**: یعنې مقتول چې دقیامت په ورځ کله په قاتل باندې دقتل دعوه وکړي او الله تعالی ته فریاد وکړي چې ددې قاتل نه تپوس وکړئ چې ده زه ولې قتل کړی وم؟ نوقاتل به جواب کې ورته ووائي چې ما دفلاني سړي په سلطنت کې ده لره قتل کړی وو. ( المرقات ۷/۴۰)

**سوال** : دلته سوال دا دی چې د قاتل دا جواب د مقتول د سوال او د دعوې او فریاد دپاره جواب نه جوړیږي، نو د دې سوال او جواب په مینځ کې مطابقت څه دی؟ **جواب**: په دې کې مطابقت واضح دی چې قاتل به په جواب کې ورته وایي چې بیشکه ما ده لره قتل کړی وو مګر ما دفلاني باچا په باچاهی کې دهغه په اشارې او مدد سره مې دا قتل کړی وو لهذا دده دقتل اصل محرک او ذمه دار هم هغه باچا دی جندب هغه مشهور صحابې چې د ابوذر غفاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نوم سره مشهور دی.

**فائده**: علامه طیبي وایي چې جندب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کوم باچا یا فوجي ته نصیحت کولو نو په آخر کې یې وفرمایل چې د چا په قتل کې د نصرت او مدد نه ځان بچ کړه. ( المرقات ۴۰/۷، الکاشف ۷۹/۷)

## دقاتل د مدد کولو متعلق وعید

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ |
| او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کوم سړي د نیمې جملې |
| أَعَانَ عَلَى قَتْلِ مُؤْمِنٍ شَطْرَ كَلِمَةٍ |
| په ویلو سره هم دیو مؤمن په قتل کې مدد وکړي. (یعني مثلاً پوره قتل یې نه وي ویلی صرف اق وایي) |
| لَقِيَ اللهِ مَكْتُوبٌ بَينَ عَينيهِ |
| نو هغه به الله تعالی سره په داسې حالت کې ملاقات کوي چې دده د دواړو سترګو ترمینځه به یې لیکلي وي. |
| آيِسٌ من رَحْمَةِ اللهِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.[1] |
| دا د الله تعالی د رحمت نه نا امیده دی. (ابن ماجه) |

**توضیح** : **شطر کلمة** : یعني پوره د اقتل کلمه یې نه وي ویلې بلکه دقاتل په معاونت او مدد کې یې صرف اق نیمه کلمه وویله نو هغه هم دقاتل سره په دې قتل کې شریک دی ددې نه معلومه شوه چې په قتل کولو کې دعملاً شریک کیدونه علاوه منصوبه سازي کول یا مشوره کول یا درضامندی

[1] أخرجه ابن ماجه فی ۲/۸۷۴ رقم الحدیث ۲۶۲۰

اظهار کول او څه قسمه د رهنمائۍ او مدد او نصرت کول هم جرم دی. (المرقات ۴۱/۷)

**آئس:** یعني داسړی د الله تعالی د رحمت نه نا امیده دی د مسلمان قتلول د ګناه په شدت سره د کفر مشابه دی، دا جمله چې دا سړی د الله تعالی د رحمت نه نا امیده دی د همدې ارتکاب کفر نه کنایه ده چې د کافرانو په شان به دا هم د الله تعالی د رحمت نه مایوسه وي نو دا په زجر او تشدید او تهدید او توبیخ باندې محمول دی، یا مطلب دا چې د مؤمن په قتل کې معاونت او مدد کوم سړی حلال ګڼي نو هغه به د رحمت خداوندي نه نا امیده او کافر وي. (المرقات ۴۱/۷)

## د قاتل د مددګار سزا څه ده؟

| |
|---|
| ﴿۳۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کړې دي چې هغوی و فرمائیل چې کله یو |
| «إِذَا أَمْسَكَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ وَقَتَلَهُ الْآخَرُ يُقْتَلُ الَّذِي قَتَلَ |
| سړی چالره ونیسي او دویم یې قتل کړي نو د (مقتول په بدله) به دا سړی قتلولی شي کوم چې قتل کړو |
| وَيُحْبَسُ الَّذِي أَمْسَكَ». رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ[1] |
| او نیولو والا ته به د قید سزا ورکړی شي. (دارقطني) |

**توضیح:** ویحبس: یعني یو کس بل کس لره ونیولو او دویم هغه قتل کړو، په دې باندې اتفاق دی چې د قاتل نه به قصاص واخستی شي مګر د دې نیونکي سزا به څه وي په دې کې د فقهاو اختلاف دی.[2]

**د فقهاو اختلاف:** د امام احمد رحمه الله یو قول دا دی چې تر مرګه پورې به دا په قید کې وساتلی شي څنګه چې په دې حدیث کې دي، امام مالک رحمه الله او په یو قول کې امام احمد رحمه الله فرمایي چې دا نیولو والا به هم قتلولی شي. امام ابوحنیفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمایې چې دې سړې ته به تعزیر ورکولی شي، او س په تعزیر کې به د قاضي او حاکم د رایې اعتبار وي کچیرې هغه غواړي نو قیدولی یې هم شي او که هغه مناسب ګڼي نو قتلولی یې هم شي ځکه چې د تعزیر دائره وسیعه وي، شارحینو د حدیث لیکلې دي چې دا حدیث د هغه ټولو حدیثونو سره معارض دی په کوم کې چې د قاتل په مدد او معاونت باندې د قصاص حکم لګولی شوی دی، لهذا هغوی فرمایې چې دا حدیث د خپل حکم په اعتبار سره منسوخ دی. (کذا في الاشعة).

---

(۱) أخرجه الدارقطني فی ۳/۱۴۰ رقم الحدیث ۱۷۶

(۲) المرقات ۴۲/۷ اشعة اللمعات ۲٤/۳

# باب الدیات
## د دیتونو بیان

قال الله تعالیٰ: وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَئًا فَتَحْرِیرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِیَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ إِلَّا أَن یَصَّدَّقُوا (نساء ۹۲)
قال الله تعالیٰ: وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ بَیْنَكُمْ وَبَیْنَهُم مِّیثَاقٌ فَدِیَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ وَتَحْرِیرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ (نساء ۹۲)

**ودی یدي دیة:** د باب ضرب نه د قاتل د طرف نه د مقتول وارثانو ته مالي معاوضه ورکولو ته وایي، او د شرع په اصطلاح کې دیت د هغه مالي معاوضې نوم دی چې د څه اندام یا د چا د نفس ختمولو په بدله کې ورکولی شي، چونکه دیت کله د نفس په بدله کې راځي او کله دیو اندام په بدله کې راځي کله دیت مغلظه وي او کله دیت مخففه وي په دې وجه په کتاب کې **دیات** جمع راغلې ده چې د هغې مفرد **دیة** دی.

**د دیت قسمونه**: د دیت لوی قسمونه دوه دي: اول دیت مغلظه دی دامام ابوحنیفه او امام ابو یوسف رحمهما الله په نزد دیت مغلظه هغه دی چې سل اوښانې به اداء کولی شي مګر څلور قسمه اوښانې به وي مثلا ۲۵ بنت مخاض به وي ۲۵ بنت لبون ۲۵ حقې او ۲۵ جذعې به وي. د امام شافعي رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نزد هم دیت مغلظه سل اوښانې دي مګر درې قسمه اوښانې به وي مثلاً دیرش حقې وي او دیرش جذعې وي او څلویښت خلفات یعنې بلاربې وي دې تقسیم ته اثلاثًا وي او اولنې تقسیم ته ارباعًا وایي، دیت مغلظه په هغه سړي باندې راځي چې د قتل شبه عمد مرتکب وي یا په قتل عمد کې په دیت باندې صلح شوې وي، دیت مغلظه صرف د اوښانو په صورت کې اداء کولی شي. د دیت دویم قسم دیت مخففه دی او دیت مخففه په اوښانو او دراهمو او دنانیرو دواړو سره اداء کولی شي کچیرې د اوښانو نه اداء کول وي نو پنځه قسمه سل اوښان به اداء کول وي ۲۰ بنت مخاض، ۲۰ بنت لبون، ۲۰ ابن مخاض ۲۰ حقې او ۲۰ جذعې به ورکولی شي. د دیت مخففه اداء کول کچیرې په سرو زرو او سپینو زرو سره وي نو د سرو زرو زر دیناره دي او په چاندۍ سره دامام ابوحنیفه په نزد لس زره دراهمه دي او د شوافعو په نزد دولس زره دراهمه دي. شوافعو د ابن عباس رضي الله عنه روایت نه استدلال کړی دی چې د مشکوة په صفحه نمبر ۳۰۴ باندې ذکر دی چې په هغې کې د دولس زرو دارهمو تصریح موجود ده. احنافو د حضرت عمر رضي الله عنه د روایت نه استدلال کړی دی کوم چې په زجاجة المصابیح کې د امام محمد رحمه الله په حوالې سره ذکر کړی دی الفاظ یې داسې دي: **روی البیهقي من طریق الشافعي رحمه الله قال محمد بن الحسن رحمه الله بلغنا عن عمر انه فرض على اهل**

**الذهب في الدية الف دينار ومن الورق عشرة آلاف درهم** (زجاجة المصابیح ج۳ ص۳۳).

احناف د لسو زرو دراهمو والا روایت ته ترجیح ورکوي چې دا متیقن دی ځکه چې لس زره د دولسو زرو په ضمن کې دي او دزیاتو دپاره مزید ثبوت پکاردی دارنګه ددولس زرو چې کوم ذکر په روایت کې راغلی دی هغه د وزن سته په اعتبار سره دی او لس زره دوزن سبعه په اعتبار سره دی، نو مقدار یو دی څه فرق نشته، صرف دالفاظو فرق دی، دیت مخففه په هغه سړي باندې راځي چې په قتل خطا یا جاري مجراي خطا یا قتل بتسبب مرتکب وي، خلاصه دا چې قتل عمد کې قصاص دی، قتل شبه عمد کې دیت مغلظه دی، چې په عاقلو باندې دی او په سړي باندې کفاره ده په قتل خطا او جاري مجراي خطا کې په سړي باندې کفاره ده او عاقله باندې دیت دی، قتل بتسبب کې په عاقله باندې دیت دی په سړي باندې کفاره نشته دی. دا خبره یاد ساتئ چې یو کامله خون بها ده دې ته دیت وایي او یو نیم دیت دی او یو عشر دیت دی یعنې ددیت لسمه حصه نو دسلو لسمه حصه لس دي داندامونو معاوضې ته ،،ارش،، وایي بیا ددیت د اداکولو ترتیب داسې دی چې دقتل خطا دمجرم په عاقله باندې به دیت راځي او هغه به په درې کالو کې په قسطونو سره اداء کوي، هر کال به دریمه حصه د دیت اداء کولی شي.

## الفصل الاول

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: |

حضرت ابن عباس رضي الله عنه دنبي علیه السلام نه نقل کوي چې هغوی وفرمائیل چې دا او دا (نبي علیه السلام

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| «هَذِهِ | وَهَذِهِ | سَوَاءٌ» | يَعْنِي | الْخِنصرُ |

دګوتو نه ورې ګوتې او غټې ګوتې طرفته اشاره کولو سره وفرمایل چې) کچه ګوته او غټه ګوته

| | | |
|---|---|---|
| والإبهامَ | (مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ)[1] |

(د دیت په اعتبار سره) دواړه برابرې دي. (بخاري)

**توضیح : الخنصر**: دلاس دګوتو نه ورې ګوتې ته خنصر وائي او چې په پښتو کې ورته کچه ګوته وائي. **الابهام**: غټې ګوتې ته وائي دپوره دیت راتلو یا دنیم دیت راتلو یا دعشر دیت د واجب کیدو دارومدار دهغو اندام په نفع باندې دی، او کچیرې پوره نفع ضائع شوه نو پوره دیت به راځي او

---

([1]) أخرجه البخارى فى الصحيح ۱۲/۲۲۶ رقم الحديث ۶۸۹۵ وأبوداؤد فى السنن ۶۹۰/۴ رقم الحديث ۴۵۵۸ والترمذى ۴/۸ رقم: ۱۳۹۲

که نه نو کم دیت راځي، لهذا کچیرې یو سړې د یو کس ټولې ګوتې کټ کړي نو د لاسونو ټول منفعت ختم شو لهذا پوره دیت به ورکوي په دې لحاظ سره دهرې ګوتې په بدله کې به لس اوښان په دیت کې راځي نود لاس په لسو ګوتو باندې به سل اوښان راځي. په دې حساب سره کچه ګوته او غټه ګوته برابرې دي ځکه چې منفعت یو شان دی اګرچې په کچه ګوته کې درې جوړه دي یعنې درې بندونه دي او په غټه ګوته کې دوه بندونه دي مګر منفعت یې برابر دی، اوس کچیرې د ګوتې یو بند کټ کړې شي نو دلسم دیت دریمه حصه به ورکول وي البته په غټه ګوته کې دوه بندونه دي لهذا د یو بند په کټ کولو باندې به نصف عشر یعنې پنځه اوښان ورکوي، د اسلام د عادلانه نظام نه قربان شم چې د ګوتو د جوړونو یې هم حفاظت کړی دی او بین الاقوامي انساني قوانینو باندې دې لعنت وي چې د انساني حقوقو په نوم سره یې انساني حقوق پایمال کړل. ( المرقات ۴۲/۷)

## د ښځې په خیټه کې د بچي دیت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د بني لحیان د یوې ښځې د هغه د بچي په دیت |
| جَنِينِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي لِحْيَانَ سَقَطَ مَيِّتًا بِغُرَّةٍ عَبْدٍ |
| کې چې د هغې په خیټه کې مړ پروت وو (په عاقله باندې) غره واجب کړې وه او د غره نه مراد غلام |
| أَوْ أَمَةٍ ثُمَّ إِنَّ الْمَرْأَةَ الَّتِي قُضِيَ عَلَيْهَا بِالْغُرَّةِ تُوُفِّيَتْ فَقَضَى |
| یا وینځه ده، بیا کله چې هغه ښځه (چې د چا په عاقله باندې یې غره واجب کړې وه) مړه شوه نو هغوی |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَنَّ مِيرَاثَهُ البنيها وَزوجهَا الْعقل على عصبتها (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| دا فیصله وکړه چې د دې میراث د دې د ځامنو او خاوند د پاره دی او د دې دیت د دې په عصبو باندې دی. |

**توضیح**: في جنين: کله چې بچی د مور په خیټه کې وي هغې ته جنین وایي. د لحیان په لام باندې فتحه هم ده او کسره هم ده دا د عربو د یوې قبیلې نوم دی چې د بنو لحیان په نوم سره مشهوره ده په راتلونکي روایت کې لفظ د هذیل راغلی دی نو هغه څه منافات نه لري. ځکه چې هذیل لویه قبیله ده او لحیان د دې یو شاخ دی قصه دا وشوه چې د هذیل قبیلې دوه ښځې وې د یوې تعلق د لحیان سره وو او دواړه د یو بل بنې وې په هغوی کې یوې بله په کاڼي یا همساء سره ووهله هغه حامله وه په دې وهلو سره د هغه په خیټه کې ماشوم مړشو او حمل یې ضائع شو مقدمه د نبي علیه السلام په خدمت

[1] أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۲۵۲ رقم الحدیث ۶۹۰۹ ومسلم فی ۳/۱۳۰۹ رقم الحدیث (۱۶۸۱-۳۵) وأبوداؤد ۴/۷۰۱ رقم : ۲۵۷۷

کې راغله دوی د ماشوم په دیت کې یو غلام یا یوه وینځه مقرر کړه. ( المرقات ۴۳/۷)

**غرة**: غره د اس په تندي باندې سپين داغ ته وايې بيا د دې اطلاق په هر روښانه او واضح څيز باندې وشو تردې چې د غرې اطلاق په غلام او وينځه باندې وشو چې روښانه مال دی او د عبد او امة الفاظ د دې غرة تفسير او وضاحت دی او دا ظاهره ده چې دا الفاظ د نبي عليه السلام خپل دي د کوم راوي وضاحت نه دی په راتلونکي روايت نمبر ۱۷ کې د دې الفاظو سره د فرس او بغل مزيد الفاظ لګيدلي دي هغه د چا راوي د طرف نه دي چې په وهم مبني دی دا روايت د مشکوة شريف په صفحه نمبر ۳۰۴ باندې موجود دی اګرچه په خيټه کې مړشو او راوتو نو همدا حکم دی، او که ژوندی پيدا شو او بيا په دې ضرب (وهلو) سره مړشو نو په دې کې پوره ديت لازميږي.

**غرة**: د پوره ديت شلمه حصه ده چې پنځه سوه درهمه جوړيږي هر کله چې پوره ديت لس زره درهمه راځي. راتلونکي د حضرت مغيره بن شعبه والا روايت کې دي چې نبي عليه السلام د غرة دا ديت په عاقلو باندې کيخودو په دې سره شبهه پيدا کيدی شوه چې کله ديت په عاقله باندې دی نو بيا د دې سرې ديت به هم عاقلو ته ملاويدل پکار وو د چا د طرف نه چې عاقله ديت ډک کړی دی د دې شبهې لرې کولو دپاره په حديث کې دا الفاظ راغلي دي **ثم ان المرأة**: يعنې چې کومې ښځې جنايت کولو سره د دويمې ښځې ماشوم مړ کړی وو او هغه په خپله مړه شوه او د دې د ميراث مسئله پيدا شوه نو نبي عليه السلام د ميراث فيصله د هغې وارثانو دپاره وکړه چې ميراث به د دې ښځې ځامنو او خاوند ته ملاويږي او ديت به د دې ښځې په عصبه باندې راځي، د لته د ميراث تصريح د ځامنو او خاوند دپاره ځکه وشوه چې د ښځې وارثان هغه وخت هم دوی وو، د حديث مطلب دا دی چې ميراث د وارثانو دی که څوک هم وارث شي، د دې حديث نه معلومه شوه چې قاتله ښځه مړه شوه او روستو روايت نه معلومه شوه چې هغه ښځه مړه شوه چې د کومې په خيټه کې ماشوم مړ شوی وو، ړومبی ماشوم مړ شو او روستويې مور مړه شوه، نو په دې تفاوت سره د تعارض دوه جوابه دي: اول جواب دا چې شايد دوه جدا جدا واقعې وې، دويم جواب دا دی چې په دې حديث کې د **قضى عليها بالغرة** الفاظو کې **عليها** په معنی د **لها** دی يعنې چې د کومې ښځې دپاره د ديت فيصله شوې وه هغه مړه شوه، دا رنګه په باقي رواياتو کې به تعارض نه راځي عامو شارحينو د **عليها** ضمير جانيه قاتله طرف ته راجع کړی دی او د **قضى** صيغه معروف او مجهول دواړه قسمه ليکلې ده. ملاعلي قاري ړومبی خو ضمائر جانيه قاتله سره لګولي دي او روستويې د تحقيق په دروان کې يې ليکلي دي چې

دا مړه شوې ښځه جانيه نه وه بلکه مجنيه وه. ( المرقات ۴۳/۷)

**عاقله کوم خلق دي ؟ علي عصبتها:** اي علی عاقلتها په شرح السنة کې ليکلي دي چې عقل ديت ته وايي او ديت ته عقل په دې وجه ويلی شوی دی چې عقل د تړلو په معنی سره دی، او ديت ورکولو والا به هم د ديت اوښان د مقتول د کور خوا کې تړل. بعضو ويلي دي چې عقل د منع کولو په معنی دی څنګه چې په عقل انساني کې هم د منع کولو معنی موجود ده نو ديت ته عقل په دې وجه ويلی شوی دی چې دا هم انسان لره د قتل وغيره د جرم نه منع کوي په دې مناسبت سره عصبه او خاندان والو ته عاقله وايي. ( المرقات ۴۴/۷، ۴۳)

دلته په زير بحث حديث کې په عصبو باندې ديت لره لازم کړی شوی دی او روستو مغيره بن شعبه په روايت کې هم د ديت لزوم په عصبو باندې ايخودلی شوی دی، نو د دې نه مسئله پيدا شوه چې آيا د سړي عاقله او د ديت ورکولو ذمه دار صرف عصبه او د سړې خاص د وينې رشتې سره منسلک خاندان وي يا عاقله نور خلق هم کيدی شي په دې کې د فقهاو اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف :** د امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد په هرحال کې هم عصبه عاقله دي د عصبو نه علاوه کوم بل سړی عاقلو کې داخليدی نشي. د احنافو امامانو په نزد اهل تناصر او په عامو مصائبو کې ديو بل مددګار خلق هم په عاقله کې داخل دي، د نبي عليه السلام په زمانه کې هم عصبات اهل تناصر وو لهذا همدا عاقله وو مګر د حضرت عمر فاروقؓ په زمانه کې اهل ديوان اهل تناصر ګڼلی شو نو حضرت عمرؓ د ټولو صحابو په موجودګۍ کې يې اهل ديوان لره عاقله وګرځول او چا هم په دې باندې نکير ونه کړو. کذا في نصب الراية. خلاصه دا چې کوم سړی په يو دفتر کې ملازم دی نو د ده هم پيشه خلق ټول د ده د پاره عاقله دي د عدالت خلق په خپل مينځ کې عاقله دي. د پوليس د محکمې خلق ديو بل عاقله دي غرض هم پيشه خلق د يو بل د پاره عاقله دي په دې سره د انساني ځانونو حفاظت کيږي ځکه چې هر سړی د بل د پاره نګران جوړشي او ده د لاس نه قتل خطاء ونه شي ورنه زه به د عاقله کيدو د وجې نه په تاوان کې راشم. په حديث کې يې عصبه لره عاقله وګرځول نو د دې وجه همدا ده چې هغه وخت کې عصبه خلق هم اهل تناصر وو نو هم هغوی عاقله وو د دې مطلب دا نه دی چې نور خلق عاقله نه شي جوړيدی.

## د کاڼي په ذريعې سره په کيدونکي قتل کې به ديت واجب وي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | اقْتَتَلَتِ | امْرَأَتَانِ | مِنْ | هُذَيْلٍ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي (چې يوه ورځ) د هذيل د قبيلې دوه ښځو په خپل مينځ کې په جنګ شوې | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَرَمَتْ | إِحْدَاهُمَا | الْأُخْرَى | بِحَجَرٍ | فَقَتَلَتْهَا | وَمَا | فِي | بَطْنِهَا |
| په دوی کې يوې ښځې بله په کاڼي وويشته چې په هغې سره هغه ښځه مړه شوه او د هغې په خېټه کې | | | | | | | |
| فَقَضَى | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ أَنَّ | دِيَةَ جَنِينِهَا |
| ماشوم هم مړ شو. نبي عليه السلام حکم وکړو چې د مقتولې ددې ماشوم ديت چې ددې په خېټه کې | | | | | | | |
| غُرَّةٌ: | عَبْدٌ | أَوْ | وَلِيدَةٌ | وَقَضَى | بِدِيَةِ | | |
| مړ شو غره يعني وينځه يا يو غلام دی او حکم يې وفرمايلو چې د مقتولې ديت د قاتلې په خاندان | | | | | | | |
| الْمَرْأَةِ | عَلَى | عَاقِلَتِهَا | وورثها | ولدها | | | |
| والو باندې دی دارنګه ددې ديت وارثان يې د هغه ځامن او هغه خلقو لره جوړ کړو چې د ځامنو سره | | | | | | | |
| وَمن | مَعَهم | متفق | عليه | (صَحِيح)[1] | | | |
| يې (په وراثت کې شريک) وو. (بخاري ومسلم) | | | | | | | |

**توضيح** : **فقتلها** : داسې معلوميږي چې دا واقعه ددې مخکنۍ واقعې نه مختلفه ده ځکه چې په هغې کې دا ذکر وو چې روميې ماشوم په خېټه کې مړ شو بيا اسقاط وشو او ښځه په خپله مړه شوه مګر دلته خو تصريح ده چې يو کاڼي ويشتلو سره ښځه هم مړه شوه او د هغې ماشوم هم مړ شو او دا عمل په يو ځل فوري طور باندې وشو بهرحال دې روايا تو سره دا خبره په واضح طور باندې مخې ته راغله چې قتل بالمثقل سره ديت لازميږي قصاص نه راځي.

**بدية المرأة** : ددې نه مقتوله ښځه مراد ده چې ام الجنين ده. **علي عاقلتها** يعني د قاتلې ښځې د عاقلو په ذمه د مقتولې ديت يې مقرر کړو د **ها** ضمير قاتلې طرف ته واپس کيږي **وورثها** د ورث د فاعل ضمير د رسول الله ﷺ طرف ته راجع دی او **دها** ضمير **دية** طرفته راجع کيږي **ولدها** دلته ولدها مفعول به واقع شوی دی، يعني نبي عليه السلام د مقتولې د ديت وارث ددې مقتولې ځوی جوړ کړو او چې څوک ورسره وو هغه يې وارث جوړ کړل. د ملا علي قاري رحمه الله د کلام نه معلوميږي چې دلته ولدها جمع سره دی يعني اولادها په دې صورت کې د **ومن معهم** ضمير اولاد طرف ته راجع دی مګر که په **ولدها** کې د لفظ ولد مفرد وي بيا به ورسره د جنس معامله کولی شي نو د معهم

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۲۵۲ رقم الحديث ۶۹۱۰ ومسلم في ۳/۱۳۰۹ رقم الحديث (۱۶۸۱-۳۶) وأبوداؤد في ۴/۷۰۱ رقم: ۴۵۷۶

د ضمير مسئله به حل شي چې جنس ولد طرف ته د جمع ضمير واپس کړی شو او د جنس اطلاق په قليل او کثير دواړو باندې کيږي.

﴿۲﴾ وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ: أَنَّ امْرَأَتَيْنِ كَانَتَا ضَرَّتَيْنِ

او حضرت مغيره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي دوه ښځې په خپل مينځ کې بنې وې (يو ورځ په جګړه شوې) په دوی

فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا الأُخْرَى بِحَجَرٍ أَوْ عَمُودِ فُسْطَاطٍ فَأَلْقَتْ جَنِينَهَا

کې يوې بله (چې حامله وه) په کاڼي يا د خيمې په چوب (لرګي) سره ووهله چې په هغې سره يې حمل ساقط شو.

فَقَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ غُرَّةً: عَبْداً أَوْ أَمَةً

لهذا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خيټې د بچې په وجه سره د غره يعني يو وينځه يا د يو غلام ورکولو حکم وکړو

وَجَعَلَهُ عَلَى عَصَبَةِ الْمَرْأَةِ هَذِهِ رِوَايَةُ التِّرْمِذِيِّ

او ديت هغه په وهونکې ښځې باندې واجب کړو. دا د ترمذي روايت دی او د مسلم په روايت کې

وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ: قَالَ: ضَرَبَتِ امْرَأَةٌ ضَرَّتَهَا بِعَمُودِ فُسْطَاطٍ

داسې دي چې حضرت مغيره رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل چې يوې ښځې خپله بنه چې حامله وه د خيمې په چوب (لرګي)

وَهِيَ حُبْلَى فَقَتَلَتْهَا قَالَ: وَإِحْدَاهُمَا لِحْيَانِيَّةٌ

سره ووهله چې د هغې په وجه سره مړه شوه مغيره رَضِيَ اللهُ عَنهُ وائي چې په دې دواړو کې يوه د لحيان

قَالَ: فَجَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيَةَ الْمَقْتُولِ عَلَى عَصَبَةِ الْقَاتِلَةِ

د خاندان نه وه د مغيره رَضِيَ اللهُ عَنهُ بيان دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مقتولې ديت د قاتلې په عاقله باندې

وَغُرَّةً لِمَا فِي بَطْنِهَا. أخرجه مسلم والترمذي.[1]

واجب کړو او د خيټې د بچي ديت کې يې غره يعني يوه وينځه يا يو غلام د ورکولو حکم يې وکړو.

**توضيح**: ضرتين دا د ضرة تثنيه ده او ضرة بنې ته وايي عمود ستنې او د خيمې غټ بانړس ته وايي فسطاط غټې خيمې ته وايي دا حديث هم د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دی چې قتل بالمثقل عمد نه دی بلکې شبه عمد دی په دې سره د لته د دې قتل په بدله کې قصاص نشته بلکه ديت واخستلی

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ١٢/٢٤٧ رقم الحديث ٦٩٠٥ بنحوه ومسلم في ٣/١٣١١ رقم الحديث (١٢٨٢-٢٨) والترمذي في السنن ٤/١٧ رقم الحديث ١٤١١.

شو، شوافع حضرات فرمايې چې دلته دکانې نه وړوکې کاڼې مراد دی او دلرګي نه وړوکی لرګی مراد دی، احناف وايې چې په حديث کې څه قيد نشته چې دا څيزونه واړه وو. (المرقات ۴۷/۷)

## د قتل خطاء او شبه عمد ديت

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۵﴾عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل چې پوهيدل پکار دي چې |
| "أَلَا إِنَّ دِيَةَ الْخَطَإِ شِبْهِ الْعَمْدِ مَا كَانَ بِالسَّوْطِ وَالْعَصَا |
| قتل خطاء دکوم نه چې مراد شبه عمد دی چې دکوړې او همساء په ذريعه سره واقع کړې شوی وي، |
| مِائَةٌ مِنَ الإِبِلِ: مِنْهَا أربعونَ فِي بطونِها أولادُها". |
| ددې ديت سل اوښان چې په کې څلويښت داسې اوښانې هم کيدل پکار دي چې په خيټو کې يې بچې وي |
| رَوَاهُ النسائيُّ وَابْن مَاجَه والدارمي[1] وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُد عَنْهُ وَابْن مَاجَه وَعَن ابْن عمر.[2] |
| (روايت کړې دې نسائي او ابن ماجه او دارمي) ابوداؤد دې روايت لره د ابن عمرو او ابن عمر |
| وَفِي «شَرْحِ السُّنَّةِ» لَفْظُ «الْمَصَابِيحِ» عَنِ ابْنِ عمر |
| دواړو نه نقل کړې دی دارنګه شرح السنة کې دا روايت د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا نه بالفاظ مصابيح نقل کړې شوی دی. |

**توضيح: الا ان دية الخطاء**: علامه طيبي رحمه الله وايي چې د **شبه العمد** الفاظ د **دية الخطاء** نه بدل واقع دي او **ماکان بالسوط والعصا** دا د هغې بدل نه بدل دی، دا ټول بدل او مبدل منه په يو ځای کيدو سره د ان د پاره اسم شو او **مائة من الابل** د ان خبر دی د عبارت ترجمه به داسې شي: (الکاشف: ۸۵/۷) خبردار قتل خطا يعني شبه عمد چې په کوړې او امسا سره واقع شوی وي ددې ديت سل اوښان دي ددې حديث نه د قتل عمد، قتل شبه عمد، قتل خطاء، قتل جاري مجراي خطا، او قتل تسبب د تقسيم طرف ته اشاره راوځي، دا روايت د امام ابوحنيفه رحمه الله د مسلک واضح دليل دی چې قتل بالمثقل شبه عمد دی چې په هغې سره قصاص نشته بلکه ديت دی او دا ديت مغلظ به وي داحنافو

---

(۱) أخرجه السنائى فى السنن ۸/٤٢ رقم الحديث ٤٧٩٩ وابن ماجه فى ۲/۸۷۸ رقم الحديث ۲٦۲۸ . والدارقطنى فى ۳/۱۰۵

(۲) أخرجه أبوداؤد فى السنن ٤/٦٨٢ رقم الحديث ٤٥٤٧ عن ابن عمرو وأخرجه عن ابن عمر رقم الحديث ٤٥٤٨.

په نزد دیت مغلظ سل اوښان دي مګر د اداء کولو ترتیب ارباعًا دی یعني د پنځویشت پنځویشت په حساب سره به وي، او د شوافع په نزد دا ترتیب اثلاثًا یعني د دیرش دیرش او څلویښتو په حساب سره به وي تفصیل مخکښې تیر شوی دی. (الکاشف: ۸۵/۷)

## د بدن د مختلفو اندامونو دیت

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ عَنْ أَبِيهِ |
| او حضرت ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم د خپل والد (حضرت محمد بن عمرو) نه او هغه د ابوبکر |
| عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى أَهْلِ الْيَمَنِ |
| د نیکه نه (حضرت عمرو بن حزم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه روایت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د یمن والو ته یو هدایت نامه |
| وَكَانَ فِي كِتَابِهِ: «أَنَّ مَنِ اعْتَبَطَ مُؤْمِنًا قَتْلًا |
| ولیږله چې په هغې کښې لیکلی شوی وو چې کوم سړی په قصد سره کوم مسلمان لره په ناحقه مړ کړي |
| فَإِنَّهُ قَوَدُ يَدِهِ إِلا أَنْ يَرْضَى |
| نو د دې د لاسونو د فعل قصاص دی مګر دا چې د مقتول وارثان راضي شي (یعني که د مقتول |
| أَوْلِيَاءُ الْمَقْتُولِ» وَفِيهِ: |
| وارثان قاتل لره معاف کړي او په دیت اخستو باندې راضي شي نو هغه به نه شي قتلولی) په دې هدایت نامه کښې |
| «أَنَّ الرَّجُلَ يُقْتَلُ بِالْمَرْأَةِ» |
| دا هم وو چې د (مقتولې) ښځې په بدله کښې به (قاتل) سړي لره په قصاص کښې قتل کړی شي په دې |
| وَفِيهِ: «فِي النَّفْسِ الدِّيَةُ مِائَةٌ مِنَ الإِبِلِ وَعَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ أَلْفُ دِينَارٍ |
| کښې دا هم لیکلی شوې وو چې د نفس دیت سل اوښان دي او چا سره چې سره زر وي هغه دې زر دیناره ورکړي |
| وَفِي الأَنْفِ إِذَا أُوعِبَ جَدْعُهُ الدِّيَةُ مِائَةٌ مِنَ الإِبِلِ وَفِي الأَسْنَانِ |
| او د پوزې دیت کله چې هغه پوره کټ کړی شوې وي سل اوښان دي او د غاښونو دیت (هر کله چې |
| الدِّيَةُ وَفِي الشفتين |
| هغه ټول مات کړی شوې وي) پوره دیت (یعني د سل اوښانو تعداد) دی او د شونډو دیت (هر کله چې |
| الدِّيَةُ وَفِي البيضين الدِّيَةُ |
| هغه پوره کټ کړی شوې وي) پوره دیت دی او د دواړو خصیتینو په کټ کیدو سره هم پوره دیت دی، |

وَفِي الذَّكَرِ الدِّيَةُ وَفِي الصُّلبِ الدِّيَةُ

او د ملا د هډوکي په ماتيدو باندې پوره ديت دی او د خاص اندام په کټ کيدو باندې پوره ديت دی

وَفِي الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ وَفِي الرِّجْلِ الْوَاحِدَةِ نِصْفُ الدِّيَةِ

او د دواړه سترګو په ړنديدو باندې هم پوره ديت دی او د خپې په کټ کيدو باندې نيم ديت دی او د سر

وَفِي الْمَأْمُومَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ وَفِي الجائفة ثلث الدِّيَةِ

د ځرمنې په زخمي کيدو باندې دريمه حصه د ديت دی او د خيټې په زخم کيدو باندې هم دريمه حصه ديت دی

وَفِي المنقلة خمس عشر مِنَ الْإِبِلِ

دغه شان په زخمي کيدو باندې چې د هډوکي يو ځای کې ښکاره شوی وي پنځلس اوښان ورکول واجب دي

وَفِي كُلِّ أُصْبُعٍ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدِ وَالرِّجْلِ عَشْرٌ مِنَ الْإِبِلِ

او د لاس او د خپو په ګوتو باندې په هره يوه ګوته باندې لس اوښان ورکول واجب دي او په هر يو

وَفِي السِّنِّ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَفِي رِوَايَةِ مَالِكٍ:

غاښ باندې پنځه پنځه اوښان دي. (نسائي دارمي) او د امام مالکؒ په روايت کې دا الفاظ دي

«وَفِي الْعَيْنِ خَمْسُونَ وَفِي الْيَدِ خَمْسُونَ

چې د يوې سترګې په ړنديدو باندې ديت پنځوس اوښان دي او د يو لاس او يوې خپې ديت پنځوس

وَفِي الرِّجْلِ خَمْسُونَ وَفِي الْمُوضِحَةِ خَمْسٌ» اخرجه الدارمي.[1]

پنځوس اوښان دي او د اسې زخم چې په هغې کې په هډوکی ښکاره شي ديت يې پنځه اوښان دي.

**توضيح**: اعتبط: او ښه بغير د بيمارۍ نه حلالولو ته اعتباط وايي دلته د اعتباط نه مراد دا دی چې بغير د څه جرم او جنايت نه چا يو مسلمان قصداً مړ کړو. (المرقات ۴۲/۷)

**فانه قوديده قود**: په معنی د موقود دی د قصاص په معنی سره دی دا د **انقياد** نه ماخوذ دی او قاتل هم په قصاص کې د مقتول د اوليا و مخکې اطاعت کوي. **قوديده** يعني د خپل لاس د جرم په وجه سره د قصاص مستحق کيږي، ګويا چې د ده لاس د قصاص سامان پخپله پيدا کړو، يرضي اولياء المقتول

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۸/۵۷ رقم الحديث ٤٨٥٣/والدارمي في ۲/۲۵۳ رقم الحديث ۲۳۶۶ مالک في الموطأ ۲/۸٤۹ رقم ۱ من كتاب العقول

په قتل خطا او قتل شبه خطا او قتل شبه عمد کې په اتفاق سره دیت دی قصاص نه دی، او قتل عمد کې په اتفاق سره قصاص دی مګر که اولیاء د مقتول د دیت په اخستو باندې راضي شي نو داهم جائز دی چې هغه قاتل لره بالکل معاف کړي یا هغه سره صلح وکړي دیت ترې واخلي.

**د اوښانو په موجودګۍ کې د هغې د قیمت په ادا کولو کې اختلاف:** اوس بحث دا دی چې په دیت کې د اوښانو په ځای دینار او دراهم اخستی شي او که نه؟ په دې کې اختلاف دی، امام شافعي رحمه الله فرمایي چې که اوښان موجود وي نو سره زر سپین زر ورکول جائز نه دي، اوښان متعین دي ها کچیرې جانبین د اوښانو په ځای په نقدو باندې راضي شي نوبیا جائزدي. امام ابوحنیفه او امام احمد رحمهما الله فرمایي چې داوښانو په موجودګۍ کې سره زر او سپین زر هم اداءکولی شي دمقتول وارثان به یې اخلي. شوافع حضرات فرمایي چې په حدیث کې د سل اوښانو تصریح ده، احناف او حنابله فرمایي چې بیشکه دلته داوښانو ذکر دی مګر په طور دصلح او د طرفینو په رضامندۍ سره د اوښانو نه علاوه مقررشده او فیصله شوې څیزونه هم د اوښانو بدل جوړیدی شي که هغه سره زر وي یا سپین زر وي یا نور قسمونه وي **الف دینار** په زر ۱۰۰۰دینارو کې د چاهم اختلاف نشته دی. البته په دراهمو کې اختلاف دی چې ددې مقدار دیت څومره دی نو د شوافعو په نزد دولس زره دراهم دي، او د احنافو په نزد لس زره دراهم دي، ددې باب په اول کې دا مسئله لیکلی شوې ده **اوعب** د مکمل او کامل په معنی سره دی.

**جدعه جدع** د باب فتح نه د پوزې د کټ کیدو په معنی سره دی یعنې کله چې یې مکمل پوزه کټ کړه.

**بیضتین**: نه مراد **خصیتین** دي د خصیتینو په کټ کیدو سره مکمل دیت دی،د **ذکر** هم دا حکم دی په دې شرط چې مضروب سړی دمخکې نه خصي یا عنین یا شیخ فاني نه وي، کیرې هغه مخکې نه ددې څیزونونه فارغ وي نو هیڅ باک **نشته الصلب** ددې نه مراد ملا او دملا دهډوکي ماتول دي **مامومة** ام الرس نه ماخوذ دی دا هغه زخم دی چې د سر په کوپړۍ کې لګیدلی وي او دماغوته رسیدلی وي.

**الجائفة**: دا د جوف نه دی جوف دخیټې او د مینځ په معنی سره دی، لهذا ددې زخم مصداق هغه هم کیدی شي چې نیزه وغیره په خیټه وغیره کې ننوځي یا دسر په مینځ کې زخم ولګي یا په ملا کې ولګي او آخرته ورسي دا ټول د جائفه مصداق دي مګر رومبی مفهوم زیات واضح دی چې خیټه کې دننه زخم لګیدلی وي هغه جائفه دي.

**المنقلة**: هډوکی مات شي او خپل ځای نه وخوزي دې ته منقله وایي په دې کې دیت پنځلس اوښان دي.

**الموضحة**: داهغه زخم ته وایي چې دهغې په وجه سره د هډوکي نه څرمن اوچته شي او غوښه کټ

شي او هډوکی ښکاره شي، دا خبره ددې نه مخکې لیکلې شوې ده چې د دیت د زیاتیدو او کمیدو وجه دجرم نوعیت دی، کچرې نقصان داسې اندام ته ورسي چې هغې ته په انساني بدن کې مرکزي حیثیت حاصل وي او ددې اندام پوره منفعت ختم شوی دی چې دهغې په ذریعه سره دبدن ښکلا او وزن ته مکمل نقصان رسیدلی دی نوپه داسې صورت کې پوره دیت واجب دی، کچیرې ددې نه دکمې درجې نقصان دی نو بیا د نیم یاد دریمې حصې دیت حکم به جاري کیږي دا ضابطه دنبي اکرم ﷺ دهغه مبارک حکم نه حاصلیږي چې په هغې کې د داسې مخصوص اندام په ضائع کیدو سره پوره دیت ورکولو حکم فرمایلی دی دکوم اندام په ضائع کیدو سره چې دانسان په جمال او کمال کې فرق راځي او دسړي عظمت او شان اوشوکت ته نقصان رسي مثلاً پوزه ده یا ژبه ده یا سترګې دي په دې سره دانسان پوره منفعت ضائع کیږي. حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په خپل دورخلافت کې د یو زخم په وجه سره څلور دیتونه واجب کړي وو ځکه چې زخم خو یو وو مګر دهغه سړي عقل هم په دې زخم سره زائله شوی وو او دهغه لیدل او کتل او مردانه قوت او عقل او وینا څلور څیزونه زائله شوې وو.

**عن عمر بن الخطاب انه قضى في رجل ضرب رجلا فذهب سمعه وبصره ونكاحه و عقله بأربع ديات**

(زجاجة المصابيح ج۳ ص۲۹)

## په دیت کې دبرابر اندامونو بیان

﴿۷﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عمرو بن شعیب رحمه الله دخپل پلار او هغه دخپل نیکه نه نقل کوي چې نبي ﷺ حکم اوفرمائیلو

فِي الْمَوَاضِحِ خَمْسًا خَمْسًا مِنَ الْإِبِلِ وَفِي الْأَسْنَانِ

چې د داسې زخم دیت چې په کې هډوکي ښکاره شي پنځه پنځه اوښان دي او د غاښونو (یعني د

خَمْسًا خَمْسًا مِنَ الْإِبِلِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ

هر غاښ) دیت پنځه پنځه اوښان دي. (روایت کړې دې ابوداؤد، نسائي، دارمي) ترمذي او

وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ وابنُ مَاجَه الْفَصْل الأول[1]

ابن ماجه (ددې حدیث) اولنۍ جزء نقل کړې دي (الفصل الاول) نه مراد دجملې اولنۍ حصه ده.

﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: جَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وائي چې رسول الله ﷺ د دواړه لاسونو او د دواړو خپو

---

(1) أخرجه أبوداود فى السنن ۴/۱۹۵ رقم الحديث ۴۵۶۶ والترمذي فى ۴/۷ رقم الحديث ۱۳۹۰ والنسائى فى ۸/۵۷ رقم الحديث ۴۸۵۲

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَصَابِعَ | الْيَدَيْنِ | وَالرِّجْلَيْنِ | سَوَاء. |

تولو ګوتو لره برابرې ګرځولې دي (تردې چې غټې ګوتې او کچې ګوتې لره یې دیوې بلې برابر ګرځولې

| | | | |
|---|---|---|---|
| رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد | وَالتِّرْمِذِيّ | (صَحِيحٌ)[1] |

دي، اګرچه د بندونو په اعتبار سره په دواړو کې فرق دې. (ابو داؤد، ترمذي)

﴿۹﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم:

اوحضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایې چې نبی علیه السلام وفرمایل (د دیت په اعتبار سره) تولې

| | | | |
|---|---|---|---|
| «الأصابعُ | سواءٌ | والأسنانُ | سواءٌ |

ګوتې برابرې دي او تول غاښونه برابر دي (اګرچې بعضې غاښونه غټ دي او بعضې واړه دي) او

| | | |
|---|---|---|
| الثَّنِيَّةُ | وَالضِّرْسُ | سَوَاءٌ |

دمخې غاښونه او داړې برابرې دي (اګرچې داړې د مخې غاښونو نه غټې دي خو د دیت په اعتبار سره برابر دي)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هَذِهِ | وَهَذِهِ | سَوَاءٌ». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد | (حسن)[2] |

دا رنګ نبي علیه السلام غټې ګوتې او کچې ګوتې طرف ته اشاره کولو سره او خودل چې) دا او دا برابرې دي. (ابوداؤد)

**توضیح**: پاسني درېواړه حدیثونه یې د یو عنوان لاندې په دې وجه کیخودلی شو چې ددې تولو تعلق د غاښونو او ګوتو سره دی په حدیث نمبر ۷ کې مواضح لفظ راغلی دی او دا د موضحه جمع ده، موضحه هغه زخم ته وایې چې په هغې سره ځرمن واوړی او هډوکی ښکاره شی په دې کې پنځه اوښان دیت کې ورکول دي، د دیت دا تعین د شارع کار دی په دې کې قیاس ته هم څه دخل نشته دی. په حدیث نمبر ۹ کې ثنیة لفظ راغلی دی ددې جمع ثنایا ده مخې ته غاښونو ته رباعی وایې ددې سره ثنایا دي، ددې نه پس اضراس او نواجذ دي، ضرس داړې ته وایې یعنې واړه او لوی غاښونه په دیت کې برابر دي، دغه شان ګوتې برابرې دي اګرچه د غټې ګوتې دوه بندونه وي. هذه وهذه سواء کې اشاره غټې ګوتې او دلاس کچې ګوتې طرفته ده . دا د شریعت حکم دی عقل او قیاس ته دلته دخل نشته دی اګرچه غټه ګوته کې جوړونه کم دي او کچه ګوته کې زیات دي.

نه هر جائے مرکب تواں تاختن — کہ جاہا سپر باید انداختن

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٦٩١ رقم الحديث ٤٥٦١ وأخرج الترمذی نحوه مختصرًا ٤/٨ رقم الحديث ١٣٩١

[2] أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٦٩٠ رقم الحديث ٤٥٥٩ وابن ماجه فی ٢/٨٨٥ رقم الحديث ٢٦٥٠

يعنې هرځای عقلې اسونه نه شي زغلولی ډیرو ځايونو کې وسله غورزول راځي.

## دذمي كافر ديت دمسلمان د ديت په نيمه دى

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ:
اوحضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار (حضرت شعیب رحمه الله) نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي وايي
خَطَبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الفتح
چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مكې د فتحې په كال يوه خطبه وركړها وپه دې كې يې (د حمد او ثناء) نه
ثُمَّ قَالَ: «أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ لَا حِلْفَ فِي الْإِسْلَامِ وَمَا كَانَ
پس وفرمايل چې خلقو په اسلام كې د قسم او عهد وپيمان كول جائز نه دي مګر هر هغه عهد او
مِنْ حِلْفٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَإِنَّ الْإِسْلَامَ لَا يَزِيدُهُ
قسم چې د جاهليت په زمانه كې وو، اسلام دا په مضبوطې سره قائموي (يادساتئ) ټول مسلمانان د خپلو
إِلَّا شِدَّةً الْمُؤْمِنُونَ يَدٌ عَلَى مَنْ سِوَاهُمْ
غيرو (يعني كافرو) په مقابله كې (دنيكو په خورولو او خپل مينځ كې د يو بل مددګار كيدو كې) د يو لاس په شان دي
يُجِيرُ عَلَيْهِمْ أَدْنَاهُمْ وَيَرُدُّ عليهم أقصاهم
يو ادنى مسلمان هم د ټولو مسلمانانو د طرف نه پناه وركولى شي او هغه مسلمان هم حق لري چې د ټولو مسلمانانو نه لرې وي
يَرُدُّ سراياهم على قعيدتهم
او د مسلمانانو لښكر هغه مسلمانانو له هم د (مال غنيمت) حقدار جوړولى شي چې (د لښكر سره نه وي تلى بلكه) ناست وي،
لَا يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ دِيَةُ الْكَافِرِ
(خبردار) هيڅ يو مسلمان دې د يو حربي كافر په بدله كې قتل نه كړى شي او د (ذمي) كافر ديت د
نِصْفُ دِيَةِ الْمُسْلِمِ لَا
مسلمان د ديت په نيمه دى او (د زكوة وصولونكى كاركن دې په خاص طور سره واوري چې) د زكوة
جَلَبَ وَلَا جَنَبَ وَلَا تُؤْخَذُ
څاروي دې رانه خكلى شي او د (زكوة وركونكي دې هم واوري چې هغوى) دې خپل څاروي چرته لرې

| صَدَقَاتُهُمْ | إِلَّا | فِي | دُورِهِمْ». | وَفِي | رِوَايَةٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| نه بوځي، چې زکوة دپاره دې دهغوی کورونو ته لاړشي او وصول دې کړي. او په يو روايت کې دا هم | | | | | |
| قَالَ: «دِيَةُ الْمُعَاهِدِ نِصْفُ دِيَةِ الْحُرِّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | | | | | |
| دي چې د عهد والا ديت د آزاد ددیت په نيمه دی (روايت کړی دی ابوداؤد) | | | | | |

**توضیح**: **لاحلف في الاسلام**: حلف دحا په کسره او دلام په سکون سره عهد او معاهدې ومعاقدې ته وایي. په دې کې دقسم مفهوم موجود دی دجاهلیت په زمانه کې دا عهد داسې وو چې دوه سړي یا دوه فریقو به په خپل مینځ کې قسم خوړلو سره دا معاهده کوله چې کچیرې په تاسو څه مصیبت راشي یا په مونږ کې په چاباندې مصیبت راشي نو مونږ به دیو بل مدد او نصرت کوو په دې مصیبت کې به دواړه شریک وي په جګړه کې به دواړه یوبل سره شریک وي په میراث کې به دیو بل وارثان وي او په تاوان او نقصان کې به شریک وي، که ظالم وي او که مظلوم وي، په دې معاهده کې دظالم نصرت وو او هرجائز او ناجائز کې بې ځایه امداد وو، په دې وجه نبي علیه السلام دې لره منع کړو او چونکه دمیراث والا آیت ددې معاهدې حیثیت لره باطل کړو په دې وجه ددې منع والی وکړی شو.

**لایزیده الاشدة**: په جاهلیت کې چیرته چې به ناجائزه معاهدې کیدې، هلته څه معاهدې داسې هم وې چې په انصاف باندې مبني وې مثلا یوه حلف نامه داسې وه چې دمظلوم مدد به کوو خپلولي به قائموو او دانساني جائزو حقوقو به حفاظت کوو، اسلام دا معاهده باقي وساتله او نبي علیه السلام اعلان وفرمایلو چې اسلام دې لره مضبوطوي، خلاصه دا چه ښه معاهده ښه ده او په دې به عمل کولی شي او بده معاهده بده ده ددې نه به ځان ساتلی شي.

**قعیدتهم**: قعیده او القاعده د مرکز په معنی سره دي دا د اسلامي فوج مرکز اولویې چاونۍ او کیمپ ته وایي، مطلب دادی چې مرکز کومو چهاپه وهونکو دستو لره لرې لرې علاقو ته دفوجي کاروايي دپاره لیږلې وي یا پخپله هغه دستې تلې وي او هغوی ته مال غنیمت حاصل شو نو په هغوی لازم دي چې پوره مال غنیمت راوړي او مرکز کې یې جمع کړي د یرد مفعول به دواړه ځایه محذوف دی چې **الغنیمة** دی دا جمله دماقبل یرد دپاره په منزله دبیان ده بکافر کې کافر نه حربي مراد دی دا داحنافو مسلک دی.

---

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٧١٧ رقم الحدیث ٤٥٨٣ وأحمد فی المسند ٢/١٨٠

**دکافر ددیت مقدار**: دية الكافر نصف دية المسلم : يعني د ذمي كافر ديت دمسلمان د ديت په مقابله کې نيم دی، دحربي کافر دقتل څه ديت نشته دی او د ذمي ديت کې دفقهاو اختلاف دی.

**دفقهاؤ اختلاف**: دامام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد د کافر ديت دمسلمان دديت په نيمه دی، امام شافعي رحمه الله فرمائي چې دغيرمسلم ذمي ديت دمسلمان د ديت په مقابله کې يو ثلث يعني دريمه حصه ده. امام ابو حنيفه رحمه الله فرمائي چې دمسلمان او ذمي ديت برابر دی، يادساته! چې دجمهورو په نزد پوره ديت دولس زره دراهم دي او دديې نيم شپږ زره دراهم دي دديې ثلث څلور زره دراهم دي. داحنافو په نزد پوره ديت لس زره دراهم دي دديې نيم پنځه زره دراهم دي.

**دلائل**: د امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله دليل هم دا زير بحث حديث دی چې په کې دنيم ديت تصريح موجود ده، د امام شافعي رحمه الله دليل د مصنف عبد الرزاق يو حديث دی چې دهغې الفاظ دادي. **انه عليه السلام فرض على كل مسلم قتل رجلا من اهل الكتاب اربعة ألاف درهم (مصنف عبد الرزاق)**

د احنافو امامانو دليل په مراسيل ابو داؤد کې يو مرفوع حديث دی چې دهغې الفاظ دادي.

**عن سعيد بن المسيب قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم دية كل ذي عهد في عهده الف دينار (زجاجة المصابيح ج۳ص۳۰)**

د احنافو امامانو دويم دليل د دارقطني يو روايت دی: **ان النبي صلي الله عليه وسلم ودى ذمياً دية مسلم** د دارقطني بل روايت کې دي. **ان النبي صلي الله عليه وسلم جعل دية المعاهد كدية المسلم.**

د احنافو دريم دليل د ترمذي په باب الديات کې دحضرت ابن عباس مروي حديث دی الفاظ يې دادي: **وعن ابن عباس رضي الله عنهما ان النبي صلي الله عليه وسلم ودى العامريين بدية المسلمين وكان لهما عهد من رسول الله صلي الله عليه وسلم**،، يعنې د قبيلې عامر د دوو معاهدينو په قتل باندې نبي عليه السلام د دوو مسلمانانو د ديت برابر ديت اداء کړو.

ددې احاديثو نه علاوه احنافو دخلفاء راشدينو دقضاګانو او فيصلو نه هم استدلال کړی دی چې د حضرت صديق اکبر رضي الله عنه په زمانه مبارکه کې او دحضرت عثمان په دورمبارک کې دارنګه فيصله شوې وې چې دغيرمسلم ديت دمسلمان د ديت مساوي او برابر ګرځولی شوی وې.

**جواب** : احناف وايي مونږه چې دکومو احاديثو او دخلفاء راشدينو دفيصلو نه استدلال کړی دی هغه دنورو رواياتو نه راجح دي. **لاجلب ولاجنب** : دا لفظ په **کتاب الزکوة** کې هم راغلی دی او په کتاب الجهاد کې هم راغلی دی او دلته هم راغلی دی ددې تعلق کله دزکوة سره وي اوکله د اسونو مقابلو سره وي دواړه ځايه جداجدا مفهومه دي دلته دا جمله د زکوة متعلق ده په دې کې دزکوة وصولونکي کارکن ته ويلی شوې دي چې هغه دې دښار په مرکز کې کيني او زکوة ورکونکي ته دې دا نه وايي چې ته خپل څاروي دلته ښار ته راوله دې دپاره چې زه يې معاينه وکړم او بيا زکوة وصول کړم، په دې کې دمالکانو دپاره ډير مشقت دی. **ولاجنب** : ددې جملې تعلق دمالکانو سره دی چې هغوی خپل څاروي لرې ځای ته بوځي چيرته چې د زکوة وصولونکي کارکن رسيدلی وي مالکانو هغه ته ويلې وي چې دلته راشه زمونږ څاروي اوګوره او د زکوة مال وصول کړه په دې کې دزکوة وصولونکي دپاره ډير مشقت دی. په دې وجه نبي عليه السلام دواړه صورتونه منع کړې دي چې لاجلب ولا جنب ددې جملې د تاکيد اوتوضيح دپاره دحديث مخکنۍ جمله ارشاد وفرمايلی شوه چې : **ولاتوخذ صدقتهم الا في دورهم** دورډ دار جمع ده کورترې مراد دی.

## د قتل خطا په ديت باندې د احنافو مستدل

**﴿۱۱﴾ وَعَنْ خِشْفِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ:**

اوحضرت خشف بن مالک رحمه الله د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل کوي چې هغوي دا وويل

**قَضٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ دِيَةِ**

چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د قتل خطاء ديت دا مقرر کړی دی چې شل اوښانې به هغه وي چې دويم کال ته داخلې

**الْخَطَاِ عِشْرِيْنَ بِنْتَ مَخَاضٍ وَعِشْرِيْنَ ابْنَ مَخَاضٍ ذُكُوْرٍ وَعِشْرِيْنَ بِنْتَ لَبُوْنٍ**

شوې وي او شل اوښان به هغه وي چې دويم کال ته داخل شوې وي او شل اوښانې به هغه وي چې دريم کال ته

**وَعِشْرِيْنَ جَذَعَةً وَعِشْرِيْنَ حِقَّةً". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَاَبُوْ دَاوُدَ**

داخلې شوې وي او شل اوښانې به هغه وي چې پنځم کال ته داخلې شوې وي. (ترمذي، ابوداؤد،

**وَالنَّسَائِيُّ وَالصَّحِيْحُ اَنَّهٗ مَوْقُوْفٌ عَلَى ابْنِ مَسْعُوْدٍ**

نسائي) ددې حديث په باره کې صحيح خبره دا ده چې په ابن مسعود رضي الله عنه باندې موقوف دی يعني دا د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَخِشْفٌ | مَجْهُولٌ | لَا | يُعْرَفُ | إِلَّا | بِهٰذَا | الْحَدِيثِ |

هغوی خپل قول دی او (ددې راوي) خشف يو غير معروف راوي دی چې صرف ددې حديث د وجې نه پېژندلى شي)

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَرُوِيَ | فِي | شَرْحِ | السُّنَّةِ |

يعنې ددې نه علاوه بل يو روايت تري نه نقل نه دى) بغوي رحمه الله په شرح السنة کې داسې نقل کړې دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَدَى | قَتِيلَ | خَيْبَرَ |

چې رسول الله ﷺ د هغه سړي ديت چې په خيبر کې قتل کړى شوى وو (چې د چا تفصيلي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِمِائَةٍ | مِنْ | إِبِلِ | الصَّدَقَةِ | وَلَيْسَ | فِي | أَسْنَانِ | إِبِلِ |

واقعه به په باب القسامة کې بيانيږي) په زكوة کې راغلي اوښانو نه سل اوښان ورکړې وو او د

الصَّدَقَةِ ابْنُ مَخَاضٍ إِنَّمَا فِيهَا ابْنُ لبون. اخرجه الترمذي وابوداود (حسن)[1]

زكوة په دې اوښانو کې هيڅ يو اوښ د يو كال نه كم نه وو بلكه د دوو دوو كالو وو.

**توضيح : عشرين بنت مخاض :** د ديت مخففه د اوښانو د ديت او تقسيم بيان په دې حديث کې راغلى دى د قتل خطاء په ديت مخففه کې د اوښانو تقسيم پنځه قسمه دى په دې کې د چا اختلاف نشته دى، البته امام شافعي رحمه الله دابن مخاض په ځاى دابن لبون قائل دى. يعنې د شل بنت مخاض او شل ابن مخاض او شل بنت لبون او د شل حقو او د شلو جذعو چې كوم ترتيب په زيربحث حديث کې راغلى دى په دې کې امام شافعي د ابن مخاض په ځاى دابن لبون قائل دى، مګر احناف ددې قائل دي چې په دې حديث کې ترتيب ذكر دى زيرنظر حديث چونكه داحنافو مستدل دى په دې وجه شوافعو حضراتو ددې دكمزورې كولو دپاره درې اعتراضات کړې هغوى وايي چې(۱) ددې حديث يوراوي خشف بن مالک مجهول دى(۲)اودا روايت دراصل په حضرت ابن مسعود رضي الله عنه باندې موقوف دى (۳) اودخيبر دمقتول ديت نبي عليه السلام اداء کړى وو په هغې کې ابن لبون وركړې وو ابن مخاض ذكر په دې روايت کې نشته دى نو ابن لبون به اخستلى شي ابن مخاض به پريخودلى شي. **په حديث باندې دشوافعو داعتراض جواب :** دشوافعو حضراتو دا ويل چې خشف مجهول دى ددې جواب محدثينو دا کړى دى چې خشف دخپل ورور مالک طائي نه روايت كوي د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه نه اخلي د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت كوي هغه څنګه مجهول

[1] أخرجه أبوداود في السنن ٤/٦٨٠ رقم الحديث ٤٥٤٥ والترمذي في ٤/٥ رقم الحديث ١٣٨٦ والنسائي في ٨/٤٣ رقم الحديث ٤٨٠٢

دی حالانکه قاعده د اصول حدیث داده چې کله کوم یو کس د دوو کسانو نه روایت کوي نو هغه مجهول نه دی بلکه معروف دی. دا رنګه امام نسائي په شان نیوکه کونکی محدث د خشف بن مالک توثیق کوي ابن حبان خشف لره په ثقاتو کې شمار کړی. امام ترمذي او امام ابوداؤد، ابن ماجه په خپلو کتابونو کې د خشف نه روایت کوي لهذا انصاف تقاضا داده چې په دې روایت باندې څه کلام و نه شي باقي دا اعتراض چې دا روایت موقوف دی نو ملاعلي قاري د دې جواب ورکړی کچیرې دا روایت موقوف هم وي نو څه باک نشته ځکه چې په دې روایت کې د اعداد شرعیه بیان شوی دی په کوم روایت کې چې د مقادیر شرعیو بیان وي هغه غیر مدرک بالقیاس وي چې د مرفوع په حکم کې وي لهذا دا حدیث د مرفوع په حکم کې دی. باقي د خیبر د مقتول دیت کې چیرته چې د ابن لبون لفظ راغلی دی نو په دې روایت کې د دې جواب هم شته چې هغه وخت د صدقې په اوښانو کې ابن مخاض موجود نه وو په دې وجه ابن لبون ورکړی شو، علامه شمني د دې په ځای دا جواب ورکړی دی چې د خیبر د دیت معامله د نبي علیه السلام د طرف نه د احسان او د تبرع په طور باندې وه څه ضابطه نه وه نبي علیه السلام د خپل طرف نه اکثر دیت اداء کړو نو هغه د صلحې یو صورت وو.

## د دیت مقرر کولو دپاره بنیاد څه څیز دی؟

﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: كَانَتْ قِيمَةُ الدِّيَةِ

او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي وایي چې د دیت (د سل اوښانو) قیمت

عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِمِائَةِ دِينَارٍ أَوْ ثَمَانِيَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ

د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې اته سوه دیناره یا اته زره درهمه وو دا رنګه په هغه زمانه د اهل کتابو

وَدِيَةُ أَهْلِ الْكِتَابِ يَوْمَئِذٍ النِّصْفُ مِنْ دِيَةِ الْمُسْلِمِينَ

(یعني عیسائي او یهودي) دیت د مسلمان د دیت نه نیم وو. د هغه نیکه وایي دارنګه چې (د خلیفه

قَالَ: فَكَانَ كَذَلِكَ حَتَّى اسْتُخْلِفَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ

کیدو نه پس) حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوم دیت مقرر کړی وو د هغې تفصیل دا دی، په سرو زرو ساتلو والو

أَلْفَ دِينَارٍ وَعَلَى أَهْلِ الْوَرِقِ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا وَعَلَى أَهْلِ الْبَقَرِ مِائَتَيْ

باندې زر د یناره، او سپینو زرو ساتلو والا باندې دولس زره درهمه، د غواګانو والاو باندې دوه سوه

بَقَرَةٍ وَعَلَى أَهْلِ الشَّاءِ أَلْفَيْ شَاةٍ وَعَلَى أَهْلِ الْحُلَلِ مِائَتَيْ حُلَّةٍ

غواګانې، د چیلو په مالکانو باندې دوه زره چیلۍ او د کپړو تجارت کونکو باندې دوه سوه جوړې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | وَتَرَكَ | دِيَةَ | أَهْلِ | الذِّمَّةِ | لَمْ | يَرْفَعْهَا |
| راوي وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه د ذميانو ديت هم هغسې وساتلو په دې کې يې څه اضافه ونه کړه | | | | | | |
| فِيمَا رَفَعَ من الدِّيَة. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | | | | | | |
| څنګه چې يې په نورو ديتونو کې اضافه وکړه. (ابوداؤد) | | | | | | |

**توضيح** : **قَالَ ففرضها عمر** رضي الله عنه: د دې روايت په وجه د فقهاء کرامو په مينځ کې دا مسئله راوچته شوه چې د ديت په مقررولو کې اصل او معيار څه څيز دی ايا اوښ بنياد دی او که نقد دينار او دراهم د ديت په مقررکولو کې اصل دي يا د دې دواړو څيزونو سره څه نور څيزونه هم د ديت په مقررولو کې اصل دي په دې کې د فقهاو اختلاف دی. **دفقهاو اختلاف** : امام شافعي رحمه الله وائي چې اصل معيار اوښ دی د اوښانو د قيمت په حساب سره به دينار او دراهم مقررېږي سل اوښان يو ديت دی، لهذا د سلو اوښانو د قيمت په حساب سره، مثلاً په پاکستان کې به د روپو حساب کولو سره ديت ورکول وي د اوښانو د ارزانيدو او ګرانيدو سره به د روپو په کمښت او زيادت باندې اثر پريوځي مګر په ديت کې اصل صرف اوښ دی، لهذا د مجبورۍ نه بغير د اوښانو په موجودګۍ کې به د هغې قيمت طرف ته نه شي تللی. د امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله په نزد د ديت په مقررولو کې شپږ څيزونه اصل دي چې دا دي: (۱) اوښ (۲) سره زر (۳) سپين زر (۴) غواګانې (۵) چيلۍ (۶) د جامو جوړې. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د ديت مقررولو کې درې څيزونه اصل دي (۱) اوښ (۲) سره زره (۳) سپين زر. **دلائل** : امام شافعي رحمه الله د زير بحث حديث د هغه حصې نه استدلال کوي چې په هغې کې د اوښانو ذکر حضرت عمر رضي الله عنه بطور اصل کړی دی، د ا رنګه نورو احاديثو کې د سل اوښانو تصريح موجود ده هغې سره د بل څيز ذکر نشته دی لکه د حضرت عبدالله بن عمرو په روايت کې مأة من الابل والا الفاظ راغلي دي چې د دې باب په حديث نمبر ۵ کې مذکور دی، صاحبينو د زيربحث حديث نه استدلال کړی دی چې په کې د شپږو څيزونو تصريح موجود ده. امام ابوحنيفه رحمه الله سل اوښان بطور اصل ګرځولو د پاره د ابوبکربن محمد روايت نمبر ۶ نه استدلال کړی دی چې په کې دا الفاظ دي **في النفس الدية مأة من الابل**. او سره زر او سپينو زرو لره بطور اصل ګرځولو د پاره يې د حضرت عمر رضي الله عنه يو روايت نه استدلال کړی دی چې امام محمد رحمه الله په خپل موطا کې ذکر کړی دی: **قال محمد بلغنا عن عمر رضي الله عنه انه فرض على اهل الذهب في الدية الف دينار و من الورق عشرة آلاف درهم**، بيهقي او ابن

---

[1] أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٦٧٩ رقم الحديث ٤٥٤٢

ابي شيبة هم ددې تخريج کړې دی.

**جواب**: د احنافو د طرف نه شوافعوته دا جواب دی چې کله په احاديثو کې د اوښانو نه علاوه د نورو څيزونو ذکر شته دی نو بيا ديت لره صرف په اوښانو کې منحصر کول جائز نه دي، صاحبينوته دا جواب دی چې په دې شپږ څيزونو کې ابل او فضه او د ذهب نه علاوه څيزونو کې انضباط نشته دی بلکه دزمانې په تغير سره ددې څيزونو په قيمت کې ډير تغير راځي نو دا به اصل څنګه جوړيږي، لهذا صرف اوښ او سره زر او سپين زر د اصل په طور باندې قبلول پکار دي.

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ جَعَلَ الدِّيَةَ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې هغوي دولس زره درهمه |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.(۱) |
| ديت مقرر کړو. (ترمذي، ابوداؤد، نسائي دارمي) |

**نوټ**: ددې حديث تشريح ددې باب په ابتداء کې مکمل طورباندې تيره شوې ده.

## ديت د مقتول دوارثانو حق دی

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: |
| او حضرت عمرو بن شعيب رحمه الله د خپل پلار نه او هغه دخپل نيکه نه نقل کوي وايې چې |
| كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَوِّمُ دِيَةَ الْخَطَأِ عَلَى أَهْلِ الْقُرَى أَرْبَعَ مِائَةِ دِينَارٍ أَوْ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کلو والو باندې دقتل خطاء ديت څلورسوه ديناره يا ددې برابر قيمت (يعني |
| عِدْلَهَا مِنَ الْوَرِقِ وَيُقَوِّمُهَا عَلَى أَثْمَانِ الْإِبِلِ فَإِذَا غَلَتْ |
| د سپينو زرو څلور زره درهمه) مقرر کړو او دا مقدار به دا وښانو د قيمت مطابق وي. هر کله چې د اوښانو په قيمت کې اضافه کيده |
| رَفَعَ فِي قِيمَتِهَا وَإِذَا هَاجَتْ رُخْصًا |
| نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به هم د ديت په مقدار کې اضافه کوله او کله چې به د اوښانو په قيمت کې کمی کيده نو |
| نَقَصَ مِنْ قِيمَتِهَا وَبَلَغَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د ديت په مقدار کې هم کمی کولو هم دا وجه ده چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په زمانه کې د ديت مقدار |

(۱) أخرجه أبوداود فى السنن ۴/۶۸۱ رقم الحديث ۴۵۴۶ والترمذى فى ۴/۶ رقم الحديث ۱۳۸۸ والنسائى فى ۸/۴۴ رقم الحديث ۴۸۰۳ وابن ماجه ۲/۸۷۹ رقم الحديث ۲۶۳۲

| |
|---|
| مَابَيْنَ أَرْبَعِمِائَةِ دِينَارٍ إِلَى ثَمَانِمِائَةِ دِينَارٍ وَعِدْلُهَا مِنَ الْوَرِقِ ثَمَانِيَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ |
| څلورسوه دینارو نه اته سوه دینارو پورې یا ددې برابر قیمت (دسپینو زرو نه اتو زرو درهمو پورې وو. |
| قَالَ: وَقَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَهْلِ الْبَقَرِ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ وَعَلَى أَهْلِ الشَّاءِ أَلْفَيْ شَاةٍ |
| راوي وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام په غوا کانو باندې دوه سوه غواګانې او په چیلو والا باندې دوه زره چیلۍ |
| وَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْعَقْلَ مِيرَاثٌ بَيْنَ وَرَثَةِ الْقَتِيلِ» |
| (ددیت په طور) مقرر کړې وې. دارنګه نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائیل چې ددیت مال دمقتول د وارثانو حق دی |
| وَقَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ عَقْلَ الْمَرْأَةِ بَيْنَ عَصَبَتِهَا |
| اونبي عَلَيْهِ السَّلَام حکم وفرمایلو چې دښځې دیت دهغې په عصباتو باندې دی او قاتل (کچیرې خپل |
| وَلَا يَرِثُ الْقَاتِلُ شَيْئًا. |
| مورث لره قتل کړی دی نو هغه) به د مورث د وراثت نه محرومه وي (نه به هغه ته دمقتول د دیت نه څه حصه |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ.[1] |
| ملاویږي او نه به هغه د میراث نه د څه څیز حقدار وي.) (ابوداؤد، نسائي) |

**توضیح: عدلها:** دا لفظ دعین په فتحې او کسرې دواړو سره دی دبرابرۍ او مساوات په معنی سره دی.

**الورق:** د راء په کسرې سره سپینو زرو ته وایي **اثمان الابل اثمان** د **ثمن** جمع ده او ثمن قیمت ته وایي.

**فاذاغلت:** قیمت ختو او زیاتیدو ته **غلت** وایي یعني اوښان چې کله ګران شي نو **رفع في قیمتها** یعني نبي علیه السلام به د دیت قیمت زیاتولو. **هاجت** : هیجان او حرکت ته وایي ریټ او قیمت غورزیدل او کمیدل مراد دي، **رخص** په راء باندې فتحه ده او خا باندې سکون دی مراد دقیمتونو کمیدل دي یعنې کله چې د اوښانو په قیمت کې کمی به راتللو، نو نبي علیه السلام به د دیت مقدار کې کمی کولو همدا وجه ده چې کله به ددیت مقدار څلورسوه دینارو پورې کمیدو او کله به اته سوه دینارو پورې اوچتیدو.

**ان عقل المرأة** : دا جملې نبي علیه السلام په دې وجه فرمایلې وه چې دا خبره واضحه شي چې دښځې په عاقله باندې د دیت تاوان راځي او ښځه دغلام په شان نه ده چې دهغې عاقله نه وي ځکه

چې غلام په خپل ديت ورکولو پخپله ذمه دار دی دهغه څوک عاقله نه وي.

## په قتل شبه عمد کې قصاص نشته دی

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنْهُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمائيل |
| «عَقْلُ شِبْهِ الْعَمْدِ مُغَلَّظٌ مِثْلُ عَقْلِ الْعَمْدِ وَلَا يُقْتَلُ صاحِبُه». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| د قتل شبه عمد ديت د قتل عمد په شان سخت دی مګر د شبه عمد مرتکب لره به قتلولی نه شي. (ابو داؤد) |

**توضيح** : **عقل**: د دې نه مراد ديت او خون بها ده چې د هغې تفصيل تير شوی دی، مغلظ: د ديت مغلظه او د ديت مخففه بحث او په دې کې د فقهاو د اختلاف تفصيل د دې باب په اوله کې تير شوی دی.

**ولايقتل صاحبه** : دا جمله په حقيقت کې ديوې اشتباه او د وهم جواب دی او وهم د دې حديث د ابتدائي کلام نه په دې شان سره پيدا شو چې د قتل شبه عمد ديت او د قتل عمد ديت لره په دې حديث کې يو شان مغلظ ګرځولی شوی دی چې په هغې سره وهم پيدا شو چې کله په ديت کې دواړه يو شان دي نو قصاص به هم يو شان وي د دې وهم لرې کولو دپاره نبي عليه السلام وفرمايل.

**ولايقتل صاحبه** يعني د شبه عمد د قتل مرتکب به په قصاص کې نه شي قتلولی دلته تشبيه صرف په تغليظ ديت کې ده په قصاص کې نه ده.

## د زخمي شوې سترګې ديت

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْهُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د داسې |
| فِي الْعَيْنِ الْقَائِمَةِ السَّادَّةِ لِمَكَانِهَا. |
| سترګې باره کې چې (د زخمي کيدو نه پس) په خپل ځای باقي پاتې شي مګر د رڼا نه محرومه شي (نظر ترې لاړ شي) |
| بِثُلُثِ الدِّيَةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[2]. |
| دا حکم فرمايلی دی چې د دې ديت (د پوره ديت) ثلث (دريمه حصه) ده. (ابو داؤد، نسائي) |

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ٤/٦٩٤ رقم الحديث ٤٥٦٥ وأحمد في المسند ٢/٢٢٤

[2] أخرجه أبوداود في ٤/٦٩٥ رقم الحديث ٤٥٦٧ والنسائي في ٨/٥٥ رقم الحديث ٤٨٤٠

**توضيح:** **القائمة السادة:** د قائمه مطلب دادی چې سترګه موجوده او قائمه وي او السادة مطلب دادی چې سترګه په خپل ځای باندې برقراره ده يعني سترګې ته داسې زخم لګيدلی دی چې دهغې نظر خو ختم شو مګر هغه په خپل ځای باندې برقراره ده او دسترګې رونق هم برقراره دی په جمال او ښکلا کې څه فرق نه دی راغلی کتونکي ته داسې لګي چې صحيح سالمه سترګه ده نو دحديث ظاهري الفاظ هم دا دي چې په دې صورت کې دريمه حصه ديت دی او همدا د اسحاق بن راهويه مسلک هم دی، مګر عام فقهاء په دې صورت کې **حكومة عدل** لره واجب ګرځوي يعني ماهر عادل تجربه کار سړی دې فيصله وکړي چې دسترګو څومره ديت کيدل پکار دی. دا فيصله به داسې وي چې دې مضروب سړی دې غلام تصور کړي او صحيح سترګې سره دې ددې قيمت ولګولی شي. او بيا دې په ناقصې سترګې سره ددې د قيمت اندازه ولګولی شي چې قيمت څومره کمولی شي څومره قدرې چې قيمت کم شو هم دومره قدرې ديت او تاوان به په زخمي کولو والا باندې راځي. ابن المالک رحمه الله فرمايې چې اسحاق بن راهويه ددې حديث په ظاهري مضمون باندې عمل کړی دی مګر علماء حکومت عدل لره واجبوي په دې وجه چې په دې صورت کې په مکمل طورباندې منفعت ختم شوی نه دی، جمهور علماء دې حديث لره په حکومة عدل باندې حمل کوي او فرمائي چې نبي عليه السلام چې د دريمې حصې فيصله فرمايلې وه داهم دحکومة عدل لاندې وه، د علامه توريشتي په حوالې سره ملاعلي قاري رحمه الله وائي چې که داحديث صحيح ثابت شي نو بيا به په حکومة عدل باندې محمول وي.

﴿۱۷﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ:

او حضرت محمدبن عمرو، دحضرت سلمه نه او هغه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه نقل کوي وايي چې

قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ بِغُرَّةٍ: عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ

نبي عليه السلام د (حاملې) د خيټې دبچي خون بها غره مقرر کړه. او د غرې نه مراد وينځه يا غلام يا

أَوْ فَرَسٍ أَوْ بَغْلٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ

يو اس يا يو قچر دی. ابوداؤد ددې روايت نقل کولو سره ويلې دي چې دې روايت لره حمادبن سلمه

وَخَالِدٌ الْوَاسِطِيُّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو وَلَمْ يَذْكُرْ: أَوْ

او خالد واسطي د محمدبن عمرو نه نقل کړی دی، مګر هغو دواړو کې يو هم د فرس او بغل (يعني

| |
|---|
| فَرَسٍ أَوْ بغل. اخرجه أبوداود.[1] |
| د اس او قچر) ذکر نه دی کړی (ابوداؤد نسائي) |

**نوټ**: علماء فرمائي چې فرس او د بغل الفاظو اضافه ددې حدیث د راوي د طرف نه ده چې شاذ او نامقبول ده ابو داؤد هم دا الفاظ مسترد کړي دي.

## عطائي ډاکټر د مریض د نقصان ذمه دار دی

| |
|---|
| (۱۸) وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| و حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې نبي علیه السلام و فرمایل چې کوم |
| «من تطبب وَلَمْ يُعْلَمْ مِنْهُ طِبٌّ |
| سړی خپل ځان طبیب ښکاره کړي او حال دا دی چې د هغه طبیب کیدل معلوم نه وي (یعني هغه د طب په فن کې څه |
| فَهُوَ ضَامِنٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيّ[2] |
| مهارت نه لري یا کچیري څوک د هغه په لاس مړ شو) نو هغه به ضامن وي. (نسائي) |

**توضیح**: **تطبب**: د باب تفعل نه دی یعني طبیب او ډاکټر نه دی بلکه دوکه او فراډ سره یې خپل ځان طبیب ښکاره کړو او د مریض علاج یې وکړو.

**مسئله**: کچیري یو عطائي او نقلي ډاکټر د کوم مریض علاج وکړو او هغه د علاج نه ښکاره جاهل وُ او مریض ته نقصان ورسیدو نو عطائي ډاکټر به ذمه دار وي او په هغه به ضمان راځي، ددې مسئلې تفصیل په بذل المجهود کې دی د هغې خلاصه داده چې که کوم جعلي (عطائي) ډاکټر د کوم مریض مخکې د یوې دوائي ډیر تعریف وکړو او د هغه د استعمالولو ترغیب یې ورکړو او وې ویل چې وخوره ډیره ښه دوائي ده هغه مریض هغه دوائي وخوړه او مړ شو نو چونکه ددې مریض د خپل عمل دخل په دوائي خوړلو کې راغلو په دې وجه په عطائي ډاکټر باندې په دې صورت کې نه قصاص شته او نه دیت شته البته دې نقلي او نااهل طبیب ته دې په طور د تعزیر سزا ورکړی شي چې د فن طب نه ناواقفه دی جاهل مریض ته غلطه مشوره ولې ورکړه. او کچیري دې عطائي ډاکټر په خپل لاس په دې مریض دوائي وخوړه او مریض مړ شو نو په دې صورت کې به دا نقلي ډاکټر ضامن وي یعني

---

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۷۰۵ رقم الحدیث ۴۵۷۹ والترمذی فی ۴/۱۶ رقم الحدیث ۱۴۱۰ وأحمد فی المسند ۲/۴۹۸

(۲) أخرجه أبوداود فی ۴/۷۱۰ رقم الحدیث ۴۵۸۶ والنسائی ۸/۵۲ رقم الحدیث ۴۸۳۰ وابن ماجه فی ۲/۱۱۴۸ رقم الحدیث ۳۴۶۶

دا فعل دقتل خطاء په حکم کې دی چې په دې کې به دیت په عاقله باندې راځي او قصاص نشته دی. دلته چونکه مریض دې نقلي ډاکټر ته د علاج اجازت پخپله ورکړې وو په دې وجه قصاص ساقط شو او دیت لازم شو. نن صبا په پاکستان کې د عطائي ډاکټرانو نه علاوه دخپل فن ماهر ډاکټران هم د اکثرو مریضانو په قتل کې برابر شریک دي یا خو دا ډاکټران بې پرواهي کوي خامخا آپریشن کولو سره زخمي مریض ته تهکانې لګوي، او دویمه وجه داده چې هغوی ته کوم فن دیهودو او نصاراو په مهربانۍ سره ملاو شوی دی هغه پخپله دیو بیمار ذهن ایجاد دی چې دهغې مکمل اعتماد په اسباب او آلاتو باندې دی، انساني طبیعت او حالات اوتجرباتو ته نه ګوري دا هغه بنیادي نقصان دی چې په زیات مهارت حاصلولو سره زیاتیږي کمیږي نه.

## د دیت د معافۍ یو واقعه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَن | عِمْرَان | بن | حُصَيْنٍ: | أَنَّ | غُلَامًا | لِأُنَاسٍ فُقَرَاءَ |
| او حضرت عمران رضي الله عنه بن حصین وائي چې یو هلک چې د مفلس خاندان سره یې تعلق لرلو د داسې | | | | | | |
| قَطَعَ | أُذُنَ | غُلَامٍ | لِأُنَاسٍ | أَغْنِيَاءَ | | |
| هلک غوږ کټ کړو چې دیو دولت مند خاندان نه وو، دکوم هلک غوږ چې یې کټ کړې وو، دهغه د | | | | | | |
| فَأَتَى | أَهْلُهُ | النَّبِيَّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ فَقَالُوا: |
| خاندان والا د نبي صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړو چې مونږ محتاج او | | | | | | |
| إِنَّا | أُنَاسٌ | فُقَرَاءُ | فَلَمْ | يَجْعَلْ | | |
| مفلس یو (لهذا په مونږ باندې دیت مقرر نه کړې) نبي علیه السلام (دهغوی درخواست منظور کړو) | | | | | | |
| عَلَيْهِمْ | شَيْئًا. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ | وَالنَّسَائِيُّ[1] | | |
| په هغوي باندې یې څه څیز مقرر نه کړو (ابوداؤد، نسائي) | | | | | | |

**توضیح : قطع اذن غلام:** یعني د مالداره خلقو دهلک غوږ د غریب خلقو هلک کټ کړې وو دغلام نه مراد نابالغه ماشوم وو، عبد مراد نه دی ځکه چې که عبد وی نو ددې جرم تاوان پخپله په هغه راتلو ځکه چې دغلام څوک عاقله نه وي هغه دجرم دتاوان پخپله ذمه دار دی. او زیربحث واقعه کې چونکه غوږ کټ کونکی وړوکې ماشوم وو او دماشومانو نه قصاص نه شي اخستی په دې وجه په

(١) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٧١٢ رقم الحديث ٤٥٩٠ والنسائى فى ٨/٢٥ رقم الحديث ٤٧٥١

عاقله باندې دیت راغلو مګر هغه عاقله دومره غریب وو چې د دیت تحمل یې نه شو کولی په دې وجه دیت هم ساقط شو ځکه چې په فقیره عاقله باندې دیت نه راځي.

## د قتل شبه عمد او قتل خطاء دیت

### اَلْفَصْلُ الثَّالِث

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ عَنْ عَلِيّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: دِيَةُ شِبْهِ الْعَمْدِ |
| حضرت علي کرم الله وجهه نه نقل دي چې هغوی وفرمایل د قتل شبه عمد دیت (سل) اوښانې ورکول واجب دي |
| أَثْلَاثًا ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ حِقَّةً وَثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ |
| په دې تفصیل سره درې دیرش اوښانې هغه دي چې څلورم کال کې داخلې شوې وي او درې دیرش اوښانې |
| جَذَعَةً وَأَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ ثَنِيَّةً |
| هغه دي چې پنځم کال کې داخلې شوې وي او څلوردیرش اوښانې هغه دي چې شپږم کال کې داخلې |
| إِلَى بَازِلِ عَامِهَا كُلُّهَا خَلِفَاتٌ وَفِي رِوَايَةٍ: |
| شوې وي او اته نهه کال ته رسیدلې وي او ټولې حاملې وي. او یو بل روایت کې د حضرت علي رضي الله عنه |
| قَالَ: فِي الْخَطَأِ أَرْبَاعًا: |
| نه نقل دي چې هغوی وفرمایل چې د قتل خطاء په دیت کې څلور قسمه (سل) اوښانې ورکول واجب دي |
| خَمْسٌ وَعِشْرُونَ حِقَّةً وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ |
| په دې تفصیل سره چې پنځویشت هغه وي چې د درې کالو وي او پنځوس هغه وي چې د |
| جَذَعَةً وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ لَبُونٍ |
| څلور څلور کالو وي او پنځویشت هغه وي چې د دوو دوو کالو وي او پنځویشت هغه وي چې د |
| وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ مَخَاضٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| یو یو کال وي. (ابو داؤد) (د دې روایت آخري حصه د احنافو دلیل دی) |
| ﴿۲۱﴾ وَعَن مُجَاهِدٍ قَالَ: قَضَى عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ |
| او حضرت مجاهد رحمه الله نه روایت دی چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د قتل شبه عمد دیت کې |

[1] أخرجه أبوداود في ٤/٦٨٥ رقم الحديث ٤٥٥١

ثَلَاثِينَ حِقَّةً وَثَلَاثِينَ جَذَعَةً وَأَرْبَعِينَ
دیرش اوښانې د درې درې کالو او دیرش اوښانې د څلور څلور کالو او څلویښت اوښانې بلاربې چې
خَلِفَةً مَا بَيْنَ ثَنِيَّةٍ إِلَى
شپږو کالو نه واخله تر نهو کالو پورې رسیدلې وي د ورکولو حکم وکړو (ګویا دا روایت د امام
بَازِلٍ عَامِهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]
شافعي رحمه الله د مسلک موافق دی) (ابو داؤد)

**نوټ:** د کتاب القصاص د حدیث نمبر ۲۵ په توضیح کې د اوښانو د عمر بیان دی هلته یې اوګورئ.

## په خیټه کې د بچي دیت

﴿۲۲﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي الْجَنِينِ يُقْتَلُ فِي بَطْنِ
او حضرت سعيد بن مسيب وايي چې نبي كريم ﷺ د خیټې د بچي دیت چې ووژلی شي یوه
أُمِّهِ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ وَلِيدَةٍ. فَقَالَ الَّذِي قُضِيَ عليه:
غره یعني یو غلام یا یوه وینځه مقرر کړه. په کوم سړي چې دا دیت واجب کړی شوی وو هغه عرض وکړو
كَيْفَ أُغْرَمُ مَنْ لَا شَرِبَ وَلَا أَكَلَ وَلَا نَطَقَ
چې زه د هغه سړي تاوان څنګه ورکړم کوم چې څه څیز نه څکلی او نه یې خوړلی وي او نه یې خبرې کړې وي
وَلَا اسْتَهَلَّ وَمِثْلُ ذَلِكَ يُطَلُّ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
د دې قسمه قتل خو ساقط کولی شي نبي عليه السلام (چې د دې سړي دا خبرې واوریدې) نو وې فرمایل
«إِنَّمَا هَذَا مِنْ إِخْوَانِ الْكُهَّانِ». رَوَاهُ مالك
چې د دې نه علاوه نور څه وویلی شي چې دا سړی د کاهنانو ورور دی (امام مالک او امام نسائي خو
وَالنَّسَائِيُّ مُرْسلا[2] وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ
دې روایت لره د ارسال په طریقې باندې (یعني د صحابي راوي د ذکر کولو نه بغیر) نقل کړی دی مګر ابو داؤد

---

(1) أخرجه أبوداود فى ٤/٦٨٥ رقم الحديث ٤٥٥٠ وأحمد فى المسند ١/٤٩

(2) أخرجه النسائى ٨/٤٩ رقم الحديث ٤٨٢٠ ومالك فى الموطأ ٢/٨٥٥ رقم الحديث ٦ من كتاب العقول

| عَنْهُ | عَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | مُتَّصِلًا[1] |
|---|---|---|---|---|

دحضرت سعيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه او هغه د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه په طريقې د اتصال نقل كړې دې.

**توضيح**: **جنين**: دمور په خيټه كې چې كوم بچى وي د پيدا كيدونه مخكې دې ته جنين وائي.

**غرم**: **غرامه** تاوان ته كولو ته وايې ديت مراد دى. **استهل** د پيدائش په وخت كې چې كله ماشوم ژوندى وي نو هغه په چغو چغو ژاړي دې ته استهل ويلى شوى دى، دا كلمه ددې نه مخكې د نطق په منزله دتفسير ده اگرچه دا كلمه ددې نه زياته غيرمانوس ده مگر دسجعې جوړولو دپاره دې سړي هغې لره مؤخر كړه لكه چې څنگه **اكل** لره يې دسجعې په غرض سره شرب نه مؤخر كړه. حالانكه اكل مخكې ذكر كولى شي او شرب بعد كې وي **يطل** دا مشدد دى دمجهول صيغه ده د لغو اوضائع كولو په معنى سره دى هغه سړي د جاهليت درواج او دستور مطابق دا كلام كړى دى چې د داسې بچې وينه ضائع ده حالانكه دا نظريه د اسلام نه ده په اسلام كې خو باقاعده ددې ديت دى چې د غره په نوم سره مشهور دى. **اخوان الكهان** دا دكاهن جمع ده كاهن هغه سړي ته وايې چې د غيب دانى دعوي كوي او دمستقبل د غلطې ملطې خبرې په رنگ روغن سره په بنائسته انداز سره پيش كوي دې دپاره چې په دې خبرو سره دخلقو زړونه خپل طرفته مائل كړي او دشريعت خلاف خپل باطل نظريات خواره كړي په دې وجه نبي عليه السلام په دې سړي باندې ناراضه شو.

**سوال**: اوس سوال دا دى چې مسجّع او مقفى كلام خو په احاديثو كې ډير راغلى دى دا رنگه په قرآن عظيم كې هم دارنگه كلام په فواصلو سره موجود دى بيا دلته په دې باندې نكيريې ولې وفرمايلو؟

**جواب**: ددې جواب دادى چې مطلقًا مسجّع كلام مذموم نه دى بلكه هغه مذموم دى چې په تكلف سره او انتهائي خودساختگۍ او تصنّع سره راوړى شي لكه څنگه چې دې سړي د تقديم او تاخير قواعد مات كړل صرف د سجعې په غرض سره يې يو باطل كلام كړى دى، بهرحال كچيرې ماشوم په خيټه كې مړشي نو دهغې همدا حكم دى كوم چې نبي عليه السلام بيان فرمايلى دى چې غره واجب ده، يا پنځه سوه درهم دي، او كچيرې ژوندى پيدا شي او چا دپيدا كيدو نه پس قتل كړو نو په دې كې قصاص دى.

✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿

---

[1] أخرجه أبوداود فى السنن ۷۰۱/رقم الحديث ۴۵۷۶ وعن مسلم نحوه ۳/۱۳۰۹ رقم الحديث (۱۶۸۱-۳۶) وأخرجه أحمد فى المسند ۲/۲۷۴

# باب مالايضمن من الجنايات
# په کومو جناياتو کې چې تاوان نشته دى

جنايات: د جناية جمع ده چې د جرم کولو او نقصان ته ويلى شي لايضمن د مجهول صيغه ده، د ضمان او تاوان په معنى سره دى، د دې باب نه مخکې د هغه نقصاناتو او جرمونو بيان وو په کوم کې چې تاوان راتلو او اوس د هغه جرمونو ذکر دى د کوم په کولو سره چې تاوان نه راځي، او نه څه معاوضه راځي.

## هغه افعال او اعمال په کوم کې چې تاوان نشته دى

## الفصل الاول

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْعَجْمَاءُ جَرْحُهَا |
| حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې نبي صلى الله عليه وسلم وفرمائيل د څاروو زخمي کول معاف دي، |
| جُبَارٌ وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَالْبِئْرُ جُبَارٌ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| په غار کې د وبيدل هم معاف دي او کوهي ته پريوتل هم معاف دي. (بخاري ومسلم) |

**توضيح: د څاروو په نقصان باندې د تاوان مسئله**: العجماء جرحها جبار: عجماء ځناورو او څاروو ته وايې دې ته عجماء په دې وجه ويلې شو چې دا خبرې نه شي کولى عجم او عجمي د دې نه دى ځکه چې د عربو په مقابله کې عجم ګويا ګونګيان دي، عجماء مؤنث دى عجم مذکر دى جرحها جرح زخم او نقصان کولو ته وايې دا لفظ د جيم په فتحې سره مصدر دى يعني زخم لګول او زخمي کول. او د جيم په ضمې سره اسم دى چې د زخم په معنى سره دى جبار د هدر او باطل په معنى سره دى. يعني د څاروي د چا څه مالي نقصان وکړو نو د څاروي په مالک باندې هيڅ تاوان نشته دى، اوس د دې مسئلې تفصيل داسې دى: د احنافو په نزد مسئله داده چې کچيرې ځناور مثلاً اسونه يا څاروو سره سړى نشته دى او څاروو منډه کړه او د چا د فصل نقصان يې وکړو يا يو سړى يې د خپو لاندې چخلي کړو مړيې کړو نو که په ورځ کې دا حادثه پيښه شوه يا د شپې راپيښه شوه په دې صورت کې په مالک تاوان نشته دى، او کچيرې د څاروو سره مالک موجود دى او څاروو

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۲۵۶ قم الحديث ۶۹۱۳ ومسلم في ۳/۱۳۳۴ رقم الحديث (۱۷۱۰-۴۵) وأبوداود في السنن ۴/۷۱۵ رقم الحديث ۴۵۹۳ والترمذي في ۳/۶۶۱ رقم الحديث ۱۳۷۷ والنسائي في ۵/۴۵ رقم الحديث ۲۴۹۶

نقصان وکړو برابره خبره ده که سړی پرې سور وي یا مخکې روستو وي او که څاروو څه قسمه نقصان وکړو برابره خبره ده که په سر سره یې وکړو یا په خپو سره یې وکړو په دې صورت کې به په مالک باندې تاوان راځي ګویا داررومدار د سړي په موجود کیدو او نه کیدو باندې دی.امام شافعي رحمه الله فرمائي چې د څاروو په نقصان کولو سره د تاوان راتلو او د نه راتلو دپاره داررومدار په سړي باندې نه دی بلکه په شپه او ورځ باندې دی کچیرې څاروو نقصان دشپې وکړو نو په مالک باندې به جرم وي ځکه چې دشپې څارو لره تړل او سنبالول د مالک ذمه داري ده هغه کوتاهي وکړه لهذا تاوان به ورکوي او که څاروو نقصان د ورځې وکړو نو په مالک باندې به هیڅ ذمه داري نه وي ځکه چې د ورځې خپل حفاظت او د پټي حفاظت په هر سړي باندې خپله ذمه داري ده د څاروو په مالک باندې د حفاظت ذمه داري نشته دی، شوافعو حضراتو د ورځې او شپې دې فرق لره دابوداؤد شریف د حضرت براء بن عازب دیو روایت نه اخستی دی په کوم کې چې دا فرق بیان کړی شوی دی، ائمه احنافو د مذکوره حدیث نه استدلال کړی دی چې په خپل مقصد کې واضح دی او د ابوداؤد حدیث مرفوع نه دی بلکه موقوف دی، حضرت شاه انورشاه صاحب فرمایلي دي چې په دې مسئله کې به عرف ته کتلی شي چې دعلاقې او ملک رواج او دستور څه دی. دڅاروو ددې مسئلې نه دټریفک پوره نظام مستنبط کولی شي چې دګاډي سائق اوقائد ته وکتلی شي او په دې باندې حکم ولګولی شي. **والمعدن** ددې لفظ یو مطلب دادی چې که یو غار کنستلو والا په مزدوری کار کولو چې د غار ملبه دپاسه پرې راپریوتله او دهغې لاندې ډوب شو نودې تاوان په چاباندې نشته، دویم مطلب دادی چې یو سړي معدنیات او خزانه راویستله او په زمکه کې کنده پاتې شوه په دې کې څوک راپریوتلو نو په چاباندې تاوان نشته.

**والبئرجبار** یعني یو سړي په خپله زمکه کې کوهی وکنستلو او په دې کې څوک وریریوتلو نو ددې تاوان په چاباندې نشته دی، ها کچیرې کوهی یې د خلقو د تیریدو په لاره کې وکنستلو او په دې کې څوک پریوتلو او مړ شو نو بیا به تاوان ورباندې راځي، ددې لفظ دویم مطلب دادی چې کچیرې یو سړي د کوهي د کنستو دپاره مزدور وساتلو او په مزدور باندې د کوهي ملبه وریریوتله نو ددې تاوان په چاباندې نشته دی.

## په مدافعت کې څه تاوان نه واجبیږي

﴿۲﴾ وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت یعلي بن امیه وایي چې (د غزوه تبوک) دصبر کونکي لښکر سره د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره

جَيْشَ الْعُسْرَةِ وَكَانَ لِي أَجِيرٌ فقاتَلَ إِنساناً

(په جهاد کې) شریک وم ماسره یو نوکر هم وو، هغه (په څه خبره) یو کس سره په جنګ شو او په دې

فعض أَحدهمَا الْآخَرِ فَانْتَزَعَ الْمَعْضُوضُ يَدَهُ

دواړو کې یو د بل لاس باندې چک ولګوه مګر هغه په خپل لاس د چک لګونکي خله را اونیوله چې د هغه

مِنْ فِي الْعَاضِ فَأَنْدَرَ ثَنِيَّتَهُ فَسَقَطَتْ

غابښونه لاندې راپريوتل. هغه سړی د چا چې غابښونه وتلي وو (فریاد کولو د پاره) د نبي عليه السلام په

فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خدمت کې حاضر شو (دې د پاره چې نبي عليه السلام د هغه په حق کې فیصله وکړي) مګر نبي عليه السلام د

فَأَهْدَرَ ثَنِيَّتَهُ وَقَالَ: «أَيَدَعُ يَدَهُ

هغه د غابښونو څه تاوان واجب نه کړو او هغه ته یې وفرمایل چې ایا هغه کس خپل لاس ستا په خُله کې

فِي فِيكَ تَقْضِمُهَا كَالْفَحْلِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

پریخوستلی وی دې د پاره چې ته په هغې داسې شخوند ووهې لکه څنګه چې اوښ شخوند وهي. (بخاري ومسلم)

**توضیح : جیش العسرة :** یعني د تنګۍ لښکر، د دې نه مراد غزوه تبوک ده د روم باچا ته چا ویلي وو چې مسلمانان د خشک سالۍ د وجې نه د جنګ قابل نه دي په دې وجه بغیر د تاخیر نه په حجاز باندې حمله کول پکار دي هرقل تیاری شروع کړو نبي علیه السلام ته چې کله اطلاع ملاو شوه نو هغوی په جنګ کې مخکښوالی (سبقت) مناسب وګڼلو او په مدینه کې یې نفیرعام دیرش زره لښکر سره دسختې تنګۍ په حالت کې د رجب (بزرګې) په میاشت ۹هجري کې تبوک طرف ته روان شول، حضرت عثمان او نورو صحابو رضي الله عنهم په چنده کې ډیره حصه واچوله، هرقل ویریدو او میدان ته رانغلو نبي علیه السلام شلو ورځو پورې په تبوک کې قیام وفرمایلو بیا کامیاب اوکامران مدینې منورې ته واپس شول. (المرقات ۷۴/۷)

**اجیر** یعني نوکر او مزدور **فقاتل انساناً** د قاتل نه مراد قتل کول نه دي بلکه صرف جګړه کول دي **عض** په غابښونو سره کټ کولو ته وایې د نصرینصر نه د ماضي صیغه ده **من في العاض** في شد سره

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ٤/٤٤٣ رقم الحدیث ٢٢٦٥ ومسلم فی ٣/١٣٠١ رقم الحدیث

خولې ته وايې او عاض اسم فاعل دی کټ کولو والا مراد دی (المرقات ۷۴/۷) **فاندر** دباب اندرار نه، د غاښ غورزیدو په معنی سره دی **ثنیة** مخې ته غاښونه ترې مراد دي **تقضم** د کټ کولو او د غاښونو دلاندې شخوند وهلو په معنی سره دی **الفحل** اوښ ته وايې. (المرقات ۷۴/۷)

**مسئله**: قاضي عیاض رحمه الله فرمايې چې په قصد سره يو حمله کونکی حمله کوي نو دهغې دفاع دپاره سړی څه متعین طريقه استعمالوي نو په دې کې څه تاوان نشته دی ځکه چې دفاع کونکی مجبور دی او حمله کونکي ته چې کوم نقصان رسیدلی دی دا ددې حملې او زياتي نتيجه ده چې دهغې هغه پخپله ذمه دار دی. **شرح السنة** کې ليکلې دي همدا حکم دهغې ښځې دی چې هغې دخپلې دفاع کولو دپاره کوم بدکار لره قتل کړو په هغې باندې څه تاوان نشته دی. ملاعلي قاري فرمايې اول دې د نرمۍ نه سړی کار واخلي کچيرې دجنګيدو نه بغير کار نه کيدو نو بيا دې مړ کړي. (المرقات ۷۴/۷)

## د ځان او مال په حفاظت کې وژلی شوی شهید دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايې چې ما دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا فرمان واوريدلو چې |
| «مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ» بخاري و مسلم (صَحِيح)[1] |
| کوم سړی د خپل مال دپاره ووژلی شو نو هغه شهيد دی. (متفق عليه) |
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايې چې يو سړي (دنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضريدو سره) |
| فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ جَاءَ رَجُلٌ |
| عرض وکړو ای دالله رسوله! ماته ووائې کچيرې يو سړی مانه زما مال په (زبردستۍ) وړلو |
| يُرِيدُ أَخْذَ مَالِي؟ قَالَ: «فَلَا تُعْطِهِ |
| دپاره راشي (نو آيا زه خپل مال هغه ته حواله کړم؟) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل نه؟ ته هغه ته خپل مال مه |
| مَالَكَ» قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَاتَلَنِي؟ |
| ورکوه هغه عرض وکړو دا وښائې که چيرې هغه ما سره جګړه کوي (نو زه به څه کوم) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |

[1] أخرجه البخاری فی صحیحه ۵/۱۲۳ رقم الحدیث ۲۴۸۰ وأخرجه مسلم فی ۱/۱۲۴ رقم الحدیث (۱۴۱-۲۲۶) وأخرجه أبوداود فی السنن ۵/۱۲۷ رقم الحدیث ۴۷۷۱ بنحوه والترمذی فی ۴/۲۱ رقم الحدیث ۱۴۱۹

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: «قَاتِلْهُ» قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَتَلَنِي؟ قَالَ: «فَأَنْتَ شَهِيدٌ». |
| وفرمایل ته هم ورسره وجنګیږه هغه عرض وکړو کچیرې هغه زه ووژلم نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل ته شهید شوې |
| قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَتَلْتُهُ؟ قَالَ: |
| تپوس وکړی شو چې که هغه مړشو (نو دهغه به څه حشر کیږي.؟) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل هغه به |
| «هُوَ فِي النَّارِ». (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| دوزخ ته ځي (اوپه تابه دهغه څه وبال نه وي). (مسلم) |

**توضیح**: ارئیت: یعنې هغه سړي نبي علیه السلام ته وویل چې تاسو ماته وښائي. **قاتله** یعنې کچیرې هغه ستانه مال په زور اخلي اوپه دې کې تاسره جنګ کوي نو ته هم ورسره وجنګیږه. **هوفي النار** یعنې دهغه په قتلولو سره به په تاباندې څه قسمه وبال نه راځي بلکه هغه به دوزخ ته ځي. (المرقات ۷۵/۷)

دا دواړه حدیثونه مسلمانانو ته تعلیم ورکوي چې مسلمانان دخپل ځان اومال او عزت دحفاظت حق لري او د حمله کونکي هم په کلکه سره مقابله کولی شي. دمسلمان طریقه دانه ده چې څوک دې دهغه د عزت سره لوبې کوي او دهغه مال په ناجائزه سره په زور اخلي اودا دې دکم همتۍ او بزدلۍ مظاهره کوي اوخپه په خپه واړوي او کیني او دعزت نفس د دې حق نه لاس ووینځي، بلکه مسلمان ته داحق حاصل دی چې هغه دې حمله کونکي فسادي سره ښه په ځوانمردۍ او جرأت او همت سره مقابله وکړي او د ذلت د ژوند نه دعزت مرګ ته ترجیح ورکړي، اوکچرې دې فتنه اچونکي فسادي ده لره قتل کړو نو دا شهید دی او کچیرې ده هغه فسادي لره قتل کړو نو دهغه وینه بې قیمته ده او هغه به دوزخ ته ځي، اسلام دعزت نفس دا حق مسلمان ته هغه وخت ورکړی دی هرکله چې حمله کونکی هم مسلمان وي او که حمله کونکی دکافرانو لښکر وي لکه څنګه چې د مقبوضه کشمیر اوبوسنیا او فلسطین او افغانستان او چیچنیا صورت حال دی نو هلته به په طریق اولی سره مسلمانان وسله راوچتوي او دجهاد میدان ته به ورکوزیدو سره به دځان اومال عزت او د عقیدې او ایمان او وطن دحفاظت حق حاصل وي. (المرقات ۷۶/۷)

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحیح ۱/۱۲۴ رقم الحدیث (۱۴۰-۲۲۵)

## دچا کورته وربنکاره کیدلو سره کتل جائز نه دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغوی د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا فرمان واوریدو چې که |
| «لَوِ اطَّلَعَ فِي بَيْتِكَ أَحدٌ |
| ستا دروازه بنده وي او د هغه په چاودونو کې) څوک سړی ستا کورته ګوري حال دا دی چې تا هغه |
| ولمْ تَأْذن لَهُ فخذفته بحصاة ففقأت |
| (کورته دراتللو) اجازت نه وي ورکړی او هغه تا په کنکرو (وړو کاڼو) ویشتلو چې په دې کنکرو سره |
| عَيْنَهُ مَا كَانَ عَلَيْكَ مِنْ جُنَاحٍ» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| د هغه سترګه راووتله نو په تا باندې څه ګناه (تاوان) نشته. (بخاري و مسلم) |

**توضیح : فخذفته** : د دوو ګوتو په مینځ کې نیولو سره په وړو کې کنکري (کاڼي) ویشتلو ته حذف وائي چې په هغې سره عمومًا سترګه راوتلی شي جمراتو لره د ویشتلو دپاره چې کوم کنکري استعمالیږي هغې ته هم حذف وایي. (المرقات ۷/۷۶)

**ففقأت عینه**: یعني د دې کنکري (کاڼي) په ویشتلو سره د دې کتونکي سترګه راووتله. **من جناح**: یعني په تا باندې به څه قسمه ګناه نه وي د هغه سترګه بې قیمته شوه څه قسم تاوان به نه وي. امام شافعي رحمه الله په دې ظاهري حدیث باندې داسې فتوی ورکړې ده چې په ویشتونکي باندې به څه تاوان نه راځي، بعضې علماو دا شرط لګولی دی چې مخکې د هغه کس منع کول ضروري دي او که هغه نه منع کیږي نو بیا دې وویشتلی شي. امام ابو حنیفه رحمه الله دې حدیث لره په تغلیظ وتشدید او زجر او توبیخ او مبالغې باندې حمل کوي، او که چا واقعي د چا سترګه راویستله نو ضمان او تاوان به پرې راځي په ظاهري حدیث سره د تاوان نفي کیږي. (المرقات ۷/۷۶)

## پخپله دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ردعمل

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَن سهل بنِ سعد: أَنَّ رَجُلًا اطَّلَعَ فِي جُحْرٍ فِي بَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یو سړي دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دروازه کې کتل او |

[1] أخرجه البخاری فی ۱۲/۲۱۶ رقم الحديث ۶۸۸۸ ومسلم فی ۳/۱۶۹۹ رقم الحديث ۲۱۵۸ والنسائی ۸/۶۱ رقم الحديث ۴۸۶۱

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِدْرًى يَحُكُّ بِهِ رَأْسَهُ فَقَالَ: «لَوْ أَعْلَمُ | | | | | | | | |
| هغه وخت نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په ګومنز سره خپل سر ګرولو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وې فرمايل کچيرې زه پوهه شوی وم | | | | | | | | |
| أَنَّكَ | تَنظُرُنِي | لَطَعَنتُ | بِهِ | فِي | عَيْنَيْكَ | | | |
| چې ته (قصداً د دروازې په چاودونو کې) ماته ګورې نو ما به (دا ګومنز) ستا په سترګو کې منډله | | | | | | | | |
| إِنَّمَا | جُعِلَ | الِاسْتِئْذَانُ | | | | | | |
| (آيا تا ته پته نشته چې د چا غير کورته د راتلو په وخت) د اجازت اخستلو حکم هم د دې سترګو د وجې | | | | | | | | |
| مِنْ | أَجْلِ | الْبَصَرِ» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | | |
| نه ورکړې شوی دی (چې هغه په چا غير محرم باندې ونه لګي) (بخاري و مسلم) | | | | | | | | |

**توضیح**: مدری: دا د میم د لفظ په کسرې او د دال په سکون او د راء په تنوین سره دی د دې لفظ د مفهوم په تعین کې د علماو مختلف اقوال دي بیا هم ټول اقوال د معنی په اعتبار سره نزدې نزدې دي، په نهایه د ابن اثیر کې لیکلې دي چې د لرګي یا وسپنې نه جوړ شوی یو څیز دی چې د ګومنز د غابنونو په شان همشکل وي مګر د هغې نه اوږد وي کومو خلقو سره چې ګومنز نه وي هغوی د دې په ذریعه سره د سر یو ځای شوې ویښتو لره کولاووي او صحیح کوي یې. د فارسي د لغت په مشهور کتاب صراح کې لیکلي دي چې مدرا *سیخ وشاخ بزرگ که زنان بوی فرق سر راست کنند* یعني دا یو شاخ والا اوږد سیخ او کونډه وي چې په دې سره ښځې د سر په ویښتو کې لار صحیح کوي. ملاعلي قاري رحمه الله فرمايي چې بعضو علماو دا خوښ کړي دي چې دا د خلال په شان د وسپنې یو سیخ دی چې د هغې سر کوږ شوی وي غټ خلق په دې سره د بدن هغه حصه ګروي چیرته چې لاس نه رسي دا معنی د حدیث زیاته موافق ده. (المرقات ۷/۷۷)

په مظاهر حق کې یې د دې ترجمه په پشت خار ګومنز سره کړې ده، بهرحال دا یو قسم آله ده په کومې سره چې ویښته جوړول او د بدن هغو حصو لره ګرولی شي چیرته چې لاس نه رسي. د دې حدیث نه معلومه شوه چې کچیرې چا واقعي په دې حدیث باندې عمل وکړو او د کتونکي سترګه یې ضائع کړه نو تاوان پرې نه راځي، احناف دې حدیث لره په زجر او توبیخ او تغلیظ او تشدید باندې حمل کوي. د حدیث نه دا هم معلومه شوه چې کچیرې کورونو والو پخپله دروازه کولاو کړې وه او د کتونه بغیر نظر پخپله د ننه ځي نو بیا د کتونکو غلطي نه ده بلکه د کوروالو غلطي ده.

(۱) أخرجه البخاری فی ۱۲/۲۴۳ رقم الحدیث ۶۹۰۱ ومسلم فی ۱۶۹۸ رقم الحدیث (۲۱۵۶-۴۰) والترمذی فی السنن ۵/۶ رقم الحدیث ۲۷۰۹

## خامخا کنکري (واړه کاڼي) مه غورزوئ

﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ أَنَّهُ رَأَى رَجُلًا يَخْذِفُ
او حضرت عبدالله بن مغفل نه روایت دی چې هغوی یو سړی په غټې ګوتې او د شهادت په ګوتې سره په کاڼو ویشتلو

فَقَالَ: لَا تَخْذِفْ فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْخَذْفِ
باندې ولیدلو نو وې فرمائیل چې کاڼي مه غورزوه ځکه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د داسې کاڼو ویشتلو نه منع فرمایلې ده

وَقَالَ: «إِنَّهُ لَا يُصَادُ بِهِ صَيْدٌ وَلَا يُنْكَأُ بِهِ عَدُوٌّ
او فرمایلې یې دي چې په داسې کاڼو غورزولو سره نه خو ښکار کولی شي او نه (د دین) دښمن لره زخمي کولی شي

وَلَكِنَّهَا قَدْ تَكْسِرُ السِّنَّ وَتَفْقَأُ الْعَيْنَ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱)
البته داسې کاڼو غورزولو سره غاښونه ماتیږي او سترګې راوځي. (بخاري و مسلم)

**لاینکاء**: په همزې سره هم دی او بغیر د همزې لاینکی هم دی د زخمي کولو په معنی سره دی.

## په مجلسونو کې وسله سنبالول پکار دي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا مَرَّ أَحَدُكُمْ
او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل کله چې په تاسو کې څوک

فِي مَسْجِدِنَا وَفِي سُوقِنَا وَمَعَهُ نَبْلٌ فَلْيُمْسِكْ
زمونږ مسجد او زمونږ بازار ته راځي یا هلته نه تیریږي او هغه سره غشي وي نو هغه له پکار دي چې هغه بند کړي

عَلَى نِصَالِهَا أَنْ يُصِيبَ أَحَدًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ مِنْهَا بِشَيْءٍ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۲)
(یعني د هغې په تیلې د ې لاس کیږدي) د ې د پاره چې په د ې سره چا مسلمان ته ضرر ونه رسي. (بخاري و مسلم)

**توضیح**: **نصال**: د غشي څوکې ته او میوې ته وایي مراد ترې ټولې هغه وسلې دي په کوم سره چې د زخمي یا هلاکیدو خطره وي که هغه توره وي، غشي وي یا ټوپک وي یا خنجر وغیره وي د ې لره په بازارونو، مسجدونو، او عامو مجمعو کې په احتیاط سره خپل ځان سره ساتل پکار دي، د ې د پاره چې په غلطۍ سره څوک زخمي نه شي د د ې حدیث نه معلومه شوه چې په اسلامي معاشره کې د

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۹/۶۰۷ رقم الحدیث ۵۴۷۹ ومسلم فی ۳/۱۵۴۷ رقم الحدیث (۱۹۲۴-۵۴).

(۲) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۳/۲۴ رقم الحدیث ۷۰۷۵ ومسلم فی ۴/۲۰۱۹ رقم الحدیث (۲۶۱۵-۱۲۴) وأبوداود فی السنن ۳/۷۰ رقم: ۲۵۸۷

وسلې په اخستلو، ورکولو، او اوچتولو او ګرځولو باندې پابندي نشته دی، اسلام دناجائز چلولو او استعمالولو سزا مقرر کړې ده چې دهغې په وجه سره وسله دکوم مسلمان دځان دپاره څه قسم خطره نه شي پيدا کولی، شيخ التفسير حضرت مولانا احمد علي لاهوري رحمه الله په خپل کتاب اسلام او وسله کې ليکلې دي چې دمسلمان دپاره وسله ساتل او زده کول او داسلام په دشمنانو باندې استعمالول فرض دي، او دلائسنس پابندي چې کومو کفارو لګولې ده احتجاج کولو سره دې دا منسوخ کړی شي. (المرقات ۷۸/۷)

## کوم مسلمان طرف ته په وسلې سره اشاره مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل په تاسو کې څوک دې خپل |
| يُشِيرُ أَحَدُكُمْ عَلَى أَخِيهِ بِالسِّلَاحِ فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي لَعَلَّ |
| (مسلمان) ورور طرف ته په وسلې سره اشاره نه کوي په دې وجه چې هغه ته نه ده معلومه چې شايد |
| الشَّيْطَانَ يَنْزِعُ فِي يَدِهِ فَيَقَعُ فِي حُفْرَةٍ من النَّارِ» (بخاري و مسلم) (صَحِيحٌ)[1] |
| شيطان دهغه دلاس نه وسله راکاږي او دهغې په وجه سره هغه دوسلې مالک د دوزخ اُور کې واچولی شي. |

**توضيح**: فانه اي احدکم: يا دا ضمير شان دی نو دمرجع ضرورت نشته ينزع دضرب يضرب نه راغورزولو او د راښکلو په معنی دی في يده اي حال کون السلاح في يده، شيطان طرف ته اسناد دسبب په اعتبار سره دی چې هغه ددې سبب جوړيږي يعني شيطان خو دانسان د تباهۍ او بربادۍ په کمين کې ناست وي، اوس که څوک بل چا طرف ته په مذاق (ګف) سره هم په وسلې سره اشاره کوي نو کيدی شي شيطان په مينځ کې وسوسه اچولو او دخل اندازي کولو سره دې مذاق لره په رښتياو سره بدل کړي او دمذاق په ځای جنګ شروع شي او دمسلمان قتل وشي نو قاتل به د دوزخ کندې ته پريوځي دارنګه شيطان بدبخته به پخپله هم وسلې ته حرکت ورکړي دمسلمان دپاره. ځان خطره جوړيدی شي ځکه چې دا خبيث د آدم د اولاد دشمن دی. (المرقات ۷۹/۷)

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل چې کوم کس خپل (مسلمان) |

(۱) أخرجه البخاري في ۱۳/۲۳ رقم الحديث ۷۰۷۲ ومسلم في ۲۰۲۰/٤ رقم الحديث (۲٦۱۷-۱۲٦)

«مَنْ أَشَارَ إِلَى أَخِيهِ بِحَدِيدَةٍ فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَلْعَنُهُ
وروړ طرف ته په وسپنې (وسلې وغيره) سره اشاره کوي. په ده باندې فرښتې هغه وخته پورې لعنت لیږي

حَتَّى يَضَعَهَا وَإِنْ كَانَ أَخَاهُ لأَبِيهِ وَأُمِّهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[1]
تر څو پورې چې هغه دې وسپنې لره نه ایخې نه وي اګرچه هغه دده حقیقي وررور ولې نه وي. (بخاري ومسلم)

## د اسلام د طرز نه بر خلاف خلک

﴿۱۱﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:
او حضرت ابن عمر رضي الله عنه او حضرت ابو هريره رضي الله عنه د نبي علیه السلام نه نقل کوي چې هغوي وفرمایل

«مَنْ حَمَلَ عَلَيْنَا السِّلَاحَ فَلَيْسَ
چې کوم سړی (د خندا او مذاق په طورهم) په مونږ باندې وسله اوچته کړي هغه زمونږ نه نه دی یعني

مِنَّا». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ وزادَ مُسلم:
زمونږ په طریقه عامل نه دی (بخاري ومسلم) او مسلم رحمه الله دا الفاظ هم نقل کړي دي چې کوم

«ومنْ غشَّنا فليسَ منَّا» (صَحِيح)[2]
سړی مونږ ته دوکه راکړي هغه زمونږ نه نه دی.

﴿۱۲﴾وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ
او حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه وائي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چې کوم کس (بغیر

سَلَّ علينا السَّيفَ فليسَ منَّا». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[3]
د ارادې د قتل نه په خندا مذاق کې هم) په مونږ باندې توره راوښکله هغه زمونږ نه نه دی. (مسلم)

**توضیح : من سل علینا السیف :** پاس په حدیث نمبر ۱۱ کې لفظ د حمل دی دلته په دې حدیث کې لفظ د سَلَّ دی مراد ترې وسله اوچتول او د کوم مسلمان یرولو دپاره وسله ښکاره کول، دتورې د پرقولو دپاره دسل لفظ راغلی دی او دعامې وسلې داوچتولو دپاره دحمل لفظ راغلی دی په پورته

---

(۱) أخرجه مسلم ۲۰۲۰/٤رقم الحديث ۲۶۱۶-۱۲۵، الترمذی ٤/٤۰۳ رقم الحديث ۲۱۶۲ وأحمد فی المسند ۲/۲۵۶ وهذا الحديث ليس عندالبخاری عمایأتی

(۲) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۳/۲۳ رقم الحديث ۷۰۷۰ ومسلم فی ۱/۹۹ رقم الحديث (۱۰۱-۱۶٤) والنسائی فی السنن ۷/۱۱۷ رقم الحديث ٤۱۰۰ وابن ماجه فی السنن ۲/۸۶۰ رقم الحديث ۲۵۷۵

(۳) أخرجه مسلم فی الصحيح ۱/۹۸ رقم الحديث (۹۹-۱۱۲) والترمذی ۲/۳۱۵ رقم الحديث ۲۵۲۰ واحمدفی المسند٤/٤۶

حدیث نمبر ۱۰ کې د اشار لفظ راغلی دی. دټولو الفاظو مطلب هم یو دی چې د مسلمان دیرولو دپاره وسله خودل منع دي دګناه کار دی اګرچه په دې کې تاوان نشته دی **فلیس منا** په دې روایاتو کې دا لفظ استعمال شوی دی چې داسې سړی زمونږ نه نه دی چې ددې ظاهري مطلب دا شو چې دا سړی په اسلام کې نه دی، حالانکه په لویه ګناه سره څوک د اسلام نه نه اوځي؟
ددې جواب دادی چې داسړی په دې شعبه او په دې خاص فعل او معامله کې د مسلمانانو په طرز باندې نه دی اګرچه په باقي ټولو شعبو او اقوالو وافعالو کې هغه د مسلمانانو په طرز باندې دی او مسلمان دی مګر په دې خاص عمل کې هغه د مسلمانانو په طرز باندې نه دی. د **فلیس منا** هم دا مطلب دی بعضې علماء وایې چې داسې قسم جملې نبي علیه السلام د حکمت د اسلوب په طور باندې ارشاد فرمایلې دي دې دپاره چې مسلمانان دا ناجائز کار ونه کړي یعني چې کوم مخلص مسلمانان دا واوري چې ددې کار په کولو سره دخپل خوږ نبي ﷺ نه کټ کیږي نو هغه مسلمان به کله هم دې کار ته نژدې ورنشي بلکه چغې به وهي او ځي به ترې او دا کار به پریږدي او اسلام طرف ته به په منډه راځي.

پورته په حدیث نمبر ۱۱ کښې د **من غشنا** جمله راغلې ده، غش دوکې ته وائي چې په ظاهره یو کار ښه ښکاري مګر په پټه باندې په هغې کې عیب وي کوم چې دا سړی نه ښکاره کوي دا دوکه زیات تر د اخستلو خرڅولو په معامله کې کیږي او په نورو څیزونو کې هم دا حدیث عام دی.

## د الله تعالی د مخلوق د تنګوونکو سزا

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ هشامَ بنَ حكيمٍ مَرَّ بِالشَّامِ |
| او حضرت هشام بن عروه دخپل پلار نه نقل کوي چې حضرت هشام بن حکیم د ملک شام (د سفر په دروان |
| عَلَى أُنَاسٍ مِنَ الْأَنْبَاطِ وَقَدْ أُقِيمُوا فِي الشَّمْسِ |
| کې) د نبطي قوم څه خلق په داسې حالت کې ولیدل چې هغوی یې په نمر کېنودرولي وو او د هغوی په |
| وصُبَّ على رُؤُوسِهِمُ الزَّيْتُ فَقَالَ: مَا هَذَا؟ قِيلَ: |
| سرونو باندې ګرم تیل اچولي شوي وو هشام بن حکیم چې وې ویل دا څه دي؟ هغه ته وویلی شو |
| يُعَذَّبُونَ فِي الخَرَاجِ |
| چې د خراج (زرعي ټیکس نه ورکولو) په وجه سره دوی لره په دې عذاب کې اچولي شوي دي؟ |

| |
|---|
| فَقَالَ هِشَامٌ: أَشْهَدُ لَسَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| حضرت هشام وفرمایل چې زه ګواهي ورکوم چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمایل اوریدلي دي |
| «إِنَّ اللهَ يُعَذِّبُ الَّذِينَ |
| چې الله تعالی به (په آخرت کې) هغه خلقو لره په عذاب کې مبتلا کوي کوم چې خلقو لره په |
| يُعذبونَ النَّاسَ فِي الدُّنْيَا». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)[1] |
| دنیا کې په عذاب کې مبتلا کوي. (مسلم) |

**توضیح: هشام بن حکیم**: د اوچت شان والا صحابي دی په امر بالمعروف او نهي عن المنکر کې مشهور او معروف دی د قریشو د اشرافو نه وو د مکې د فتحې په موقعه باندې مسلمان شو او د ۱۲۰ کالو په عمر کښې ۵۴ ه کښې په مدینه منوره کې وفات شو ۶۰ کاله یې په جاهلیت کې او ۶۰ کاله یې په اسلام کې تیر کړل. (المرقات ۸۱/۷)

**الانباط**: لبط او لبیط د مشهورو غرونو نو مونه دي دا خلق به د هغه غر خواته اوسیدل په دې وجه ورته انباط وایي، علامه نووي فرمائي چې انباط عجمو زمیدارانو ته وائي. **الزیت**: د زیتون ګرم تیل مراد دي. **في الخراج**: یعني هغوی خراج او ټیکس اوسه پورې ادا کړې نه دی په دې وجه دا سزا ورکولی شي. (المرقات ۸۲/۷)

**ان الله یعذب**: یعني چې کوم کس د الله تعالی مخلوق په دنیا کې په څنګه ناحقه عذاب سره مبتلا کوي. الله تعالی به په قیامت کې هغه په داسې عذاب سره مبتلا کوي. په یو حدیث کې دي: لاتعذبوا بعذاب الله: او دلته ګرم تیل اچول او په اور سره د سوزولو سزا یو انسان بل انسان له ورکوي چې دا الله تعالی نه بغیر د بل چا د پاره مناسب نه دي. (المرقات ۸۲/۷)

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يُوشِكُ إِنْ طَالَتْ |
| او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل کچیرې ستا عمر زیات شو |
| بك مُدَّة أَن ترى أَقْوَامًا فِي أَيْدِيهِمْ مِثْلُ أَذْنَابِ الْبَقَرِ |
| نو ته به عنقریب هغه خلقو لره ووینې چې د هغوی په لاسونو کې به د غوا د لکۍ په شان یو څیز یعنې کوړې وي، |

[1] أخرجه في صحيحه ۴/۲۰۱۸ رقم الحديث (۲۶۱۳/۱۱۸) والدارمي في ۲/۳۱۵ رقم الحديث ۲۵۲۰ وأحمد في المسند ۴/۴۰۳

| |
|---|
| يَغْدُونَ فِي غَضَبِ اللهِ وَيَرُوحُونَ فِي سَخَطِ اللهِ». |
| دهغوی سحر به دالله تعالی په غضب کې وي او دهغوی ماښام به دالله تعالی په شدید ناراضګۍ کې تیریږي |
| وَفِي رِوَايَةٍ: «وَيَرُوحُونَ فِي لَعْنَةِ اللهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (صَحِيحٌ)(١) |
| اوپه یو روایت کې داهم دي چې دهغوی ماښام به دالله تعالی په لعنت کې تیریږي. (مسلم) |

## دظالم پولیس او فیشن کوونکو ښځوپه باره کې وعید

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صِنْفَانِ |
| اوحضرت ابو هریره رضي الله عنه وائي چې نبي علیه السلام وفرمایل د دوزخیانو دوه ډلې داسې دي چې هغوی |
| مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَمْ أَرَهُمَا: قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذْنَابِ |
| مانه دي لیدلي (اونه به یې زه ووینم) یوه ډله خو دهغه خلقو ده دچا په لاس کې چې به دغوا دلکۍ په شان |
| الْبَقَرِ يَضْرِبُونَ بِهَا النَّاسَ وَنِسَاءٌ |
| کوړې وي چې په هغې سره هغوي (خلق په ناحقه) وهي او دویمه ډله دهغه ښځو ده چې په ظاهره خو به یې |
| كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيلَاتٌ مَائِلَاتٌ |
| جامې اغوستې وي مګر په حقیقت کې به بربنډې وي هغوی به سړو لره خپل طرفته مائله کوي او پخپله به هم سړو |
| رُؤوسهن كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ |
| طرفته مائله وي او دهغوی سرونه به دبختي اوښانو په شان خوزي داسې ښځې نه خو به جنت ته داخلیږي |
| وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا وَإِنَّ رِيحَهَا لَتُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا". (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(٢) |
| او نه به دجنت بوی مومي حالانکه دجنت بوی به دومره دومره (یعني مثلاً سل کاله) لرې نه راځي. (مسلم) |

**توضیح**: صِنْفَانِ: یعني دوه قسمه خلق دي ما اوسه پورې نه دې لیدلې یعني هغوی اوسه پورې موجود شوې نه دي روستو به راځي **من اهل النار**: یعني هغوی به دوزخ ته ځي اُو ر به پرې واجب شوی وي دا ځانله خبره ده چې دسزا خوړلو نه پس به د دوزخ نه راوځي. سیاط: دا د سوط جمع ده کوړې ته وایې په عربي ملکونو کې ددې نوم مقرعة دي چې دهغې جمع مقارع دی دا دڅرمنې نه جوړه شوې وي او دهغې پلنوالی معمولي غوندې وي او دغوائي دلکۍ په شان اوږده وي. جلاد

(١) أخرجه مسلم فى صحيحه ٤/٢١٩٣ رقم الحديث (٢٨٥٧-٥٣) وأحمد فى المسند ٢/٣٢٣

(٢) أخرجه مسلم فى صحيحه ٤/٢١٩٢ رقم الحديث (٢١٢٨-٥٢) رقم الحديث ٢/٣٢٦

خلق غله بربنډ کړي او وهي يې پرې. ملاعلي قاري رحمه الله ليکلي دي چې ددې نه مراد هغه ظالمان خلق دي چې د ظالم حکمران په دروازو باندې چکرې لګوي او ليوني سپي ترې جوړ شي او خلق په ناحقه وهي او هغوي په امسا باندې وهلو سره زغلوي، د حديث شارحين ليکي چې ددې حديث مصداق هغه خلق دي چې ديو ظالم حکومت والا سړي حاشيه نشين وي او دهغه نه مخکې روستو او د هغه سره وي او دهغه په وجه سره عامو خلقو لره يرَوي او دهمکي ورکوي. غريب او کمزورې خلقو ته کنځلې کوي وهي يې او د شريفانو عزتونه پايمال کوي دليوني سپي په شان هريو لره خوري، د هدايه په حاشيه کې ليکلي دي چې دظالمانو سره چې کوم کارکونکي وي هغوي ته دشفقت په نظر سره کتل جائز نه دي. عامو شارحينو د موجوده زمانې پوليس ددې حديث مصداق ګرځولي دي ځکه چې دغوايانو دلکو په شان امساګانې صرف دهغوي په لاسونو کې وي اګرچه نور ظالمان هم ددې حديث مصداق جوړيدی شي چې دظالمانو خانانو،وډيرو،سردارانو او چودهريانو ظالمان نوکران وي ددې حديث نه مخکې چې کوم حديث تيرشو په هغې کې هم ددې ظالمانو ذکر دی هلته دهغوی دظلم د اوقاتو هم بيان شوی دی. (المرقات ۸۳/۷)

**نساءکاسيات:** دا دويم قسم طرف ته اشاره ده يعني داسې ښځې به وي چې په ظاهره به يې لباس اغوستی وي خو لباس به دومره نری وي چې بدن به يې صفا په نظر راځي يا به يې لباس دومره تنګ وي چې په هغې سره به دبدن ټول اندامونه راوتلي ښکاري مثلاً سارهي يې واغوسته يا يې نيم بربنډ لباس يې واغوستو يا يې لوپټه په غاړه کې زوړنده کړه دسينې نمائش يې شروع کړو په دې ټولو صورتونو کې په ظاهره خو لباس په نظر راځي خو په حقيقت کې ښځه په دې کې بربنډه وي، بعضې علماء ددې حديث دهغې حصې مطلب داهم اخستی دی چې په دنيا کې هغه ښځې په راحت او زيب اوزينت ناز او نعمت کې د هرقسم لباس نه خوند اخلي خو دتقوی نه خالي کيدو سره به په آخرت کې د تقوی او نيک اعمالو دلباس نه بربنډې وي. (المرقات ۸۳/۷)

**مميلات:** يعني په دې لباس کې ځان جوړ کړي او بازارونو کې ګرځي او پردي سړي ځان طرفته مائله کوي او ګرځي. **مائلات:** يعني دکور نه په نخرو نخرو سره په دې حالت کې راوځي پخپله ددې خبرې دليل دی چې هغوی په قلبي طور باندې پردو سړو طرفته مائله دي اوس هغه نورو لره دښکار کولو دپاره راوتلې دي. د حديث په دې جملې سره ددې شيطاني وسوسې جواب کيږي چې د آزادو خلقو په زړه کې يې ځای نيولی دی چې وايې زړه صفا کيدل پکار دي. حديث دا اوخودلـه چې په دې پوزيشن کې راتلل د زړه دخرابۍ نښه ده.

**کأسنمة :** اسنمه د سنام جمع ده چې د قُب په معنی دی **البخت:** دا د بختي جمع ده بختي هغه اوښ وي چې د عربي او عجمي اوښانو د نسل نه مشترک نسل پیدا شوی دی، دا د بخت نصر باچا طرفته منسوب دي هغه دا سې نسل جاري کړی وو د دې په مقابله کې عراب او عربي دی. (المرقات ۸۴/۷)

**المائلة :** دا د اسنمة کلمې صفت دی یعنې د څروب والي دو جې نه هغه قب یو طرفته مائل وي او خوزوي یې د غه د هغه ښځو د سر جوړول وي چې اخوا دیخوا یې خوزوي ځکه چې د لته هغه ښځې مراد دي چې د خپلو سرونو ویښته راغونډ کړي او ولاړ غونډي یې وتړي او د چرګ د چار خولک (قرقرې) په شان یې جوړ کړي یو خوا بل خوا یې مائل کوي، ملاعلي قاري رحمه الله لیکلي دي چې دا د مصر د ښځو نقشه ده نبي علیه السلام لیدلې نه وه او وې خو دله دا د هغوی معجزه وه. (المرقات ۸۴/۷)

**لایدخلن الجنة :** کچیرې دا ښځې دې ناجائزه فیشن او حرام کار لره حلال ګڼي نو بیا خو دا یمان نه هم محروم کیدو سره به همیشه په دوزخ کې سوزي او د جنت خوشبو قدرې به بوی نه کړي او که صرف ګناهګارې دي نو مراد دا دی چې کله نیکې ښځې جنت ته ځي نو هغه وخت به دا ښځې د جنت خوشبو بوی نه کړي د سزا خوړلو نه پس به جنت ته ځي. دریم جواب دا دی چې دا حدیث په زجر او توبیخ او تشدید او تغلیظ باندې محمول دی. (المرقات ۸۴/۷)

## څوک په مخ باندې مه وهه

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا قَاتَلَ أَحَدُكُمْ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل کله چې په تاسو کې څوک (چالره) وهي نو هغه له |
| فَلْيَجْتَنِبِ الْوَجْهَ فَإِنَّ اللهَ خَلَقَ آدَمَ عَلَى صُورَتِهِ» متفق عليه.[1] |
| پکار دي چې د هغه مخ بچ کړي په دې وجه چې الله تعالی آدم لره په خپل صورت باندې پیدا کړی دی. (بخاري ومسلم) |

**توضیح : الوجه:** یعني په مخ باندې د وهلو نه بچ کیدل پکار دي په دې وجه چې انسان د عالم اصغر په شان دی د ده مخ د هغه د محاسنو او خوبیانو مرکز دی د الله تعالی د تخلیق یو اعلی شاهکار دی، لهذا دا بالکل مناسب نه دي چې څوک دې د هغه توهین وکړي او په وهلو وهلو سره د هغه حلیه ورانه کړي (المرقات ۸۴/۷)

**د علی صورته مطلب:** د دې جملې په وضاحت کې څو اقوال دي او دا قوالو د کثرت په وجه سره د ضمیر د مرجع تعین دی. ړومبی قول دا دی چې د ضمیر مرجع پخپله حضرت آدم علیه السلام دی او مطلب

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۸۲/۵ رقم الحدیث ۲۵۵۹ ومسلم فی ۲۰۱۷/۴ رقم الحدیث (۲۶۱۲-۱۱۵) وأحمد فی المسند ۴۶۳/۲

په داوي چې الله تعالی آدم علیه السلام لره هم دآدم په صورت باندې پیدا کړی دی یعني دآدم صورت خپل مثال کې خپل دی لکه چې یو بچی چې دمور او پلار په شکل نه وي نو موریانې وایي چې دابچی په خپل شکل باندې پیدا شوی دی دا توجیه واضح تر ده. دویم قول دادی چې الله تعالی حضرت آدم علیه السلام لره دتخلیق په یو ممتاز شکل باندې جوړ کړی دی چې دنورو مخلوقاتو دتخلیق انداز نه دی اختیار کړی شوی نو دنورو مخلوقاتو دتخلیق مراحل جدا دي او دحضرت آدم علیه السلام معامله جدا ده. دریم قول دادی چې ضمیر الله تعالی طرف ته راجع دی او دصورت نه مراد بدن او شکل او شباهت نه بلکه دصورت نه مراد صفات او کمال دی یعني الله تعالی حضرت آدم علیه السلام په خپلو صفاتو باندې پیدا کړو چې په دې کې به علم او وقار، صبر او برداشت او دبصر، سمع او کلام صفات وي دم اګرچه په دې صفاتو کې تفاوت او فرق دی خو الله تعالی دتخلقوا بأخلاق الله په طور باندې حضرت آدم علیه السلام او دهغه اولاد پیدا کړو چې دالله تعالی اخلاق خپل کړي.

## دبل چا کورته بغیر داجازت نه کتلو والا قابل دتعزیر دی

### الفصل الثاني

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۷﴾عَنْ | أَبِي | ذَرٍّ | قَالَ: | قَالَ رَسُولُ اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «مَنْ | كَشَفَ سِتْرًا |
| او حضرت ابوذر رضي الله عنه وائي چې نبي عليه السلام وفرمايل که چيرې يو کس دچا دکور پرده او چته کړه او | | | | | | | | |
| فَأَدْخَلَ | بَصَرَهُ | فِي | الْبَيْتِ | قَبْلَ | أَنْ | يُؤْذَنَ | لَهُ | |
| دهغه په کور کې یې خپل نظر واچوه هر کله چې ده ته (دهغه په کور کې دکتلو او داخلیدلو) اجازت حاصل نه وو، | | | | | | | | |
| فَرَأَى | عَوْرَةَ | أَهْلِهِ | فَقَدْ | أَتَى | حَدًّا | | | |
| او هغه دهغه کور والا لره ولیدل نو (هغه دداسې څیز ارتکاب وکړو چې دهغې په وجه) سره هغه قابل دتعزیر شو، | | | | | | | | |
| لَا | يَحِلُّ | لَهُ | أَنْ | يَأْتِيَهُ | وَلَوْ | أَنَّهُ | | |
| دهغه دپاره (هیڅ کله) جائز نه دي چې هغه (بغیر د اجازت نه دچا کور) ته لاړ شي (او دهغه کور ته او ګوري) | | | | | | | | |
| حِينَ | أَدْخَلَ | بَصَرَهُ | فَاسْتَقْبَلَهُ | رَجُلٌ | | | | |
| کچیرې هغه کورته د (دروازې په سوروکې) وکتل او کوروالو کې څوک ورته مخې ته راغلو او ددې | | | | | | | | |
| فَفَقَأَ | عَيْنَهُ | مَا | عَيَّرْتُ | عَلَيْهِ | | | | |
| (کتلو والا) سترګه یې راوبستله نو زه به (ددې سترګې ویستلو والا) نه تپوس نه کوم او نه به (دتاوان په طور) په هغه باندې څه | | | | | | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ | مَرَّ | الرَّجُلُ | عَلَى | بَابٍ | لَا | سِتْرَ | لَهُ | غَيْرِ | مُغْلَقٍ |
| ځیزواجب کړم،هاکه ځوک سړی په داسې دروازه باندې تیرشو چې په هغې باندې نه څه پرده وه او نه هغه بنده وه او د هغه ||||||||||
| فَنَظَرَ | فَلَا | خَطِيئَةَ | عَلَيْهِ | إِنَّمَا | الْخَطِيئَةُ | عَلَى | أَهْلِ | الْبَيْتِ». |  |
| نظر د کور په خلقو باندې پریوتلو نو په هغه باندې څه ګناه نشته دی بلکه ګناه خو به په کوروالو باندې وي. چې هغوی دروازه ||||||||||
| رَوَاهُ | التِّرْمِذِيّ | وَقَالَ: | هَذَا | حَدِيثٌ | غَرِيبٌ[1] |  |  |  |  |
| ولې بنده نه کړه او پرده ئې ولې زوړنده نه کړه (ترمذي) دې روایت لره نقل کړی دې او ویلې یې دي چې دا حدیث غریب دی. ||||||||||

**توضیح: کشف سترًا:** یعني د کور پرده یې اوچته کړه او دننه یې وکتل. (المرقات ۸۶/۷) **عورة اهله** دعورت نه مراد هر هغه ځیز دی چې دهغې په لیدو او ښکاره کیدو سره سړی شرم محسوسوي د کور خلق په دې کې داخل دي. (المرقات ۸۷/۷)

**حدًا** دلته د حد نه تعزیر مراد دی یعني قابل تعزیر جرم کول یا د حد نه مراد هغه کناره (غاړه) او سرحد او مقام دی د کوم پورې چې د دې سړي راتلل جائز نه دي. (المرقات ۸۷/۷) **فاستقبله** یعني د کور د ننه ځوک سړی مخې ته راغی،(المرقات ۸۷/۷) **ففقاء ففقأ يفقأ** د فتح يفتح نه د سترګې راوېستلو په معنی سره دی. ماعيرت تعير د باب تفعيل نه شرم ورکولو په معنی سره دی یعني په دې کې سترګې راوېستلو والا سړی به نه ملامت کوم ځکه چې جرم د کتلو والا دی. دا هغه وخت وي هر کله چې د کور مخې ته پرده زوړنده وي او هغه دروزاه بنده وي کچیرې دروازه کولاو وي یا پرده نه وي نو بیا جرم د کور والو دی کتونکي ته به دا سزا نه شي ورکولی دا حدیث مسلمانانو ته دا تعلیم ورکوي چې د کور دروازې بندې کړې یا مکمل پرده زوړنده کړې دې د پاره چې بې پردګي نه وي. (المرقات ۸۷/۷)

## تیرې ځوکې والا آله چاړه په لاس کې دورکولو طریقه

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُتَعَاطَى |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع فرمايلې ده بغير د قاش نه توره په لاس |
| السَّيْفُ مَسْلُولًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[2] |
| کې د ورکولو نه. (روایت کړی دی ترمذي، ابو داؤد) |

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ۵/۶۰ رقم الحديث ۲۷۰۷ وأحمدفی المسند۵/۱۸۱

(۲) أخرجه أبوداود فی السنن ۳/۷۰ رقم الحديث ۲۵۸۸ والترمذی فی ۴/۴۰۳ رقم الحديث ۲۱۶۳/وأحمدفی المسند۳/۳۰۰

**توضیح**: مسلولا: یعني بربنده او پرقیدلې توره دچاپه لاس کې مه ورکوه ځکه چې ددې دپریوتلو او مخې ته دسړي دزخمي کیدو احتمال دی درانګه دبربنډې تورې اخستو په وخت کې دزخم لګیدو یره ده چې یو مسلمان ته دتکلیف رسیدو ذریعه کیدی شي دا حکم صرف دتورې نه دی بلکه دهرې تیرې څوکې والا چاړه چاقو وغیره همدا حکم دی او د معاشرې دحسن او تهذیب خلاف دی په دې وجه دا نهې تنزیهي ده چې ورته نهي ارشادي وایې، او تهذیب دا سې دی چې تیره څیز چالره د ورکولو په وخت تیره طرف دې خپل طرف ته کړی شي او یا دې په قاش کې بند کړي ورد ې کړی شي دې دپاره چې اخستونکي ته یره نه وي. (المرقات ٨٨/٧)

## دګوتو په مینځ کې دتسمې دشلولو ممانعت

| |
|---|
| ﴿١٩﴾ وَعَن الحسنِ عَنْ سَمُرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى |
| او حضرت حسن رحمه الله د حضرت سمره رضي الله عنه نقل کوي چې نبي کریم ﷺ د دې خبرې نه منع |
| أَنْ يُقَدَّ السَّيْرُ بَيْنَ أُصبعَيْنِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (صَحِيح)[1] |
| فرمایلې ده چې تسمه دې د دوو ګوتو په مینځ وشلولی شي. (ابوداؤد) |

**توضیح**: یقد السیر: قدیقد د نصرینصر نه دیو څیز په اوږدوالي باندې یا مطلقًا کټ کولو ته وایې. السیر ددې جمع سیور راځي ددې نه مراد تسمه یا سخت تار دی چې دهغې په کټ کولو سره دګوتو د کټ کولو احتمال وي خلق عام طور باندې داسې څیزونه په دواړو لاسونو باندې ونیسي او د شکولو کوشش کوي چې په هغې سره ګوتې زخمي کیږي. ددې نه ممانعت هم نهي تنزیهي او نهي ارشادي او د شفقت په بنیاد باندې ده. (المرقات ٨٨/٧)

## ددین په حفاظت کې وژلی شوی شهید دی

| |
|---|
| ﴿٢٠﴾ وَعَن سعيدِ بنِ زيدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ قُتِلَ |
| او حضرت سعید بن زید رضي الله عنه راوي دی چې نبي علیه السلام وفرمائیل چې کوم سړی د خپل دین |
| دُونَ دِينِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ دَمِهِ |
| حفاظت کولو په وجه وژلی شي هغه شهید دی چې کوم کس د خپل ځان د حفاظت په وجه ووژلی شي |

[1] أخرجه أبوداود فى السنن ٣/٧١ رقم الحديث ٢٥٨٩

فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ

هغه شهيد دی کوم کس چې د خپل مال حفاظت کولو په وجه ووژلی شي هغه شهيد دی او کوم خلق

وَمَنْ قُتِلَ دُونَ أَهْلِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1]

چې د خپل اهل او عيال حفاظت کولو په وجه ووژلی شو هغه شهيد دی. (ترمذي، ابو داؤد، نسائي)

**توضيح**: د دين په حفاظت کې د وژل شوي مطلب دادی چې ديو مسلمان مخکې کوم کافر يا مبتدع او ملحد د اسلام او دين او قرآن تحقير او توهين وکړو، او د امسلمان د هغه سره په جنګ شو او هغه ملحد ده لره مړ کړو نو دا شهيد دی او د شهيد درجه مومندونکی دی، او کچيرې ده هغه ملحد لره قتل کړو نو دا غازي دی د غه شان معامله د مال او متاع او عزت او ناموس ده کچيرې يو کس دده عزت پايمال کولو باندې راوختلو او ده هغه لره قتل کړو نو په ده باندې تاوان نشته دی، او کچيرې حمله کونکي ده لره قتل کړو تو دا شهيد دی. علماو ليکلې دي چې اول دې په نرمۍ سره پوهه کړي کچيرې منع نه شي نو بيا دې لاس پرې او چت کړي بيا دا سړی يا غازي دی يا شهيد دی. (المرقات ۷/۸۸)

﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لِجَهَنَّمَ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې هغوی وفرمايل د دوزخ

سَبْعَةُ أَبْوَابٍ: بَابٌ مِنْهَا لِمَنْ سَلَّ

اوه دروازې دي، په دې کې يوه دروازه د هغه سړي د پاره ده چې زما د امت (په خلقو) (په ناحقه)

السَّيْفَ عَلَى أُمَّتِي أَوْ قَالَ: عَلَى أُمَّةِ مُحَمَّدٍ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

باندې توره او چته کړي يا يې دا وفرمايل چې په امت محمديه باندې، دې روايت لره ترمذي نقل

وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2]

کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ: «الرِّجْلُ جُبَارٌ» ذُكِرَ فِي «بَابِ الْغَضَبِ»

هَذَا الْبَابُ خَالٍ من الْفَصْلِ الثَّالِث

---

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۵/۱۲۸ رقم الحديث ۴۷۷۲ والترمذی فی ۴/۲۲ رقم الحديث ۱۴۲۱ والنسائی فی ۷/۱۱۵ رقم الحديث ۴۰۹۰

(۲) أخرجه [illegible] ۵/۲۷۷ رقم الحديث ۳۱۴۳ وأحمد فی المسند ۲/۹۱

# باب القسامة
## دقسامت بیان

قسامة د ق په زور سره دقسم نه ماخوذ دی **قسم یقسم قسماً** وقسامة دقسم کولو په معني سره دی، او په قسامة کې به هم دپنځوس سړو نه قسم اخستلی شي، یا قسامة د قسمت او تقسیم نه ماخوذ دی او چونکه په قسامة کې قسمونه په څو سړو باندې تقسیمولی شي په دې وجه دې ته قسامة ویلی شوی دی. (المرقات ۹۰/۷)

د قسامة حکم داسلام نه مخکې په جاهلیت کې هم وو اسلام دحفظ دماء او دانسان دحفاظت پیش نظریې دې حکم لره باقي وساتلو، اوس قسامة داسلام په احکاماتو کې یو شرعي حکم دی چې دنبي علیه السلام په مبارکه زمانه کې ترننه پورې محکم غیرمنسوخ راروان دی، قسامة داسلام په قواعدو کې یو اهمه قاعده او دانسانانو دمفادو او مصالحو لویه ذریعه ده او دانساني معاشرې دپاره امن او یو اهم سبب دی، دقسامة تنفیداو نافذولو طریقه کار کې اګرچه د علماو په مینځ کې اختلاف دی مګر ددې باوجود ټول فقهاء او ټول علماء دقسامة په ثبوت او بقاء باندې متفق دي د قسامة متعلق څو بحثونه دي.

**اول بحث دقسامة حقیقت** :دا بحث په دې کې دی چې دقسامة حقیقت ددې تعارف او ددې پس منظر څه دی.نو قسامة هغو پنځوسو قسمونو ته ویلی شي چې په هغه اهل محله او اهل دار باندې ایخودلی شي چیرته چې مقتول موندلی شي. مثلا په یوه محله کې یو سړی مړ پروت ملاو شو، او کچیرې ددې سړي په مړي د زور نشان یا په کوم څیز سره چې وهلی شوی وي د هغې د زخمي کیدو نشان موجود نه دی نو داسې به ګڼلی شي چې دا سړی په خپل مرګ مړ شوی دی، اوس دقاتل دتفتیش کولو ضرورت نشته دی او کچیرې ددې مړي په بدن باندې د زخم یا په مړي دزور نښې وې نودا به ګڼلی شي چې دا چا وژلی دی، اوس به دقاتل تلاش ضروري وي نوشریعت دې محلې والا ذمه دار ګرځولي دي په کومه محله کې چې دا مقتول وموندلی شو چې هغوي قاتل وښائي یا قسمونه وخوري چې دوي ته دده دقتل علم نشته دی نه دقاتل علم شته دی، دقسم خوړلو طریقه داسې ده **والله ماقتلناه وماعلمناقاتله** دقسم خوړلو والا به دمحلې معزز خلق وي عاقل بالغ او آزاد به وي او پنځوس به وي، کچیرې پنځوس کسان ددې محلې نه پوره نه شو نو دیمین په تکرار سره به پنځوس قسمونه پوره کول وي، دقسم خوړلو باوجود به دیت په دوی باندې لازم وي دې دپاره چې انساني جان بې فائدې او ضائع لاړ نه شي، او د هرې محلې خلق دانساني نفس محافظ جوړ شي، دقسامة سبب اوددې علت په یوه محله کې دمقتول موندل دي. (المرقات ۹۵،۹۰/۷)

**دويم بحث د لوث (نښې) صورت دی** : لوث نښې او علامې ته وايې په قسامه کې علامت اولوث ته اهم مقام حاصل دی چې په قاتل باندې د وينې نښې لګيدلې وي يا دهغه توره دمقتول په وينه ککړه وي يا دمقتول دخاندان او ددې محلې والو په مينځ کې دمخکې نه دښمني راروانه وه داټول قرائن حاليه دي، دلوث يو صورت داهم دی چې يو عادل سړی ګواهي ورکړي ياڅو غيرعادل کسان داګواهي ورکړي چې دې محلې والو مقتول لره وژلی دی دا قرينه قوليه ده او دګواهۍ نصاب پوره نه دی. په دې وجه دې ناقصې ګواهۍ سره دقاتل نه قصاص نه شي اخستلی. داحنافو په نزد دلوث (علامې) څه اعتبار نشته دی نور ائمه دا معتبروي تفصيل راروان دی. (المرقات ۹۰/۷)

**دريم بحث دقسامې په مفهوم کې دفقهاو اختلاف** : په يوه محله کې دمقتول په موندلو باندې به په هغه محله کې دقاتل تفتيش شروع کولی شي خو د تفتيش ددې عمل ترتيب به څه وي؟ په دې کې دفقهاو ځانله ځانله اجتهادي فتوی ګانې دي چې په هغې سره د قسامې په مفهوم کې هم فرق راځي وې ګورئ.

**په قسامه کې داحنافو رحمهم الله ترتيب اومسلک** که په محله کې مقتول وموندلی شي او د قاتل پته نه لګي نو داحنافو په دې کې دا مسلک دی چې دمدعيانو نه مخکې به بينه غوښتلی شي کچيرې دهغوی سره ګواه نه وي نو دمحلې دنامور اومشهورو پنځوس کسانو نه به قسمونه اخستلی شي هريو به داسې قسم خوري چې په الله قسم نه ما دا سړی قتل کړی دی او نه ماته دده دقاتل علم شته دی، ددې پنځوس کسانو انتخاب به دمقتول ولي کوي. اوس که دمحلې دې پنځوس کسانو قسمونه وخوړل نوپه اهل محله باندې به ديت واجب وي دا خلق دقصاص او جيل ته دتللو نه دقسمونو خوړلو په وجه سره بچ شول خو که دې پنځوس کسانو دقسم خوړلو نه انکار وکړو نو په جيل کې به اچولی شي تردې چې داخلق يا خو د قتل اقرار وکړي يا قسمونه وخوري، د دې مسلک نه دوه خبره معلومې شوې: يوه داچې دمقتول په وارثانو يعني مدعيانو باندې په يو صورت کې هم قسم نه راځي، دويمه خبره دا چې دقسم نه خوړلو سره په قسامه کې قصاص نه راځي په هرحالت کې ديت دی ځکه چې د قسامې په يو حديث کې هم دقصاص ذکر نه دی راغلی.

**دشوافعو او مالکيانو ترتيب اومسلک** دشوافعو اومالکيانو مسلک دادی چې د مقتول اولياو کله په اهل محله باندې دمقتول دقتل دعوی وکړه نودا مدعيان شول اومحلې والا مدعاعليهم شول کچيرې دلته دلوث (علامې) صورت دی يعني په مړي باندې دقتل نښې موجودې دي نو دمقتول د اولياؤ نه به پنځوس قسمونه واخستلی شي چې تاسو قسمونه اوخورئ او اوښائي چې څوک قاتل دی، کچيرې دې پنځوس کسانو قسمونه وخوړل چې فلانی سړی قاتل دی اوس کچيرې دعوی

دقتل خطاء ده نوپه دې خلقو دیت لازمیږي، اوکچیرې دقتل عمد ده نو دامام شافعي رحمه الله مختارقول دی چې دیت به واجب وي مګر د امام مالک رحمه الله اوامام احمدرحمه الله په نزد او دامام شافعي رحمه الله دیو قول مطابق په قاتل به قصاص راځي. او کچیرې دمقتول وارثانو دقسم خوړلو نه انکار وکړو نو اوس به قسمونه دمحلې پنځوس سړو نه اخستلې شي دغه رنګه که د لوث (علامې) صورت نه وي نو هغه وخت به هم قسمونه په محلې والا باندې راځي. (مرقاة ۹۰/۷)

کچیرې اهل محله قسمونه وخوړل چې نه مونږ قتل کړی ذی او نه مونږ ته دقاتل علم شته دی نومحلې والا به ددیت او قصاص نه آزاد شي اوکه محلې والاو دقسمونو خوړلو نه انکار وکړي نو اوس به په دوی باندې دیت واجب شي. دجمهورو دمسلک نه داخبره واضحه شوه چې په محله والا باندې به قسم صرف په هغه صورت کې راځي کله چې د لوث (نښې) صورت نه وي اویاصرف په هغه صورت کې په هغوی قسم راځي کله چې دمقتول اولیاء دقسم خوړلو نه انکار وکړي. دویمه خبره دا واضحه شوه چې د قسمونو خوړلو دپاره اصل ذمه وار اولیاء د مقتول دي هرکله چې لوث موجود وي، خلاصه دا چې داحنافو په نزد دمقتول په اولیاو باندې په هیڅ صورت کې هم قسمونه نه راځي، او دجمهورو په نزد د لوث په صورت کې دمقتول په اولیاو باندې قسمونه راځي دارنګه داحنافو په نزد دمحلې والا په هرصورت کې ددیت ذمه دار دي که قسمونه اوخوري یا دقتل اقرار وکړي دې دپاره چې دمسلمان وینه بې ځایه لاړه نه شي جمهور وایي چې قسمونو خوړلو سره محلې والا ددیت نه آزادیږي. (المرقات ۹۵/۷، ۹۰)

**دلائل:** دقسامې په احادیثو کې مختلف او متضاد الفاظ راغلي دي، نوفقهاء کرام په اجتهادي اندازسره ددې الفاظو نه په خپله مدعا باندې دلیل پیش کوي. دغه شان امام مالک رحمه الله د وجوب قصاص دپاره ددې الفاظو نه استدلال کوي چې دسهل بن ابي حثمه رضی الله عنه په روایت کې دي چې نبي علیه السلام مقتول ته وفرمایل: **استحقوا قتیلکم اي قصاص قتیلکم** امام شافعي رحمه الله اوامام مالک رحمه الله دمقتول داولیاؤ نه دقسمونو اخستلودپاره ددې حدیث دالفاظو نه استدلال کوي **بأیمان خمسین منکم وفي روایة تحلفون خمسین یمیناً** ائمه احناف د مقتول داولیاو نه دقسمونو نه اخستلو دپاره ددې مشهور حدیث نه استدلال کوي چې په حقیقت کې ددین ټولو معاملاتو لره یوه ضابطه ده یعنې **البینة علی المدعي والیمین علی من أنکر** ائمه احنافو د باب القسامة درافع بن حدیج د روایت نه استدلال کړی دی چې په دریم فصل کې دقسامه دویم حدیث دی چې په کې په واضح طورباندې دمدعیانو نه ګواه طلب کړی شو، او بیا د مدعاعلیهم نه دقسم اخستلو ترتیب مذکور دی.

**جواب** : ائمه احناف وغیره امام مالک رحمه الله ته دقصاص په باره کې دا جواب ورکوي چې د قسامې څومره احادیث دي په یو کې هم دقصاص ذکر نشته دی په ټولو کې ددیت ذکر دی لهذا دقصاص قول دهغه روایاتو په موجودګۍ کې مناسب نه دی او معتبرهم نه دی. ائمه احناف رحمهم الله، امام شافعي اوامام مالک رحمهماالله او حنابلو ته د مقتول په اولیاو باندې دقسمونو مقررکولو په باره کې دا جواب ورکوي چې په ابوداؤد شریف کې درافع بن خدیج رضي الله عنه روایت کې چې کوم تفصیل دی دې لره خپلول پکار دي په هغې کې په واضح طور باندې ذکر دي چې نبي علیه السلام دټولو نه مخکې دمقتول اولیاو ته چې مدعیان دي وفرمایل چې تاسو په قتل باندې ګواه راولئ هغوی وویل چې ګواه زمونږ سره نشته دی، نبي علیه السلام وفرمایل چې بیا دیهودو نه دپنځوس کسانو نه قسمونه واخلئ هغوي وویل چې دیهودو په قسمونو باندې اعتماد نشته دی په دې سره نبي علیه السلام د زجر او توبیخ په طور او د انکار په طور وفرمایل چې آیا بیا تاسو په خپله قسمونه خورئ نو ویې خورئ.؟ یعني دهغوي قسمونه منظور نه دي نوبیا به تاسوپخپله قسمونه خورئ حالانکه تاسو مدعیان یې او دمدعي دپاره قسم نشته ځکه چې مشهور حدیث دی **البینة علی المدعي والیمین علی من انکر** ددې واضح حدیث په مقابله کې دقسامې د حدیثونو د اشاراتو نه استدلال نه شي کولی. دقسامې په باره کې حضرت عمر رضي الله عنه هم دصحابو په مجمع کې د مدعی علیهم نه قسم واخستلو بطور اجماع یې واضحه کړه چې دمقتول په اولیاو باندې قسمونه نشته دی. (المرقات ۹۶/۷)

**دفع د تضاد** : په باب القسامه کې صاحب مشکوة صرف دوه حدیثونه ذکر کړې دي په دې احادیثو کې څو الفاظ داسې دي چې دهغوي په خپل مینځ کې تضاد اوتعارض دی ځکه چې دقسامې نورو ټولو روایاتو ته په کتو سره څو خبرې مخې ته راځي :(۱) په بعضې روایاتو کې د بینه ذکر دی او په بعضو کې دبینه تذکره نه نشته دی.(۲) دبعضې روایاتو نه معلومیږي چې اول دمقتول داولیاو نه دقسمونو اخستلو مطالبه شوې ده اودبعضو نه معلومیږي چې اول د مدعاعلیهم نه دقسمونو مطالبه شوې ده.(۳) دبعضې روایاتو نه معلومیږي چې یهودو قسمونه خوړلي وو او دبعضونه پته لګي چې هغوي انکار کړی وو.(۴) په بعضې روایاتو کښې راغلي دي چې دمقتول دیت نبي علیه السلام اداء کړی وواوپه بعضو کې راځي چې یهودو دیت ادا کړی وو. ددې تضاد وضاحت داسې دی چې چیرته دبینه تذکره د روایاتو نه نه معلومیږي نو هغه د عدم وجدان دبینې د وجې نه دی ورنه

د بينې ذکر موجود دى، او چرته چې مدعي نه دقسم مطالبه معلوميږي نو هغه په حقيقت کې استفهام انکاري دى. او چيرته چې د رواياتو نه معلوميږي چې يهودو قسم خوړلى دى نو په اصل کې يهودو د محکمه قضاء نه بهر قسمونه خوړلې دي مګر په عدالت کې د ننه يې انکار وکړو . او چيرته چې په رواياتو کې ذکر دي چې ديت نبي عليه السلام اداء کړو نو په اصل کې د ديت څه حصه نبي عليه السلام ادا کړه او څه يهوديانو ادا کړه، يا د تنازع دفعه کولو دپاره ديرش اوښان نبي عليه السلام ورکړل او اويا اوښان يهوديانو ورکړې وو. ددې تفصيلاتو نه پس اوس به په احاديثو پوهيدل آسان شي.

## په قسامه کې به د مدعي نه قسم اخستلى شي او که د مدعاعليه نه

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ وَسَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ أَنَّهُمَا حَدَّثَا |
| حضرت رافع بن خديج رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت سهل ابن ابي حثمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دواړه بيان کوي چې عبدالله بن سهل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ |
| أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ سَهْلٍ وَمُحَيِّصَةَ بْنَ مَسْعُودٍ أَتَيَا خَيْبَرَ |
| او محيصه ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خيبر ته راغلل نو (يو ورځ سيل کولو دپاره) دواړه د کهجورو په ونو کې يو |
| فَتَفَرَّقَا فِي النَّخْلِ فَقُتِلَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَهْلٍ |
| د بل نه جدا شول نو عبدالله بن سهل (چا يو اځې ومونډلو) نو قتل يې کړو. (او ددې حادثې نه پس) |
| فَجَاءَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَهْلٍ وَحُوَيِّصَةُ وَمُحَيِّصَةُ ابْنَا مَسْعُودٍ |
| عبدالرحمن بن سهل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (چې د مقتول حقيقي ورور وو) او د مسعود دواړه ځامن چې حويصه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او محيصه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ |
| إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَكَلَّمُوا فِي أَمْرِ صَاحِبِهِمْ |
| (چې د مقتول د تره ځامن وو) د نبي عليه السلام په خدمت کې او د خپل عزيز مقتول په باره کې يې مقدمه پيش کړه، |
| فَبَدَأَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ وَكَانَ أَصْغَرَ الْقَوْمِ |
| کله چې عبدالرحمن د خبرو ابتداء وکړه (چې د مقتول حقيقي ورور وو) او په دريواړو کې وړوکى وو |
| فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كبر الكبر قَالَ |
| نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته وفرمايل چې د خپل مشر ورور لويې لره مخې ته کړه حضرت يحيي بن سعيد |
| يحيى بن سعيد: يَعْنِي لِيَلِيَ الْكَلَامَ الْأَكْبَرُ |
| (چې د حديث راوي دى) وايي چې په دې ارشاد ګرامي سره د نبي عَلَيْهِ السَّلَام مراد دا وو چې کوم کس د ټولو نه |

فَتَكَلَّمُوا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
لوی وي هغه به د خبرو ذمه داروي نو (د دې نه پس) هغه (يعني دې مشر) خبره وکړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل چې

«اسْتَحِقُّوا قَتِيلَكُمْ أَوْ قَالَ صَاحِبَكُمْ
کچيرې په تاسو کې پنځوس کسان قسم وخوري نو ته د خپل مقتول يا (د خپل مقتول په ځای) يې دا وفرمايل چې د خپل

بِأَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْكُمْ». قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ أَمْرٌ لَمْ نَرَهُ
ملګري خون بها يا د قصاص اخستلو مستحق يې. هغوی عرض وکړو ای د الله رسوله! دا خو داسې څيز دی چې مونږ نه دی ليدلی

قَالَ: فَتُبَرِّئُكُمْ يَهُودُ فِي أَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْهُمْ؟
مونږ ليدلې نه دې نبي عليه السلام وفرمايل چې پنځوس يهوديان به قسم او خوري (ستاسو د دې شبهې نه) به

قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ قَوْمٌ كُفَّارٌ
تاسو پاک کړي هغوی عرض وکړو ای د الله رسوله! هغوی کافر دي (د هغوی د قسمونو څه اعتبار دی؟)

فَفَدَاهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قِبَلِهِ.
نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (د فتنې او فساد د ختمولو دپاره) د مقتول وارثانو ته د خپل طرف نه ديت اداء کړو

وَفِي رِوَايَةٍ: «تَحْلِفُونَ خَمْسِينَ يَمِينًا
او په يو روايت کې دا الفاظ دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل تاسو پنځوس قسمونه او خورئ او د خپل

وَتَسْتَحِقُّونَ قَاتِلَكُمْ أَوْ صَاحِبَكُمْ» فَوَدَاهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
مقتول يا يې دا وفرمايل چې د خپل ملګري د ديت مستحق شئ (د دې نه پس) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خپل

مِنْ عِنْدِهِ بِمِائَةِ نَاقَةٍ[1]
طرف نه سل اوښان ديت اداء کړو. (بخاري ومسلم)

## وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ مِنَ الْفَصْلِ الثَّانِي

**توضيح : فتفرقا في النخل** : يعني عبد الله بن سهل او حويصه بن مسعود خيبر ته تلي وو ځکه چې د خيبر د فتح کيدو نه پس ځمکې په مسلمانانو کې تقسيم شوې وې نو مسلمانان به کله کله د خپلو

(1) أخرجه البخاری فی صحيحه ١٠/٥٣٥ رقم الحديث ٦١٤٣-٦١٤٢ ومسلم فی ٣/١٢٩٢ رقم الحديث ١٦٦٩-٢) والترمذی فی السنن ٤/٢٢

زمکو کتو په غرض هلته تلل يهود هسې هم د مسلمانانو جاني دشمنان وو په دې باندې مزيد دا چې هغوی دې زمکو لره خپل حق ګڼلو په دې وجه هلته وقتًا فوقتًا حالات خرابولو لره به يې بد امني خوروله په دې ماحول کې دا دوه صحابه کرام هلته تلې وو او کله چې ديوبل نه جدا شول نو د موقع موندلو سره د خيبر يهوديانو عبد الله بن سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره په باغونو کې شهيد کړو، دې يهوديانو روستو د خيبر حالات نورهم خراب کړل او بد امني يې خوره کړه، هلته فحاشي په ترقی وه نو حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل د خلافت په زمانه کې هغوی لره د نبي اکرم ﷺ د فرمان مطابق د شام زمکې طرف ته وشړل. (المرقات ۹۱/۷)

کبرالکبر د دې حديث نه يو ادب ملاويږي چې د احترام او اکرام او دادب تقاضا داده چې په مجلس کې به کشران خاموش وي او مشران به خبرې کوي. (المرقات ۹۲/۷، الکاشف: ۱۱۷/۷)

دارنګه د دې حديث نه يو تعليم دا ملاو شو چې په حدودو کې وکالت جائز دی او د غائب سره سره د حاضر وکالت هم جائز دی، دلته د مقتول ولي او حقيقي ورور عبد الرحمن بن سهل موجود وو خو د کشرۍ په وجه سره نبي عليه السلام د خبرو کولو حکم نورو ته وکړو چې مشران وو او د تره ځامن يې وو، د دې حديث نه دا خبره ثابته شوه چې په قسامت کې به د مدعي نه مخکې قسم واخستلی شي دا د جمهورو مسلک دی داحنافو دليل راتلونکي روايت کې دی. (المرقات ۹۲/۷)

## د قسم ابتداء د مدعاعليه نه کول پکار دي

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ: أَصْبَحَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مَقْتُولًا بِخَيْبَرَ |
| حضرت رافع بن خديج وايي چې په انصارو کې يو سړی (يعني عبد الله بن سهل) په خيبر کې قتل کړی شو |
| فَانْطَلَقَ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| نو د هغه وارثان (يعني د هغه ځامن او د تره ځامن) يې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شو او خپله |
| فَذَكَرُوا ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ: «أَلَكُمْ شَاهِدَانِ |
| مقدمه يې پيش کړه، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (هغوی ته) وفرمايل چې آيا تاسو سره ګواه شته چې ستاسو د |
| يَشْهَدَانِ عَلَى قَاتِلِ صَاحِبِكُمْ؟» قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ |
| مقتول په باره کې ګواهي ورکړي هغوی عرض وکړو چې ای د الله رسوله! هلته څوک مسلمانان خو |

لَمْ يَكُنْ ثَمَّ أَحدٌ من المسلمينَ وإنما هُوَ يهود

موجود نه وو البته يهوديان وو (چې په ظلم كولو، په فتنه او فساد خورولو او حيله گرى كې ډېر مشهور دي) هغوى

وَقد يجترؤن عَلَى أَعْظَمَ مِنْ هَذَا

خو ددې نه هم دلوى كار جرأت لري (لكه پيغمبران قتلول، دالله تعالى په كلام كې تحريف كول او دالله تعالى داحكامو

قَالَ: «فَاخْتَارُوا مِنْهُمْ خَمْسِينَ فَاسْتَحْلِفُوهُمْ».

نه ښكاره سركشي كول) نبي عليه السلام وفرمايل ښه ده ته په هغوى كې پنځوس كسان منتخب كړه او دهغوى نه

فَأَبَوا فَوَدَاهُ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قسمونه واخله خو د مقتول وارثانو ديهوديانو نه دقسم اخستلو نه انكار وكړو نو نبي عليه السلام ددې

مِنْ عِنْدِهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

مقتول ديت دخپل طرف نه وركړو. (روايت كړې دې ابو داؤد)

**توضيح : الكم شاهدان :** دا حديث په دې واضح دلالت كوي چې په قسامت كې به دمدعي نه مخكې گواهان وغوښتلى شي كچيرې گواه نه وي نو بيا به مدعا عليه نه قسم اخستلى شي او همدا دشريعت عامه ضابطه هم ده او په دې باندې داحنافو عمل دى **البينة علي المدعي واليمين على من انكر** احناف وايې چې ددې روايت نه مخكې روايت كې اجمال دى او ممكنه ده چې په بيان كولو كې د راويانو نه تقديم او تاخير شوى دى، لهذا ددې مجمل په مقابله كې دا مفسر روايت اخستل زيات مناسب دى، او صاحب د مشكوة طرز بيان هم داسې دى چې هغه راتلونكى روايت بطور تفسير او بطور وضاحت راوړې. (المرقات ۹۵/۷)

[1] أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٦٦١ رقم الحديث ٤٥٢٤

# باب قتل اهل الردة والسعاة بالفساد

# د مرتدو او فسادیانو دقتل کولو بیان

إِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللّٰهَ وَرَسُولَهٗ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُّقَتَّلُوٓا أَوْ يُصَلَّبُوٓا (المائدة: ۳۳)

**الردة:** دا باب د مرتد دقتل او د فساد کونکو دقتل متعلق دی. ارتدَّ یرتدُّ ارتدادا، دا د شاتللو او واپس کیدلو په معنی سره دی، چې کوم سړی د اسلام قبلیدو نه پس د اسلام نه واوړي هغه ته مرتد وایې، شاه ولي الله رحمه الله د ردت او ارتداد تعریف داسې کوي: د وجود ایمان نه پس د کفر کلمه په ژبه باندې د راوستلو نوم ردت او ارتداد دی، یعني په ژبه باندې داسې کلمه راشي، چې دضروریاتو د دین نه په انکار باندې مبني وي یا په تکذیب باندې مبني وي یا د دین دیو حکم پورې په استهزاء باندې مبني وي یا قصدًا داسې فعل ترې نه وشي چې په استهزاء او د دین په سپکاوي باندې دلالت کوي، د ارتداد دپاره دسړي عاقل کیدل شرط دی او بالغ کیدل هم شرط دی، لهذا په لیوني او نابالغ ماشوم باندې دارتداد حکم نه نافذکیږي. چې کوم سړی مرتد شي نو په هغه به دوباره اسلام پیش کولی شي که څه شک او شبهه وي نو هغه به لرې کړی شي ددې مقصد دپاره مرتد ته درې ورځې مهلت ورکولی شي، که په دې ورځو کې هغه په اسلام کې داخل شي نو ټیک ده او که نه نو قتلولی به شي مرتد ته د اسلام دوباره مهلت ورکول مستحب دي واجب نه دی، ځکه چې یو ځل واجب دعوت ورته رسیدلی دی، کچرې مرتد مهلت غواړي نو د امام شافعي په نزد درېو ورځو پورې مهلت ورکول واجب دي، بعضې علماء فرمایې چې مهلت ورکول واجب او ضروري نه دي ځکه چې د **من بدل دينه فاقتلوه** چې کوم حدیث دی په هغې کې د مهلت ورکولو څه ذکر نشته دی. بهرحال درې ورځو پورې به ددې مرتد خبرې اوریدلی شي او ده لره به ښه دپوهه کولو موقع ورکولی شي او بهتره داده چې ده لره دې په جیل کې وساتلې شي که منع نه شو نو قتل دې کړی شي. ښځه کچیرې د اسلام نه واوړي نو د احنافو په نزد ددې سزا جیل دی او پوهه کول دي قتلول یې جائز نه دي ځکه په ډیرو احادیثو کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ښځو دقتل نه منع فرمایلې ده، دارنګه ښځه ناقص العقل ده هغه د دشمن په صفونو کې ننوتو سره دجنګیدو قابل نه ده ها کچیرې یوه کافره ښځه سرداري کوي یا مال ورکوي نو هغه دې قتل کړی شي. د شوافعو ائمه د ښځې دقتل قائل دي دهغوی دلیل دحدیث عموم دی چې په کې دي چې **من بدل دينه فاقتلوه** د هغوی په نزد دا حدیث دمرتدې قتل ته هم شامل دی، بهرحال اسلام یو همه ګیر (شامل) آفاقي دین دی، چې دین فطرت دی ددې نه تر اوسه پورې یو کس هم په دې وجه نه دی مرتد شوی چې هغه ته اسلام ناخوښه شوی

وي یا په اسلام کې ورته نقص ښکاره شوی وي، څومره خلق چې مرتد شوې دي هغوی ددنیاوي مفاداتو او خواهشاتو ښکار کیدو سره مرتدشوې دي. بیا که څوک دلوی نه لوی سړی هم مرتدکیدو سره اسلام نه واوړي نوتاریخ گواه دی نوددې په بدله کې الله تعالی ددې مرتد نه په څو چنده بهتر سړي ته په اسلام کې د داخلیدو توفیق ورکوي.**سعاة** : دا دساعي جمع ده او دکوشش په معنی سره دی دلته ددې نه داسې سړی مراد دی چې په دین اسلام اومسلمانانو کې دفساد خورولو کوشش کوي،د سعاة مصداق شو لاره وهونکی ډاکواو لاره لوټونکي خلق دي نوپه (انماجزاءُ الذین یحاربون الله ورسوله) آیت سره هغه خلقو طرف ته اشاره موجوده ده.

**د ارتداد صورتونه**: دمرتداو ارتداد څو صورتونه دي دټولو ذکر کول مشکل دي البته دڅو اصولي صورتونو ذکر کول ضروري دي، مثلاً دالله تعالی په ذات اوصفاتو کې دڅه نه انکار یا توهین کول،په انبیاء کرامو کې دچا انکار یاتوهین کول، الله تعالی او دهغه رسول ﷺ طرف ته د څه نامناسب خبرې نسبت کول، دکفرکلمې ویل او د کفر موجب افعال کول، دقرآن مجید نه انکار کول یا هغې ته د ناقص او محرف نسبت کول، یاقولاً او فعلاً ددې توهین کول،دمونځونو او نورو عباداتو نه انکارکول اود هغې توهین کول، د دین دعلم او دعلماؤ متعلق دکفر موجبونکی قول او یا فعل کول، حرام ته حلال او حلال ته حرام ویل، دقیامت نه انکار کول یا ددې متعلق دشریعت منافي عقیده ساتل، د عالم بالا او فرښتو نه انکار کول یاددې توهین اوتحقیر کولت، دجنت او دوزخ نه انکار یا دهغې پورې مذاق کول داټول د ارتداد باعث اقوال وافعال دي. دمرتدینو خلاف جهاد کول ضروري دي صدیق اکبر رضی الله عنه نبي علیه السلام دوفات نه پس دمرتدینو خلاف یو کاله پورې جهاد کړی وو دطرفینو نه شپېته زره کسان مړه شوې وو نو بیا په جزیره عرب کې اسلام په هغه نهج باندې راغی کوم چې په عهد نبوي ﷺ کې وو.

## دمرتدو او د فسادیانود قتل کولو بیان

### الْفَصْلُ الأَوَّل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾عَنْ | عِكْرِمَةَ | قَالَ: | أُتِيَ | عَلِيٌّ بِزَنَادِقَةٍ |
| حضرت عکرمه وائي چې یو ځل څه زندیقان دحضرت علي کرم الله وجهه په خدمت کې راوستلی شو | | | | |
| فَأَحْرَقَهُمْ | فَبَلَغَ | ذَلِكَ | ابْنَ | عَبَّاسٍ فَقَالَ: |
| نو (حضرت علي رضی الله عنه) دوي وسوځول کله چې ددې خبر حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته وشو نو هغوی وفرمایل | | | | |

| | |
|---|---|
| لَوْ كُنْتُ أَنَا لَمْ أُحْرِقْهُمْ لِنَهْيِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | |
| كه چيرې زه وى نو ما به نه سوځول ځکه چې رسول کريم ﷺ ددې ممانعت فرمايلى دى چې | |
| «لَا تُعَذِّبُوا بِعَذَابِ اللهِ» | |
| چې څوک دې په داسې عذاب کې نه مبتلا کوي چې د الله تعالى دعذاب په شان وي (لکه څوک په | |
| وَلَقَتَلْتُهُمْ لِقَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ | |
| اور کې سوځول) بلکه ما به هغوي قتلول ځکه چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې کوم کس | |
| بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ (صَحِيح)[1] | |
| خپل دين بدل کړي هغه قتل کړئ. (بخاري) | |

**توضیح: اتي بزنادقة:** زنادقه دزنديق جمع ده او د زنديق تفسير اوتشريح کې دعلماو مختلف اقوال دي: رومبى قول دادى چې زنديق داسې سړى دى چې د اسلام دحقانيت اقرار کوي مګر ددين اسلام د احکاماتو اوضرورياتو ددين داسې تفسير اوتشريح کوي چې دسلفو صالحينو او د صحابو او تابعينو د تشريح اوتوضيح خلاف وي، يا دشريعت څه ثابت شوى قطعي حکم مثلاً جنت دوزخ لره منل خوددې دواړو دخپل طرفنه تشريح کوي، او وايې چې جنت څه خاص ځاى اومقام نه دى بلکه د زړه راحت او اطمينان دى او دوزخ نه مراد قلبي غم او پريشاني ده په خارج کې ددې دواړو څه حقيقت نشته دى. بعضو ويلې دي چې زنديق هغه دى چې د اسلام خلاف عقيده ساتي اوددې خورول او اظهار هم کوي او ورسره داسلام دعوي هم کوي. بعضې علماء وايې چې اصل کې زنديق دمجوسيانو د يو قوم نوم دى چې د زرتشت مجوسي د خودساخته کتابزند پيروکار دي خو په عامه اصطلاح کې هرملحد في الدين ته زنديق ويلى شي. ځينو علماو دعبدالله بن سباء يهودي د منافق قوم افرادو ته زنديق ويلې دي. کومو چې حضرت علي رضي الله عنه ته خداى ويلو يا حضرت علي رضي الله عنه هغوى منع کول خو هغوى ويل چې حضرت علي رضي الله عنه تواضع کوي، همدا علي پاس په عرش باندې الله وو (العياذبالله) او لاندې دحضرت علي رضي الله عنه په شکل کې راکوز شو حضرت علي رضي الله عنه ډير پوهه کړل مګر داخلق منع نه شول ځکه چې دا خلق فتنه اوفساد خورولو دپاره اسلام ته راغلې وو. حضرت علي رضي الله عنه دې خلقو لره دسوځولو حکم وکړو او کندې يې وکنستې

---

[1] أخرجه البخارى فى صحيحه ۱۲/۲۶۷ رقم الحديث ۶۹۲۲ وأبوداود فى السنن ۴/۵۲۰ رقم الحديث ۴۳۵۱ والترمذى فى ۴/۴۸ رقم الحديث ۱۴۵۸ والنسائى ۷/۱۰۴ رقم الحديث ۴۰۵۹ وابن ماجه فى ۲/۸۴۸ رقم الحديث ۲۵۳۵

اوپه هغې کې يې أور بل کړو. او دې تهولو لره يې وسوځول. هرکله چې حضرت علي رضي الله عنه دوي وسوځول نو حضرت ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل کچيرې زه د علي رضي الله عنه په ځای وی نو ما به په اُور کې دسوزولو په ځای قتل کړې وو، يا به مې په بله ذريعه مړه کړې وو ځکه چې د اُور په ذريعه قتلول د الله تعالى حق دی په زنديق او منافق کې دا فرق دی چې منافق خپل غلط عقائد پټوي او مګر زنديق خپل عقائد ښکاره کوي. علماو ليکلي دي چې دزنديق توبه معتبره نه ده لهذا دده دتوبې اواستغفار څه ضرورت نشته هغه لره قتلول دي، مګربعضونورو علماوويلي چې دزنديق توبه جائز او قبوله ده امام نووي د مسلم په شرح کې ليکلي چې راجح همدا ده چې د زنديق توبه قبوله ده ځکه چې د توبې احاديث مطلق اوصحيح دي اګرچه د زنديق د توبې قبليدو يا نه قبليدو کې پنځه اقوال دي. (المرقات ۹۷،۹۸/۷)

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه رايه چې کله حضرت علي رضي الله عنه واوريده نو د زنادقو سوځول يې بند کړل او وې فرمايل دابن عباس رضي الله عنه قول رښتيا دی، معلومه شوه چې حضرت علي رضي الله عنه د اجتهاد په طور باندې دوی لره سوځول دې دپاره چې دنورو دپاره عبرت جوړ شي، او حضرت علي رضي الله عنه ته د الله ويلو دا جرم بل يو کس ونه کړي.

## چاته په أور کې دسوزولو سزا مه ورکوه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «إِنَّ | | | |
| اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه وائي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل چې د اُور عذاب خو | | | |
| النَّارَ | لَا | يُعَذِّبُ | بِهَا |
| صرف الله تعالى ورکوي (لهذا د الله تعالى نه علاوه بل چا دپاره مناسب نه دي چې هغه يو انسان لره | | | |
| إِلَّا | اللهُ». | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱) | |
| دهغه په څه جرم سره په اُور کې دسوزولو سزا ورکړي.) (بخاري) | | | |

## د خوارجو دفرقې نشاندهي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: «سَيَخْرُجُ | | | | | | |
| اوحضرت علي کرم الله وجهه وايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه دا فرمان واوريدلو چې نزدې ده | | | | | | |
| قَوْمٌ | فِي | آخِرِ | الزَّمَانِ | حُدَّاثُ | الْأَسْنَانِ | سُفَهَاءُ | الْأَحْلَامِ |
| ددې زمانې په آخر کې به څه خلق پيدا شي چې ځوانان به وي دلږ عقل والا به وي خلقو ته به ښې | | | | | | |

(۱) أخرجه البخارى فى صحيحه ٦/١١٥ رقم الحديث ٢٩٥٤

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَقُولُونَ | مِنْ | خَيْرِ | قَوْلِ | الْبَرِيَّةِ | لَا | يُجَاوِزُ | إِيمَانُهُمْ | حَنَاجِرَهُمْ |

خبرې کوي مګر دهغوی ایمان به د حلق نه مخکې نه ځي (د ایمان نه مراد مونځ دی یعني دهغوی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَمْرُقُونَ | مِنَ | الدِّينِ | كَمَا | يَمْرُقُ | السَّهْمُ | مِنَ | الرَّمِيَّةِ | |

مونځ به نه قبلیږی) او هغه خلق به د دین نه داسې اوځي څنګه چې غشی د ښکار نه اوځي لهذا په تاسو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَيْنَمَا | لَقِيتُمُوهُمْ | فَاقْتُلُوهُمْ | فَإِنَّ | فِي | قَتْلِهِمْ |

کې چې کوم کس داسې خلقو سره ملاو شي نو هغوی قتل کړئ ځکه چې دهغوي د قتلولو به هغه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَجْرًا | لمن | قَتلهمْ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ» | متفق | عليه | (صَحِيح)[1] |

سړي ته د قیامت په ورځ انعام ملاویږي څوک چې هغوي قتل کړي. (بخاري و مسلم)

**توضیح: حداث الاسنان** : په حداث کې دال مشدد دی دا دحدیث جمع ده خو خلاف قیاس ده، ددې نه نوعمر ځوان مراد دی . **اسنان** دسن جمع ده غاښونو ته وائي دعمر نه کنایه ده ځکه چې دغاښونو په اعتبارسره عمربدلیږي. **سفهاء** دسفیه جمع ده کمزوري عقل والا ،مراد بې عقله اوبې وقوف دي **الاحلام:** دحلم جمع ده په حاباندې کسره ده عقل ته وایې **خیرقول البریه** د **بریة** لفظ د ځمکې دپاسه موجود مخلوق دپاره استعمالیږي یعني دښو ښو خلقو ښې ښې خبرې نقل کولو سره بیانوي،دلته دا خبره دیادساتلو ده چې دمشکوة شریف په ټولو نسخو کې عبارت داسې دی چې د خیر لفظ په قول باندې مقدم دی خو په مصابیح کې دقول لفظ په خیرباندې مقدم دی عبارت داسې دی **من قول خیرالبریة** شیخ اشرف رحمه الله فرمائي چې دخیرالبریه نه مراد دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دتعلیماتو خبرې کوي، بعضو دخیرالبریة نه مراد قرآن اخستی دی یعني دقرآن ایتونه لولي مګرپه دې باندې ایمان نه راوړي ایمان یې صرف په ژبه باندې وي زړه دایمان نه خالي وي (المرقات ۱۰۱/۷) **حناجر** د **حنجرة** جمع ده حلقوم او مرۍ ترې مراد ده .

**یمرقون من الدین مرق یمرق مرقاً** د نصرینصر نه د وتلو په معنی سره دی او **الدین** نه ملاعلي قاري د وخت دحق پرست باچا اطاعت مراد اخستی دی یعني دا دین به داسې خارج شي لکه چې په ښکار پسې ویشتلی شوی غشی دمینځ نه په تیزی سره اوځي او په وینې سره بالکل ککړ نه وي دا خلق به هم داسې داسلام نه صفا صفا وځي او په دوی به داسلام هیڅ اثر نه وي ددې پیشن ګوئې مصداق خوارج دي. (المرقات ۱۰۱/۷)

---

[1] أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۲۹۵ رقم الحدیث ۶۹۳۰ ومسلم فی ۲/۷۴۶ رقم الحدیث (۱۰۶۶-۱۵۴) وأبوداود فی السنن ۵/۱۲۴ رقم الحدیث ۴۷۶۷ وأحمد فی المسند ۱/۱۳۱

**د خوارجو شرعي حيثيت څه دی** علامه خطابي دخوارجو متعلق فرمائي چې داد مسلمانانو نه يوه فرقه ده مګر ګمراهې، راګيره کړې ده دهغوی ذبيحه حلاله ده او د هغوی دښځو سره نکاح جائزده. دحضرت علي رضي الله عنه دخوارجو متعلق تپوس وکړی شو چې آيا داخلق کافر دي؟ نودوي ورته وفرمايل چې دکفر نه داخلق تختيدلې دي تپوس وکړی شو چې آيا دامنافقان دي.؟ دوي ورته په جواب کې وفرمايل چې منافقين ذکر نه کوي داخلق سحرماښام الله تعالى يادوي. تپوس وکړی شو چې بيا داکوم خلق دي دهغوی شرعي حيثيت څه دی، حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل چې دا يو فرقه ده چې دوي لره ګمراهې راګير کړې دي چا څه ښه ويلي دي:

ایک ہی بس لفظ سے ہے دونوں کا خروج خائے خر سے خارجی اور رائے خر سے رافضی

ديو لفظ نه د دواړو فرقو خروج دخائی خر نه خارجي او د رائی خر نه رافضي

په توضيحات جلداول صفحه ۳۱۴ باندې د تقدير د منکرينو د تکفير او د عدم تکفير بحث لره هم اوګورئ.

د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت معاويه رضي الله عنه په مينځ کې د تنازع په دوران کې د واقعه تحکيم په موقعه باندې خوارج پيدا شو دا د حضرت علي رضي الله عنه ملګري وو او هم دده خلاف يې خروج وکړو او دکوفې سره حروارا مقام کې جمع شول او دهغوی تعداد شپږ زره وو په جنګ نهروان کې حضرت علي رضي الله عنه دوی ته شکست ورکړو قتل يې کړل، نن صبا د سلطنت عمان فرمانروا سلطان قابوس دخوارجو نه دی په دغه ملک کې دخوارجو زور دی نور تفصيل را روان دی. (المرقات ۷/۱۰۱)

## دخوارجو په باره کې دنبي عليه السلام پيشن ګوئي

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وائي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل څه ورځې پس به زما امت په

«يَكُونُ أُمَّتِي فِرْقَتَيْنِ فَيَخْرُجُ مِنْ بَيْنِهِمَا

دوه فرقو کې تقسيم شي او په دواړو فرقو کې به يو داسې جماعت پيدا شي چې دحق د اطاعت نه به وتونکي وي

مَارِقَةٌ يَلِي قَتْلَهُمْ أَوْلَاهُمْ بِالْحَقِّ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

ددې جماعت دمرګ ذمه داري به په دې دواړو فرقو کې هغه سړی پوره کړي چې حق ته به زيات نزدې وي. (مسلم)

**توضيح : فرقتين** : ددې دواړو فرقو نه دحضرت علي رضي الله عنه او د حضرت معاويه رضي الله عنه حاميان دوه فرقې مراد دي په دې کې يوه فرقه شيعه ګان علي يعني دحاميان علي په نوم سره مشهور وو او دويمه فرقه شيعه ګان معاويه په نوم سره مشهوره وه. (المرقات ۷/۱۰۱)

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۷۴۶ رقم الحديث (۱۰۶۴-۱۵۱) واحمد في المسند ۳/۳۲

مارقة: د نصرینصر نه دوتلو په معني دی اي جماعة مآقة یعني دامیر اطاعت نه وتلو والا فرقه ددې نه مراد خوارج دي چې د تحکیم د واقعې په وخت پیداشو ان الحکم الا لله نعرې به یې لګولې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره یې کافر ګرځولو او دهغه خلاف یې جنګ شروع کړو په جنګ نهروان کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی شپږ زره کسان مړ کړل. (المرقات ۱۰۲/۷)

يلي قتلهم اولاهم بالحق ددې کلام مصداق حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی دوي دخوارجو سره څو جنګونه کړي دي په جنګ نهروان کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څو زره خوارج هلاک کړې دي. په دې کې څه شک نشته دی چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپل مینځ کې په تنازع کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حقه باندې وو او مونږ حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته هم بدرد نه شو ویلی ځکه هغه اجتهادي غلطۍ باندې وو په دې جمله کې هم د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مقابله کې دوي لره په حقه ګڼلی شوې دې مګر حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته اولی واقدم بالحق ویلی شوی دی. (المرقات ۱۰۲/۷)

## دمسلمان په قتل سره سړی کفر ته نزدې کیږي

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ جَرِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: |
| او حضرت جریر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد او فرمائیلو د حجة الوداع په موقع باندې |
| «لَا تَرْجِعُنَّ بَعْدِي كُفَّارًا |
| مسلمانانو لره مخاطب کولو سره چې خبردار زمانه پس د کفر په ذریعې سره روستو لاړ نشئ چې |
| يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بعض» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| تاسو دیو بل څټونه ووهئ. (بخاري و مسلم) |

**توضیح: کفارًا:** کوم سړی چې د یو مسلمان په ناحقه قتل لره حلال ګڼړي هغه کافر کیږي، دویم مطلب دادی چې دلته حقیقي کفر مراد نه دی بلکه د کافرانو والا کار مراد دی سړي د کفارو په شان دفعل ارتکاب وکړو، دریم جواب دادی چې دا سړی په دې کار سره کفر ته نزدې شو، دا جوابات په دې وجه ورکړی شوې دي چې د اهل السنت په نزد په لویه ګناه کولو سره نه کافر کیږي. (المرقات ۱۰۳/۷)

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نقل کړې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمائیل چې کله د دوو |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۲۶ رقم الحديث ۷۰۸۰ ومسلم في ۱/۸۱ رقم الحديث (۶۵-۱۱۸) وأبوداود في ۵/۶۳ رقم ۶۸۷۵

«إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ حَمَلَ أَحَدُهُمَا عَلَى أَخِيهِ السِّلَاحَ

مسلمانانو په خپل مینځ کې مخامتیا وشي چې په دوی کې یو په بل مسلمان وروړ باندې وسله اوچته کړي

فَهُمَا فِي جُرُفِ جَهَنَّمَ فَإِذَا قَتَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ

نو هغه دواړه د دوزخ غاړې ته رسي بیا کچیرې دوی کې یو بل لره قتل کړي نو دواړه به په یو ځای

دَخَلَاهَا جَمِيعًا». وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ: قَالَ:

دوزخ ته غورزولی شي. په یو روایت کې دا ابوبکره رضي الله عنه نه داسې نقل شوې دي چې نبي علیه السلام وفرمایل

«إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ بسيفهما

چې کله د دوو مسلمانانو په خپل مینځ کې په تورو سره مخامخوالی وشي او په دوی کې یو بل لره

فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ»

قتل کړي نو قاتل او مقتول به دواړه د دوزخ اور ته غورزولی شي ما عرض وکړو چې د قاتل دوزخ ته

قُلْتُ: هَذَا الْقَاتِلُ

تلل خو ښکاره دي چې ده ظلم کړی دی په دې وجه به هغه دوزخ ته غورزولی شي خو د مقتول په باره

فَمَا بَالُ الْمَقْتُولِ؟

کې داسې ولې دي؟ چې هغه خو مظلوم دی ده لره په دوزخ کې ولې اچولی شي؟ نبي علیه السلام وفرمایل

قَالَ: «إِنَّهُ كَانَ حَرِيصًا عَلَى

په دې وجه چې هغه هم د خپل ملګري (حریف) په قتل کولو باندې آماده وو (دا بله خبره ده چې د

قَتْلِ صَاحِبِهِ» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

هغه وار خالي لاړو او د دویم وار کارو کړو) (بخاري و مسلم)

**توضیح: جرف جهنم**: د دوزخ غاړې ته جرف ویلی شوې ده ځکه چې جرف په سیلاب سره د زمکې هغه کټ شوې حصې ته وایې چې د هغې غاړې ډیرې کمزورې شوې وي. (المرقات ۱۰۳/۷)

**فالقاتل والمقتول**: قاتل او مقتول دواړه به په دوزخ کې هغه وخت وي هر کله چې په دواړو کې یو هم په حق نه وي او کله چې یو په حقه وي نو هغه به په دوزخ کې نه وي. (المرقات ۱۰۴/۷)

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۱۹۲ رقم الحديث ۶۸۷۵ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۱۴ رقم الحديث (۲۸۸۸-۱۶) واخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۶۲ رقم الحديث ۴۲۶۸ واخرجه النسائي في ۷/۱۲۵

حريص: يعني د مقتول په زړه کې د قاتل د قتل زبردسته جذبه وه او د عزم درجه وه چې زه دا قاتل قتلوم خو قاتل دده په قتل باندې مخکې نه کامياب شو، کچيرې د مقتول په زړه کې د مخکې نه د قاتل د قتل منصوبه نه وه او کله چې قاتل حمله وکړه نو دې مقتول صرف دفاع کوله نو په دې صورت کې به د هغه نيول نه کيږي ځکه چې اسلام په دې صورت کې د دفاع کولو حق ورکړی دی.

## د مرتد او د ډاکوانو سزا

﴿۷﴾ وَعَن أَنَسٍ قَالَ: قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَرٌ مِنْ عُكْلٍ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې د قبيله د عکل څه خلق راغلل

فَأَسْلَمُوا فَاجْتَوَوُا الْمَدِينَةَ

او اسلام يې قبول کړو مګر په هغوی د مدينې آب او هوا موافق رانغله چې د هغې په وجه سره په داسې مرض مبتلا شول

فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَأْتُوا إِبِلَ

چې خيټې يې وپړسيدې او رنګونه يې زيړ شول نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغوي ته وفرمايل چې تاسو د ښار نه بهر د زکوة داوښانو

الصَّدَقَةِ فَيَشْرَبُوا مِنْ أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا فَفَعَلُوا فَصَحُّوا

د څريدو ځای ته لاړشئ او هلته د هغې اوښانو متيازې او پی څکئ، نو هغوي په دې باندې عمل وکړو او ښه شول بيا هغوي (په

فَارْتَدُّوا وَقَتَلُوا رُعَاتَهَا وَاسْتَاقُوا الْإِبِلَ

داسې ګمراهۍ کې مبتلا شول چې) مرتد شول او (بله دا چې) د هغه اوښانو څرونکی يې قتل کړو هغه اوښان مخکې شړل

فَبَعَثَ فِي آثَارِهِمْ فَأُتِيَ بِهِمْ

(يعني روان يې کړل) کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د دې خبرې علم وشو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغوي پسې څو سواره وليږل

فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ

چې هغه ټول ونيسي او رايې ولې (د جرم د سزا په طور باندې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په حکم سره) يې د هغوي لاس خپې کټ کړل

وَسَمَلَ أَعْيُنَهُمْ ثُمَّ لَمْ يَحْسِمْهُمْ

او د هغوي سترګې يې را وېستلې تر دې چې د هغوي لاس او خپو لره په ګرم تيلو سره ونه داغلی شو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَقّٰى | مَاتُوا ". | (متفق عليه)[1] وَفِي | رِوَايَةٍ: | فَسَمَّرُوا |
| آخر دا چې هغوی ټول مړ شول. (بخاري و مسلم) په يو روايت کې داسې دی چه د هغوی په سترګو کې ګرم | | | | |
| أَعْيُنَهُمْ | وَفِي | رِوَايَةٍ: | أَمَرَ | بِمَسَامِيرَ |
| سلايان وو هلې شو او په يو روايت کې دا الفاظ دي چه نبي عليه السلام د سلايانو ګرمولو حکم ورکړې، هر کله چې هغه | | | | |
| فَأُحْمِيَتْ | فَكَحَلَهُمْ | بِهَا | وَطَرَحَهُمْ | |
| ګرم شو، نو هغه (د اوسپنې) سلايانې د هغوی په سترګو کې وګرځول شو، او ددې څخه وروسته هغه خلق د مدينې په | | | | |
| بِالْحَرَّةِ | يَسْتَسْقُونَ | فَمَا | يُسْقَوْنَ | حَقّٰى مَاتُوا |
| غرونو کې وغورځول شو، کله چې به هغوی او به غوستې هغوی ته به او به نه ورکول کيدې، ددې پورې چې ټول مړه شول. | | | | |

**توضيح**: **نفر**: د دريو نه واخله تر دلسو سړو په جماعت باندې د نفر د لفظ اطلاق کيدی شي، وايي چې دا خلق آته کسان وو. (المرقات ۱۰۴/۷)

**من عكل**: دا ديوې قبيلې نوم دی د بخاري په بعضې روياتو کې د دې سره **عرينه** لفظ هم راغلی دی خو دشک سره او د عرينة الفاظ دي، په بعضې رواياتو کې صرف د عرينه ذکر راغلی دی او دبخاري په يو روايت کې **عكل وعرينة** دعطف سره راغلې دې او همدا راجح او کامل روايت دی مجعم طبراني کې دي چې په دوي کې څلور سړي د عرينه د قبيلې وو او درې د عکل وو. (المرقات ۱۰۴/۷)

**فاجتووا**: اجتوا هغه بيمارۍ ته وائي چې د يوې علاقې د آب او هوا په ناموافق کيدو سره راشي چې په هغې سره خېټه خرابه شي، مطلب دا چې دې خلقو ته د مدينې آب او هوا موافق رانغله او بيمار شول او د مخونو رنګ ئې بدل شو. (المرقات ۱۰۴/۷)

**ابل الصدقة** چونکه دا خلق مسافر وو او فقراء هم وو په دې وجه د بيت المال داوښانو نه ورته فائده اوچتول جائز وو **فيشربوا من ابولها** امام مالک رحمه الله، امام احمد بن حنبل رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائي چې د کومو ځناروو غوښه پاکه ده د هغې متيازې هم پاکې دي او د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۱۱۱ رقم الحديث ۶۸۰۴ ومسلم في ۳/۱۲۹۶ رقم الحديث (۹/۱۶۷۱) وأبوداود في السنن ۴/۵۳۱ رقم الحديث ۴۳۶۴ والترمذي في ۱/۱۰۶ رقم الحديث ۷۲

ذکرشوې روایت نه استدلال کوي، امام ابوحنیفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله اود امام ابویوسف رحمه الله په نزد باندې دماکول اللحم ځناورو متیازې هم نجې دي، ها دامام ابویوسف رحمه الله په نزد داسې قسمه متیازې د دوائي په طور استعمالولی شي که هغه په حالت اختیاري کې وي یا حالت اضطراري کې وي، مګر د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد په حالت اختیاری کې حرامو لره بطور دوائي استعالول جائزنه دي. (المرقات ۱۰۴/۷)

ددې مسئلې تفصیل دتوضیحات جلداول ۲۵۹ باندې ذکر دی هلته یې وګورئ.

**رعاتها:** رعات د راعي جمع ده شپونکي ته وائي. **استاقوا** په دې کې سین او تاء دمبالغې دپاره دي مراد ترې **ساقوا** دی یعني کامل اهتمام او محنت سره د اوښانو شړلو سره یې وتختول. (المرقات ۱۰۵/۷)

**وسمل اعینهم** په بعضې روایاتو کې د سمر لفظ راغلي دی، علامه ابن التین رحمه الله فرمائي چې د دواړو معنی یوه ده چې په ګرمو سیخانو سره یې دهغوی سترګې راویستې، په بعضو روایاتو کې دکحل لفظ راغلی دی، ددې مطلب هم دادی **ثم لم یحسمهم** داحسم دسمع یسمع نه د داغلو په معنی سره دی کله چې د زخم نه وینه بهیږي او نه بندیږي نو هغې لره داغ ورکولی شي کله په کړېږ سره او کله په ګرمو تیلو سره داغلی شي نو بیا وینه بنده شي، دلته داسې ونه کړی شو بلکه وینه یې جاري پرېخودله. (المرقات ۱۰۵/۷)

**سوال** : په ظاهره داسې لګي چې دې خلقوسره په سزا ورکولو کې ډیره سختي وکړی شوه نو سوال دادی چې دوی سره داسې ولې وکړی شو؟

**جواب** : ددې سوال جواب خو دادی چې دلته مساوات في القصاص وو ځکه چې دې خلقو هم دشپونکي سره داسې بې رحمه سلوک کولو سره قتل کړی وو.

**دویم جواب** : داورکړی شو چې دې خلقو ډیرلوی جرم وکړو یو خو دا خلق مرتدشول دویم قاتلان شول دریم قزاقان او ډاکوان شول په دې وجه بطور عبرت دسختې نه سخته سزا ورکړی شوه دې دپاره چې د نورو دپاره د عبرت ذریعه جوړه شي.

**دریم جواب** : دادی چې دبعضې علماو خیال دی چې دا سزا هغه وخت ورکړی شوې وه کله چې په قرآن کې د ډاکوانو حکم تر هغه وخته پورې نه وو راغلی هم دا وجه ده چې دلته مثله شوې ده هرکله چې هغه په اتفاق سره منسوخ ده معلومه شوه چې داحکم ډیر مخکې وو بیا قرآني آیتونو د ډاکوانو د سزا تعین وکړو چې یو لاس او یو خپه دمختلف جهت نه کټ کړی شي، اویا په سولی وخیژولی شي یا جلاوطن کړی شي، د ائمه احنافو په نزد دجلاوطن کولو نه مراد په جیل کې اچول دي دې دپاره چې داخلق توبه وکړي. (المرقات ۱۰۵/۷)

## دلاش دشلولو او مثله کولو ممانعت

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿۸﴾عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُثُّنَا عَلَى الصَّدَقَةِ |
| حضرت عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صدقې او خيرات په ورکولو باندې |
| وَيَنْهَانَا عَنِ الْمُثْلَةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] (جيد) وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ أَنَسٍ[2] |
| مونږ ته ترغيب راکولو او د مثلې نه يې منع کولو (ابوداؤد) نسائي دې روايت لره د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړې دی. |

**توضيح : المثلة** : مثله شکل ورانول، د مرګ نه پس د بدن د اندامونو مثلاً پوزه، غوږ، سترګې او لاس خپې کټ کولو ته وايې د انساني کرامت او شرافت پيش نظر اسلام د داسې کولو نه منع کړې ده ددې نه معلومه شوه چې ايم بي بي ايس د ډاکټرۍ کورس د پاره د انساني اندامونو کټ کول او د مړو لاشونه د قبرونو نه په پټه راويستل او بيا په هغوی مشق کول جائز نه دي، اسلام صرف د مسلمانانو سره مثله نه بلکه د کافرانو سره يې هم د مثلې کولو نه منع کړې ده، ددې نه دا هم معلومه شوه چې د خپل مرګ نه پس د خپلو سترګو يا ګردو او نورو اندامونو عطيه کولو په ژوند کې اعلان کول جائز نه دي ځکه چې د ابدن د دې سړي ملکيت نه دی. (المرقات ۱۰۷/۷)

## د ځناورو سره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د رحمت جذبه

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: كُنَّا مَعَ |
| او حضرت عبد الرحمن بن عبد الله د خپل پلار نه نقل کوي چې هغوي ووئيلچې يو ځل مونږ ملګري |
| رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَانْطَلَقَ لِحَاجَتِهِ |
| وو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره په سفر کې هر کله چې په يوه موقع باندې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د قضاء حاجت د پاره |
| فَرَأَيْنَا حُمَرَةً مَعَهَا فَرْخَانِ فَأَخَذْنَا فَرْخَيْهَا |
| تشريف يوړلو نو مونږ يوه حمره (مارغۍ) وليده چې هغې سره دوه بچي وو مونږ هغه دواړه بچي |
| فَجَاءَتِ الْحُمَرَةُ فَجَعَلَتْ تَفْرُشُ |
| راونيول، ددې نه پس حمره (مارغۍ) راغله او خپلې دواړه وزرې يې په زمکه خورې کړې او خپله خيټه يې |

---

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۳/۱۲۰ رقم الحديث ۲۶۶۷ وأخرجه الدارمی فی ۱/۴۷۸ رقم ۱۶۵۶ وأحمد فی المسند ۴/۴۴۰

(۲) أخرجه النسائی فی السنن ۷/۱۰۱ رقم الحديث ۴۰۴۸

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَجَاءَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| ځمکې سره ولګوله (ګويا چې احتجاج شروع کړو) نبي عليه السلام چې کله تشريف راوړلو نو نبي عليه السلام | | | | | |
| فَقَالَ: | «مَنْ | فَجَعَ | هَذِهِ | بِوَلَدِهَا؟ | |
| چې کله حمره (مارغۍ) داسې بې قراره اوليده نو وې فرمائيل چې چا دا دې د بچي په نيولو سره دا بې قراره کړې ده؟ | | | | | |
| رُدُّوا | وَلَدَهَا | إِلَيْهَا». | وَرَأَى | قَرْيَةَ | نَمْلٍ |
| ددې بچي دې ته واپس کړئ بيا نبي عليه السلام د هغه ميږو د اوسيدو ځاى وليدو کوم چې مونږ | | | | | |
| قَدْ | حَرَّقْنَاهَا | قَالَ: | «مَنْ | حَرَّقَ | هَذِهِ؟» | فَقُلْنَا: | نَحْنُ |
| سوزولى وو او وې فرمائيل چې دې ميږو لره چا سوزولې دي.؟ مونږ عرض وکړو چې مونږ سوزولى دي | | | | | |
| قَالَ: | «إِنَّهُ | لَا | يَنْبَغِي | | |
| نبي عليه السلام و فرمائيل د پروردګار نه علاوه چې د اُور مالک دى د بل چا د پاره مناسب نه دي چې | | | | | |
| أَنْ يُعَذِّبَ بِالنَّارِ إِلاَّ رَبُّ النَّارِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | | | | | |
| هغه چا لره د اُور په عذاب کې مبتلا کړي. (ابو داؤد) | | | | | |

**توضيح: حمرة:** په حاء باندې پيش دى او ميم مشدد دى دا سُور رنګ کې يوې مرغۍ ته وايې چې د چنچړې برابر وي. **فرخان** فرخ وړوکي بچي او چرګوړي ته وايې. **جعلت** د شرعت په معنى دى تفرش دا په اصل کې تتفرش دى مطلب دا چې مرغۍ کله وزر خور کړي په خپلو بچو باندې سيوري کولو سره يې پټوي دې ته تفرش وايې. خو دلته د وزرو خورولو سره د غم اظهار کول مراد دي.

**من فجع:** دا د باب تفعيل نه د درد او تکليف رسولو په معنى سره دى. (المرقات ۷/۱۰۷، ۱۰۶)

**لاينبغي اي لايجوز ولايصح:** يعني الله تعالى اُور لره په دنيا کې دانسان د نفعې د پاره جوړ کړى دى نو انسان دې د دې نه هغه نفع اوچته کړي او د ده د پاره جائز نه دي چې دا اُور د ضرر او نقصان د پاره استعمال کړي، ها الله تعالى د دې اُور خالق او مالک دى هغه دې لره په نفع او ضرر دواړو کې د استعمالولو حق لري. د ميږو په باره کې دا مسئله ده چې کله چې کچيرې هغه چا ته ضرر ورسوي نو هغه ختمول او مړه کول جائز دي د دې نه علاوه يې وژل جائز نه دي، دا رنګه ميږو لره په اُور کې سوزول هم منع دي ها د ضرر رسولو په صورت

---

[1] أخرجه أبوداود فى السنن ۳/۱۲۵ رقم الحديث ۲۶۷۵ وأحمد فى المسند ۱/۴۰۱

کې پرې دوائي اچول او په هغې سره مړه کول جائز دي په اُور سره جائز نه دي. (المرقات ۱۰۷/۷)

## د يوې باطلې فرقه په باره کې پیشن گوئي

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه او حضرت انس رضي الله عنه بن مالک د نبي علیه السلام نه نقل کوي چې هغوی وفرمایل

"سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي اخْتِلَافٌ وَفُرْقَةٌ قَوْمٌ يُحْسِنُونَ الْقِيلَ

چې نزدې ده چې زما په امت کې به اختلاف او افتراق پیدا شي يوه فرقه چې خبرې به ښې کوي خو عمل به

وَيُسِيئُونَ الْفِعلَ يقرؤون الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ

يې بد وي د دې فرقې خلق به قرآن لولي خو د هغوی لوستل به د حلق نه لاندې نه کوز يږي (يعني قبليږي به نه)

يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ مروق السَّهمِ من الرَّمِيَّةِ

او هغه خلق به د دين) يعني د وخت د امام او د علماء حق د اطاعت نه) داسې اوځي لکه څنګه چې غشی د ښکار د مينځ نه او وځي

لَا يَرْجِعُونَ حَتَّى يَرْتَدَّ السَّهْمُ عَلَى فُوقِهِ

او هغوی دين طرف ته هغه وخته پورې نه راوپس کيږي ترڅو پورې چې غشی خپل کمان طرف ته را واپس نه شي

هُمْ شَرُّ الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ طُوبَى

او هغه خلق به په انسانانو او ځناورو کې د ټولو نه بدترين وي. زيرى دى د هغه سړي د پاره چې د دې خلقو لره ووژني

لِمَنْ قَتَلَهُمْ وَقَتَلُوهُ يَدْعُونَ إِلَى كِتَابِ اللهِ

يا هغه خلق ده لره قتل کړي. هغه خلق (په ظاهره) خو به انسانانو ته دعوت ورکوي د کتاب الله هغه

وَلَيْسُوا مِنَّا فِي شيءٍ

خلق په هيڅ يو معامله کې زمونږ (د مسلمانانو) نه نه دي يعني هغوی به په هيڅ يوه خبره کې په مسلمانانو کې شمار

مَنْ قَاتَلَهم كَانَ أَوْلَى بِاللهِ مِنْهُمْ

نه وي کوم خلق چې هغوي لره ووژني هغه به په خپل جماعت کې الله تعالى ته د ټولو نه زيات نزدې وي صحابه رضي الله عنهم

قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ مَا سِيمَاهُمْ؟ قَالَ: «التَّحْلِيقُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

د [illegible] سره عرض او کړو اى د الله رسوله! د دې خلقو پيژند ګلو څه ده هغوي وفرمایل سر خريل. (ابوداؤد)

---

[1] خرجه أبوداود في السنن ۵/۱۲۳ رقم الحديث ۴۷۶۵ واحمد في المسند ۳/۲۲۴

**توضيح:** **اختلاف وفرقة:** يعني زما په امت کې به څه داسې خلق پيدا کيږي چې دخپلو خواهشاتو بندګان به وي چې دهغوی دخود غرضۍ داعمالو اوافعالو په وجه سره به په امت کې اختلاف پيدا کيږي او اتحاد به توټې توټې شي مګر دهغوی دژبو به دا حال وي چې د اسلام ډير عاشقان به معلوميږي دا خلق به قرآن لولي مګر قرآن به دهغوی دحلق نه لاندې نه کوزيږي دا خلق به د اسلام نه داسې اوځي لکه غشی چې د ښکار نه تيرو بير اوځي د اسلام طرف ته ددوی واپس راتلل داسې ناممکن دي لکه څنګه چې د ليندې نه وتلی غشی واپس خپل سوفار (پټاق) ته نه شي راتلی.

**تراقيهم** دا د ترقوة جمع ده مرئ او حلق ته وايې **فوقه** دکمان هغه حصه چې په هغې باندې غشی کيږدي او چلولی شي دې ته فوق وايې ددې ترجمه سوفار ده او داکلام دتعليق بالمحال د قبيلې نه دی (المرقات ۱۰۸/۷)

**التحليق** يعني د سر وينښته به خروي کله به هم وينښته نه ساتي دا خاص علامه صرف دخوارجو وه، اوس که څوک وينښته ساتل جائز ګڼي او خرئيل هم کوي نو دا ننبه ددې سړي نه ده، بعضې علماؤ دتحليق نه مراد په حلقو کې کيناستل مراد اخستې يعني دهغه خلقو دانښه ده چې په مسجد کې به د حلقې جوړولو سره کيني او دريا، دپاره به نمائش کوي مسنون طريقه داده چې د مونځ په وخت به سړی قبلې طرف ته مخ کولو سره کيني، په دې حديث کې خوارجو طرفته اشاره دې (المرقات ۱۱۰/۷)

**هرالخلق والخليقة:** په نهايه کې ليکلي دی چه د خلق نه مراد انسان دې او دخليقه نه مراد څناور دي، بعضو ويلي دي چې دا دواړه لفظونه په يوه معنی سره دي او دتاکيد په طور دويم لفظ دې دپاره راوړلی شو دې دپاره چې ټولو مخلوقاتو ته مفهوم عام شي، بعضو ويلي دي چې دا هم ممکنه ده چې دخليقه نه مراد موجوده کائنات وي او چې کوم آينده پيدا کيدونکي مخلوق دی د حلق په لفظ سره ددې اراده کړې شوې وي دا خلق بدترين مخلوق په دې وجه دی چې د ايمان او اسلام په جامه کې دکفر کار کوي. (المرقات ۱۰۹/۷)

## په درې صورتونو کې مسلمان ته د مرګ سزاوار کولی شي

**﴿۱۱﴾** وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايې چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل نفس مسلمان چې ددې

«لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا

امر ګواهي ورکوي چې دا الله تعالی نه سوا بل څوک معبود نشته او حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَسُولُ | الله | إِلَّا | بِإِحْدَى | ثَلَاثٍ |

الله تعالی رسول دی، دهغه وینه حلاله نه ده ها که په دې درې صورتونو کې د یو صورت د راپیدا کیدو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| زِنًا | بعدَ | إِحْصَانٍ | فَإِنَّهُ | يُرجَمُ |

په وجه سره دهغه وینه حلاله شي یو خو دا چې هغه دمحصن کیدو نه پس زنا وکړي نو هغه دې سنګسار کړی شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ورجلٌ | خرَجَ | مُحارِباً | لله | وَرَسُولِهِ |

دویم صورت دا چې څوک دالله تعالی اودهغه د رسول سره جنګ دپاره راوځي (یعني مسلمانان ډاکه وکړي یا دبغاوت

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّهُ | يُقْتَلُ | أَوْ | يُصْلَبُ | يُنْفَى | مِنَ | الْأَرْضِ |

په لاره ولګي نو هغه دې قتل کړی شي یا دې په سولۍ کړی شي او یا دې قید کړی شي او دریم صورت دا دی چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوْ | يَقْتُلَ | نَفْسًا | فَيُقْتَلُ | بِهَا». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] |

دیو نفس قتل دی (چې یو مسلمان بل مسلمان لره په قصد سره قتل کړي) نو دهغې په بدله کې به ده لره قتل کړی شي. (ابوداؤد)

**توضیح**: ورجل خرج محاربالله: د دې قسمه حدیث په تشریح او توضیح سره مخکې تیرشوی دی. خو دلته دې حدیث کې دارتداد په ځای د ډاکې ذکر دی چې ورته قزاقي هم وایي، دلته د ډاکو په باره کې د درې سزاګانو ذکر شوی دی او د قرآن کریم په آیت کې څلورو سزاګانو ذکر راغلی دی سورة مائده آیت نمبر ۳۳ داسې دی: ﴿إِنَّمَا جَزَٰٓؤُا الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوٓا أَوْ يُصَلَّبُوٓا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنفَوْا مِنَ الْأَرْضِ﴾ (مائده: ۳۳)

یعني (۱) یوه سزا دا چې دې سړي لره قتل کړی شي (۲) دویم دا چې دا په سولۍ کړی شي (۳) دریمه سزا دا چې د دې سړي یو لاس او یوه خپه مختلف طرفونو نه کټ کړی شي څلورم دا چې ده لره جلاوطن کړی شي یعني د ځمکې نه وویستلی شي په جیل کې واچولی شي، د فقهاء کرامو په نزد د دې سزاګانو ترتیب داسې دی چې کچیرې ډاکو اوقزاق مال لوټ کړی وي صرف و وهلی یې هم وي نو ده لره به صرف قتلولی شي او که مال یې هم لوټ کړی وي او هغه یې قتل کړی هم وي نو ده لره به قتل کولو سره په سولۍ هم خیژولی شي، امام مالک رحمه الله وایي چې ژوندی دې په سولۍ خیژولو سره ووژلی شي او که صرف مال یې لوټ کړی وي نو د ده دې یو لاس او یوه خپه په مخالف طرف کټ کړی شي، او کچیرې ډاکو صرف خلقو لره یرولی وي او دهمکې یې ورکړې وي نه یې مال اخستی وي نه یې وژلی وي نوپه دې صورت کې به ده لره صرف د زمکې نه ویستلو سره جلاوطن کولی شي، اوس شوافع

---

(۱) أخرجه أبوداود فى السنن ۴/۵۲۲ رقم الحديث ۴۳۵۳ والنسائى فى ۷/۱۰۱ رقم الحديث ۴۰۴۸ وأحمدفى المسند ۶/۲۰۵

حضرات فرمايي چې سړی دې مسلسل جلاوطن کړی شي ديو زمکې نه بلې زمکې ته او هلته نه دې بل طرفته وشړلی شي دې دپاره چې هلته هم په سکون سره نه کيني، خو احناف فرمايي چې د زمکې نه وتلو مطلب دادی چې د آزادۍ مکې نه دې ويستلی شي په جيل کې دې بند کړی شي.

دلته سوال دادی چې په آيت کې څلور سزاګانې ذکر دي او په حديث کې د دريو ذکر دی چې په ظاهره تعارض دی؟ نوددې جواب دادی چې ډير قوي احتمال دی چې په حديث کې ديو راوي نه د بيان په دوران کې دلاس خپې د کټ کولو ذکر په څه وجه سره پاتې شوی وي دلته په حديث کې او دغه شان دقرآن په آيت کې دا و لفظ دتفصيل بيانولو دپاره دی دا سزاګانې په دې ترتيب سره دي بعضو وئيلې دي او اختيار او تخيير دپاره دی. (المرقات ۱۱۱/۷، ۱۱۰)

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ: حَدَّثَنَا أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن ابي ليلي (تابعي) وايي چې د محمد صلی الله علیه وسلم صحابو رضي الله عنه مونږ ته دا حديث بيان کړو |
| أَنَّهُمْ كَانُوا يَسِيرُونَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې هغوي په څه موقع باندې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په سفرکې يو ځای کې وو په دوي کې يو |
| فَنَامَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَانْطَلَقَ بَعْضُهُمْ |
| کس چې کله په يو پړاو کې اوده شو نو په دوی کې يو بل کس د خپل ځای نه پاسيدلو سره روان شو |
| إِلَى حَبْلٍ مَعَه فَأَخَذَه فَفَزِعَ فَقَالَ |
| او داوده کس سره خواکې يوه رسۍ پرته وه هغه يې اوچته کړه او دا کس په دې سره ويريدو نبي عليه السلام |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| (هم دده دا حرکت وليدو يا نبي عليه السلام د دې متعلق واوريدل) نو وې فرمائيل چې د مسلمان دپاره دا |
| «لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يُرَوِّعَ مُسْلِمًا» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| خبره حلاله نه ده چې هغه مسلمان ويروي. (ابوداؤد) |

## داسلام د عزت د کفر په ذلت سره سودا مه کوه

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ أَخَذَ |
| او حضرت ابو درداء رضي الله عنه د نبي عليه السلام نه نقل کوي چې نبي عليه السلام و فرمايل چې يو کس د جزيې |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۷۳ رقم الحديث ۵۰۰۴ واحمد في المسند ۵/۳۶۲

| |
|---|
| أَرْضًا بِجِزْيَتِهَا فَقَدِ اسْتَقَالَ هِجْرَتَهُ وَمَنْ نَزَعَ صَغَارَ كَافِرٍ مِنْ عُنُقِهِ |
| والا زمکه واخسته او هغه خپل هجرت مات کړواو چاچه د کافر ذلت دهغه د څټ نه کوز کړو اوپه |
| فَجَعَلَهُ فِي عُنُقِهِ فَقَدْ وَلَّى الإِسلاَمَ ظَهرَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| خپل څټ يې واچولو نوهغه اسلام لره شاته وغورزولو . (ابوداؤد) |

**توضیح : بجزيتها** : يعني يو مسلمان د جزيې والا زمکه ديو ذمي نه واخسته نواوس به دا مسلمان جزيه اداء کوي کومه چې دده نه مخکې ذمي اداء کوله فقد استقال هجرته يعني دې سړي د دار کفر نه دارالاسلام ته هجرت کړې وو هغې لره ده خراب اوبرباد کړو، استقال اقالې نه دی د واپس کولو په معنی سره دی ځکه چې د خراج او جزيې چې کوم ذلت د ذمي په څټ پروت وو دې سړي دهغې د څټ نه ويستلو اوپه خپله غاړه کې يې واچولو. ومن نزع يعني د خراج او جزيې چې کوم ذلت د کافر په څټ پروت وو دې سړي د جزيې والا زمکه واخسته دهغه دغاړې نه ده ذلت ويستلو په خپله غاړه کې يې واچولو د حديث دا آخري حصه دمخکنۍ حصې دپاره بيان او تفصيل دی. علامه خطابي فرمائي چې په دې حديث کې د جزيې نه مراد خراج دی يعني چې کوم مسلمان دچا ذمي نه خراجي زمکه واخستله نو اوس به دا مسلمان خراج ادا کوي او په دې اخستو سره د زمکې هغه خراج نه ساقطيږي، دا مسلک د آئمه احنافو دی په دې صورت کې يې اسلام لره شاته وغورزولو نه تغليظ اوتشديد اوتهديد او زجر به مقصود وي. (المرقات ۱۱۲/۷)

## مسلمان به په کافرو کې مخلوط نه اوسيږي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً إِلَى خَثْعَمَ |
| او حضرت جرير بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام د خثعم قبيلې په مقابله کې يو لښکر وليږه |
| فَاعْتَصَمَ نَاسٌ مِنْهُمْ بِالسُّجُودِ |
| نو دهغې قبيلې څه خلق (چې اسلام يې قبول کړې وو مګر دهغوی اوسيدل دقبيلې د کافرانو سره وو) په مونځ سره يې پناه ونيوله |
| فَأَسْرَعَ فِيهِمُ الْقَتْلَ |
| (خو دهغوی په قتل کې د تيزۍ نه کار واخستلی شو يعني لښکروالو دهغوی د سجدو اعتبار ونه کړو) کله چې د دې |
| فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ لَهُمْ بِنِصْفِ الْعَقْلِ |
| واقعې اطلاع نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته وشوه نونبي عَلَيْهِ السَّلَام دهغو مسلمانانو د مقتولينو وارثانو ته دنيم ديت ورکولو حکم وکړو |

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ۳/۴۵۹ رقم الحديث ۳۰۸۲

وَقَالَ: «أَنَا بَرِيءٌ مِنْ كُلِّ مُسْلِمٍ مُقِيمٍ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ»

اووې فرمايل چې زه د هغه مسلمانانو نه دبيزارۍ اظهار کوم چې د مشرکانو په مينځ کې يې اقامت اختيار کړي

قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ لِمَ؟ قَالَ:

صحابو رضي الله عنهم عرض وکړو چې اې د الله رسوله! ستاسو دبيزارۍ سبب څه دی؟ نبي عليه السلام وفرمايل

«لَا تَتَرَاءَى نَارَاهُمَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

مسلمانانو له دکافرانو نه دومره لرې اوسيدل پکار دي چې هغوي په خپل مينځ کې ديو بل اور ونه وينې. (ابوداؤد)

**توضیح**: **بالسجود**: ددې نه مونځ کول مراد دي کله دې چې نوو مسلمانانو د اسلام لښکر وليدلو نو خپل بچاو دپاره يې مونځ کول شروع کړل د اسلام لښکر دا خيال وکړه چې دا خلق دځان بچ کولو دپاره په سجده پريوتل په دې وجه يې زر زر د هغوی وژل شروع کړل يا په غلط فهمۍ سره داسې وشول، دحديث دظاهري الفاظو نه معلوميږي چې دې خلقو سره څه تفصيلي علم نه وو صرف سجده يې وکړه دې دپاره چې د اسلام اظهار وکړي. (المرقات ۱۱۳/۷)

**بنصف العقل** نبي عليه السلام نيم ديت ادا کړو حالانکه دوی ته معلومه وه چې دا خلق مسلمانان وو ددې خبرې طرف ته اشاره ده چې مسلمانانو له د اسلام قبلولو نه پس دکافرانو په مينځ کې اوسيدل جائز نه دي ځکه چې دارنګه مجاهدين د آزادۍ نه پس په آسانۍ سره دکافرانو خلاف نه شي جنګيدی په دې وجه نبي عليه السلام دداسې مسلمانانو نه دبيزارۍ اعلان هم وکړو چې د مشرکانو سره مخلوط اوسيږي. **يارسول الله لم؟** دلته استفهام دی يعني **لاي شئ تکون بريئا او لاي شئ امرت بنصف العقل** مطلب دا چې اې د الله رسوله! تاسو نيم ديت ولې ادا کړو يا تاسو ددوی نه بيزاره کيږئ ولې ددې سبب څه دې؟ (المرقات ۱۱۳/۷)

**قال لا تتراأى ناراهما** دا جمله استئنافيه ده په دې کې د ماقبل سوال علت بيان کړی شو يعني دا بيزاري په دې وجه ده چې دا خلق دکافرو سره يوځای ولې اوسيږي دوی له ديو بل نه دومره لرې اوسيدل پکار دي چې ديو بل اور په نظر نه راځي ځکه چې دغه شان مخلوط اوسيدلو کې مسلمانان به دکافرانو سره جهاد څنګه کوي.؟ (المرقات ۱۱۳/۷)

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۳/۱۰۴ رقم الحديث ۲۶٤٥ والترمذی فی ٤/۱۳۲ رقم الحديث ۱٦۰٤.

## ناجائزه قتل صرف ایمان منع کوي

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:
او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمائیل ایمان خپل حامل
«الْإِيمَانُ قَيَّدَ الْفَتْكَ لَا يفتِكُ مُؤمِنٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]
یعني مؤمن لره ددې خبرې نه منع کوي چې هغه چا لره ناګهانه قتل کړي لهذا هیڅ یو مؤمن لره ناګهانه قتل نه کړئ. (ابوداؤد)

**توضیح: قید**: دا لفظ مشدد دی تقیید د باب تفعیل نه د تړلو او منع کولو په معنی سره دی. **الفتک** ناګهانه او د غفلت په حالت کې اچانک قتل کولو ته وایي، مطلب دا شو چې ایمان ناجائزه قتل لره بند کړی دی، لهذا په چاکې چې ایمان وي هغه دا سې حرکت نه شي کولی ځوک چې دا حرکت کوي د هغه ایمان به کامل نه وي خلاصه دا چې چا مسلمان یا ذمي لره بغیر د تحقیق نه قتل کول جائز نه دي ها کچیرې ځوک مفسد او غدار وي چې د مسلمانانو خلاف منصوبه بندي کوي د هغه حکم جدا دی لکه چې کعب بن اشرف چې د هغه د فساد د وجې نه اچانک د غفلت په حالت کې قتل کړی شو. (المرقات ۷/۱۱۴)

## د تختیدلي مرتد غلام سزا مرګ دی

﴿۱۶﴾ وَعَنْ جَرِيرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذَا
او حضرت جریر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل کله چې یو غلام، شرک
أَبَقَ الْعَبْدُ إِلَى الشِّرْكِ فقد حلَّ دَمه». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]
یعني دارالحرب طرف ته وتختي نو د هغه وینه به حلاله وي. (ابوداؤد)

**توضیح: أَبَقَ العبد**: یعني یو غلام د خپل مولی نه وتختي دارالحرب ته لاړ شي نو کوم مسلمان ته چې هغه ملاو شي نو هغه دې قتل کړي هغه مباح الدم دی ځکه چې دا غلام لاړو کفر ته د تقویت ذریعه جوړېږي او کچیرې دا غلام کافر او مرتد کیدو سره لاړو بیا خو یې په طریق اولی سره قتل حلال دی. (المرقات ۷/۱۱۶)

---

(۱) أخرجه مرقاة المفاتيح ۷/۱۰۶ رقم الحديث :۳۵٤۸

(۲) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٥٢٨ رقم الحديث ٤٣٦٠ وأحمد فى المسند ٤/٣٦٢

## د شاتم رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سزا

(۱۷) وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ يَهُودِيَّةً كَانَتْ تَشْتِمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روایت دی چې یو یهودنې ښځې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بد رد ویل او په دوی کې به

وَتَقَعُ فِيهِ فَخَنَقَهَا رَجُلٌ

ي عیبراو یستلو سره یوغور ورکولو ،نو (دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په شان اقدس کې دا گستاخي) یو سړی (برداشت نه کړې

حَتَّى مَاتَتْ فَأَبْطَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَمَهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

شو او هغه) دې ښځې لره په مرۍ زور کړو چې هغې سره هغه مړه شوه، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې خون معاف کړو. (ابوداؤد)

**توضیح: تقع فیه**: یعني په نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به یې طعن کولو بدرد به یې ویل دا ښځه کافره وه او ذمیه وه.

**فخنقها رجل**: یعني یو مسلمان د دې په مرۍ زور کړو او قتل یې کړه (الله تعالی دې د دې مجاهد درجات اوچت کړي. اللهم آمین (المرقات ۱۱۶/۷)

**فابطل**: یعني نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې وینه بلا عوضه وګرځوله د دې حدیث نه معلومه شوه چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په شان کې ګستاخي، والا ذمي واجب القتل دی او په دې سره د ده عهد مات شو هغه مباح الدم شوه همدا مسلک د شوافعو حضراتو هم دی. (المرقات ۱۱۶/۷)

احناف فرمائي چې دا کافر سړی خو د مخکې نه کافر وو د الله تعالی په شان کې یې ګستاخي کوله ایمان ئې نه راوړو او مونږ ده ته پناه ورکړه لهذا اوس په کنځلو سره د ده عهد ذمه نه ماتیږي په دې مسئله کې کافي تفصیلات دي زه په تفصیل کې نه ځم کوم حضرات چې په دې مسئله کې فتوی غواړي نو هغه تفصیلات دې اوګوري، اکفار الملحدین وغیره کتابونو طرف ته ورله رجوع کول ضروري دي ، شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله الصارم المسلول کې لیکلي دي چې د احنافو په قواعد فقه کې دي چې چیرته د هغوی په نزد د قتل حکم نشته دی مثلاً قتل بالمثقل یا د لواطت حکم دی نو په دې که یو مجرم باربار دا جرم کوي نو د وخت امام او قاضي ته حق حاصل دی چې ده لره قتل کړي. دغه شان قاضي او امام د حد معین مقدار کې اضافه هم کولی شي چې دې لره په زیات سخت انداز کې نافذ کړي کچیرې هغه مصلحت ویني او دېته احناف حضرات د قتل سیاسة نوم ورکوي، خلاصه دا چې بطور تعزیر یوه سزا د قتل درجې پورې اوړلی شي هرکله چې باربار جرم کوي او په قتل کې مصلحت وي، دا رنګه د هغه ذمي قتلول دي چې باربار نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته کنځل کوي، اکثرو احنافو د دې د قتل فتویې ورکړې ده (د ردالمحتار حواله ورکولو سره زجاجة

[1] أخرجه أبوداود في ٤/٥٢٩ رقم الحديث ٤٣٦٢

المصابيح کې همدا سې ليکلې دي) (ج ۳ص۵۵)

**وقال العيني واختياري في السب ان يقتل**: يعنې نبي عَلَيۡهِالسَّلَامُ ته کنځل کولو والا مباح الدم دی زه دا اختيار وم، علامه بدرالدين ددې فتوې تابعداري کولو سره صاحب د فتح القدير ابن همام همدا سې فتوی ورکړې ده، د مفتي روم ابوسعود رحمه الله هم دغه فتوی ده، د صاحب شفاء هم دا فتوی ده د نيل الاوطار درمختار هم دا فتوی ده .او خير الرملي رحمه الله هم بطور تعزير همدا فتوی ورکړې ده (زجاجة المصابيح ج۳ ص۵۵)

شکر الحمد لله دا احنافو د اکابرو همدا مسلک دی او مونږ دزړه په کومې سره دا خوښوو پوره تفصيل په زجاجة المصابيح کې اوګورئ.

## دسحر او ساحر حکم

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «حَدُّ السَّاحِرِ |
| او حضرت جندب رَضِيَاللّٰهُعَنۡهُ وايې چې نبي کريم صَلَّىاللّٰهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ و فرمائيل د جادوګر حد (شرعي سزا) |
| ضَرْبُهُ بِالسَّيْفِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| داده چې ده لره دې په توره سره قتل کړی شي. (ترمذي) |

**توضيح**: حدالساحر: دعلما په دې اتفاق دی چې جادو کول حرام دي، د اهل السنت په نزد جادو يو حقيقت دی ددې اثر کيږي، دمعتزلو خيال دی چې د جادو څه حقيقت نه وي دا صرف يو خيال او وهم دی.

د جادو کونکي جادوګر سزا په باره کې د علماو او فقهاو اقوال څه مختلف دي: د امام مالک رحمه الله په نزد او د امام احمد بن حنبل رحمه الله د راجح قول مطابق ساحر کافر دی، او د سحر زده کړه او خودل هم کفر دی لهذا ساحر دې قتل کړی شي او دهغه نه دې د توبې مطالبه ونه کړی شي، که هغه په چا مسلمان جادو کړی وي يا په چا ذمي يې کړی وي. امام شافعي رحمه الله فرمايي کچيرې ددې جادوګر دا جادو موجب د کفر وي او هغه توبه هم اونه باسي نو هغه دې قتل کړی شي. د احنافو په نزد په دې مسئله کې څه تفصيل دی هغوی فرمائي کچيرې ساحر په خپل جادو کې د شرک او شرکيه کلماتو ارتکاب وکړي او د کفر موجب عقيده يې وه نو هغه کافر دی او کچيرې د ساحر سحر د څه حرام د ارتکاب ذريعه جوړه وي يا د څه فريضې دسقوط او ترک ذريعه جوړيږي نو دا سې سحر حرام دی او که په جادو کې څه کفريه کلمات هم نه وي او د څه حرام ارتکاب هم نه وي او د څه نيک مقصد دپاره وکړی شي مثلاً په ښځه خاوند کې د جوړ راوستلو دپاره يا د اهل حرب ديو ساحر د سحر ماتولو دپاره نو دا مباح او جائز دی، خو دا خبره دې ياد ساتي چې د داسې صالح او نيک جادوګر په دنيا کې چرته

---

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ٤/٤٩ رقم الحديث ١٤٦٠

هم وجود شته دی او که نه؟. دا خبره دې هم یاد وساتلی شي چې جادو چونکه دبدن د اندامونو عمل نه دی بلکه نهایت دصفائي او داندامونو داستعمال نه بغیر اثر کولی شي لهذا په سحر سره که یې څوک قتل کړو نو په دې کې قصاص نشته دی هاپه دې کې تعزیر دی چې بطور تعزیر داسې جادوګر قتلولی شي هم دده حد دی، علماو لیکلي دي چې دجادو په شان دعلم نجوم زده کول دکهانت زده کړه خودنه کول او هرقسم نظر بندي زده کول او خودل هم حرام دي دجادو حقیقت او ددې تعریفات او د قسمونو بیان په توضیحات جلد اول صفحه ۲۴۸ باندې شوی دی هلته یې اوګورئ. (المرقات ۱۱۷/۷)

## دبغاوت سزا قتل دی

### الْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت اسامه بن شریک وایې چې رسول الله ﷺ وفرمائیل چې کوم کس د وخت د امام |
| «أَيُّمَا رَجُلٍ خَرَجَ يُفَرِّقُ بَيْنَ أُمَّتِي فَاضْرِبُوا عُنُقَهُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1] |
| خلاف خروج وکړي او دغه شان زما په امت کې تفرقه واچوي نو دهغه څټ والوزوئ. (نسائي) |

**توضیح : خرج یفرق :** دمسلمانانو داجتماعیت دپاره دوخت خلیفه بنیادي حیثیت لري دده اطاعت ددې دپاره په ټولو مسلمانانو باندې لازم کړی شوی دی دې دپاره چې په امت کې افتراق او انتشار رانه شي او دامت یووالی خور نه شي. امام او خلیفه دامت دوحدت علمبرداروي او هغه ددې ذمه داروي خو که یو کس ددې اجتماعي او اتحاد او اتفاق د دائرې نه وتلو سره بغاوت وکړي نو هغه یو جرم نه دی بلکه دڅو جرمونو کول دي په دې وجه دې هغه پوهه کړی شي او ددې سرکشۍ نه د منع کیدلو دې ورته وویلی شي، او که دده څه معقول اعتراض وي یا څه شبهه او مطالبه بوي نو هغه دې په سنجیدګۍ سره واخستلی شي کچیرې د اصلاح دټولو کوششونو باوجود هغه سرې د خپلې سرکشۍ او بغاوت نه منع نه شي نو هغه دې قتل کړی شي دې دپاره چې لویه فتنه پیدا نه شي لکه حضرت علي رضي الله عنه چې د خوارجو سره معامله کړې وه، تردې چې دا خبره د یاد ساتلو ده چې داحق هغه خلیفه او د مسلمانانو هغه باچاته حاصل دی چې امت لره د اسلام په رڼا کې چلوي ورنه خروج به جائزوي، تفصیل ان شاء الله په باب الامارة کې راتلونکی دی.(المرقات ۱۱۸/۷، ۱۱۷ الکاشف ۱۳۸/۷)

[1] اخرجه النسائی فی السنن ۷/۹۳ رقم الحدیث ۴۰۲۳

## دخوارجو متعلق پیشن ګوئي

﴿۲۰﴾ وَعَنْ شَرِيكِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ: كُنْتُ أَتَمَنَّى أَنْ
او حضرت شریک بن شهاب تابعي رحمه الله وايي چې زما يو لوی آرمان وو چې زه دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د يو
أَلْقَى رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْأَلُهُ
صحابي سره دملاقات سعادت حاصل کړم او د هغوی نه دخوارجو پحقله تپوس وکړم (چې نن صبا
عَنِ الْخَوَارِجِ فَلَقِيتُ أَبَا بَرْزَةَ
کوم خوارج پیدا کيږي آيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ددې متعلق څه پیشن ګوئي کړې ده) نو زه د يو صحابي ابوبرزه
فِي يَوْمِ عِيدٍ فِي نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فَقُلْتُ لَهُ:
سره داختر په ورځ دهغه ددوستانو په موجودګۍ کې ملاو شوم دهغوی نه مې تپوس وکړو چې تاسو
هَلْ سَمِعْتَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ الْخَوَارِجَ؟ قَالَ: نَعَمْ
دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دخوارجو متعلق څه ذکر اوریدلی دی؟ هغوي وفرمایل چې آو! د خوارجو ذکر مې
سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأُذُنَيَّ
اوریدلی دې په خپلو غوږونو باندې دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه او په خپلو سترګو مې دا واقعه هم لیدلې ده چې يو ځل د
وَرَأَيْتُهُ بِعَيْنَيَّ: أُتِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَالٍ فَقَسَمَهُ
نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې څه مال راوړلی شو هغوی هغه مال دمجلس په حاضرینو کې داسې تقسیم کړو
فَأَعْطَى مَنْ عَنْ يَمِينِهِ وَمَنْ عَنْ شِمَالِهِ
چې کوم خلق دهغوی ښي طرف ته ناست وو هغوی ته يې ورکړه او کوم خلق چې ګس طرفته ناست
وَلَمْ يُعْطِ مَنْ وَرَاءَهُ شَيْئًا.
هغوی ته ئې ورکړه مګر کوم خلق چې دهغوی شا طرف ته ناست وو هغوی ته يې څه هم ورنه کړل. دا رنګه
فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ وَرَائِهِ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ مَا عَدَلْتَ فِي الْقِسْمَةِ
دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ شا ته ناست کسانو کې يو کس پاسیدلو او وې ویل چې ای محمد! تاسو په تقسیم کې
رَجُلٌ أَسْوَدُ مَطْمُومُ الشَّعْرِ عَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَبْيَضَانِ
انصاف ونه کړه. هغه سړی دتور رنګ والا وو، دهغه دسر ویښته خریلی شوي وو او دوه سپینې جامې يې اغوستې وې

فَغَضِبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَضَبًا شَدِيدًا وَقَالَ: «وَاللهِ
(د هغه د خبرې په اوریدو سره) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سخت په غوسه شو، او وې فرمایل چې په الله قسم! ته
لَا تَجِدُونَ بَعْدِي رَجُلًا هُوَ أَعْدَلُ مِنِّي» ثُمَّ قَالَ: «يخرجُ فِي
به زمانه روستو هیڅ یو سړې دانصاف والا و نه مومې او بیایې وفرمایل چې په آخره زمانه کې به
آخِرِ الزَّمَانِ قومٌ كَأَنَّ هَذَا مِنْهُم يقرؤون الْقُرْآنَ
یوه ډله پیدا کیږي او دا سړی ګویا چې د هغې ډلې یو فرد دی او د دې ډلې خلق به قرآن لولي خو د
لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ يَمْرُقُونَ
هغوی لوستل به د حلق نه مخکې نه ځي او هغه خلق به د وخت د امام خلاف د خروج او سرکشۍ په
مِنَ الْإِسْلَامِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ
ذریعه د اسلام نه داسې او ځي څنګه چې غشی د ښکار د مینځ نه او ځي د هغه خلقو علامه داده چې
سِيمَاهُمُ التَّحْلِيقُ لَا يَزَالُونَ يَخْرُجُونَ
دهغوي سرونه به خریلی شوې وي د دغې ډلې خلق به په هر زمان کې موندلی شي او همیشه به خروج کوي
حَتَّى يَخْرُجَ آخِرُهُمْ مَعَ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ
تردې چې د هغوی آخري سړی به د مسیح دجال سره راوځي. لهذا کله چې هم تاسو سره مخامخ شي
فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ هُمْ شَرُّ الْخَلْقِ والخليقة». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1]
(هغه قتل کړئ) هغه خلق په انسانانو او ځناورو کې بدترین مخلوق دی. (نسائي)

**توضیح**: بِأُذنِي: دیو روایت د یقیني جوړولو د پاره به داسې الفاظ صحابه کرامو استعمالول دې د پاره چې اوریدونکي ته یقین راشي چې دې صحابي خپل لیدل او اوریدل بیان کړې دي په مینځ کې یې څه حواله او واسطه نشته دی. (المرقات ۱۱۸/۷)

رجل اسود علامه طیبي او ملاعلي قاري رحمه الله فرمایې چې دا دمبتدا محذوف خبر دی یعني هو رجل اسود راوي د دې جملې اضافه کولو سره دې طرف ته اشاره کړې ده چې څنګه د دې سړي ظاهر شکل خبیث دی د ده باطن هم د غسې خبیث دی. (المرقات ۱۱۹/۷، الکاشف ۱۳۹/۷)

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱۱۹/۷ رقم الحديث ۴۱۰۳

مطموم الشعر طَمَّ يطُمُّ دنصرينصر نه دی د ويښتو کټ کولو په معنی سره دی څنګه چې داسړی د ويښتو نه صفا راغلی دی هم دغه شان دعقل اوشعور او ادب نه هم خالي راغلی دی .

ثوبان ابيضان يعني دنفاق حامل وو او دپاسه پرې سپين لباس وو دننه نه تک تور وو ګويا داسې وو نظافة ظاهرة وكثافة باطنة ياداسې ووائي بياض كسوته وسواد جثته. ( المرقات ۱۱۸/۷)

اعدل مني اعدل د اسم تفضيل په معنی سره نه دی بلکه د نفس فعل عادل په معنی سره دی لکه اهون د هين په معنی سره دی. الصيف احر من الشتاء کې احر د نفس فعل په معنی سره دی هم دغسې د اعم او اخص الفاظ دعام وخاص په معنی سره راځي سيماهم علامې ته سيما وايې يعنې ددې داسې علامه ده چې دهغه سره لازم ده او په طور د التزام هغوی خپل ځان سره ساتلې ده، کچيرې څوک ددې عقيدې او التزام نه بغير دسر ويښته خروي نو هغه منع نه دي. ( المرقات ۱۱۸/۷)

الخليقة : يا د انسان او جناتو په مقابله کې ځناورو ته خليقة ويلی شوی دی يا خلق مخکښې مخلوق ته او خليقة راتلونکي مخلوق ته ويلی شوی دی، تفصيل مخکې تيرشوی دی، هرمسلمان له پکار دي چې هغه دخپلو بزرګانو او د مشرانو ادب کوي ځکه چې الدين كله ادب ثابت شوی حقيقت دی بې ادب کله هم نه کاميابيږي بلکه اکثر ديوې لوې فتنې سبب جوړيږي اوپه دنيا اوآخرت کې محروم وي.

از خدا خواهیم توفیق ادب
بے ادب محروم گشت از فضل رب

نن صبانوی نسل چې دهرخير نه محرومه ګرځي ددې وجه همدا بې ادبي ده، سکولونو کالجونو دوی لره آزاد اوبې حياء اوبې ادب جوړکړې دي. حضرت احمد علي لاهوري رحمه الله خپلو ملفوظاتو کې فرمايلې دي چې انګريز زمونږ تخت ونيولو زمونږ تاج يې په زوره واخستو او زمونږ دين يې واخستو اومونږ يې په خپل دين باندې معترض جوړکړې پريخوستو .

## دخوارجو تاريخي پس منظر او دهغې شرعي حکم

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي غَالِبٍ رَأَى أَبُو أُمَامَةَ رُؤُوساً مَنْصُوبَةً عَلَى دَرَجِ دِمَشْقَ |
| او حضرت ابو غالب (تابعي) رحمه الله وايي چې حضرت ابوامامه رضي الله عنه (صحابي) (يوه ورځ) د دمشق په لاره باندې |
| فَقَالَ أَبُو أُمَامَةَ: «كِلَابُ النَّارِ شَرُّ قَتْلَى تَحْتَ أَدِيمِ السَّمَاءِ |
| (دخوارجو) سرونه پراته اوليدل (يا په سولي ختلي وو) نو هغوی وفرمايل چې دا د دوزخ سپي دي او د آسمان نه لاندې |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَيْرُ | قَتْلَى | مَنْ | قَتَلُوهُ» | ثُمَّ | قَرَأَ |

بدترين مقتولين دي او بهترين مقتولين هغه دي كوم لره چې دوى قتل كړي وي. او بيا هغوى دا آيت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| (يَوْمَ | تبيَضُّ | وُجوهٌ | وتَسوَدُّ | وُجوهٌ) | الْآيَةَ |

ولوستلو. چې دقيامت په ورځ به ډير مخونه سپين او منور وي او ډير مخونه به تور وي ابوغالب رحمه الله

قِيلَ لِأَبِي أُمَامَةَ: أَأَنْتَ سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟

د حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تپوس وكړو چې آيا تاسو دا خبره دنبي عليه السلام نه اوريدلې ده ؟

قَالَ: لَوْ لَمْ أَسْمَعْهُ إِلَّا مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا حَتَّى عَدَّ سَبْعًا

ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې كچيرې ما دا خبره يوځل او دوه ځله درې ځله تر دې پورې چې اوه ځله مې نه وه اوريدلې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا | حَدَّثْتُكُمُوهُ. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَابْنُ | مَاجَهْ |

نو تاسو ته به مې نه بيانوله يعني كچيرې ما دا خبره دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دو مره په كثرت سره باربار نه وه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ | التِّرْمِذِيُّ: | هَذَا | حَدِيثٌ | حَسَنٌ[1] |

اوريدلې نو ستاسو په مخكې به مې نه بيانوله. ترمذي ويلې دي چې دا حديث حسن دى.

**توضيح** : **رؤسامنصوبة** : داسې معلوميږي چې دخوارجو دقتل نه پس چا دهغوى سرونه په سولى باندې خيژولي وو يا هسې په اوچت ځاى باندې ايخودلي وو. **درج دمشق** درج جمع ده ددې مفرد درجة دى كولا و لار او شاهراه ته هم وايې او پوړو والا غټې اندپايه (زنې) ته هم **درجة** وايې **شر قتلى** دا دمقتولين جمع ده دخوارجو مقتولين مراد دي(المرقات ۱۲۰/۷)

**خير قتلى** دلته دمسلمانانو مقتولين مراد دي . (المرقات ۱۲۰/۷)

**تحت اديم السماء** اديم دظاهري سطح په معنى سره دى كه دآسمان په سطح باندې وي چې مونږ ته په نظر راځي يا د ځمكې په ظاهري سطح باندې وي چې په نظر راځي، په اصل كې اديم څرمنې ته وايې چونكې هغه هم په ظاهري سطح باندې وي په دې وجه دالفظ دظاهري سطحې دپاره استعمالولى شي. (المرقات ۱۲۰/۷)

---

[1] أخرجه الترمذى فى ۵/۲۱۰ رقم الحديث ۳۰۰۰وابن ماجه فى السنن ۱/۶۲ رقم الحديث ۱۷۶ وأحمد فى المسند۵/۲۵۶

شاعر ساحر ويلي دي:

فبأيما قدم سعيت الى العُلى ادم الهلال لا خمصيک حذاء

**كلاب النار:** چونكه په حديث كې په خوارجو باندې دكلاب النار اطلاق شوى دى په دې وجه حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وي لره په دې نوم سره ياد كړل دا دخوارجو هغه خباثتونو ته پټه اشاره ده چې هغه خلقو د اهل اسلام او د هغه دخلفاو په باره كې كول، ګويا دا خلق دا اهل حقو دپاره دليوني سپي دي چې هغوى خوري او بيا به په دوزخ كې دا خلق دسپو په شكل كې ظاهرېږي. دخوارجو د خروج تاريخي پس منظر دادى چې مخكې دا خلق د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وو او د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلاف به جنګيدل بيا واقعه د تحكيم مخې ته راغله، واقعه داسې راغله چې په جنګ صفين كې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فوج ته د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په فوج باندې اوچتوالى حاصليدو ، حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پريشانه شو نو عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوى ته وفرمايل چې تاسو خپل فوج ته حكم وكړئ چې هغوى دنيزو سره قرآن وتړي او اعلان وكړي چې زمونږ په مينځ به دا قرآن فيصله كوي كله چې هغوى داسې وكړل او قرآن مجيد يې په نيزو باندې اوچت وتړلو او اعلان يې وكړه چې زمونږ په مېنځ كې به فيصله دا قرآن كوي كله چې هغوى داسې وكړل او قرآن په نيزو باندې اوچت كړى شو نو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملګرو وويل چې اوس جنګ جاري ساتل جائز نه دي ځكه چې په قرآن به فيصله وي حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې جنګ مه بندوئ دا دمخالفينو يوه حربه ده چې جنګ ودرېږي او دوى دشكست نه بچ شي، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره دهغه ملګرو په جنګ بندولو باندې مجبوره كړو، چې دا خلک وروسته خوارج جوړشول هغوي وويل چې مونږ دقرآن مخې ته جنګ دپاره نه ځو ،نو منع شول او دصلحې او مذاكراتو خبرې وشوې او فيصله په دې باندې وشوه چې چونكه حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه متنازع جوړ شوې دي په دې وجه دا دواړه به اختيار كوم ثالث ته وركړي او هغه ثالثين به كوم غيرمتنازع سړي لره خليفه مقرر كړي، ددې ثالثينو مقررولو ته تحكيم ويلى شي، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخپل طرف نه خپل وكيل حضرت ابوموسي اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مقرر كړو اوحضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمروبن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل وكيل مقرر كړو او دا فيصله وشوه چې دواړه وكيلان به خپل موكلينو لره د خلافت نه معزول كړي، او بيا به نوى خليفه منتخب كړي دا رنګه دمعاهدې په اساس حضرت ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دمعزولۍ اعلان وكړو خو حضرت عمروبن العاص اعلان وكړو چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دهغه وكيل معزول كړو اوس هغه خليفه پاتې نه شو او زه خپل موكل حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره په خلافت باندې برقراره ساتم،ددې اعلان نه پس بيا سخت جنګ شروع شو مګر د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغو ملګرو دجنګ نه لاس روسته كړلو چې مخكې نه يې په

مذاكراتو باندې زور وركولو هغه خلقو دا وينا شروع كړه چې حضرت علي رضي الله عنه د الله تعالى نه سوا دانسانانو حكم ومنلو، لهذا دا اوس كافرشو ځكه چې د قرآن اعلان دى ان الحكم الا لله حضرت علي رضي الله عنه په ډير محنت سره هغوى پوهه كړل خو هغوي په بغاوت باندې ټينګ ولاړ وو او د حضرت علي رضي الله عنه فوج نه شپږ زره كسانو جدا والى اختيار كړو كوفې سره خواكښې حرورا مقام يې خپل مركز جوړ كړو او د حضرت علي رضي الله عنه سره په جنګ شو، په جنګ نهروان كې حضرت علي رضي الله عنه دوى له ډير زيات قتل كړل بيا پڅو دوى كې درې كسان ديوې منصوبې دپاره د اهل اسلام د درې لويو قائدينو د وژلو دپاره مقرركړى شو يو شيطان د حضرت معاويه رضي الله عنه وژلو دپاره وليږلى شو او دويم دحضرت عمروبن العاص رضي الله عنه د وژلو دپاره او دريم خبيث دحضرت علي رضي الله عنه د وژلو دپاره وليږلى شو، ددې خبيث نوم عبد الرحمن بن ملجم وو باقي دواړه په خپلو منصوبو كې ناكامه شول خو دا بدبخته دسحر د مانځه ته راكو شو او دحضرت علي په سرباندې يې په توره ګذار وكړو او حضرت علي رضي الله عنه شهيد شو. بيا هغه ونيولى شو او قتل كړى شو، د ابن ملجم بدبخت په مدح كې يو خارجي شاعر عمران بن حطان دا شعرونه ويلې وو.

**ياضربة من تقي ما اراد بها الا ليبلغ من ذي العرش رضوانا**

واه واه ديو پرهيزګار دتورې وار څه ښه وو چې هغه صرف دهغه عرش والا د خوشحالولو اراده وكړه.

**اني لاذكره يوما فاحسبه اوفي البرية عند الله ميزانا**

زه چې كله هغه يادوم نو خيال كوم چې د الله په نزد به دهغه تله دټولو نه درنه وي.

**اكرم بقوم بطون الارض اقبرهم لم يخلطوا دينهم بغيا وعدوانا**

هغه خلق څومره معزز دي چې دهغوى قبرونه د ځمكې په ښيخ كې دي چې هغوى خپل دين دبغاوت اودحق نه په تجاوز سره ګنده نه كړو.

ددې بدبخته د اشعارو په مقابله كې د اهل السنت قاضي ابو طيب طبري بهترين اشعار ويلې دي فرمائي:

**اني لابرأ مما انت قائله في ابن ملجم الملعون بهتانا**

دابن ملجم په باره كې تا دروغ ويلې دي زه ددې نه بالكل بيزاره يم

**اني لاذكره يوما فالعنه دينا والعن عمران بن حطانا**

زه چې كله هغه يادوم نو په هغه باندې دهغه سره په عمران بن حطان باندې لعنت ليږم.

**عليكم ثم عليه الدهر متصلا لعائن الله اسرارا واعلانا**

په تاسو باندې او بيا په ابن ملجم باندې دې دالله تعالى دطرف نه هميشه دپاره مسلسل خفيه او اعلانيه لعنتونه وي.

**فانتم من کلاب النار جاء لنا** **نص الشريعة برهانا وتبيانا**

تاسو ددوزخ سپي يې اوپه دې دعوی باندې مونږ سره بطور دليل دشريعت واضح حديث موجود دی. (کذافي حياة الحيوان ج۱ ص۲۴)

ددې اشعارو په آخره کې قاضي ابوطيب طبري رحمه الله دمذکوره حديث هغه جملې طرف ته اشاره کړې ده چې په کې کلاب النار ذکر دی، حضرت ابوامامه دقرآن کريم دې آيت طرف ته هم اشاره کړې ده. **(يوم تبيض وجوه وتسود وجوه)** يعني دخوارجو مخونه به تور وي اودمؤمنانو مخونه به روښانه وي.

په مشکوة شريف کې دخوارجو متعلق ډير احاديث په باب المرتدين کې درج کړی شوې دي چې په هغې سره اشاره کيږي چې شايد خوارج دمرتدينو په حکم کې دي دخوارجو د تکفير مسئله مخکې تيره شوې ده.

حضرت شاه انورشاه رحمه الله په اکفار الملحدين کې ليکلي دي: **قال الغزالي في الوسيط تبعاً لغيره في حکم الخوارج وجهان احدهما انه کحکم اهل الردة والثاني انه کحکم اهل البغي ورجح الرافعي الاول الخ** يعني امام غزالي په خپل کتاب وسيط کې دعامو علماو مطابق دخوارجو متعلق ليکلي دي چې ددوی په شرعي حکم کې دوه قوله دي: اول داچې ددې خلقو حکم دمرتدينو په شان دی، دويم قول دادی چې ددوی حکم دباغيانو پشان دی، علامه رافعي رحمه الله اول قول راجح ګرځولی دی په دې کلام باندې شاه صاحب تبصره کولو سره فرمايي چې دا حکم هرقسم خوارجو ته شامل نه دی ځکه چې خوارج په دوه قسمه دي: يوخو هغه دي دکوم تذکره چې امام غزالي رحمه الله کړې ده، دويم قسم دهغه خوارجو دی چې هغوی دخپلې عقيدې او نظرياتو طرف ته د رابللو دپاره يې خروج نه دی کړی، بلکه په حکومت باندې دقبضې کولودپاره يې خروج کړی دی دا خوارج بيا په دوه قسمه دي: يو هغه دي کومو چې دظالم حکمرانانو د ظلم دوجې نه او په قرآن اوسنت باندې دعمل نه کولو په وجه سره دهغوي خلاف دالله تعالی ددين په حمايت کې خروج اوبغاوت کړی دی داخلق اهل حق دي په دوی کې حضرت حسين رضي الله عنه او داهل مدينه هغه علماء دي کومو چې ديزيد خلاف خروج کړی وو، اوپه دوی کې هغه خلق دي کومو چې دحجاج بن يوسف خلاف بغاوت کړی وو، دويم قسم خوارج هغه دي چې صرف په حکومت باندې د قبضې کولو دپاره راوتلي دي او (په احاديثو کې دهغوي مذمت وارد دی).

# كتاب الحدود

## د حدودو بيان

قال الله تبارک وتعالى: ﴿اَلزَّانِيَةُ وَ الزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ ۪ وَّلَا تَاْخُذْكُمْ بِهِمَا رَاْفَةٌ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ﴾ (النور الاية: ٢)

وقال الله تعالى: ﴿وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَاْتُوْا بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً وَّلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا﴾ (النور الاية: ۴)

وقال الله تعالى: ﴿فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَ اَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّنْ سِجِّيْلٍ مَّنْضُوْدٍ ﴿٨٢﴾ مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ ؕ وَمَا هِيَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ بِبَعِيْدٍ﴾ (هود الاية: ٨٢)

**حدود:** د حد جمع ده او حد په اصل کښې د منع په معنی سره دی، دديې يوه معنيي د حاجز هم ده، يعني د دوو څيزونو په مينځ کښې هغه حائل او مانع چې دواړو لره ديوځای کولو نه منع کوي، شرعي حدود هم انسان لره د معاصيو نه منع کوي، فقهاء کرامو د شرعي حد اصطلاحي تعريف داسې کړی دی: **الحد عقوبة مقدرة يجب حقا لله تعالى** يعني په اصطلاح د شرع کښې حد د هغه متعين سزا نوم دی چې شريعت د حقوق الله د حفاظت د پاره مقرر کړې ده. د مقدرة په قيد سره تعزير ووتلو ځکه چې د تعزير تعين شريعت نه کوي بلکه د شريعت په رڼا کښې ددې تعين د امام او قاضي په صحيح نظر باندې دی.

په دې تعريف کښې **د حقا لله الفاظو** نه حدود او قصاص کښې هم فرق ظاهر شو، ځکه چې د قصاص تعين د حق العبد د پاره کړی شوی دی، همدا وجه ده چې د ثبوت نه پس قصاص معاف کولی شي حد نه شي معاف کيدلی. د قواعدو او ضوابطو په رڼا کښې اسلامي سزاګانې په درې قسمه دي: (۱) اول هغه سزاګانې دي کومې چې الله په خپله متعين کړې دي مګر د هغې جاري کول يې بندګانو ته پريخوستې دي په دې کښې د څه خارجي طاقت يعني حاکم او حکومت ته د دخل حق نشته دی، ګويا دا د متعلقه کس د ذاتي نوعيت معامله ده او دې لره پخپله د هغې نه ختمول دي، په شريعت کښې د داغه شان سزاګانو نوم کفارات دی لکه د قسم کفاره، د صوم کفاره وغيره (۲) دويم هغه سزاګانې دي چې د هغې مقدار شريعت مقرر کړی دی او د کتاب او سنت نه ثابت کيدو سره سره ددې مقدار هم متعين دی په شريعت کښې د داسې سزاګانو نوم حدود دی لکه زنا، غلا، شراب څکل وغيره جرمونو

سزاګانې دي ددې سزاګانو دثبوت نه پس حاکم او قاضي نه دې لره ساقطولی شي او نه په کې کمی او زیاتی کولی شي صرف دنافذولو حکم هغه سره دی یعني دقانون سازۍ اختیار دهغه سره نه دی صرف دتنفیذ اختیارېي دی. (۳) دریم هغه سزاګانې دي کومو لره چې کتاب او سنت متعین کړې نه دي خو د بدو کارونو په کولو باندې دا سزاګانې ورکولی شي شریعت دا بدکارونه د جرمونو په فهرست کې شمار کړې دي او دسزا مقدار او ددې دتعین مسئله دحاکم او قاضي په صحیح لیدلو ته پرېخوستې ده چې هغه دشریعت دقواعدو په رڼا کې دموقع او محل مناسب ددې جرم سزا تعین کړي،د داسې سزاګانو نوم په اسلام کې تعزیر دی.

**دحدود الله حکمت او برکت** په اسلام کې په څلورو سزاګانو باندې دحدودو اطلاق کیږي (۱) حدزنا (۲)حدسرقه (۳)حد قذف (۴) حد خمر. دحدود الله په مقررولو کې لويې فائدې او لوی برکتونه دي چې هغه کماحقه څوک بیانولی نه شي. ملاعلي قاري رحمه الله په مرقات کې په دې باندې په تفصیل سره رڼا اچولې ده په حدود الله کې لويې فائدې په دې وجه دي چې ددې په ذریعې سره لوی لوی قبیح اعمال منع کولی شي او صرف په نفاذ حدود سره سړی ددې ګنده کارونو نه منع کیدی شي . مثلاً دحدِزنا په نفاذ سره سړی دنسب دضائع کیدو او داولاد دضائع کیدو نه او دځان دضائع کیدو دتباهئ نه بچ کیدی شي اودا څیزونه په بین الاقوامي طورباندې دهرعقلمندپه نزد باندې واجب الحفاظت دي. **حدخمر** : سره دعقل دزوال حفاظت کیږي او د زړه او دماغو په ځای باندې کیدل په بین الاقوامي طور باندې مطلوب اومقصود دي. **حدقذف** : سره د نفس عزت او دناموس دعزت حفاظت کیږي چې په بین الاقوامي طور باندې یو محمود اوممدوح څیز دی. **حدسرقه** : سره دمال دحفاظت انتظام کولی شي او امن اوامان او حفاظت دمال په عالمي طور باندې دهر کس په نزد ډیرضروري دی، خلاصه داچې حفاظت دنسل،عزت نفس، حفاظت عقل او حفاظت دمال دا داسې څیزونه دي چې دهغې په فائده مند کیدو باندې ددنیا ټول انسانان متفق دي، لهذا هیڅ یو عقل مندانسان په اسلامي حدودو او حدودِ آرډیننس باندې اعتراض نه شي کولی، بیا ددې نه علاوه دمسلمانانو دپاره په نفاذحدود الله کې لوی لوی برکتونه دي، په حدیث کې دي چې دیو حد په نفاذ سره ملکي معیشت ته دومره فائده کیږي څنګه چې څلوېښت ورځوپورې فائده مند او نافع باران سره کیږي. دارنګه په معاشره او (سوسائټۍ) کې حدود الله دامن او امان ضامن دی ځکه چې په معاشره کې په سلو کسانو کې کچیرې پنځه فیصده خلق شرابیان کبابیان یا غله او زناکار وي

نو هغه د ۹۵ فیصده خلقو ژوند په خطره کې اچولو سره پریشانه کوي، اسلام حکم ورکوي چې دا ینځه په سزا ورکولو سره قابو کړئ دې دپاره چې د ۹۵ فیصده خلقو ژوند په امن او امان او عزت او شرافت سره تیرشي. دارنګه جرائم پیشه خلقو ته چې کله دخپل جرم سزا په دې دنیا کې ملاو شوه نو هغه به دآخرت د دوزخ والا سختې سزانه بچ شي. داټولې فائدې په حدود الله کې دي شریعت دانه غواړي چې هغې دې خامخا چاته تکلیف ورکړي، دا حدود الله ئې انسان ته دتکلیف ورکولو دپاره نه دي مقرر کړې بلکه انسانانو لره یې دانسان جوړولو دپاره مقرر کړې دې، په سعودي عرب کې څو حدود قائم دي هلته څومره امن دی او په افغانستان کې دطالبانو داسلامي حکومت دقیام په دوران کې هلته څومره امن او امان وو، او هلته څومره شرافت او انسانیت وو چې دهغې مثال په دنیا کې نه وو، خو دنیا ته دا شرافت خوښ نه شو، او ټول کافران او اشرار او منافقان یوځای شول د دوی حکومت یې وغورزلو اوس هلته نه امن دی نه انسانیت او نه شرافت دی. داخبره هم په ذهن کې وساته چې شریعت دڅومره احکامو تجربه دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په ذات باندې کړې ده نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې احکامو لره په عملي ژوند کې راوستلو سره دامت مخې ته یوه نمونه پیش کړه لکه د ځولې ویلې شوې ځوی دښځې سره نکاح کول وغیره وغیره، خو کوم افعال چې داسې وو چې دهغې کول دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دشان سره منافي وو او دعصمت انبیاء د اصولو منافي وو نو داسې احکامات یې په تکویني طور باندې دصحابه کرامو په عمل کې راوستلې دي دې دپاره چې راتلونکي امت دپاره نمونه جوړه شي، لهذا په تکویني طور باندې دبعضې صحابه کرامو نه د زنا عمل وشو، بعضې واقعات دغلا یا دشرابو څکلو یا قذف پیش راغلو نو دحد لګیدو نه پس دامت دپاره دقائمیدو طریقه کار فراهم شوه، دنفاذ حد ثبوت هم ملاو شو او د شریعت داحکامو تکمیل هم وشو، لهذا په حدودو کې چې کله دڅه لوېې ګناه کیدل دیو صحابي نه په نظر راځي نو هغې ته یې صرف دګناه په حیثیت سره مه ګوره بلکه دېته دتکمیل شریعت په آینه کې اوګوره چې دلته هم صحابه کرامو خپل مقدس ځانونه دشریعت دتکمیل دپاره پیش کړل، کتاب الحدود کې باب قطع السرقة نه مخکې به درې قسمه احادیث راځي د اکثرو احادیثو تعلق د حدزنا سره دی، اوددې په ضمن کې د بعضو تعلق دحد قذف سره دی دباقي روایاتو تعلق دحد لواطت سره دی لهذا په دې کتاب کې حدقذف دپاره ځانله عنوان نه دی ایخودلی شوی، دغه رنګه د لوطي دسزا دپاره څه عنوان نشته دی دحد قذف نور احادیث په باب اللعان کې تیرشوې دي.

## الفصل الاول

# بارگاه دنبوت کې دزنا دیوې مقدمې فیصله

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ: أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا

حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زید بن خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یوه ورځ دوه سړو خپله مقدمه

إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَحَدُهُمَا: اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللهِ

دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې راوړله، په دوی کې یو کس وویل چې زمونږ په مینځ کې د کتاب الله موافق حکم وکړئ

وَقَالَ الْآخَرُ: أَجَلْ يَا رَسُولَ اللهِ فَاقْضِ بَيْنَنَا بكِتَابِ اللهِ وائْذَنْ لِي

دویم هم عرض وکړو چې ای د الله رسوله! زمونږ په مینځ د کتاب الله موافق حکم وکړئ او ماته اجازت وکړئ

أَنْ أَتَكَلَّمَ قَالَ: «تَكَلَّمْ» قَالَ:

چې زه بیان وکړم چې د مقدمې صورت څه دی نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل بیان کړه چې زما ځوی د دې

إِنَّ ابْنِي كَانَ عَسِيفًا عَلَى هَذَا فَزَنَى بِامْرَأَتِهِ فَأَخْبَرُونِي أَنَّ على ابْنِي الرَّجْم

سړي سره مزدور وو هغه ده د ښځې سره زنا کړې ده خلقو ماته وویل چې ستا د ځوی سزا سنگساري ده

فاقتديت مِنْهُ بِمِائَةِ شَاةٍ وَبِجَارِيَةٍ لِي ثُمَّ إِنِّي سَأَلْتُ

خو ما د هغه سنگسار په بدله کې سل چیلۍ او یوه وینځه ورکړه، بیا چې کله ما د دې په حقله دعلماو

أَهْلَ الْعِلْمِ فَأَخْبَرُونِي أَنَّ عَلَى ابْنِي

نه تپوس وکړو نو هغوی وویل چې ستا ځوی چونکه محصن یعني واده کړی نه دی په دې وجه د هغه

جَلْدَ مِائَةٍ وَتَغْرِيبَ عَامٍ وَإِنَّمَا الرَّجْمُ عَلَى امْرَأَتِهِ

سزا سل کوړې دي او یو کال جلاوطني ده او د دې سړي د ښځې سزا سنگساري ده ځکه چې هغه واده کړې ده

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَمَا وَالَّذِي

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې دا قصه واوریده نو وې فرمایل چې خبردار شئ! قسم دی په هغه پاک ذات باندې

نَفْسِي بِيَدِهِ لَأَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللهِ

چې د هغه په لاس کې زما ساه ده زه به ستاسو په مینځ کې د کتاب الله موافق فیصله کوم نو واورئ

| |
|---|
| أَمَّا غَنَمُكَ وَجَارِيَتُكَ فَرَدٌّ عَلَيْكَ |
| چې ستا چیلۍ او ستا وینځه به تا ته واپس ملاویږي او که چیرې پخپله د مجرم په اقرار یا د ځلورو ګواهانو |
| وَأَمَّا ابْنُكَ فَعَلَيْهِ جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيبُ عَامٍ |
| په ګواهۍ سره د زنا جرم ثابت دی نو ستا ځوی ته به سل کوړې سزا ورکولی شي او یو کال د پاره به |
| وَأَمَّا أَنْتَ يَا أُنَيْسُ فَاغْدُ إِلَى |
| جلاوطن کولی شي بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام حضرت انیس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې انیس! ته د دې سړي |
| امْرَأَةِ هَذَا فَإِنِ اعْتَرَفَت فَارجمها» |
| د ښځې خواته لاړشه کچرې هغې د زنا اقرار او کړه نو هغه سنګسار کړه نو هغه ښځې د زنا اقرار |
| فَاعْتَرَفت فرجمها متفق عليه (صَحِيح)[1] |
| وکړو او حضرت انیس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سنګسار کړه. (بخاري و مسلم) |

**توضیح : بکتاب الله :** د دې نه د الله تعالی حکم مراد دی ځکه چې د رجم حکم د قرآن په الفاظو کې موجود نه دی اي **بحکم الله** مګر بعضې علماء فرمایې چې مراد هم قرآن کریم دی او د هغه آیت طرف ته اشاره ده چې مخکې نازل شوی وو بیا الفاظ منسوخ شو او حکم باقي پاتې شو الفاظ دا دي: **الشیخ والشیخة اذا زنیا فارجموهما البتة نکالا من الله والله عزیز حکیم** (المرقات ۱۲۲/۷)

**اجل یعني نعم فاقض** علامه طیبي لیکي چې فاء جزائیه ده شرط محذوف دی یعنې چې کله د دې سړي بیان راشي نو تاسو په کتاب الله باندې فیصله وکړئ دوارو متخاصمینو اشاره وکړه چې تاسو زمونږ په مینځ کې خالص د کتاب الله فیصله وکړئ د ځه صلح مصالحت ضرورت نشته دی چې کوم حکم دی هغه نافذ کړه **عسیفا** د مزدور او اجیر په معنی سره دی.

**جلد مأة :** جلد کوړې ته وایې شرعي کوړه دومره سخته نه وی نن صبا د حکمرانانو په نزد چې کومې کوړې دي دا خو تباهي ده چې د هغې په لسو کوړو سره د سړي د مرګ خطره وي. (المرقات ۱۲۲/۷)

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۵۲۳ رقم الحديث ۶۶۳۳ ومسلم في ۳/۱۳۲۴ رقم الحديث (۱۶۹۷-۲۵) وأبوداود في السنن ۴/۵۹۱ رقم: ۴۴۴۵

**تغریب عام** : تغریب مسافرجوړولو او جلاوطن کولو ته وایي.په دې باندې دټولو فقهاو اتفاق دی چې محصن واده کړې ته وایې که هغه سړی وي یا ښځه وي، کله چې د زنا ارتکاب وکړي او په ګواهانو سره یا په اقرارسره زنا ثابته شي نو هغه لره به رجم یعنې سنګسار کولی شي، اوکچیرې محصن نه وي یعنې واده یې نه وي کړی نو د جرم د ثبوت نه پس به ده لره سل کوړې وهلی شي، دفقهاو په دې کې اختلاف دی چې آیا پوره کال جلاوطن کول به په حد کې داخل وي یا دا دتعزیرحصه ده .

**دفقهاؤ اختلاف** : امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله وایې چې غیرمحص سړی وي او که ښځه دکوړو خوړلو نه پس به یو کال دپاره تغریب یعنی جلاوطن کول دزنا دحد حصه ده. د امام مالک رحمه الله په نزد تغریب عام دی په دې به عمل وي خو صرف دسړو سره خاص دی او د ښځو دپاره د فتنې په وجه دا حکم نه دی ځکه که ښځې جلاوطن کړی شي نوفتنه نوره هم زیاتیږي.
احناف وایې چې پوره کال جلاوطن کول په حدکې داخل نه دی دا محض تعزیر دی، کچیرې امام او قاضي سیاسةً او حکمةً د چا جلاوطن کول مناسب ګڼي نود مصلحت د مخې دې هغه لره د علاقې نه وشړي خو بهترتغریب دادی چې هغه لره په جیل کې واچولی شي، او پوره کال قید په تنهائۍ کې پروت وي. شوافع دتغریب عام مسافت د درې ورځو اودرې شپو فاصله مقررکړې ده. (المرقات ۱۲۲،۱۲۴/۷)

**دلائل** : حنابلو او شوافعو د دې ټولو احادیثو نه استدلال کړی دی په کومو کې چې د سلو کوړو سره د تغریب عام ذکر دی دارنګه ددې باب په حدیث نمبر ۱ او حدیث نمبر ۲ او حدیث نمبر ۳ نه دې حضراتو استدلال کړی دی چې په خپله مدعا باندې واضح احادیث دي، ائمه احنافو دقرآن کریم آیت مأة جلدة نه استدلال کړی دی هغوی فرمایې چې آیت مطلق دی کچیرې دزانی د کوړو سره دپوره کال جلاوطن کول هم ومنلی شي نو دا به د آیت په حکم باندې زیادت شي چې مناسب نه ده.
احنافو دخلفاء راشدینو دفیصلو نه هم استدلال کړی دارنګه مصنف عبدالرزاق کې دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حوالې سره یو روایت نقل کړی شوی چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل **کفی بالنفي فتنة** چې جلاوطن کول دفتنې زیاتولو دپاره کافي دی. دغه شان مصنف عبدالرزاق کې دحضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حوالې سره نقل کړی شوې دي چې هغوی امیة بن ربیعه لره جلاوطن کړو نو هغه عیسائی شو په دې وجه حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل **لا اغرب بعده مسلماً** زه به اوس هیڅ یو مسلمان جلاوطن نه کړم دا الفاظ په واضحه باندې ښایې چې تغریب د حد حصه نه ده

کچیرې داسې وی نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کله هم دې لره نه شو ختمولی (دا دواړه روایتونه زجاجة المصابیح جلد ۳ ص۵۹ باندې دی)(المرقات ۱۲۴/۷ تا ۱۲۷)

**جواب**: دشوافعو د مستدلاتو نه جواب دادی چې دتغریب حکم په سیاست او مصلحت باندې مبني دی ګویا د تعزیر یوه حصه ده کچیرې قاضي دې لره مناسب وګڼي نو داسې دې وکړي څنګه چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه هم دتغریب واقعه نقل ده، احناف ددې روایاتو دویم جواب دا هم کړی دی چې دا حکم په ابتداء کې وو بیا موقوف یا منسوخ شو ددې وجه داده چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د حد زنا په ټو واقعاتو کې د کوړو نه پس دتغریب عام حکم نه دی ورکړی که چیرې دا حکم واجب العمل وی نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله هم ددې نه معافي نه کوله، بهرحال کچیرې قبائلي نظام ته وکتلی شي نو دا حکم اوس هم هلته موجود دی او په دې باندې عمل کولو سره غټې غټې فتنې ختمیږي، احناف دې ته سیاست وایي.

**په اعتراف زنا باندې دحد جاري کیدو حکم**: **فان اعترفت**: اوس دامسئله زیربحث ده چې یو ځل په اعتراف بالزنا باندې به حد جاري کیږي یا اعتراف دپاره تعدد شرط دی دارنګه په دې کې هم کلام دی چې آیا په یو مجلس کې اعتراف کافی دی یا څلور مجلسونو کې جدا جدا اعتراف ضروري دی په دې کې دفقهاو اختلاف دی.

**دفقهاو اختلاف**: امام شافعی رحمه الله او امام مالک رحمه الله فرمایي چې یو ځل اقرار کول دثبوت زنا دپاره کافي دي، او دمجلس دتعدد یا داعتراف دتعدد ضرورت نشته دی. امام ابو حنیفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمایي چې د زنا دثبوت دپاره څلور ځله اقرار کول شرط دی، دې دپاره چې د څلورګواهانو قائم مقام شي، دارنګه د یو مجلس په ځای د څلورو مجالسو تعدد هم لازمی دی.

**دلائل**: شوافع او مالکیان دمذکوره حدیث نه استدلال کوي چې په هغې کې یوځل د اقرار ذکر دی او دمجلس دتعدد هم څه ذکر نشته دی. احناف او مالکیان دحضرت ماعز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دمتعدد دو روایاتو نه استدلال کوي چې په هغې کې څلور ځله د اقرار ذکر راغلی دی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ درې ځله هغه لره واپس کړو او په څلورم ځل یې د رجم حکم ورکړو که په یو یا دوځله اقرار سره حد واجب کیدو نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ به حضرت ماعز لره دواپس کولو په ځای په هغه فوراً حد نافذ کولو، دحضرت ماعز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رجم ټولو روایاتو باندې کچیرې نظر واچولی شي نو په تعدد د مجلس او تعدد د اقرار کې به څه شبهه باقی نه پاتې کیده.

**جواب**: دشوافعو او مالکیانو ددلیل توجیه او جواب دادی چې په دې کې دجنس اعتراف ذکر دی

په دې کې د يو يا دوو ذکر نشته نه دنفې ذکر دی نه داثبات ذکر دی، نو په دې کې هغه معهود څلور اعترافه مراد دي يا روايت مجمل دی ددې تفسير او تفصيل د حضرت ماعز په روايت کې دی.( المرقات ۱۲۵/۷،۱۲۴)

## دغير محصن زانی سزا او داحصان شرطونه

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ فِيمَنْ |
| او حضرت زيد بن خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايې چې ما د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د غير محصن زاني په باره کې |
| زَنَى وَلَمْ يُحْصَنْ جَلْدَ مِائَةٍ وَتَغْرِيبَ عَامٍ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| د احکم واوريدو چه هغه به سل کوړې وهلی شي او د يو کال دپاره به جلا وطن کولی شي.(بخاری) |

**توضيح : ولم يحصن** :زاني کچيرې غير محصن وي نو د هغه سزا سل کوړې ده خو که زانی محصن وي نو د هغه سزا رجم دی، اوس د احصان زنا او د محصن جوړيدو دپاره څه شرائط دي: (۱) بالغ کيدل (۲) عقل مند کيدل (۳) د واده کيدو سره د خلوت صحيحه کونکی (۴) آزاد کيدل (۵) مسلمان کيدل. دا د احصان دزنا شرطونه دي، د احصان دقذف هم شرطونه دي هلته صرف د واده کيدو په ځای پاکدامن کيدل شرط دی کچيرې مقذوف پاکدامن نه وي نو په قاذف به حد قذف نه لګي.
په شرطونو کښې د اسلام شرط د حدزنا په باب کې اختلافي دی چې ايا په غير مسلم ذمی باندې به د زنا حد نافذولی شي يا نه، نو شوافع او حنابله فرمايي چې د حد زنا دنافذ کولو دپاره مسلمان کيدل شرط نه دی، ځکه چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د دوو يهوديانو په مينځ کې د زنا د حد حکم نافذ کړی وو حالانکه هغه غير مسلم وو د کوم قصه چې مخکې راروانه ده . احناف او مالکيان فرمائی چې داحصان الزنا دپاره اسلام شرط دی لهذا ذمی او ذميه کچيرې زنا وکړي نو حد به نه شی نافذ کولی دهغوی دليل د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوع او موقوف روايت دی چې دهغې الفاظ علامه زيلعی په نصب الرايه کې داسې نقل کړي دي **(من اشرک بالله فليس بمحصن)**
د شوافعو او د حنابلو د دليل جواب دادی چې هغه حکم د تورات وو د قرآن عظيم نه وو همدا وجه ده چې په يهوديانو يې تورات ولوستلو فيصله يې وکړه هغه حکم د تنکيل او عبرت دپاره بطور سياست وو چې په يهوديانو کې د زنا رواج عام شوی وو.

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۲/۱۵۶ رقم الحديث ۶۸۳۱

# په اسلام کې د رجم ثبوت او د محصن زاني سزا

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِن الله بعث مُحَمَّدًا |
| حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې بیشکه الله تعالی محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حق سره رالیږلی دې او په هغه ئې |
| وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ فَكَانَ مِمَّا أَنْزَلَ الله تَعَالَى آيَةُ الرَّجْمِ |
| خپل کتاب نازل کړو نو الله تعالی په دې کتاب کې چې څه نازل کړې دي په دې کې د رجم آیت هم دی |
| رَجَمَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَجَمْنَا بَعْدَهُ وَالرَّجْمُ فِي كِتَابِ الله حَقٌّ عَلَى مَنْ زَنَى |
| رجم او په کتاب الله کې د هغه سړي د رجم کولو حکم ثابت دی چه د محصن کیدو باوجود زنا وکړي که |
| إِذَا أُحْصَنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ إِذَا قَامَتِ الْبَيِّنَةُ |
| هغه سړی یا ښځه وي او دا د رجم سزا به هغه وخت ورکولی شي چه کله د زنا جرم د ګواهانو په ذریعه |
| أَوْ كَانَ الحَبَلُ أَوِ الاِعْتِرَاف. متفق عليه (صَحِيح)[1] |
| یا د حمل په ذریعه یا د اعتراف او اقرار په ذریعه ثابت وي. (بخاري ومسلم) |

**توضیح: والرجم في كتاب الله:** حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې جمله کې هغه آیت طرف ته اشاره کړې ده چې یو ځل په قرآن کې نازل شوی وو خو بیا د هغې الفاظ منسوخ شو او حکم یې باقي پاتې شو.

هغه آیت دا دی: **(الشيخ والشيخة اذا زنيا فارجموهما البتة نكالا من الله والله عزيز حكيم)** او س دا ایت منسوخ التلاوة او باقي الحکم دی. په اسلام کې د ناواده کړي غیر محصن سړي د پاره سل کوړې سزا موجود ده چې په کې د څه شک او شبهې ګنجائش نشته دی، اوس سوال دا دی چې د محصن زاني د پاره رجم او سنګسار دی دا سزا چیرته ده؟ د دې جواب دا دی چې د رجم سزا هم د قرآن کریم حکم دی او قرآن او حدیث نه ثابت دی خو د دې د پاره چې کوم آیت نازل شوی وو چې د کوم الفاظ پاس لیکلی شوې دي، هغه منسوخ التلاوة دي او حکم یې اوس هم موجود دی او دا سې کیږی دا زمونږ فیصله نه ده نه زمونږ معامله ده، د صحابه کرامو او شارع اسلام معامله او د هغه فیصله ده د صحابه کرامو هم دا ګواهي ده چې همدا سې شوې ده بیا په دې باندې اجماع منعقده شوه چې د رجم حکم د قرآن حکم دی. حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مسجد نبوي کې د خطبې په دوران کې

---

[1] أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۱۳۷ رقم الحدیث ۶۸۲۹ ومسلم فی ۳/۱۳۱۷ رقم الحدیث (۱۶۹۱-۱۵) وأبوداود فی السنن ۴/۵۷۲ رقم الحدیث ۴۴۱۸ والترمذی فی ۴/۳۰

اعلان وفرمایلو چې رجم دالله تعالی حکم دی اوپه قرآن کې دې د یوې اوږدې زمانې نه پس به خلق وایې چې رجم حکم په قرآن کې نشته دی په دې سره به هغوی ګمراه شي په الله قسم چې که چیرې خلقو دا نه ویل چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په قرآن کې اضافه وکړه نوما به دا آیت په قرآن کې داخل کړی وو الفاظو سره به مې لیکلی وو. ددې واقعاتو او اشارتونه ثابته شوه چې رجم کول د قرآن حکم دی. دارنګه دیهودیانو د رجم د حکم نه انکاربانديې قرآن کریم کې تقریبًا یوه رکوع د رجم د ثبوت متعلق راغلې ده د سورت مائدې رکوع نمبر ۷ کتل پکار دي. دارنګه احادیث مبارکه د رجم په باره کې په تواتر سره نقل دي، دارنګه د نبی کریم ﷺ عمل او رجم په څو صحابو باندې نافذول او د مدینې په یهودیانو باندې هم نافذول دا واضح دلائل دي چې د رجم حکم د قرآن او اسلام دی. حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې دې د الله رحمتونه نازل شي د هغه ایمانی نور د لرې نه راتلو والا فتنو نشاندهي وکړه. صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې لره جاري ساتلې ده او په دې باندې د صحابو اجماع ده. او نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژوند غیرمبهم واقعات دي چې د خوارجو نه سوا او د نن صبا د ملحدینو او منافقینو نه سوا چاهم ددې نه انکار نه دی کړی.

**اوکان الحبل**: د ثبوت حد د پاره د ګواهانو قیام او یا د مرتکب جرم پخپله اقرار کول خو کافي دي په دې کې د چا هم اختلاف نشته دی. البته په دې کې د فقهاو اختلاف دی چې کچیرې د ناواده کړې ښځې د حمل ظهور وشي نو ددې څه حکم دی.

**د ناواده کړې ښځې د حمل حکم** : امام ابوحنیفه، امام مالک او امام احمد رحمهم الله فرمایې چې د ظهور حمل په بنیاد باندې به د زنا حد نه شي قائمولی. امام شافعی رحمه الله فرمایې چې د حمل ظاهریدل په ناواده کړې ښځه کې د حد زنا د ثبوت د پاره کافی دی او ذکرشوې جمله **او کان الحبل** نه یې استدلال کړی دی، جمهور فرمایې چې د حمل وجود محتمل دی کیدی شي چې د اکراه په صورت کې وي یا د اشتباه دوجې نه وي په حالت نوم کې وي، یا په غیراختیاري طور باندې وي ددې احتمالاتو دوجې نه حد به ساقط شي، ځکه چې الحدود تندرءُ بالشبهات دا یوه واضحه قاعده ده، د ذکرشوې جملې **او کان الحبل** جواب دادی چې دا د سبب بعیده په طور باندې ذکرکړی شوې ده چې کله بغیر دخاوند نه بچی وشي نو بیا به یا د ګواهانو په ثبوت سره وي او یا به په اقرار سره ثبوت وي او بیا به حد قائمیږي، دا مطلب نه دی چې صرف د حمل په بنیاد باندې به حد قائمیږي، بهرحال دا تاویل کمزوری دی.

## واده کړې زانيه او زاني سنګسار کړئ

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: خُذُوا عَنِّي |
| او حضرت عباده بن صامت راوي دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د زانیه په باره کې زمانه دا حکم |
| خُذُوا عَنِّي قَدْ جَعَلَ اللهُ لَهُنَّ سَبِيلًا: |
| حاصل کړئ زمانه دا حکم حاصل کړئ چې الله تعالی د ښځو د پاره لار مقرر کړې ده، چه کوم غیر محصن سړې |
| الْبِكْرُ بالبكر جلد مائة وتغريب عام |
| د کومې غیر محصنې ښځې سره زنا وکړي نو سل کوړې به وهلی شي او یو کال د پاره به جلا وطن کولی شي. |
| وَالثَّيِّب بِالثَّيِّبِ جلد مائة وَالرَّجم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او چې کوم محصن سړی د محصنې ښځې سره زنا وکړی نو سل کوړې به وهلی شي او سنګسار کولی به شي. (مسلم) |

**توضيح : خذوا عني** : نبی کریم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ارشاد په دې وجه فرمایلی وو چه دې نه مخکې د قرآن په آیتونوکې د زاني او زانیه حد مشروع شوی نه وو هغه آیت دادی : وَالّٰتِيْ يَأْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِي الْبُيُوْتِ حَتّٰى يَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ يَجْعَلَ اللهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ﴿۱۵﴾ (سورة النساء ۱۵)

ددې آیت نه پس چې کله د سورة نور آیتونه نازل شول او په دې کې د زناد حد حکم راغلو نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ اعلان وفرمایلو چې الله تعالی د سبیل وېستلو چې کومه وعده کړې وه هغه یې پوره کړه او س الله تعالی د هغوی د پاره لاره مقرر کړه چې د ناواده کړي سړي او ښځې د پاره سل کوړې او یو کال د پاره جلا وطن کول دي او د واده کړی د پاره سل کوړې او رجم دی.

**د جمع بين الرجم والجلد حكم** : ددې حدیث په آخري جمله کې دا حکم ورکړی شوی دی چې ناواده کړی زاني او زانیه ته مخکې سل کوړې ورکړئ او بیایې رجم کړئ ددې نه معلومه شوه چې کوړې وهل او سنګسارول په یو انسان باندې په یو حد کې جمع کیدی شي، اهل ظواهرو او بعضو تابعینو ددې حدیث په ظاهر باندې عمل کړی دی او رجم سره یې مخکې د کوړو سزا جائز ګرځولې ده، د جمهورو فقهاو او د جمهور امت په نزد د رجم سره به د کوړو سزا نه شي ورکولی ددوی د طرف نه ددې حدیث نه دا جواب دی چې دا حکم منسوخ شوی دی ځکه چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وروسته د رجم

(۱) أخرجه مسلم ف صحيحه ۳/۱۳۱٦ رقم الحديث (۱٦۹۰-۱۲) وأبوداود في السنن ٤/٥٦۹ رقم الحديث ٤٤١٥ والترمذي في ٤/۳۲ رقم الحديث ١٤٣٤ وابن ماجه في ۲/۸٥۲ رقم الحديث ۲٥٥٠.

سره كوړې نه دې جمع كړې، دا ددې حكم دمنسوخ كيدو دليل دى. **دويم جواب**: داچې كچيرې كوړې لګول د رجم سره د يو حديث نه ثابتې شي نودا حكم به سياسةً وي حدًا به نه وي.

**دريم جواب** داچې كله چې نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ يو كس لره د يو جرم په كولو باندې كوړې وركړې دې خو روستو پته ولګيده چې دا كس محصن وو په دې وجه نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ بيا رجم هم كړو چې په هغې سره رجم اوجلد دواړه جمع شول، بهرحال په عهد نبوي كې د هميشه معمول نه كيدو په وجه سره به دا تاويلونه كول وي. (المرقات ۷/۱۳۲،۱۳۱)

## د الله تعالى كتاب په زمكه مه ږدئ

﴿۵﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ: أَنَّ الْيَهُودَ

او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يوه ورځ د يهوديانو يو جماعت د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

جَاؤُوا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا لَهُ

په خدمت كې حاضر شو او هغوى د نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ په مخكې دا بيان وكړو چې ددوى په قوم كې يوې

أَنَّ رَجُلًا مِنْهُمْ وَامْرَأَةً زَنَيَا فَقَالَ لَهُمْ

ښځې او يو سړي چې دواړه محصن يعنى واده كړي دي زنايې كړې ده، نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا تَجِدُونَ فِي التَّوْرَاةِ فِي شَأْنِ الرَّجْمِ؟»

هغوى نه تپوس وكړو چې تاسو په تورات كې د رجم په باره كې څه لوستلې دي؟ يهوديانو وويل چې

قَالُوا: نَفْضَحُهُمْ وَيُجْلَدُونَ

مونږ زنا كونكو لره ذليل او رسوا كوو او هغوى ته كوړې وركوو د هغوى د خبرې اوريدو سره

قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ: كَذَبْتُمْ إِنَّ فِيهَا الرَّجْمَ

حضرت عبد الله بن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې تاسو دروغ وايئ، په تورات كې هم د رجم حكم ذكر دى،

فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَنَشَرُوهَا

تورات راوړئ چې زه تاسو ته د رجم حكم ښايم نو هر كله چې تورات راوړلې شو او كولاو كړى شو نو

فَوَضَعَ أَحَدُهُمْ يَدَهُ عَلَى آيَةِ الرَّجْمِ

په يهوديانو كې يو كس ز ر په هغه ځاى باندې لاس كيخود لو چيرته چې د رجم په باره كې آيت وو،

فَقَرَأَ مَا قَبْلَهَا وَمَا بَعْدَهَا

او د هغې په مخكې روستو آيتونه يې ولوستل دې كتلو سره حضرت عبد الله بن سلام هغه ته وويل

| |
|---|
| فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ: ارْفَعْ يَدَكَ فَرَفَعَ فَإِذَا فِيهَا آيَةُ الرَّجْمِ. |
| چې خپل لاس لرې کړه، هغه چې خپل لاس لرې کړو نو وې کتل چې هلته درجم آیت موجود وو، ددې (آیت پټولو والا) |
| فَقَالُوا: صدق يَا محمَّدُ فِيهَا آيَةَ الرَّجْمِ. |
| وويل چې اى محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! (عبد الله بن سلام) رښتيا وويل په تورات کې درجم آيت موجود دى |
| فَأمر بهما النَّبِيُّ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرُجِمَا. |
| ددې نه پس نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه دواړو باندې دسنګسارولو حکم وکړو او هغوى سنګسار کړې شول. |
| وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: ارْفَعْ يَدَكَ |
| په يو روايت کې داسې دي چې حضرت عبد الله بن سلام هغه سړي ته وويل چې خپل لاس لرې کړه او بيا |
| فَرَفَعَ فَإِذَا فِيهَا آيَةُ الرَّجْمِ تَلُوحُ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ |
| کله چې هغه خپل لاس لرې کړو نو هلته درجم آيت موجود وو، ددې آيت پټولو والا ويل: اى محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! |
| إِنَّ فِيهَا آيَةَ الرَّجْمِ ولكِنَّا |
| په تورات کې د رجم آيت موجود دى، مګر مونږ ئې په خپل مينځ کې نه ښکاره کوو. ددې نه پس |
| نَتَكَاتَمُهُ بَيْنَنَا فَأَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه دواړو باندې دسنګسارولو حکم وکړو او هغوى سنګسار کړې شول. (بخارى ومسلم) |

**توضيح**: ان اليهود جاءوا: **سوال**: دلته دا سوال دى چې يهوديان کافر دي او کافر محصن نه شي کيدى اګر چې واده کړى وي. داحصان دپاره اسلام شرط دى، څنګه چې مخکې په تفصيل سره تيرشوى دى نو دلته يهوديانو لره د رجم کولو حکم څنګه وکړى شو؟

**جواب**: ددې يو جواب دادى چې نبى اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داحکم دتورات مطابق کړى وو او په تورات کې د رجم دپاره احصان شرط نه وو، دويم جواب دادى چې اوسه پورې دقرآن حکم نه وو راغلى نو په تورات عمل وکړى شو، هرکله چې دقرآن حکم راغلو نو دتورات حکم منسوخ شو لهذا اوس په ذمي باندې د رجم حکم نه شي نافذ کولى، په دې مسئله کې دشوافعو او حنابلو اختلاف مخکې ليکلى شوى دى. (المرقات ۱۳۴/۷)

**تنبيه**: په ابوداؤد شريف کې دا رنګه حديث د کتاب الحدود په باب رجم اليهوديين کې راغلى دى په دې کې دومره اضافه ده چې هرکله نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ ديهوديانو سره بيت المدارس يعنى دهغوى په مدرسه کې کيناستلو نو هغوى دنبى عَلَيْهِ السَّلَامُ د اکرام دپاره لاندې بالخت کيخودلو نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۱۶۶ رقم الحديث ۶۸۴۱ ومسلم في ۳/۱۳۲۶ رقم الحديث (۱۶۹۹-۲۶) وأبوداود في السنن ۴/۵۹۳

تورات راوغوښتلو کله چې تورات راوړلی شو، نو نبي علیه السلام د لاندې نه بالخت اوچت کړو مخې ته یې کیخودلو او په هغې یې تورات کیخوستو او تورات یې په زمکه کینخودلو، په دې سره تړولو عربو ته سبق ملاویږی چې هغوی په زمکه باندې قرآن ږدي او بی ادبي یې کوي، او د قرآن احترام نه کوي د ابوداؤد د حدیث الفاظ دادي: **ثم قال ائتونی بالتوراة فاتی بها فنزع الوسادة من تحته ووضع التوراة علیها وفی روایة ووضع الوسادة تعظیما لکتاب الله تعالی وقال آمنت بک وبمن انزلک** (ابوداؤ، ج ۲ ص ۲۵۵) باوجود دې چې تورات منسوخ شوی کتاب وو خو الله تعالی ته د منسوب کیدو وجې نه نبي علیه السلام د دې احترام وکړو او په غیر محرف تورات باندې یې د ایمان راوړلو اعلان وفرمایلو، اوس که یو مسلمان د خپل عظیم قرآن او د الله تعالی د عظیم کتاب احترام نه کوي نو هغه د دې د فائدو او برکاتو نه به څنګه برخه دار شي. **فالی الله المشتکی.**

**فوضع احدهم یده**: دا د تورات یو عالم وو چه د هغه نوم ابن صوریا وو مګر د یهودیانو په رګونو کې د الله تعالی د کتاب د تحریف ماده اچولی شوې وه په دې وجه یې په ډک مجلس کې هم د حق د پټولو او په هغې د ګوتې ایخودلو کوشش کولو، نن صبا مسلمانان حکمرانان د یهودیانو دا فریضه ادا کوي او د قرآن حکمونه پټوی هغه وخت عبدالله بن سلام یهودیانو لره رسوا کړل او نن صبا علماء حق دا فریضه ادا کوي، یهودیانو اعتراف وکړلو چې په مونږ کې هرکله بااثر او اصحاب اقتدار مالداره طبقه زنا وکړي نو مونږ د هغوی دپاره د رجم حکم په نرمولو سره په کوړو او لعن طن سره بدلوو، او د غریب دپاره د پوره حکم د نافذ کولو حکم کولی شي په دې شان سره په تورا ت کې تحریف وکړی شو، افسوس دی چې نن صبا ملحدین حکمرانان د الله تعالی د کتاب حکم د غریبانانو دپاره هم نه نافذ کوي. (المرقات ۱۳۴/۷)

## د رجم یوه واقعه په دې کې آداب او مسائل

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ |
| او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي چې یوه ورځ نبي علیه السلام ته یو کس راغلو هرکله چې نبي علیه السلام |
| وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَنَادَاهُ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| په مسجد نبوی کې تشریف فرما وو. یو سړي آواز وکړو چې یا رسول الله! ما زنا کړې ده نبي علیه السلام |
| إِنِّي زَنَيْتُ فَأَعْرَضَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَنَحَّى لِشِقِّ |
| چې دا واوریدل نو خپل مخ یې د هغه نه واړولو نو هغه سړي بیا د نبي علیه السلام مخې طرفته راغلو |
| وَجْهِهِ الَّذِي أَعْرَضَ قِبَلَهُ فَقَالَ: إِنِّي زَنَيْتُ فَأَعْرَضَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| کوم طرفته چې نبي علیه السلام مخ اړولی وو او وې ویل چې ما نه زنا شوې ده نبي صلی الله علیه وسلم بیا مخ واړولو |

فَلَمَّا شَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ دَعَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:

تردې چې هغه داسې څلور ځله د خپل جرم اقرار وکړو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه راوغوښتلو او تپوس یې ترې وکړو

«أَبِكَ جُنُونٌ؟» قَالَ: لَا فَقَالَ: «أُحْصِنْتَ؟» قَالَ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ

چې آیا ته لیونی یې ؟ هغه وویل چې نه! بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تپوس وکړو چې آیا ته محصن یې؟ هغه وویل آو

قَالَ: «اذْهَبُوا بِهِ فَارْجُمُوهُ»

ای دالله رسوله! ددې نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته وفرمایلل چې دا سړی بوځئ او سنګسار یې کړئ. ددې

قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: فَأَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ

حدیث دیو راوي ابن شهاب بیان دی (چې کوم سړي دا حدیث د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه اوریدلی وو هغه ماته وویل چې)

يَقُولُ: فَرَجَمْنَاهُ بِالْمَدِينَةِ

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د حکم نه پس هغه سړي لره په مدینه کې سنګسار کړو

فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ هَرَبَ

نو هر کله چې مونږ هغه لره په کاڼو ویشتل شروع کړل او هغه په کاڼو لګیدلو نو هغه وتختیدلو تردې

حَتَّى أَدْرَكْنَاهُ بِالْحَرَّةِ فرجمناه حَتَّى مَاتَ

پورې چې مونږ هغه په حره مقام کې ونیولو او بیا مو هغه سنګسار کړو تردې چې مړ شو. (بخاري ومسلم)

وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ: عَنْ جَابِرٍ بَعْدَ قَوْلِهِ: قَالَ: نَعَمْ

او د بخاري په یو روایت کې ددې (سړي) د قول نعم نه پس داسې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ بِالْمُصَلَّى فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ

حکم وکړو، نو دا په جنازه ګاه کې سنګسار کړی شو هر کله چې په کاڼو لګیدلو نو وتختیدلو.

فَرَّ فَأُدْرِكَ فَرُجِمَ حَتَّى مَاتَ. فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بیا هغه ونیولی شو او سنګسار کړی شو. تردې چې مړ شو، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه متعلق ښه خبره وکړه

خيرا وَصلى عَلَيْهِ (صَحِيح)[1]

او د هغه د جنازې مونځ یې وکړو.

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۱۳۶ رقم الحديث ۸۱۲۵ ومسلم في ۳/۳۱۸ رقم الحديث (۱۶۹۲-۱۶)

**توضیح : اربع شهادت** : په دې جملې سره داحنافو او د حنابلو مسلک په واضح طور سره ثابتیږي، چې څلور ځله اقرار لره د ثبوت زنا دپاره ضروري ګڼړي شوافع او مالکیان یو ځل اقرار لره کافي ګڼي.

**بک جنون** : د دې جملې نه معلومیږي چې قاضي او حاکم لره پوره تحقیق کول پکار دي او دا کوشش کول پکار دي چې اعتراف کونکی خپل بیان بدل کړي دې دپاره چې حد ترې ساقط شي په شرط د دې چې په دې معامله کې د شرعي قواعدو پوره خیال وساتلی شي دا تحقیق د اعتراف په صورت کې دی د ګواهانو دګواهۍ په صورت کې نه دی هلته په ګواهانو دجرح مسئله ده. ( المرقات ۱۳۶/۷)

**فلما اذلقته الحجارة** : اذلاق په تیره څیز سره چاله زخمي کولو سره کمزوري کولو ته وایي، مطلب دا چې کله دکاڼو په ویشتلو سره یې هغه لره زخمي او کمزوری او عاجز کړو نو **هرب** هغه وتختیدو دلته مسئله داده چې کچیرې مجرم اقراري وتختي نو هغې پسې تلل نه دي پکار کیدی شي چې هغه دخپل اقرار نه رجوع کوي اودا رجوع آخر وخته پورې کارآمد ده هم په دې وجه شریعت په قصاص کې توره مقرر کړې ده، ځکه چې هلته سزا شروع کیدو سره حکم لره تکمیل ته رسول ضروري دی نو دچا مهلت ورکونکي فائده نشته دی، خو دلته چونکه اقرار د زنا دی نو څه وخت هم دا سړی د زنا نه انکار کولی شي او په دې انکار سره حد ساقطیږي . هم د دې حکمت لاندې اسلام دلته د سنګسارولو حکم ورکړی دی دې دپاره چې آخر وخته پورې د بچ کیدو مهلت موجود وي، دلته که دګواهانو په وجه سره جرم ثابت شو نو بیا د انکار څه فائده نشته دی هلته دګواهانو په رجوع سره حد ساقط کیدی شي په دې حدیث کې د مرجوم په تختیدو سره معلومه شوه چې د رجم په دوران کې مرجوم لره تړل ضروري نه دي او نه په څه کنده کې ودرول ضروري دي ها ښځې لره به د پردې د حفاظت د وجې نه به په کنده کې ودرولو سره رجم کولی شي.( المرقات ۱۳۸/۷،۱۳۷)

**فرجم بالمصلی** : مصلی نه مراد جنازګاه ده او دا دبقیع غرقد سره وه نو اوس اعتراض نه راځي چې په بعضو روایاتو کې دبقیع غرقد سره د سنګسار کولو ذکر دی په بعضو کې د مصلی ذکر راغلی دی او په بعضو کې د حره تذکره ده چې د تعارض نشاندهي کوي؟ نو جواب واضح دی چې بقیع غرقد سره جنازګاه وه نو دواړه یو ځای دي او د حره ذکر په دې وجه راغلی دی چې دا سړی هغه ځای پورې تختیدلی وو نو هلته هم د رجم عمل شوی وو. ( المرقات ۱۳۹/۷)

اوس دا مسئله ده چې که د مصلی نه عیدګاه مراد وي نو کله چې یو ځای ته یو ځل د مسجد او د عیدګاه حکم ورکولو سره په هغې کې مونځونه شروع شي نو بیا د دې د تقدس لحاظ ساتل ضروري

دي، لهذا هلته رجم کول جائز نه دی دې دپاره چې په وینه سره ګنده نه شی، په یو حدیث کښې راغلي دي
**جنبوا مساجدکم صبیانکم ومجانینکم ورفع اصواتکم وشرا کم واقامة حدودکم.**
په دې وجه علامه نووی رحمه الله فرمایي چې دلته دمصلی نه مراد هغه ځای دی چیرته چې دجنازې مونځ کیږي دا عیدګاه نه وه، او صرف دمونځ ځای لره مسجدیاعیدګاه نه شي کرځولی نه د هغې حیثیت دمسجد یا دعیدګاه وي. **وصلی علیه** په دې صیغه کښې ډیر اختلاف دی چې آیا دا د مجهول صیغه ده یا دمعروف صیغه ده، په راتلونکي حدیث کښې هم دا صیغه هم داسې راغلې ده، کچیرې دا صیغه دمجهول شي ددې مطلب به داوي چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ دسنګسارشوې سړي په جنازه کښې په خپله شرکت نه دی فرمایلی البته صحابو دجنازې مونځ کړی وو، اوکه دا صیغه دمعروف او معلوم وي نو دې مطلب به داوي چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ دسنګسار شوې سړي په جنازه کښې شریک شوی وو. راجح دادی چې دا صیغه دمعلوم ده او دجمهورو رایه هم داده، دمسلم شریف په څورو ایاتو کښې دا صیغه د معروف اومعلوم منقول ده، اوس په دې کښې دفقهاو اختلاف دی چې دسنګسارشوې سړي دجنازې مونځ به کولی شي، که نه نو دامام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد دمرجوم دجنازې مونځ مکروه دی،امام احمدبن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې عام مسلمانان به یې وکړي مګر دوخت بادشاه یا قاضي یا مشهور اهل فضل او د کمال علماء به په دې کښې شرکت نه کوي. د امام شافعی رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد د هرمسلمان کلمه ګو جنازه به کولی شي که هغه مرجوم وي یا فاسق وي یا قاتل نفس وغیره وي، د امام احمد رحمه الله یو قول همداسې دی.احادیثو ته په کتلو سره پته لګی چې د بعضې روایاتو نه دنبی عَلَیْهِ السَّلَامُ دجنازې نه کولو نفې معلومیږی او بعضې روایاتو نه معلومیږی چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ جنازه کړې ده په دې کښې تطبیق داسې دی چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ خو جنازه کړې ده خو بطورد زجریې تاخیر هم فرمایلی دی چې په د هغې نه نه کول معلوم شول. (المرقات ۱۳۸،۱۳۹/۷)

| |
|---|
| ﴿۷﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: لَمَّا أَتَى مَاعِزُ بن مَالك النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې هرکله ماعزبن مالک نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ ته (مسجدنبوی ته) راغلو (او |
| قَالَ لَهُ: «لَعَلَّكَ قَبَّلْتَ |
| وې ویل چې مانه زنا شوې ده) نونبی عَلَیْهِ السَّلَامُ هغه ته وفرمایل چې شاید تا پردی ښځه خکل کړې وي، یا به |
| أَوْ غَمَزْتَ أَوْ نَظَرْتَ؟ قَالَ: لَا يَا رَسُولَ الله |
| دې په شهوت سره لاس وروړی وي یا به دې کتلې وي هغه عرض وکړو چې نه ای دالله رسوله! نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالَ: | «أَنِكْتَهَا؟» | لَا | يُكَنِّي |
| چې آیا تا جماع کړې ده؟ راوي وایې چې نبي عَلَیهِ السَّلَام د دې خبرې په اشاره سره پوښتنه نه وه کړه بلکه په صفا لفظونو | | | |
| قَالَ: | نَعَمْ | فَعِنْدَ | ذٰلِكَ |
| سره یې تپوس وکړو چې آیا واقعي تا زنا کړې ده؟ ماعز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ها ما جماع کړې ده. د | | | |
| أَمر | برجمه. | رَوَاهُ | البُخَارِيّ (صَحِيح)[1] |
| دې (تحقیق او تفشیش) نه پس نبي عَلَیهِ السَّلَام د ماعز د سنګسارولو حکم وفرمایلو. (بخاری) | | | |

**توضیح**: الکتها لایکني ناک ینیک په عربي لغت کې د جماع دپاره واضح او ښکاره لفظ دی په دې سره دا خبره معلومه شوه چې په عدالت کې قاضي له پکار دي چې د کنائي الفاظو په ځای واضح او بامعنی او د عام فهمه الفاظو استعمالولو ماحول جوړ کړي او مبهم ذومعاني (د ډیرو معانو والا) الفاظ استعمال نه کړي، او نه په اشارو سره کار وچلوي، لایکنی معنی همداده چې نبي عَلَیهِ السَّلَام د کنایه او اشارو نه کار وانه خستلو. (المرقات ۱۴۰/۷)

## په حد قائمولو سره ګناه معاف کیږي

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ | بُرَيْدَةَ | قَالَ: | جَاءَ | مَاعِزُ | بْنُ | مَالِكٍ | إِلَى | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې یو ځل د نبي عَلَیهِ السَّلَام په خدمت کې ماعز بن مالک راغلو او عرض یې | | | | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | يَا | رَسُولَ | الله | طَهِّرْنِي | | | | | | | |
| وکړو چې ای د الله رسوله! ما پاک کړه یعنی (مانه چې کوم ګناه شوې ده د هغې حد جاري کولو سره زما ددې | | | | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | «وَيْحَكَ | ارْجِعْ | فَاسْتَغْفِر | الله | وَتُبْ | إِلَيْهِ». | | | | | |
| ګناه د معافی سبب جوړ شي) نبي عَلَیهِ السَّلَام وفرمایل چې په تا افسوس دی واپس لاړ شه یعني د ژبې په ذریعې | | | | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | فَرَجَعَ | غَيْرَ | بَعِيدٍ | ثُمَّ | جَاءَ | فَقَالَ: | | | | | |
| سره استغفار وکړه او په زړه سره توبه وکړه راوي وایې چې هغه لاړلو او لږ لرې لاړلو بیا واپس راغلو او وې ویل | | | | | | | | | | | |
| يَا | رَسُولَ | الله | طَهِّرْنِي. | فَقَالَ | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | مِثْلَ | ذٰلِكَ |
| ای د الله رسوله! ما پاک کړئ نبي عَلَیهِ السَّلَام هم هغه الفاظ وفرمایل چې کوم یې مخکې فرمایلي وو، څلور ځله داسې وشو | | | | | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۱۳۵ رقم الحديث ۶۸۲۴ وأبوداود في ۴/۵۷۹ رقم الحديث ۴۴۲۷.

حَتَّى إِذَا كَانَتِ الرَّابِعَةَ قَالَهُ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

(کله چې په څلورم ځل حضرت ماعز وویل ای د الله رسوله! ما پاک کړئ) نو نبی عَلَیْهِ السَّلَام و فرمایل

«فِيمَ أُطَهِّرُكَ؟» قَالَ: مِنَ الزِّنَا

چه زه تالره په څه څیز سره او په څه وجه سره پاک کړم؟ هغه وویل چې (په حد جاري کولو سره) د زنا د ګناه نه.

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَبِهِ جُنُونٌ؟»

نبی عَلَیْهِ السَّلَام د ده خبري اوریدو سره صحابه ته وفرمایل چې دا لیونی دی؟ (د صحابه د طرف نه)

فَأُخْبِرَ أَنَّهُ لَيْسَ بِمَجْنُونٍ فَقَالَ: «أَشَرِبَ خَمْرًا؟»

نبی عَلَیْهِ السَّلَام ته وویل شو چې دا لیونی نه دی. بیا نبی عَلَیْهِ السَّلَام و فرمائیل چې آیا ده شراب څکلي دي؟ (دي

فَقَامَ رَجُلٌ فَاسْتَنْكَهَهُ فَلَمْ

اوریدو سره) یو سړی پاسیدو چې آو دده خوله بوی کړه (دې د پاره چې معلومه شي چې ده شراب څکلي دي

يَجِدْ مِنْهُ رِيحَ خَمْرٍ فَقَالَ: «أَزَنَيْتَ؟»

یا نه) خو د شرابو بوئی ئې ونه موندلو نبی عَلَیْهِ السَّلَام بیا د ماعز نه تپوس وکړو چې آیا (واقعي) تا زنا کړې ده؟

قَالَ: نَعَمْ فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ

هغه وویل چې آو جي! د دې نه پس نبی عَلَیْهِ السَّلَام ده لره د سنګسارولو حکم وکړو دا رنګه هغه سنګسار کړی شو،

فَلَبِثُوا يَوْمَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً

دوه یا درې ورځې دا سې تیرې شوې یعني د نبی عَلَیْهِ السَّلَام په مجلس کې د ماعز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سنګسارولو متعلق

ثُمَّ جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:

دوه یا درې ورځې څه ذکر او نه شو. بیا (یوه ورځ) نبی عَلَیْهِ السَّلَام تشریف راوړلو نو وې فرمایل چې تاسو خلق

«اسْتَغْفِرُوا لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ لَقَدْ تَابَ تَوْبَةً

(د ماعز د درجاتو اوچتولو) د پاره دعا وکړئ بیشکه هغه دا سې توبه وکړه چې کچیرې د هغه ثواب په ټول امت

لَوْ قُسِمَتْ بَيْنَ أُمَّةٍ لَوَسِعَتْهُمْ» ثُمَّ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ مِنْ غَامِدٍ مِنَ الْأَزْدِ

باندې تقسیم کړی شي نو د ټولو د پاره به کافي شي. بیا د دې نه پس (یوه ورځ) یوه ښځه د قبیلې د ازد او د غامد خاندان نه وه

فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ طَهِّرْنِي فَقَالَ:

د نبی عَلَیْهِ السَّلَام په خدمت کې حاضره شوه عرض یې وکړو چې ای د الله رسوله! ما پاکه کړه. نبی عَلَیْهِ السَّلَام و فرمایل

«وَيحَكِ ارْجِعِي فَاسْتَغْفِرِي اللهَ وَتُوبِي إِلَيْهِ» فَقَالَتْ:

چې په تادې افسوس وي. واپس لاړه شه او د الله نه بخښنه وغواړه. دې ښځې عرض وکړو چې تاسو

تُرِيدُ أَنْ تَرُدِّدَنِي كَمَا رَدَّدْتَ مَاعِزَ بْنَ مَالِكٍ:

غواړئ څنګه چې مو ماعز بن مالک لره په اول ځل واپس کړې وو دغه شان ما هم واپس کوئ.؟ حالانکه

إِنَّهَا حُبْلَى مِنَ الزِّنَا

(زه) هغه ښځه (یم چې) د زنا په ذریعه حامله یم (لهذا د دې اقرار نه پس زما د انکار **ګنجائش** وو) نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل

فَقَالَ: «أَنْتِ؟» قَالَتْ: نَعَمْ

چې ته! (یعنی آیا ته د زنا په ذریعه سره حامله شوې یې! هغه د دې باوجود هم په خپل اقرار باندې ټینګه وه او) وې ویل چې آو

قَالَ لَهَا: «حَتَّى تَضَعِي مَا فِي بَطْنِكِ»

نبی عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمایل چې ښه د هغه وخت انتظار کوه کله چې ته د خپل بچي د پیدا ایښت نه فارغه شې.

قَالَ: فَكَفَلَهَا رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ

راوي وایې چې د نبی عَلَيْهِ السَّلَام د دې ارشاد نه پس یو انصاري د دې ښځې د خبرګیرۍ او کفالت د هغه وخته پورې په

حَتَّى وَضَعَتْ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خپله ذمه واخستې وو ترڅو پورې چې هغه د ولادت نه فارغه شوه او بیا څه موده پس هغه کس د نبی عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې

فَقَالَ: قَدْ وَضَعَتِ الْغَامِدِيَّةُ فَقَالَ:

حاضر شو او عرض یې وکړو چې هغه غامدیه ښځه د ولادت نه فارغه شوې ده. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل

فَقَالَ: «إِذاً لَا نرجمها وندعُ وَلَدَهَا صَغِيرًا

چې مونږه اوس هغه نه سنګسارو او د هغه وړوکی بچی په داسې حالت کې نه پرېږدو چه هغه له څوک پئ

لَيْسَ لَهُ مَنْ يُرْضِعُهُ»

ورکوونکی نه وي (ځکه چې د هغه د مور نه پس به د هغه څوک خبر اخستلو والا نه وي په دې وجه اوس سنګسارول مناسب

فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ:

نه دي) یو بل انصاري (دې او رید وسره) ودرېدو او عرض یې وکړو چې ای د الله رسوله! زه دې ماشوم ته دبې ورکولو او خبر

إِنِّيَ رَضَاعَهُ يَا نَبِيَّ اللهِ قَالَ: فَرَجَمَهَا. وَفِي رِوَايَةٍ:

اخستلو ذمه واري اخلمراوي وايې چې ددې نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه ښځه سنګسار ه کړه په يو روايت

أَنَّهُ قَالَ لَهَا: «اذْهَبِي حَتَّى تَلِدِي»

کې داسې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغې ښځې ته وفرمايل چې ځه ته کله دولادت نه فارغه نه شې (انتظار کوه)

فَلَمَّا وَلَدَتْ قَالَ: «اذْهَبِي فَأَرْضِعِيهِ

فارغه نه شې (انتظار کوه) بيا کله چې هغه دولادت نه فارغه شوه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمايل چې ځه دې ماشوم ته پې ورکوه

حَتَّى تَفْطِمِيهِ» فَلَمَّا فَطَمَتْهُ أَتَتْهُ بِالصَّبِيِّ فِي يَدِهِ

کله چې دا دپيو نه پريکړې بيا کله چې هغه ماشوم دپيو نه پريکړې شو نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې يې هغه ماشوم راوستلو د هغه

كِسْرَةُ خُبْزٍ فَقَالَتْ: هَذَا يَا نَبِيَّ اللهِ قَدْ فَطَمْتُهُ وَقَدْ أَكَلَ الطَّعَامَ

ماشوم په لاس کې د ډوډۍ ټکړه وه او عرض يې وکړو چې اې دالله رسوله! ما دا د پيو نه پرې کړې دی او دا ډوډۍ خوري

فَدَفَعَ الصَّبِيَّ إِلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَحُفِرَ

نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه ماشوم يو مسلمان ته حواله کړو او د هغه ښځې د پاره يې حکم وکړو چه يوه کنده دې

لَهَا إِلَى صَدْرِهَا وَأَمَرَ

وکنستلی شي او ددې دسينې پورې دې وکنستلی شي کله چې دسينې پورې وکنستلی شوه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام ددې

النَّاسَ فَرَجَمُوهَا فَيُقْبِلُ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ

دسنګسار کولو حکم وکړو او هغه سنګسار کړې شوه ددې دسنګسارولو په دوران کې حضرت خالدبن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

بِحَجَرٍ فَرَمَى رَأْسَهَا فَتَنَضَّحَ الدَّمُ عَلَى وَجْهِ

يو کاڼې باندې دهغې سر وويشتلو دهغې دسر وينه دحضرت خالدبن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخ باندې راپريوتله نو

خَالِدٍ فَسَبَّهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «مهلا يَا خَالِدُ

حضرت خالدبن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې ته بدرد وويل. نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې خالده! ددې بخښنه شوې ده دې

فو الَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً

ته بدرد مه وايه، قسم دی په هغه پاک ذات باندې دچا په لاس کې چې زما ساه ده دې ښځې داسې توبه وکړه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَوْ | تَابَهَا | صَاحِبُ | مَكْسٍ | لَغُفِرَ | لَهُ» | |

چې کچیرې داسې توبه (ناروا) ټیکس اخستلو والا وکړي نو دهغه مغفرت به وشي. ددې نه پس نبي عَلَیۡهِ السَّلَامُ خلقو

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | أَمَرَ | بِهَا | فصلی | عَلَيْهَا | ودفنت. | رَوَاهُ | مُسلم | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | |

ته په دې باندې د جنازې د مونځ کولو وویل نو په هغې باندې د جنازې مونځ وکړی شو او دفن کړی شوه. (مسلم)

**توضیح : طهرني** : یعنې په ماباندې د شرعي حد په قائمولو سره ما دګناه نه پاکه کړه. ددې نه معلومه شوه چې د صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین مقام څومره اوچت وو چې د یوې ګناه کولو نه پس به دومره بې ارامه وو چې یو ساعت به هم ورته سکون نه وو او په خپله به یې د حد لګولو درخواست کولو او هم دا فرق په عام امت او صحابه کرامو کې وو هلته د زرګونو محنتونو باوجود هم په خپل ځان باندې دسزا جاري کولو کوشش کیدو او دلته په زرګونو محنتونو سره دګناه دپټولو او د سزا د دباو کولو کوشش کیږي. هلته د شریعت دتکمیل دپاره په طور دنمونې خپل ځان پیش کولی شي اودلته دشریعت دباطلولو دپاره دتختیدو لار اختیارولی شي. د **طهرني** د الفاظو نه معلومیږي چې حدود مطهرات دي او هم دا مسلک دجمهورو فقهاو دی داحنافو په نزد حدود زاجرات دي ها کله چې توبې سره وي نو بیا مطهرات دي تفصیل دپاره مخکې تیرشوی دی.

**فاستنکهه** : یعنې دده دخولې بدبویې بوی کړی شوه نو دشرابو بدبویې ترېنه نه راتله چې په مستئ کې داخبره کوم **امرأة من غامد** غامد په یمن کې یوه قبیله ده په دې وجه دې ښځې ته غامدیه هم وایې ددې لویه قبیله ازد ده نو ددې ښځې نسبت ددې قبیلې د وجې نه ازدیه هم صحیح دی او **امرأة من جهینة** الفاظ چې چیرته راغلی دی هغه هم صحیح دی. (المرقات ۱۴۱/۷)

**یارسول الله طهرني** دلته هم ددې بې ارامۍ اظهار دی چې دحضرت ماعز په واقعه کې دی بلکه دلته خو د حد لګولو او ایثار او قربانۍ او انقیاد او اطاعت او دآخرت دعذاب نه دبچ کیدو عجیبه واقعات او عجیبه عبرتونه دي دټولو نه مخکې نبي عَلَیۡهِ السَّلَامُ دې لره ولیږله چې اوس ته حامله یې او دحمل په حالت کې به بې ګناه بچې وژلی شي، لهذا اوس ته لاړشه او دبچي دپیدا کیدو نه پس راشه دا ښځه دماشوم دپیدا کیدو نه پس سمدستي راغله او په ځان باندې یې دحد لګولو مطالبه وکړه نه

---

(۱) أخرجه مسلم فی صحیحه ۳/۱۳۲۲ رقم الحدیث (۱۶۹۵-۲۳/۲۲) وأبوداود فی السنن ۴/۵۸۸ رقم الحدیث ۴۴۴۲ ،والدارمی فی السنن ۲/۲۳۵ رقم الحدیث ۲۳۳۴ وأحمد فی المسند ۵/۳۴۸ .

يې انكار كړى دى نه تختي بلكه اطاعت او اقرار دى، نبي عليه السلام بيا وليږله چې ماشوم ته به ځوک پيې وركوي لاړه شه ده ته پيې وركوه او كله چې ډوډى خوري بيا راشه دنبي عَلَيْهِ السَّلَامْ خيال وو چې په دې اوږده موده كې به دا ښځه دخپل اقرار نه منع شي خو هغې دسزا نه دبچ كيدو كوشش ونه كړو بلكه دپيو وركولو سره به يې ورته ډوډى هم وركوله او په شپږمياشتو كې ماشوم دپيو نه پرې كړو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامْ ته په داسې حال كې راغله چې دماشوم په لاس كې د ډوډى تكړه وه چې خوړله يې (سبحان الله دا هغه خلق وو چې هغوى خپلې خيمې په جنت كې خخې كړې وې) نبي عَلَيْهِ السَّلَامْ وفرمايل ددې ماشوم پرورش به څوک كوي يو صحابي عرض وكړو زه به يې كوم نو بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامْ درجم كولو حكم وفرمايلو . (المرقات ۱۴۲/۷)

**فتنضح الدم** : يعني په كاڼي ويشتلو سره د سر نه دفوارې په شان وينه راوتله او دحضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخ باندې پريوتله هغوى ورته بدرد وويل نبي عَلَيْهِ السَّلَامْ ورته وفرمايل چې خالده! بدرد مه وايه .

**صاحب مكس** : ددې نه مراد ناجائز ټيكس وصولونكى سړى دى دارنګه پټواري هم په دې كې داخل دى. علامه نووى رحمه الله ليكلې دي چې ددې جملې نه معلومه شوه چې ټيكس وصولونكى سړى دټولو نه لوى ګناه ګار دى او ددې ګناه دټولو نه لويه ګناه ده ددې وجه داده چې داسړى ډير زيات ظلم كوي ظلمًا دخلقو نه په زبردستئ سره مال اخلي او باربار داكار كوي او بيا دې لره بې ځايه مصرفونو كې صرف كوي چې دهغې نه شريعت اجازت وركوي او نه يې عرف اجازت وركوى بس دسترګونه يې آخرت غائب دى او په دنيايې نظر دى او په دې كې خطره ده.(المرقات ۱۴۶/۷،۱۴۵)

## دبدكاره وينځې دسزا حكم

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَ: | سَمِعْتُ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَقُولُ: | |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوريدو چې كه په تاسو | | | | | | | | | | | |
| «إِذَا | زَنَتْ | أَمَةُ | أَحَدِكُمْ | فَتَبَيَّنَ | زِنَاهَا | | | | | | |
| كې ديو كس وينځه زنا وكړي او دهغې زنا ښكاره شي (يعني ددې زناكاري ثابته شي) نو په دې | | | | | | | | | | | |
| فَلْيَجْلِدْهَا | الحدَّ | وَلَا | يُثَرِّبْ | عَلَيْهَا | ثُمَّ | إِنْ | زَنَتْ | فَلْيجلدْها | الحدَّ | | |
| باندې دې حد جاري كړي او په دې پيغور مه وركوه او كچيرې هغه بيا زنا وكړي نو په دې باندې دې حد جاري كړي | | | | | | | | | | | |
| وَلَا | يُثَرِّبْ | ثُمَّ | إِنْ | زَنَتِ | الثَّالِثَةَ | | | | | | |
| او دې ته دې پدې پيغور نه وركوي، او كه هغه په دريم ځل زنا وكړي او ددې زناكاري ثابته شي نو | | | | | | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَتَبَيَّنَ | زِنَاهَا | فَلْيَبِعْهَا | ولَوْ | بحبْلٍ |
| اوس دې له پکار دي چې هغه دې دا وینځه خرڅه کړي اګر که د ویښتو د رسۍ (یعنې سپک څیز) | | | | |
| مِنْ | شعرٍ» | متفق | عليه | (صَحِيح)[1] |
| په بدله کې ولې نه وي خرڅه دې کړي. (بخاري ومسلم) | | | | |

**توضیح : فليجلدها** : تجلید په کوړې د وهلو په معنی دی دا خبره مخکې بیان شوې ده چې د غلام او وینځې دپاره رجم نشته دی ځکه چې دا محصن نه دی ځکه چې احصان یو شرط دی چې سړی آزاد وي او غلام آزاد نه وي په دې وجه د غلام او وینځې حد په هرحال کې کوړې دي سنګسارول نه دي، دارنګه د کوړو حد هم د احرارو په نسبت نیم دی یعنې د سل کوړو په ځای پنځوس کوړې دي، دجمهورو فقهاو اود سلف صالحینو هم دا مسلک دی که هغه غلام واده کړی وي یا غیر واده کړی وي په غلام کې دبکر او ثیب فرق نشته دی. (المرقات ۱۴۸/۷، ۱۴۷)

**دغلام د حد حق چاته حاصل دی : دفقهاو اختلاف** :مولی په خپل غلام باندې د حد نافذولو حق لري یانه؟ په دې کې دفقهاو اختلاف دی: جمهور فرمائی چې مولی ته حق حاصل دی چې هغه په غلام باندې حد نافذ کړي یعنې په حدزناکې دې ده لره پنځوس کوړې ووهي، ها د غلا او قصاص په حدودو کې مولی ته اختیار نشته دی چې هغه خپل غلام باندې حد نافذ کړيْ. دا حنافو امامان فرمايي چې مولی په خپل غلام باندې څه قسمه حد نه شي جاري کولی دا کار قاضی او حاکم ته حواله دی که هغه حد دزنا وي یا نور حدود وي.

**دلائل** : د صحابو او تابعینو د اکثریت نه دا اصول منقول دي چې حدودُ الله دا قامت حق صرف سلطان ته دی د سلطان نه علاوه بل چاته دا حق حاصل نه دی د دې اصولو پیش نظر دا حنافو فتوی ده چې مولی ته په خپل غلام باندې د حد نافذکولو حق نشته دی ها کچیرې حاکم اجازت ورکړي نو بیا مولی دا حد په غلام باندې نافذکولی شی. آئمه احنافو دسننو په کتابونو کې دیو حدیث نه هم استدلال کړی دی چې دحضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل دی:ان النبی صلی الله علیه وسلم قال : اربع الی الولاة (۱) الحدود (۲) والصدقات (۳) والجمعات (۴) والفئ یعنې دحدودو نفاذ او د صدقاتو او جمعاتو قیام او د غنائمو د تقسیم معامله حکامو ته حواله ده، آئمه ثلاثو جمهورو د زیربحث د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت او دې سره نزدې دحضرت

---

([1]) أخرجه البخاری فی صحیحه ٤/٤٢١ رقم الحدیث ٢٢٣٤ ومسلم ٣/١٣٢٨ رقم الحدیث ١٧٠٣ وأبوداود فی السنن ٤/٦١٤ رقم ٤٤٧٠.

علي رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی دی چې په هغې کې د مولی د حد نافذ کولو اشاره ملاویږي بلکه دویم حدیث خو صریح دی. (المرقات ۱۴۸/۷)

**جواب**: ائمه احناف دهغو حضراتو د مستدل نه جواب دا ورکوي چې په دې کې د **مرافعه الی الحاکم** قید ملحوظ دی چې یا به دحاکم په ذریعه حد لګوي او یابه دحاکم نه اجازت اخستلو سره حد لګوي. ګویا چې په دې کې اسناد مجازي دی.

**ولایثرب علیها**: یعنی په دې باندې لعن طعن مه کوه او مه یې ملامته کوه بلکه همدا حد کافي دی. یا دا مطلب چې د دې جرم مرتکب ته په ابتداء کې د حد قائمولو په ځای به صرف ملامت کولی شو، اوس یې وفرمایل چې صرف ملامت کول کافی نه دي بلکه حد دې قائم کړي. (المرقات ۱۴۹/۷)

## په مریض باندې د حد جاري کولو مسئله

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْ | عَلِيٍّ | رَضِيَ | اللهُ | عَنْهُ | قَالَ: | يَاأَيُّهَا | النَّاسُ | أَقِيمُوا |
| او حضرت علي رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په باره کې نقل دي چې هغوی وفرمایل: ای خلقو! په خپلو غلامانو او | | | | | | | | |
| عَلَى | أَرِقَّائِكُمُ | الْحَدَّ | مَنْ | أُحْصِنَ | مِنْهُمْ | | | |
| وینځو باندې حد جاري کړئ (یعنې چې کچیرې هغوی زنا وکړي نو پنځوس کوړې ورته ورکړئ) | | | | | | | | |
| وَمَنْ | لَمْ | يُحْصَنْ | فَإِنَّ | أَمَةً | لِرَسُولِ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| که هغه محصن واده کړی وي یا غیر محصن. د نبی عَلَیْهِ السَّلَام یوې وینځې زنا وکړې وه نو نبی عَلَیْهِ السَّلَام | | | | | | | | |
| زَنَتْ | فَأَمَرَنِي | أَنْ | أَجْلِدَهَا | فَإِذَا | هِيَ | حَدِيثُ | عَهْدٍ | بِنِفَاسٍ |
| ماته حکم راکړو چې په دې باندې حد جاري کړه مګر ماته معلومه شوه چې اوس د دې بچی کیدونکی | | | | | | | | |
| فَخَشِيتُ | إِنْ أَنَا جَلَدْتُهَا | أَنْ أَقْتُلَهَا | فَذَكَرْتُ | ذَلِكَ | لِلنَّبِيِّ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | |
| دی نو ماته ویره شوه چې کچیرې دې ته پنځوس کوړې ورکړم نو مړه به شي نو ما نبی عَلَیْهِ السَّلَام ته د دې | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | «أَحْسَنْتَ». | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ.[1] | | | | | |
| ذکر وکړو نو نبی عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل چې تا ښه وکړل چې په دې حالت کې دې حد جاری نه کړو. (مسلم) | | | | | | | | |

---

([1]) أخرجه مسلم فی صحیحه ۳/۱۳۳۰ رقم الحدیث (۱۷۰۵-۳٤) وأبوداود فی السنن ٤/٦۱۷ رقم الحدیث ٤٤۷۳ والترمذی فی ٤/۳۷ رقم الحدیث ۱٤٤۱ وأحمد فی السند ۱/۱٥٦.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَفِي | رِوَايَةِ | أَبِي دَاوُدَ: | قَالَ: |

او د ابوداود په یو روایت کې دی چه هرکله حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته په دې باره کې ذکر

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| «دَعْهَا | حَتَّى | يَنْقَطِعَ | دَمُهَا | ثُمَّ |

وکړو نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائیل د څو پورې چې دهغه دنفاس وینه بنده نشي، هغه وخته هغه پریږده،

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَقِمْ | عَلَيْهَا | الْحَدَّ | وَأَقِيمُوا | الْحُدُودَ | عَلَى | مَا | مَلَكَتْ | أَيْمَانُكُمْ» |

او دهغې نه روستو وربانديې حد جاري کړه او په خپلو غلامانو او وینځو حدی جاری کوي.

**توضیح**: بنفاس: یعنې دنفاس په حالت کې وه دا حالت دبیمارۍ وو په دې وجه یې دې ته کوړې ورنه کړې صاحب دفتح القدیر ابن همام لیکلې دي چې که چیرې سزا د کوړو وي نو بیمارته دې کوړې ورنه کړی شي، ځکه چې په دې سره به هغه مړ شي دده د صحت مند کیدوپورې دې سزا مؤخرکړی شي ها که بیماري داسې وي چې دهغې نه بچ کیدل مشکل وي لکه: تب دق (ولګی) او دسل (ټي بي) بیماري ده (یاکینسردی) نو داسې مریض دې په داسې ښاخ سره ووهلی شي چې په هغې کې سل څوکې وي دا حیله شوه، او که سزا سنګسارول وي نو بیا به په هرحالت کې سنګسارکولی شي که تندرست وي یا بیمار وي، ځکه په رجم کې خو ژوندی پریخودل نشته دی یاد ساتل پکار دي چې کوړۍ دې نه په سخته ګرمۍ کې ورکړی شي او نه په سخته یخنۍ کې ځکه چې دځان (مرګ) خطره ده لهذا په معتدل موسم کې دې کوړې ورکړی شي.

## الفصل الثاني

## دزنا داقرار نه پس دانکار حکم

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| {۱۱}عَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَ: | جَاءَ | مَاعِزٌ | الْأَسْلَمِيُّ | إِلَى | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ماعز اسلمی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دنبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شو او

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | إِنَّه | قَدْ | زَنٰى | فَأَعرض | عَنْهُ |

وې ویل چې هغه (یعنې ما) زنا کړې ده (دې اوریدو سره) نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل مخ دهغه نه واړولو هغه بل طرف

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | جَاءَ | مِنْ | شِقِّهِ | الْآخَرِ | فَقَالَ: | إِنَّهُ قَدْ زنى |

ته (راتاوشو) بیا (دنبی عَلَيْهِ السَّلَامُ مخې ته راغی) او وې ویل چې ما زنا کړې ده نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ بیا د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَعْرِض | عَنْهُ | ثُمَّ | جَاءَ | من | شقّه | الْآخَرِ فَقَالَ: |

هغه نه مخ واړولو، او هغه هم بل طرفته (راتاوید وسره دنبی عَلَيْهِ السَّلَامُ مخې ته راغلو) او وې ویل چې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَا | رَسُولَ | الله | إِنَّهُ | قَدْ | زَنَى | فَأَمَرَ | بِهِ | فِي الرَّابِعَةِ |

اي د الله رسوله! ما زنا كړې ده آخر دا چې په څلورم ځل نبي عَلَيْهِ السَّلَام د هغه د سنگسار كيدو حكم وفرمايلو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَأُخْرِجَ | إِلَى | الْحَرَّةِ | فَرُجِمَ | بِالْحِجَارَةِ |

نو هغه حره ته راوستلى شو (چې د مدينې تورو كاڼو والا مضافاتي علاقه ده) او هغه په كاڼو ويشتلى شو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | وَجَدَ | مَسَّ | الْحِجَارَةِ | فَرَّ | يَشْتَدُّ | حَتَّى | مَرَّ | بِرَجُلٍ |

كله چې هغه په كاڼو سره زخمي شو نو وتختيدو تردې پورې چې يو سړي سره تير شو چه د هغه په لاس كې د

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَعَهُ | لَحْيُ | جَمَلٍ | فَضَرَبَهُ | بِهِ | وَضَرَبَهُ | النَّاسُ | حَتَّى | مَاتَ. |

اوښ د جامې هډوكى وو هغه سړي په هغه هډوكي سره ووهلو او نورو خلقو هم په (نورو څيزونو سره) ووهلو تردې چې مړ شو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَذَكَرُوا | ذَلِكَ | لِرَسُولِ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

كله چې صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته ددې ذكر وكړو، چې هغه په كاڼو سره زخمي كيدو سره د

أنه فرحين وَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ وَمَسَّ الْمَوْتِ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

مرگ د سختۍ نه وتختيدو (خو مونږ هغه پسې وو سنگسار مو كړو) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| «هَلَّا | تَرَكْتُمُوهُ». | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَابْنُ | مَاجَهْ | وَفِي رِوَايَةٍ: |

تاسو هغه ولې نه پريخودلو (ترمذى، ابن ماجه) او په يو روايت كې دا الفاظ دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| «هَلَّا | تَرَكْتُمُوهُ | لَعَلَّهُ | أَن | يَتُوبَ | الله | عَلَيْهِ»[1] |

تاسو خلقو ولې نه پريخودلو ممكنه وه چې هغه توبه كړې وه او الله تعالى د هغه توبه قبوله كړې وه.

**توضيح: من شقه الآخر:** د څلورو طرفونو نه راتلل په دې وجه وو چې په مجلس كې تبديلي راشي او هم دا مسلك د احنافو دى چې څلور اقراره په څلورو جدا جدا مجلسونو كې ضروري دى.

**لحي جمل:** د اوښ د جامې هډوكى غټ هم وي او نوكدار (غاښونو والا) هم وي. (المرقات ۱۵۲/۷)

**مس الحجارة:** يعنې په بدن د كاڼو لگيدل چې يې محسوس كړل نو وتختيدلو. (المرقات ۱۵۲/۷)

**فهلاتركتموه:** يعنې تختيدلو نو تاسو ولې تختيدو ته پرې نه خودلو ممكن ده چې هغه د اقرار نه رجوع كول غوښتل، كچيرې توبه يې كړې وى نو الله تعالى توبه قبلوي، فقهاو ليكلى دي چې د سنگسارۍ په حد كې كچيرې اقراري مجرم د اقرار نه څه وخت هم انكار وكړي نو حد ساقطيږي او په سنگسارولو كې هم دا فائده او حكمت دى ها صرف په تختيدلو سره انكار لازميږي يانه، نو د امام مالك رحمه الله په نزد

(۱) أخرجه الترمذى فى السنن ۲۷/٤ رقم الحديث ۱٤۲۸ وابن ماجه فى ۸٥٤/۲ رقم الحديث ۲٥٥٤ وأحمد فى السنن ٤٥٠/۲.

دهغه نه تپوس وكړي شو چې كچيرې هغه داقرار نه دانكار په بنياد وتختيدو نو حدساقطيږي او كه دتكليف دسختى په وجه سره وتختيدلو نو بيانه ساقطيږي دا انكار نه دى. دشوافعو په نزد چې ترڅوپورې دژبې په اقرارسره انكارونه كړي نو حدنه ساقطيږي، داحنافو په نزد قولاً يا فعلاً كله چې دحدنه تختيدل اختياركړي نوپه دې سره حدساقطيږي خوصرف په تختيدلوسره حدنه ساقطيږي.

**وبالهرب لايسقط الحد قاله ملاعلي القاري**، تولو دحضرت ماعز رضي الله عنه دروايت نه استدلال كړى.

احناف وايې چې **هلاتركتموه** الفاظ نبى عليه السلام د رحمت او شفقت په بنياد باندې فرمايلې وو.

## دحضرت ماعز رضي الله عنه دجرم اعتراف

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ: |
| اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه راوي دى چې نبى كريم ﷺ ماعز رضي الله عنه ته وفرمايل چه ستاپه باره كې |
| «أَحَقٌّ مَا بَلَغَنِي عَنْكَ؟» قَالَ: وَمَا. |
| ماته څه معلوم شوې دې چې هغه رښتيادى؟ هغوى عرض وكړو چه زما په باره كې تاسو ته څه معلوم |
| بَلَغَكَ عَنِّي؟ قَالَ: «بَلَغَنِي أَنَّكَ قَدْ وَقَعْتَ |
| شوې دي نبى عليه السلام وفرمايل ماته ستاپه باره كې معلومه شوې ده چه تا دفلاني سړي وينځې |
| عَلَى جَارِيَةِ آلِ فُلَانٍ» قَالَ: نَعَمْ فَشَهِدَ |
| سره زنا كړې ده؟ ماعز رضي الله عنه عرض وكړو چې آو (دارښتيادى) اوهغه(په څلورو مجلسونو كې) |
| أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ فَأَمَرَ بِهِ فرجم. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| څلورځله اقرار وكړو. لهذا رسول الله صلى الله عليه وسلم دهغه دسنګسارولو حكم وفرمايلو. |

**توضيح : احق مابلغني** : دلته داسوال دى چې دبعضې رواياتو نه معلوميږي چې حضرت ماعز رضي الله عنه پخپله بيان وركړى وو، او د خپل ځان نه يې د پيغمبر عليه السلام ته معلومات وركړل، او په زير نظر حديث كې دي چې پيغمبر عليه السلام ترېنه اول تپوس وكړو، بيا هغه بيان وركړو، ددې جواب دادى چې په دې رواياتو كې هيڅ تعارض نشته دى بلكه د زنا دارتكاب نه پس دحضرت ماعز رضي الله عنه قوم هغه لره د فيصلې په غرض سره دنبى عليه السلام خوا ته راوستلو او بيا دكلام په ابتداء كولو سره نبى عليه السلام ته يې هر څه وويل نبى عليه السلام حضرت ماعز رضي الله عنه نه تپوس وكړو چې دې خلقو چې كوم شكايت ماته راوړى دى اياستا متعلق دا الزامات صحيح دى؟ يا داسې وويلى شي

---

(۱) اخرجه مسلم فى الصحيح ۳/۱۳۲۰ رقم الحديث (۱۶۹۳-۱۹)

چې کوم راوي دتفصيل نه کار اخستی دی او چا په اختصار سره بيان کړی دی دا تعارض نه دی. (المرقات ۱۵۳/۷)

**اربع شهادت**: څلور ځله اقرارکول التزام بنايي چې دا حکم دثبوت زنا دپاره ضروري دی. شوافع يو اقرار لره کافي ګڼي. (المرقات ۱۵۳/۷)

## د نورو په عيبونو باندې پرده اچوئ

﴿۱۳﴾ وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ نُعَيْمٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ مَاعِزًا

او حضرت يزيد بن نعيم دخپل پلار نه روايت کوي چې حضرت ماعز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقَرَّ عِنْدَهُ أَرْبَعَ

په خدمت کې حاضر شو او دهغوی په مخکې يې (په څلورو مجلسونو) کې څلور ځله (دخپلې زنا)

مَرَّاتٍ فَأَمَرَ بِرَجْمِهِ

اقرار وکړو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دهغه دسنګسارولو حکم وفرمايلو او هغه سنګسار کړی شو. دارنګه

وَقَالَ لِهَزَّالٍ: «لَوْ سَتَرْتَهُ بِثَوْبِكَ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هزال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې که چيرې تا ماعز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره په خپلې جامې سره پټ کړی وو

كَانَ خَيْرًا لَكَ» قَالَ

(يعني دهغه د زنا په واقعه دې پرده اچولې وه او هغه دې نه وی ښکاره کړی) نو ستا دپاره به بهتره وه

ابْنُ الْمُنْكَدِرِ: إِنَّ هَزَّالًا أَمَرَ مَاعِزًا أَنْ يَأْتِيَ

ابن منکدر رحمه الله (چې تابعي او ددې حديث يو راوی دی) وايي چې هزال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماعز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فيخبره. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]

ويلي وو چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شه او هغوی د خپلې واقعې نه خبر کړه. (ابوداؤد)

**توضيح**: ان هزالا: د هزال يو وينځه وه چې دهغې نوم فاطمه وو هزال هغه آزاده کړې وه هغې سره ماعز زنا کړې وه روستو هزال هغه ته وويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته اطلاع ورکړه هغه به ستا دپاره استغفار وکړي ته به معاف کړی شي.

---

(۱) أخرجه أبوداود فى السنن ۴/۵۴۱ رقم الحديث ۴۳۷۸.

حضرت ماعز رضي الله عنه دهغه په ويناباندې راغى او بيا پرې حد ولګيدو. نبى كريم صلى الله عليه وسلم هزال ته همدا خبره وفرمايله چې تا دا راز ښكاره ولې كړو؟ تا په دې باندې پرده ولې وانه چوله كچيرې تا په ده باندې پرده اچولې وى نو تاته به ډېر ثواب ملاويدو. دا پرده پوشي دداسې شريف سړي په باره كې ده چې هغه عادي مجرم نه وي خو په ژوندكې ترينه يو ځل جرم شوى وي، خو كه څوك عادي مجرم وي او دهغه جرم متعدي وي نو هغه پټول نه دي پكار بلكه دهغې ښكاره كول ضروري دي دې دپاره چې عام خلق دهغه دفساده بچ شي. (المرقات ۱۵۴/۷)

## هيڅ يو حاكم ته دحد معاف كولو اختيار نشته

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا |
| او حضرت عمروبن شعيب دخپل پلار نه او هغه دخپل نيكه حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه |
| أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «تَعَافَوُا الْحُدُودَ فِيمَا بَيْنَكُمْ |
| نه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو په خپل مينځ كې خپلو حدودو لره معاف او ختموئ |
| فَمَا بَلَغَنِي مِنْ حَدٍّ فَقَدْ |
| (ددې نه مخكې چې دهغې خبر ماته راورسي ها) كچيرې دجرم اطلاع ماته راورسي (او هغه ثابت شى) |
| وَجَبَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| نو بيا په هغه باندې حد جاري كول واجب يعنى فرض به شي. (روايت كړې دې ابو داؤد، نسائى) |

**توضيح**: تعافوا الحدود: دا خطاب په حقيقت كې عوامو ته دى كله چې تاسو په خپل مينځ كې چالره دڅه جرم كونكى ومومئ نو په خپل مينځ كې يې رفع دفع كولو سره فيصله كړئ مونږ ته خبره مه رارسوئ ځكه چې حد كله محكمې او عدالت ته راورسي نو دهغې د رفع دفع كولو چاته هم حق حاصل نه دى، دې حديث كې چې دمعاف كولو كوم حكم وركړى شوى دى هغه بطور وجوب نه دى بلكه بطور استحباب دى. (المرقات ۱۵۴/۷)

## دعزت دارو خطاګانو لره معاف كول پكار دي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَقِيلُوا ذَوِي الْهَيْآتِ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها راويه ده چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چه دعزت دارو خطاګانې |

---

(۱) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٥٤٠ رقم الحديث ٤٣٧٦ والنسائى فى ٨/٧٠ رقم الحديث ٤٨٨٥ .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عثراتهم | إِلَّا | الْحُدُودَ». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ(١) |
| معاف كوئ علاوه دحدونو نه (چه دهغې معافي جائز نه ده). (ابوداؤد) | | | | |

**توضيح**: اقيلوا: دا دمعاف كولو او مخ ترې د اړولو په معنى سره دى (المرقات ۱۵۵/۷)

**ذوي الهيئات** اصحاب منزلت شرفاء او سفيدپوش نيكان خلق مراد دي ځكه چې شيطان د انسان دشمن دى كچيرې ديوسفيد پوش معزز سړي نه دحدودو نه علاوه غلطي وشي او نور خلق پروپيګنډه شروع كړي نو ددې بيچاره ژوند خو به ختم شي په دې وجه داسې معززو خلقو لره يو ځل نيم مهلت وركول پكار دي دې دپاره چې ژوند يې بچ شي.

، علماؤ ليكلي دي چې دلته د **عثرات** نه مراد حدود الله نه علاوه ګناهونه دي، كه دهغې تعلق دحقوق الله سره وي يا دحقوق العباد و سره وي، ددې حكم مخاطب هغه حكام دي په چاچې د شرعي سزاګانو نافذكول لازم دي هغوى ته وويلى شو چې نيكو خلقو او سفيدپوشو لره مه تنګوئ دحدودو الله نه علاوه په هغوى باندې هيڅ يوه سزا مه نافذ كوئ، كچيرې دهغوى نه داسې څه ګناه وشي چې دهغې په وجه سره حد نافذكول واجب وي نو هغوى لره دمعاف كولو اختيار هيڅ چاته نشته دى. (المرقات ۱۵۵/۷)

## دشبهې فائده ملزم ته ملاويدل پكار دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٢٦﴾ وَعَنْهَا | قَالَتْ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسلم: |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها راويه ده چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل ترڅو پورې چې كيدې شي | | | | | | | | |
| «ادرؤا الْحُدُودَ | عَنِ | الْمُسْلِمِينَ | مَا | اسْتَطَعْتُمْ | فَإِنْ | كَانَ | لَهُ | مَخْرَجٌ |
| نو مسلمانانو لره دحد د سزا نه بچ كوئ، كه دمسلمان (ملزم) دپاره د بچ كيدو لره هم څه موقعه راوځي | | | | | | | | |
| فَخَلُّوا | سَبِيلَهُ | فَإِنَّ | الإِمَامَ | أَنْ | يُخْطِئَ | فِي | الْعَفْوِ | |
| نو دهغه لار پريږدئ يعني هغه لره بري كړئ ځكه چې د امام يعني حاكم او منصف معاف كولو كې خطاكول، | | | | | | | | |
| خَيْرٌ | مِنْ | أَنْ | يُخْطِئَ | فِي | الْعُقُوبَةِ». | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | |
| په سزا وركولو كې دخطاكولو نه بهتر دى. امام ترمذى رحمه الله دې روايت لره نقل كړى دى چه دا | | | | | | | | |

(١) أخرجه ابوداؤد ١٣١/٤

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَقَالَ: | قَدْ | رُوِيَ | عَنْهَا |
| حدیث د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت کړی شوی دی او د دې سلسله د رواتو د نبی عَلَيْهِ السَّلَام | | | |
| وَلم | يرفع | وَهُوَ | أصح[1] |
| پورې نه ده رسیدلې، او همدا قول زیات صحیح دی | | | |

**توضیح**: ادرءوا الحدود: د دې خطاب تعلق هم د قاضیانو او حاکمانو سره دی کچیرې دې حدیث لره د مخکې حدیث تفصیل وګرځولی شي نو بې ځایه به نه وي دلته په دې حدیث کې حکامو ته په فیصلې او رولو کې یو هدایت کړی شوی دی او هغوی ته دا تعلیم ورکړی شوی دی چې د خپلو جذباتو او احساساتو رخ داسې وساتئ چې د ملزم سره ستاسو ذاتی عناد پیدا نه شي او د ذاتی عناد په بنیاد باندې ته فیصله نه اورې ګویا د اصلاح مد نظر ساتلو سره قاضي او حاکم لره د طبیب او معالج په شان شفیق او مهربان جوړیدلو تعلیم ورکړی شوی دی. لهذا ترڅو پورې چې ممکن وي نو قاضی لره د حد د نافذولو نه دې ملزم لره بچ کول پکار دي، او که د څه قسمه شبهې د راوتلو ګنجائش راوځی نو راودې باسي، او دې ملزم ته فائده رسول پکار دي. مختلف سوالونه دې ترې وکړی شي. دې د پاره چې د هغه په بیان کې فرق راشي او هغه د حد نه بچ شي ځکه چې حد لګیدو سره دیو شریف سړي به داسې رسوائي وشي چې هغه به د ژوند تیرولو قابل پاتې نه شي. د دې پس منظر لره د حدیث په آخری جملو کې پیش کړی شو، کچیرې قاضی په غلطي کولو سره سزا و اوروي د دې نه بهتره داده چې په تحقیق کولو سره حد ساقط کولو کې غلطي وکړي ځکه چې په اول صورت کې دیو مسلمان عزت بچ کولو موقعه به ملاو شي، او په دویم صورت کې به د هغه عزت پایمال کیدو سره په معاشره کې ذلیل او رسوا شي. (المرقات ۱۵۶/۷)

## په زنا بالجبر کې به حد صرف په سړي باندې جاري کیږي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ | وَائِلِ | بْنِ | حُجْرٍ | قَالَ: | اسْتُكْرِهَتِ | امْرَأَةٌ |
| اوحضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یوې ښځې سره زبردستی وکړی شوه (یعنې یو سړي هغې | | | | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | عَهْدِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَدَرَأَ | عَنْهَا |
| سره په زبردستی سره زنا وکړه) د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې هغې ښځې ته خو د حد نه براءت | | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْحَدَّ | وَأَقَامَهُ | عَلَى | الَّذِي | أَصَابَهَا | وَلَمْ | يُذْكَرْ | أَنَّهُ |
| ملا شو خو په هغه زنا کونکي باندې حد جاري کړی شو. راوي دا ذکر نه کړل چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام دې | | | | | | | |

[1] أخرجه الترمذی فی السنن ۴/۲۵ رقم الحدیث ۱۴۲۴.

جَعَلَ لَهَا مَهْرًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[۱]

بنځې ته د زنا کونکي نه مهر هم واخستلو. (ترمذی)

**توضیح**: **ولم يذكر**: يعنې راوی ونه خودل چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام دهغه ښځې دپاره مهر مقرر کړی وو شارحين ليکي چې د راوی دلته مهر نه ذکر کول د **مهر** نه مقررولو دليل نه دی ځکه چې نورو رواياتو کې موجود دی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام مهر مقرر کړی وو او په حرامه جماع کې چې کوم مهر راځي هغې ته **عقر** وايي او دا د مهر مثل په شان وي، **زنا بالجبر** کې صرف په سړي باندې به حد جاري کيږي او ښځه به بې ګناه وي په شرط ددې چې واقعي **زنا بالجبر** وي. دلته دلفظ **مهر** نه مراد **عقر** دی. (المرقات ۱۵۹/۷)

﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ: أَنَّ امْرَأَةً خَرَجَتْ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې يوه ورځ يوه ښځه د

تُرِيدُ الصَّلَاةَ فَتَلَقَّاهَا رَجُلٌ

مونځ دپاره د کور نه راوتله نو په لاره کې ورسره يو سړي ملاؤ شو چه هغه پرې دپاسه کپړه واچوله خپل

فَتَجَلَّلَهَا فَقَضَى حَاجَتَهُ مِنْهَا فَصَاحَتْ

حاجت يې ترې پوره کړو (يعنې هغې سره يې په زبردستۍ سره زنا) وکړه هغې ښځې چغې وهلې او

وَانْطَلَقَ وَمَرَّتْ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ

هغه سړي هغه هلته پريخودله او لاړلو، کله چه څه مهاجر صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هلته تيريدل نو هغې ښځې

فَقَالَتْ: إِنَّ ذَلِكَ الرَّجُلَ فَعَلَ بِي كَذَا وَكَذَا

هغوی ته وويل چې دې سړي ماسره داسې داسې وکړل (يعنی زما دپاسه يې کپړه واچوله زه يې بې وسه کړم او

فَأَخَذُوا الرَّجُلَ فَأَتَوْا بِهِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بيايې ماسره بدکاري اوکړه) خلقو هغه سړی ونيولو او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې يې حاضر کړو او

فَقَالَ لَهَا: «اذْهَبِي فَقَدْ غَفَرَ اللهُ لَكِ»

ټوله واقعه يې ورته بيان کړه نبی عَلَيْهِ السَّلَام هغه ښځې ته خو وفرمايل چې ځه الله تعالی ته وبخښلې او کوم سړي چې

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن فی ۴/۴۵ رقم الحديث ۱۴۵۳ وابن ماجه رقم الحديث ۲۵۹۸ وأحمد فی المسند ۴/۳۱۸

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ | لِلرَّجُلِ | الَّذِي | وَقَعَ | عَلَيْهَا: | «ارْجُمُوهُ» |

هغه ښځې سره بدکاري کړې وه دهغه په حق کې يې دا فيصله وکړه چې دا دې سنګسار کړی شي هغه دخپل جرم اقرار وکړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ: | «لَقَدْ | تَابَ | تَوْبَةً | لَوْ | تَابَهَا |

دا دې سنګسارولو نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې دې کس په خپل ځان باندې حد جاري کولو سره داسې توبه وکړه. چه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَهْلُ | الْمَدِينَةِ | لَقُبِلَ | مِنْهُمْ». | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَأَبُو دَاوُدَ[1] |

کچيرې دغه شان توبه د مدينې والو کولی نو دهغوی توبه به قبليده. (ترمذی، ابوداؤد)

## د يوې زنا دوه سزاګانې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۱۹۱۹) وَعَنْ | جَابِرٍ: | أَنَّ | رَجُلًا | زَنَى | بِامْرَأَةٍ | فَأَمَرَ | بِهِ |

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو سړي د يوې ښځې سره زنا وکړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه ته د کوړو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّبِيُّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَجُلِدَ | الْحَدَّ |

ورکولو حکم ورکړو، نو هغه ته بطور حد کوړې ورکړی شوې ددې نه پس چې کله وخودلی شو چې دا

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | أُخْبِرَ | أَنَّهُ | مُحْصَنٌ | فَأَمَرَ | بِهِ | فرجم. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[2] |

سړی محصن دی نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام دهغه د سنګسارولو حکم وکړو او هغه سنګسار کړی شو. (ابوداؤد)

**توضيح: فامر به فرجم**: حاکم او قاضی نه کچيرې غلطي وشي نو دوه حدونه يو ځای کيدی شي مطلب دا شو چې يو حد دبل حد قائم مقام نه شي کيدی ددې سړي متعلق نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته مخکې او خودلی شو يا هغوی په خپلې اندازې سره داسې وکړه چې دا نا واده کړی دی، نو د کوړو سزا ورکړی شوه روستو چې کله معلومه شوه چې دا محصن واده کړی دی نو هغه سنګسار کړی شو. (المرقات ۱۶۰/۷)

## په بيمار مجرم باندې دحد جاري کولو طريقه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ | سَعِيدِ | بْنِ | سَعْدِ | بْنِ | عُبَادَةَ | أَنَّ | سَعْدَ | بْنَ عُبَادَةَ |

او حضرت سعيد بن سعد بن عباده روايت کوي چې يو ورځ حضرت سعد بن عباده يو سړي لره د

---

([1]) أخرجه أبوداود فی السنن ۵٤۱/٤ رقم الحديث ٤۳۷۹ والترمذی فی ٤٥/٤ رقم الحديث ۱٤۵۳ وأحمد فی المسند ۳۹۹/٦ .

([2]) أخرجه أبوداود فی السنن ۵۸٦/٤ رقم الحديث ٤٤۳۸ .

أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ كَانَ فِي الْحَيِّ مُخْدَجٍ سقيم

نبي عليه السلام په خدمت کې راوستلو چه په خپله محله کې يو ناقص الخلقت کمزوری او بيمار سړی وو (او داسې

فَوُجِدَ على أُمة من إِمَائِهِمْ يخبث بِهَا

بيمار وو چې دهغه د ښه کيدو څه اميد نه وو) دې سړي لره د محلې والو د وينځو نه د يوې وينځې سره په زنا کولو

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خُذُوا

باندې ونيولی شو) نبی کريم صلى الله عليه وسلم دهغه په باره کې دا حکم وفرمايلو چې د کهجورې يو

لَهُ عِثْكَالًا فِيهِ مِائَةُ شِمْرَاخٍ فَاضْرِبُوهُ

داسې (لوی) ښاخ چې په هغې کې سل واړه واړه ښاخونه وي او بيا په هغه ښاخ سره دې سړي لره يو

ضَرْبَةً». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ مَاجَه نحوه (حسن)[1]

ځل ووهئ (شرح السنة) ابن ماجه هم دې روايت لره نقل کړی دی.

**توضيح: مخدج**: ناقص الخلقت ته مخدج وايې يعنی وړو اندامونو او وړوکي بدن والا سړی وو، بل دا چې بيمار هم وو او کمزوری هم وو (المرقات ۱۶۱/۷)

**يخبث** د خباثت نه دی زنا کول مراد دي. (المرقات ۱۶۱/۷)

**عثکالا** د عين په زير سره د کهجورې هغه غټ ښاخ ته وائی چې په هغې کې څو واړه ښاخونه وي. (المرقات ۱۶۱/۷)

**شمراخ** د شين په زير سره واړه ښاخونه ترې مراد دي (المرقات ۱۶۱/۷)

**ضربة واحدة**: يعني په دې لوی ښاخ سره دا ووهئ په کوم کې چې وړه ښاخونه دي دغه شان دې سړی ته به د سلو کوړو سزا ملاو شي او زيات زخمی به هم نه شي او مړ به هم نه شي، ددې نه معلومه شوه چې که د زنا حد رجم وی نو په هر حالت کې حد قائمول پکاردي، او که د زنا حد کوړې وی نو بيا د بيمار د صحيح کيدو انتظار کول پکاردي، او که د صحت اميد نه وي نو بيا دغه شان حيله کول پکاردي کومه چې په دې حديث کې ذکر ده په دې وجه چې د کوړو په حد کې چالره قتل کول جائز نه دي (المرقات ۱۶۱/۷)

[1] أخرجه ابن ماجه فی السنن ۳/۸۵۹ رقم الحديث ۲۵۷٤ واحمد فی المسند ۵/۲۲۲

## دلواطت ابتداء او سزا

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: |
| او حضرت عکرمه د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه نقل کوي چې هغوی وویل چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| «من وَجَدْتُمُوهُ يَعْمَلُ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُول بِهِ». |
| چې کچیرې تاسو یو کس د قوم لوط په شان عمل کونکی ومومئ نو فاعل او مفعول دواړه ووژنئ. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه[1] |
| ( روایت کړې دې ترمذی او ابن ماجه ) |

**توضیح** : **عمل قوم لوط** : د حضرت لوط عَلَيْهِ السَّلَامُ قوم په دې غلیظ قباحت کې مبتلاوو او ددې قباحت ابتداء او ددې ابتدائی تجربه بین الاقوامی بې غیرت ابلیس په خپل بدن باندې کړې وه دې دپاره چې اولادِ آدم دوزخ ته لاړشي، بعضو علماؤ لیکلي دي چې ابلیس د یوسړی باغ ته د یوښائسته نو عمر هلک په شکل کې راغلواو ونې ته وختلو میوه یې راشوکوله او په زمکه یې غورزول شروع کړل دباغ مالک ورته وویل چې څومره میوه خوړې شې نو ویې خوره یایې کورته وړې نو تاته اجازت دی خو لاندې غورزولو سره یې مه ضائع کوه، ده یوه خبره هم نه اوریده دباغ مالک ورته وویل چې آخرستامقصد څه دی ده ورته وویل چې ماسره لواطت وکړه که نه یې کوې نومیوه به هم داسې راشوکوم، دې سړي اعوذبالله وویله او وې ویله چې دا عمل هم څوک کولی شي خو ابلیس چې کله دمیوې ضائع کولو کې نه واوختلو نو هغه سړي ده لره لاندې راوغوښتلو او دهغه سره یې لواطت وکړو کله چې دلواطت نه فارغ شو نوهغه ته پکې مزه راغله او لاړلو نورو هلکانو سره یې دا عمل شروع کړو او په مزه مزه دا عمل په قوم لوط کې خورشو تردې چې ښځې یې پریخودلې کله چې ددې هلکانو کیرې راغلې نو هغوی کیرې خریل شروع کړل او داعمل دومره عام شو چې په لارو کوڅو او بازارونو او ښکاره مجلسونو کې شروع شو، حضرت لوط عَلَيْهِ السَّلَامُ ډېر منع کړل خو هغوی نه منل آخر دالله تعالی په عذاب سره هلاک شول.

یادساتئ! لوط عجمي لفظ دی ددې معنی په عجمی لغت کې تلاش کول پکار دي دې ته د عربی لغت په نظر سره مه ګورئ بعضې خلقو ته په دې غلط فهمی سره ډېر نقصان وشو.

**د لوطي په سزا کې د فقهاو آراء** : په مشکوة شریف کې د لوطي د سزا په باره کې یو زیربحث

---

(۱) أخرجه الترمذی ۵۶/٤ ۱٤ وابن ماجه ۱۵٦/۲

حدیث دی چې په هغې کې ددې عمل کونکي لره دقتل کولو حکم دی مخکې روایت نمبر ۲۹ راغلي دي چې حضرت علي رضي الله عنه د قوم لوط والا عمل کونکو لره په اُور کې سوزولي وو او حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغوی باندې دیوال راغورزولي وو، بعضې روایاتوکې دغر نه د راغورزولو ذکر راغلی دی په سمندرکې د ډوبولو هم ذکردی نو دروایاتو په اختلاف سره د فقهاو آراء مختلف دی. دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د صاحبینو رحمهما الله په نزد دلوطی سزا دزنا دحد په شان ده چې که چیرې واده کړی وي نو رجم دی او که ناواده کړی وي نو په هغه باندې کوړې دي، د فاعل او د مفعول دواړو یو حکم دی، دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ مشهور مسلک او دامام احمدبن حنبل رَحِمَهُ اللهُ مسلک او دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ یو قول دادی چې دلواطت په عمل کې به فاعل او مفعول دواړه قتل کولی شي. (المرقات ۱۶۲/۷)

امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ددې قبیح عمل سزا تعزیر دی او په تعزیرکې دا ټولې سزاګانې ورکولی شي البته ددې دپاره څه حد متعین نه دی.د هر مسلک صاحب د څه روایت نه یا قیاس نه استدلال کړی دی. (المرقات ۱۶۲/۷)

صاحبین او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دې حد لره دزنا په حد باندې قیاس کړی دی، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د هغوی موافقینو دزیربحث حدیث نه استدلال کړی دی، امام ابوحنیفه ټولو سزاګانو لره مدنظرساتلو فیصله فرمایلي ده چې قاضی ته اختیار دی چې په دې سزاګانو کې چې کومه مناسب ګڼي نو نافذه دې کړي. امام ابوحنیفه رحمه الله دلوطی سزا زیاته عامه کړې ده او دسختې سزا فتوی یې ورکړې ده، لهذا په هغه باندې اعتراض بهتان دی چې امام صاحب دلوطی حد نه مني، هغه خو فرمایي چې په صحابه کرامو رضی الله عنهم کې په دې باره کې مختلفې رایې وې مختلفې سزاګانې یې ورکړې وې، لهذا دا سزاګانې په څه حدکې راګیرول نه دي پکار، ځکه چې حد متعین کیږي، ها دتعزیرمیدان وسیع دی چې کومه سزا ورکوې نو وریې کړئ، په افغانستان کې طالبانو د دیوال غورزولو سزا جاري کړې وه. د زیر نظر حدیث الفاظ هم ښایي چې ددې عمل سزا تعزیردی حدیې مقررنه دی. ځکه چې قتل یې کړئ دا الفاظ حد لره شامل نه دي په دې وجه چې په حدکې یاخو کوړې دي یا سنګسارول دي په دې وجه یارجم یا مأة جلدة الفاظ راغلي دي. (المرقات ۱۶۲/۷)

## څناورو سره دبدفعلۍ کونکي سزا

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَتَى بَهِيمَةً |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کوم سړی دیو څناور سره |
| فَاقْتُلُوهُ وَاقْتُلُوهَا مَعَهُ». قِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: |
| بدفعلي وکړي هغه قتل کړئ او دهغه سره دې څناور لره هم قتل کړي. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویلی شو |

| |
|---|
| مَا شَأْنُ الْبَهِيمَةِ؟ |
| چه دځناورو په باره کې دا حکم ولې دی (یعني ځناور نه خو عقل لري او نه هغه مکلف دی نو د دې د قتل کولو |
| قَالَ: مَا سَمِعْتُ مِنْ |
| حکم ولې دی؟) حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما د دې د حکمت او مصلحت په باره کې د |
| رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ شَيْئًا وَلَكِن أُرَاهُ كَرِهَ |
| نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه څه نه دي اوریدلي البته زما گمان دی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دې خبرې لره ناخوښه فرمایلې وه |
| أَنْ يُؤْكَلَ لَحْمُهَا |
| چې د کوم ځناور سره بدفعلي وکړی شوه د هغې غوښه خوړلی شي یا د دې (پې. وېښته او نسل ترې اخستل) |
| أَوْ يُنْتَفَعَ بِهَا وَقَدْ فُعِلَ |
| نه فائده اخستلی شي او کله چې د دې ځناور نه څه قسمه فائده او چتول مکروه شو نو بیا د دې لره قتل کول |
| بِهَا ذَلِكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه[1] |
| ضروري دي. (روایت کړې دې ترمذی، ابن ماجه، ابو داؤد) |

**توضیح**: **فاقتلوه**: یعنی د کوم ځناور سره چې یې بدفعلي کړې ده نو هغه ځناور هم قتل کړه او هغه سړی هم قتل کړه ټول فقهاء په دې متفق دي چې د ځناور سره د بدفعلي کونکي سزا تعزیر دی صرف د اسحاق بن راهویه په نزد د سړي قتل کول دي، فقهاء کرامو هغه حدیث اخستی چې الفاظ یې دا دي **من اتی بهیمة فلا حد علیه** (ترمذی) اسحاق بن راهویه د زیربحث حدیث د **فاقتلوه** الفاظو نه استدلال کړی دی، جمهور فرمایي چې دا زجر او توبیخ او تشدید او تغلیظ باندې محمول دی.

**واقتلوها**: اوس دا مسئله ده چې د ځناور سره څه چل وکړی شي نو په دې حدیث کې دي چې ځناور دې هم قتل کړی شي، اوس سوال دا دی چې د ځناور څه قصور دی؟ نو د دې جواب حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ورکړو چې ما د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه خو د دې په باره کې څه نه دي اوریدلي خو زما خیال دا دی چې په دې وجه وژلی شي چې هیڅ یو کس د دې د غوښې یا د پیو نه څه فائده نه او چتوي په داسې حال کې چې د دې سره دا بد عمل شوی دی چې د هغه اثرات د دې غوښې او پیو ته رسیدلي شي، د ځناور د قتل په باره کې یوه توجیه دا هم شوې ده چې ځناور په دې وجه قتل کولی شي د دې د پاره چې بدفعلي کونکي سړي ته خلق پیغور نه ورکوي چې او کوره ستا ناوې روانه ده په دې وجه دې

---

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٦٠٩ رقم الحديث ٤٤٦٤ والترمذی فی ٤/٤٦ رقم الحديث ١٤٥٥ وابن ماجه فی ٨٥٦ رقم الحديث ٢٥٦٤.

مکروه ریکارډ لره ختمول بهتر دي. علماو لیکلي دي چې کچیرې یوې ښځې یو ځناور مثلاً شادو یا سپي وغیره سره جماع وکړه نو ددې حکم هم د ځناور سره د بد فعلۍ په شان دی. (المرقات ۱۶۳/۷)

## اغلام بازي (دقوم لوط عمل) بدترینه گناه ده

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَخْوَفَ مَا |
| اوحضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چه دخپل امت په باره کې ماته |
| أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي عَمَلُ قَوْمِ لُوطٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| دټولو نه زیات چې دکوم څیز یره ده هغه د قوم لوط عمل (یعنی اغلام) دی. (ترمذی،ابن ماجه) |

## د حدزنا او حد قذف د جمع کیدو یو صورت

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَنِي بَكْرِ بْنِ لَيْثٍ أَتَى |
| اوحضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو ورځ دبکربن لیث دخاندان یو سړی دنبی عَلَيْهِ السَّلَام |
| النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقَرَّ أَنَّهُ زَنَى بِامْرَأَةٍ أَرْبَعَ |
| په خدمت کې راغلو او اقرارېې وکړو چې ده (یعنی ما) یوې ښځې سره څلور ځله یعنې په څلورو |
| مَرَّاتٍ فَجَلَدَهُ مِائَةً وَكَانَ بِكْرًا |
| مجلسونو کې زنا کړې ده نبی عَلَيْهِ السَّلَام هغه ته سل کوړې ورکړې او هغه سړی غیر محصن یعنې ناواده کړی وو |
| ثُمَّ سَأَلَهُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمَرْأَةِ فَقَالَتْ: |
| بیانبی عَلَيْهِ السَّلَام دهغه نه دهغې سره په زنا کولو باندې گواهان وغوښتل ښځې عرض وکړو چې په |
| كَذَبَ وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ فَجُلِدَ حَدَّ |
| الله قسم ای دالله رسوله! دا سړی دروغ وایې ددې نه پس نبی عَلَيْهِ السَّلَام هغه سړي باندې د تهمت |
| الْفِرْيَةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| لگولو حد جاري کړو. (ابو داؤد) |

**توضیح**: فجلد حد الفرية: یعنی د دروغو د تهمت حد ولگولی شو دې سړي پخپله خو اقرار وکړو

[1] أخرجه الترمذی فی السنن ۴/۴۸ رقم الحدیث ۱۴۵۷ وابن ماجه فی ۲/۸۵۶ رقم الحدیث ۲۶۵۳ وأحمد فی المسند ۷/۳۸۲.

[2] أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۶۱۱ رقم الحدیث ۴۴۶۷.

چې ما فلانی ښځې سره زنا کړې ده او س دا معلومه نه شوه چې دده مقصد څه وو شاید چه ددې ښځې بدنامول یې غوښتل، بهرحال ددې اقرار په بنیاد باندې ده ته کوړې ورکړی شوې خو کله چې دښځې نه تپوس وکړی شو نو هغې وویل چې په الله قسم دی دا روغ وایې، او س دبهتان دوجې نه دې سړې ته د حد قذف هم کوړې ورکړی شوې ددې نه معلومه شوه چې یو سړي ته د دوه مختلفو جرمونو په کولو سره مختلفې سزاګانې ورکولی شي. (المرقات ۱۶۴/۷)

## په حضرت عائشه رضی الله عنها باندې دتهمت لګولو والو سزا

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ | عَائِشَةَ | قَالَتْ: | لَمَّا | نَزَلَ | عُذْرِي | | |
| او حضرت عائشه رضی الله عنها وائی چې کله زما براءت نازل شو (یعنې دعفت او پاکدامنی په ثبوت باندې آیتونه نازل شول) | | | | | | | |
| قَامَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | عَلَى | الْمِنْبَرِ | فَذَكَرَ | ذٰلِكَ |
| نو نبی علیه السلام منبر باندې ودریدو سره خطبه ارشاد وفرمایله او دهغې ذکریې وکړو او کله چې | | | | | | | |
| فَلَمَّا | نَزَلَ | مِنَ | الْمِنْبَرِ | أَمَرَ | بِالرَّجُلَيْنِ | وَالْمَرْأَةِ | |
| نبی علیه السلام دمنبر نه راکوزیدو نو دوه سړو او یوې ښځې ته یې د سزا ورکولو فیصله وکړه دتهمت لګولو | | | | | | | |
| فَضُرِبُوا | حَدَّهُمْ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[1] | | | | |
| په هغوی باندې حد جاري کړی شو. (ابو داؤد) | | | | | | | |

**توضیح**: **امر بالرجلین**: حضرت عائشه باندې پنځمه هجري کې دیوې غزوې په دوران کې روستو دپاتې کیدو دوجې نه منافقینو بهتان تړلی وو یوې میاشتې پورې صحابه کرام په سخت اضطراب او غم کې وو. منافقینو سره څو مسلمانانو هم په دې تهمت کې خپلې ژبې ګنده کړې وې په دوی کې یوه ښځه او دوه سړي وو چې په هغوی کې دیو نوم مسطح وو او د دویم نوم حضرت حسّان خودلی شي او دښځې نوم حمنه بنت جحش وو. (المرقات ۱۶۴/۷)

دحضرت حسّان په باره کې خو عائشه صدیقه رضی الله عنها هم فرمایې چې هغه په دې بهتان کې ملوث کیدی نه شي ځکه چې هغه دا شعر ویلی دی.

فان ابی والده وعرضي لعرض محمد منکم وقاء

پخپله حضرت حسّان هم انکار وکړو او وې ویل چې داد دشمنانو په ما باندې الزام دی. دوی دحضرت

---

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٦١٨ رقم الحدیث ٤٤٧٤ والترمذی فی ٥/٣١٤ رقم الحدیث ٣١٨١ وابن ماجه فی ٢/٨٥٧ رقم: ٢٥٦٧.

عائشه صدیقه رضي الله عنها په براءت او منقبت او دخپلې صفائي په باره کې دا شعرونه ویلي دي:

| | |
|---|---|
| حصان رزان ماتزن بریبة | وتصبح غرثى من لحوم الغوافل |
| حلیلة خیر الناس دینا ومنصبا | نبی الهدى ذی المکرمات الفواضل |
| مهذبة قد طیب الله خیمها | وطهرها من کل سوء و باطل |
| فان کنت قد قلت ماقد زعمتموا | فلا رفعت سوطی الی انامل |
| فان الذی قد قیل لیس بلائط | ولکنه قول امرء بی ماحل |
| وکیف وودی ماحییت ونصرتی | لآل رسول الله زین المحافل |

دحضرت عائشه رضي الله عنها د یوې جملې نه پته لګي چې حضرت حسان زباني حصه په دې بهتان کې اخستې وه خو په هغه باندې حد قائم نه شو البته په آخري عمر کې بطور سزا نابینا شو. بهرحال نبي علیه السلام چې کله د عائشې رضي الله عنها دبراءت آیتونه واورول او دمنبر نه راکوز شو نو مخلصانو درې مسلمانانو لره دحد قذف سزا اتیا اتیا (۸۰) کوړې ورکړې شوې او منافقینو ته څه ونه ویلی شو ځکه چې په نفاق او کفر ککړسړي لره به حد قذف څه شی پاک کړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

### په زنا بالجبر کې په مجبوره باندې حد نشته

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۶﴾ عَنْ | نَافِعٍ: | أَنَّ | صَفِيَّةَ | بِنْتَ | أَبِي | عُبَيْدٍ | أَخْبَرَتْهُ |

حضرت نافع رحمه الله نه روایت دی چې حضرت صفیه بنت ابو عبید رضي الله عنها هغوی ته بیان وکړو چې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّ | عَبْدًا | مِنْ | رَقِيقِ | الْإِمَارَةِ | وَقَعَ | على | وليدةٍ |

امارات او خلافت یعنی د حضرت عمر رضي الله عنه په حکومت کې یو غلام دیوې وینځې سره زنا کول وغوښتل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| من | الخُمسِ | فاستكرهَها | حَتّى | افتضَّها |

چې د مال غنیمت په خمس کې وه (او کله چې هغه وینځه دې بدکارۍ ته تیاره نشوه نو هغه ورسره په زبردستۍ سره جماع وکړه) تر دې

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَجَلَدَهُ | عُمَرُ | وَلَمْ | يَجْلِدْهَا |

چې دهغې بکارت یعنی جینی والی یې زائل شو نو حضرت عمر رضي الله عنه هغه ته (پنځوس) درې ورکړې او هغه وینځه یې په

مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ استكرهها. رَوَاهُ البُخَارِيُّ[1]

درونه وهله، یعنی هغې ته یې د بدکارۍ سزا ورنه کړه ځکه چې هغه غلام د هغې سره په زبردستۍ سره جماع کړې وه. (بخاري)

## د ماعز رضی الله عنه د زنا د واقعې یو بل تفصیل

﴿۲۷﴾ وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ نُعَيْمِ بْنِ هَزَّالٍ عَنْ أَبِيهِ

او حضرت یزید بن نعیم بن هزال د خپل پلار حضرت نعیم بن هزال نه نقل کوي چې هغوی یعني

قَالَ: كَانَ مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ يَتِيمًا فِي حِجْرِ أَبِي

حضرت نعیم وویل چې ماعز بن مالک یتیم وو او زما والد حضرت هزال په پرورش کې وو هغه چې

فَأَصَابَ جَارِيَةً مِنَ الْحَيِّ فَقَالَ لَهُ أَبِي:

ځوان شو نو د محلې یوې وینځې سره یې زنا وکړه کله چې زما پلار ته د دې علم وشو نو هغوی ورته وویل

ائْتِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبِرْهُ بِمَا صَنَعْتَ لَعَلَّهُ

چې د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شه او کوم څه چې تا کړې دي هغه ورته ووایه شاید

يَسْتَغْفِرُ لَكَ وَإِنَّمَا يُرِيدُ بِذَلِكَ رَجَاءَ

نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ستا د پاره د مغفرت دعا وکړي او زما د پلار د دې ویلو نه د دې نه علاوه بل څه مقصد نه وو

أَنْ يَكُونَ لَهُ مَخْرَجًا

چې استغفار به د ګناه نه د نجات سبب جوړ شي (یعنی زما د پلار مقصد نه وو چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د ده د سنګسارولو حکم وکړي

فَأَتَاهُ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ

ځنګه چې د بعضو خلقو خیال دی) ماعز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړو چې ای د الله رسوله!

إِنِّي زَنَيْتُ فَأَقِمْ عَلَيَّ كِتَابَ اللهِ

ما زنا کړې ده تاسو په ما باندې د کتاب الله حکم جاري کړئ. نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ چې دده خبره واوریده نو مخ یې واړولو

حَتَّى قَالَهَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

تر دې پورې چې هغه دا خبره څلور ځل یعنی په څلورو مجلسونو کې وکړه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ١٢/٣٢١ رقم الحديث ٦٩٤٩.

إِنَّكَ قَدْ قُلْتَهَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فَبِمَنْ؟

چې داخبره څلور ځله وکړه يعنې څلور ځله اقرار کولو سره ستاد زنا جرم ثابت شو اوس دا وښايه چې تا چاسره زنا کړې ده

قَالَ: بِفُلَانَةَ. قَالَ: «هَلْ ضَاجَعْتَهَا؟»

دهغه نوم يې واخستلو چې فلانۍ ښځې سره نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې ته هغې سره ملاست يعنې ورتر غاړه وتلی وې

قَالَ: نَعَمْ قَالَ: «هَلْ بَاشَرْتَهَا؟» قَالَ: نَعَمْ

هغه وويل چې آو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې ته دهغې بدن خپل بدن سره لګولی وو؟ هغه وويل آو

قَالَ: «هَلْ جَامَعْتَهَا؟» قَالَ: نَعَمْ قَالَ: فَأَمَرَ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او فرمايل آيا تا دهغې سره جماع کړې وه؟ هغه وويل آو ددې نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دهغه

بِهِ أَنْ يُرْجَمَ فَأُخْرِجَ بِهِ إِلَى الْحَرَّةِ فَلَمَّا رُجِمَ فَوَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ فَجَزِعَ فَخَرَجَ

دسنګسارولو حکم وفرمايلو نو هغه حره ته بوتلی شو او کله چې سنګسارولی شو هلته نه وتختيدلو

يَشْتَدُّ فَلَقِيَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ أُنَيْسٍ وَقَدْ

په لاره کې ورته عبد الله بن انيس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مخې ته راغلو او دهغه ملګري يعنې ماعز رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لره سنګسار

عَجَزَ أَصْحَابُهُ فَنَزَعَ لَهُ بِوَظِيفِ بَعِيرٍ فَرَمَاهُ بِهِ

کونکي ستړي شوي وو عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د اوښ دخپو هډوکی راوچت کړو او په هغې يې ماعز رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويشتلو

فَقَتَلَهُ ثُمَّ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

تردې پورې چې هغه ده لره ختم کړو ددې نه پس عبد الله دنبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو

فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ: «هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ

او دهغوی په مخکې يې ټوله واقعه بيان کړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل چې هغه مو پرېخودلو ولې

لَعَلَّهُ أَنْ يَتُوبَ.

نه شايد چې هغه دخپل اقرار نه رجوع کړې وی او الله تعالی دهغه توبه قبلولو سره دسنګسارۍ نه

فَيَتُوبَ اللهُ عَلَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

بغیر دهغه ګناه معاف کړې وه. (ابوداؤد)

## دزنا او رشوت په کثرت سره په قومونو باندې سزا

﴿۲۸﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې ما دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوریدلو چې

«مَا مِنْ قَوْمٍ يَظْهَرُ فِيهِمُ الزِّنَا إِلَّا أُخِذُوا بِالسَّنَةِ وَمَا مِنْ قَوْمٍ

په کوم قوم کې د زنا کثرت شي نو هغوی لره به قحط په خپله ګیره کې رانیسي او په کوم قوم کې چې

يَظْهَرُ فِيهِمُ الرُّشَا إِلَّا أُخِذُوا بِالرُّعْبِ». رَوَاهُ أَحْمد[2]

رشوت عام شي نو په هغوی باندې رعب (یره) مسلط کولی شي. (احمد)

**توضیح: بالسنة**: په سین او نون دواړو باندې زبر دی خشک سالۍ او قحط ته وايي، علامه طیبی فرمايي چې د زنا په وجه سره د قحط مسلط کیدو حکمت شاید دادی چې زنا دنسل دتباهۍ ذریعه ده او قحط دفصل دتباهۍ ذریعه ده نو په دواړو کې دفساد او تباهۍ مماثلت دی نو زنا دقحط راوړلو ذریعه جوړه شوه، داګناه دنسل دتباهۍ ذریعه جوړه شوې ده، او ددې په اثرسره قحط راځي په کوم سره چې دفصل تباهي کیږي. (المرقات ۱۶۸/۷، الکاشف ۱۶۹/۷)

**الرشا**: په راء باندې پیښ هم دی او زیر هم جائزدی، رشاء په اصل کې زسۍ ته وايي د کوم په مدد سره چې دکوهي نه اوبه راویستلی شي ځکه چې رشوت هم دناجائز مال د راخکلو ذریعه ده په دې وجه دې ته رشاء وویلی شوه، یادا د رشوة جمع ده. **بالرعب**: یعنی درشوت په کثر ت سره قوم او ملک دخپلو نه هم مرعوبه کیږي او ددشمنانو نه هم مرعوب اوسي، ددې وجه داده چې کله درشوت په اخستلو او ورکولو سره دقوم جرأت او همت دغلو په شان کمزوری شي او دقوم ضمیر مړ شي او د ایمانداری او د ربښتینولۍ جذبه ختمه شي نو ددشمن په مقابله کې اوس ددې رشوت خورونه ټول انساني صفات او عظمتونه او دعزتونو تصورات ختم شي او حاکم او محکوم دواړه ددشمن نه مرعوبه اوسي، اوس دده ضمیر داوچتوالي احساس نه ورکوي بلکه دکمترۍ احساس ورکوي او

---

([1]) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۵۷۳ رقم الحديث ۴۴۱۹.

([2]) أخرجه أحمد في المسند ۴/۲۰۵.

همدا رعب دی چې دخپلو نه یره په دې وجه پرې خوره وي چې کله دا رشوت خورول خپل فرض منصبي نه پوره کوي نو دهریو نه یریږي لهذا دا د یو جج (قاضي) د حکم نافذکولو او جاري کولو نه هر وخت په یره کې وي چې هسې نه چې دچا نه مې رشوت اخستی دی هغه راته په غاړه نه شي په دې شان سره په مجموعی حیثیت سره قوم بزدله جوړشي. (المرقات ۱۶۹/۷)

## د لوطی د سزا مختلف صورتونه

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |
| «مَلْعُونٌ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ». رَوَاهُ رَزِينٌ[1] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ |
| چې کوم کس د قوم لوط په شان عمل یعنی اغلام کوي هغه ملعون دی (رزین) او د رزین رحمه الله په یو روایت |
| عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ[2] |
| کې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل دي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بطور سزا اغلام (لوطي) لره چې په خپله کونکی |
| أَحرَقَهما وَأَبَا بَكرٍ هدم عَلَيْهِمَا حَائِطًا |
| وي او په چا چې کولی شي دواړه یې سوزولي وو او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغوی باندې دیوال راغورزولی وو. |

**توضیح :احرقهما**: یعنی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فاعل او مفعول دواړه په اُور کې واچول او وې سوزول او حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغوی باندې دیوال راغورزولی وو او چونکه دا سزا د احنافو په نزد د تعزیر په زمره (ډله) کې راځي په دې وجه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په دور کې او د هغې نه پس دورونو کې د دې سزا په نوعیت کې فرق راتللو مګر د دې د عدم جرم په وجه سره نه دی بلکه د حد د عدم تعین د وجې نه دی او د تعزیر باب خو د حد نه زیات وسیع دی، نو علماؤ لیکلي دي چې لوطی دې داوچت غرنه راوغوزولی شي او د پاسه دې پرې د کاڼو باران وکړی شي دې د پاره چې د قوم لوط د سزا سره مشابهت راشي، بعضو ویلي دي چې په ده باندې دې کور راوغورزولی شي لاندې دې ډوب کړی شي، بعضو ویلي دي چې ده لره دې په سمندرکښې غرق کړی شي، بعضو ویلي دي چې ده لره دې په تنګ او تیاره بدبوداره ځای کې بند کړی شي، بعضو ویلي دي چې دا دې

---

(۱) أخرجه مرقاة المفاتیح ۷/۱۵٤ رقم الحدیث ۳۵۸۳.

(۲) أخرجه رواه رزین

په جیل کې ترهغه وخته پورې وساتلی شي چې ترڅوپورې هغه توبه ونه کړي، بعضو ویلې دي چې کچیرې دلوطی عادت جوړشوی دی او داقبیح عمل هغه باربار کوي نو دمصلحت لاندې دې هغه قتل کړی شي، دغه رنګه عادی مفعول لره دې هم قتل کړی شي. داټولې خبرې په مختلفو حواله جاتو سره په زجاجة المصابیح ج۳ص۷۸ باندې ذکردي.ددې ټولواقوالوپیش نظردنن صبادغیر مقلدینو حضراتو دا پروپیګنده په دیانت اوصداقت باندې مبني نه ده چې وایې د احنافو په نزد د لواطت هیڅ سزا نشته. امام ابوحنیفه رحمه الله کچیرې دا وایې چې ددې دپاره دصحابو په دورکې څه متعین سزا په طور دحد نه وه لهذا دتعزیر په زمره کې راځي نوپه دې باندې داعتراض ګنجائش چرته نه دی آیا د دومره اقوالو نه پس هم څوک ویلی شي چې په طور د حد ددې عمل دپاره فلانی خاص جد متعین دی؟ کچیرې نه شي ویلی نوهمدا خبره خو امام ابوحنیفه رحمه الله هم کړې ده، باقي دفقهاو اختلاف ددې نه مخکې تیرشوی دی.

**کوم کوم خلق ملعون دي** : په جامع صغیرکې دامام محمدرحمه الله نه دحسن بصري رحمه الله په سندسره دحضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنهُ دا روایت نقل کړی دی (۱) چې کوم کس خپلې مورته بدرد ووایې هغه ملعون دی (۲) چې کوم کس دغیرالله په نوم حلاله وکړي هغه معلون دی (۳) چې کوم کس داسلام د زمکې په سرحدونوکې ردوبدل وکړي هغه ملعون دی (۴) چې کوم کس کوم ړوند ته غلطه لاروښایې هغه ملعون دی (۵) چې کوم کس ځناور سره بد فعلي وکړي هغه ملعون دی (۶) او چې کوم کس دقوم لوط په شان اغلام بازي (لواطت) والا عمل وکړي هغه ملعون دی.

## خپل ښځې سره لواطت حرام دی

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا |
| اوحضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې الله تعالی |
| يَنْظُرُ اللهُ عَزَّوَجَلَّ إِلَى رَجُلٍ أَتَى رَجُلًا أَوِ امْرَأَةً فِي دُبُرِهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| په هغه سړي باندې رحمت نه کوي چې کوم سړي یا ښځې سره بدفعلي وکړي دې روایت لره امام ترمذی |
| وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1] |
| نقل کړی دی او ویلې یې دي چې داحدیث حسن غریب دی. |

[1] أخرجه الترمذی فی السنن ۳/۴۶۹ رقم الحديث ۱۱۶۵ وأحمدفی المسند ۲/۳۴۴ . رقم الحديث ۳۵۸۶ أخرجه ابوداود فی السنن ۴/۶۱۰ رقم الحديث ۴۴۶۵ والترمذی ۴/۴۶ رقم الحديث ۱۴۵۵.

**توضیح**: **اتی امرأة فی دبرها**: په څو احادیثوکې سخت ممانعت او لعنت راغلی دی چې کوم سړی دخپلې ښځې سره بدفعلي وکړي چونکه په دې سره داشتباه خطره ده چې خاوند داخیال کوي چې دا زما ښځه ده نو ددې نه هرقسم فائده اخستل به جائز وي په دې وجه په احادیثو کې په دې باندې سخت وعید راغلی دی اوچونکه بعضې بدبخته بدکاره په قصدسره دښځې سره دبدفعلۍ عمل کوي اوممکنه ده چې یولوی مخلوق په دې جرم کې مبتلا وي، په دې وجه اسلام په کولاو الفاظوسره ددې ممانعت وفرمایلو، اوپه دې باندې وعید واوروله شو او د لواطت دممانعت په عامو آیتونو او احادیثوکې یې دې لره شامل کړو دارنګه دلوطی په سزا کې دا شمار کړی شو.

## دځناور سره په بدفعلۍ باندې حد مقرر نه دی بلکه تعزیر دی

﴿۳۱﴾ وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: «مَنْ أَتَى بَهِيمَةً
اوحضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل دي چې هغوی (بطریق مرفوع) وویل چې کوم سړی د ځناور سره بدفعلي وکړي

فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ
هغه دحد سزاوار نه دی خو قابل دتعزیر دی دې روایت لره ترمذی او ابوداوُد نقل کړی دی دارنګه

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ
ترمذی رحمه الله دسفیان ثوری رحمه الله نه روایت کوي چې هغوی (یعنی سفیان) وویل چې داحدیث د

أَنَّهُ قَالَ: وَهَذَا أَصَحُّ مِنَ الْحَدِيثِ الْأَوَّلِ
ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داولنې حدیث نه زیات صحیح دی چې په دویم فصل کې هغه نقل کړی شوی دی

وَهُوَ: «مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ»
او هغه اول حدیث دادی چې کوم سړی دځناور سره بدفعلي وکړي هغه مړ کړئ نو علماؤ په هغې باندې

وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعلم (جيد)[1]
عمل کړی دی چې دځناور سره بدفعلي کونکی دحد سزاوار نه دی البته بطور تعزیر ده ته څه سزا ورکولی شي.

**توضیح**: ددې نه مخکې حدیث ۲۲ کې ددې مسئلې تفصل تیرشوی دی هلته یې اوګورئ هلته دا ذکر دی چې ځناور سره بدفعلۍ کولو والا قتل کړئ او ځناور هم قتل کړئ.

هغه روایت هم دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل دی او دا هم دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل دی په ظاهره داسې معلومیږي چې زیربحث حدیث مرفوع نه دی بلکه دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل قول دی خو دحضرت سفیان ثوري رحمه الله تبصرې نه داخبره معلومیږي چې دا دواړه حدیثونه مرفوع دي ځکه هغوی

---

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۶۱۰ رقم الحديث ۴۴۶۵ والترمذی ۴/۴۶ رقم الحديث ۱۴۵۵.

وفرمایل چې د دې حدیث نه هغه مخکنی حدیث زیات صحیح دی کچرې دواړه حدیثونه مرفوع نه وی نو د سفیان ثوري رحمه الله د کلام به څه مقام هم پاتې نه شي.

## په حد جاري کولو کې څه فرق او امتیاز مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَقِيمُوا حُدُودَ اللهِ |
| او حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل په نزدې او لرې |
| فِي الْقَرِيبِ وَالْبَعِيدِ وَلَا تَأْخُذْكُمْ فِي اللهِ لَوْمَةُ لَائِمٍ». |
| ټولو باندې حد جاري کړئ او خبردار د الله حکم یعنی په حد جاري کولو کې د چا ملامت کونکي ملامتیا |
| رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه (جيد)[1] |
| دې تاسو ته ونه دریږي. (ابن ماجه) |

**توضیح: القریب والبعید:** د دې جملې دوه مطلبه دي: یو مطلب دا چې حدود الله په نزدې او لرې رشته دارو باندې یو شان نافذ کړئ داسې دې نه وي چې په لرې په رشته دارانو باندې نافذ کړې او د نزدې رشته دارانو رعایت کولو سره د هغوی نه حد ساقط کړې، دا امتیازي سلوک په حدود الله کې جائز نه دې.

دویم مطلب دا چې د قریب نه مراد کمزوری او ناتوان دی په کوم چې حد نافذول آسان دي او بعید نه مراد طاقتور یا اثره سړی دی هغه ته رسیدل ممکن نه وي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې په کمزورو او طاقتورو باندې او غریبو او مالدارو باندې یو شان حد نافذوئ امتیازي سلوک مه کوئ. (المرقات ۱۶۱/۷)

## د حد جاري کولو فائدې

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِقَامَةُ حَدٍّ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د کوم حد جاري کول |
| مِنْ حُدُودِ اللهِ خَيْرٌ مِنْ مَطَرِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً فِي بِلَادِ اللهِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[2] |
| په حدود الله کې د الله تعالی په ټولو ښارونو باندې د څلویښتو شپو باران ورولو نه بهتر دی (ابن ماجه) |

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۸۴۹ رقم الحديث ۲۵۴۰ وأحمد في المسند ۵/۳۳۰

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۸۴۸ رقم الحديث ۲۵۳۷.

(جيد) رَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ[۱]

نسائی دې روایت لره د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی.

**توضیح : اقامة حد من حدود الله :** د حدود الله په قائمولو سره په بلاد الله کې برکات په دې وجه راځی چې د حدود الله په نافذولو سره د معاصیو او جرائمو مخ نیوی کیږي او کله چې ګناه منع شي نو د آسمان نه د برکاتو د نزول دروازې کهلاویږي. د دې برعکس د حدودو نه نافذکول یا په هغې کې سستي کول ګویا مخلوق خدا لره په ګناه او معاصیو کې د مبتلاکیدو موقع ورکول دي او دا معاصي د قحط سالی او د فسادِ عالم اسباب دي د کوم د وجې نه چې صرف انسانان د دې نه ښکار کیږي بلکه غیر انسانان ځناور، مرغۍ، او واړه واړه ځناور هم د دې ښکار جوړیږي او تول تباه او برباد کیږي، دا رنګه منقول دي چې حبارۍ هم د دې ناکرده ګناه په زد کې راتلو سره په پرسیدو کې مبتلاکیدو سره مري څنګه چې په یو حدیث کې راغلې دي.

حبارۍ د یوې مرغۍ نوم دی د دې ذکر په دې وجه سره وکړی شو چې هغه د رزق او اوبو په تلاش کې یو مثال لري، لرې لرې پورې ځي دانه او اوبه تلاش کوي را اوړي یې چې کله هغه مړه شي نو د نورو مرغو به څه حال وي.

[۱] اخرجه النسائی فی السنن ۸/۷۶ رقم الحدیث ۴۹۰۵.

# باب قطع السرقة

## دغل دلاس کټ کولو بیان

(قَالَ اللهُ تبارک وتعالی وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوٓا اَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللهِ وَاللهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ) ﴿سورة مائده آیت ۳۸﴾

**د سرقې تعریف** : سرقه د سین په فتحې سره او د راء په کسرې سره او په راء باندې فتحه هم ویل جائز دي، سرقه په لغت کې دبل څاځیز په پټه اوچتولوسره وړلو ته وایې، او شرعي اصطلاحي تعریف داسې دی: دعاقل بالغ کس دڅا مملوک اومحفوظ مال په پټه سره اوچتول او د هغې وړلو ته سرقه ویلی شي .باب قطع السرقة کې علامه طیبی فرمایې چې دلته به د اهل لفظ محذوف کولی شي .اي باب قطع اهل السرقة. ( المرقات ۱۷۱/۷)

**قطع د سرقې په تفصیلاتو کې د فقهاء کرامو اختلاف** :دغل د لاس کټ کولو اودسرقې په حدکې دڅا اختلاف نشته ځکه چې دقرآن په نص سره (**والسارق والسارقة فاقطعوا ایدیهما**) ثابت دی البته په دې کې اختلاف دی چې مطلقًا دمال په غلا باندې دا قطع ده یا دڅه معین مقدار غلا کول ضروري دي. په دې کې د جمهورو فقهاؤ او داهل ظواهرو او خوارجو او د حسن بصری رحمه الله په مینځ کې اختلاف دی. د حسن بصری رحمه الله اود خوارجو او د اهل ظواهرو په نزد سره مطلقًا دمال په غلا سره دلاس کټ کول جائز اومشروع دي، خو جمهورصحابه او تابعین او آئمه اربعه فرمایې چې دقطع ید دپاره ضروري دی چې په خاص مقدار سره مال په پټه یو کس اوچت کړي او یوسي. ( المرقات ۱۷۳/۷)

**دلائل** : حسن بصری رحمه الله او اهل ظواهر دقرآن کریم د ظاهري آیت نه استدلال کړی دی **والسارق والسارقة** والا آیت کې دغل دغلا ذکر دی دمال د مقدار ذکر نشته دی لهذا کوم سړي چې غلا وکړه دهغه لاس به کټ کیږي، دې حضراتو د راتلونکي دحضرت ابوهریره رضي الله عنه د روایت نه هم استدلال کړی دی چې دهغه الفاظ دادي : **لعن الله السارق یسرق البیضة فقطع یده** بیضه دسر ټوپۍ ته وایې دا یوه فوجي ټوپۍ (خولۍ) وي یاظاهري معنی نه هګۍ مراد ده. **ویسرق الحبل فتقطع یده** حبل رسۍ ته و ایې، د آیتونو او احادیثو پیش نظر دهغه حضراتو په نزد دلاس کټ

کولو پاره د مال څه نصاب نشته دی. جمهورو فقهاؤ ددې ټولو احادیثو نه استدلال کړی دی چې په کوم کې د خاص مقدار مال ذکر دی. په بعضو کې د ربع ذکر دی، په بعضو کې د ثلاثة دراهمو ذکر دی، په بعضو کې د ثمن المجن ذکر دی، په بعضو کې د عشرة دراهم ذکر دی، او د کم مقدار نفي ده، دارنګه د ټولو صحابه کرامو اجماع هم ده چې د خاص مقدار مال نه علاوه قطع د ید نشته دی، امام ابوحنیفه رحمه الله د چانه تپوس وکړو چې په لاس کې نصف دیت دی بیا په لس درهمو سره ولې کټ کولی شي؟ هغه وفرمایل: **لما كانت اليد امينة كانت ثمينة فلما خانت هانت.**

**جواب**: دې حضراتو چې د آیت نه کوم استدلال کړی دی د هغې جواب دا دی چې آیت پخپله مجمل دی ددې تفصیل په احادیثو کې دی لهذا مطلق آیت نه استدلال نه شي کولی. باقي د حضرت ابوهریره رضي الله عنه د روایت جواب جمهورو داسې کړی دی چې په دې حدیث کې د غلا د نصاب بیانول مقصود نه دي بلکه په دې کې د غل په عادت باندې خبرداری ورکړی شوی دی چې دا واړه واړه څیزونه د قطع د ید د پاره سبب نه دی خو په دې سره د غلا عادت جوړیږي، او بیا د سرقې د نصاب پورې د غلا نوبت ورسي او لاس کټ کړی شي نو په دې کې د شروع کولو ذکر دی د نصاب بیان نه دی شوی، بعضو علماؤ لیکلي دي چې د بیضه نه مراد هګۍ نه ده بلکه د وسپنې فوجي ټوپۍ ده او د هغې قیمت د سرقې نصاب ته رسي د غه شان د رسۍ نه مراد وسپنه یا د نورو قیمتي څیزونو رسۍ ده چې د هغه قیمت د سرقې نصاب ته رسي، یا د هغه عادت والا خبره ده.

**د سرقې په نصاب کې د جمهورو په خپل مینځ کې اختلاف**: د جمهورو په خپل مینځ کې اختلاف دی چې د قطع ید د نصاب مقدار څومره دی؟ د امام شافعي رحمه الله په نزد ربع دینار نصاب دی او د نصاب په مقررولو کې سرو زرو ته بنیادي حیثیت حاصل دی، د آئمه احنافو په نزد نصاب د قطع ید لس دراهمه دی، د امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد د سرقې نصاب ربع دینار دی، یا د دې قیمت درې دراهمه دی، ددې حضراتو په نزد په نصاب کې اصل او بنیادي څیز سپین زر دي، د شوافعو او مالکیانو او د حنابلو په مینځ کې اختلاف لفظي دی ځکه یو دینار د دولسو درهمو وي د هغه ربع د ټولو په نزد درې درهمه دي، په اصل کې اختلاف د جمهورو او احنافو په مینځ کې دی او د دواړو سره قابل اعتماد دلائل دي. (المرقات ۷/۱۷۳، ۱۷۲)

**دلائل**: جمهور د هغه ټولو احادیثو نه استدلال کوي چې په هغې کې د ربع دینار یا د ثلاثة دراهمو ذکر دی، لکه چې د حضرت عائشې رضی الله عنها په روایت نمبر ۱ کې د ربع ذکر دی، د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په روایت نمبر ۲ کې د ثلاثة دراهم او د ډهال ذکر دی. د آئمه احنافو سره ددې متعلق ډیر روایات دي. ( المرقات ۷/۱۷۳)

(۱) دحضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روایت په ترمذی کې دی : **قال لاقطع الا في دينار اوعشرة دراهم** (ترمذی ج۱ ص۲۶۸) دا روایت په څو طرقو سره د الفاظو په څه تغیر سره نقل دی په بعضو کې ارسال دی، بعضو کې اتصال دی، خو شرعی مقادیر چې په کومو روایتونو کې ذکر دي هغه د مرفوع په حکم کې وي، په طبراني کې همدا روایت داسې دی: **عن ابن مسعودعن النبی صلی الله علیه وسلم قال لاقطع الا في عشرة دراهم** (رواه الطبرانی فی الاوسط)

**(۲) وعن ابن عباس رضی الله عنه قال قطع النبی صلی الله علیه وسلم ید رجل فی مجن قیمته دینار او عشرة دراهم** (ابوداؤد)

**(۳) وعن عبدالله بن عمر قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لاقطع دون عشرة دراهم** (طحاوی)

**(۴) عن ابن مسعود قال یقطع الید علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم فی عشرة دراهم وعنه قال لایقطع ید السارق فی اقل من عشرة دراهم.**

(۵) په مصنف ابن ابي شیبه کې ذکر دي چې د حضرت عمر رضي الله عنه په دور خلافت کې یو سړی راوستلی شو چې هغه کپړه پټه کړې وه حضرت عثمان رضي الله عنه وفرمایل چې دد ې قیمت ولګوئ دوی چې قیمت ولګوله نو آته درهمه قیمت یې راوتلو **فلم یقطعه** حضرت عمر رضي الله عنه د هغه لاس کټ نه کړو ځکه چې د لسو درهمو نه غلا کمه وه. (کذافی زجاجة المصابیح ج۳ ص۸۲)

د صحابه کرامو په مخکې د عمر رضي الله عنه دا فیصله اوپه دې باندې د ټولو خاموش پاتې کیدل اجماع سکوتي ده، لهذا د لس درهمو په نصاب باندې د صحابه کرامو اجماع هم ده (پس دراهم د اوه نیمو ماشو چاندي ده).

**جواب** : ائمه احنافو د جمهورو د استدلال نه دا جواب کړی دی چې د قطع ید د نصاب مدار ثمن مجن یعني د ډهال قیمت دی او د ډهال قیمت د زمانې په اعتبار سره بدلیږي رابدلیږي، حضرت عائشې رضي الله عنها دې لره د ربع دینار قیمت په زمانه کې ولیدلو نو داسې یې بیان وفرمایلو ابن عمر رضي الله عنه درې د درهمو د قیمت په زمانه کې ولیدلو نو دهغې تذکره یې وکړه، بیا داسې وخت راغی چې دد ې قیمت یو دینار یا دس درهمه شو او هم دې لره احنافو اخستی دی څنګه چې په ابوداؤد کې ذکر دی.

نسائی او بیهقی او طحاوی د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه قول نقل کړی دی **قال کان ثمن المجن**

على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم يقوم عشرة دراهم دا واضحه خبره ده چې د ډهلل د قيمت استقرار په لسو درهمو باندې شوی وو. دا رنګه احناف وايې چې دلته د حد لګولو او د لاس کټ کولو معامله ده او د حد د حکم معمولي شبهې سره ساقط کيږي، اوس د لس درهمو نه کم مقدار چېرته چې هم ذکر دی په هغې باندې شبهه راغله، لهذا د دې په بنياد باندې به حد نه نافذ کيږي ځکه چې ادرءوا الحدود بالشبهات واضحه ضابطه ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تُقْطَعُ

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې هغوی وفرمايل چې د غل لاس دې په هغه

يَدُ السَّارِقِ إِلَّا بِرُبْعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

صورت کې کټ کړی شي کله چې هغه د ځلورمې حصې د دينار يا د دې نه د زيات ماليت غلا کړی وي

نوټ: دا روايت د شوافعو او حنابلو او مالکيانو مستدل دی د دې جواب شوی دی.

﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَ سَارِقٍ فِي مِجَنٍّ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو ډهال په غلا باندې چې د هغې

ثَمَنُهُ ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

قيمت درې درهمه وو د غل لاس کټ کړو. (بخاري ومسلم)

نوټ: د دې روايت نه هم جمهورو استدلال کړی دی د دې جواب هم په تفصيل سره تير شوی دی.

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې هغوی وفرمايلچه په غل باندې

«لَعَنَ اللهُ السارِقَ يسرقُ البيضةَ فتُقطعُ يَدُهُ وَيسْرق الْحَبل

دې د الله تعالی لعنت وي چې هغه بيضه پټه کړي او د هغه لاس کټ کړی شي او رسی پټه کړي او د

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۲/۹۶ رقم الحديث ۶۷۸۹، ومسلم فی صحيحه ۳/۱۳۱۲ رقم الحديث (۱۶۸۴-۲) وأبوداود فی السنن ۴/۵۴۵ رقم الحديث ۴۳۸۳ والترمذی فی ۴/۴۰ رقم الحديث ۱۴۴۵ والنسائی فی ۸/۷۹ رقم الحديث ۴۹۲۸ وابن ماجه ۲/۸۶۲ رقم: ۲۵۸۵.

(۲) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۲/۹۷ رقم الحديث ۶۷۹۸ ومسلم فی ۳/۱۳۱۲ رقم الحديث (۱۶۸۶-۶) وأبوداود فی السنن ۴/۵۴۷ رقم الحديث ۴۳۸۵ والترمذی فی ۴/۴۰ رقم الحديث ۱۴۰۴۶. وابن ماجه فی ۲/۸۶۲ رقم الحديث ۲۵۸۴.

| |
|---|
| فتقطع يَدُهُ» (متفق عليه)[1] |
| هغه لاس کټ کړی شي. (بخاري و مسلم) |

**نوټ**: په دې روایت باندې جمهورو فتوی نه ده ورکړې صرف د اهل ظواهرو او د حسن بصري رحمه الله مسلک په دې باندې مبني دی، د دې جواب هم په تفصیل سره مخکې تیرشوی دی، یو جواب دا هم دی چې د دې حدیث تعلق د حکامو سره دی چې هغه دا سې د ورو غلو د پاره بطور تعزیر سزا مقرر کړې، د دې د پاره چې د لویو غلاګانو نه خلق منع شي، یا دا حکم د اسلام په ابتداء کې وو بیا منسوخ شو.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### د میوو و غیره په غلاکې دلاس کټ کولو سزا شته او که نه؟

| |
|---|
| ﴿۴﴾ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت رافع بن خدیج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل چې په |
| «لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا كَثَرٍ» رَوَاهُ مَالِكٌ |
| ونه کې موجوده میوې او د کهجورې سپین مغز په غلاکې دلاس کټ کولو سزا نشته دی. (روایت کړې دې مالک، |
| وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ (حسن)[2] |
| ترمذی، ابوداؤد، نسائی، دارمی، ابن ماجه) |

**توضیح : لاقطع فی ثمرولا کثر**: کثر کاف او په ثاء دواړو باندې زبر دی د کهجورو ګل مراد دی چې بالکل په ابتداء کې رابنکاره شي خلق دا خوري یا د دې په ګل کې د ننه د چربۍ په شان سپین مغز وي دا هم خلق خوري دی، جمار د جیم په پیش سره هم دی، ثمر هرې هغه تازه میوې ته وایې چې په ونو کې لګیدلې وي خو عام اطلاق یې په کهجوره باندې کیږي، کله چې کهجورې د ونو نه راوشوکولی شي نو اوس د ثمر په ځای دې ته رطب وایې، او کله چې ذخیره کیدو سره وچ کړی شي نو دې ته تمر وایې (کذا فی النهایة) بعضو د ګلونو غوټو ته کثر ویلی دی، بهرحال د دې څیزونو کې قطع د ید په دې وجه سره نشته دی چې د سرقې د پاره مال محرز او محفوظ کیدل ضروري دي د لته

---

(1) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۹۷ رقم الحدیث ۶۷۹۹ ومسلم فی ۳/۱۳۱۴ رقم الحدیث (۷/۱۶۸۷) والنسائی فی ۸/۶۵ رقم الحدیث ۴۸۷۳ وابن ماجه فی ۲/۸۶۲ رقم الحدیث ۲۵۸۳. وأحمد فی المسند۲/۲۵۳.

(2) أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۵۴۹ رقم الحدیث ۴۳۸۸ والترمذی فی ۴/۴۲ رقم الحدیث ۱۴۴۹ والنسائی فی ۸/۸۷ رقم الحدیث ۴۹۶۰.

محفوظ نه دی. (المرقات ۱۷۷/۷).

**دفقهاؤ اختلاف**: په دې باندې د ټولو اتفاق دی چې په ونو کې موجودو میوو کې قطع د ید نشته دی اختلاف په دې کې دی چې کله میوې خپلو ځایونو او کورونو ته راشي نو محرز او محفوظ شوې نو ایا په دې کې قطع دید شته یا نشته دې کې اختلاف دی جمهور وایي چې دداسې قسمه میوو په غلا کې قطع دید شته که هغه اوسه پورې لمدې میوې وي یا وچې وي امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې هر هغه څیز چې زر خرابیدو والا وي که هغه میوه وي یا پې وي یا کب (ماهی) وي یا غوښه وي یا داسې قسم سبزي وي، یا تیار شوی خوراک وي، په دې ټولو څیزونو کې د ید قطع نشته دی، ها هر کله چې درمن یا کور ته راوړو سره وچې شي نو بیا قطع د ید شته دی. (المرقات ۱۷۷/۷)

**دلائل**: جمهورو د راتلونکي د حضرت عمرو بن شعیب د روایت نه استدلال کړی دی او هغوی دا هم قیاس کوي چې د دې څیزونو په غلا باندې د سرقې د لفظ اطلاق کیږی لهذا دا غلا ده او په غلا کې د ید قطع ده، نو جمهورو سره یو نقلي او یو عقلي دلیل دی، امام ابو حنیفه رحمه الله د مذکوره حدیث نه استدلال کړی دی چې **فی ثمر** دا نکره تحت النفي ده او په دې کې عموم دی. مطلب دا چې په څه تازه میوه یا سریع الفساد څیزونو کې قطع دید نشته دی، لهذا په څه تازه میوه کې قطع د ید نشته دی که هغه محرز فی البیت وي یا په درمن کې محفوظ وي نفې عامه ده. (المرقات ۱۷۸/۷)

**جواب**: باقي د عمرو بن شعیب د روایت تعلق د وچې میوې سره دی یا هغه روایت د دې رافع والا د روایت مقابله نه شي کولی او کله چې په حدیث سره د دې استدلال ثابت نه شو نو د حدیث رافع په مقابله کې قیاس پیش کول مناسب نه دي.

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ |
| او حضرت عمرو بن شعیب د خپل والد نه او هغه د خپل نیکه حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه |
| عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ |
| او هغه د نبی صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې د نبی ﷺ نه په ونه کې د موجوده میوو باره کې تپوس وکړی شو |
| قَالَ: «مَنْ سَرَقَ مِنْهُ شَيْئًا بَعْدَ |
| نو هغوی وفرمایل چې کچیرې یو کس په دې میوو کې څه څیز هغه وخت پټ کړي هر کله چې هغه د |
| أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينَ فَبَلَغَ ثَمَنَ |
| ونو نه راشو کولو سره جمع کړی شوی وي او د (د دې پټو کړی شوو میوو) قیمت د یو ډهال د قیمت |

جلد 5 39

| | |
|---|---|
| الْمِجَنِّ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] | |
| برابر وي نو هغه به د قطع د يد سزا وار وي. (ابوداؤد، نسائی) | |

## په غير مملوکه غرييزو څناورو باندې د غلا اطلاق نه کيږي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ الْمَكِّيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | |
| او حضرت عبدالله بن عبدالرحمن ابن ابو حسين مکي نه روايت دی چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: | | | | | |
| قَالَ: | «لَا | قَطْعَ | فِي | ثَمَرٍ | معلَّقٍ |
| دلاس کټ کولو سزا نشته دی په ونو باندې په موجوده ميوو کې او په غرونو کې د څريدونکو څاروو | | | | | |
| وَلَا | فِي | حَرِيسَةِ | جَبَلٍ | فَإِذَا | آوَاهُ |
| په مقدمه کې ها کچيرې څوک سړی يو غرييز څاروی لره د څاروو د تړلو ځای ته راوستلو سره وتړي | | | | | |
| الْمُرَاحُ | . | وَالْجَرِينُ | | فَالْقَطْعُ | فِيمَا |
| يا ميوې د (اوچيدو نه پس) په درمن کې جمع کړي نو دهغې په غلا کې به دلاس کټ کولو سزا ورکولی | | | | | |
| بلغ | ثمن | الْمِجَنِّ». | رَوَاهُ | مَالِكٌ[2] | |
| شي په شرط د دې چې د شئ مسروقه ماليت د يو ډهال د قيمت په قدر يا د دې نه زيات وي. (مالک) | | | | | |

**توضيح: حريسة جبل:** حريسه د محروسه په معنی سره او محروسه د محفوظه په معنی سره دی، او جبل غرته ويلی شي، مطلب دادی چې مثلاً يو څناور په غر باندې څريږي او هلته شپه تيروي، او س که هغه چا پټ کړو نو د غل لاس به نه شي کټ کولی په دې وجه چې دا مال محرز او مال محفوظ نه دی، او که يو کس دا څناور د غرنه راونيول او کورته يې راوستل او غل دا پټ کړي، نو او س په دې کې قطع د يد ده، نو د محروسة جبل مطلب دا شو چې صرف غر هغې ته حفاظت ورکوي نور څوک محافظ يې نشته دی، نو په دې کې لاس کټ کول نشته دی او ثمر معلق په ونو باندې لګيدلې موو ته ويلی شي

**الجرين:** دا درمن ته هم وايې او د کهجورو د وچولو ځای ته هم وايې، نو کله چې ميوې وچې شي او

---

([1]) أخرجه أبوداود فى السنن ۲/۳۳۵ رقم الحديث ۱۱۷۱۰ الترمذى فى ۳/۵۸٤ رقم الحديث ۱۲۸۹ والنسائى فى ۸/۸٤ رقم الحديث ٤٩٥٧ وأحمد فى المسند ۲/۲۰۷.

([2]) أخرجه مالک فى المؤطأ ۲/۸۳۱ رقم الحديث ۲۲ من كتاب الحدود.

دغه شان د محفوظ مقام نه غلا وکړی شي نو په اتفاق سره د لاس کټ کول دي په شرط د دې چې نصاب د قطع ته ورسيږي.

المراح د څاروو د تړلو ځای ته وايي چې هغې ته ځنګې وايي. (المرقات ۱۸۰/۷، الکاشف ۱۷۶/۷)

## د ډاکو سزا لاس کټ کول نه دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ عَلَى |
| او حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل د ډاکو سزا د لاس کټ کول نه دي او کوم |
| الْمُنْتَهِبِ قَطْعٌ وَمَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً مَشْهُورَةً فَلَيْسَ مِنَّا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| سړی چې خلقو له لوټ کوي هغه زمونږ نه نه دی (يعني زمونږ په خو دل شوې لار باندې تللو والا نه دی). |

**توضيح: المنتهب:** دا ډاکو او شوکې کونکي ته وايي دا سړی او دده کردار اګر چې دغل نه ډير زيات دی خو شريعت چې د غلا او سرقې کوم مفهوم پيش کړی دی په دې کې د چا محفوظ مال پټ په پټه د اخستلو مفهوم دی، لهذا قطع د يد په سرقه کې ده، او په نهبه کې نشته، د دې فرق نه معلومه شوه چې په شريعت کې باريک او دقيق فروق له هم نظرانداز نه کړی شول د انتهاب سزا جدا ده چې د مرتدينو په باب کې بيان کړی شوې ده (المرقات ۱۸۲/۷، ۱۸۱)

## خائن د قطع يد سزاوار نه دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَيْسَ عَلَى خَائِنٍ وَلَا مُنْتَهِبٍ |
| او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې نبي عليه السلام او فرمايل د خيانت کونکې او لوټ کونکي او د تختونکي لاس |
| وَلَا مُخْتَلِسٍ قَطْعٌ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ والدارمي)[2] وَرُوِيَ فِي «شَرْحِ السُّنَّةِ»: |
| کټ کول مشروع نه دي. (ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي) او صاحب مصابيح په شرح السنة کې دا روايت نقل کړی دی |
| أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ[3] قَدِمَ الْمَدِينَةَ فَنَامَ فِي الْمَسْجِدِ وَتَوَسَّدَ رِدَاءَهُ |
| چې (يوه ورځ) حضرت صفوان بن اميه مدينې ته تشريف راوړو او په مسجد کې يې د سرلاندې خپل څادر |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵۵۱/۴ رقم الحديث ۴۳۹۱ وأحمد في المسند ۳۸۰/۳.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵۵۲/۴ رقم الحديث ۴۳۹۳ والترمذي في ۴۲/۴ رقم الحديث ۱۴۴۸ والنسائي في ۸۸/۸ رقم الحديث ۴۹۷۲.

(۳) أخرجه مالک في الموطأ ۸۳۴/۲ رقم الحديث ۲۸ من کتاب الحدود.

فَجَاءَ سَارِقٌ وَأَخَذَ رِدَاءَهُ

كيخودلو او ده شوېدې (دوران) كې يو غل راغلو او هغه ترې هغه څادر (په مزه سره راخكلو (او تختيدل يې غوښتل)

فَأَخَذَهُ صَفْوَانُ فَجَاءَ بِهِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خو صفوان رضي الله عنه هغه ونيولو او دنبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كې يې راوستلو (او واقعه يې بيان كړه،

فَأَمَرَ أَنْ تُقْطَعَ يَدُهُ فَقَالَ صَفْوَانُ:

نبي عليه السلام دهغه دلاس كټ كولو حكم وركړو. د حضرت صفوان رضي الله عنه (پرې رحم راغلو او هغه وويل

إِنِّي لَمْ أُرِدْ هَذَا هُوَ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

چې ده لره ماستاسو په خدمت د راوستلو اراده دا نه وه ماخپل څادر ده ته صدقه كړو رسول الله صلى الله عليه وسلم

«فَهَلا قبل أَن تَأْتِيَنِي بِهِ»

وفرمايل بيا دې دده ما ته د راوستلو نه مخكې خپل څادر ده ته ولې نه صدقه كولو او ده لره دې

وَرَوَى نَحْوَهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ عَبْدِ اللهِ بن صَفْوَان عَن أَبِيه[1]

ولې نه معاف كولو. دغه شان روايت ابن ماجه عبد الله بن صفوان نه او هغه دخپل پلار (حضرت صفوان رضي الله عنه

والدارمي عَن ابْن عَبَّاس (صَحِيح)[2]

نه) كړى دى او دارمى رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل كړى دى.

**توضيح : على خائن:** خائن هغه سړي ته وايي چې دچا په امانت كې خيانت كوي يا بالكل ددې نه انكار كوي، دا اګرچه ډېره لويه ګناه ده خود سرقې خپل قواعد دي هغه ضابطې دلته نه پوره كيږي ځكه چې دا مال په يو لحاظ سره محرز نه دى ځكه چې دا د هغه په خپل لاس كې دى.

**ولا مختلس:** اختلاس د راشوكولو په معنى سره دى دا اګرچې لويه ګناه ده خو دسرقې تعريف په دې باندې نه صادقيږي لهذا د يد قطع نشته دى. (المرقات ۸۲/۷)

**فقال صفوان اني لم ارد هذا:** په مسجد كې چې كوم سړى اوده وو او څادر دهغه لاندې وو دا مال محرز محفوظ وو ددې په غلا سره لاس كټ كول ضروري وو مګر صفوان ته چې كله اندازه وشوه چې دا خو ددې بيچاره لوى نقصان وشو نو صفوان وويل چې څادر صدقه دى لاس دې كټ نه كړى شي نبى

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۸۶۵ رقم الحديث ۲۵۹۵ وأحمد في المسند ۳/۴۰۱ (راجع الحديث السابق)

(۲) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۲۲۶ رقم الحديث ۲۲۹۹ وأخرجه النسائي في السنن ۸/۶۹ رقم الحديث ۴۸۸۲.

علیه السلام وفرمایل چې دا خبره به تاهغه وخت کولی کله چې دې مال د غل نه راوښتلو د راوښتلو او دجرم ثابت کیدو نه پس اوس داحکم دحقوق العباد نه وتلو سنره په حقوق الله کې داخل شو، لهذا اوس یې ته نه شي معاف کولی نو دپوره امت په دې باندې اتفاق دی چې د یو حد د ثابتیدو نه پس او د حکم اورولو نه پس هیڅوک دا نه شي معاف کولی. (المرقات ۱۸۲/۷)

## د جهاد په سفر کې دې دغل لاس کټ نه کړی شي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ بُسْرِ بْنِ أَرْطَاةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت بسر بن ارطاة رضي الله عنه وائی چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا فرمان واوریدلو چې په |
| «لَا تُقْطَعُ الْأَيْدِي فِي الْغَزْوِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ |
| غزوه کې به د قطع ید سزا نه نافذیږي (دې روایت لره ترمذی، دارمی، ابوداؤد او نسائی نقل کړی دی |
| إِلَّا أَنَّهُمَا قَالَا: «فِي السَّفر» بدل «الْغَزْوِ»[1] |
| خو ابوداؤد او دنسائی په روایت کې د غزوې په ځای د سفر لفظ دی. |

**توضیح: لاتقطع الأیدي في الغزو:** ددې یو مطلب دادی چې د مال غنیمت په غلا کې قطع د ید نشته دی، ځکه په دې کې شبهه راغله په دې وجه چې په مال غنیمت کې ټول مجاهدین شریک دي نو کومه حصه چې هغه پټه کړه په هغې کې دا پخپله هم شریک دی، دویم مطلب دادی چې په میدان جهاد کې کچیرې یو مجاهد غلا وکړه او هغه دمال غنیمت نه هم نه دی نو دهغه لاس دې بیا هم کټ نه کړی شي په دې وجه چې ډیره ممکنه ده چې د هغه به زړه مات شي او کفارو طرفته به وتختي او مرتد به شي په دې وجه اوس صبر وکړئ کله چې واپس دار اسلام ته ورسیدو نو بیا به په ده باندې حد نافذ کړو. په میدان جهاد کې دحد نه نافذ کولو یوه وجه دا هم ده چې هلته محکمه عدالت چیرته دی قاضی چیرته دی او امیر چیرته دی؟ امیر حرب لره د تنفیذ احکامو اختیار نشته دی. د جمهورو علماؤ خیال دی چې د غلا نه پس به حد په هر ځای کې نافذیږي که هغه درالحرب وي یا دارالارسلام وي، هغوی قطع د ید لره په نورو عباداتو باندې قیاس کوي چې مونځ روژه وغیره عبادات او ددې قواعد او ضوابط په دارالحرب کې موجود وي، لهذا د قطع د ید او د حدودو تنفیذ هم هلته کیدل پکار دی. د احنافو سره صریح او صحیح احادیث دي چې قطع د ید په جهاد کې نشته، یو روایت کې د غزوه په ځای فی السفر عبارت دی، طیبی ویلي دي چې سفر نه مراد جهاد دی. (المرقات ۱۸۴/۷)

---

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۵۶۳ رقم الحدیث ۴۴۰۸ والترمذی فی ۴/۴۳ رقم الحدیث ۱۴۵۰ والنسائی فی ۸/۹۱ رقم الحدیث ۴۹۷۹.

## په دويم دريم ځل دغلا کولو سزا

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم |
| او حضرت ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا نقل کوي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ فِي السَّارِقِ: «إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُو ايَدَهُ |
| د غل په باره کې و فرمايل کله چې هغه غلا وکړي نو د هغه (ښې) لاس دې کټ کړی شي، بيا که چيرې |
| ثُمَّ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوا رِجْلَهُ ثُمَّ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوا يَدَهُ |
| غلا وکړي نو د هغه (گسه) خپه دې کټ کړی شي بيا کچيرې غلا وکړي نو د هغه گس لاس دې کټ کړی شي |
| ثُمَّ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوا رِجْلَهُ». رَوَاهُ فِي شرح السّنة[1] |
| او که بيا غلا وکړي نو د هغه (ښې) خپه دې کټ کړی شي. (شرح السنة) |

**توضيح**: **ثم ان سرق**: په دې باندې دفقهاو اتفاق دی چې اولاً په غلا کولو سره دې ښې لاس کټ کړی شي او ثانيًا دې په غلا کولو باندې گسه خپه کټ کړی شي خو ددې نه پس په دريم ځل به څه کول وي په دې کې دفقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۱۸۹/۷)

**دفقهاؤ اختلاف**: جمهور فرمايي چې که چيرې په دريم ځل دغلا ارتکاب وکړي نو دده گس لاس دې کټ کړی شي، او په څلورم ځل دې ترې ښې خپه کټ کړی شي دې دپاره چې لنډی بوچې پاتې شي. د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد په دريم ځل او څلورم ځل باندې قطع د يد نشته دی. په دې وجه چې په دې سره به هغه سړی بالکل معطل (بيکاره) کيدو سره دهيڅ کار پاتې نه شي داسې سړی دې دائمي په جيل کې واچولی شي، ها که دتعزير او مصلحت او سياست په بنياد باندې ټول اندامونه کټ کړی شي نو داسې کيدی شي.

**دلائل**: جمهورو دمذکوره حديث نه استدلال کړی دی په کوم کې چې دټولو اندامونو دکټ کولو ذکر دی. احنافو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دفيصلې او د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دفتوی نه استدلال کړی دی، حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي: **انی لأستحيي من الله ان لا ادع له يدا يبطش بها ورجلا يمشي بها** يعنی ماله دالله تعالی نه حياء راځي چې زه يې په داسې حالت کې پريږدم چې هغه نه خوړلی شي او نه څه ځکلی شي او نه استنجاء کولی شي. امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چې ددې حديث نه معلومه شوه چې هغه مخکنی حديث منسوخ الحکم دی ځکه چې ټول اندامونه ختمول دراصل انسان لره ختمول دي

[1] أخرجه مرقاة المفاتيح ۷/۱۷۰ رقم الحديث ۳۶۰۲.

حالانکه ددې دپاره دقصاص نظام قائم دی. ( المرقات ۷/ ۱۹۰)

﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: جِيءَ بِسَارِقٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یو غل راوستلی شو نو

قَالَ: «اقْطَعُوهُ» فَقُطِعَ ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّانِيَةَ

نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ حکم ورکړو چې دده (ښي) لاس کټ کړئ نو دهغه لاس کټ کړی شو، دوباره بیا هغه راوستلی شو

فَقَالَ: «اقْطَعُوهُ» فَقُطِعَ

نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ حکم ورکړو چې (دده ګسه خپه) کټ کړئ، نو دهغه (ګسه خپه) کټ کړی شوه، بیا

ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّالِثَةَ فَقَالَ: «اقْطَعُوهُ» فَقُطِعَ

په دریم ځل راوستلی شو نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ حکم ورکړو (دده ګس لاس) کټ کړئ، نو د هغه ګس لاس کټ کړی شو

ثُمَّ جِيءَ بِهِ الرَّابِعَةَ فَقَالَ: «اقْطَعُوهُ» فَقُطِعَ

بیا په څلورم ځل راوستلی شو نو وې فرمایل چې (دده ښې خپه) کټ کړئ، نو دهغه (ښې خپه) کټ

فَأُتِيَ بِهِ الْخَامِسَةَ فَقَالَ: «اقْتُلُوهُ»

کړې شوه، او بیا په پنځم ځل راوستلی شو نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ حکم ورکړو چې دا ووژنئ، نو مونږه هغه

فَانْطَلَقْنَا بِهِ فَقَتَلْنَاهُ ثُمَّ اجْتَرَرْنَاهُ فَأَلْقَيْنَاهُ فِي بِئْرٍ

ونیولو او بو موتللو او مړ مو کړو، ددې نه پس مونږ دهغه لاش راښکلو او کوهي کې مو واچولو

وَرَمَيْنَا عَلَيْهِ الحجارةَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1]

اودپاسه مو پرې کاڼي وروغورزول ( روایت کړې دې ابوداؤد، نسائی) او امام بغوی رحمه الله

وَرُوِيَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ فِي قَطْعِ السَّارِقِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

په شرح السنة کې دغل دلاس کټ کولو په باره کې دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا فرمان نقل کړی دی

«اقْطَعُوهُ ثُمَّ احسموه»[2]

چې دده لاس کټ کړه او بیا دده (لاس) ته داغ ورکړه.

---

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٥٦٥ رقم الحديث ٤٤١٠.

(۲) أخرجه مرقاة المفاتيح ٧/١٧٤ رقم الحديث ٣٦٠٤.

**توضیح : فقطع** : دا څلور ځل دی او بیا هم د غلا کولو په وجه سره ترې خپه کټ کړی شوه، د جمهورو په نزد خو دا ترتیب دی چې ټول اندامونه کټ کړئ، احناف فرمائي چې دا یو جزئي واقعه ده د مزید لاش کټ کولو نه ده بلکه په دریم ځل د غل د همیشه دپاره په جیل کې د بندولو حکم دی په دې حدیث کې په پنځم ځل غلا کولو باندې د لاس کټ کولو په ځای باندې د قتل کولو ویلی شوي دي او په دې عمل هم وکړی شو، احناف دد دې جواب ورکوي چې دا مسلسل قطع او بیا قتل کول دا یا منسوخ دی او یا د تعزیر حصه ده، یا قتل سیاسةً او حکمةً دی، یا دا سړی مرتد شوی وو او دده د لاش په راخکلو سره د ورلو نه معلومیږي چې دا صورت د ارتداد وو یا د بغاوت وو ورنه د لاش بې حرمتی به نه کیده، هلته په صحیح او صریح حدیث کې راغلې دي چې د یو مسلمان قتلول د درې خبرونه علاوه نه کیږي: اول دا چې څوک واده کړی وي او زنا وکړي، یا هغه څوک قتل کړی وي، او یا مرتد شوی وي، دد دې درې خبرو نه علاوه یو مسلمان لره قتلول ډیر لوی جرم دی. (المرقات ۱۸۲/۷)

## سزا لره باعث د عبرت جوړول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ: أُتِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسارِقٍ |
| او حضرت فضاله بن عبید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یو غل راوستلې شو |
| فَقُطِعَتْ يَدَهُ ثُمَّ أَمَرَ |
| نو (د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په حکم سره) د هغه لاس کټ کړی شو بیا هغوی حکم ورکړو چې دده کټ شوی لاس |
| بِهَا فَعُلِّقَتْ فِي عُنُقِهِ. |
| دده په څټ کې زوړند کړئ (دې دپاره چې نورترې عبرت واخلي) نو هغه د هغه په څټ کې زوړند کړی شو. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ[1] |
| (روایت کړې دې ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه) |

**توضیح : فعلقت فی عنقه** : یعنی د غل د کټ شوې لاس یې د هغه په څټ کې د زوړندولو حکم ورکړو. نبی علیه السلام دا په دې وجه وکړه چې دا سزا د خلقو دپاره باعث عبرت جوړه شي او نور خلق دد دې جرم نه ځان وساتي، دا رنګه تاریخ ګواه دی چې یو ځل نیم په دا سې کولو سره اسلامي معاشره د غلا د ګناهونو نه پاکه شوه لاس کټ کول د غلا سره لازم دي خو لاس په څټ کې زوړندول باعث د عبرت

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۵۶۷ رقم الحدیث ۴۴۱۱ والترمذی فی ۴/۴۱ رقم الحدیث ۱۴۴۷ والنسائی فی ۸/۹۲ رقم الحدیث ۴۹۸۲.

دی او په قرآ ن کریم کې نکالامن الله کې دې طرف ته اشاره هم موجوده ده، لهذا سزا لره باعث دعبرت جوړول جائز دي. امام شافعي او امام احمدبن حنبل فرمائي چې په څټ کې لاس زوړندول په قطع دید کې مسنون دی داسې کول پکاردي او ددې حدیث نه یې استدلال کړی دی.

امام ابوحنیفه فرمايي چې دا عمل د قطع د ید سره سیاسةً او مصلحةً او عبرةً دی دا څه مستقل سنت نه دی ځکه چې نبی علیه السلام دوام سره ددې التزام نه دی کړی، دقاضی د رايې به اعتبار وي، بهرحال کومو خلقو چې دطالبانو شرعی حدودو ته وحشیانه ویلې دي یا چیرته چې هم دشرعی حدودو نفاذ ته وحشیانه عمل وايي داخلق یاخو دلاندې درجې جاهلان دي، یادامنافقان دي او یاکافران دي، لږ اوګورئ په شریعت کې خو دومره قدر سختي هم جائز ده په دې کې په هغه خلقو هم رد دی چې وايي په نرمۍ یې پوهه کړه سزا مه ورکوه. (المرقات ۱۹۲/۷)

## هر کله چې شبهه راغله نو لاس به نه شي کټ کولی

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا سَرَقَ |
| او حضرت ابو هریره رضی الله عنه وائی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کچیرې غلام غلا وکړي |
| الْمَمْلُوكُ فَبِعْهُ وَلَوْ بِنَشٍّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْن مَاجَه[1] |
| نو هغه خرڅ کړه اګرچې د نش په بدله کې خرڅول ولې نه وي. روایت کړې دي ابوداؤد او نسائی او ابن ماجه |

**توضیح**: **نَشٌّ**: دنون په زبر او شین مشدد دی دا نیمه اوقیه یعنی شل دراهمو ته وايي مراد دادی چې کله غلام غلا وکړي او دغلا عادت جوړشي نو هغه په لږو او سپکو پیسو باندې خرڅ کړه، او س دلته دا مسئله ده چې که غلام دخپل آقا نه غلا وکړي نو دهغه لاس دې کټ کړی شي او که نه؟ نو په دې کې دفقهاؤ اختلاف دی:

**دفقهاؤ اختلاف**: امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمايي چې که غلام دخپل مولی نه غلا وکړي نو دهغه لاس دې کټ کړی شي که هغه غلام تختیدلی وي یا تختیدلی نه وي. امام ابوحنیفه رحمه الله فرمايي چې که غلام دخپل آقا نه یا ښځه دخپل خاوند نه یا خاوند دخپلې ښځې نه یا غلام دخپل آقا د ښځې نه غلا وکړي نو دهغه لاس به نه شي کټ کولی همدا مسلک دامام احمد بن حنبل رحمه الله دی. (المرقات ۱۹۲/۷)

---

(1) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٥٦٧ رقم الحديث ٤٤١٢ والنسائى فى ٨/٩١ رقم الحديث ٤٩٨٠ وابن ماجه فى ٢/٨٦٤ رقم الحديث : ٢٥٨٩.

**دلائل**: د امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله دلیل هغه روایت دی په کوم کې چې راغلي دي چې ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل غل غلام لره سعید ته حواله کړو چې لاس ورله کټ کړي.
حنابله او احناف فرمائی چې غلام د خپل مولی سره په طعام کې شریک دی لهذا د مولی مال د غلام دپاره محرز نه دی په دې کې شبهه راغله. حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د اسې تاوان او قطع د ید لره مسترد کړی هغوی وفرمایل (هو خادمكم اخذ متاعكم) په حدیث نمبر ۱۵ کې دا حدیث راځي. (المرقات ۱۹۲/۷)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## دمجرم دمعاف کولو حق حاکم ته حاصل نه دی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۴﴾عَنْ | عَائِشَةَ | قَالَتْ: | أُتِيَ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمائی چې (یوه ورځ) د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یو غل راوستلی شو او کله | | | | | | | | |
| بِسَارِقٍ | فَقَطَعَهُ | فَقَالُوا: | مَا | | | | | |
| چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه د لاس کټ کولو حکم ورکړو نو صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ عرض وکړو چې مونږ ته دا خیال نه وو | | | | | | | | |
| كُنَّا | نَرَاكَ | تَبْلُغُ | بِهِ | هَذَا | | | | |
| چې تاسو به د لاس کټ کولو حکم فرمایې (بلکه زمونږ گمان خو دا وو چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ به ده لره معاف کړي) | | | | | | | | |
| قَالَ: | «لَوْ | كَانَتْ | فَاطِمَةُ | لَقَطَعْتُهَا». | رَوَاهُ | النَّسَائِيُّ[1] | | |
| نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ (دې او ریدو سره) وفرمایل چې که چیرې فاطمه (بنت محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) هم وی نو ما به د هغې لاس هم کټ کولو. | | | | | | | | |

**توضیح: ما کنا نراک**: دا صیغه مجهوله ویلی شي او ترجمه د معروف کیږي یعنی زمونږ په تاسو دا گمان او خیال نه وو، صحابو د لاس نه کټ کولو خیال په دې وجه سره وکړو چې غالبًا دا سړی د نبی علیه السلام په رشته دارو کې وو یا یې په خاصو متعلقینو کې وو خو نبی علیه السلام دین اسلام او د هغې اصولو ته وکتل او د دې خلقو په تعجب یې په جواب کې وفرمایل چې که د سرقې د حد ارتکاب که زما لور فاطمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا هم وکړي نو د الله تعالی د حکم په مخکې به رکاوټ نه جوړیږم. (المرقات ۱۹۲/۷)

---

(۱) أخرجه النسائی فی السنن ۸/۷۲ رقم الحدیث ٤٨٩٦ وأحمد فی المسند ٦/٤١ .

## کچیرې غلام دخپل مالک نه غلا وکړي نو د هغه لاس به نه شي کټ کولی

﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عُمَرَ بِغُلَامٍ لَهُ فَقَالَ:

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې یو سړې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خپل غلام راوستلو او وې ویل چې د

اقْطَعْ يَدَهُ فَإِنَّهُ سرقَ مرآةً لأمرأتي فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ:

ده لاس کټ کړه ځکه چې ده زما د ښځې آینه (شیشه) پټه کړې وه، خو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل:

لَا قَطْعَ عَلَيْهِ وَهُوَ خَادِمُكُمْ أَخَذَ مَتَاعَكُمْ. رَوَاهُ مَالِك[1]

چې دا د قطع د ید مستوجب نه دی ځکه چې ستاسو خدمتګار دی او هم ستاسو څیزېې اخستی دی. (مالک)

**توضیح:** دا حدیث د ائمه احنافو بهترین مستدل دی چې غلام ته د خپل مولی په مال کې یو قسم شراکت حاصل دی.

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د دې علت طرف ته اشاره وفرمایله چې د غلام په مخکې ستا مال محرز نه دی لهذا قطع د ید نشته ځکه چې شبهه راغله الحدود تندرئ بالشبهات یوه عامه ضابطه ده د دې نه مخکې په حدیث نمبر ۱۳ کې اختلاف د آئمو تیر شوی دی.

دا حدیث د احنافو دلیل دی، او په دې کې علت او وجې طرف ته هم اشاره ده. (المرقات ۱۹۴/۷)

## د کفن پټونکی لاس به کټ کولې شي یا نه؟

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا أَبَا ذَرٍّ»

او حضرت ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې (یو ورځ) رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمایل ای ابو ذر! ما

قُلْتُ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ وَسَعْدَيْكَ قَالَ:

عرض وکړو زه حاضریم ای د الله رسوله! او تابعداریم وې فرمایل څه ارشاد دی؟ نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل

«كَيْفَ أَنْتَ إِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ

ته به هغه وخت څه کوې هرکله چې خلقو لره مرګ، او د قبر ځای به د یو غلام برابر شي (یعنی هغه وخت

يَكُونُ الْبَيْتُ فِيهِ بِالْوَصِيفِ» يَعْنِي الْقَبْرَ

کې د وباء د وجې نه به په دومره کثرت سره مرګونه وي چې د یو یو قبر ځای به د یو غلام د قیمت برابر

---

[1] أخرجه مالک فی الموطأ ۲/۸۳۹ رقم الحدیث ۳۳ من کتاب الحدود.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلْتُ: | اللهُ | وَرَسُولُهُ | أَعْلَمُ. | قَالَ: |

اخستلې شي ، ما عرض وکړو چې ددې متعلق الله او د هغه رسول ښه پوهيږي نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې

«عَلَيْكَ بِالصَّبْرِ» قَالَ حَمَّادُ بنُ أَبِي سُلَيمَانَ: تُقْطَعُ يَدُ النَّبَّاشِ

هغه وخت په تا باندې صبر لازم دی، حضرت حماد بن سلمه وايي چه د کفن د پټونکي لاس به کټ کولی

لِأَنَّهُ دَخَلَ عَلَى الْمَيِّتِ بَيْتَه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

شي ځکه چې هغه د مړي کور ته داخل شوی دی. (ابو داؤد)

**توضيح** : **الوصيف** : ددې جمع وصائف ده چې کوم هلک يا غلام د خدمت قابل شي هغه د نوي عمر بنائسته هلک ته وصيف وايي هم ددې نه **المستوصف** اخستی شوی دی چې د سپنسرۍ ته وايي. (المرقات ۱۹۴/۷)

**نباش** : کفن کش ته وايي دا سړی قبر ته کوزيږي او د مړی نه نوی کفن راوباسي پټوي يې، او س ددې غلا سزا څه ده آيا ده د مال محرز غلا کړې ده يا ددې څه حکم دی؟ په دې کې د فقهاؤ معمولي غوندې اختلاف دی. (المرقات ۱۹۵/۷)

**دفقهاؤ اختلاف** : د جمهورو فقهاؤ په نزد د کفن د پټولو په عمل باندې به د کفن کش لاس کټ کولی شي، د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد به لاس نشي کټ کولی البته بطور تعزير به سزا ورکولی شي.

**دلائل** : جمهورو د زيرنظر حديث نه استدلال کړی دی د استدلال طرز يې عجيبه دی هغه دا سې چې نبی عليه السلام د حضرت ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د يوې زمانې د تنګئ او وبائي مرضونو د وجې نه په کثرت سره د مړګونو طرف ته اشاره کړې ده چې هغه وخت د يو بدن برابر د قبر ځای يعنی مړي د پاره به د يو غلام په عوض کې ملاويږي.

حماد بن ابی سليمان په دې لفظ کې يوه دقيقه نکته پيدا کړې ده چې د مړي قبر د هغه کور دی او په کور کې چې کوم مال وي هغه محفوظ او محرز وي، لهذا کچيرې څوک قبر يعنی د مړي کور ته ننوځي د کفن غلا وکړي نو په دې کې د لاس کټ کيدل پکار دي ځکه چې ده مال محرز لره د پټولو سره غلا وکړه.

جمهورو ددې روايت نه استدلال هم کړی دی په کوم کې چې دي **من نبش قطعنا** (رواه البيهقي) (

---

(١) أخرجه أبوداود في السنن ٥٦٤/٤ رقم الحديث ٤٤٠٩ .

المرقات ۱۹۵/۷)

دجمهورو عقلي دليل دادی چې دکفن کش غل دی او غلا سرقه ده په کومه کې چې قطع د يد ده،

امام ابوحنيفه رحمه الله ددې حديث نه استدلال کړی دی **ليس علی النباش قطع (مصنف ابن ابی شيبه)** دارنګه د حضرت معاويه رضي الله عنه په دور کې په دې مسئله باندې بحث وشو نو عامو صحابو د قطع د يد نه منع وکړه او تعزير يې جاري کړو دهغوی عقلي دليل دادی چې کفن مال محرز نه دی ځکه چې قبرمکان محرز نه دی. (المرقات ۱۹۶/۷)

احنافو دجمهورو دمستدلاتو متعلق ولې دي چې دمحدثينو په نزد دا روايات منکرات دي او که صحيح هم دي نو دا حکم **سياسةً** او **مصلحةً** او زجراً ذکر دی.

**نوټ**: دجمهورو په نزد کچيرې غل يو ځل غلا وکړي نو د قطع د يد دپاره دا اقرار به کافي شي دجمهورو په مقابله کې امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چې کله باربار دغلا اقرار کوي نو بيا خو به غلا ثابته وي او قطع د يد به وي. (المرقات ۱۹۶/۷)

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

# بَابُ الشَّفَاعَةِ فِي الْحُدُودِ

## په حدودو کې دسفارش بیان

په دې باب کې دهغه احادیثو بیان دی دکوم نه چې معلومیږی چې آیا دچادپاره دا جائز دي چې هغه د حاکم په مخکې دا سفارش وکړي چې فلانی مجرم معاف کړه اوپه هغه باندې حد مه جاری کوه او دا چې خبره هم معلومه شي چې حاکم د هغه سفارش دقبلولو اختیار لري یا نه، یاد ساته ددنیا هر هغه قانون به معطل کیږي په کوم کې چې درې رعایتونه پیدا شي: اول د سفارش رعایت، دویم د رشوت رعایت، دریم د رشته داریٔ رعایت. اسلام چونکه یو ژوندی مذهب او ژوندی قانون دی په دې وجه په دې کې دسفارشونو او رعایتونو گنجائش نشته دی چې په هغې سره ددې دا قانون بیکاره شي نو ملا علی قاري رَحِمَهُ اللَّهُ په دې مقام کې لیکلي دي. چې د حدودو مقدمه کله د حاکم عدالت ته ورسي نو په دې کې سفارش کول حرام دي او په دې باندې دامت اجماع ده او که مقدمه تر اوسه پورې لا د حاکم په مخکې نه ده پیش شوې نو حاکم ته درسیدو نه مخکې د اکثرو علماؤ په نزد جائزدی په شرط ددې چې په دې سړي کې شر او فساد نه وي دکوم دپاره چې سفارش کولی شي. د حدودو نه علاوه په تعزیراتو کې سفارش مطلقًا ناجائز دی ځکه چې دتعزیر تعلق نسبتًا د سپک جرم سره دی د بې ځایه او په ځای دسفارش د مفهوم په هرځای کې لحاظ کول پکار دي. ( المرقات ۱۹۸/۷)

### الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### دحد د منعه کولو دپاره سفارش منع دې

<table dir="rtl">
<tr><td>﴿۱﴾ عَنْ</td><td>عائشةَ</td><td>رَضِيَ</td><td>الله</td><td>عَنْهَا</td><td>أَنَّ</td><td>قُرَيْشًا</td></tr>
<tr><td colspan="7">دحضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا بیان دی چې (یو ځل) قریشو رَضِيَ اللَّهُ عَنهُمْ د یوې مخزومي ښځې په باره کې ډیر فکرمند وو</td></tr>
<tr><td>أَهَمَّهُمْ</td><td>شَأْنُ</td><td>الْمَرْأَةِ</td><td>الْمَخْزُومِيَّةِ</td><td>الَّتِي</td><td>سَرَقَتْ</td></tr>
<tr><td colspan="7">چې هغې غلا کړې وه (او د خلقو نه یې عاریهً سامان اخستو سره مکر هم کولو او نبی عَلَيْهِ السَّلَام دهغې دلاس کټ کولو حکم</td></tr>
<tr><td>فَقَالُوا:</td><td>مَنْ</td><td>يُكَلِّمُ</td><td>فِيهَا</td><td>رَسُولَ</td><td>الله</td><td>صَلَّى</td><td>الله</td><td>عَلَيْهِ</td><td>وَسَلَّمَ؟</td></tr>
<tr><td colspan="10">ورکړی وو) دې قریشو صحابو رَضِيَ اللَّهُ عَنهُمْ په خپل مینځ کې مشوره وکړه چې ددې ښځې په مقدمه کې کوم سړی د</td></tr>
<tr><td>فَقَالُوا:</td><td>وَمَنْ</td><td>يَجْتَرِئُ</td><td>عَلَيْهِ</td></tr>
<tr><td colspan="10">نبی عَلَيْهِ السَّلَام سره خبرې اترې (یعنی سفارش) کولی شي او بیا هغوی وویل چې د حضرت اسامه بن زید رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ</td></tr>
</table>

إِلَّا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ حِبُّ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

سره د نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ ډیر محبت او تعلق دی نو په دې وجه د دې متعلق د هغوی سره د څه ویلو جرأت د اسامه نه علاوه بل

فَكَلَّمَهُ أُسَامَةُ. فَقَالَ

څوک نه شي کولې حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د هغه خلقو په ویناباندې) د نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ سره خبرې اترې وکړې.

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَتَشْفَعُ فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللهِ؟»

نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ (د هغه خبرې او ریدو سره) وفرمایل چې ته د الله تعالی په حدودو کې د یو حد په باره کې سفارش کوې.؟

ثُمَّ قَامَ فَاخْتَطَبَ ثُمَّ قَالَ:

او بیا نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ ودریدو او خطبه یې ورکړه او (د حمد او ثنا نه پس یې په دې خطبه کې) وفرمایل

«إِنَّمَا أَهْلَكَ الَّذِينَ قَبْلَكُمْ

چې ستاسو نه مخکې چې کوم خلق تېر شوي دي هغوی د دې څیز هلاک کړل چې په هغوی کې به کوم

أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ

شریف سړي (یعنی د نیاوي عزت او طاقت والا) غلا کوله نو هغه به یې (د سزا ورکولو نه بغیر) پریخودلو

وَإِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ وَايْمُ اللهِ

او که په هغوی کې به کوم کمزوري او غریب سړي غلا کوله نو سزا به یې ورکوله په الله قسم! کچیرې د

لَوْ أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعْتُ يَدَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لور فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم غلا وکړي نو زه به د هغې لاس کټ کوم. (بخاری و مسلم)

وَفِي رواية لمسلم: قَالَتْ: كانت امرأة مخزومية

او د مسلم په یو روایت کې داسې دي چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بیان وکړو د یوې مخزومي ښځې

تَسْتَعِيرُ الْمَتَاعَ وَتَجْحَدُهُ

(د عادت) وو چې هغې به د خلقو نه عاریةً څه څیز واخستلو او بیا به یې ورته انکار کولو، نو نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ د

فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَطْعِ يَدِهَا

هغې د لاس کټ کولو حکم ورکړو. (کله) چې د دې ښځې عزیزانو (ته د دې علم وشو نو هغوی)

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَأَتَى | أَهْلُهَا | أُسَامَةَ | فَكَلَّمُوهُ |

حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته لاړل او دهغه سره يې ددې په باره کې خبرې اترې وکړې (چې هغه نبي عَلَيْهِ السَّلَام

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَكَلَّمَ | رَسُولُ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فِيهَا |

ته سفارش وکړي) او بيا حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته ددې متعلق عرض وکړو. ددې نه د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | ذَكَرَ | الحديثَ | بنحوِ | مَا | تقدَّمَ[1] |

روستو حديث هم هغه الفاظ ذکر دي چې کوم پاس نقل کړی شو.

**توضيح**: **اهمهم**: يعنی قريشو يې پريشانه کړي وو. **المرأة**: دا ښځه فاطمه بنت اسود بن عبد الاسد وه چې دابوسلمه وريره وه. **المخزومية**: يعنی د قريشو دلوي قبيلې بنو مخزوم سره يې تعلق وو. د ابوجهل تعلق ددې قبيلې سره وو. **ومن يجترئ**: يعنې دسفارش جرأت څوک کولی شي يعنې څوک يې نه شي کولی دا استفهام انکاري دی. **حب رسول الله**: يعنې د محبوب رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دالفظ دحا په کسرې سره دی او با باندې شد دی **فاختطب**: اختطاب دخطبې ورکولو په معنی دی، يعنې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دصحابو په مخکې بيان وکړو دې دپاره چې ددې بې ځايه سفارش نوعيت په ټولو باندې واضح شي. **ايم الله**: دا قسم الفاظ دي اي اقسم بالله يعنی دالله قسم خوړلو سره وايم.

**تستعير**: په عاريت باندې سامان غوښتل. **وتجحده** يعنې بيا به يې انکار کولو، شارحين دحديث ليکي چې په دې کلام سره مقصود صرف دهغې ښځې تعارف کول دي، ځکه عاريت باندې اخستلی شوی څيز نه انکار باندې قطع يد واجب نه دی، او په حقيقت کې واقعه هم داسې نه وه بلکه دراصل هغه ښځه دغلا عادت وه. (المرقات ۱۹۸/۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## په حدودو کې رکاوټ اچونکي د الله تعالى مخالفت کوي

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ | عَبْدِالله | بْنِ | عُمَرَ | قَالَ: | سَمِعْتُ | رَسُولَ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسلم | يَقُولُ: |

حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوريدلو چې دکوم

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ٦ رقم الحديث ٣٤٧٥ ومسلم فی ٣/١٣١٥ رقم الحديث (١٦٨٨-٨) والترمذی فی ٤/٢٩ رقم الحديث ١٤٣٠

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| «مَنْ | حَالَتْ | شَفَاعَتُهُ | دُونَ | حَدٍّ | مِنْ | حُدُودِ | اللهِ |

سړي سفارش د الله تعالی د حدودو نه د کوم یو حد په مینځ کې حائل وي هغه د الله تعالی سره ضد

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَدْ | ضَادَّ | اللهَ | وَمَنْ | خَاصَمَ | فِي | بَاطِلٍ |

وکړو (او ګویا داسې هغه د الله تعالی مخالفت وکړو ځکه چې د الله تعالی حکم هم دادی چې حد دې جاري کړي) او کوم سړي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَهُوَ | يَعْلَمُهُ | لَمْ | يَزَلْ | فِي | سُخْطِ | اللهِ | تَعَالَى |

چې پوهیږي هم او په ناحقه او دروغ خبره باندې چا سره جګړه کوي نو هغه تر هغه وخته پورې د الله تعالی په غضب کې اوسي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَتَّى | يَنْزِعَ | وَمَنْ | قَالَ | فِي | مُؤْمِنٍ |

تر څو پورې چې د دې نه منع نه شي. او چا چې د یو مؤمن په باره کې څه داسې خبره وکړه چې په هغې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | لَيْسَ | فِيهِ | أَسْكَنَهُ | اللهُ | رَدْغَةَ | الْخَبَالِ |

کې نه شي موندلی نو هغه لره به الله تعالی تر هغه وخته پورې د دوزخ په خټه، پیپ او وینه کې ساتي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتَّى | يَخْرُجَ | مِمَّا | قَالَ». | رَوَاهُ | أَحْمَدُ | وَأَبُو دَاوُد |

تر څو پورې چې هغه د خپلې ویلی شوې خبرې نه ونه وځي. دې روایت لره امام احمد رحمه الله او ابوداؤد نقل کړی دی.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَفِي | رِوَايَةٍ | لِلْبَيْهَقِيِّ | فِي | شُعَبِ | الْإِيمَانِ | «مَنْ | أَعَانَ | عَلَى | خُصُومَةٍ |

او بیهقي په شعب الایمان کې دا الفاظ هم نقل کړي دي چې کوم سړی په داسې جګړه کې مدد وکړي چه د هغې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | يَدْرِي | أَحَقٌّ | أَمْ | بَاطِلٌ | فَهُوَ | فِي | سَخَطِ | اللهِ | حَتَّى يَنْزِعَ»[1] |

د حق او ناحق کیدو د ده ته علم نشته نو تر څو پورې چې هغه د خپل مدد نه منع نه شي د الله تعالی په غضب کې به اوسي.

**توضیح**: **حالت**: د حیلولت نه د حائل او د رکاوټ په معنی سره دی **دون** حد دون د جدا جدا په معنی سره دې دا لفظ کله د سوا په معنی سره هم راځي او کله د **ادون** د کم تر په معنی سره هم راځي یعنی حد هلته پاتې شو او د دې سړی سفارش مخکې مخکې راغی حائل شو **ینزع** د وتلو او روستو کیدلو په معنی سره دی. **ردغة** په را ء باندی زبر او په دال باندې سکون هم جائز دی او زبر هم صحیح دی

---

(1) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۲۳ رقم الحدیث ۳۵۹۷ وأخرجه ابن ماجه في ۲/۷۷۸ رقم الحدیث ۲۳۲۰ وأحمد في المسند ۲/۷۰ والبیهقي في الشعب ۶/۱۲۲، رقم الحدیث ۷۶۷۶.

ختمې او خاورې ته هم وايي. الخبال په خاء باندې زبر دی د فساد په معنی سره دی دلته د دوزخیانو د بدن وینه او پیپ مراد دی کوم چې په نورو حدیثونو کې ورته عصارة اهل النار ویلی شوی دی، بعضو شارحینو ویلې چې خبال د دوزخ دیوې کندې نوم دی چیرته چې وینې پیپ جمع کیږی، بهرحال ددې مجموعه کلمې ترجمه په خیرې سره کولی شي چې د دوزخیانو پیپ وینه او نورو د ګند کو خیرې به څکي. اعاذنا الله منه (المرقات ۱۹۹/۷)

## د جرم په اقرار باندې د غلا سزا

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَيَّةَ الْمَخْزُومِيِّ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِلِصٍّ |
| او حضرت ابو امیه مخزومي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان کوي چې (یوه ورځ) د نبی عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې یو غل پیش کړی شو |
| قَدِ اعْتَرَفَ اعْتِرَافًا وَلَمْ يُوجَدْ مَعَهُ مَتَاعٌ |
| چې هغه د خپل جرم ښکاره اعتراف او اقرار وکړو (د غلا د مال نه) څه څیز د هغه سره را نه وتلو نو |
| فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا إِخَالُكَ سَرَقْتَ». قَالَ: بَلَى |
| نبی عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمایل چې زما خیال نه دی چې تا غلا کړې ده هغه وویل چې آو! ما غلا کړې ده |
| فَأَعَادَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا |
| نبی علیه السلام دوه درې ځله وویل (چې زما خیال نه دی چې تا غلا کړې ده) مګر هغه به هر ځل دا |
| كُلَّ ذَلِكَ يَعْتَرِفُ فَأَمَرَ بِهِ فَقُطِعَ |
| اعتراف او اقرار کولو (چې ما غلا کړې ده) آخر دا چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام د هغه د لاس کټ کولو حکم جاري کړو |
| وَجِيءَ بِهِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| بیا د لاس کټ کولو نه پس هغه د نبی عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې راوستلی شو نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته وفرمایل |
| «اسْتَغْفِرِ اللهَ وَتُبْ إِلَيْهِ» |
| چې (د خپلې ژبې په ذریعې سره) د الله تعالی نه بخښنه وغواړه (او د خپل زړه په ذریعې سره) هغه |
| فَقَالَ: أَسْتَغْفِرُ اللهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ |
| ته متوجه شه. هغه وویل زه د الله تعالی نه بخښنه غواړم او هغه طرف ته متوجه کیږم (یعنی توبه کوم) |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اللَّهُمَّ تُبْ عليهِ» ثَلَاثًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ |
| رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درې ځله وفرمایل ای الله! دده توبه قبوله کړه. (روایت کړې دې ابو داؤد، |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالنَّسَائِيُّ | وَابْنُ | مَاجَهْ | وَالدَّارِمِيُّ | هٰكَذَا | وجدتُ فِي |
| نسائی،ابن ماجه،دارمی) او (صاحب مشکوة فرمايي چې) ما دې روايت لره په دې ځلورو کتابونو | | | | | |
| الْأُصُول | الْأَرْبَعَة | وجامع | الْأُصُول | وَشُعَبُ | الْإِيمَانِ |
| (ابوداؤد،نسائی،ابن ماجه،دارمی) کې په جامع الاصول کې، او د بيهقي په شعب الايمان کې، او خطابی | | | | | |
| وَمَعَالِمُ | السُّنَنِ | عَنْ | أَبِي | أُمَيَّةَ[1] | |
| په معالم السنن کې دغه شان يعنې ابو اميه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل موندلی شي خو د مصابيح په بعضې نسخو | | | | | |
| وَفِي | نُسَخِ | الْمَصَابِيحِ | عَنْ | أَبِي رِمْثَةَ | بِالرَّاءِ |
| کې دې روايت کې ابو رمثه د همزې او د ياء په ځای راء مکسوره او ثاء مثلثه سره نقل دی (خو حضرت شيخ | | | | | |
| والثاء | الْمُثَلَّثَة | بدل | الْهمزَة | | |
| حافظ ابن حجر عسقلانی وضاحت کړی دی چې د دې روايت د ابو رمثه نه نقل کيدل غلط دي، او ابو رمثه | | | | | |
| وَالْيَاء | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۲) | | | | |
| اګرچې صحابي دی خو دا روايت د هغه نه منقول نه دی. | | | | | |

**توضيح: ما اخالک:** په همزه باندې زير ويلی شي دا زيات راجح دی دا د خال يخال نه د اظن په معنی سره دی په دې جملې سره د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ مقصود دا وو چې دا سړی د خپل اعترافی بيان نه منع شي يا بيان بدل کړي د دې د پاره چې د دې نه حد ساقط شي او په حدود الله کې دغه شان تلقين د حاکم د پاره يا قاضی د پاره مناسب دی. د دې عمل نوم تلقين عذر دی، د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد دا عمل په ټولو حدودو کې جائز دی خو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او نور آئمه تلقين عذر صرف د حد زنا سره خاص کوي. **اللهم تب عليه:** د دې نه دا خبره معلوميږي چې حدود الله زاجرات نه دي طاهرات نه دي څنګه چې د احنافو مسلک دی، د لته د حد قائمولو نه پس هم د استغفار دعاء کول د دې تائيد دی اګر چې واضح تر احاديث د حدودو د مکفرات او طاهرات کيدو باندې دال دي، او دا مسئله په تفصيل سره تېره شوې ده(المرقات ۷/۲۰۰)

---

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۵۴۲ رقم الحديث ۴۳۸۰ والنسائی فی ۸/۶۷ رقم الحديث ۴۸۷۷ وابن ماجه فی ۲/۸۶۶ رقم الحديث ۲۵۹۷.

(۲) مصابيح السنة ۲/۵۵۳ رقم الحديث ۲۷۲۱.

## بَاب حد الْخمر
## د شرابو د حد او د حرمت بیان

**قال الله تعالیٰ : (ویسئلونک عن الخمر والمیسر قل فیهما اثم کبیر ومنافع للناس واثمهما اکبر من نفعهما) (البقرة : ۲۱۰)**

**وقال تعالیٰ : (یاایها الذین آمنوا لاتقربوا الصلوة وانتم سکاری حتی تعلموا ماتقولون) (النساء ۴۳)**

**( وقال تعالیٰ : یاایها الذین آمنوا انما الخمر والمیسر والانصاب والأزلام رجس من عمل الشیطان فاجتنبوه لعلکم تفلحون) (مائدة : ۹۰)**

**(انما یرید الشیطان ان یوقع بینکم العداوة والبغضاء فی الخمر والمیسر ویصدکم عن ذکر الله وعن الصلوة فهل انتم منتهون) (مائدة : ۹۱)**

**الخمر:** دخمر معنی د پټولو ده او نصر او ضرب نه ددې ماده کې د ستر او دپټولو معنی پرته ده چونکه په شرابو سره په عقل باندې پرده پریوځې او خمر عقل لره پټوي په دې وجه دې ته خمر ویلی شوی دی. حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د شرابو متعلق وفرمایل **انها تذهب العقل وتذهب المال** دا خبره د نیمې ورځې د نمر په شان روښانه ده چې د ټول انسانی اقدارو مدار په عقل باندې دی ځکه چې عقل د ښه او بد تمیز کوي د شرابو په څکلو سره د انسانیت او انسان تمیز د انسان نه رخصت کیږی او انسان د حیواناتو په زمره کې داخلیږی هغه په مور، لور، ښځه او خور کې تمیز نه شي کولی، اسلام د انسانی صفاتو او اقدارو حفاظت کونکی ژوندی آسماني مذهب دی په دې وجه یې د انساني صفاتو په خرابونکي ام الخبائث باندې پابندي ولګوله، قرآن کریم دا حرام وګرځول یا احادیثو ددې د حرمت فیصله اوکړه، او اجماع د امت په دې باندې د حرمت اتفاق وکړو لهذا اوس شراب د اسلام د منونکو دپاره په قطعي طور باندې حرام دي، او ددې د حرمت منکر کافر دی خو چونکه د عربو په معاشره کې د شرابو استعمال دهغوی د معاشرې لازمي حصه جوړه شوې وه ددې تعلق د انسان داسې عادت جوړ شوی وو چې هغې لره په فوری طور باندې په یو حکم سره د هغوی د عاداتو نه وتل او مختصره موده کې دا عادات دهغوی نه وېستل آسان نه وو په دې وجه اسلام تدریجًا او مرحله وار ددې د حرمت حکم وفرمایلو په قرآن کریم کې په څلورو مرحلو سره څلور قسمه آیتونو کې ددې ذکر شوی دی. دټولو نه اول آیت مکه مکرمه کې نازل شو چې په هغې کې د

شرابو د جوړولو ذکر په دې شان شوی دی. (**ومن ثمرات النخيل والاعناب تتخذون منه سكرًا ورزقنا حسنا**) (النحل : ٦٧) دا مکی دور وو بیا مدنی دور کې حضرت عمر رضي الله عنه او نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم حضور صلى الله عليه وسلم ته وویل **افتنا في الخمر والميسر** یارسول الله په دې باره کې دا آیت نازل شو :(**ويسألونک عن الخمر والميسر قل فيهما اثم کبير ومنافع للناس واثمهما اکبر من نفعهما**). (بقرة : ۲۱۹) په دې آیت سره سنجیده خلقو شراب پریخوستل بیا عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه په مدینه کې یو دعوت وکړو په هغې کې حضرت علی رضي الله عنه شریک شو او دخوراک نه پس د شرابو نمبر راغی د حضرت علی رضي الله عنه بیان دی چې ددې نه پس د مونځ وخت شو او خلقو زه مونځ دپاره مخکې کړم نو ما ولوستل . :(**قل يأيها الكافرون لا اعبد ما تعبدون ونحن نعبد ما تعبدون**) (الکافرون :۱) په دې باره کې الله تعالی دا آیت نازل کړو :(**وقال تعالى : يا أيها الذين آمنوا لاتقربوا الصلوة وانتم سكارى حتى تعلموا ماتقولون**) (نساء : ۴۳) (**كذا في المرقات**)

په دې آیت او دې حکم سره په زیاترو وختونو کې په شرابو باندې پابندي ولګیده ځکه چې په پنځه وخته مونځونو کې چې یو بل ته نزدې دي ددې په مینځ کې د شرابو استعمال بند کړی شو اوس صرف د سحر او ماسپخین په مینځ کې او د ماسخوتن او سحر په مینځ کې وخت زیات پاتې شو په دې سره د شرابو د عادي خلقو عادت کافي حده پورې په قابو کې راغلو.

ددې نه روستو بله لویه حادثه دا وشوه هغه دا سې چې د حضرت علی رضي الله عنه دوه اوښې د یو انصاري د کور خواکې تړلی شوې وې په اتفاق سره هلته نزدې د خوراک محفل قائم شو او د شرابو نمبر چلید و حضرت حمزه رضي الله عنه د نشې په حالت کې وو چې یوې وینځې څو شعرونه وویل په هغې کې یو ه تکړه دا وه **الا يا حمز للشرف النواء** ای حمزه دا نزدې دوه څربې څربې اوښانې دي ددې د غوښو انتظام به څوک کوي. حضرت حمزه رضي الله عنه ودریدو او د حضرت علی رضي الله عنه د دواړو اوښو کوهان (کوپي) یې کټ کړل غوښه یې محفل والو باندې وخوړله . حضرت علی رضي الله عنه چې کله دا منظر ولیدلو نو په منډه د نبی علیه السلام خوا ته راغلو او وې فرمایل چې ما د خپلې ولیمې دپاره اوښانې ساتلې وې حمزه د هغې قُب او اُولي کټ کړل نبی علیه السلام په غوسه کې پاسیدو او د حمزه رضي الله عنه خوا ته لاړلو او تپوس یې ترې وکړو چې دا دې څه وکړل؟ حضرت حمزه رضي الله عنه په نشه کې وو لاندې باندې یې وکتل او بیا یې وویل چې تاسو ټول زما د پلار غلامان یې، نبی علیه السلام واپس شو او وې فرمایل چې دا په دې حالت کې پریږدئ دا په نشه کې دی.

علامه نووی رحمه الله د مسلم په حاشیه کې هغه ټولو شعرونو لره نقل کړې دي د فائدې دپاره په خدمت کې پيش دي. (مسلم ج۲ باب الاشربة)

الا يا حمز للشرف النواء وهن معقلات بالفناء

**ترجمه**: ای حمزه د کور په صحن کې دا څربې اوښانې تړلې دي دې طرف ته متوجه شه

ضع السكين فی اللبات منها ضرجهن حمزة بالدماء

**ترجمه**: ددې په مرو باندې چاړه کيږده او دوی لره پڅوينو کې لت پت کړه.

وعجل من اطايبها لشرب قديدًا من طبيخ او شواء

**ترجمه**: د شرابو نه پس ددې ښه ښه غوښه تکړې تکړې کولو سره پخه کړه يا يې وريتولو سره وخوره.

نبی علیه السلام په دې موقعه باندې د الله تعالی نه داسې دعا وغوښتله **اللهم بين لنا بيانا شافيا**

په دې باره کې د سورة مائدې هغه آيتونه نازل شول چې په هغې کې دوه ما ددې باب په ابتداء کې ليکلي دي په دې آيت کې حکم دی چې **فهل انتم منتهون** يعنی ددې ګنده او نجس څيز نه اوس منع شئ.

د نسائی په يو روايت کې دي چې حضرت عمر رضی الله عنه د اولو دوه آيتونو باره کې وفرمايل: **اللهم بين لنا في الخمر بيانا شافيا**

کله چې دا آيت نازل شو نو وې فرمايل انتهينا انتهينا ددې نه پس د مدينې په کوڅو کې د شرابو نهرونه بهيدل او ددې ام الخبائث نه د مسلمانانو زړونه او دماغ محفوظ شو، او د حرمت قطعی حکم راغلو اوس چې کوم مسلمانان شرابو لره حلال ګڼي او حرام ورته نه وايې هغه کافر دي او څوک چې يې حرام ګڼي او څکي يې هغه په حرامو او ګناه کبيره کې مبتلا دی. د خمر تعريف په آينده باب بيان الخمر کې راځي.

## الْفَصْلُ الْأَول

## دنبی علیه السلام په زمانه کې د شرابو د څکلو سزا

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ | أَنَسٍ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | ضَرَبَ |

حضرت انس رضی الله عنه وايي چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم د شرابو څکلو د حد (سزا) د کجورو په ښاخونو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي | الْخَمْرِ | بِالْجَرِيدِ | وَالنِّعَالِ | وجلَدَ | أَبُو بَكرٍ | رَضِيَ | الله | عَنهُ |

(چوکو) او څپلو سره وهلی دی (يعنی د وهلو حکم يې ورکړی) او حضرت ابو بکر رضی الله عنه (په خپل دور

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أربعينَ | (مُتَّفق | عَلَيْهِ)[1] | وَفِي | رِوَايَة | | | | | |
| خلافت کې د شرابو څکونکی څلویښت کوړې وهلی دی (بخاری ومسلم) او په یو روایت کې | | | | | | | | | |
| عَنْهُ: | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | كَانَ | يَضْرِبُ | فِي الْخَمْرِ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا سې نقل دي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام د شراب نوشی په حد (سزا) کې به یې | | | | | | | | | |
| بِالنِّعَالِ | وَالْجَرِيدِ | أَرْبَعِينَ | أخرجه | البخاري | (صَحِيح)[2] | | | | |
| څلویښت د کهجورو په څانګو او په څپلو وهلو (یعنی د وهلو حکم به یې کولو) | | | | | | | | | |

**توضیح : ضرب في الخمر بالجريد:** کچیرې کوم سړی شراب وڅکي اګر چې لږ مقدار کې وي نو بیا به هغه حاکم ته بوتللی شي او که هغه وخت دهغه سړي په خوله کې دشرابو بدبوی موجوده وي یا دنشې په حالت کې پیش کړی شوی وي او دوه سړي دهغه په شراب څکلو باندې ګواهي ورکړې یا په خپله دخپلو شرابو څکلو اقرار وکړي او دا معلومه شي چې دې سړي په خپل اختیارسره څکلي دي چا پرې زبردستی نه وي کړې نوپه دې سړي به د خمرو حد جاری کولی شي، کیرې هغه سړی آزاد وي نو اتیا (۸۰) کوړې دي او که غلام وي نوڅلویښت (۴۰) کوړې به وهلی شي، یاد ساته چې دخمرو په حد او د زنا په حد کې به په کوړو دبدن هغه حصې وهلی شي چې کومې حصې نرمې وي دغه شان به دبدن مختلفو حصو باندې تقسیمولی شي په یوه حصه باندې نه، کچیرې دشرابي د خولې نه بدبویې ختمه شوې وي نو قاضی په هغه باندې د حد حکم نه شي کولی دغه شان کچیرې اقرارېې هم کړی وي یا دوه ګواهانو ګواهي ورکړې وي مګر دخولې نه یې بدبویې ختمه شوې وي بیا به هم حد ساقط کیږي. دنشې کیفیت دغه شان کیدل پکار دي چې هغه سړی دزمکې او آسمان فرق نه شي کولی یا په نشه کې بړبړي. دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مبارکه زمانه کې دخلقو د ذهنونو نه دشرابو څکلو تصّور ختم شوی وو او د شرابو د څکلو واقعات شاذ او نادر وو. په دې وجه به نبی علیه السلام دشراب څکلو والا تحقیر اوتوهین کولو دڅادرونو په کوړو او په څپلو سره به د شرابی استقبال کیدو. کچیرې کله به چا دشراب څکلو جرأت وکړو نو هغه به په څپلو او دڅادرونو په کوړو او د ونو په څانګو سره وهلی شو او دهغه دتحقیر اوتوهین دپاره به سختې جملې ویلی کیدې.

---

([1]) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۶۳ رقم الحدیث ۶۷۷۳ ومسلم فی ۳/۱۳۳۱ رقم الحدیث (۱۷۰۶-۳۶) وأبوداود فی السنن ٤/٦٢١ رقم الحدیث ٤٤٧٩ وابن ماجه فی ۲/۸۵۸ رقم الحدیث ۲۵۷۰ وأحمد فی المسند ۳/۱۷۶.

([2]) أخرجه مسلم فی صحیحه ۳/۱۳۳۱ رقم الحدیث (۱۷۰۶-۳۷)

غرض دا چې د هغه دپاره به باضابطه څه معین حد موجود نه وو د نبوی زمانې نه روستو په صدیقي دورکې هم داسې وو بیا د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې د اتیا (۸۰) کوړو اعلان اوشو.

## د خمرو د حد سزا دپاره ۸۰ کوړې متعین شوې

﴿۲﴾ وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ: كَانَ يُؤْتَى بِالشَّارِبِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت سائب رضي الله عنه وایي چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه او د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه

وَإِمْرَةِ أَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ

د خلافت په ورځو کې او د عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په ابتدائی دورکې دا معمول وو چې کله به

فَنَقُومُ عَلَيْهِ بِأَيْدِينَا وَنِعَالِنَا

څوک شراب څکلو والا راوستلی شو نو مونږ به پاسیدو او په خپلو څپلو او په خپلو څادرونو سره

وَأَرْدِيَتِنَا حَتَّى كَانَ آخِرُ إِمْرَةِ

(یعنی په څادرونو سره به مو کوړې جوړې کړې د هغه) وهل به مو کول بیا د حضرت عمر رضي الله عنه د

عُمَرَ فَجَلَدَ أَرْبَعِينَ حَتَّى إِذَا

خلافت په آخر دورکې د څلویښتو کوړو د وهلو سزا ورکړې شوه تردې پورې چې د شرابو د څکلو والا

عَتَوْا وَفَسَقُوا جَلَدَ ثَمَانِينَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[۲]

په تعداد کې اضافه وشوه او سرکشي زیاته شوه نو حضرت عمر رضي الله عنه اتیا کوړې سزا متعین کړه. (بخاری)

**توضیح**: څنګه چې مخکې لیکلې شوې دي چې د نبوی دور نه واخله تر صدیقی دور پورې د خمرو د حد تعین نه وو بیا په فاروقی دورکې کله چې شام او فارس فتح شو او ملک مصر وغیره د مسلمانانو په قبضه کې راغلل نو نوې نوې خلق په اسلام کې داخل شو څه بااثره وو څه ډېر مالدار عیش پسند وو او یو حده پورې دور د تابعینو هم وو په دې وجه د شرابو د څکلو واقعات زیات شو، حضرت عمر رضي الله عنه د خپلې شورې ارکان راوغوښتل او د حد خمر دپاره یې مشوره ترې وغوښته د هغه د شورې یو ممبر حضرت علي رضي الله عنه و فرمایل چې شرابي کله شراب وڅکي نو هغه د نشې په حالت کې بهتان هم لګوي او د کنځل هم کوي او د کنځلو دپاره حد قذف اتیا کوړې په قرآن کې مقرر دي نو د شرابی دپاره هم اتیا کوړې متعین کول پکار دي، په دې باندې د ټولو صحابو اجماع وشوه او د اوسه پورې د فقهاؤ

(۲) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۶۶ رقم الحدیث ۶۷۷۹.

په نزد د خمرو حد اتیا کوړې دی، شوافعو او حنابلو د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی دی چې په هغې کې د څلویښتو کوړو ذکر دی، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او احناف د حضرت سائب بن یزید د روایت نه استدلال کړی چې په هغې کې د اتیاو کوړو ذکر دی او د اجمال تفصیل دی، دارنګه دا حضرات د صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اجماع هم په طور د دلیل پیش کوي، د دې دلائلو په مخکې دا حضرات د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مجمل روایت جواب ضروری نه ګڼي. د دې حضراتو د طرف نه بعضې حضرات وایې چې د نبی علیه السلام په زمانه کې چې کومې څلویښت کوړې وهلې شوې وې هلته د دوه چوکو یو ځای کولو سره د وهلو ذکر دی، لهذا په نبوي دور کې هم د اتیاو کوړو ثبوت ملاویږي. په نصب الرایه کې ټول روایات نقل کړی شوې دي. (المرقات ۷/ ۲۰۶، ۲۰۹)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د شرابی د قتل کولو حکم منسوخ دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ |
| حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې کوم سړی |
| شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ فَإِنْ عَادَ فِي |
| شراب وڅکي هغه په کوړو ووهئ او کوم سړی چې یې بار بار څکی تردې پورې چې په څلورم ځل یې |
| الرَّابِعَةِ فَاقْتُلُوهُ» قَالَ: ثُمَّ |
| په شرابو څکلو باندې ومومئ نو هغه قتل کړئ حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې د دې ارشاد نه پس یوه |
| أُتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ فِي الرَّابِعَةِ[٤] |
| ورځ د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې دا سې یو سړی پیش کړی شو چې په څلورم ځل یې شراب څکلي |
| فَضَرَبَهُ وَلَمْ يقْتله. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُد عَن قبيصَة بن دؤيب[٥] وَفِي أُخْرَى لَهُمَا |
| وو نو هغه یې ووهلو او قتل یې نه کړو (ترمذی) ابوداؤد رحمه الله په یو بل روایت کې د قبیصه بن دؤیب نه |
| وَلِلنَّسَائِيِّ وَابْنِ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيِّ عَنْ نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او د نسائی او ابن ماجه او د دارمی په روایت کې چې هغوی د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د یو جماعت نه نقل کړی دی |

---

(٤) أخرجه الترمذى فى السنن ٤/٣٩ رقم الحديث ١٤٤٤.

(٥) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/١٢٥ رقم الحديث ٤٤٨٥.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالشرید | هُرَيْرَةَ | وَأَبُو | وَمُعَاوِيَةُ | عُمَرَ | ابْنُ | مِنْهُمْ |

چې په هغې کې حضرت ابن عمر رضي الله عنه حضرت معاويه رضي الله عنه او حضرت ابو هريره او شريد رضي الله عنهم شامل دي.

| | | |
|---|---|---|
| «فَاقْتُلُوهُ»[٦] | قَوْله: | إِلَى |

داحديث دلفظ د فاقتلوه پورې نقل دی يعنی په دې روايتونو کې د ثم اتی الخ عبارت نشته دی.

**توضيح**: **فاقتلوه**: ټول امت په دې باندې متفق دې چې د شرابو څکلو والا به په حد کې نه شي قتلولی اګرچې هغه بار بار شراب څکي. ها کچيرې دوخت حاکم بطور تعزير او سياست او مصلحت دده قتلول مناسب وګڼي نو داسې کولی شي خو حدًا داسې ناجائز دی، ځکه چې د صحابو اجماع په عدم قتل باندې منعقد ده، دارنګه په دې روايت کې د ترمذي په حوالې سره دا روايت دی چې يو سړی په څلورم ځل د نبی عليه السلام په مخکې راوستلی شو نو نبی عليه السلام **فضربه ولم يقتله** کورو باندې يې ووهلو او قتل يې نه کړو، معلومه شوه چې په قتل باندې عمل ونه شو. امام ترمذی رحمه الله فرمائی چې زما په کتاب کې دوه حديثونه داسې دي چې په هغې باندې امت عمل نه شي کولی يو هغه حديث په کوم کې چې ذکر دي چې نبی عليه السلام د خوف او خطر نه بغير او د څه سفر او مطر نه بغير په مدينه کې جمع بين الصلوتين وفرمائلو، امام ترمذي رحمه الله فرمائی چې دويم حديث دا زير بحث حديث دی چې په کوم امت عمل نه شي کولی چې د څه عذر نه بغير جمع بين الصلوتين څنګه وکړی شي، او شارب خمر لره کله قتل کړی شوی دی. باقي احنافو د **فاقتلوه** روايت څو جوابونه کړې دي: اول دا چې د قتل نه مراد ضرب شديد دی واقعي وهلو سره قتل کول مراد نه دی، يا قتل سياسةً دی حدًا نه دی، يا کوم چې سړې شراب څکل حلال ګڼي. (المرقات ٢٠٩/٧)

## په دربار نبوت کې د شرابی تحقير او تذليل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْظُرُ | كَأَنِّي | قَالَ: | الْأَزْهَرِ | بْنِ | الرَّحْمَنِ | عَبْدِ | ﴿۴﴾ وَعَنْ |

عبد الرحمن بن ازهر رضي الله عنه وائی چې ګويا هغه منظر دې وخت کې هم زما دسترګو مخکې دی چې

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْخَمْرَ | شَرِبَ | قَدْ | بِرَجُلٍ | أُتِيَ | إِذْ | وَسَلَّمَ | عَلَيْهِ | الله | صَلَّى | الله | إِلَى رَسُولِ |

يوه ورځ د رسول کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې يو داسې سړي لره پيش کړی شو چې هغه شراب څکلي وو

(٦) أخرجه أبوداود فی السنن ٦٢٤/٤ الاحاديث رقم ٤٤٨٢، ٤٤٨٤ والترمذی في السنن ٣٩/٤ رقم الحديث ١٤٤٤ وابن ماجه فی ٨٥٩/٢ رقم الحديث ٢٥٧٣ والدارمی فی ٢٣٠/٢ رقم الحديث ٢٣١٣.

| |
|---|
| فَقَالَ لِلنَّاسِ: «اضْرِبُوهُ» فَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالنِّعَالِ وَمِنْهُمْ |
| نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل دا ووهئ نو په هغو خلقو کې بعضو هغه په څپلو ووهلو بعضو د کجورو په لختو |
| مَنْ ضَرَبَهُ بِالْعَصَا وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالْمِيتَخَةِ. قَالَ ابْنُ وَهْبٍ يَعْنِي |
| (چوکو) باندې ووهلو. حضرت ابن وهب رحمه الله (چې ددې حدیث راوی دی) وائي چې حضرت عبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| الْجَرِيدَةَ الرَّطْبَةَ ثُمَّ أَخَذَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرَابًا مِنَ الْأَرْضِ |
| د میتخه نه د کجورو په شنه لخته نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د ځمکې نه خاوره راوچته کړه او د هغه په مخ باندې یې وېشتله |
| فَرَمَى بِهِ فِي وجهِه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (صَحِيح)[۷] |
| (دهغه په مخ وېشتلو سره ګویا چې نبي علیه السلام په دې سره د حقارت اظهار وکړو) |

**توضیح : نعال**: څپلو ته نعال وایې عصا همسا (لاټې) ته وائی **المیتخة** په میم باندې زیر دی او یاء باندې سکون دی په تاء باندې زبردی بیا خاء معجمه ده. باقی احنافو د **فاقتلوه** روایت څو جوابونه کړي دي: اول دا چې د قتل نه مراد ضرب شدید دی واقعي وهلو سره قتل کول مراد نه دی، یا قتل سیاسةً دی حدًا نه دی، یا کوم چې سړې شراب څکل حلال ګڼي.(المرقات ۲۱۱/۷)

**ملعقة** په وزن باندې دی وړې همسا ته وایې چې لمده وي وچه نه وي څنګه چې راوي په خپله وضاحت وفرمایلو.

**اخذ ترابا**: خاوره دهغه په مخ باندې وېشتل د زیات تحقیر او تذلیل دپاره وه د حد حصه نه وه (خو د محبوب په لاس باندې دا خاوره که د مخ په ځای باندې په زړه باندې لګیدله نو بیا به ددې څه مزه راتله)

## شرابي ته سزا ورکړه او پیغور ورکړه خو بد دعاء ورته مه کوه

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِرَجُلٍ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې (یو ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته یو سړی راوستلی شو |
| قَدْ شرِبَ الخمرَ فَقَالَ: «اضْرِبُوهُ» فَمِنَّا الضَّارِبُ |
| چې هغه شراب څکلي وو نبي عَلَيْهِ السَّلَام (مونږ ته وفرمایل) چې دا ووهئ. مونږ کې بعضې خلقو څپلو |

(۷) أخرجه أبوداود في السنن ٤/٦٢٨ رقم الحديث ٤٤٨٩ وأحمد في المسند ٤/٨٨

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِيَدِهِ | وَالضَّارِبُ | بِثَوْبِهِ | وَالضَّارِبُ | بِنَعْلِهِ |

لاسونو سره، بعضو په خپلو کپړو سره (کوړه جوړه کړه په) هغې سره او بعضو په خپلو څپلو سره هغه ووهلو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | قَالَ: | «بَكِّتُوهُ» | فَأَقْبَلُوا | عَلَيْهِ |

بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې اوس په ژبې سره ده ته خبرداري ورکړئ او پیغور ورکړه. نو خلق هغه طرف ته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَقُولُونَ: | مَا | اتَّقَيْتَ | اللهَ | مَا | خَشِيتَ اللهَ |

متوجې شول او هغه ته یې ویل شروع کړل تا د الله تعالی د مخالفت نه ځان ونه ساتلو ته د الله نه ونه یریدې

وَمَا اسْتَحْيَيْتَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ:

نو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره هم ونه شرمیدې. او بیا (کله) چې بعضو خلقو وویل چې الله تعالی

أَخْزَاكَ اللهُ. قَالَ: "لَا تَقُولُوا هَكَذَا لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ

دې تا لره ذلیل او رسوا کړي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې داسې مه وایئ او په ده باندې د شیطان په غالب کیدو کې مدد مه کوئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَكِنْ | قُولُوا: | اللَّهُمَّ | اغْفِرْ لَهُ |

بلکه داسې وواېئ چې ای الله! (چې دده گناه ختمه کړه) دده بخښنه وکړه او (ده ته د اطاعت او د نیکۍ توفیق ورکړه)

| | | | |
|---|---|---|---|
| اللَّهُمَّ | ارْحَمْهُ". | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد [٨] |

په ده باندې رحم وکړه (یاده لره په دې دنیا کې او بخښنه او په آخرت کې په ده باندې خپل رحم وکړه) (ابوداؤد)

**توضیح: الضارب بثوبه**: ددې مطلب دادی چې مثلاً څادرېې درسې په شان تاو کړو دهغې نه کوړې جوړولو سره په هغې وهل کوي چې په کلو کې مشهوره طریقه ده.

باقي احنافو د **فاقتلوه** روایت څو جوابونه کړې دي: اول دا چې دقتل نه مراد ضرب شدید دی واقعي وهلو سره قتل کول مراد نه دی، یا قتل سیاسةً دی حدًا نه دی، یا کوم چې سرې شراب څکل حلال گڼي. (المرقات ۲۱۲/۷)

**بکتوه**: دا د باب **تفعیل تبکیت** نه دی د زجر او توبیخ او د پیغور ورکولو په معنی سره دی، نو ددې تشریح او توضیح د **مااتقیت** آخره پورې کلمو سره وشوه. (المرقات ۲۱۲/۷)

---

(۸) أخرجه أبوداود فی السنن ۶۲۰/۴ رقم الحدیث ۴۴۷۷.

اخزاک الله: ددې بد دعاء تعلق چونکه د عالم آخرت سره وو او د آخرت رسوائي خو په دوزخ ته تلو سره وي په دې وجه نبی عَلَیْہِ السَّلَام منع و فرمایله چې دا خو د شیطان تمنی ده چې مسلمان دوزخ ته لاړ شي نو دغه شان بد دعاء سره د شیطان په منصوبه کې دده مدد مه کوه. (المرقات ۲۱۲/۷)

## دجرم دثبوت نه بغیر سزا نشته

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: شَرِبَ رَجُلٌ فَسَكِرَ فَلُقِيَ |
| او حضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وائی چې یو سړي شراب وڅکل او مست شو تردې پورې چې خلقو هغه په لاره کې |
| يَمِيلُ فِي الْفَجِّ فَانْطُلِقَ بِهِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| په دې حال کې وموندلو چې هغه زنګیدو سره روان وو نو خلقو هغه ونیولو او د نبی عَلَیْہِ السَّلَام په خدمت ته یې بوتللو |
| فَلَمَّا حَاذَى دَارَ الْعَبَّاسِ انْفَلَتَ فَدَخَلَ عَلَى الْعَبَّاسِ |
| خو کله چې د حضرت عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ کور ته ورسیدل نو دغه د لاس نه خلاص شو او حضرت عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته ورسیدو |
| فَالْتَزَمَهُ فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فضحك وَقَالَ: |
| هغه پورې ونختلو کله چې نبی عَلَیْہِ السَّلَام ته دا بیان وکړی شو نو نبی عَلَیْہِ السَّلَام وخندل او وې فرمایل |
| «أَفَعَلَهَا؟» وَلم يأمرْ فيهِ بشيءٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (متفق علیه)[1] |
| چې آیا هغه داسې وکړل؟ او بیا نبی عَلَیْہِ السَّلَام د هغه په باره کې څه حکم هم ونه فرمایلو. (ابو داؤد) |

**توضیح**: **فلقی**: دا د مجهول صیغه ده یعنی په کوڅه کې یې د نشې په حالت کې وموندلو.

**الفج**: د دوؤ غرونو په مینځ کې علاقې ته فج وایې دلته کولاؤ او فراخه کوڅه مراد ده. (المرقات ۲۱۳/۷)

**فانطلق**: دا هم د مجهول صیغه ده یعنې بوتللی شو. (المرقات ۲۱۳/۷)

**حاذی**: دا د محاذات نه د برابرۍ او مخامخ کیدو په معنی سره دی. (المرقات ۲۱۳/۷)

**العباس**: د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د تره نوم دی. (المرقات ۲۱۳/۷)

**فالتزمه**: یعنې هغه سړی حضرت عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ پورې ونختلو او د سفارش او بچ کیدو د پاره هغه

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۴/۶۱۹ رقم الحديث ۴۴۷۶.

پورې ونختلو. (المرقات ۲۱۳/۷)

**فذکر**: دا هم د مجهول صیغه ده یعنی د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په مخکې د دې واقعې تذکره وشوه. (المرقات ۲۱۳/۷)

**فضحک**: نبی عَلَيْهِ السَّلَام د تعجب په وجه سره وخندل معلومه شوه چې په تعجب والا خبره باندې خندل مباح دي. (المرقات ۲۱۳/۷)

**افعلها**: دلته همزه د استفهام دپاره ده او استفهام تعجبی دې یعنې ښه! هغه واقعه داسې کړې ده؟. (المرقات ۲۱۳/۷)

**ولم يامر فيه بشيءٍ**: یعنې د حد قائمولو حکم یې ورنه کړو په دې وجه د هغه سړي د طرف نه اقرار هم نه وو او د شراب څکلو په وخت څه گواه هم نه وو صرف په کوڅه کې په زنګیدو چا لیدلی وو دا د شرعی حد د ثبوت دپاره هم کافی نه وو دارنګه او س نشه نه وه نه د شرابو څکلو بدبوئې وه په دې وجه حد قائم نه شو، د دې نه معلومه شوه چې آینده د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو روایت هم راراون دی چې د هغې نه اندازه کیږي چې په اسلامی حدودو کې د شرابو حد د ټولو نه آسان او سپک حد دی (المرقات ۲۱۳/۷)

## الْفَصْلُ الثَّالِث

## په ټولو حدودو کې سپکه سزا د حد خمر ده

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾عَن | عُمَيْرِ | بن | سعيد | النخعي | قَالَ: | سَمِعْتُ | عَلِيَّ | بْنَ | أَبِي طَالِبٍ يَقُولُ: |
| حضرت عمیر بن سعید نخعی رحمه الله وایي چې ما د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا واوریدل چې که | | | | | | | | | |
| مَا | كُنْتُ | لِأُقِيمَ | عَلَى | أَحَدٍ | حَدًّا | فَيَمُوتَ | | | |
| زه په یو سړي باندې حد جاري کړم او هغه سړی (د حد جاري کیدو د وجې نه) مړ شونو په ما باندې به د هغې څه | | | | | | | | | |
| فَأَجِدَ | فِي | نَفْسِي | مِنْهُ | شَيْئًا | | | | | |
| اثر هم نه وی (یعنی ما ته به څه غم نه وي ځکه چې په هغه باندې حد جاری کول د شریعت د حکم مطابق وي | | | | | | | | | |
| إِلَّا | صَاحِبَ | الْخَمْرِ | فَإِنَّهُ | لَوْ | مَاتَ | وَدَيْتُهُ | | | |
| او د شریعت حکم نفاذ کې د رحم او شفقت څه محل نشته دی) ها د شرابو څکلو والا خبره بله ده چې که چیرې هغه (د | | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَذٰلِكَ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| څلويښتو نه په زياتو کوړو وهلو سره) مړ شو نو زه به دهغه ديت ورکوم او ددې وجه داده چې نبي کريم ﷺ | | | | | | |
| لَمْ | يَسُنَّهُ | (متفق عليه)[١٠] | | | | |
| د شرابو څکلو د پاره څه حد متعين کړی نه وو. (بخاري و مسلم) | | | | | | |

**توضيح: فأجد في نفسي:** يعنې حد قائمولو کې که څوک مړ شي نو په زړه کې به دا نه محسوسوم چې دا زما د طرف نه زياتي شوی دی ځکه چې هغه د اسلامی حد په زد (ماتحت) کې راغلی دی.

**وديته:** ودی يدی دية خون بها ته وايې.

دا جمله د حضرت علی رضي الله عنه د طرف نه د احتياط په طور باندې هم ده او دې طرف ته اشاره هم ده چې د خمرو حد په ټولو حدودو کې نرم حد دی، ددې مطلب دا نه دی چې دا حد نه دی. پخپله د حضرت علی رضي الله عنه د فيصلې مطابق حضرت عمر رضي الله عنه د ټولو صحابو په موجودګۍ کې اتيا (۸۰) کوړې سزا مقرر کړې وه چې په دې باندې د صحابو رضی الله عنهم اجماع شوې ده.

**لم يسنه:** ددې مطلب دا دی چې نبي عليه السلام تعين نه دی فرمايلی خو طريقې ئې مختلې وې په دې کې دوه شاخه همسا سره څلويښت کوړې هم وهلی شي چې د اتيا و کوړو د پاره ثبوت پيدا کوي، دا رنګه د خلفاء راشدينو فيصله ده او د صحابو رضی الله عنهم اجماع ده نو په دې کې د شک څه ګنجائش نشه دی. (المرقات ۲۱۴/۷)

## د خمرو د حد تعين د ټولو صحابو رضی الله عنهم په مشورې سره وشو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ | ثَوْرِ | بْنِ | زَيْدٍ | الدِّيْلِيِّ | قَالَ: | إِنَّ | عُمَرَ | اسْتَشَارَ |
| او حضرت ثور بن زيد ديلمی رحمه الله وايې چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د شرابو د حد د تعين په باره | | | | | | | | |
| فِي | حَدِّ | الْخَمْرِ | فَقَالَ | لَهُ | عَلِيٌّ: | أَرَى | | |
| کې د صحابو رضي الله عنهم سره مشوره وکړه نو حضرت علی رضي الله عنه هغوی ته وفرمايل چې زما رايه دا | | | | | | | | |
| أَنْ تَجْلِدَهُ | ثَمَانِينَ | جَلْدَةً | فَإِنَّهُ | إِذَا | شَرِبَ | سَكِرَ | وَإِذَا | سَكِرَ هَذَى |
| ده چې شرابی اتيا کوړې ووهلی شي ځکه چې کله هغه شراب څکي نو مستيږي او بکواس کوي | | | | | | | | |

(۱۰) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۲/۶۶ رقم الحديث ۶۷۷۸ ومسلم فی ۳/۱۳۳۲ رقم الحديث (۱۷۰-۷۳۹).

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | هذَى | افْتَرى | فجلدَ | عمرُ | رَضِي | الله | عَنهُ | فِي |
| او کله چې بکواس کوي نو بهتان لګوي. نو حضرت عمر رضي الله عنه حکم جاري کړو چې شراب څکلو | | | | | | | | |
| حَدِّ الْخَمْرِ ثَمَانِينَ. رَوَاهُ مَالِكٌ[۱] | | | | | | | | |
| والا دې اتيا کوړې ووهلی شي. (مالک) | | | | | | | | |

**توضيح**: استشار: د حد دتعين دپاره يې د صحابو سره مشوره وکړه. (المرقات ۷/۲۱۶)

**هذى**: ګډې وډې او بکواس ته هذيان وايي. **افترى**: بهتان تړلو ته افتراء وايي. حضرت علي رضي الله عنه ډېره د کار خبره وکړه او د څه قواعدو مخې ته کېخودلو نه پس يې بهتر قياس وکړو ځکه چې په اسلام کې د حد قذف ذکر په واضح طور باندې په قرآن کې موجود دی او ددې وجه په پاکدامن باندې بهتان تړل دي، نو چيرته چې همداسې صورت پيش شي نو ددې حکم به هم قذف وي او چونکه شرابي بې عقله کيږي او ګډو وډو ويلو سره بکواس کوي او اکثر په پاکدامنو باندې بهتان تړي او د بهتان سزا اتيا (۸۰) کوړې دي، لهذا د شرابو څکلو نه پس هم اتيا (۸۰) کوړې ورکول پکار دي.

د حضرت علي رضي الله عنه دا فيصله په اغلبي او اکثري حالاتو باندې مبني ده چې اکثر او زيات شرابيان داسې وي لهذا د ټولو همدا حکم دی د صحابه رضي الله عنهم دا خبره خوښه کړه او اتفاق يې ښکاره کړو نو اجماع وشوه. (المرقات ۷/۲۱۶)

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

---

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۲/۸۴۳ رقم الحديث ۲ من كتاب الأشربة.

# بَاب مَا لا يدعى على الْمَحْدُود

په يوه نسخه کې د **بَاب** په لفظ باندې تنوين دى او د **ما** لفظ نشته دى مطلب دا چې دا يو داسې باب دى چې په کې دا بيان دى چې په حد کې مضروب سړي ته بد دعائي مه کوئ که په يو کس باندې حد جارى شي او يو مسلمان هغه مضروب سړي په باره کې ووايې چې **اخزاک الله** يا دا ووايې چې په ده باندې دې د سپي په شان کانې وورلى شي نو ددې ځيزونو ممانعت راغلى دى.

## الْفَصْل الأول

## په چا گناهگار باندې لعنت ويل ناجائز دي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رجلا اسمه عبدُ الله يُلَقَّبُ حمارا |
| حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې يو سړى وو چې د هغه نوم عبدالله وو هغه ته به حمار يعني بطور لقب ويلى کيدو |
| كَانَ يُضْحِكُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ |
| هغه به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له خندولو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (يو ځل) د شراب څکلو په جرم کې په هغه باندې |
| جَلَدَهُ فِي الشَّرَابِ فَأُتِيَ بِهِ يَوْمًا |
| حد جاري کړى وو بيا هغه يو ورځ (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې) پيش کړى شو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه |
| فَأَمَرَ بِهِ فَجُلِدَ فَقَالَ رَجُلٌ |
| باندې د کوړو وهلو حکم ورکړو او هغه ته کوړې ورکړى شوې د مجلس په حاضرينو کې يو کس ووېل |
| مِنَ الْقَوْمِ: اللّٰهمَّ الْعَنْهُ مَا أَكْثَرَ مَا يُؤْتَى بِهِ |
| اى الله په ده باندې دې ستا لعنت وي دا څومره په کثرت سره (بار بار د شرابو څکلو په جرم کې نيولو سره) |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تلعنوه فوالله مَا عَلِمْتُ |
| راوستلى شي ،نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې په ده باندې لعنت مه وايه په الله قسم زه پوهيږم چې دا سړى |
| أَنَّهُ يُحِبُّ اللهَ وَرَسُولَهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[1] |
| د الله تعالى او د هغه د رسول سره مينه کوي. (بخاري) |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۷۵ رقم الحديث ۶۷۸۰.

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ
او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې یو ورځ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یو داسې سړی پیش کړی شو

قَدْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَقَالَ: «اضْرِبُوهُ» فَمِنَّا الضَّارِبُ
چې هغه شراب څکلي وو. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې دا ووهئ نو په مونږ کې بعضو هغه په

بِيَدِهِ وَالضَّارِبُ بِنَعْلِهِ وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهِ
خپلو لاسونو سره ووهلو او بعضو په خپلو څپلو سره ووهلو او بعضو د خپلو کپړو نه کوړې جوړې

فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: أَخْزَاكَ اللهُ
کړې او وې وهلو کله چې هغه سړی واپس شو نو خلقو وویل چې الله تعالی دې تا ذلیل او رسوا کړې

قَالَ: «لَا تَقُولُوا هَكَذَا لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]
نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دې اوریدو سره وفرمایل چې داسې مه وائې په ده باندې په غالب کیدو سره د شیطان مدد مه کوئ.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

## سزا خوړونکي مسلمان ته پیغور ورکول جرم دی

﴿۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: جَاءَ الْأَسْلَمِيُّ إِلَى نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَهِدَ
حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې ماعز اسلمی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی علیه السلام په خدمت کې حاضرېدو سره

عَلَى نَفْسِهِ أَنَّهُ أَصَابَ امْرَأَةً حَرَامًا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ
د خپل ځان په باره کې څلور ځله یې داګواهي ورکړه چې ما هغه یوې ښځې سره د زنا په طریقه جماع کړې ده،

كُلَّ ذَلِكَ يُعْرِضُ عَنْهُ فَأَقْبَلَ فِي الْخَامِسَةِ
او نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ به هر ځل (د ده په اقرار کولو سره) مخ اړولو او بیا په پنځم ځل د هغه طرفته متوجې کیدو سره یې

فَقَالَ: «أَنِكْتَهَا؟» قَالَ: نَعَمْ قَالَ: «حَتَّى
وفرمایل چې آیا تا هغه ښځې سره صحبت کړی دی؟ هغه وویل چې آو! نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې (آیا

غَابَ ذَلِكَ مِنْكَ فِي ذَلِكَ مِنْهَا» قَالَ: نَعَمْ
تا هغې سره صحبت کړی دی چې هغه (یعنی ستا خاص اندام) د هغه (ښځې په خاص حصه) کې غائب شو؟ هغه

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ١٢/٦٦ رقم الحديث ٦٧٧٧.

قَالَ: «كَمَا يَغِيبُ الْمِرْوَدُ فِي الْمُكْحُلَةِ وَالرِّشَاءُ فِي الْبِئْرِ؟»

وویل چې آو جی! نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل (چې آیا داسې) څنګه چې سلائې په نجروه کې او رسۍ په کوهې کې

قَالَ: نَعَمْ قَالَ: «هَلْ تَدْرِي مَا الزِّنَا؟» قَالَ: نَعَمْ

غائبېږي هغه وویل چې آو جی! نبی عَلَيْهِ السَّلَام تپوس وکړو چې پوهېږې زنا څه ته وايي؟ هغه وویل آو جی! چې ما

أَتَيْتُ مِنْهَا حَرَامًا مَا يَأْتِي الرَّجُلُ مِنْ أَهْلِهِ حَلَالًا

هغه ښځې سره په حرامه طریقه باندې هغه کار کړی دی چې یو سړی یې د خپلې ښځې سره په حلاله

قَالَ: «فَمَا تُرِيدُ بِهَذَا الْقَوْلِ؟»

طریقه کوي نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل (بنه دا وبنایه) چې دا څه تا وکړل په دې سره ستا مقصد څه دی؟

قَالَ: أُرِيدُ أَنْ تُطَهِّرَنِي

هغه وویل چې "زه دا غواړم چې تاسو (په ما باندې حد جاري کړئ) ما (د دې ګناه) نه پاک کړئ. نو

فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ فَسَمِعَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِهِ

نبی عَلَيْهِ السَّلَام (دده د سنګسارولو) حکم وفرمایلو او هغه سنګسار کړی شو بیا نبی عَلَيْهِ السَّلَام د دوه سړو نه دا خبره واورېدله

يَقُولُ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: انْظُرْ إِلَى هَذَا الَّذِي سَتَرَ اللهُ عَلَيْهِ

چې په هغوی کې یو کس خپل ملګري ته دا وویل چې دې سړي ته ګوره چې الله تعالی دده پرده پوشي وکړه

فَلَمْ تَدَعْهُ نَفْسُهُ حَتَّى رُجِمَ رَجْمَ الْكَلْبِ

دده نفس ده لره (د خپل ګناه د اقرار نه) منع نه کړو تر دې پورې چې هغه د یو سپي په شان سنګسار کړی

فَسَكَتَ عَنْهُمَا ثُمَّ سَارَ سَاعَةً

شو. نبی عَلَيْهِ السَّلَام (دا واورېدل هغه وخت) خو یې دوی ته څه ونه ویل البته څه وخت پس د تلو نه پس

حَتَّى مَرَّ بِجِيفَةِ حِمَارٍ شَائِلٍ برجله

د مړ شوي خر په خوا کې تېر شول چې د هغه خپې (د هغه د بدن نه د پړسیدو په وجه سره) اوچتې شوې وې

فَقَالَ: «أَيْنَ فُلَانٌ وَفُلَانٌ؟» فَقَالَا:

نو نبی عَلَيْهِ السَّلَام تپوس وکړو چې فلانی فلانی (یعنی هغه دواړه) سړي چیرته دي. هغوی عرض وکړو

نَحْنُ ذَانِ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ: «انْزِلَا

ای د الله رسوله! موږ (حاضر) یو. نبی عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمایل چې تاسو دواړه کوز شئ او د دې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَكُلَا | مِنْ | جِيفَةِ | هَذَا | الْحِمَارِ» | فَقَالَا: | يَا | نَبِيَّ | الله |

مردار خر غوښه وخورئ. هغوی (په ډيرې حيرانتيا سره) عرض وکړو ای د الله رسوله! د دې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | يَأْكُلُ | مِنْ | هَذَا؟ | قَالَ: | «فَمَا | نِلْتُمَا | مِنْ | عِرْضِ | أَخِيكُمَا |

غوښه څوک خوري؟) نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل تاسو اوس د خپل ورور عزت واخستو هغه د دې خر

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| آنِفًا | أَشَدُّ | مِنْ | أَكْلٍ | مِنْهُ | وَالَّذِي | نَفْسِي | بِيَدِهِ | إِنَّهُ |

دغوښې نه زيات سخت (بده خبره) ده قسم دی په هغه ذات دچا په قبضه کې چې زما ساه ده ببشکه

الْآنَ لَفِي أنهارِ الجنَّةِ ينغمسُ فِيهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

هغه (ماعز رضی الله عنه) دجنت په نهرونو کې غوټې وهي. (ابوداؤد)

**نوټ**: څناور چې کله مردار پروت وي نو پړسيږي او د هغه خپې بره طرف ته اوچتيږي دې ته شائل وايي.

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ | خُزَيْمَةَ | بْنِ | ثَابِتٍ | قَالَ: | قَالَ رَسُولُ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: «مَنْ |

او حضرت خزيمه بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کوم سړی (دڅه داسې)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَصَابَ | ذَنْبًا | أُقِيمَ | عَلَيْهِ | حَدٌّ |

ګناه مرتکب شي (چې حد لره واجبونکی وي او بيا) په هغه باندې د دې ګناه حد جاری کړی شي نو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ذَلِكَ | الذَّنْبِ | فَهُوَ | كفارتُه» | رَوَاهُ | فِي | شرح السّنة[2] |

هغه حد دده د ګناه کفاره ده (يعنی د حد جاري کيدو نه پس هغه سړی به د ګناه نه پاک او صفا شي.

## په کومه ګناه چې حد جاری کړی شوی وي په هغې باندې به آخرت کې نيول نه وي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ | عَلِيٍّ | رَضِيَ | الله | عَنْهُ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ |

او حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: چې کوم سړی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَصَابَ | حَدًّا | فَعُجِّلَ | عُقُوبَتُهُ | فِي الدُّنْيَا |

دحد سزاوار وي (يعني څه داسې ګناه وکړي چې په هغې باندې حد متعين دی) او بيا په دې دنيا کې ورته سزا

---

(1) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٥٨٠ رقم الحديث ٤٢٦٦.

(2) أخرجه أحمد فى المسند ٥/٢١٥.

| |
|---|
| فَاللّٰهُ أَعْدَلُ مِنْ أَنْ يُثَنِّيَ عَلَى عَبْدِهِ الْعُقُوبَةَ فِي الْآخِرَةِ |
| نو د الله تعالی د شان عدل نه دا لرې ده چې هغه په آخرت کې خپل بنده ته دوباره سزا ورکړي ورکړې شوه |
| وَمن أصَاب حدًّا فستره الله عليهِ وَعَفَا عَنْهُ |
| او کوم سړي چې د څه حد (یعنی ګناه) مرتکب وي او الله تعالی دهغه ګناه پټه کړه او هغه یې معاف کړو |
| فَاللّٰهُ أَكْرَمُ مِنْ أَنْ يَعُودَ فِي شَيْءٍ قَدْ عَفَا |
| نو دالله تعالی دشان کریمه نه دا لرې ده چې هغه په دې څیز باندې دوباره نیول وکړي کوم چې هغه |
| عَنْهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| معاف کړی دی (ترمذی، ابن ماجه) ترمذی رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث غریب دی. (بخاری ومسلم) |

**توضیح**: ان یثنی: د بار بار کولو او دوباره د سزا ورکولو په معنی سره دی. (المرقات ۲۲۰/۷)

د پاسنو دواړو حدیثونو نه دا خبره په واضح طور باندې معلومه شوه چې په دنیا کې د حد په ذریعې سره بهٔ د سزا خوړلو نه پس په آخرت کې داسې دسزا نه بچ شي، دداسې مضمون احادیث ډېر زیات دي، او د حدودو په کفاراتو کیدو کې او زجراتو کیدو کې دفقهاؤ اختلاف دی، ما ددې تفصیل په اول جلد کې کړی دی او په دې جلد کې هم چیرته تفصیل شوی دی خو که په حقیقت باندې نظر واچولی شي نو د فقهاو دا اختلاف دومره ژور نه دی.

احناف فرمایي چې کچیرې ګناهګار دحد د سزا سره په ژبه باندې توبه او استغفار کوي نو بیاحدود مطهرات او مکفرات دي او ظاهره ده چې داسې کس به څوک وي چې ددومره زیاتې سزا خوړلو په وخت په ژبه سره توبه ونه کړي نو ددې ټولو احادیثو مطلب د احنافو په نزد داشو چې حدود په شرط د توبې مکفرات و مطهرات دي، ددې حدیث نه دویمه خبره دامعلومه شوه چې کله الله تعالی په څه ګناه باندې دخپل طرف نه پرده اچوي نو بنده له هم پکاردي چې دخپلې ګناه تشهیر نه کوي یو خو دا چې په دې د فاحشې تشهیر کیږي چې منع دی، او دویم توهین نفسي هم دی نو په خاموشۍ سره دې استغفار وکړي. (المرقات ۲۲۰/۷)

✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿✿

---

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ۵/۱۷ رقم الحدیث ۲۶۲۶ وابن ماجه فی ۲/۸۶۸ رقم الحدیث ۲۶۰۴ وأحمد فی المسند ۱/۹۹

# باب التعزیر
## د تعزیر بیان

تعزیر د عزر نه دی چې معنی یې ده منع کول، ملامت کول او دھمکي ورکول دي. د تعزیر په ذریعې هم سړی د ګناه نه منع کولی شي، او د فقهاو په اصطلاح کې تعزیر دهغې سزا نوم دی چې د تادیب او تهذیب دپاره ورکولی شي او چې دهغې مقدار د ادنی حد نه کم وي. (المرقات ۷/۲۲۰)

**د تعزیر ثبوت** : په قرآن کریم کې د تعزیر ثبوت ددې آیت نه کیږي : (**واضربوهن فإن اطعنکم فلا تبغوا علیهن سبیلًا الخ**) (**النساء ۳۴**) او په حدیث کې دي **ولاترفع عصاک عنهم أدبًا**.
د آیت او حدیث دواړو نه دښځې د وهلو اشاره ملاویږي او همدا تعزیر دی، په یو بل حدیث کې دي.
**رحم الله امرءً علق سوطه حیث یراه اهله (مرقات ملاعلی قاری)** الله تعالی دې په هغه بنده باندې رحم وکړي چې خپله همساپه داسې ځای کې زوړنده ساتي چې دده ښځې یې ویني. (المرقات ۷/۲۲۰)

**حد او تعزیر کښې فرق** :حد د هغې خاص سزا نوم دی چې د کتاب الله او سنتِ رسول نه ثابت هم وي او متعین هم وي د وخت حاکم لره په دې کې نه د ترمیم او اضافه اختیار شته او نه د نورو تصرفاتو اختیار شته،حاکم لره صرف ددې د نافذ کولو حق حاصل دی . ددې برعکس تعزیر هغه سزا ده کومې لره چې کتاب او سنت متعین کړې نه ده بلکه ددې تعین د امام رایې ته مفوض دی . د امام شافعی رحمه الله په نزد په حاکم او قاضی باندې د تعزیر جاری کول لازم نه دي بلکه دهغه په رایې باندې موقوف دی چې هغه د تعزیر سزا ورکوي یا نه، خو امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چې په امام باندې لازم او ضروری ده بلکه واجب ده چې هغه تعزیر نافذ کړي. امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائی چې که د تعزیر ذکر په نص کې موجود وي نو بیا دهغې تنفیذ واجب دی او که د تعزیر ذکر په نص د قرآن کې موجود نه وي بیا دوخت د حاکم په رایې باندې موقوف دی چې هغه څنګه غواړي نافذوي یې او که نه .(المرقات ۷/۲۲۱)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## په تعزیر کې به څومره کوړې وهلی شي؟

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَن أَبِي بردة بن نِيَار عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابو برده بن نیار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل |
| «لَا يُجْلَدُ فَوْقَ عَشْرِ جَلَدَاتٍ إِلَّا |
| "چې الله تعالی کوم حدود مقرر کړې دي په هغې کې د څه حد نه علاوه د څه ګناه په تعزیر کې د لسو |
| فِي حد من حُدُود الله»(۱) |
| کوړو نه زیاته سزا ورنه کړی شي. (بخاري و مسلم) |

**توضیح** : لایجلد فوق عشر جلدات : شریعت په تعزیر کې څه حد نه دی متعین کړی بیا هم د فقهاؤ په دې باندې اتفاق دی چې د کم نه کم درې کوړې وي د دریو نه د کمو کوړو تعزیر نشته دی، او س دا مسئله زیربحث ده چې په تعزیر کې زیات نه زیات به څومره کوړې وهلی شي نو په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۲۲۱/۷)

**د فقهاؤ اختلاف** : امام شافعی رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي چې د لسو نه زیاتې کوړې په تعزیر کې نه دي وهل پکار. د امام مالک رحمه الله په نزد د زیاتو کوړو وهلو څه حد متعین نه دی. قاضی او امام چې څومره مناسب ګڼي کوړې دې ولګوي همدا د صاحبینو مسلک هم دی (کما فی المرقاة) امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائي چې ادنی حد پورې تعزیر نه دی رسول پکار. بلکه د دې نه کمول پکار دي، لهذا د یو غلام حد قذف څلویښت کوړې دی نو د دې ادنی حد نه یوه کوړه کمولو سره یو کم څلویښت کوړې لګول پکار دي، بیا هم دا تعزیر د امام په نظر باندې موقوف دی، لهذا د تعزیر په ضمن کې د زیات نه زیاته سزا ور کولی شي تر دې چې قتل ته نمبر ورسي (المرقات ۲۲۳/۷)

**دلائل** : امام شافعی رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله د (**لایجلد فوق عشر جلدات**) د مشکوة شریف د زیربحث حدیث نه استدلال کړی دی، امام مالک رحمه الله او صاحبین د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د یوې واقعې د تعزیر نه استدلال کړی دی چې په هغې کې متعلقه سړی

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۱۷۵ رقم الحدیث ۸۶۴۸ ومسلم فی ۳/۱۳۳۲ رقم الحدیث (۱۷۰۸-۴۰) وأبوداود فی السنن ۴/۶۲۹ رقم ۴۴۹۱ والترمذی فی ۴/۵۱ رقم ۱۴۶۳ وابن ماجه فی ۲/۸۶۷ رقم الحدیث ۲۶۰۱.

سل کوړې وهلی شوی وو او هغه سړی قید هم کړی شو، واقعه داسې وه چې معن بن زائده د بیت المال نه د جعلی مهر په ذریعې سره مال اخستی وو حضرت عمررضی الله عنه ته معلومه شوه نو هغه یې سل کوړې ووهلو او قیدیې کړو. (المرقات ۲۲۳/۷)

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایي چې نبی علیه السلام د تعزیر حد ته رسولو نه منع فرمایلې ده.

**جواب**: امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله د لس جلداتو (کوړو والا) حدیث نه دا جواب دی چې دا حدیث د هغه احادیثو دوجې نه منسوخ شوی دی په کومو احادیثو کې چې د لسو کوړو نه د زیاتو ذکر راغلی دی او صحابو په دې عمل کړی دی، امام مالک رحمه الله او صاحبینو ته دا جواب دی چې حضرت عمررضی الله عنه څو جرمونو لره یو ځای کولو سره سل کوړې ورکړې وې په یو جرم کې سل کوړې تعزیر نه وو شوی. زه دلته کتونکو ته درخواست کوم چې دفقهاؤ د مذاهبو په انضباط کې دلته د تعزیر په مسئله کې ډېرې پیچید ګیانې دي څوڅو اقوال دي، ما د ملاعلی قاری د مرقات نه د اختلاف د مذاهبو اقوالو لره دلته جمع کړې دي اګرچه نورو شارحینو په بل انداز سره اقوال جمع کړې دي، بهرحال د تعزیر بنیاد د امام د رایې او نظر په بنیاد باندې دی، کچیرې هغه مصلحت ګوري چې دلته د زیاتې سزا ضرورت دی نو زیاته ورکولی شي او کمه هم ورکولی شي، لهذا په دې کې دیو خاص تعین د دې آزاد حیثیت لره متاثره کوي. عمدة الرعایه کې یې لیکلې دي چې کله تعزیر په څټ باندې په کاڼي ویشتلو سره حاصلیږي، کله په غوږ تاوولو سره هم تعزیر کیږي، کله په قیدولو سره، او کله په کنځلو سره، کله په جلاوطن کولو سره، او کله په شدید ضرب سره او کله په قتل کولو سره حاصلیږي. مشائخ عظام د څو داسې ځایونو ذکر کړی دی چرته چې تعزیر بالقتل هم جائز دی مثلاً یو سړی مسلسل غلا کوي یا مسلسل جادو کوي یا مسلسل لواطت کوي یا نبی علیه السلام ته کنځل کوي، نو داسې خلقو قتلول خو بطور تعزیر جائز دي، فقهاؤ دا هم لیکلې دي چې کچیرې یو سړي وکتل چې یو سړی د هغه د ښځې سره زنا کوي نو هغه ده لره قتل کولی شي (اګرچه اسلامی عدالت د ده نه جواب طلبی کولی شي خو عندالله دا سړی ماخوذ نه دی). (زجاجة المصابیح ج:۳ ص:۱۰۲)

خلاصة الفتاوی او فتاوی ظهیریه په چاباندې مالي جرمانه لګولو سره د مال اخستلو تعزیر هم جائز لیکلې دی او د کورونو د سوزولو لره یې هم په تعزیر کې شمار کړی دی. (زجاجة المصابیح حواله بالا) (المرقات ۲۲۳/۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### مجرم په مخ باندې په کوړو مه وهئ

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی علیه السلام وفرمائیل: چې کله |
| «إِذَا ضَرَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَّقِ الوجهَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| په تاسو کې یو کس (یو مجرم ته سزا) ورکړي نو هغه له پکار دي چې (هغه د مجرم) مخ بچ کړي. (رواه ابوداؤد) |

**توضیح:** فلیتق الوجه: مطلب دا دی چې کله یو مجرم کس ته په تعزیر کې کوړې ورکړی شي یا په حد کې ووژلی شي نو د دې خبرې خیال دې وساتلی شي چې د کوړو وهلو مقام مخ نه وي مخ دې بچ کړی شي، د دې یوه وجه خو داده چې سر او مخ نازک اندامونه دي چې په کوړو وهلو سره د هلاکت خطره کیدی شي. فقهاو لیکلې دي چې کوړې دې د بدن په نرمو حصو باندې متفرق کولو سره ووهلی شي. دویمه وجه دا کیدی شي چې مخ ته الله تعالی یو اعزاز ورکړی دی په بدن کې د ټولو نه زیات عزت مند دی په دې وجه دا په کوړو ونه وهلی شي په یو حدیث کې دي چې ان الله خلق آدم علی صورته د دې په وجه هم مخ ته اعزاز حاصل دی. (المرقات ۷/۲۲۴)

### د بدزبانۍ سزا او تعزیر

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا قَالَ الرَّجُلُ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه د نبی علیه السلام نه نقل کوي چې هغوی وفرمایل چې یو کس کوم (مسلمان) |
| لِلرَّجُلِ: يَا يَهُودِيُّ فَاضْرِبُوهُ عِشْرِينَ وَإِذَا قَالَ: يَا مُخَنَّثُ فَاضْرِبُوهُ عِشْرِينَ |
| ته ووایي "ای یهودي" نو هغه شل کوړې ووهئ، او که ای مخنث ووایي نو بیایې هم شل کوړې ووهئ |
| وَمَنْ وَقَعَ عَلَى ذَاتِ مَحْرَمٍ فَاقْتُلُوهُ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| او کوم سړی چې د محرم ښځې سره زنا وکړي هغه مړ کړئ. ترمذی رحمه الله دي روایت لره نقل کړی |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۶۳۱ رقم الحديث ۴۴۹۳ وأحمد في المسند ۲/۲۴۴.

| وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
|---|
| دی او ویلي يې دي چې دا حدیث غریب دی. |

**توضیح**: **یامخنث**: مخنث هغه سړي ته وايې چې د هغه په اندامونو او خبرواترو چال چلن کې د زنانو اثر وي کچیرې دا کمزوری پیدائشي وي نو گناه نشته او که مصنوعي وي نو ډېر لوی جرم دی.

**فاضربوه عشرین**: دا شل کوړې ددې خبرې دلیل دی چې ددې نه مخکې د لسو کوړو ذکر راغلی دی په هغې کې تحدید او تعین نشته بلکه هغه حدیث منسوخ دی کچیرې څوک سړی خپل غلام یا کوم کافر باندې دزنا تهمت ولگوي نو هغه باندې حد قذف نشته دی بلکه تعزیردی، او که چا یو مسلمان لره د زنا نه علاوه په نورو تکلیف رسوونکو الفاظو سره یاد کړو نو په هغه باندې به تعزیر راځي مثلاً اووایې چې ای فاسقه! ای کافره! ای غله ای خبیثه ای منافقه ای لوطي ای یهودي، ای دیوثه ای مخنّثه ای د بدکاره ښځې ځویه ای د وینځې اولاده ای زندیقه ای حرامزاده وغیره. (المرقات ۲۲۴/۷)

اوکه یو مسلمان یې په راتلو نکو الفاظو سره یاد کړو نو تعزیر به نه راځي مثلاً ووایې ای خره، ای سپیه، ای شادو ،ای گونگیه، ای ماره،ای غوایه،ای دنائي اولاده، اوای دوکه بازه،ای بې وقوفه، ای مسخرې وغیره وغیره. علماؤ لیکلي دي چې کچیرې څه عیب واقعي په ده کې وي نو تعزیر به نه وي ها که علماءاو شرفاء یې په دې الفاظو سره یادکړل نو تعزېر به وي. (المرقات ۲۲۴/۷)

**علی ذات محرم**: یعنی خپلو محارمو سره یې زنا وکړه نو هغه قتل کړئ. ددې حدیث دظاهري الفاظو نه امام احمدبن حنبل رحمه الله استدلال کړی دی چې د ذات محرم سره زنا کونکی واجب القتل دی که هغه محصن وي یا غیرمحصن وي. جمهورعلماء فرمائی چې د زنا په معامله کې ضابطه یو قسم ده چې که محصن دی نو سنگسارول دي او که غیرمحصن دی نو کوړې دي، ددې حدیث جواب او محمل دادی چې په زجر اوتوبیخ او تشدید اوتغلیظ باندې محمول دی، دویم جواب دادی چې ددې سړي په باره کې کوم چې محارمو سره زنا ته جائز وایې بیابه دده قتل د ارتداد د وجې نه وي. دریم جواب دادی چې دا حکم د سیاست اومصلحت لاندې دی کچیرې امام اوقاضی مناسب وگڼي نو قتل دې کړي او دا د تعزیر حصه ده ، دا جواب د تعزیر د باب سره زیات موافق دی. (المرقات ۲۲۵/۷)

---

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ۵۱/٤ رقم الحدیث ۱٤٦۲ وابن ماجه في ۸۵٦/۲ رقم الحدیث ۲۵٦٤.

## په مالِ غنيمت کې دخيانت کونکي تعزير

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذَا وَجَدْتُمُ |
| او حضرت عمرفاروق رضي الله عنه راوي دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې که تاسو داسې |
| الرَّجُلَ قَدْ غَلَّ فِي سَبِيلِ اللهِ فَاحْرِقُوا مَتَاعَهُ وَاضْرِبُوهُ». |
| سړي لره ونيسئ چې هغه دالله په لاره کې خيانت کړی وي نو دهغه مال او اسباب وسوزوئ او هغه ووهئ. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| (ابو داؤد، ترمذی) او ترمذی رحمه الله ويلي دي چې دا حديث غريب دی. |

**توضيح**: **غلّ فی سبيل الله**: يعنی په مال غنيمت کې يې خيانت وکړو نوسړی د تعزير په طور باندې په کوړو ووهئ دهغه مال او متاع وسوزوئ.

د سامان سوزولو په باره کې د علماء کرامو مختلف اقوال دي، امام احمد بن حنبل رحمه الله او حسن بصری رحمه الله فرمايي چې څنګه دظاهري حديث حکم دی دغه شان ددې سړي سامان يوځای کولو سره دې وسوزولی شي که په سامان کې څاروي وي، يا مصحف شريف وي يا دجهاد دپاره وسله وي نو هغه دې ونه سوزولی شي.

جمهور علماء فرمائی چې سامان دې ونه سوزولی شي څکه چې په دې کې دغانمينو حق دی څکه چې دا سامان ددې سړي خپل خو نه دی، د حديث دا حکم ياخو داسلام په ابتداء کې وو يا بيا منسوخ شو يا دا حکم په تغليظ او تشديد او زجر او توبيخ باندې محمول دی يعنې دا ويروئ خو عمل مه کوئ. (المرقات ۲۲۵/۷)

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ۳/۱۵۷ رقم الحديث ۲۷۱۳ والترمذی فی ۴/۵۰ رقم الحديث ۱۴۶۱.

# بَابُ بَيَانِ الْخَمْرِ وَوَعِيدِ شَارِبِهَا

## دخمرو تعریف او د څکلو والا دپاره وعید

خمر يعني شراب دهغه څيزنوم دی چې دهغې په استعمال سره نشه او مستي پيدا شي که هغه د انګورو دشيرې په شکل کې وي ياد بل کوم څيز شيره وي. خمر د انګورو يا دبل څيز دهغه شيرې نوم دی چې دهغې په استعمال سره نشه او مستي پيدا کيږي. (کذا في القاموس)

دا تعريف زيات بهتر دی ځکه چې دا ټول قسمونه خمرته شامل دي صرف د انګورو د شيرې پورې خاص کول مناسب نه دي، ها داضروري ده چې دکومې ميوې نه شراب جوړولی شي په هغه شيره کې سکر او نشه موجود وي که هغه دکهجورو نه جوړه شوې وي يا دشاتو نه جوړه شي، يا د جوارو نه وېستلی شي يا دبل څه مادې نه وېستلی شي. والخمر ماخامر العقل ددې عموم فائده به داوي چې په عربو کې اوخاصکر په مدينه منوره کې دانګورو شراب شاذ او نادر ملاويږي، په دې وجه دشرابو حکم په ټولو ميوو کې عام کول پکار دي، داحنافو په کتابونو کې د شرابو تعريف داشان ليکلی شوی دی: الخمر وهي النئ من ماء العنب اذا غلا واشتد وقذف بالزبد( مظاهرحق ۶۴۵/۳)

يعنې شراب دانګورو دهغه کچه شيرې نوم دی چې سخته او ټينګه شي او په هغې باندې زګ راشي. احناف دخمرو تعريف لره دانګورو سره په دې وجه خاص کوي چې ددې قطعي حرامې مادې يو متعين حقيقت موجوديدل پکار دي، اهل لغت هم دې ته دخاصو شرابو او د خاص رس نوم ورکړی دی، ددې عارض د وجې نه يې شراب دانګورو سره خاص کړل ورنه تخصيص نشته دی.

**خمر او دحرامو مشروباتو قسمونه**: چه کوم څيزونه نشه راوستونکي دي ددې څلور لوی قسمونه دي: (ا) اول قسم خو شراب دي دا د انګورو وغيره نه داسې جوړيږي چې د انګورو کچه شيره راوباسي او څه لوښي کې يې کيږدي څه ورځې پس هغه ټينګه شي بيايې وخوټکوي او هغه نشه کونکي جوړ شي، دې ته خمر وايې. راجح قول دادی چې په دې باندې زګ راتلل شرط نه دی دا شراب دي او په نص قطعي سره حرام دي. ددې لږ هم حرام دي او ډير هم حرام دي، دچاپه دې کې اختلاف نشته دی دا دمنشياتو جرړه او اصل دی، نور منشيات ددې تابع دي په دې کې د نشې ختلو يا نه ختلو قيد نشته دی بلکه مطلقًا حرام او موجب دحد دی او دا نجس العين دی. ( مظاهرحق : ۶۴۵/۳)

(۲) دويم قسم هغه دی چې دانګورو شيره په اُور باندې معمولي غوندې پخه کړی شي او بيا محفوظ کړی شي دې ته په عربي کې باذق او فارسۍ کې بادة وايې، او چې دې مادې لره زياته

پخه شي څلورمه حصه وسوزي او دري حصې پاتې شي نو دې ته طلا وايې دا هم حرام دی ددې څکل هم ناجائز دي ها په دې کې حد نافذولو دپاره دنشې ختل شرط دی. (مظاهرحق : ۶۴۵/۳)

(۳) دریم قسم **نقيع التمر** دی چې هغې ته **عصير الرطب** هم وايې او سکر هم ددې نوم دی، دا د لمدو کجورو هغه شیره ده چې تینګه شي او په دې کې زګ پیدا شي ددې څکل حرام دي خو د حد لګولو دپاره نشه ختل شرط دی دنشې ختلو نه بغیر به حد نه قائمیږي. (مظاهرحق : ۶۴۵/۳)

(۴) څلورم قسم **لقيع الزبيب** دی دې ته **عصير الزبيب** هم وايې دا د وسکو هغه شیره ده چې دا زیاتو ایخودلو سره ختکیږي هم او زګ پرې هم راځي ددې څکل حرام دي خو د حد قائمولو دپاره د نشې ختل شرط دی دنشې ختلو نه بغیر به حد نه قائمیږي. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد په دې څلورو قسمونو کې **اذا غلا واشتد وقذف بالزبد** شرط دی یعني د زګ راتللو شرط هر قسم کې ضروري دی، خو صاحبین د زګ راتللو شرط صرف په خمر کې ضروري ګڼي باقي دریو قسمونو کې زګ راتلل ضروري نه دی صرف غلیان او جوش کافي دی. (مظاهرحق : ۶۴۵/۳)

**نور انبذه او د نورو مشروباتو حکم** : دلته څلور قسمه نور مشروبات هم دي. (۱) اول **لبيذالتمر** دی دا دکجورو نه د جوړ شوې هغه مشروب نوم دی کوم ته چې معمولي غوندې جوش ورکړی شوی وي او په دې کې نشه نه وي. (۲) دویم **خليط** دی یعني کشمش (وسکو) او کجورو له ملاوولو سره لږ شان جوش یې ورکړو او شربت کشیدیې کړو. (۳) دریم **بتع** دی په باء او تاء باندې زبر دی دا دهغه نبیذ نوم دی چې دغنمو، وربشو، شاتو او جوارو وغیره په اوبوکې اچولوسره معمولي غوندې جوش ورکولو سره عرق تر ې جوړولی شي. (مظاهرحق : ۶۴۶/۳)

(۴) څلورم مثلث دی یعني عرق انګورو له دومره پاخه کړی شي چې ددې دوه حصې ختمې شي او یوه حصه د مشروب په صورت کې باقي پاتې شي. ددې څلورو مشروباتو حکم دادی چې کچیرې ددې په ډیر مقدار استعمالولو سره نشه راځي نو ددې د لږ مقدار استعمالول هم حرام دي، او که په ډیر مقدار کې نشه نه وي نو لږ او ډیر دواړه حلال دي. دا د جمهورو مسلک دی. او چونکه امام محمد رحمه الله هم د جمهورو سره دی لهذا د محققینو احنافو دتحقیق مطابق فتوی په دې قول باندې ده اګرچې امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایې چې کچیرې ددې څیزونو لږ مقدار له په عبادت باندې دقوي کیدو دپاره استعمال کړی شي نو دا جائز دی اګرچې ددې په ډیر مقدار کې نشه وی مګر فتوی په دې قول باندې نه ده. (مظاهرحق : ۶۴۶/۳)

الغرض اصل څيز نشه او سکر دی کچيرې نشه په څه مشروب کې وي يا په وبنو کې وي يا د کومې ونې په شيره کې وي يا په تمباکو کې وي يا شرابو او بنګو کې وي تهول حرام دي. نشه کوونکو څيزونو کې بنګ، افيم او بعضې جرړې بوټې دي، دغه شان تمباکو هم ناجائزدي څنګه چې صاحب د درمختار ليکلې دي، او شاه عبدالعزيز رحمه الله چيلم څکل مکروه تحريمی ليکلی دی ځکه په دې څيزونو سره په بدن کې فتور او سستي پيدا کيږي. او په حديث کې اوس ددې حکم راتلونکی دی چې وکل مفتر يعني هر سستي راوستونکی څيز حرام دی، دا تفصيل صاحب د مظاهرحق رحمه الله ليکلی دی ماخو ديرې دوجې نه لړ وليکلو باقي مې پريخوستلو هلته يې اوګورئ. (مظاهرحق ج۳ ص۲۶۳)

زه خو پخپله نسوار سګريټ او تمباکو او پان لره قطعًا نه خوښوم او نه د يو عالم دين د پاره دا شيان خوښوم خو زما څه حيثيت دی، علماء ماپورې مذاق وکړي اګر چې د سعودي عرب علماء دې څيزونو ته حرام وايې او کله چې درمختار هم حرام ليکلې دي که تفصيل کې لاړ شې نو په نفې کې به ډير څه ملاو شي. په مدينه منوره کې يو علمی شخصيت حضرت مولانا عبدالوحيد عبدالملک دامت برکاتهم د سګريټ په حرمت باندې يوه ښه رساله ليکلې ده چې په هغې کې يې د تمباکو نه جوړ شوې څيزونو په حرمت باندې ښه په تفصيل سره کلام کړی دی الله تعالی دې دهغه په ژوند کې برکت واچوي اګر چې بعضې علماء د تمباکو څکلو ته حرام نه وايې خو ددې په کراهت باندې د ټولو اتفاق دی که کچيرې کراهت تنزيهی هم ومنلی شي نو په دې باندې په اصرار سره بيا به هم دا مسئله خطرناک حد ته رسي، راتلونکي د حديث نمبر ۱۲ لاندې ښه تفصيل راروان دی چې الله تعالی د ماشوم خوله د مور په خيټه کې ددې ټولو ګندګونه په دې وجه پاکه ساتي چې په دې خولې سره به دا ماشوم زما نوم اخلي، اوس چې کله لوی شو په خپل اختيار کې راغې نو ده پخپله خپله خوله بدبوداره کړه دا څومره نامناسبه خبره ده چا څه ښه ويلې دي.

ہزار بار بشویم دہن بمشک وگلاب

ہنوز نام تو گفتن کمال بے ادبی است

الفَصْلُ الأَوَّل

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل "شراب ددې دوه |

| |
|---|
| الشَّجرتين: النخلةِ والعِنَبَةِ". رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)[1] |
| ونو يعنى انګورو او کجورو نه جوړيږي. (مسلم) |

**توضيح** : **الخمر من هاتين** : چونکه اکثر او ډير ځل شراب د انګورو او کجورو نه جوړيږي په دې وجه نبي عليه السلام دې طرف ته اشاره وکړه په دې کې حصر کول مقصود نه دی بلکه صرف دا خو دل مقصود دی چې مسکر همدا دی. (المرقات ۷/۲۲۶)

## خمر د کوم څيز نه جوړيږي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ الله عَنْهُمَا قَالَ: خطَبَ عمرُ رَضِيَ الله عَنهُ عَلَى مِنْبَرَ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي چې (يوه ورځ) حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په منبر |
| رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "إِنَّهُ قَدْ نَزَلَ |
| باندې (ودريدلو) خطبه يې وركړه او ارشاد يې وفرمايلو چې "د شرابو حرمت نازل شوى دى او |
| تَحْرِيمُ الْخَمْرِ وَهِيَ مِنْ خَمْسَةِ أَشْيَاءَ: الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْحِنْطَةِ والشعيرِ والعسلِ |
| شراب د پنځو څيزونو نه جوړيږي يعنى انګورو نه کهجورو نه، غنمو نه، وربشو نه، او شاتو نه، او |
| وَالْخمر مَا خامر الْعقل". رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[2] |
| شراب هغه دي چې عقل لره پټوي. (بخارى) |

**توضيح** : **وهي من خمسة اشياء** : دا پنځه څيزونه يې بطور شهرت ذکر کړل که نه نو شراب د نورو څيزونو نه او په نورو طريقو هم حاصليږى همدا وجه ده چې دد دې حديث په آخري الفاظو کې حضرت عمررضى الله عنه نهايت عموم طرف ته اشاره وکړه چې **والخمر ماخامر العقل** يعنى شراب خو د هر هغه نشه کونکي څيز نوم دى چې عقل لره خميره کولو سره پټوي. دا د شرابو بهترين تعريف دى اګرچې د فقهاء عظامو اجتهادى بحثونه دلته موجود دي. (المرقات ۷/۲۲۶)

---

(۱) أخرجه مسلم فى صحيحه ۳/۱۵۷۳ رقم الحديث ۱۹۸۵-۱۳ وأبوداود فى السنن ۴/۸۳ رقم الحديث ۳۶۷۸ والترمذى فى ۴/۲۶۳ رقم الحديث ۱۸۷۵ والنسائى فى ۸/۲۹۴ رقم الحديث ۵۵۷۲ وابن ماجه فى ۲/۱۱۲۱ رقم الحديث ۳۳۷۸ وأحمدفى المسند۲/۲۷۹.

(۲) أخرجه البخارى فى صحيحه ۱۰/۴۵ رقم الحديث ۵۵۸۸ ومسلم فى ۴/۲۳۲۲ رقم الحديث (۳۰۳۲-۳۳) وأبوداود فى السنن ۴/۷۸ رقم الحديث ۳۶۶۹،والنسائى فى ۸/۲۵۹ رقم الحديث ۵۵۷۸.

﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: لَقَدْ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ حِينَ حُرِّمَتْ وَمَا نَجِدُ
او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ وائي چې د شرابو حرمت نازل شوی وو هغه وخت دد ې حرمت (نافذ) کړی شوی وو (هغه وخت)
خَمْرَ الْأَعْنَابِ إِلَّا قَلِيلًا وَعَامة خمرنا الْبُسر وَالتَّمر. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]
مونږ ته دانګورو شراب به کم ملاويدل زمونږ شراب به زيات تر د تر کجورو او د وچو کجورو نه جوړيدل. (بخاري)

﴿۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سُئِلَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِتْعِ
او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وايي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم نه دبتع يعني د شاتو د نبيذ په باره کې
وَهُوَ نَبِيذُ الْعَسَلِ فَقَالَ: «كُلُّ شَرَابٍ
تپوس وکړی شو (چې دد ې څکل جائز دي يا نه؟) نو نبی عَلَيهِ السَّلَام و فرمايل چې هغه مشروب چې
أَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ» (صَحِيحٌ)[2]
نشه راولي حرام دی. (بخاري ومسلم)

**نوټ**: بتع دلته دباء په زير سره او دتاء په سکون سره دی خو دا لفظ د باء او تاء په زبر سره هم لوستلی شوی دی په اوبو کې شات ملا وولو سره په اُور ايخودل او چې جوش ورکړی شي دا بتع دی.

## کوم سړی چې په دنيا کې شراب څکي هغه به په جنت کې د شرابو نه محروم وي

﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ الله عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُّ مُسْكِرٍ
او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ راوی دی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم و فرمايل هر نشه کونکی څيز
خَمْرٌ وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ وَمَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الدُّنْيَا
شراب دي او هر نشه کونکی څيز حرام دی (که هغه په لږ مقدار کې وي يا زيات وي) او کوم سړی
فَمَاتَ وَهُوَ يُدْمِنُهَا لَمْ يَتُبْ
چې په دنيا کې شراب څکي او هميشه شراب څکي تردې پورې چې د توبې نه بغير مړ شي نو هغه ته به

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۳۵ رقم الحديث ۵۵۸۰ ومسلم بنحوه في صحيحه ۳/۱۵۷۱ رقم الحديث (۱۹۸۰-۷)

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۱ رقم الحديث ۵۵۸۶ ومسلم في ۳/۱۵۸۵ رقم الحديث (۲۰۰۱-۶۷) وأخرجه أبوداود في السنن ۴/۸۹

| |
|---|
| لَمْ يَشْرَبْهَا فِي الْآخِرَةِ». رَوَاهُ مُسلم[1] |
| په آخرت كې شراب څكل نه نصيب كيږي. (مسلم) |

**توضيح: يدمنها**: د هميشه هميشه دپاره چې كوم سړى شراب څكي هغه ته مدمن خمر وايي دا د داسې سړې دپاره ګويا خاص صفت او خصوصي تعارف دى، په احاديثو كې باربار دا لفظ د باب انعال نه راغلى دى. (المرقات ۲۳۰/۷)

**لم يشربها**: ددې مطلب دادى چې هغه سړي په دنيا كې شراب څكل حلال ګڼل او حرامو لره حلال ګڼل كفر دى. په دې وجه دا سړى مرتد كيدو سره دائمى دوزخي جوړشو نو په دوزخ كې شراب چيرته دي؟ يا دا چې په اوله كې به ده ته شراب نه ملاويږي خو دسزا خوړلو نه پس چې كله جنت ته لاړشي نو بيا به ورته ملاويږي، يا مطلب دادى چې دې سړي ته به په جنت كې ددې نعمت خواهش نه وي نو نه به يې څكي.

## د شرابى په باره كې وعيد

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَجُلًا قَدِمَ مِنَ الْيَمَنِ فَسَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائى چې د يمن يو سړى (دربارنبوي) ته راغى او د نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ نه يې |
| عَنْ شَرَابٍ يَشْرَبُوْنَهُ بِأَرْضِهِمْ مِنَ الذُّرَةِ يُقَالُ لَهُ الْمِزْرُ |
| د جوارو د شرابو متعلق پوښتنه وكړه چې په يمن كې به څكل كيدل او هغې ته مزر ويلى شي، |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَوَ مُسْكِرٌ هُوَ؟» قَالَ: نَعَمْ قَالَ: «كُلُّ مُسْكِرٍ |
| نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ تپوس وكړو چې "آيا نشه راولي؟" هغه وويل چې آو نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل نشه راوستونكى |
| حَرَامٌ إِنَّ عَلَى اللهِ عَلَى هٰذَا لِمَنْ يَشْرَبُ الْمُسْكِرَ أَنْ |
| هرڅيز حرام دى او (يادساته) چې د الله تعالى وعيد دى چې كوم سړى نشه راوستونكي څيز لره |
| يَسْقِيَهُ مِنْ طِينَةِ الْخَبَالِ». قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ |
| څكي هغه باندې به طينة الخبال څكولى شي. صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وكړو چې اى د الله رسوله! |

(1) أخرجه مسلم فى صحيحه ۳/۵۸۷ رقم الحديث (۲۰۰۳-۷۳) وأخرج البخارى شطره الثانى فى صحيحه ۱۰ رقم الحديث ۵۵۷۵ وأخرجه أيضا الترمذى فى السنن ۴/۲۵۶ رقم الحديث ۱۸۶۸ وابن ماجه فى ۲/۱۱۱۹ رقم الحديث ۳۳۷۳.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | طِينَةُ | الْخَبَالِ؟ | قَالَ: | «عَرَقُ | أَهْلِ النَّارِ |
| طینة الخبال څه څیز دی؟ نبی کریم ﷺ و فرمایل خبال د دوزخیانو خوله ده. یا یې وفرمایل | | | | | |
| أَوْ | عُصَارَةُ | أَهْلِ النَّارِ». | رَوَاهُ | مُسلم | (صَحِيح)[1] |
| چې خبال هغه پیپ او وینه ده چې د دوزخیانو د زخمونو نه بهیږي. (مسلم) | | | | | |

**توضیح** : **طینة الخبال** : خبال د دوزخیانو وینه او پیپ دی، یا دهغوی د بدنونو خوله ده، د طینة مطلب کچیرې خیرې واخستلی شي نو په مفهوم پوهیدل به نور زیات آسان شي. **الذرة** جوارو ته وایې ددې نه هم شراب جوړیږي. **المزر** په میم باندې زیر دی او زاء باندې سکون دی. (المرقات ۷/۲۳۲)

## د مخلوطو میوو نه د نبیذ جوړولو حکم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ: | أَنَّ النَّبِيَّ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | نَهَى | عَنْ خَلِيطِ |
| او حضرت ابو قتاده رضي الله عنه وائی چې نبی ﷺ د وچو کجورو او د کچه کجورو یوځای کولو | | | | | |
| التَّمْرِ | وَالْبُسْرِ | وَعَنْ | خَلِيطِ | الزَّبِيبِ | وَالتَّمْرِ |
| سره د نبیذ جوړولو نه منع فرمایلې ده. او چې کجورې او د وچو انګورو یوځای کولو سره د نبیذ جوړولو نه یې | | | | | |
| وَعَنْ | خَلِيطِ | الزَّهْوِ | وَالرُّطَبِ. | | |
| منع فرمایلې ده، او د کچه کجورو او د لمدو کجورو یوځای کولو سره د نبیذ جوړولو نه یې منع فرمایلې ده | | | | | |
| وَقَالَ: | «انْتَبِذُوا كُلَّ وَاحِدٍ | عَلَى حِدَةٍ». | رَوَاهُ | مُسلم | (صَحِيح)[2] |
| وې فرمایل: چې (کچیرې نبیذ جوړول دې نو) د دې نه د هر یو نه د هر یو نه ځانله ځانله نبیذ جوړ کړئ. | | | | | |

**توضیح** : **نهی عن خلیط التمر** : خلیط د اختلاط او مخلوط کولو په معنی سره دی او تمر وچو کهجورو ته وائی او **بسر** دکچه کهجورو په معنی سره دی. **زهو** دا هغه کهجورو ته وائی چې پخیدو ته نزدې کیدو په وجه په مختلفو رنګونو سره بدلیږی، دکچه او پخو کهجورو ممانعت په دې وجه دی چې نبیذ جوړولو و الا ته اندازه نه کیږی او پخې کهجورې به په شرابو سره بدلې شوې

---

(۱) أخرجه مسلم فی صحیحه ۳/۱۵۷۸ رقم الحدیث ۷۲/۲۰۰۲ والنسائی فی السنن ۸/۳۲۷ رقم الحدیث ۵۷۰۹ وأحمد فی المسند ۳/۳۶۱

(۲) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۰/۶۷ رقم الحدیث ۵۶۰۲ ومسلم فی ۳/۱۵۷۶ رقم الحدیث (۱۹۸۸-۲۶) وأبوداود فی السنن ۴/۱۰۰ رقم الحدیث ۳۷۰۴، والنسائی فی ۸/۲۸۹ رقم الحدیث ۵۵۵۱ وابن ماجه فی ۲/۱۱۲۵ رقم الحدیث ۳۳۹۷.

وي او هغه تر اوسه پورې د کچو په انتظار کې وي، ځکه چې پخې کهجورې د خپل مزاج په اعتبار سره زر متاثره کیږي اوس به دپخو کهجورو ګډوالی په دې مخلوط نبیذ کې راشي چې دهغې استعمال ناجائز دی په دې وجه اختلاط منع کړی شوی دی. د امام مالک رحمه الله په نزد ددې حدیث د وجې نه محض دا اختلاط منع دی او ددې استعمال منع دی اګرچې په دې کې سکر نه وي، خو جمهور فقهاء فرمائی چې دا اختلاط او ددې نه جوړشوې نبیذ به هغه وخت ناجائز وي چې په دې کې نشه راشي ګنې نه.(المرقات ۲۳۲/۷)

## آیا دشرابو نه سرکه جوړول جائز دي؟

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه تپوس وکړی شو چې که شرابو (کې مالګه |
| عَنِ الْخَمْرِ يُتَّخَذُ خَلًّا؟ فَقَالَ: «لَا». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] |
| او پیاز وغیره اچولو سره) ددې نه سرکه جوړه کړی شي نو هغه حلال دی او که نه؟ نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل نه. |

**توضیح: یتخذ خلاً**: یعنی په شرابو کې مالګه او پیاز وغیره ملاوولو سره سرکه جوړه کړی شي نو آیا ددې سرکې استعمالول جائز دي او که نه؟ په دې کې دفقهاؤ اختلاف دی:

**دفقهاؤ اختلاف**: امام شافعی رحمه الله فرمائی چې کچیرې دڅه څیز په ملاوولو سره ترې سرکه جوړه کړی شوه نو دهغې استعمالول جائز نه دی دا اوس هم سرکه نه ده بلکه د نجس شرابو په حکم کې دی ها که پخپله په نمر وغیره کې ایخودلو سره ترې سرکه جوړه شي نو اوس دا شراب پاتې نه شو اوس ددې استعمال جائز دی، آئمه احناف فرمائی چې دڅه څیز په ملاوولو سره دشرابو نه سرکه جوړول یو مکروه فعل دی خو سرکه جوړولو نه پس هغه شراب پاتې نه شو اوس خو دا سرکه ده او سرکه حلاله ده ددې استعمال جائز دی.

**دلائل**: شوافعو د مذکوره حدیث نه استدلال کړی دی، احنافو د **نعم الادام الخل** والا حدیث نه استدلال کړی دی چې اوس شراب نه دي بلکه سرکه ده دغه شان بیهقی کې حدیث دی چې **خیر خلکم خل خمرکم**. (المرقات ۲۳۲/۷)

**جواب**: شوافعو د زیربحث حدیث نه استدلال کړی دی، احناف ددې دا جواب ورکوي چې د شرابو

---

(۱) أخرجه مسلم فی صحیحه ۳/۱۵۷۳ رقم الحدیث (۱۹۸۳-۱۱) والترمذی فی السنن ۳/۵۸۹ رقم الحدیث ۱۲۹۴، والدارمی فی ۲/۱۵۹ رقم الحدیث ۲۱۱۵ وأحمد فی المسند ۲/۲۶۰

نه د تبدیل شوي سرکې ممانعت هغه وخت دی هرکله چې په ابتداء کې د شرابو نه د نفرت ورکولو دپاره لوښو لره هم منع کړی شوې وو چې هسې نه چې شیطان د شرابو د خوند او د دې وسوسې دوباره بیا په زړه کې وانه چوي په دې وجه د شرابو نه تبدیل شوې سرکې ممانعت هم شوی دی ګنی کله چې دشرابو ماهیت تبدیل کړی شو او سکر اونشه ختمه شوه نو بیا د ممانعت وجه نشته دی، بهرحال که په دې ظاهری حدیث باندې کوم کس عمل کول وغواړي نو په دې کې څه باک نشته دی، او نه ددې د معارضې څه ضرورت شته دی.

## شراب دوا نه ده بلکه بیماري ده

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ وَائِلٍ الْحَضْرَمِيِّ أَنَّ طَارِقَ بْنَ سُوَيْدٍ |
| او حضرت وائل حضرمی رضي الله عنه روایت کوي چې طارق بن سوید دنبی علیه السلام نه د شرابو څکلو |
| سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَمْرِ فَنَهَاهُ. فَقَالَ: إِنَّمَا |
| په باره کې تپوس وکړی شو نو نبي علیه السلام هغه لره منع کړو، بیا طارق رضي الله عنه وویل چې مونږ شراب |
| أَصْنَعُهَا لِلدَّوَاءِ فَقَالَ: «إِنَّهُ لَيْسَ بِدَوَاءٍ |
| د دوائي په طور باندې استعمالولی شو؟ نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې هغه دوائي نه ده بلکه |
| وَلٰكِنَّهُ دَاءٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| (پخپله یوه) بیماری ده. (مسلم) |

**توضیح**: **انه لیس بدواء**: اکثرو علماو د دوا په طور د شرابو استعمالول منع کړې دي، بعضې علماء وائی چې که طبیب حاذق او ماهر وي او نیک او صالح وي او هغه مشوره ورکړي چې ددې مرض علاج دشرابو نه علاوه په بل څیز کې نشته دی نو په دې صورت کې به دمجبورۍ په درجه کې استعمالول مباح وي. باقي نبی علیه السلام چې کوم فرمایلي دي چې شراب بیماری ده نو دا حقیقت دی چې بیماری ده مګر په ظاهری طور باندې په دې کې عارضی هیجان او چستي راځي چې علاج نه صرف عارضی هیجان دی او دې عارضی فائدې ته په قرآن کې **ومنافع للناس** ویلی شوی دی. (المرقات ۷/۲۳۳)

(۱) أخرجه مسلم فی صحیحه ۳/۱۵۷۳ رقم الحدیث (۱۹۸۴-۱۲) والدارمی فی ۲/۱۵۳ رقم الحدیث ۲۰۹۵ وأحمد فی المسند ۴/۳۳۱

## د شرابو څکلو عذاب

## الْفَصْلُ الثَّانِي

﴿١٠﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «مَنْ

حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کوم سړی (په

شَرِبَ الْخَمْرَ لَمْ يَقْبَلِ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا

اول ځل شراب وڅکي (او توبه نه کوي) نو الله تعالى به څلويښت ورځو پورې دهغه مونځ نه قبلوي،

فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ. فَإِنْ عَادَ

بيا که هغه (په اخلاص سره) توبه وکړي نو الله تعالى دهغه توبه قبلوی او که بيا هغه (په دويم ځل)

لم يقبل الله لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ

شراب وڅکي نو الله تعالى څلويښت ورځو پورې دهغه مونځ نه قبلوي او بيا که هغه توبه وباسي

تَابَ اللهُ عَلَيْهِ فَإِنْ عَادَ لم يقبل الله

نو الله تعالى دهغه توبه قبلوي بيا که هغه (په دريم ځل) شراب وڅکي نو الله تعالى څلويښت ورځو

لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ

پورې دهغه مونځ نه قبلوي او بيا که هغه توبه اوباسی نو الله تعالى دهغه توبه قبلوی. تردې پورې

فَإِنْ عَادَ فِي الرَّابِعَةِ لَمْ يَقْبَلِ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ

چې کله هغه په څلورم ځل شراب وڅکي نو الله تعالى (نه صرف دا چې) څلويښت ورځو پورې دهغه

صباحا فَإِنْ تَابَ لم يَتُبِ اللهُ عَلَيْهِ

مونځ نه قبلوي (بلکه) که هغه توبه هم کوي نو دهغه توبه (هم) نه قبلوي او (آخرت کې) به په ده باندې

وَسَقَاهُ مِنْ نَهْرِ الْخَبَالِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ

د دوزخيانو د پيپ او وينو د نهر نه څکولی شي. (ترمذی) نسائی، ابن ماجه او دارمی دا روايت

---

[1] أخرجه الترمذی فی السنن ٤/٢٥٧ رقم الحديث ١٨٦٢ وأحمد فی المسند ٢/٣٥

| |
|---|
| وَالدَّارِمِيُّ عَنْ عَبْدِاللّٰه بن عَمْرو[1] |
| د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی. |

**توضیح**: اربعین صباحًا: د شرابو اثر دی چې څلویښتو ورځو پورې مونځ قبول نه دی خو مونځ کول به ضروري وي. مونځ چونکه ام العبادات دی او شراب ام الخبائث دی په دې وجه د شرابو اثر په مونځ باندې پریوځي او کله چې مونځ چې د افضل عباداتو نه دی قبول نه شي نو نور عبادات به په طریق اولی سره نه قبلیږي. (المرقات ۷/۲۳۳)

**لم یتب الله**: یعنی په څلورم ځل بیا الله تعالی د ده توبه نه قبلوي، علماء فرمائی چې د نبی علیه السلام دا فرمان چې دهغه توبه به نه قبلیږی دا په زجر او توبیخ او تغلیظ او تشدید باندې محمول دی ګني توبه کول د دابة الارض د خروج او شروق المشرق من المغرب پورې جاري او مقبول ده. بیا هم اصل حقیقت دا دی چې کوم سړی باربار شراب څکي نو د شرابو د نحوست د وجې نه به د ده د توبې توفیق نه نصیب کیږي، همدا مطلب شو چې دهغه توبه به نه قبلیږي. (المرقات ۷/۲۳۳)

## نشه راوستونکی څیز په لږ مقدار کې هم حرام دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰه صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې کوم څیز نشه راولي د هغه لږ |
| فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[2] |
| مقدار هم حرام دی. روایت کړې دې (ترمذی، ابو داؤد، ابن ماجه) |

## مسکر څیز یوه لپه هم حرام دی

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰه صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې د کوم څیز (مثلاً شرابو) |
| أَسكرَ مِنْهُ الفرْقُ فَمِلْءُ الْكَفِّ مِنْهُ حَرَامٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[3] |
| یو فرق (یعنی د اتو سیرو مقدار) نشه راولي د هغې یوه ډکه لپه هم حرامه ده. (احمد، ترمذی، ابوداؤد) |

---

[1] أخرجه النسائی فی السنن ۸/۳۱۶ رقم الحدیث ۵۶۶۹ وابن ماجه فی ۲/۱۱۲۰ رقم الحدیث ۳۳۷۷ والدارمی فی ۲/۱۵۲ رقم الحدیث ۲۰۹۱

[2] أخرجه أبوداود ۴/۷۸ رقم الحدیث ۳۶۸۱ الترمذی ۴/۲۵۸ رقم الحدیث ۱۸۶۵ ابن ماجه ۲/۱۱۲۵ رقم الحدیث ۳۳۹۳ مسند احمد ۳/۳۴۳.

[3] أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۹۱ رقم الحدیث ۳۶۸۷ والترمذی فی ۴ ۲۵۹ رقم الحدیث ۱۸۶۶ وأحمد فی المسند ۶/۱۳۱.

**توضيح**: الفرق : مثلاً د شرابو څه داسې قسم چې دهغې زيات مقدار نشه راولي خو په لږ مقدار کې نشه نه راولي نو ددې مطلب دا نه دی چې ددې کم مقدار به جائز وي بلکه ددې کم مقدار به هم حرام وي البته دنشې نه ختلو د وجې نه به حد نه نافذ کيږي، گناه به وي دانسان دا فطرت دی چې هغه مخکې کوم څيز لره ډېر کم استعمالوي هغه لږ څيز انسان لره ډير طرف ته راکاږي، لهذا ددې دکم مقدار نه ځان ساتل ضروري دي. فرق د شپاړسو پونډو يوه پيمانه باندې دفرق اطلاق کيږي د فرق په راء باندې فتحه اوسکون دواړه جائزدي، د مدينې والو د يوې پيمانې نوم دی چې په هغې کې درې صاعه يا شپاړس رطله غله راځي دلته لږ اوډير مقدار مراد دی. (المرقات ۷/۲۳۴)

## شراب د کومو څيزونو نه جوړيږي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنَ الْحِنْطَةِ |
| او حضرت نعمان بن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې د غنمو هم شراب وي، د |
| خَمْرًا وَمِنَ الشَّعِيرِ خَمْرًا وَمِنَ التَّمْرِ خَمْرًا وَمِنَ الزَّبِيبِ خَمْرًا وَمِنَ الْعَسَلِ خَمْرًا». |
| وربشو هم شراب وي، د کهجور هم شراب وي، دانگورو هم شراب وي او د شاتو هم شراب وي. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| (روايت کړې دې ترمذی، ابو داؤد، ابن ماجه) ترمذی رحمه الله وائی چې دا حديث غريب دی. |

## شراب په هيڅ صورت کې قابل د احترام نه دي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَن أَبِي سعيدِ الخدريِّ قَالَ: كَانَ عِندَنَا خَمْرٌ لِيَتِيمٍ |
| او حضرت ابو سعيد الخدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې مونږ سره يو يتيم شراب ايخودلي وو نو دسورت |
| فَلَمَّا نَزَلَتِ (الْمَائِدَةُ) سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ |
| مائدې هغه آيت انما الخمر الآية نازل شو نو ما دهغه يتيم د شرابو په باره کې نبی عَلَيْهِ السَّلَام نه تپوس وکړو |
| وَقُلْتُ: إِنَّهُ لِيَتِيمٍ فَقَالَ: |
| او عرض مې وکړو چې هغه ديو يتيم مال دی (او چونکه د يتيم مال نه دی ضائع کول پکار په دې وجه |

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۸۳ رقم الحديث ۳۶۷۶ والترمذی فی السنن ۴/۲۶۲ رقم الحديث ۱۸۷۲ وابن ماجه فی ۲/۱۱۲۱ رقم : ۳۳۷۹

| |
|---|
| «أهْرِيقوهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ (صَحِيح)[1] |
| اوس څه حکم دی) نبی عَلَيْهِ السَّلَامْ وفرمايل چې هغه وغورزوه. (ترمذی) |

**توضيح** : انه ليتيم : دصحابی مطلب دا وو چې دا د وړوکي ماشوم او يتيم مال دی دې لره څنګه ضائع کړم نبی عَلَيْهِ السَّلَامْ وفرمايل **اهريقوه** خامخايې تويولوسره توی کړه ځکه چې دا مال محفوظ نه دی واجب الحفاظت نه دی بلکه واجب الاهانت دی. (المرقات ۲۳۷/۷)

## دشرابو لوښي هم مات کړئ

| |
|---|
| «۱۵» وَعَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ: أَنَّهُ قَالَ: يَا نَبِيَّ الله |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نقل کوي چې هغوی عرض وکړو چې ای دالله دنبی! |
| إِنِّي اشْتَرَيْتُ خَمْرًا لِأَيْتَامٍ فِي حِجْرِي قَالَ: «أَهْرِقِ |
| ما ددې يتيمانو دپاره شراب اخستې وو چې زما په پرورش کې دي نبی عَلَيْهِ السَّلَامْ وفرمايل چې وې غورزوه |
| الْخَمْرَ وَاكْسِرِ الدِّنَانَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَضَعَّفَهُ. |
| او دهغې لوښی مات کړه. ترمذی رحمه الله ددې روايت لره نقل کړی دی او ضعيف يې ګرځولی دی. |
| وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: أَنَّه سَأَلَهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَيْتَامٍ |
| ابوداؤد رحمه الله په روايت کې داسې دي چې ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې يتيمانو په باره کې تپوس وکړو |
| وَرِثُوا خَمْرًا قَالَ: |
| (کوم چې دهغه په پرورش کې وو او چاته چې په ميراث کې شراب ملاو شوي وو نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامْ وفرمايل |
| «أَهْرِقْهَا». قَالَ: أَفَلَا أَجْعَلُهَا خلاًّ؟ قَالَ: «لَا»[2] |
| چې هغه وغورزوه، هغوی عرض وکړو چې زه ددې نه سرکه جوړه نه کړم وې فرمايل نه. |

---

(1) أخرجه الترمذی فی السنن ۳/۵۶۳ رقم الحديث ۱۲۶۳ وأحمد فی المسند۳/۲۶.

(2) أخرجه الترمذی فی السنن ۳/۵۸۸ رقم الحديث ۱۲۹۳ ورواية أبي داود أخرجها فی السنن ۴/۸۲ رقم الحديث ۳۶۷۵.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: نَهَى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كُلِّ |
| او حضرت ام سلمه رضی الله عنها وائی چې نبی صلی الله علیه وسلم منع فرمایلې ده د هر هغه څیز (خوړلو، څکلو |
| مُسْكِرٍ ومفتر. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُد (صَحِيح)(۱) |
| نه چې نشه راوستونکی او مفتر وي. (ابوداؤد) |

**توضیح : ومفتر** : په نهایه د ابن کثیر کې یې لیکلې دي چې مفتر هرهغه څیز ته وایې چې دهغې په څکلو سره دماغ او زړه باندې ګرمې خوره شي او د اندامونو په سردار کې ضعف اوفتور او کمزوري پیداشي. (المرقات ۲۳۸/۷)

قاموس کې دي فتر جسمه فتورًا لانت مفاصله وضعف یعنی بدن او دبدن جوړ چې په کوم څیز سره ضعیف او کمزوری او سست شي هغه مفتر دی، ددې تعریف پیش نظر مفتر کې نسوار، سګریټ، تمباکو والا پان او نور څیزونه داخل دي چې په هغې کې تمباکو اوبنګ یا افیم شامل وي، په حدیث کې دې لره حرام ګرځول شوی دی، صاحب درمختار او د صاحب تنویرالابصار تحقیق هم دادی چې دا څیزونه مکروه تحریمي نه دي بلکه حرام دي چنانچه د تنویر الابصار او د درمحتار عبارت داسې دی: **ویحرم اکل البنج والحشیشة وهي ورق القنب والافیون لانه مفسد للعقل. ویصد عن ذکر الله ونقل من الجامع وغیره ان من قال بحل البنج والحشیشة فهو زندیق مبتدع بل قال نجم الدین الزاهدي انه یکفر ویباح قتله (درمحتار ج۱۰ص۳۶)**

**ترجمه** : بنګ، تمباکو او افیم خوړل حرام دي ځکه چې دا څیزونه عقل لره خرابوي او د الله تعالی ذکر لره منع کوي او چاچې بنګ او حشیشو ته جائز ویلې دي هغه مبتدع او زندیق دی بلکه نجم الدین زاهدي ویلې دي چې هغه کافر شو ددې قتل جائز دی.

**ثم قال شیخنا النجم والتتن (التمباک) الذی حدث وکان حدوثه بدمشق فی سنة خمس عشرة بعد الالف ۱۰۱۵ هجری یدعی شاربه انه لایسکر وان سلم له فانه مفتر وهو حرام.**

**(۱) لحدیث احمد عن ام سلمة قالت نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن کل مسکر ومفتر وقال**

---

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۹۰/۴ رقم الحدیث ۳۶۸۶ وأحمد فی المسند ۳۰۹/۶ رقم الحدیث ۳۶۵۱ أخرجه أبوداود فی السنن ۸۹/۴ رقم الحدیث : ۳۶۸۳ وأحمد فی المسند ۲۳۲/۴.

**لیس من الکبائر تناوله المرة والمرتین (۲) مع نهي ولي الامر عنه حرم قطعًا (۳) علی ان استعماله ربما اضر بالبدن (۴) عم الاصرار علیه کبیرة کسائر الکبائر. (درمحتار ج ص)**

**ترجمه**: بیا زمونږ شیخ نجم الدین زاهدي ویلي دي چې د تمباکو نومې څیز چې د مشق ۱۰۱۵ هجري کې ایجاد شوی دی ددې استعمالولو والا اګرچه دا دعوی کوي چې په دې کې سکر نشته دا دعوی کچیرې ومنلی شي مګر دا تمباکو ددې وجې نه حرام دي چې دا په بدن کې سستي راولې مفتر دي. او د حضرت ام سلمه رضي الله عنها په روایت کې هر مسکر او هرمفتر لره منع ګرځول شوی دی او کله چې د ملک سربراه یا اولی الامر دې لره منع کړي بیاخودا قطعي حرام دی ددې سره سره په دې وجه هم حرام دی چې دا دبدن او صحت دپاره ضرري دی او که چیرې دا وړه ګناه هم وي بیا هم په دې باندې اصرار کولو سره کبیره جوړیږي. صاحب درمختار په عبارت سره ددې څیزونو حرمت یا مکروه تحریمی کیدل واضح کیږي د سعودی عرب دعلماو فتوي هم داسې ده د علماء احنافو د سرخیل علامه ابن عابدین شامی رحمه الله د درمختار د عبارتونو نه ښه تائید کیږي، او بعضې یې رد فرمایلې دي، او پخپله دده رجحان هم دې طرف ته دی چې دتمباکو استعمال مکروه تنزیهی دی خو هغوی دخارجی مفاسدو دوجې نه دې څیزونو لره حرام هم لیکلې دی چې بعضې علماء ددې څیزونو د حرمت قائل دي، او بعضو مباح یا مکروه تنزیهی وایې، دوی دچیلم او سګریټو په باره کې د شرح وهبانیه نه دا شعرهم نقل کړی دی.

**ویمنع من بیع الدخان وشربه**

**وشاربه فی الصوم لاشک یفطر**

علامه شامی رحمه الله د څیزونه خارجی مفاسدو کې د شامل کیدو دوجې حرام ګرځولې دي، فرمایې:

**واما ماینضم الیها من المحرمات فلاشبهة فی تحریمه** (شامی ج۱۰ ص۵۰) په در مختار کې د بنګو متعلق دوه شعرونه داسې دي:

**وافتوا بتحریم الحشیش وحرقه**

**وتطلیق محتش لزجر وقرروا**

**لبائعه التادیب والفسق اثبتوا**

**وزندقه للمستحل وحرروا**

یعنی علماؤ خاشخاش او بنګ استعمالول او سوزولو سره دڅکلو دحرمت فتوی ورکړې ده او بطور

زجرپې دحشیش نه مدهوش سړي د طلاق واقع کیدو حکم ورکړی دی او هغوی دحشیشو د خرڅونکي د سزا او د فسق او تادیب حکم ورکړی دې او دې لره د حلال ګڼلو والا یې زندیق لیکلی دی.

بهرحال د حل او حرمت مسئله چې په هغې حرمت ته ترجیح ورکولی شي ماصرف څو خبرې نقل کړې دي دې دپاره چې علماو او عوامو په مخکې دا خبره راشي چې دتمباکو معامله دومره ساده نه ده.

علامه طیبی رحمه الله فرمائی **ولایبعد ان یستدل علی تحریم البنج والشعشاء ونحوهما مما یفتر ویزیل العقل لان العلة وهی ازالة العقل مطردة فیها** (المرقات ۲۳۸/۷، الکاشف ۲۱۲/۷)

ترجمه: اوسګریټ څکل او ددې اخستل او خرخول دې منع کړی شي او که چیرې په روژه کې یې سګریټ وڅکل نو یقینًا روژه به یې ماته شي.

## دشراب څکلو په هیڅ حال کې هم اجازت نشته دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ دَيْلَمٍ الْحِمْيَرِيِّ قَالَ: قُلْتُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا بِأَرْضٍ بَارِدَةٍ | | | | | | | |
| او حضرت دیلم حمیري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې ما عرض وکړو ای د الله رسوله! مونږ خلق د یوې یخې | | | | | | | |
| وَنُعَالِجُ | فِيهَا | عَمَلًا | شَدِيدًا | وَإِنَّا | نَتَّخِذُ | شَرَابًا | |
| علاقې او سیدونکي یو هلته مونږ د سخت محنت کار کوو مونږ خلق د غنمو نه شراب تیاروو چې | | | | | | | |
| مِنْ | هٰذَا | الْقَمْحِ | نَتَقَوّٰى | بِهٖ | عَلٰى | أَعْمَالِنَا | |
| دهغه په ذریعه مونږ د خپل محنت دپاره طاقت حاصلوو او ددې په قوت سره مونږ د خپلې علاقې | | | | | | | |
| وَعَلٰى | بَرْدِ | بِلَادِنَا | قَالَ: | «هَلْ | يُسْكِرُ؟» | قُلْتُ: | نَعَمْ |
| یخنی باندې قابو مومو. نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې آیا هغه شراب نشه راولي؟ ما عرض وکړو چې جی هو! | | | | | | | |
| قَالَ: | «فَاجْتَنِبُوهُ» | قُلْتُ: | إِنَّ | النَّاسَ | غَيْرُ | تَارِكِيهِ | |
| نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل نو بیا ددې نه ځان وساتئ. ما عرض وکړو خلق د هغې پرېښودلو والا نه دي | | | | | | | |
| قَالَ: | «إِنْ | لَمْ | يَتْرُكُوهُ | فقاتلوهم». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] | |
| نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل کچیرې خلق دهغې څکل بند نه کړي (او دا حلال ګڼړی) نو هغوی سره قتال وکړئ. (ابوداؤد) | | | | | | | |

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۸۹/۴ رقم الحدیث ۳۶۸۳ وأحمد فی المسند ۲۳۲/۴.

## د شرابو او د جوارۍ ممانعت

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْخَمْرِ |
| او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما روایت کوي چې نبی علیه السلام د شرابو څکلو او د جوارۍ کولو |
| وَالْمَيْسِرِ وَالْكُوبَةِ وَالْغُبَيْرَاءِ وَقَالَ: «كُلُّ |
| نه منع فرمایلې ده او د کوبه او غبیره نه یې هم منع فرمایلې ده دارنګه وې فرمایل چې کوم څیز هم |
| مُسْكِرٍ حَرَامٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد(۱) |
| نشه راولي هغه حرام دی. (ابوداؤد) |

**توضیح**: کوبه: نرد او شطرنج ته وایې دغه شان نقاره او د باجو آلاتو ته هم کوبه وایي. **الغبیراء**: داد حبشو جوړشوي د یو شرابو نوم دی په افریقي ملکونو کې د ژوارو پیداوار ډېر زیات دی هغه خلق چې د مکئ (جوارو) نه کوم شراب تیاروي هغې ته غبیراء وائی (المرقات ۲۳۹/۷)

## شرابي به جنت ته نه داخلیږي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روایت دی چې نبی علیه السلام وفرمایل (کوم خلق چې خاص نجات موندلو سره |
| «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَاقٌّ وَلَا |
| په شروع کې جنت ته داخلیږي دهغوی سره) به جنت ته نه خو هغه سړی داخلیږي چې د خپل مور پلار (بلا وجې) |
| قَمَّارٌ وَلَا مَنَّانٌ وَلَا مُدْمِنُ خَمْرٍ». |
| نافرمانی کوي او نه به جوارګر داخلیږي او نه به هغه سړی داخلیږي چې فقیرانو ته صدقه ورکړي او احسان پرې |
| رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: |
| کوي، او نه به هغه سړی داخلیږي چې همیشه شراب څکي (دارمی) او د دارمی په یو روایت کې دي |
| «وَلَا وَلَدُ زِنْيَةٍ» بَدَلَ «قَمَّار»(۲) |
| نه به جوارګر داخلیږي په ځای د دي چې نه به ولد الزنا (جنت ته) داخلیږي. |

---

(۱) أخرجه ابوداود فی السنن ۴/۸۹ رقم الحدیث ۳۶۸۵.

(۲) أخرجه النسائی فی السنن ۸/۳۱۸ رقم الحدیث ۵۶۷۲ والدارمی فی ۲/۱۵۳ رقم الحدیث ۲۰۹۴ وأحمد فی المسند ۲۰۱.

**توضيح**: **ولاقمار**: جواري کونکي ته قمار وايې د موجوده زمانې په اعتبار سره هر هغه لوبه چې په هغې دطرفينو دطرف په ګټلو بايللو باندې شرط ايخودلی شوی وي هغه ټولې لوبې په جواری کې داخلې دي.(المرقات ۲۳۹/۷)

**ولا ولد زلية**: ولد زنا چونکه دپلار دتربيت نه محرومه وي دمنحوسې نطفې بد اثر په ده کې وي په عام طور باندې لوفر وي د بدکرداره مور په غيږ کې يې پرورش موندلی وي لهذا هغه د ظاهري او باطنی تربيت نه ملاويدو په وجه سره هر قسم لوفرۍ او دبدو کې مبتلا کيږي په دې وجه دجنت نه محروم کيږي. بعضې علماؤ دې حديث ته ضعيف ويلی دی ځکه چې دقواعدو د شريعت سره په ظاهره متعارض دی، ځکه چې د وړوکي ماشوم څه قصور دی، بعضو ويلې دي چې په دې سره ددې بچي په زناکار پلار باندې تعريض مقصود دی چې دداسې بچي دپيدايش سبب جوړ شو.(المرقات ۲۳۹/۷)

## نبی اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګانو بجانو د آلاتو د ماتولو دپاره راغلی وو

﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللهَ تَعَالَى

او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وائی چې رسول کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل الله تعالی ما لره دپوره دنيا

بَعَثَنِي رَحْمَةً للعالمينَ وهُدىً لِلْعَالِمِينَ وَأَمَرَنِي رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ

دپاره رحمت او دټول عالم دپاره هادي جوړ کړی راليږلی يم او زما بزرګ او برتر الله ما ته حکم کړی دی

بِمَحْقِ الْمَعَازِفِ وَالْمَزَامِيرِ وَالْأَوْثَانِ وَالصُّلُبِ وَأَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ

چې زه مزامير، بتان، صليب او دزمانه جاهليت (يعنی دکفر دحالت) ټولو رسوماتو او عاداتو لره مات کړم

وَحَلَفَ رَبِّي عزَّوجلَّ: بِعِزَّتِي لَا يشربُ عبدٌ مِنْ عَبِيدِي جرعةً خَمْرٍ

او زما عزت مند خدای په خپل عزت قسم خوړلی دی چې زما بندګانو نه کوم بنده هم دشرابو يو ګوټ

إِلَّا سَقَيْتُهُ مِنَ الصَّدِيدِ مِثْلَهَا وَلَا يَتْرُكُهَا

هم وڅکی زه به په هغه باندې (په آخرت) کې هم دومره قدرې د دوزخيانو پيپ وڅکوم او کوم بنده چې زما د

مِنْ مَخَافَتِي إِلَّا سَقَيْتُهُ مِنْ حِيَاضِ الْقُدُسِ". رَوَاهُ أَحْمَد[1]

يرې دوجې نه شراب پريږدي زه به هغه باندې د پاکو حوضونو (يعنی دجنت د نهرونو) نه (شراب طهور) وڅکوم.

---

([1]) أخرجه أحمد في المسند ۲۲۸/۵

**توضیح** : **المعازف** : ددې نه مراد باجې،ډول،ډولکي،نقاره تاشه،طبله،طنبوره، ستار،سارنګي او دغه شان نور دګانو بجانو آلات دي. **مزامیر** ددې نه چنګ اورباب شهنائی او شپیلۍ او دغه شان څیزونه مراد دي د ساز سره لوبه اوریدل حرام دي او بغیر د ساز نه اوریدل جائز دي په شرط ددې چې زنانه او امارد (بې ګیرې هلکان) نه وي. (المرقات ۷/ ۲۴۰)

الصلب : صلیب نه دی د عیسائیانو قومي نشان او مقدس مذهبی او قومی علامه مراد ده چې نن صبا د ریډکراس په نشان سره هرځای کې ښکاره دی.

## درې قسمه خلقو باندې جنت حرام دی

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ثَلَاثَةٌ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمایل په درې قسمه سړو باندې |
| قَدْ حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِمُ الْجَنَّةَ: مُدْمِنُ الْخَمْرِ |
| الله تعالی جنت حرام کړی دی یو خو هغه سړېچې همیشه شراب څکي،دویم هغه سړی چې د خپل |
| وَالْعَاقُّ وَالدَّيُّوثُ الَّذِي يُقِرُّ فِي أَهْلِهِ الْخَبَثَ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| مور پلار نافرماني وکړي، او دریم هغه دیوث چې په اهل او عیال کې ناپاکی پیدا کړی. (احمد، نسائی) |

**توضیح** : **العاق** : ددې نه نافرمانه اولادمراد دی په نافرمانۍ سره اولادپخپله عاق کیږی په ژبې سره د اعلان ضرورت نشته نه داشتهار ورکولو ضرورت دی (والدیوث) دا هغه سړی دی چې د خپلې ښځې په باره کې ښه پوهه وي چې هغه بدچلنه ده او هغه منع کوي نه بلکه سترګې پرې پټوي او خاموش تماشه کونکی جوړشوی وي، په حدیث کې دهغه همدا تعریف راغلی دی ګویا چې د هغې بدۍ لره بدي نه مني نو په دوزخ کې به وي.(المرقات ۷/ ۲۴۱)

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ثَلَاثَةٌ |
| او حضرت ابو موسی اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل : درې قسمه خلق به |
| لَا تَدْخُلُ الجنَّةَ: مُدْمِنُ الخمرِ وقاطِعُ الرَّحِم |
| جنت ته په ابتداء کې) د داخلیدو نه محرومه وي (۱) همیشه شراب څکلو والا. (۲) رشتې ماتولو والا |

---

(۱) أخرجه أحمد فی المسند ۲/۱۳٤

ومصدق السحر" رَوَاهُ أَحْمد[1]

(۳) په سحر (جادو) باندې یقین کولو والا. (احمد)

## شراب څکل دبت پرستۍ په شان دی

﴿۲۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کوم سړی .

«مُدْمِنُ الْخَمْرِ إِنْ مَاتَ لَقِيَ اللهَ كعابِدِ

همیشه په شرابو څکلو کې مبتلا وي او بیا مړشي نو د الله تعالی په حضور کې به د بت پرستۍ والا

وثن». رَوَاهُ أَحْمد[2] وروى ابْن مَاجَه عَن أَبِي هُرَيْرَة[3] وَالْبَيْهَقِيُّ

په شان حاضر وي. (احمد) ابن ماجه دې روایت لره د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه او امام بیهقی رحمه الله په

فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عبيد الله عَن أَبِيه.

شعب الایمان کې د محمد بن عبد الله نه او هغوی د خپل پلار نه نقل کړی دی دا رنګه امام بیهقی رحمه الله ویلې دي

قَالَ: ذَكَرَ الْبُخَارِيُّ فِي التَّارِيخِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عبد الله عَن أَبِيه[4]

چې امام بخاری رحمه الله دې روایت لره په خپل تاریخ کې د محمد بن عبد الله نه او هغوی د خپل پلار نه نقل کړی دی.

﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: مَا

او حضرت ابو موسی اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل دي چې هغه به فرمایل چې په دې کې څه (فرق) نشته دی

أُبَالِي شرِبتُ الخمرَ أَو عبدْتُ هذهِ السَّارِيَةَ دونَ الله. رَوَاهُ النَّسَائِيّ (مُتَّفقٌ عَلَيْهِ)[5]

چې زه شراب وڅکم یا د الله تعالی نه سیوا هغه ستنې (یعنی د کاڼي دبت) عبادت وکړم. (نسائی)

---

(1) أخرجه أحمد في المسند ۴/۳۹۹

(2) أخرجه أحمد في المسند ۱/۲۷۲

(3) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۱۲۰ رقم الحديث ۳۳۷۵.

(4) رواه البيهقي في الشعب الايمان ۵/۱۲ رقم الحديث ۵۵۹۷.

(5) أخرجه النسائي في السنن ۸/۳۱۴ رقم الحديث ۵۶۶۳.

# کتاب الْإِمَارَةِ وَالْقَضَاء

## د امارت او قضا بیان

قال الله تعالى : (الذين ان مكناهم في الارض اقاموا الصلوة وأتوا الزكوة وامروا بالمعروف ونهوا عن المنكر) (سورة الحج ۴۱)

امارة د همزې په کسرې سره دی د باب سمع يسمع نه امرأ وامارة د مضبوط کیدو او اميرجوړيدو په معنی سره دی. او امارة د همزې په زبر سره د علامې په معنی سره دی دلته دا مراد نه دی بلکه امارة بکسرة الهمزه مراد دی.(المرقات ۲۴۴/۷)

**په اسلام کې د اسلامی رياست تصور** : اسلام يو کامل او مکمل دين دی، حکومت او امارت او امام مقررول او د اسلامي خلافت قيام داسلام حکم دی، ځکه چې د اسلام د زيات ترو احکاماتو براه راست تعلق دحکومت او امارت سره تړلی دی. دارنګه د اسلام ټول قواعد اوقوانين اونظم اوضبط داسلام دخاص مزاج مطابق کيدل ضروري دي لهذا هيڅ يو مسلمان د اسلامی امارت دقيام د کوشش نه لاتعلقه کيدی نه شي. ځکه چې دفع د خصوماتو اوحفاظت د سراحداتو، دعيدينو اوجمعو قيام، دبيت المال قيام دصدقاتو حصول، دمجاهدينو تياری او د جهاد مهمات، د حجاجو کرامو د لارې امنيت، او امر بالمعروف او نهی عن المنكر، دمخلوق خدا ضروري خدمات، او د تعليم اوتعلم شعبه جات او دقانون الهي دالله تعالى په زمکه باندې په عملی طور باندې نافذکول ټول په ټوله دحکومت سره تړلې دي په دې وجه ويلی شوې دي: **الدين والامارة توأمان** يعنی دين اوحکومت دوه جوړه وروڼه دي. دامام مقررول او دخلافت اسلاميه قيام دمسلمانانو او اسلام په اهمو قواعدو کې هغه اهمه قاعده ده چې دهغه تذکره په خاص طور زمونږ دعقائدو په کتابونو کې شوې ده. په شرح عقائد نسفی کې ددې متعلق داسې ليکلی شوې دي: **ثم الاجماع على ان نصب الامام واجب لقوله عليه السلام من مات ولم يعرف امام زمانه فقدمات ميتة جاهلية ولان الامة قدجعلوا أهم المهمات نصب الامام حتى قدموا على الدفن ولان كثيرا من الواجبات الشرعية يتوقف عليه**. ددې ټولو تصرفاتو باوجود نه شي ويلی کيدی چې دين اسلام ته دخليفه ضرورت نشته او مسلمان لره داقامت احکام او داشاعت اسلام دپاره دحاکم اوحکمرانی ضرورت نشته کله چې داثابته شوه چې دخلافت قيام يوه ضروري او اهمه مسئله ده نو اوس زمونږ تشکيل

د خلافت دپاره د اسلام د قواعدو په رڼا کې اسلامي خاص طريقه پکار ده مونږ چې کله د سلف صالحينو تشکيلات مخې ته کيږدو نو مونږ ته به د تشکيل خلافت دپاره واضح درې طريقې ملاؤ شي.

**د تشکيل خلافت درې طريقې** : (۱) د تشکيل خلافت اوله طريقه داده چې د دين اسلام د ټولو نه وفادار د ټولو نه زيات د دې قواعدو او ضوابطو ماهر او د ټولو نه زيات قرباني ورکونکي او د ټولو نه زيات همدردئ ساتلو والا ته عام مسلمان مخې ته راولې او د هغه په لاس باندې به بيعت کولو سره په منصب امامت باندې مقرر کړي، حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت د انتخاب طريقه همداسې وه د ټولو د اتفاق سره دده د کمالاتو او قربانئ او خدماتو په بنياد باندې د هغه انتخاب وشو په دې باندې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اجماع وشوه بعضې علماؤ په نزد د دې اجماع منکر کافر دی.

(۲) د تشکيل دويمه طريقه داده چې موجوده خليفه د خپل وفات په وخت چالره په خپله مقرر کړي يا يې خپل ولي عهد جوړ کړي نو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت تشکيل همداسې وشو حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپل صوابديد باندې د غه شان تقرر و فرمايلو په يو سربند کاغذ باندې يې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم وليکلو او بيا يې د ټولو مسلمانانو نه مطالبه وکړه چې په دې بند کاغذ کې د چا نوم دی هغه ستاسو خليفه دی آيا تاسو به دا ومنئ ټولو اقرار وکړو چې منو به يې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمائيل چې منم يې، اګرچې په دې کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم ليکلی شوی وي کله چې ښکاره کړی شو نو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم وو د غه شان هغه خليفه جوړ شو. (۳) دريمه طريقه داده چې د مسلمانانو د اصحاب رايې خلقو يوه **شورئ** جوړه کړی شي او هغه **شورئ** چې چا لره د خلافت دپاره مقرر کړي او بيا د عوام الناس نه په دې باندې بيعت واخلي حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې طرز باندې منتخب شو او د هغوی خلافت په دې طريقه باندې منعقد شو ځکه چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د زخمي کيدو نه پس شپږ سړي تشکيل خلافت دپاره بطور **شورئ** مقرر کړل په هغوی کې حضرت عثمان بن عفان، حضرت علي، حضرت طلحه حضرت زبير، حضرت عبدالرحمن بن عوف او سعد بن ابی وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ شامل وو، هغوی د بهر د سيکورټي کار د پيره ولګوله او وې فرمايل چې کله پورې په دوی کې څوک منتخب نه شي نو ته دې خلقو لره بهر مه راپريږده، دا د تشکيل خلافت درې پاکيزه نمونې دي د کوم په ذريعې سره چې د خلفاء راشدينو د خلافتونو قيام په عمل کې راغلو.

په اسلام کې د تشکيل خلافت څلورمه طريقه هم شته دی چې د بادشاهت ده اګرچې دا طريقه منصوص نه ده خو ډير زيات خلفاء د بادشاهت په طريقه باندې منتخب کيدو سره راغلې دي په دې وجه دې ته بالکل ناجائز نه شي ويلی. د بنو اميه په دور کې د دې طرز بادشاهتونه وو بادشاهت د

وراثت په بنیاد باندې قائم شوې حکومتونه وي. د دې طریقو نه علاوه جمهوریت هم د تشکیل حکومت دپاره یوه طریقه ده چې پکې د ووټونو په ذریعه سره یو سړی منتخبولی شي. دا د یهودیت او نصرانیت طریقه ده چې باعث دلعنت ده اقبال مرحوم ویلې دي:

جمہوریت ایک طرز حکومت ہے کہ جس میں
بندوں کو گنا کرتے ہیں تولا نہیں کرتے

بیا فرمایې:

جلال بادشاہی ہو کہ جمہوری تماشہ ہو
جدا ہو دین سیاست سے تو رہ جاتی چنگیزی

بیا فرمایې:

گریز از طرز جمہوری غلام پختہ کارے شو
کہ از مغز دو صد خر فکر انسانے نمی آید

حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله د فاذا عزمت فتوکل الله په تفسیر کې فرمایې چې په دې آیت کې د جمهوریت جرړې کټ شوې بیا فرمایې جمهوري سلطنت هم څه سلطنت وي؟ دا خو صرف د ماشومانو لوبه او دانګریزانو بدعت دی حضرت مفتي اعظم مفتي محمود رحمه الله دې لره لعنت ګرځولی وو. حضرت مولانا یوسف لدهیانوی رحمه الله جمهوریت لره په صنم اکبر سره یاد کړو، کله چې د اسلام سره دتشکیل خلافت مستند طریقې موجود دي نو بیا خو ډیر د شرم خبره ده چې مونږ په تشکیل حکومت کې د یهود او نصاری مددګاران جوړ شوي وو.

په اسلام کې مذهب او سیاست او حکومت هم یو څیز دی حضرت داود عَلَيْهِ السَّلَام په مبارکه زمانه کې دا څیزونه یو ځای شوې وو د دې نه مخکې نبوت او حکومت نه شو یو ځای کیدی په دې مخکې دور کې عیسائیان پادریان د خپل استیټ په مخکې خاورې شول یوې او وړې موډې پورې د استیټ او کلیسا جګړه وه خو پادریانو بایلله په دې وجه هغوی د ګمنامی کوټ ته لاړل او داسې په دې وجه وشوه چې د عیسایانو سره څه ژوندي دین نه وو شریعت نه وو په وهمونو او خرافاتو باندې قائم خلق وو په دې وجه باندې په کلیسا باندې استیټ غالب شو او دواړه جدا جدا شول، په اسلام کې دا ممکن نه دی په دی وجه دا یو ژوندی او آباد دین دی او دژوند په ټولو شعبو باندې حاوي دی او په اصلي حالت کې موجود دی او دانسانانو دټولو شعبو ټول مسائل حل کوي دلته دعیسایانو او اسلام موازنه کول غلط دی لهذا امارت او قضاء حکومت او سیاست، امیر خلیفه، مالک او

رعایا، فوج او نظم او ترتیب ټول د اسلامی خلافت شعبې دي.

اسلام د امن او امان او خپل مینځ کې د محبت او جوړ پیدا کولو والا مذهب دی د نبی علیه السلام د کریمانه اخلاقو او د هغوی د معتدل تعلیماتو بنیادي مزاج دادی چې نبی علیه السلام د حاکم او محکوم او د آمر او مامور او د دائن او مدیون په مینځ کې د تور په ځای جوړ پیدا کړی دی دوی حاکم ته د عدل او انصاف تعلیم ورکړی دی او رعایایې د هر تکلیف د برداشت کولو ترغیب ورکړی دی د خپلو حقوقو د باوولو او د نورو د حقوقو د اداء کولو ترغیب یې ورکړی دی، غرض فریقینو ته یې د دې ذمه دارو ځانله ځانله احساس ورکړی دی د کتاب الزکوة او کتاب الامارة په بابونو کې د شریعت دې تعلیماتو لره هر سړی په ښکاره طور باندې محسوسوي او د معاشرې د اصلاح همدا بنیادي کانی دی چې هر سړی او هرې طبقې ته د هغوی د ذمه دارو احساس ورکړی شي دارنګه په اسلام کې څو حدود او څو سزاګانې دي باقی پوره نظام، تقوی، د الله وېره، دیانت او امانت او د یو بل د حقوقو لحاظ ساتلو باندې مبنی دی نو چیرته چې هم او کله هم مسلمانانو د یو بل سره د ایثار او محبت او د حقوقو د اداګۍ معامله څه ده معاشره د امن او محبت ځانګو جوړه شوه، او چیرته چې دې اصولو لره مات کړی شو هلته د فساد او بدامنۍ او عداوت او دشمنۍ حکومت شو په منصب امامت باندې شاه اسماعیل شهید رحمه الله کتاب لیکلې دي ما په اسلامی خلافت نومې کتاب کې په تفصیل سره لیکلې دي او په تشکیل خلافت باندې فتنه ارتداد نومې کتاب کې تفصیل سره لیکلې دي.

**قضاء او قاضی**: قاضی هغه سړی وي کوم لره چې د وخت حاکم د عوام الناس د قضاء او معاملاتو د حل کولو دپاره مقرر کړي د اسلام په نظر کې اقتدار اعلی د الله تعالی په لاس کې دی او د مسلمانانو چې کوم حکومتونه یا خلافتونه دي دا صرف دا هم د دې اقتدار اعلی د احکاماتو د تنفیذ دپاره مقرولی شي د اسلام په نظر کې پوره دنیا کې د مسلمانانو به هم یو خلیفه کیدل پکار دي، د امام او حاکم دپاره ضروري ده چې په هغه کې د احکاماتو د تنفیذ قوت او حوصله وي کچیرې د احکامو د تنفیذ قدرت نه وي نو هغه خلیفه پخپله معزول کیږي.

امام شافعی رحمه الله فرمايي چې کچیرې حاکم په فسق او فجور کې مبتلا شي نو هغه به معزول کولی شي او همدا مسئله د قاضی هم ده خو امام ابو حنیفه رحمه الله فرمايي چې د فسق او فجور د وجې نه حاکم او قاضي لره نه شي معزول کولی ها کچیرې واضح کفر مخې ته راشي یا امام او قاضی مونځ پریږدي نو بیا به معزول کولی شي. ها که د ابتداء نه قاضی او امام فاسق وي نو احناف په دې صورت کې د شوافعو سره دی چې داسې فاسق او فاجر لره امام او قاضی مقرر کول جائز نه دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## دامير اطاعت دالله تعالى او دهغه درسول اطاعت دى

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَطَاعَنِي |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائى چې نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمايل چې كوم كس زما فرمانبرداري كوي هغه |
| فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ عَصَى اللهَ |
| د الله تعالى فرمانبرداري وكړه او چا چې زمانافرماني وكړه هغه د الله تعالى نافرماني وكړه او كوم |
| وَمَنْ يُطِعِ الْأَمِيرَ فَقَدْ أَطَاعَنِي وَمَنْ يَعْصِ الْأَمِيرَ |
| كس چې دخپل امير (سردار) اطاعت وكړو هغه زما اطاعت وكړو او كوم كس چې دخپل اميرنافرماني وكړه |
| فَقَدْ عَصَانِي وَإِنَّمَا الْإِمَامُ جُنَّةٌ |
| هغه زما نافرماني وكړه، او ياد ساتئ، امام يعنى دمملكت سربراه (دمسلمانانو دپاره) د ډهال په شان دى |
| يُقَاتَلُ مِنْ وَرَائِهِ وَيُتَّقَى |
| چې دهغه شاته جنګ كيږي او دچا په ذريعې سره چې حفاظت حاصليږي! پس (كچرې هغه (امام) دالله |
| بِهِ فَإِنْ أَمَرَ بِتَقْوَى اللهِ وَعَدَلَ |
| د ويرې نه (دهغه دقانون مطابق) فيصله وكړي او د عدل او انصاف نه كار واخلي نو په دې وجې سره به |
| فَإِنَّ لَهُ بِذَلِكَ أَجْرًا |
| هغه امام دلوى اجر او ثواب مستحق وي او كه چرې هغه داسې ونه كړي. (يعنى دده د احكام او فيصلې، د الله د |
| وَإِنْ قَالَ بِغَيْرِهِ فَإِنَّ عَلَيْهِ مِنْهُ» متفق عليه (صَحِيح)[۱] |
| ويرې، او دقانون الهى د روح او عدل او انصاف نه خالي وي) نو ددې په وجې سره به هغه سخت ګناهګار وي. |

**توضيح**: **ومن يطع الامير**: دامير نه دلته د نبى عَلَيْهِ السَّلَام مقرر كړى امير هم مراد اخستلى شي (اى امير) او مطلق امير يعنى څوک حاكم ياد حاكم د طرف نه مقرر كړى شوى امير هم مراد اخستلى شي لكه څوک سړى ديوې علاقې ګورنر يا وزير دى يا په بل څه كار باندې مامور دى دلته دغير سركاري

---

(۱) أخرجه البخارى فى صحيحه ۶/۱۱۶ رقم الحديث ۲۹۵۷ ومسلم فى ۳/۱٤٦٦ رقم الحديث( ۱۸۳۵-۳۳) والنسائى فى السنن ۷/۱۵٤ رقم الحديث ٤۱۹۳ وابن ماجه فى ۲/۹۵٤ رقم الحديث ۲۸۵۹ وأحمد فى المسند ۲/۲۵۲.

تنظيمونو او دجماعتونو امير مراد نه دی. لکه تبليغي جماعت يا د نورو جماعتونو امراء وي جواز په خپله جوړولی شي او هغوی ته سرکاري حيثيت نه حاصليږي په دې وجه د هغې شرعی حيثيت هم نه وي، لهذا د هغه اطاعت يا عدم اطاعت باندې د باب الامارة حديثونه چسپان کول مناسب نه دي ها دا ځانله خبره ده چې په خپل مينځ کې د نظم او ضبط د پاره او د ترتيب سره د اداء کار د پاره اطاعت ضروري دی. (المرقات ۲۴۴/۷)

په دې حديث کې د عربو قبائلو لره د امير او د اطاعت امير د نظام سره متعارف کړی شو په عربو کې چونکه د قبائلي سستم رواج وونو هغه خلق د امير او حاکم نه په ذهني طور سره غيرمانوس او ويريدل د دې وېرې د ختمولو د پاره نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې د سرکاري امير اطاعت په حقيقت کې زما اطاعت دی ځکه چې ما هغه مقرر کړی دی.

**وانما الامام جنّة**: د مسلمانانو د خليفه تشبيه نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د ډهال سره په دې وجه ورکړې ده چې څنګه ډهال د تورې ګوزار لره منع کوي او خپل ځان بچ کولی شي د غه شان د حاکم په ذريعه رعايا د دشمن نه بچ کيدی کيږي. **يُقَاتَلُ** او **يُتَّقَى** دواړه د مجهول صيغې دي. (المرقات ۲۴۴/۷)

## د مقرر کړی شوې امير اطاعت ضروري دی

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ أُمِّ الْحُصَيْنِ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنْ أُمِّرَ | | | |
| او حضرت ام حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کچيرې څوک مات غوږی يعنی غوږ | | | |
| عَلَيْكُمْ | عَبْدٌ | مُجَدَّعٌ | يَقُودُكُمْ |
| کټ شوی غلام هم ستاسو حاکم جوړ کړی شي او هغه د الله تعالی د قانون مطابق په تاسو باندې | | | |
| بِكِتَابِ اللهِ فَاسْمَعُوا لَهُ وَأَطِيعُوا». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] | | | |
| حکمراني کوي، نو د هغه حکم ومنئ او د هغه اطاعت کوئ. (مسلم) | | | |

**توضيح**: عبد حبشي: يعنی اګر چې هغه سړی يو سياه فام غلام ولې نه وي تاسو اطاعت وکړئ.

**سوال**: سوال دا دی چې د غلام حکومت په اسلام کې جائز نه دی ځکه چې هغه په خپل ښکته سوچ سرهٔ به پوره قوم لره ښکته غورزوی نو بيا دلته يې د غلام حکومت لره څنګه تسليم کړی شو او د اطاعت ترغيب يې ولې ورکړو؟

---

(۱) أخرجه مسلم فی صحيحه ۲/۹۴۴ رقم الحديث (۱۲۹۸-۳۱۱) والترمذی فی السنن ٤/۱۸۱ رقم الحديث ۱۷۰۶ والنسائی فی ۷/۱٥٤ رقم الحديث ٤۱۹۲ وابن ماجه فی ۲/۹٥٥ رقم الحديث ۲۸٦۱ وأحمد فی المسند ٦/٤۰۲ .

**جواب**: ددې سوال یو جواب دادی چې داحبشي غلام په زبردستۍ سره مسلط کړی شو په حکومت باندې قابض شو لکه په مصر کې کافور متغلب شوی وو په دې صورت کې کچیرې هغه دکتاب الله په رڼا کې خلقو لره چلوي نو دهغه د اطاعت نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ حکم ورکړی دی. **دویم جواب** دادی چې داکلام په طور د فرض او تقدیر دی چې فرض کړه کچیرې غلام هم په تاسو باندې بادشاه جوړ شي بیا به هم اطاعت کوئ نو دلته د اطاعت ترغیب دی دغلام حکومت تسلیمول نه دي.

**دریم جواب** دادی چې دلته د امیر نه بادشاه مراد نه دی بلکه دبادشاه مقرر کړی شوی امیر او نائب مراد دی چې په یوه خاصه علاقه باندې امیر جوړ کړی شوی وي. (المرقات ۲۴۴/۷)

**مجدع**: د باب تفعل نه د اسم مفعول صیغه ده پوزه او غوږ کټ شوی غلام نکتهو، دا لفظ زیات تر چې پوزه کټ شوی وي دهغه دپاره استعمالیږي. (المرقات ۲۴۴/۷)

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وائی چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل (دخپل امیر او حاکم فرمان اورئ) او (د |
| قَالَ: «اسْمَعُوا وَأَطِيعُوا وَإِنِ |
| هغه دا وامرو او نواهیو) اطاعت کوئ (تردې چې دهغه څه فرمان د الله او دهغه د رسول خلاف نه وي) |
| اسْتُعْمِلَ عَلَيْكُمْ عَبْدٌ حَبَشِيٌّ كَأَنَّ |
| اګرچې په تاسو باندې څه داسې غلام حکمران ولې نه وي جوړ شوی چې دهغه سر (وړوکی او په |
| رَأْسَهُ زَبِيبَةٌ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| توروالي کې) د انګور (په شان) وي. (بخاری) |

**توضیح**: **زبیبه ماجف من العنب**: دوسکو او انګورو وړې دانې ته وائی مراد ترې نه ذلیل وحقیر او کمتر غلام دی دا د اطاعت امیر تاکید دی د جواز او عدم جواز خبره نه ده او دا شرط ملحوظ دی چې دکتاب الله په رڼا کې حکومت چلوي. (المرقات ۲۴۴/۷)

## دغیر شرعی حاکم حکم منل واجب نه دی

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وائی چې رسول کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمایل (دخپل امیر او حاکم خبرې |

[1] أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۳/۱۲۱ رقم الحدیث ۷۱٤۲ وابن ماجه فی السنن ۲/۹۵۵ رقم الحدیث ۲۸٦۰ وأحمد فی المسند ۳/۱۱٤.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| «السَّمعُ | والطَّاعةُ | على | المرءِ | المسلمِ |
| لره) اوریدل او (د هغه د احکامو) فرمانبرداري کول په هر حالت کې په مسلمان سړي باندې واجب دي | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيمَا | أحب | وأكره | مَالَمْ | يُؤْمَرْ | بِمَعْصِيَةٍ |
| که (د هغه څه حکم هغه ته خوښ وي یا ناخوښ وي تر دې چې د څه ګناه د خبرې حکم ونه کړی شي. | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِذَا | أُمِرَ | بِمَعْصِيَةٍ | فَلَا ، سَمْعَ | وَلَا | طَاعَةَ» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | |
| لهذا کله چې کوم حاکم داسې حکم ورکړي چې په هغې عمل کول ګناه وي نو د هغې اطاعت کول واجب نه دي. (بخاری ومسلم) | | | | | | | |

**توضیح**: احب و کره: د امیر او حاکم اطاعت په هر حالت کې واجب دی، که هغه حکم د طبیعت موافق وي یا موافق نه وي په شرط د دې چې هغه حکم د شریعت موافق وي او که حاکم د شریعت خلاف حکم ورکوي نو په دې کې اطاعت نشته دی ها په دې صورت کې هم بغاوت جائز نه دی تر دې چې د هغه کفر واضح ونه ګوري مونځ پریخودل هم بغاوت د پاره کافي دی. **لا طاعة لمخلوق في معصية الخالق.** (المرقات ۷/۲۴۷، ۲۴۶)

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ | عَلِيٍّ | رَضِيَ | اللهُ عَنْهُ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |
| او حضرت علی رضي الله عنه وايي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمايل د څه داسې حکم اطاعت او فرمانبرداري | | | | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| «لَا | طَاعَةَ | فِي | مَعْصِيَةٍ | إِنَّمَا | الطَّاعَةُ | فِي | الْمَعْرُوفِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| جائز نه ده چې د هغې تعلق د ګناه سره وي اطاعت او فرمانبرداري خو صرف په ښه حکم کې واجب دی. (بخاری) | | | | | | | |

## د مرتکب کفر او تارک صلوة باچا خلاف بغاوت جائز دی

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ | عُبَادَةَ | بْنِ | الصَّامِتِ | قَالَ: | بَايَعْنَا | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| او حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه وائی چې مونږ د نبی علیه السلام په لاس باندې بیعت وکړو یعنی د هغه مخې ته مو د | | | | | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى | السَّمْعِ | وَالطَّاعَةِ | فِي | الْعُسْرِ |
| دې امورو عهد وکړو چې مونږ به ستاسو هدایات په توجه سره واورو او هر قسمه حالاتو کې به ستاسو د احکاماتو اطاعت کوو | | | | |

---

(۱) أخرجه البخاری ۱۳/۱۲۱ رقم الحديث ۷۱٤٤ ومسلم فی ۳/۱٤٦۹ رقم الحديث (۱۸۳۹-۳۸) وأخرجه أبوداود فی السنن ۳/۹۳ رقم الحديث ۲٦۲٦ والترمذی فی السنن ٤/۱۸۲ رقم الحديث ۱۷۰۷ والنسائی فی ۷/۱٦۰ رقم الحديث ٤۲۰٦ وابن ماجه فی ۲/۹۵٦ رقم ۲۸٦٤ وأحمد فی المسند ۲/۱۷.

(۲) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۳/۲۳۳ رقم الحديث ۷۲۵۷ ومسلم فی ۳/۱٤٦۹ رقم الحديث (۱۸٤۰-۳۹) وأبوداود فی السنن ۳/۹۲ رقم الحديث ۲٦۲۵ والنسائی فی ۷/۱۵۹ رقم الحديث ٤۲۰۵ رقم الحديث ۹۹۰۲.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْيُسْرِ | وَالْمَنْشَطِ | وَالْمَكْرَهِ | وَعَلَى | أَثَرَةٍ | عَلَيْنَا وَعَلَى |
| دتنګئ او سختئ حالاتو کې هم او د آسانئ او خوشحالئ په آئنده زمانه کې هم دخوشحالئ په موقع هم او دناخوښئ | | | | | |
| أَنْ | لَا | نُنَازِعَ | الْأَمْرَ | أَهْلَهُ | وَعَلَى |
| په حالت کې هم او که په مونږ باندې ترجيح راکړې شي (نو مونږ به صبر کوو) مونږ به امر دهغه ځای نه نه او باسو | | | | | |
| أَنْ | نَقُولَ | بِالْحَقِّ | أَيْنَمَا | كُنَّا | |
| مونږ چې کله په ژبه باندې څه خبره کوو نو حق به وايو که مونږ کوم ځای کې يو د څه ملامت کونکي | | | | | |
| لَا | نَخَافُ | فِي | اللهِ | لَوْمَةَ | لَائِمٍ. وَفِي رِوَايَةٍ: |
| سړي دملامتيا نه نه وېرېږو. او په يو روايت کې داسې دي چې (مونږ ددې خبرې وعده وکړه چې مونږ به امر د هغې | | | | | |
| وَعَلَى أَنْ لَا | نُنَازِعَ | الْأَمْرَ أَهْلَهُ | إِلَّا أَنْ | تَرَوْا | كُفْرًا بَوَاحًا |
| دځای نه او باسو) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې دې امر لره به ددې دځای نه مه او باسئ ها کچيرې تاسو ښکاره کفر ووينئ | | | | | |
| عِنْدَكُمْ | مِنَ | اللهِ | فِيهِ | بُرْهَانٌ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| چې په هغې باندې تاسو سره د الله تعالی د طرف نه دليل وي (بخاري و مسلم) | | | | | |

**توضيح** : **بايعنا** : دلته دا لفظ د بيعت په ځای دمعاهدې په معنی د استعمال شوی دی **ای عاهدنا**. (المرقات ۲۴۷/۷)

**السمع** : د حاکم او امير خبرې د اوريدلو په معنی سره دی. **والطاعة** دحاکم او امير ارشاد شوې کلام باندې عمل کول او ددې دمنلو دپاره **والطاعة** لفظ راغلی دی. **العسر واليسر** يعني دسختئ او تنګئ په دواړو حالتونو کې يې داطاعت حکم ورکړی دی (المرقات ۲۴۷/۷)

**المنشط** دا لفظ د نشاط نه دی دخوشحالئ دپاره استعماليږي دا صيغه يا مصدر ميمي په معنی د نشاط دی او يا ظرف زمان دی يعنی دخوشالئ او نشاط په وخت هم اطاعت وکړې. يا دا صيغه د ظرف مکان دپاره ده يعنی دخوشحالئ او نشاط په مقام کې هم اطاعت دی. (المرقات ۲۴۷/۷)

**والمکره** دا صيغه هم يا مصدر ميمی ده يعنی ناخوشئ کې يا د ظرف زمان عين ناخوښئ په وخت او زمانه کې يا دا ظرف مکان دی چې دناخوښئ په مقام او مکان کې هم اطاعت وکړئ. (المرقات ۲۴۷/۷)

---

(۱) أخرجه البخاری فی ۱۳/۱۹۲ رقم الحديث ۷۲۰۰ ومسلم فی ۳/۱٤٦٩ رقم الحديث (۱۷۰۹-٤٢) وأخرجه النسائی فی السنن ۷/۱۳۸ رقم الحديث ٤١٥١ وابن ماجه في ۲/۹۵۷ رقم الحديث ۲۸٦٦ ومالک فی المؤطأ ۲/٤٤٥ رقم الحديث ٥ فی کتاب الجهاد واحمد فی المسند ٥/۳۱٤.

وعلى اثرة علينا اثرة کې همزه او ثاء باندې زبر دى دا د ايثار نه د ترجيح په معنى سره دى. مطلب دا دى چې مونږ دنبى عَلَيۡهِ السَّلَامُ سره داعهدهم وکړو چې کچيرې په مونږ انصارو باندې بل چاله د امورخلافت اوامارت او اعطاء اموال اومناصبو کې ترجيح ورکړى شوه نو مونږ به صبر کوو او دصبر اوتحمل لمن به دلاس نه نه پريږدو. نبى عَلَيۡهِ السَّلَامُ انصارو ته فرمايلي وو چې زما نه پس به تاسوسره ترجيحي سلوک کولى شي تاسوصبر کوئ نودا پيشن گوئي پوره شوه او دخلافت امورو کې انصارمخې ته رانغلل اوهغوى هم چې دخپل خوږ پيغمبرسره کومه معاهده کړې وه په ښکلي طريقې سره يې سرته ورسوله. فرضي الله عنهم وعن جميع الصحابة . (المرقات ۲۴۷/۷) (وعلى ان لاننازع ) ددې مطلب دادى چې مونږ به دخلافت اوامارت د امورو په خواهش کې دچاخلاف دبغاوت جنډا اوچته نه کړو چې څوک حاکم په مونږ باندې مقر کړى شو مونږ به دهغه اطاعت کوو نو انصارو په دې جګړو کې قطعًا حصه وانخستله چې هغه وخت راوچتې شوې وې. (المرقات ۲۴۷/۷)

الا ان تروا کفرًا بواحًا کفر بواح مطلب دادى چې تاسو کله ښکاره کفر ووينئ نو بيا دې کافر لره د منصب امامت نه معزول کړئ ګني نو په احاديثو کې ترک صلوة لره هم دکفر بواح په درجه کې شمارکړى شوى دى، لهذا چې کوم حاکم دمونځونو اقامت او اهتمام نه کوي او په ملک کې دنظام الصلوة نه رائج کوي دده معزول کول ضروري دي. ملاعلى قارى رحمه الله په مرقات کې ليکلي دي:

ولوطرأعليه الكفر انعزل وكذا لوترك اقامة الصلوة والدعاء اليها وكذا البدعة (مرقات جلد ۷ص۲۰۱)

د بدعت نه مراد بدعت مکفره دى کفر بواح کې داهم راځي چې يو حاکم د الله تعالى احکام او دهغه قرآن لره معطل کړي او دهغې په ځاى دانسان وضع کړى شوې قوانين نافذ کړي لکه چې ددې وخت په دنيا کې دمسلمانانو دحکومتونو د باچاهانو حال دى. قال الله تعالى ( ومن لم يحكم بما انزل الله فاولئک هم الكافرون). (المرقات ۲۴۷/۷)

## فرمانبرداري د طاقت او استطاعت په قدر

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: كُنَّا إِذَا بَايَعْنَا رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ بيعت کولو د نبى عَلَيۡهِ السَّلَامُ په لاس باندې (يعنى ددې | | | |
| عَلَى | السَّمْعِ | وَالطَّاعَةِ . | يَقُولُ |
| خبرې وعده موکوله) چې مونږ به ستاهدايات په توجه سره اورواو (ستاسو داحکامو) اطاعت به کوو نو نبى عَلَيۡهِ السَّلَامُ وفرمايل | | | |

| |
|---|
| يَقُولُ لَنَا: «فِيمَا اسْتَطَعْتُمْ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۱] |
| چې په هغه کارونو کې دکومو چې تاسو طاقت لرئ. (بخاري ومسلم) |

## د ملت اجتماعیت ماتونکي سړي په باره کې وعید

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه راوي دې چې رسول کریم صلى الله عليه وسلم او فرمائیل چې کچرې څوک سړې |
| «مَن رأى أميره يَكْرَهُهُ فَلْيَصْبِرْ |
| دخپل امیر او سردار طرف نه داسې خبره ووینې چې دده (شرعًا یا طبعًا) خوبنه نه وي نو ده له صبر کول پکار دي |
| فَإِنَّهُ لَيْسَ أَحَدٌ يُفَارِقُ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا |
| او ددې د وجې نه د امام خلاف د بغاوت جنډه او چتول نه دي پکار ځکه چې کوم سړی چې د جماعت نه د یو لیشت برابر هم |
| فَيَمُوت إِلَّا مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً» متفق عليه (صَحِيحٌ)[۲] |
| جدا شو او (د توبې نه بغیر په دې حالت کې) مړشو نو د هغه مرګ به د جاهلیت والو د مرګ په شان وي. (بخاري ومسلم) |

**توضیح**: **یفارق الجماعة**: مطلب دا دی چې کوم سړی د امام او امیر د اطاعت نه مخ واړوي او د مسلمانانو د منظم جماعت نه جدا والی اختیاروي او د ټولو مسلمانانو د اتحاد خلاف ملا تړی او بیا د توبې نه بغیر هم په دې حالت کې مړ شي نو ګویا چې دا سړی د جاهلیت د زمانې د خلقو په شان مړ شو چونکه د جاهلیت خلق د څه آسماني دین ماتحت نه وو په دې وجه هغوی د هر امیر نه آزاد او خودسره وو او په اتحادي صورت کې یې په ښکاره د بیزارئ اعلان کوو او که چیرې اسلامي امیر د اسلامي احکاماتو په موجودګئ کې یو سړی داسې خودسره او د شر مجموعه جوړه شي او بیا مړ شي نو هغه د جاهلیت په مرګ باندې به مري ددې حدیث نه مسلمانانو ته د اتفاق او اتحاد درس ورکول شي. **میتة** په میم باندې زیر دی دا صیغه د حالت او کیفیت دی یا نو لو د پاره راځي. **اي هیئة وحالة جاهلیة** آینده **قتلة** لفظ هم داسې دی. (المرقات ۷/۲۵۰)

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۳/۱۹۳ رقم الحدیث ۷۲۰۲ ومسلم فی ۳/۱۴۹۰ رقم الحدیث (۱۸۶۷-۹۰) والنسائی فی السنن ۷/۱۵۲.

(۲) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۳/۱۲۱ رقم الحدیث ۷۱۴۳ ومسلم فی ۱۴۷۷ رقم الحدیث (۱۸۴۹-۵۵) والدارمی فی السنن ۲/۳۱۴ رقم الحدیث ۲۵۱۹ وأحمد فی المسند ۱/۲۷۵.

## دتعصب خلاف زور نه

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوريدلو چې كوم

«مَنْ خَرَجَ مِنَ الطَّاعَةِ وَفَارَقَ الْجَمَاعَةَ

سړي دامام (دمملكت سربراه) اطاعت اوفرمانبرداري نه ووځي او د اسلام دجماعت (د ملت دا جماعتي هيئت)

فَمَاتَ مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً

نه جدا والى اختيار كړي او بيا په دې حالت كې مړشي نو دهغه مړكيدل دجاهليت دمرګ په شان به وي

وَمَنْ قَاتَلَ تَحْتَ رَايَةٍ عِمِّيَّةٍ

كوم سړي چې دڅه داسې جنډې لاندې (يعني دڅه داسې مقصد دپاره) وجنګيدو چې دهغې حق او باطل كيدل ښكاره نه وي

يَغْضَبُ لِعَصَبِيَّةٍ أَوْ يَدْعُو لِعَصَبِيَّةٍ

حال دا دى چې هغه دتعصب نه غضبناك شو او متعصب شو او دتعصب دوجې نه خلقو لره خپل طرف ته راوبلي

أَوْ يَنْصُرُ عَصَبِيَّةً فَقُتِلَ فَقِتْلَةٌ جَاهِلِيَّةٌ

دتعصب دوجې نه يې دچا مدد وكړو هغه مړكړى شو نو دهغه مړكيدل په جاهليت باندې دمړكيدو په شان به وي

وَمَنْ خَرَجَ عَلَى أُمَّتِي بِسَيْفِهِ يَضْرِبُ بَرَّهَا وَفَاجِرَهَا

او كوم سړي چې زما د امت خلاف توره اوچته كړه او دهغې په ذريعې سره يې زما د امت ښه او بدو سړو لره ووژل

وَلَا يَتَحَاشَى مِنْ مُؤْمِنِهَا وَلَا يَفِي لِذِي عَهْدٍ عَهْدَهُ فَلَيْسَ مِنِّي

او زما دامت د مسلمان پرواه يې ونه كړه او نه ده د عهد والا عهد پوره كړو نو نه هغه زما دامت نه دى

وَلَسْتُ مِنْهُ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1]

(يعني زما په لاره باندې دتلونكو نه نه دى) او نه زما هغه سره څه تعلق شته دى. (مسلم)

**توضيح**: **رأية عمية**: رايه جهنډې ته وائى اوعميه كې په عين باندې زير دى او پيش هم جائز دى او په ميم باندې شد دى دجنډې لاندې جنګ يې وكړو چې دهغې حق او باطل كيدل معلوم نه وي. (المرقات ۲۵۰/۷)

---

(۱) أخرجه مسلم فى صحيحه ۳/۱٤۷٦ رقم الحديث (۱۸٤۸-۵۳) والنسائى فى السنن ۷/۱۲۳ رقم الحديث ٤۱۱٤ وابن ماجه فى ۲/۱۳۰۲ رقم الحديث ۳۹٤۸ وأحمد فى المسند۲/۳۰٦.

**فلیس منا :** یعنی په دې شعبه کې هغه د مسلمانانو په طرز باندې نه دی دا مطلب نه دی چې دا سړی کافر شو. (المرقات ۲۵۰/۷)

**لایتحاشی:** د **تحاشی** نه دی یعنی د چا مومن د قتل یې څه پروا ونه کړه. (المرقات ۲۵۰/۷) **لایفي** د **وفی یفي** نه دی وعده پوره کول.

## د مونځ پرېښودونکي حاکم حکم

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عوف بن مالک اشجعي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کړي دي چه نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل |
| «خِيَارُ أئمتكم الّذين يحبونهم وَيُحِبُّونَكُمْ |
| ستاسو په حاکمانو کې بهترین حاکم هغه دي کوم سره چې تاسو محبت کوئ او ته د هغوی د پاره او |
| وَتُصَلُّونَ عَلَيْهِمْ وَيُصَلُّونَ عَلَيْكُمْ |
| هغوی ستاد پاره دعاء کوي (او په دې وجه سره په خپل مینځ کې ربط او تعلق او محبت پیدا وي) او |
| وَشِرَارُ أَئِمَّتِكُمُ الَّذِي تبغضونهم |
| ستاسو په حاکمانو کې بدترین حاکم هغه دي چې کوم سره تاسو بغض او عداوت ساتې او هغه تاسو سره |
| ويبغضونكم وتلعنوهم ويلعنوكم» قَالَ: |
| بغض او عداوت ساتي او تاسو په هغه باندې او هغه په تاسو باندې لعنت لیږئ. حضرت عوف وایې چې |
| قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ أَفَلَا نُنَا |
| مونږ (صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ) عرض وکړو چې ای د الله رسوله! آیا په دې صورت کې مونږ هغه سره |
| بِذُهُمْ عِنْدَ ذَلِكَ؟ قَالَ: «لَا مَا أَقَامُوا فِيكُمُ |
| کړې عهد وفاداری لره مات نه کړو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل نه! هر کله چې هغه ستاسو په مینځ کې |
| الصَّلَاةَ لَا مَا أَقَامُوا فِيكُمُ الصَّلَاةَ أَلَا مَنْ |
| مونځ قائموي، نه! هر کله چې هغه ستاسو په مینځ کې مونځ قائموي! خبردار! چې کوم سړی په تاسو باندې |
| وُلِّيَ عَلَيْهِ وَالٍ فَرَآهُ يَأْتِي شَيْئًا مِنْ مَعْصِيَةِ اللهِ |
| حاکم مقرر کړی شي او تاسو د هغه نه څه داسې کار ووینئ. چې د الله تعالی د نافرمانی (ګناه) باندې مبني |

| |
|---|
| فَلْيَكْرَهْ مَا يَأْتِي مِنْ مَعْصِيَةِ اللهِ وَلَا يَنْزِعَنَّ يَدًا مِنْ طَاعَةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (صَحِيح)[1] |
| وي نو دده دي ګناه کار لره بد ګڼل پکار دي. خو دهغه داطاعت او فرمانبرداري نه دست بردار کیدل نه دي پکار |

**توضيح**: **لا ما اقاموا فيكم الصلوة**: يعني كومه پورې چې يو حاكم پخپله مونځ كوي او نورو لره په اقامت صلوة باندې آماده كوي نو د نورو ګناهونو په وجه سره د هغه خلاف د بغاوت اعلان او ترک وفا جائز نه دي خو كه هغه پخپله مونځ كول پريږدي او نظام صلوة يې هم قائم نه كړو نو د داسې حاكم نافرماني او د هغه داطاعت نه وتلو سره هغه لره معزول كول ضروري دى په دې وجه چې مونځ ددين ستن ده او دكفر او ايمان په مينځ كې د مسلمان امتيازي نښه ده كچيرې يو حاكم د مونځ سره بې وفائي كوي او د هغه نه مخ اړوي نو دداسې حاكم سره وفاداري هم جائز نه ده، نن صبا مسلمانان حكمرانان ټول ددې حديث په مقابله كې دي دعوامو بغاوت ضروري دى خو د عوامو د زړه او دماغو نه هم دمونځ اهميت وتلى دى **الا ماشاء الله**. (المرقات ۲۵۲/۷)

لهذا د **فاستخف قومه فاطاعوه**: په درجه كې ټول غافل پراته دي.

## دحاكم په بې لاره كيدو باندې دهغه رټل دهر مسلمان يوه ذمه واري ده

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ | أُمِّ | سَلَمَةَ | قَالَتْ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | «يَكُونُ |
| او حضرت ام سلمه رضي الله عنها وائي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل داسې خلق به هم په تاسو | | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْكُمْ | أُمَرَاءُ | تَعْرِفُونَ | وَتُنْكِرُونَ | فَمَنْ | أَنْكَرَ |
| باندې حاكمان مقرر كړې شي چې ښه او بد دواړه قسمه كارونه به كوي لهذا كوم سړي چې انكار وكړو | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَدْ | بَرِئَ | وَمَنْ | كَرِهَ |
| نو هغه دمنافقت او مداهنت نه پاک او (دخپلې ذمه دارئ نه) برئ شو. اوكوم سړي چې مكروه وګڼلو نو هغه | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَدْ | سَلِمَ | وَلَكِنْ | مَنْ | رَضِيَ | وَتَابَعَ» |
| سالم پاتې شو خو كوم سړي خوشاله شو او (په خپله هم په دې بدو كارونو كې مبتلا كيدو سره ګويا دحاكم اتباع يې وكړه | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالُوا: | أَفَلَا | نُقَاتِلُهُمْ؟ | قَالَ: |
| نو هغه په ګناه او وبال كې شريک شول صحابو رضي الله عنهم عرض وكړو چې آيا مونږ به دهغې خلاف جنګ نه كوو؟ | | | |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۴۸۲ رقم الحديث (۱۸۵۵-٦٦) والدارمی فی ۲/٤۱۷ رقم الحديث ۲۷۹۷ وأحمد فی المسند ٦/۲٤.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| «لَا | مَا | صَلَّوْا | لَا | مَا | صَلَّوْا» |

نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ وفرمايل نه! کله پورې چې هغه مونځ کوي نه! کله پورې چې هغوی مونځ کوي. يعنی

أَيْ: مَنْ كَرِهَ بِقَلْبِهِ وَأَنكر بِقَلْبِه. رَوَاهُ مُسلم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

کوم سړی چې هغه د خپل زړه نه بد وګڼلو او د خپل زړه نه يې انکار وکړو. (مسلم)

**توضيح: تعرفون وتنکرون**: يعني دد ې حاکمانو بعضې کارونه خو ښه وي، خو بعضې ښه نه وي نو تاسو ښه وپېژنئ او هغه خوښوئ او بدو لره په نه خوښولو سره ترې انکار کوئ. (المرقات ۲۵۳/۷) **فمن انکر** يعنی څوک چه د هغې په نکير او روک ټوک باندې قادر وي او هغه روک ټوک کړې وي او په ژبه باندې ئې ښه منع کړې وي. (المرقات ۲۵۳/۷) **فقد برئ** يعنی مداهنت او نفاق نه بچ شو. (المرقات ۲۵۳/۷)

**ومن کره** يعنی چاچه په ژبه يا لاس سره منع خو نه کړو او هغه په هغې باندې قادر نه شو او هغه دې لره په زړه کښې بد اوګڼړلو (المرقات ۲۵۳/۷)

**فقد سلم** يعنی د هغه سره د شرکت د وبال نه بچ شو. (المرقات ۲۵۳/۷)

**من رضيَ**: يعنې په زړه سره د هغه بدو کارونو لره خوښ کړل. (المرقات ۲۵۳/۷)

**وتابع** يعنی په دې ګناه کې د هغه سره شو. (المرقات ۲۵۳/۷)

**افلا نقاتلهم** يعنی د هغه سره بغير د وسلې نه جنګ مه کوئ چې ښه د هغه ترديد وکړئ او جګړه وکړئ دا يو توجيه ده دويمه توجه داده چې آيا هغه قتل کړو. (المرقات ۲۵۳/۷)

**ماصلوا** د ته خو صرف د مونځ کولو ذکر راغلو په باقي رواياتو کې د مونځ قائمولو الفاظ دي يعنی پحپله به يې کوي او نورو باندې به يې هم کوي. (المرقات ۲۵۳/۷)

**اى من کره** د بعضې راويانو د طرف نه د مجمل کلام تفسير دی او هغه مجمل کلمات کوم يو دي نو شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائي چې دا تفسير **ومن انکر فقد سلم** د پاره دی او ملاعلی قاری

---

(۱) أخرجه مسلم فيص صحيحه ۳/۱۴۸۱ رقم الحديث (۱۸۵۴-۶۳) وأبوداود فى السنن ۵/۱۱۹ رقم الحديث ۴۷۶۰ والترمذى فى ۴/۴۵۸ رقم الحديث ۲۲۶۵.

رحمه الله وائی چې دا تفسیرد سابقه دوه جملو دی یعنی فمن انکر او ومن کره الخ. (المرقات ۲۵۳/۷)

## خپل حق پرېږدي او د نورو حق به اداء کوي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عبد الله بن مسعود رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته وفرمایل چې تاسو |
| «إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِي أَثَرَةً وَأُمُورًا تُنْكِرُونَهَا» |
| به زمانه پس خپل ځان سره ترجیحی سلوک او ډیر داسې څیزونه وویني کوم چې به تاسو بد ګڼړئ. |
| قَالُوا: فَمَا تَأْمُرُنَا يَا رَسُولَ اللهِ؟ |
| صحابو رَضِیَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وکړو ای دالله رسوله! بیا تاسو مونږ ته څه هدایت را کوئ (چې هغه وخت به زمونږ رویه څه وي؟) |
| قَالَ: «أَدُّوا إِلَيْهِمْ حَقَّهُمْ وسلوا الله حقكم» متفق عليه (صَحِيح)[1] |
| نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل تاسو د هغه حاکمانو حق اداء کړئ او خپل حق دالله تعالی نه وغواړئ. (بخاری ومسلم) |

**توضیح**: **اثـرة**: دحکومت امورو کې زه خپل ځان سره ترجیحی سلوک مو مم. (المرقات ۲۵۵/۷)

**وامورا تنکرونها** یعنی ډېر زیات افعال به وویني کوم و لره چې به تاسو نه خوښوئ. (المرقات ۲۵۵/۷)

**حقهم** یعنی د هغه اطاعت چې په تاسو لازم دی دا د هغوی حق دی هغه پوره کړئ. **حقکم** یعنی خپل حق دالله تعالی نه وغواړئ چې هغه مال غنیمت مهیا کړي ستاسو حق په دې صورت کې به تاسو ته ملاؤ شي. (المرقات ۲۵۵/۷)

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ: سَأَلَ سَلَمَةُ بْنُ يَزِيدَ الْجُعْفِيُّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت وائل ابن حجر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وائی چې حضرت سلمه بن یزید جعفی رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ |
| فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللهِ أَرَأَيْتَ إِنْ قَامَتْ عَلَيْنَا أُمَرَاءُ |
| نه سوال وکړو او وې ویل ای دالله رسوله! ددې په حقله زمونږ دپاره ستاسو څه هدایت دی چې کله په مونږ باندې داسې |

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۳/۵ رقم الحدیث ۷۰۵۲ ومسلم فی ۳/۱۴۷۲ رقم الحدیث (۱۸۴۳-۴۵) وأخرجه الترمذی فی السنن ۴/۴۷۰ رقم الحدیث ۲۱۹۰ وأحمد فی المسند ۱/۴۳۳.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَسْأَلُونَا | حَقَّهُمْ | وَيَمْنَعُونَا | حَقَّنَا | فَمَا | تَأْمُرُنَا؟ |

حاکم مقرر وي چه زمونږ نه خو د خپل حق مطالبه کوي خو مونږ ته زمونږ (يعنى عدل او انصاف او د مال غنيمت حصه نه

قَالَ: «اسْمَعُوا وَأَطِيعُوا

راکوي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل تاسو په ظاهر کې د هغه خبره اوريئ (او په باطن کې) د هغه فرمانبرداري کوئ

فَإِنَّمَا عَلَيْهِمْ مَا حُمِّلُوا

يادساتئ! په هغه باندې هغه څيزونه فرض دي چې د هغه په اوګو باندې اچولی شوي دي او په تاسو

وَعَلَيْكُمْ مَا حُمِّلْتُمْ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1]

باندې هغه څيز فرض دی چې ستاسو په اوګو باندې اچولی شوی دی. (مسلم)

## د امام د اطاعت نه د دست بردار کيدو والا په باره کې وعيد

﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَقُولُ: «مَنْ

او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وائي چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا فرمان واوريدو چې کوم سړی

خَلَعَ يَدًا مِنْ طَاعَةٍ لَقِيَ اللهَ

د امام يعنى د اسلامي مملکت د سرابره د اطاعت نه لاس راکاږي هغه به د قيامت په ورځ د رب العزت

يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا حُجَّةَ لَهُ.

په بارګاه کې داسې حاضريږي چې د هغه سره به (د ايمان) دليل نه وي او کوم سړی چې په داسې

وَمَنْ مَاتَ وَلَيْسَ فِي عُنُقِهِ بَيْعَةٌ

حال کې مړ شو چې د هغه څټ د امام د بيعت (يعنى د امام برحق د اطاعت) نه آزاد وي (يعنى هغه به د

مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً». رَوَاهُ مُسلم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

امام برحق نه د باغی کيدو سره مري) نو د هغه مرګ به د جاهليت د مرګ په شان وي. (مسلم)

---

(۱) أخرجه مسلم فى صحيحه ۳/۱٤۷٤ رقم الحديث (۱۸۵٦-٤۹) والترمذى فى السنن ٤/٤۲۳ رقم الحديث ۲۱۹۹.

(۲) أخرجه مسلم فى صحيحه ۳/۱٤۷۸ رقم الحديث (۱۸۵۱-۵۸) وأحمد فى المسند (۲/۱۵٤)

## دبنی اسرائیلو سیاست دانبیاء کرامو علیهم السلام په لاس کې وو

﴿۱۵﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل بنی اسرائیلو

«كَانَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ تَسُوسُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ كُلَّمَا هَلَكَ

ته به انبیاء علیهم السلام ادب او تهذیب خودلو نوکله چې به یو نبی وفات شو نو د هغه جانشین به دویم نبی

نَبِيٌّ خَلَفَهُ نبيٌّ وإنَّه لَا نبيَّ بعدِي وسيكون

کیدو خو زما نه پس بل څوک نبی راتلونکی نشته دی البته زما نه پس به امراء او خلفاء وي او هغه به

حلفاء فَيَكْثُرُونَ» قَالُوا: فَمَا تَأْمُرُنَا؟

ډیروي (چه د هغوی په ذمه) به د امت راهنمائي او نګهباني وي صحابو رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ عرض وکړو د هغه وخت د پاره تاسو

قَالَ: «فُوا بَيْعَةَ الْأَوَّلِ فَالْأَوَّلِ

مونږ ته څه هدایت فرمائي؟ نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل د مخکني امیر بیعت پوره کړئ (بیا به په بله زمانه کې) د رومبی امیر

أَعْطُوهُمْ حَقَّهُمْ فَإِنَّ اللهَ سَائِلُهُمْ

او د هغه حقوق اداء کړئ چې الله تعالی هغه له د خپل مخلوق د نګهداشت او حکومت د ذمه دارۍ حواله

عَمَّا استرعاهم» متفق عليه (صَحِيحٌ)[1]

کړې ده په دې باره کې به هغه پخپله د ده نه تپوس کوي. (بخاری و مسلم)

**توضیح**: **تسوسهم الانبیاء** د باب نصر نه تسوس د سیاست نه دی مراد حکومت او ولایت دی چې په هغې سره د مملکت امور سنبالول دي، ملاعلی قاری د سیاست تعریف داسې کړی دی.

**والسیاسة القیام علی الشئ بمایصلحه**: یعنی د اصلاح د پاره د څه څیز سنبالول او د هغې نګراني کول دي جملې نه معلومه شوه چې د دیني سیاست د ټولو نه زیات مستحق په هغه زمانه کې انبیاء علیهم السلام وو او نن صبا زمونږ په زمانه کې علماء دي، ځکه چې د څه څیز دیني او دنیوی اصلاح دعلماؤ نه سیوا بل څوک نه شي کولی ها چې کوم سیاست چې په دروغو او منافقت باندې قائم وي دهغې ماهرین دنیادار دي. (المرقات ۲۵۷/۷)

**واله لانبي بعدي**: دا جمله په واضح طور باندې دلالت کوي چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ نه پس بل څوک نبی

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۶/۴۹۵ رقم الحدیث ۳۴۵۵ ومسلم فی ۳/۱۴۷۱ رقم الحدیث (۱۸۴۲-۴۴) وأحمد فی المسند ۲/۲۹۷.

نشته دی باقی عیسی علیه السلام کله چې راشی نو هغه به دیو امتی په حیثیت سره راځي اګرچې هغه به نبی وي خو حیثیت به یې د یو امتی وي.
دویم جواب دادی چې نبی علیه السلام د بعد نفی وفرمایله او حضرت عیسی علیه السلام خو د نبی علیه السلام نه مخکې نبی جوړ شوی وو. (المرقات ۲۵۷/۷)

**فیکثرون**: ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چې په د دې لفظ په فاء باندې زبر دی او ثاء باندې پیش دی د کثرت په وجه سره چې کله غلبه کیږي نو د دې غلبې د پاره دا لفظ استعمالیږي مراد کثرت دی وې فرمایل په ثاء باندې زیر ویل غلط دی (المرقات ۲۵۷/۷)

**فما تأمرنا**: دا شرط د محذوف جواب دی اي اذا کثر الخلفاء بعد وقع التنازع فیما بینهم فما تأمرنا. (المرقات ۲۵۷/۷)

**فوا**: دا دامر صیغه ده وفی یفي ضرب یضرب نه د وفاداری په معنی سره دی یعنی پوره کړئ. (المرقات ۲۵۷/۷)

**الاول فالاول**: د دې مطلب دادی چې هغه کوم چې مخکې خلیفه جوړ شوی دی او تاسو د هغه په لاس باندې بیعت کړی دی نو اوس د هغه په موجودګئ کې د هغه اطاعت په نورو باندې مه کوئ. (المرقات ۲۵۷/۷)

**اعطوهم حقهم** دا د **فوا ببیعة الاول فالاول** نه بدل دی یعنی د وفادارئ مطلب دادی چې د هغوی حقوق چې د اطاعت او خدمت متعلق دي هغه هغوی ته پوره ورکړئ. (المرقات ۲۵۷/۷)

**عما استرعهم** یعنی په کوم څیز باندې الله تعالی هغه لره راعی، نګران او والي جوړ کړی دی الله تعالی به د هغه نه د دې تپوس کوي. (المرقات ۲۵۷/۷)

## د امارات اسلامیه خلاف بغاوت کولو والا واجب القتل دی

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا بُويِعَ لِخَلِيفَتَيْنِ |
| حضرت ابو سعید رضي الله عنه راوي دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کله د دوو خلیفه ګانو |
| فَاقْتُلُوا الْآخِرَ مِنْهُمَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (صَحِيحٌ)[1] |
| بیعت وکړی شي نو په دوی کې چې کوم روستو دی هغه قتل کړئ. (مسلم) |

(۱) أخرجه مسلم فى صحيحه ۳/۱٤۸۰ رقم الحديث (۱۸۵۳-٦١)

**توضیح**: مطلب دادی چې کله یو خلیفه موجود دی او د مسلمانانو د کارونو په صحیح طریقه باندې د اسلام په رڼا کې چلوي او دویم کس پاڅي د کرسۍ خواهش کې د مسلمانانو اجتماعي صورت لره ټوټې ټوټې غواړي او د خلافت اعلان کولو سره بیعت اخستل شروع کوي نو په تاسو لازم دي چې هغه قتل کړئ ځکه چې هغه د الله د حکم او مملکت اسلامی باغی دی د هغه سزا همدا ده چې که هغه د بغاوت نه منع نه شي نو هغه قتل کړئ که هغه څوک هم وي. د دې نه د مخکې حدیث مفهوم هم د غه شان دی. او د دې نه روستو د راتلونکي حدیث مطلب هم داسې دی.

د دې حدیث نه د جمهوریت چې په حقیقت کې د یهودیت عیسائیت لعنت دی جرړه یې کټ شوه، دا رنګه د دې نه معلومه شوه چې د مسلمانانو په پوره دنیا کې یو خلیفه کیدل پکار دي. ها کچیرې انتظام کول مشکل وي او یوه علاقه د بلې علاقې نه لرې وي نو بیا ګنجائش شته دی ما په اسلامی خلافت نومی کتاب کې د دې تفصیل لیکلی دی. (المرقات ۲۵۸/۷)

## چې کوم سړی په امت کې تفرقه پیدا کړي هغه مړ کړئ

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَرْفَجَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّهُ سَيَكُونُ هَنَاتٌ |
| او حضرت عرفجه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې ما د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا فرمان واوریدلو چې نزدې به تخریب او |
| وَهَنَاتٌ فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يُفَرِّقَ أَمْرَ هَذِهِ الْأُمَّةِ |
| فساد ښکاره شي لهذا کوم سړی چې په امت کې تفریق پیدا کول وغواړي حال دادی چې امت په خپل |
| وَهِيَ جَمِيعٌ فَاضْرِبُوهُ بِالسَّيْفِ كَائِنًا مَنْ كَانَ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] |
| مینځ کې متحد او متفق وي دې سړي لره په توره سره والوزوئ که هغه هر څوک وي. (مسلم) |

**توضیح**: **انه**: د ضمیر شان د پاره دی (المرقات ۲۵۸/۷)

**هنات وهنات ها** باندې زبر دی او په نون باندې هم زبر دی یو بل پسې او مسلسل شر او فساد ته وائی یعني نزدې به د حکومت حاصلولو د پاره نوې فتنې ښکاره شي. (المرقات ۲۵۸/۷)

**وهي جميع** حال دادی چې امت متحد او متفق وي او دا سړی په اتفاقی امر کې انتشار پیدا کوي. (المرقات ۲۵۸/۷) **كائنا من كان** یعني که هغه د اشرافو نه وي یا صاحب تعلیم وي یا څه قریبی رشته دار وي هغه په توره داسې ووهئ چې د هغه نه دورې وخیژي څنګه چې هغه امت ټوټې ټوټې

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳/۱٤۷۹ رقم الحديث (۱۸۵۲-۵۹) وأخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۲۰ رقم الحديث ٤۷۶۲ وأحمد في المسند ٤/۳٤۱.

کول غو ښتل په دې وجه د امت اتحاد د فرد په حیثیت او شخصیت باندې مقدم دی. چا ویلي دي:

ہے زندہ فقط وحدت افکار سے ملت — وحدت ہو فنا جس سے وہ الہام بھی الحاد

وحدت کی حفاظت نہیں بے قوت دبازو — آتی نہیں کچھ کام یہاں عقل خداداد

چا ویلي دي:

فرد قائم ربط ملت سے تنہا کچھ نہیں — موج ہے دریا میں اور بیرون دریا کچھ نہیں

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت عرفجه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوریدلو چې کوم سړی |
| «مَنْ أَتَاكُمْ وَأَمْرُكُمْ جَمِيعٌ عَلَى رَجُلٍ وَاحِدٍ |
| تاسو ته راشي حال دا دی تاسو د ټولو (نه مخکې) په یو سړي باندې متفق وئ او په یو خلیفه باندې متحد وئ او هغه |
| يُرِيدُ أَنْ يَشُقَّ عَصَاكُمْ أَوْ يُفَرِّقَ جماعتكم فَاقْتُلُوهُ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] |
| سړی ستاسو همساء ماته کړي یا ستاسو اجتماعی تنظیم کې تفرقه پیدا کول غواړي نو تاسو هغه قتل کړئ. (مسلم) |

**توضیح: یشق عصاکم**: عصاء همسا (لاتهئ) ته وائی او یشق شلولو او ماتولو ته وائی مراد د مسلمانانو جماعت پریخودل او تلل دي، نو په همسا سره د مسلمانانو اجتماعی حیثیت طرف ته اشاره ده او شلولو (ماتولو) سره ددې انتشار او تفریق او اختلاف طرف ته اشاره ده. (المرقات ۲۵۹/۷)

**او یفرق جماعتکم** ظاهري عبارت نه معلومیږي چې راوي ته شک شو چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام کوم جمله ارشاد فرمایلې وه خو راجح داده چې دا دواړه جملې دنبی عَلَيْهِ السَّلَام دي د اولې جملې د **یشق عصاکم** تعلق د مسلمانانو دنیاوي امورو سره دی یعنی چې کوم سړی د مسلمانانو په سیاسی طاقت خارجه او داخله پالیسئ کې سُوری پیدا کوي. او د دویمې جملې تعلق د مسلمانانو د دیني احکامو او مذهبی معاملاتو سره دی چې دا سړی په دې کې فتنه پیدا کوي. (المرقات ۲۵۹/۷)

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: |
| او حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کوم سړي د امام سره بیعت وکړو |
| «من بَايَعَ إِمَامًا فَأَعْطَاهُ صَفْقَةَ يَدِهِ وَثَمَرَةَ قَلْبِهِ |
| په داسې قسم سره چې خپل لاس ورکولو سره د اطاعت او فرمانبردارئ عهد وکړي او د زړه په خلوص هم دده حاکمیت او قیادت له |

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳/۱۴۸۱ رقم الحديث (۱۸۵۲-۶۰)

| |
|---|
| فَلْيُطِعْهُ إِنِ اسْتَطَاعَ فَإِنْ جَاءَ |
| بې قبول کړو) نو هغه له پکار دي چې هغه (حتى الوسع) ددې امام اطاعت او فرمانبرداري وکړي او بيا که |
| آخَرُ يُنَازِعُهُ فاضربوا عنق الآخر». رَوَاهُ مُسلم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| بل کوم سړی د خپل امامت اعلان وکړي او د خپل امام خلاف بغاوت وکړي نو د هغه څټ والوزوئ. (مسلم) |

**توضيح : صفقة يده**: صفقة لاس په لاس باندې وهلو او ايخودلو ته وائي او د قسم او بيعت په وخت کې لاس په لاس کې ورکولو سره معاهده او معاقده کولی شي مراد ترې لاس په لاس کې ايخودل دي. (المرقات ۲۶۰/۷)

**وثمرة قلبه**: د زړه د ثمرې نه مراد اخلاص دی، بعض علماو ليکلي دي چې صفقة يد نه مراد مال او ثمرة قلب نه مراد خپل اهل او عيال يو ځای کيدو سره بيعت کول دي. (المرقات ۲۶۰/۷)

## د حکومت او امارت طالب مه جوړيږه

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عبد الرحمن بن سمره رضي الله عنه وائي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم ماته وفرمايل چې ته |
| «لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ فَإِنَّكَ إِنْ أُعْطِيتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ |
| حکومت او سيادت مه طلب کوه کچيرې ستا په خواهش او طلب باندې تاته حکومت او سيادت ملاو شي |
| وُكِلْتَ إِلَيْهَا وَإِنْ أُعْطِيتَهَا |
| نو ته به هغې ته وسپارلی شې او که ستا د خواهش او طلب نه بغير تاته حکومت او سيادت ملاو شي |
| عَنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أعنت عَلَيْهَا» متفق عليه (صَحِيح)[2] |
| نو په دې باندې د الله تعالى د طرف نه به ستا مدد کولی شي. (مسلم) |

**توضيح : لاتسأل الامارة**: د اسلامي خلافت او د جمهوريت په مصيبت کې هم دا بنيادي فرق دی چې د اسلامی خلافت د عهدو حاصلول د خدمت ذريعه وی او په جمهوريت کې د دې عهدو حاصلول د دنيا د ګټې اسباب او ذرائع وی او س چې کوم کار د دين د ترقئ او خورولو د پاره وي په هغې کې به الله تعالى

---

([1]) أخرجه مسلم فی صحيحه ۳/۱٤۷۲ رقم الحديث (۱۸٤٤-٤٦) وأخرجه النسائی فی السنن ۷/۱۵۲ رقم الحديث ٤۱۹۱ وابن ماجه فی ۲/۱۳۰٦ رقم الحديث ۳۹۵٦ وأحمد فی المسند۲/۱٦۱.

([2]) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۳/۱۲۳ رقم الحديث ۷۱٤٦ ومسلم فی ۲/۱٤۵٦ رقم الحديث (۱٦۵۲-۱۳) وأبوداود فی السنن ۳/۳٤۳

مدد كوي، او كله چې په خپل ځان باندې په اعتماد كولو سره دا عهدې د دنيا د ګټلو ذرائع جوړې شي نو دالله تعالى مدد به شامل حال نه وي نو د كاميابۍ په ځاى به د ناكامۍ سره مخ شي. (المرقات ۲۶۱/۷)

## د حكومت د ملاويدو او تللو مثال

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ او فرمايل (زه وينم چې) |
| «إِنَّكُمْ سَتَحْرِصُونَ عَلَى الْإِمَارَةِ |
| تاسو به په راتلونكي زمانه كې د حكومت او سيادت په حرص كې مبتلا شئ حالانكه هغه حكومت |
| وَسَتَكُونُ نَدَامَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او سيادت (چې د حرص او طلب سره ملاو شي) د قيامت په ورځ د پښيمانۍ ذريعه ده (يادساتئ! حكومت |
| فَنِعْمَ الْمُرْضِعَةُ وَبِئْسَتِ |
| او سيادت پئ وركونكې پريكونكې هم دى) پئ وركونكې څه مهربانه مور ده او د پيو نه پريكونكې |
| الفَاطِمَةُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ (صَحِيح) (۱) |
| ناترسه او ظالمه مور ده. (بخارى) |

**توضيح**: **فنعم المرضعة**: علامه مظهر رحمه الله فرمائى چې د **نعم** او **بئس** فاعل چې كله مؤنث وي نو د دواړه صيغې د مؤنث هم راوړلى شي او د مذكر هم راوړلى شي دلته د نعم سره تاء د تانيث نه ده او بئست سره لګيدلې ده دا دې طرف ته اشاره كړى شوې ده چې دا دواړه لغته دي او دواړه جائز دي نو په يوه صيغه كې يو لغت راوړلى شو او په دويمه صيغه كې دويم لغت راوړل شوى دى.

**وبئست الفاطمة**: يعنى حكومت او قيادت چې كله ملاويږي او سړى كله صاحب اقتدار شي نو دا قيادت د شفيقې مور په شان په غيږ كې اخستلو سره د بدن پئ پرې څكولى شي او هغه ده لره پالي، خو كله چې دا حكومت او قيادت ناراضه شي نو دا د ظالمې مور په شان د بچي په خوله كې مرچكى اچوي او هغه د پيو نه پريكوي نو عقل مند سړي له پكار دي چې د داسې ناپائيداره څيز په طلب كې خپل وخت ضائع نه كړي د حكومت د تلو راتلو درې مرحلې آينده كې راروانې دي. (المرقات ۲۶۱/۷)

---

(۱) أخرجه البخارى فى صحيحه ۱۳/۱۲۵ رقم الحديث ۷۱۴۸ والنسائى فى ۸/۲۲۵ رقم الحديث ۵۳۸۵ وأحمد فى المسند ۲/۴۴۸

## دحکمرانانو انجام

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَلَا تَسْتَعْمِلُنِي؟

او حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې (یوه ورځ) ما عرض وکړو ای دالله رسوله! چې تاسو ما لره (دځه

قَالَ: فَضَرَبَ بِيَدِهِ عَلَى مَنْكِبِي ثُمَّ قَالَ: «يَا أَبَا ذَرٍّ إِنَّكَ ضَعِيفٌ

ځای) عامل (حاکم) ولې نه جوړوئ؟. وې فرمليل چې ابوذره! ته کمزوری یې او دا سرداري (د

وَإِنَّهَا أَمَانَةٌ وَإِنَّهَا يَوْمَ

الله تعالی د طرف نه یو امانت دی سرداري به د قیامت په ورځ د رسوائي او پښیماني ذریعه وي خو

الْقِيَامَةِ خِزْيٌ وَنَدَامَةٌ إِلَّا

دا چې کوم سړي دې سرداري لره په حق سره حاصله کړې وی او هغه حق یې ادا کړی وي چې د دې

مَنْ أَخَذَهَا بِحَقِّهَا

سرداري په وجه په ده باندې دی (یعنی چې کوم سړی د مستحق کیدو په وجه سره سردار جوړ کړی شو او بیا هغه په خپله

وَأَدَّى الَّذِي عَلَيْهِ فِيهَا».

زمانه کې په حکومت کې د عدل او انصاف نوم روښانه کړو او د رعایا او سره یې د احسان او خیرخواهئ معامله وکړه

وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ لَهُ: «يَا أَبَا ذَرٍّ إِنِّي

نو هغه سرداري به د هغه د پاره د رسوائي او وبال ذریعه نه وي) او په یو روایت کې داسې دي چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل: ابوذره!

أَرَاكَ ضَعِيفًا. وَإِنِّي أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي

زه تا لره کمزوري وینم او زه ستا د پاره هغه څیز خوښوم کوم چې د خپل نفس د پاره خوښوم، ته د دوو سړو هم

لَا تَأَمَّرَنَّ عَلَى اثْنَيْنِ وَلَا تَوَلَّيَنَّ مَالَ يَتِيمٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

سردار عامل مه جوړېږه او د چا یتیم د مال هم نګران مه جوړېږه. (مسلم)

**توضیح**: **انها امانة**: یعنی کرسئ د اقتدار قومي امانت دی کچیرې په دې کې یې نقصان وکړو نو قومي خیانت به وي. (المرقات ۲۶۲/۷)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۴۵۷ رقم الحديث (۱۸۲۵-۱۶) وأحمد في المسند ۵/۱۷۳.

**خزي وندامة:** یعنی د قیامت په ورځ به حکومت د رسوائي او پښیمانۍ سبب وي د دې پښیمانۍ ترتیب داسې دی چې کله سړی په اقتدار باندې راشي نو خلق قسما قسم الزامات لګوي چې په تګی او دهاندلۍ سره راغلی دی د رشوت او غلا د دروازې نه راغلی دی بیا چې کله دا سړی څه ورځې حکومت کوي او قسما قسم ذمه دارۍ په ځای را ورلو سره عاجز شي نو پښیمانه شي دا درمیاني دور د حکومت دی چې کاش زه په دې کې نه راتلم او کله چې حکومت ترې واخستلی شي نو بیا په دنیا کې رسوا کیږي یا په آخرت کې رسوا کیږي دا آخري رسوائي ده نو په اول کې ملامتیا ده په مینځ کې پښیمانتیا ده او په آخر کې رسوائي ده، راتلونکي حدیث نمبر ۵۳ کښې دا ترتیب را روان دی. ( المرقات ۲۶۲/۷)

## دمنصب غوښتونکي ته منصب مه ورکوئ

﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَرَجُلَانِ

او حضرت ابو موسی رضي الله عنه وائی چې (یوه ورځ) زه او زما د تره د اولاد نه دوه کسان د نبی علیه السلام

مِنْ بَنِي عَمِّي فَقَالَ أَحَدُهُمَا: يَا رَسُولَ اللهِ

په خدمت کې حاضر شول هغوی ته مو عرض وکړو چې ای د الله رسوله ! الله تعالی تاسو (د ټولو

أَمِّرْنَا عَلَى بَعْضِ مَا وَلَّاكَ اللهُ

مسلمانانو او د د مخ د ځمکې) حاکم جوړ کړی یې، ما لره د څه ځای یا د څه کار حاکم او والي مقرر کړه.

وَقَالَ الْآخَرُ مِثْلَ ذَلِكَ فَقَالَ: «إِنَّا وَاللهِ

دویم هم د داسې خواهش اظهار وکړو، نبی علیه السلام وفرمایل په الله قسم! مونږ (د دین او شریعت)

لَا نُوَلِّي عَلَى هَذَا الْعَمَلِ أَحَدًا سَأَلَهُ وَلَا أَحَدًا

په دې امورو کې هیڅ یو داسې کس لره والي او ذمه دار نه جوړوو، چې زمونږ د ولایت د ذمه دارۍ طلب ګار

حَرَصَ عَلَيْهِ». وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ:

وي یا د دې حرص لري. او په یو روایت کې دا الفاظ دي چې نبی علیه السلام وفرمایل چې مونږ په خپل کار

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| «لَا نَسْتَعْمِلُ عَلَى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱) | | | | | |
| باندې هغه سړي لره (عامل، کارپرداز) نه مقرروو چې ددې اراده (يعني دعامل کيدو خواهش) لري. (مسلم) | | | | | |

**توضيح**: چې کوم سړي پخپله د څه منصب طلب ګار وي نو هغه په حقيقت کې په حب جاه کې مبتلا دی چې د دنيا د محبت يو اهمه شعبه ده په دې وجه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هميشه داسې سړي لره د څه منصب اهل نه ګڼلو او نه به يې هغه منصب ورکولو، او کوم سړي چې د منصب طالب نه وي او بيا په دې باندې فائز شي نو دهغه په زړه د خدمت د جذبې ولوله وي چې دهغې انجام به ښه وي، په افسوس سره ويل دي چې نن صبا خو د منصبونو د حاصليدو دپاره جنګ جګړې کيږي او رشوتونه ورکوي بلکه د دين تول منصبونه د دنيا د حاصليدو ذرائع جوړ شول. الا ماشاء الله.

دحکومت وامارت انکارکونکې بهترين سړې دې

## د حکومت او امارت نه انکار کولو والا بهترين کس دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَجِدُونَ مِنْ | | | | | | | |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمايل: په خلقو کې بهتر به تاسو هغه سړی | | | | | | | |
| خَيْرِ النَّاسِ أَشَدَّهُمْ كَرَاهِيَةً لِهَذَا الْأَمْرِ حَتَّى يَقَعَ | | | | | | | |
| ومومئ چې دا هغه څيز لره د ناخوښولو په معامله کې دټولو نه زيات سخت وي تر دې پورې چې په دې | | | | | | | |
| فِيهِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۲) | | | | | | | |
| کې مبتلا شي. (بخاري ومسلم) | | | | | | | |

**توضيح**: **حتی يقع فيه**: ددې حديث دوه مفهومه دي: يو دادی چې کوم سړی د منصب او سيادت او قيادت او د حکومت نه سخت نفرت کونکی وي تاسو به ده لره بهترين سړی ومومئ تر دې پورې چې هغه د منصبونو په دې نفرت باندې قائم پاتې نه شي او په قيادت او سيادت کې مبتلا شي نو ددې سړي انجام به هم هغه وي چې په آخر کې به پښيماني وي او په آرمان سره به لاسونه مروړي.

دويم مفهوم علامه طيبي رحمه الله داسې بيان کړی دی چې کوم سړی د سيادت، قيادت او

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۱۲۵ رقم الحديث ۷۱۴۹ ومسلم ۳/۱۴۵۹ رقم الحديث (۱۷۳۳-۱۴) وأبوداود في السنن ۴/۹ رقم الحديث ۳۵۷۹ وأحمد في المسند۴/۴۰۹.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۰۴ رقم الحديث ۳۵۸۸ ومسلم في ۴/۱۹۵۸ رقم الحديث (۲۵۲۶-۱۹۹) وأحمد في المسند۲/۴۱۸.

د منصبونو نه متنفر وي ته به هغه لره بهترين سړی و مومي خو د غه سړی په حب جاه کې مبتلا شو نو
ته به هغه لره بدترين سړی و مومي. (المرقات ۷/۲۶۰ الکاشف ۷/۲۳۴)

## هر سړی د خپلو ماتحتو د اصلاح ذمه دار دی

﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «أَلا

او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وائي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل خبردار په تاسو کې

كُلُّكُمْ رَاعٍ وكُلُّكُمْ مسؤولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ

هر سړی د خپل رعيت نگهبان دی او (د قيامت په ورځ) به په تاسو کې هر سړی د خپل رعيت په باره کې جواب

فَالْإِمَامُ الَّذِي عَلَى النَّاسِ رَاعٍ وَهُوَ مسؤولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ

ورکوي لهذا امام يعنی سربراه د مملکت او حکومت چې د خلقو نگهبان دی هغه به د خپل رعيت په باره

وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِ وَهُوَ مسؤولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ

کې جواب ورکوي، سړی چې د خپل کور نگهبان دی هغه به د خپل کورولو په باره کې جواب ورکوي

وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ عَلَى بَيْتِ زَوْجِهَا وولدِهِ وَهِيَ مسؤولةٌ عَنْهُمْ

ښځه د خپل خاوند د کور او د هغه د بچو نگهبانه ده هغه به د دې حقوقو په باره کې جواب ورکوي غلام

وَعَبْدُ الرَّجُلِ رَاعٍ عَلَى مَالِ سَيِّدِهِ وَهُوَ مسؤولٌ عَنْهُ أَلا

سړی د خپل مالک د مال نگهبان دی هغه به د دې په باره کې جواب ورکوي لهذا خبردار اوسئ! په

فكُلُّكُمْ رَاعٍ وكلُّكُمْ مسؤولٌ عَن رعِيتِه» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

تاسو کې هريو نگهبان دی او په تاسو کې به هريو سړی د خپل رعيت په باره کې جواب ورکوي. (بخاري ومسلم)

**توضيح**: **الاكلكم راع**: راعي نگران او نگهبان ته وائی او رعيت دې ته وايې چې دنگهبان په نگرانئ او حفاظت کې وي نو ديو ملک رعيت ته په دې وجه رعايا وائي چې هغه ددې ملک د سربراه په نگرانئ کې او حفاظت کې وي په دې حديث کې چې د کومې نگرانئ ذکر دی ددې نگرانئ تعلق دهغه خلقو سره دی چې دڅه حکم او قدرت ماتحت وي او چې کوم خلق دڅه حکم ماتحت وي

---

(1) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۳/۱۱۱ رقم الحديث ۷۱۳۸ ومسلم فی ۳/۱۴۵۹ رقم الحديث (۱۸۲۰-۲۰) رواه ابوداود فی السنن ۳/۳۴۲ رقم الحديث ۲۹۲۸ والترمذی فی ۴/۱۸۰ رقم الحديث ۱۷۰۵ وأحمد فی المسنده ۲/۵.

دهغوی په باره کې دا حدیث نه دی نو په رعیته کې چې کوم ضمیر راجع کیږي هغه ددې مقصد دپاره د.
چې ذمه داري ددې نګرانانو ده چې دکوم حکم ماتحت خلق وي مثلاً د ملک دحاکم په لاس کې ددې ملک
د رعیت منډې ترړې وي هغه به ددې رعایاو مسئول وي دغه دکور لوی ذمه دار به وي ځکه چې په هغوی
به دده حکم چلیږی دمدرسې مهتمم به دطلباؤ ذمه دار وي ځکه دهغه دحکم ماتحت وي، دغه شان په دې
ترتیب سره د کور دماشومانو بچو باندې د کور ښځه سربراه ده او دخادم نګراني د آقا په مال باندې ده د
هغه خلقو نه به په قیامت کې د هغوی دذمه دارو تپوس کولی شي. بعضو علماو ویلې دي چې دانسان په
بدن کې چې کوم اندامونه دي هغه ټول اندامونه دده رعیت دی ددې په حقله به دده نه تپوس کیږی چې
مثلاً د سترګې نګراني دې ولې ونه کړه د ژبې او شرم ګاه او دلاس خپو نګراني او حفاظت دې ولې ونه
کړو؟ بعضې خلق په دې حدیث باندې په پوهیدو کې غلطي کوي او خیال یې دی چې د پوره دنیا د
انسانانو ذمه داري په مونږ باندې ده او هغوی ته دعوت ورکول او په سمه لار باندې راوستل زمونږ ذمه
داری ده کچیرې مونږ دا ذمه داری پوره نه کړه او هغه خلق بغیر دکلمې نه مړ شو نو په قیامت کې به زمونږ
نه سوال کیږی مثلاً هوانګ، چنګ زیاؤپنګ اولی شاؤ چنګ بغیر دکلمې نه ولې مړه شوې دي، دا نظریه
صحیح نه ده او نه اسلام په مونږ باندې د مالا یطاق بوج اچولی دی د اسلام آواز چې کله دچا غوږ ته
ورسیدلو د دعوت حق اداء شو. ددې نه پس بیا دجهاد مرحله ده، بهرحال ددې حدیث داسې تشریح نه دی
کول پکار چې دهغې په اوریدلو سره عوام الناس په علماؤ بدظنه شي چې دا دعلماؤ ذمه داري ده
اوهغوی پوره نه کړه، او فلانی فلانی بغیرد کلمې نه مړ شو، دا اعتراض خو بیا په خلفاء راشدینو او فقهاء
کرامو مجتهدینو باندې هم راځي چې هغه حضرات (المرقات ۲۶۴/۷) د دعوت دپاره پاکستان ته ولې
نه وو راغلی چین ته ولې لانه ړلو عراق او مصر ته یې مسلسل سفرونه ولې ونه کړل.

## دخائن او ظالم حاکم په باره کې وعید

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يقولُ: |
| او حضرت معقل بن یسار رضی الله عنه وائي چې ما درسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا فرمان واوریدلو چې |
| «مَا مِنْ وَالٍ يلي رَعِيَّةً مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَيَمُوتُ |
| کوم سړی هم دحکومت او سیادت حاصلولو سره په خپل رعیت باندې حکمراني وکړي او بیا په دې |
| وَهُوَ غَاشٌّ لَهُمْ إِلَّا حَرَّمَ اللهُ |
| حالت کې مړ شي چې هغه په خپل رعیت باندې ظلم او دهغوی په حقوقو کې خیانت یې کولو نو الله تعالی |

| | | |
|---|---|---|
| عَلَيْهِ | الْجَنَّةَ» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| به په هغه باندې جنت حرام کړي. (بخاری و مسلم) | | |

**توضیح : وهو غاش** : په شین باندې شد دی غاش د خائن په معنی سره دی او د خیانت ډیر زیات صورتونه دي د کوم صورت خیانت چې حاکم وکړو په هغې باندې به وعید چسپان کیږي، ملاعلي قاري رحمه الله د غاش یوه معنی د ظالم هم کړې ده چې هغه د عوام الناس حقونه نه ادا کوي او د نورو مال لاندې کوي. (المرقات ۲۶۵/۷)

**الا حرم الله علیه الجنة** : یعنی کچیرې هغه حاکم دې خیانتو لره جائز ګڼي نو هغه کافر شو، لهذا په ده باندې جنت حرام دی او کچیرې هغه د مسلمان کیدو سره د خیانتونو مرتکب شو نو هغه به جنت ته د خلقو سره یوځای نه ځي چې بغیر د څه سزا نه به جنت ته ځي، بلکه د سزا خوړلو نه وروسته به جنت ته ځي د راتلونکي حدیث همدا تشریح ده. (المرقات ۲۶۵/۷)

## د رعایاو سره ښیګړه په حاکم باندې لازم ده

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | سَمِعْتُ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت معقل بن یسار رَضِيَ اللهُ عَنهُ وائي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوردلو چې الله تعالی | | | | | | | | |
| «مَا | مِنْ | عَبْدٍ | يَسْتَرْعِيهِ | اللهُ | رَعِيَّةً | | | |
| د کوم سړي په ذریعې سره چې د رعیت نګهباني وکړي (یعنی چې کوم سړی د رعیت حکم او نګهبان جوړ کړي) | | | | | | | | |
| فَلَمْ | يَحُطْهَا | بِنَصِيحَةٍ | إِلَّا | لَمْ | يجد | رَائِحَةَ | الْجَنَّةِ» | متفق علیه (صَحِيح)[2] |
| او هغه د ښیګړې او خیر هوهځ سره نګهباني ونه کړي نو د جنت بوی به ونه مومي (بخاری و مسلم) | | | | | | | | |

**توضیح : فلم یحطها** : په حاء باندې پیش دی دا د احاطې په معنی سره دی مراد ترینه نګهباني ده په آینده حدیث کې د الحطمة لفظ د ظالم په معنی سره دی. (المرقات ۲۶۶/۷) (**بنصیحة**) دا لفظ د دیني او دنیاوي ټولو ښېګړو ته شامل دی. (المرقات ۲۶۶/۷)

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۳/۱۲۷ رقم الحدیث ۷۱۵۱ ومسلم فی ۳/۱۴۶۰ رقم الحدیث (۱۴۲-۲۲) والدارمی فی السنن ۲/۴۱۷ رقم الحدیث ۲۷۹۶ وأحمد فی المسند ۵/۲۵.

(۲) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۳/۱۲۶ رقم الحدیث ۷۱۵۰ ومسلم فی ۳/۱۴۶۰ رقم الحدیث (۱۴۲-۲۱)

رائحة الجنة : د جنت خوشبو پنځه سوه کاله فاصلې پورې ځيددې حديث مطلب هم هغه دی چې يا به دا سړی په کفر باندې مړ شوی وي يا به په اول ځل دخول سره جنت ته نه داخليږي او يا دا حديث په تغليظ او تشديد او زجر او توبيخ باندې محمول دی. (المرقات ۷/۲۶۶)

## بدترين حاکم هغه دی چې په خپلو رعايا و باندې ظلم کوي

| | |
|---|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ عَائِذِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: | |
| او حضرت عائذ بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوريدلو چې په | |
| «إِنَّ شَرَّ الرعاءِ الْحُطَمَةُ». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)[1] | |
| سردارانو او حاکمانو کې د ټولو نه بدتر سردار هغه حاکم دی چې په خپلو رعايا و باندې ظلم کوي. (مسلم) | |

**توضيح** : **الحطمة** :په حاء باندې پيش دی او طاء باندې زبر دی، حاطم د مبالغې صيغه ده چې الحطم نه د ماتولو په معنی سره راځي دا د هغه ظالم حاکم متعلق دی چې په ظلم کولو سره خپل رعيت ماتوي او په هيڅ يو مصيبت کې هم په هغوی رحم نه کوي، بعضو ويلي دي چې د **الحطمة** نه مراد داسې خوراک والا حريص دی چې هر هغه څيز خوري چې کوم مخې ته راځي.

**الرعا**: په را باندې زير دی عين باندې مد دی د جمع صيغه ده ددې مفرد راعٍ دی چې د نګران او حکمران په معنی سره دی. (المرقات ۷/۲۶۶)

**حکايت** : ملا علی قاری رحمه الله ددې حديث په شان يو بل حديث په دې ځای نقل کړی دی په هغې کې يو افسوسناکه قصه ده فرمائي چې عائذ بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی اکرم ﷺ صحابی وو يو ځل دا د کوفې د ظالم ګورنر اشدق لطيم الشيطان عبيد الله بن زياد خواته لاړلو او وې فرمايل چې ای ځويه! ما د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه اوريدلي دي چې **ان شر الرعاء الحطمة فاياک ان تکون منهم** يعنی بدترين نګران ظالم حکمران دی ځويه ځان ترې ساته چې چيرته ته د هغوی نه جوړ نه شې.

**فقال له اجلس انما انت من نخالة اصحاب محمد صلى الله عليه وسلم فقال هل كانت لهم نخالة، انما كانت النخالة بعدهم وفي غيرهم** (رواه مسلم) (المرقات ۷/۲۶۷)

يعنی عبيد الله بن زياد وويل چې کينه ته د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ پوستکی او بوس يې

---

([1]) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱٤٦۱ رقم الحديث (۱۸۳۰-۲۳) وأحمد في المسند ٥/٦٤.

صحابی جواب کې وفرمایل چې آیا د حضور صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ په صحابو رَضِيَاللهُعَنْهُمْ کې چهلکا او بوس هم وو؟ (نه روره) بوس او چهلکا دهغوی نه پس خلقو کې وو. (هغه خو ټول په ټوله لُب او خالص مغز وو).

## د نرم خوئی حاکم په حق کې د نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ دعا

﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اَللّٰهُمَّ

او حضرت عائشه رَضِيَاللهُعَنْهَا وائی چې نبی عَلَيْهِالسَّلَامُ (د الله تعالی په دربار کې دا عرض وکړو: ای زما پروردگاره!

مَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا

چې کوم سړی زما دامت (په دینی او دنیاوی) امورو کې دڅا ولي او متصرف جوړ کړی شو او بیا هغه

فَشَقَّ عَلَيْهِمْ فَاشْقُقْ عَلَيْهِ

زما دامت په خلقو باندې مشقت او سختي مسلط کړه نو په هغه سړي باندې هم ته مشقت او سختي مسلط کړې

وَمَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا

او کوم سړی چې زما دامت په امورو کې دڅه څیز ولي او متصرف جوړ کړی شو او هغه زما د امت سره

فَرَفَقَ بِهِمْ فَارْفُقْ بِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (صَحِيحٌ)[1]

د نرمۍ او ښیګړې سلوک وکړو نو د هغه سره هم د نرمۍ او عنایت معامله وکړې. (مسلم)

## د عادل حکمران عظیمه مرتبه

﴿۳۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رَضِيَاللهُعَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمایل ببشکه

«إِنَّ الْمُقْسِطِينَ عِنْدَ اللهِ عَلَى مَنَابِرَ مِنْ نُورٍ عَنْ يَمِينِ الرَّحْمٰنِ

عادل حکمران به د الله تعالی په نزد د نور په منبرونو باندې ځای مومي چې د رحمن (الله) ښې طرف ته به وي

وَكِلْتَا يَدَيْهِ يَمِينٌ الَّذِينَ يَعْدِلُونَ فِي حُكْمِهِمْ وأهليهم

او د الله دواړه لاسونه ښي دي (او عادل حکمران هغه دی) چې په خپلو احکامو او خپل اهل او خپل

[1] أخرجه مسلم فى صحيحه ۳/۱٤٥۸ رقم الحديث (۱۸۲۸-۱۹) وأحمد فى المسند ٦/۹۳.

| |
|---|
| وَمَا وَلُوا». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)(۱). |
| تصرف او معاملاتو كې عدل او انصاف كوي. (مسلم) |

**توضيح : المقسطين:** دعدل او انصاف په معنى سره دى المقسط دباب افعال نه دعدل او انصاف په معنى سره دى په قرآن كې راغلي دي چې (**ان الله يحب المقسطين**). (المائده : ۴۲)
او كچيرې دا ماده دباب افعال په ځاى په مجرد وكې د ضرب يضرب نه قاسط راشي نو هغه دظلم او جور او دحق نه د تجاوز په معنى سره راځي په قرآن كريم كې دى (**واما القاسطون فكانوا لجهنم حطبا**) (سورة الجن : ۱۵)

علامه توريشتي رحمه الله ليكلي دي چې ويلى شي چې : **قسط الرجل اذا جار وهوان يأخذ قسط غيره والمصدر القسوط واقسط اذا عدل وهوان يعطي قسط غيره ويحتمل ان الالف ادخل فيه لسلب المعنى فيكون الاقساط ازالة القسط** (مرقات ج۷ص۲۱۳) (المرقات ۲۶۷/۷)

**يمين الرحمن :** دالله تعالى په نزد دعادل حكمران مرتبه ډېره لويه وي ددې او چتې مرتبې دتعبير او هغې طرف ته داشارې كولو دپاره يې وفرمايل چې دالله تعالى ښي طرف ته په منبرونو به ناست وي، غرض دا چې كوم خلق دلويې مرتبې والا وي هغه به ښي طرف ته ناست وي او دالله تعالى دواړه لاسونه ښي دي كس چونكه نسبتاً كمزورى وي په دې وجه دكمزورئ دې وهم لره لرې كولو دپاره ئې وفرمايل چې د الله تعالى دواړه لاسونه ښي دي. (المرقات ۲۶۸/۷)

**يعدلون :** كه ددې عدل نه دحكامو عدل او انصاف مراد وي نو بيا په دې سره په امور مملكت كې دانصاف او امانت او ديانت ټولو تقاضو لره پوره كول مراد دي چې په دې ټولو شعبوكې به عدل كوي په اهل او عيال كې دعدل او انصاف مطلب دادى چې په دې ځيزونو كې داصحاب حقوقو دحقونو ادا كولو پوره خيال ساتل دي چې داخلق به دنور په منبرونو باندې وي. (المرقات ۲۶۸/۷)

## د هر حاكم او امير سره هميشه دوه متضاد طاقتونه وي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا بَعَثَ اللهُ مِنْ نَبِيٍّ |
| او ابو سعيد رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې الله تعالى داسې كوم نبى نه دى ليږلى |
| وَلَا اسْتَخْلَفَ مِنْ خَلِيفَةٍ إِلَّا كَانَتْ لَهُ بِطَانَتَانِ: بِطَانَةٌ تَأْمُرُهُ |
| او داسې څوک خليفه يې نه دى مقرر كړى چې دهغه دپاره دوه پټ ملګرى نه وي يو پټ ملګرى د نيک |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۴۵۸ رقم الحديث (۱۸۲۸-۱۸) والنسائي في السنن ۸/۲۲۱ رقم الحديث ۵۳۷۹ وأحمد في المسند ۲/۱۶۰ .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْمَعْرُوفِ | وَتَحُضُّهُ | عَلَيْهِ | وَبِطَانَةٌ | تَأْمُرُهُ | بِالشَّرِّ |

کار کولو حکم ورکوي او نیکۍ طرف ته یې راغب کوي او دویم پټ ملګری دبدۍ حکم ورکوي او

وَتَحُضُّهُ عَلَيْهِ وَالْمَعْصُومُ مَنْ عصمَه الله". رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[1]

بدۍ طرفته يې راغب کوي او معصوم (بې ګناه) هغه دی چاله چې الله تعالی دګناه نه محفوظ وساتلو. (بخاری)

**توضيح**: **بطانتان**: يعنی دوه وزيران دوه مشيران چې د دوو پټو ملګرو په شان وي چې په هيڅ شان سره هم نه جدا کيږی يو دنيکۍ حکم ورکوي چې هغې ته الهام وايې چې د فرښتې د طرف نه وي. (المرقات ۲۶۹/۷)

**تحضه**: دنصر ينصر نه چالره راپورته کولو ته وايې مراد راوچتول او بيدار ساتل دي. ددې مضمون مطابق ځو احاديثه په باب الوسوسه کې تيرشوی دی چې په هغې کې انسان سره د شيطان او فرښتې لزوم خودلی شوی دی. والمعصوم يعنی د بطانة الشر او د شيطاني وسوسو نه بچ کونکی صرف يو الله تعالی دی. (المرقات ۲۶۹/۷)

## د نبی ﷺ سره دحضرت قيس بن سعد رضي الله عنه منصب

﴿۳۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ قَيْسُ بْنُ سَعْدٍ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت انس رضي الله عنه وائی چې دنبی کريم ﷺ سره د حضرت قيس بن سعد رضي الله عنه په حواله د هغه

بِمَنْزِلَةِ صاحبِ الشُّرَطِ منَ الأميرِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[2]

په خدمت کې وو چه د اميرانو او بادشاهانو سره کوتوال يې سرته رسوي. (بخاری)

**توضيح**: **الشرط**: علامه توربشتی رحمه الله ليکلې دی چې دا دشرطی جمع ده دا هغه سړي ته وايې چې د امير او حاکم په مخکې مخې مخې ته وي او سياسي امور چلوي چونکه داخلق دخپل بدن دتعارف دپاره نښنه تړي په دې وجه دې ته شرط ويلی شوی دی دلته خو کوتوال او د حکم په نافذ کولو باندې مقرر پوليس مراد دی.[3]

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۳/۱۳۳ رقم الحديث ۷۱۹۸ والنسائی ی ۷/۱۵۸ رقم الحديث ٤۲۰۲ وأحمد فی المسند۳/۳۹.

(۲) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۳/۱۸۹ رقم الحديث ۷۱۵۵ والترمذی فی السنن ٥/٦٤٧ رقم ۳۸۵۰.

(۳) المرقات ۲۷۰/۷

## ښځه خپله حاكمه جوړولووالا قوم كله هم نه شي كاميابيدى

﴿۳۲﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: لَمَّا بَلَغَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ أَهْلَ فَارِسَ

او حضرت ابوبكره رضي الله عنه وائي چې نبي صلى الله عليه وسلم ته دا خبر راورسيدو چې د فارس والو د

قَدْ مَلَّكُوا عَلَيْهِمْ بِنْتَ كِسْرَى قَالَ: «لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ

كسرى لور خپله حكمرانه جوړه كړې ده نو وې فرمائيل چې هغه قوم كله هم كامياب كيدى نه شي

وَلَّوْا أَمْرَهُمُ امْرَأَةً». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[1]

چې چا (د ملک) د امورو حاكم او والي كومه ښځې لره جوړه كړې وي. (بخاري)

**توضيح: بنت كسرى**: كله چې شيرويه خپل پلار پرويز قتل كړو او بيايې د پلار ايخودلې زهرې دوائي وكښله او وې څكله او هغه هم مړ شو نو اوس په شاهي خاندان كې د حكومت چلولو دپاره ځوک سړي پاتې نه شو نو بيا هغه خلقو د كسرى لور ارميدخت لره باچا جوړه كړه نبي عليه السلام ته چې كله ددې خبر وشو نو هغوى دا حديث ارشاد وفرمايلو.

كسرى دا د فارس د هريو باچا لقب وو څنګه چې قيصر د روم د باچا لقب وو د مصر باچا ته فرعون، د حبشې باچا ته نجاشي او د يمن باچا ته تبع او د هندوستان باچا ته راجه، او د تركيا باچا لره به په خاقان لقب سره ياديدل. (المرقات ۲۷۱/۷)

**لن يفلح**: فلاح هغې ته وائي چې د امن او امان سره د دنيا د معيشت او اقتصاديات هم په كاميابۍ سره ترقي وكړي او ښه انجام سره د آخرت ټول امور هم ترقي وكړي ګويا چې د دين او دنيا ښيګړې ته فلاح وايې د ښځې په سربراهۍ كې دا دواړه څيزونه ختم شي لكه په پاكستان، او بنګله ديش كې داسې شوې وو، ددې حديث نه په واضح طور سره معلومه شوه چې د ښځې حكومت نقصان او تباه كونكې څيز دی چې ناجائز دی، ملا علي قاري رحمه الله ليكي چې ښځه د باچا جوړيدو صلاحيت نه لري او نه د قاضي او جج جوړيدى شي ځكه چې ددې كارونو د سنبالولو دپاره ښكاره عام راوتل وي دې دپاره چې د مسلمانانو او عوامو معاملات سرته ورسوي، او ښځه خو يو پټ څيز دی چې داسې راوتلو صلاحيت نه لري او دويمه خبره داده چې ښځه ناقص العقل ده او قضاء كامل قيادت لهذا ددې كامل قيادت دپاره د كاملو سړو ضرورت دی (المرقات ۲۷۱/۷)

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ١٢٦ ... رقم الحديث ٤٤٢٥ والترمذي في السنن ٤/٤٥٧ رقم الحديث ٢٢٢٦ والنسائي في ٨/٢٢٧ رقم الحديث ٥٣٨٨ وأحمد في المسند ٥،٣٨ .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## دملت په اجتماعي هيئت کې تفرقه اچولو والا د پاره وعيد

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ عَنِ الحارِثِ الأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "آمُرُكُمْ |
| حضرت حارث اشعري رضي الله عنه وائي چې نبي صلی الله علیه وسلم و فرمايل تاسو ته د پنځو څيزونو حکم درکوم |
| بِخَمْسٍ: بِالْجَمَاعَةِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ |
| (۱) دحکمرانانو د دلې اطاعت کوئ (۲) امراء علماء چې کوم هدايت درکړي هغې لره اوريځ او تسليم کړئ. |
| وَالْهِجْرَةِ وَالْجِهَادِ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| (۳) د علماو د احکامو اطاعت او فرمانبرداري کوئ (۴) هجرت کوئ (۵) د الله په لاره کې جهاد کوئ! |
| وَإِنَّهُ مَنْ خَرَجَ مِنَ الْجَمَاعَةِ قِيدَ شِبْرٍ |
| (او ياد ساتئ) چې کوم سړی د ملت د اجتماعي هيئت نه يو لېشت برابر هم جدا شو هغه (گويا) چې د |
| فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ إِلَّا أَنْ يُرَاجِعَ |
| اسلام رسئ د خپل څټ نه وبستله مګر دا چې واپس راشي او کوم کس چې نعره وکړه د جاهليت په شان نعره، |
| وَمَنْ دَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ فَهُوَ مِنْ جُثَى جَهَنَّمَ وَإِنْ صَامَ وَصَلَّى وَزَعَمَ |
| هغه (گويا) د دوزخيانو د دلې يو فرد دی اګرچې هغه روژې نيسي مونځ کوي او دا وائي چې |
| أَنَّهُ مُسْلِمٌ". رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ (صَحِيح)[1] |
| زه مسلمان يم. (روايت کړې دې احمد، ترمذی) |

**توضيح: بالجماعة:** د اهل حقو د جماعت حقه مراد دی چې د آدم عليه السلام نه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم پورې د اهل حقو دلې راروانې دي. (المرقات ۲۷۱/۷) **الهجرة:** د ځان او ايمان د بچ کولو په غرض سره د دارکفر نه دارالاسلام طرف ته تلو ته هجرت وائي. (المرقات ۲۷۱/۷)

**الجهاد:** د دين اسلام د شوکت او چتوالي په خاطر د کفريه طاقتونو سره د مسلح جنګ کولو نوم

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۳۶ رقم الحديث ۲۸۶۳ وأحمد في المسند ۴/۱۳۰.

جهاد دی. (المرقات ۲۷۱/۷) **قيد** : قاف باندې زير دی دا د مثل او برابرئ او مقدار په معنی سره دی يعنی يو لښت برابر. (المرقات ۲۷۱/۷)**خلع**: د راوېستلو او غورزولو په معنی سره دی.
(المرقات ۲۷۲/۷) **ربقة** : په غاړه کې دا چولو رسئ ته وايې مراد ترې نه رسئ ده يعنی د اسلام پټی د څټ نه وېستل. (المرقات ۲۷۲/۷)

**بدعوی الجاهلية**: د جاهليت نعرې نه ددې طريقې خپلول مراد دي غلط کارونو طرف ته دعوت ورکول مراد دي. يا د جنګ په وخت د قوميت نعره او چتول مراد دی چې د ظالم د مدد د پاره **يالَلقوم** جاهلانه نعره لګوي دا لويه ګناه ده د غه شان نعرو سره ګويا داسړی د امت اجتماعی حيثيت ټوټې ټوټې کول غواړي. (المرقات ۲۷۲/۷)

**جثی** : په جيم باندې پيش دی او بيا الف مقصوره دی د **جثوة** جمع ده په اصل کې د شګې او خاورې ډيری ته وايې دلته مراد جماعت او ډله ده چې د دوزخ په ډلو کې به يوه ډله وي. (المرقات ۲۷۲/۷)

## د امير او والي سپکوالی مه کوئ

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَن | زِيَادِ | بنِ | كُسَيبٍ | العَدَوِيِّ | قَالَ: | كُنتُ | مَعَ | أَبِي بَكْرَةَ |
| او حضرت زياد بن كسيب عدوی (تابعیؒ) وائی (يوه ورځ) زه د حضرت ابوبكره رضي الله عنه (صحابی) سره | | | | | | | | |
| تَحتَ | مِنبَرِ | ابنِ | عَامِرٍ | وَهُوَ | يَخطُبُ | وَعَلَيهِ | ثِيَابٌ | رِقَاقٌ |
| د حضرت عامر رضي الله عنه د منبر لاندې ناست وم هر كله چې (ابن عامر) خطبه وركوله او هغه نرۍ جامې اغوستې وې | | | | | | | | |
| فَقَالَ | أَبُو | بِلَالٍ: | انظُرُوا | إِلَى | أَمِيرِنَا | | | |
| (په دې موقعه باندې يو تابعی) ابوبلال رحمه الله وويل چې لږ زمونږ دې امير ته او ګورئ، ده د | | | | | | | | |
| يلبس ثِيَابَ الفُسَّاقِ. فَقَالَ أَبُو بَكرَةَ: اسكُت سَمِعتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
| فاسقانو په شان جامې اغوستې دي حضرت ابوبكره رضي الله عنه وفرمايل چه خاموش! ما د نبی عليه السلام نه | | | | | | | | |
| يَقُولُ: | «مَن | أَهَانَ | سُلطَانَ | اللهِ | | | | |
| دا فرمان اوريدلی دی چې كوم سړی د باچا سپكاوی وكړي كوم چې الله تعالی (د خپل مخلوق | | | | | | | | |
| فِي | الأَرضِ | أَهَانَهُ | اللهُ» | | | | | |
| د كارونو سرته د رسولو د پاره) په زمكه مقرر كړی دی نو الله تعالی به هغه سړی ذليل او خوار كړي | | | | | | | | |

| |
|---|
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ (صَحِيح)[1] |
| دې روايت لره ترمذي رحمه الله نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث حسن غريب دی. |

**توضيح**: **ثياب الفساق**: ممکن ده چې ددې والي لباس د ربنسمو وو چې منع دی او عمومًا د ربنسمو لباس نرم وي، او ممکن ده چې ربنسم نه وو خو زيات قيمتي وو چې د عيش او عشرت والو لباس وي، الله والو ويلي دي: **من رق ثوبه رق دينه**. حضرت ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوبلال رحمه الله ددې لعن طعن نه منع کړو چې ممکنه ده چې ددې نه فتنه او فساد راوچت شي دا رنګه هر راتلونکی حاکم د مخکني حاکم نه بدتر کيدی شي. **سلطان الله**: په دې کې اضافت تشريفيه دی يعنی د الله تعالی حکم معلوم وي چې کوم حاکم د الله تعالی نه وی نه د الله تعالی دين لره نافذ کړي او نه پخپله په دې عمل کوي نو هغه د الله تعالی باچا نه دی بلکه شايد چې د شيطان باچا وي. (المرقات ۷/۲۷۳)

## دخالق په نافرمانۍ کې دمخلوق اطاعت جائز نه دی

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾ وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سِمْعَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ |
| او حضرت نواس بن سمعان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل د مخلوق دا سې تابعداري جائز |
| فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السنة[2] |
| نه ده چې په هغې سره د خالق نافرماني کيږي. (شرح السنة) |

## په قيامت کې به هر باچا تړلی راوستلی شي

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا مِنْ أَمِيرِ عَشَرَةٍ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل امير او حاکم که هغه د لسو |
| إِلَّا يُؤْتَى بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَغْلُولًا |
| کسانو امير او حاکم ولې نه وي د قيامت په ورځ به دا رنګه راوستلی شي چې د هغه په غاړه کې به طوق وي |

---

(۱) أخرجه الترمذى فى صحيحه ٤/٤٣٥ وأحمد فى المسند ٥/٤٢.

(۲) أخرجه البغوى فى شرح السنة ١٠/٤٤ رقم الحديث ٢٤٥٥.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتّٰى | يُفَكَّ | عَنْهُ | الْعَدْلُ | أَوْ | يوبقه | الْجور». | رَوَاهُ | الدَّارِمِيّ[1] |

ترديږي چې هغه به دديږ طوق نه ياخو دهغه عدل خلاص کړي يابه يې دهغه ظلم هلاک کړي. (دارمی)

**توضيح**: امير عشرة يعنى معمولي غوندې حکمران وي خواه په لسو کسانو باندې دهغه حکومت وي. (المرقات ۲۷۵/۷)

مغلولا د غل نه دی دمرې طوق ته وائي دلته د دواړو لاسونو نه تړل مراد دی چې دواړه لاسونه به څټ سره تړلي وي. (المرقات ۲۷۵/۷)

**يفک**: دنصر ينصر نه دخلاصولو په معنى سره دی. يوبقه دباب افعال نه ايباق دهلاکيدو په معنى سره دی. (المرقات ۲۷۵/۷)

## دقيامت په ورځ دامراو او حکامو افسوسناک حالت

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۸﴾ وعنهُ | قَالَ | قَالَ | رسول | الله | صلى | الله | عليه | وسلم: |

اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه وائي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل په امراء او حکامو باندې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيْلٌ | لِلْأُمَرَاءِ | وَيْلٌ | لِلْعُرَفَاءِ | وَيْلٌ | لِلْأُمَنَاءِ | لَيَتَمَنَّيَنَّ أَقْوَامٌ |

افسوس دی په چودهريانو باندې افسوس دی امينانو باندې افسوس دی! ډير زيات خلق دقيامت په ورځ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | أَنَّ | نَوَاصِيَهُمْ | مُعَلَّقَةٌ بِالثُّرَيَّا |

به آرزو کوي چې (کاش په دنيا کې) دهغوی دتندو وښتنه به په ثريا (ستوري) پورې تړلو سره هغوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَتَجَلْجَلُونَ | بَيْنَ | السَّمَاءِ | وَالْأَرْضِ | وَأَنَّهُمْ | لَمْ يَلُوا |

زوړند شوي وی او دزمکې او آسمان ترمينځه ځنګيدلی خو که هغوی ته دڅه کار ولايت او

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَمَلًا». | رَوَاهُ | فِي | «شَرْحِ السُّنَّةِ» | وَرَوَاهُ | أَحْمد | وَفِي | رِوَايَته: |

سرداري نه ملاويدی. (شرح السنة) او دې روايت لره امام احمد رحمه الله هم نقل کړی دی او دهغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| «أَنَّ | ذوائبهم | كَانَتْ | مُعَلَّقَةً بِالثُّرَيَّا |

روايت داسې دی چې هغه به تمنا کوي چې کاش! په دنيا کې دهغه د (وښتو) کمځی په ثريا پورې تړلی

---

(1) أخرجه الدارمى فى السنن ۲/۳۱۳ رقم الحديث ۲۵۱۵

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَتَذَبْذَبُونَ | بَيْنَ | السَّمَاءِ | وَالْأَرْضِ | ولَمْ | يَكُونُوا | عُمِلُوا | على | شَيْءٍ»[1] |

شوې وي او هغوی د زمکې او آسمان ترمينځه زوړند وي، خو هغه په څه ځيز باندې عامل نه وي مقرر شوی.

**توضيح**: ويل : دا لفظ د غم او هلاکت او عذاب او د مشقت د پاره ويلی شي، بعضې علماء وايي چې دا په دوزخ کې د يوې کندې نوم دی چې په هغې کې به څلوېښت کالو پورې روان وي او ويخ ته به نه رسيږي. (المرقات ۲۷۶/۷)

**أُمَنَاء**: دا د امين جمع ده او امين هغه سړي ته وائی کوم لره چې باچا په صدقاتو او محصولاتو باندې مقرر کړی وي. يا د عامو خلقو د اماناتونو آمين مراد دی په دې عهده کې د خيانت لويه خطره ده، نن صبا ده ته وزيرمال يا خزانچي ويلی شي. (المرقات ۲۷۶/۷)

**العرفاء**: دا د عريف جمع ده، ملاعلی قاری رحمه الله فرمائي چې عريف د قبيلې هغه مشر ته ويلی شي چې د خپلې قبيلې کارونه سرته رسوي او د هغه کارونو سرپرستی کوي او د وخت باچاهان د هغه په ذريعې سره د عوامو احوال معلوموي، د کلو او قبيلو سردار او د صوبې ګورنر هم په دې کې شامل دی. (المرقات ۲۷۶/۷)

**عرفاء** کې چودهری، نواب، خان، ملک، ليډر، او ډيری ټول يکې داخل دي شاعر وايي:

**اوكلّما وردت عكاظ قبيلة بعثوا الى عريفهم يتوسم**

**ثريا**: کښو ستورو ته وائی چې يو ځای وي او د هغې رڼا کمه وي. **يتجلجلون**: کوم سړی چې د څه ځيز پورې زوړند يدو سره حرکت کوي هغې ته **تجلجل** وايي په نورو رواياتو کې د **يتذبذبون** لفظ راغلی دی هغه هم دا دی يلو دا د والي او حاکم جوړيدو په معنی سره دی. يعنی دا خلق به په قيامت کې په حسرت او ندامت سره تمنا کوي چې کاش مونږ په دنيا کې ټول مشقتونه او ذلتونه برداشت کولی په مظلوم رعايا او کې او سيدی خو په حکمرانی. او په فانی عيش او عشرت کې نه وی دې د پاره چې نن مې د عذاب دا ويريدونکی مخ نه ليدلی. **الآن قدندمت ولم ينفع الندم**. (المرقات ۲۷۶/۷)

---

(۱) أخرجه البغوى فى شرح السنة ۱۰/۵۹ رقم الحديث ۲٤٦۸ وأحمد فى المسند ۲/۳۵۲

## اکثر چودهریان به دوزخ ته ځي

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ غَالِبِ الْقَطَّانِ عَنْ رَجُلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ |
| او حضرت غالب قطان يو سړی دی او هغه سړی دخپل پلار نه او هغه دخپل نيكه نه روايت كوي وائی |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «إن العرافة حق ولابد لِلنَّاسِ مِنْ عُرَفَاءَ |
| چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چودهراهټ يو حقيقت دی او دخلقو دپاره چودهري كيدل ضروري دی |
| وَلَكِنَّ الْعُرَفَاءَ فِي النَّارِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| خو چودهري به دوزخ ته ځي. (ابوداؤد) |

**توضيح**: **العرافة حق**: دلته حق په معنی دثابت دی چې عرافه يو حقيقت دی يا مطلب دا چې عرافه ثابتيدل پكار دي. **ولابد**: يعنی دخلقو مختلف كارونه او ضروريات وي هغې لره كوم حاكم ته رسول ضروری وي او دا كار دعرفاء او دهغه چودهريانو دی خو په دې كې خلق خيانت هم كوي او ظلم هم كوي په دې وجه عرافه يعنی چودهراهټ په دوزخ كې دی كچيرې دې منكراتو نه بچ شی نو بيا دا وعيد نشته دی. (المرقات ۲۷۷/۷)

## ظالم حاكم سره تعاون حرام دی

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت كعب بن عجره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمايل، زه تاسو لره د بې وقوفانو |
| «أُعِيذُكَ بِاللهِ مِنْ إِمَارَةِ السُّفَهَاءِ» |
| د سردارئ پشان د طريقونه يا د هغوی دملګرتيا او حمايت نه) د الله تعالی په پناه كې وركوم. كعب رَضِيَ اللهُ |
| قَالَ: وَمَا ذَاكَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ |
| وايې چې ما عرض وكړو ای دالله رسوله! دا څه دي؟ نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل زما نه پس (په بعضو زما |
| «أُمَرَاءُ سَيَكُونُونَ مِنْ بَعْدِي مَنْ دَخَلَ عَلَيْهِمْ |
| كې) چې كوم خلق به اميران او حاكمان وي هغه به احمق او نادان او ددنيا دآئين نه به نابلده او دورغژن |

---

[1] أخرجه أبوداود فى السنن ۳/۶۴۶ رقم الحديث ۲۹۳۴.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَصَدَّقَهُمْ | بِكَذِبِهِمْ | وَأَعَانَهُمْ | عَلَى | ظُلْمِهِمْ |

او ظالمان به وي، لهذا چې کوم خلق ددې خوا ته ځي دهغه دظلم امداد او حمایت یې وکړونو نه د

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَلَيْسُوا | مِنِّي | وَلَسْتُ | مِنْهُمْ |

هغه ماسره څه تعلق دی او نه زه دهغه سره څه تعلق ساتم (بلکه دهغه نه دخپلې بیزارۍ اظهار کوم) او

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَنْ | يَرِدُوا | عَلَيَّ | الحوضَ | وَمَنْ | لَمْ | يَدْخُلْ | عَلَيْهِمْ وَلَمْ |

نه به هغه خلق حوض باندې ماته راځي او کوم خلق چې نه خو دهغه امیرانو او حاکمانو خوا ته لاړشي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُصَدِّقْهُمْ | بِكَذِبِهِمْ | وَلَمْ | يُعِنْهُمْ | عَلَى | ظُلْمِهِمْ | فَأُولَئِكَ | مِنِّي |

او نه یې دهغه دروغو ته رښتیا وویل او نه یې دهغه دظلم امداد او حمایت وکړو نو هغه خلق زما دي او

وَأَنَا مِنْهُمْ وَأُولَئِكَ يَرِدُونَ عَلَيَّ الْحَوْضَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ[1]

زه دهغوی یم او په حوض باندې به ماته راځي. (ترمذی، نسائی)

یو شعر وګورئ:

لایصلح الناس فوضی لاسراة لهم ولاسراة اذا جهالهم سادوا

دیوحاکم نه بغیر په افراط او تفریط (ګډوډی) کې خلق صحیح نه شي کیدی او که جاهل حکمران وي نو دخلقو حکمران نه دی.

## دحکومت دسربراهانو ناسته ددین او دنیا دتباهۍ ذریعه ده

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۱﴾ وَعَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: |

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| «مَنْ | سَكَنَ | الْبَادِيَةَ | جَفَا | وَمَنِ | اتَّبَعَ | الصَّيْدَ |

چې کوم کس په ځنګل (کلو کې) او سیږي هغه به جاهل وي او کوم کس چې ښکار پسې نختی وي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| غَفَلَ | وَمَنْ | أَتَى | السُّلْطَانَ | افْتُتِنَ». | رَوَاهُ | أَحْمَدُ | وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ |

هغه به غافل وي او کوم سړی چې باچا ته ځي راځي هغه به په فتنه کې مبتلا کیږي (احمد، ترمذی، نسائی)

---

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ۲/۵۱۲ رقم الحديث ۶۱۴ والنسائی فی ۷/۱۶۰ رقم الحديث ۴۲۰۷ وأحمد فی المسند ۴/۲۴۳.

| |
|---|
| وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: «مَنْ لَزِمَ السُّلْطَانَ |
| او د ابوداؤد رحمه الله په روايت کې داسې دي چې کوم سړی د باچا په نوکرئ کې وي هغه به په فتنه کې |
| افْتُتِنَ وَمَا ازْدَادَ عَبْدٌ مِنَ السُّلْطَانِ دُنُوًّا إِلَّا ازْدَادَ من الله بُعداً»[1] |
| مبتلا کيږي او کوم سړی چې د باچا څومره زيات نزديکت غواړي هم دومره د الله تعالى نه لرې کيږي. |

**توضيح: من سكن البادية جفا:** په ځنګل کې او کلو کې او سيدونکي چونکه د علم او علماؤ او د صلحاؤ د مجلسونو نه لرې اوسي او د ښار د ماحول د تهذيب نه هم واقف نه وي په دې وجه په هغه کې جهالت او بد تميزي وي، نبی عليه السلام د امر واقعي بيان کړی دی د کلو د اوسيدونکو تنقيص مقصود نه دی. (المرقات ۲۷۹/۷)

**ومن اتبع الصيد:** يعني يو سړی په ښکار پسې داسې لګيدلی وي چې نه د خوراک فکر شته او نه د مونځ فکر شته دې سره نه د ځان پرواه شته او دا ټول صرف د خه روزۍ او حلال رزق د ګټلو په نيت نه وي بلکه د عيش او عشرت او لهو او لعب په طور باندې وي نو ظاهره ده چې دا پخپله غفلت او ګناه ده د دې نه د ښکار کولو ممانعت نه کيږي په کوم کې چې دا مفاسد نه وي ځکه چې نبی عليه السلام اګر چې پخپله خو ښکار نه دی کړی خو د ښکار غوښه يې خوړلې ده او صحابه کرامو رضي الله عنهم ته يې د دې مسائل خودلې دي او هغوی يې منع کړې نه دي. (المرقات ۲۷۹/۷)

**افتتن:** يعني کوم سړی چې بغير د څه سخت ضرورت نه د باچا دربار ته لاړلو نو هغه په فتنه کې پريوتلو ځکه چې هلته به د باچا د ناجائز کارونو موافقت کوي نو د هغه دين به تباه شي، او که مخالفت يې کوي نو د هغه دنيا او ځان په خطره کې پريوځي. ها که يو سړی د باچا په دربار کې حق کلمه او چته کړه نو هغه خو ډير لوی داجر کار وکړو. (المرقات ۲۸۰/۷)

## ګمنامي د راحت ذريعه ده او شهرت د آفت ذريعه ده

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾ وَعَن الْمِقدامِ بن مَعْدِيكرِبَ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت مقدام بن معديكرب رضي الله عنه روايت کوي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم د هغه يعنی د |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۲۷۸ رقم الحديث ۲۸۵۹ والترمذى فى ٤/٤٥٤ رقم الحديث ۲۲۵۹، والنسائى فى ۷/۱۹۵ رقم الحديث ۴۳۰۹ وأحمد فى المسند ۳۵۷/۱.

| |
|---|
| ضَرَبَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ ثُمَّ قَالَ: «أَفْلَحْتَ يَا قُدَيْمُ إِنْ مُتَّ |
| مقدام رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په اوږه باندې لاس وهلو سره وفرمایل ای قدیم! کچیرې په دې حالت کې ستا مرګ |
| وَلَمْ تَكُنْ أَمِيرًا وَلَا كَاتِبًا وَلَا عريفا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| وي چې نه ته امیر او حاکم یې، نه منشي یې او نه چودهري نو تا کامیابي بیامونده. (ابوداؤد) |

نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ د محبت په وجه باندې مقدام ته یې د تصغیر سره یا قدیم وفرمایل)

## د پټواریانو او ټول ټیکس اخستونکو د پاره وعید

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا |
| او حضرت عقبه بن عامر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ او فرمایل چې صاحب مکس به |
| يَدْخُلُ الْجَنَّةَ صَاحِبُ مَكْسٍ» : يَعْنِي |
| جنت ته نه داخلیږي صاحب مکس نه د نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ مراد (د حاکم کارپرداز) دی چې د خلقو نه |
| الَّذِي يَعْشِرُ النَّاسَ. رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد والدارمي[2] |
| خلاف شرع محصولونه او ټیکس وصولوي. (احمد، ابوداؤد، درامی) |

**توضیح : صاحب مکس :** مکس محصول ټیکس ته وایې چې په ناجائز طور باندې ځای په ځای جوړ شوی وي او په ظالمانه طور باندې د خلقو نه ټیکس وصولوي که هغه په ایئرپورټونو باندې وي یا په نورو ځایونو باندې وي یا د څه قسمه بلونو په شکل کې وي چې په هغې سره ظلم کړی شوی وي او خلاف شرع ټیکس نافذ کړی شوی وي، هغه ټول په دې وعید کې داخل دي: شاه ولی الله رحمه الله لیکلې دي چې د یو حکومت د تباهئ او ناکامئ د پاره صرف دا کافی ده چې هغه په عوامو باندې لوی ټیکس مقرر کړي. (المرقات ۷/۲۸۰)

## د امام عادل فضیلت

| |
|---|
| ﴿۴۴﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ |
| او حضرت ابوسعید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وایې چې رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ او فرمایل د قیامت په ورځ به په |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۳۴۶ رقم الحديث ۲۹۳۳.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۳۴۹ رقم الحديث ۲۹۳۷ وأخرجه الدارمي في السنن ۱/۴۸۲ رقم الحديث ۱۶۶۶ وأحمد في المسند ۴/۱۴۳.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَحَبَّ | النَّاسِ | إِلَى | اللهِ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | وَأَقْرَبَهُمْ |

خلقو کې دالله تعالی په نزد دټولو نه زیات محبوب او د مجلس په اعتبار سره دټولو نه زیات مستحق

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْهُ | مَجْلِسًا | إِمَامٌ | عَادِلٌ | وَإِنَّ | أَبْغَضَ | النَّاسِ |

چې کوم سړی وي هغه عادل امام او حاکم دی او د قیامت په ورځ د الله تعالی په نزد په

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | اللهِ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | وَأَشَدَّهُمْ | عَذَابًا» | وَفِي | رِوَايَةٍ: |

خلقو کې دټولو نه زیات د نفرت مستحق او دټولو نه زیات دعذاب سزاوار! او په یو روایت کې دا دي چې:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| «وَأَبْعَدَهُمْ | مِنْهُ | مَجْلِسًا | إِمَامٌ | جَائِرٌ». | رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |

دالله تعالی نه دټولو نه زیات لرې چې به کوم سړی وي هغه ظالم امام او حاکم دی. امام ترمذی رحمه الله

وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ (صَحِيحٌ)[1]

دې حدیث لره نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن غریب دی.

**توضیح**: د دې حدیث تشریح کې دوه شعرونه اوګورئ:

کم یرفع الله بالسلطان مظلمة — فی دیننا رحمة منه ودنیانا

لولا الخلیفة لم تأمن لنا سبل — وکان اضعفنا نهبًا لأقوانا

الله تعالی په خپلې مهربانۍ سره د عادل باچا په ذریعې سره ئې زمونږ د دین څو مره مشکلات لرې کړل او که عادل باچا نه وی نو زمونږ امن به تباه کیدو او طاقتور خلقو به کمزوري خلق خوړلې وو.

## دظالم حاکم په مخکښې حق ویناکول دټولو نه بهتر جهاد دی

﴿۲۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَفْضَلُ الْجِهَادِ

او حضرت ابو سعید رضی الله عنه وائی چې نبی علیه السلام وفرمایل دټولو نه بهتر جهاد د هغه سړي دی

مَنْ قَالَ كَلِمَةَ حَقٍّ عِنْدَ سُلْطَانٍ جَائِرٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه (صَحِيحٌ)[2]

چې د ظالم باچا په مخکې حق خبره وکړي. (ترمذی، ابوداؤد، ابن ماجه) او احمد او نسائی دي

---

(1) أخرجه الترمذی فی صحیحه ۳/۶۱۷ رقم الحدیث ۱۳۲۹ وأحمد فی المسند ۳/۵۵.

(2) أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٥١٤ رقم الحدیث ٤٣٤٤ والترمذی فی ٤/٤٧٩ رقم الحدیث ٢١٧٤ وابن ماجه ۲/۱۳۲۹ رقم الحدیث ٤٠١١

وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ[1]

حدیث لره د طارق بن شهاب نه نقل کړی دی.

**توضیح : افضل الجهاد** : دلته د من کلمې نه مخکې لفظ جهاد مقدر منل ضروری دی. ای جهاد من قال یا **افضل اهل الجهاد** به محذوف کولی شي . او س سوال دادی چې د ظالم باچا په مخکې صرف زبانی جهاد د میدان کارزار د زم بزم نه افضل ولې شو؟ ددې یو جواب ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کې ورکړی دی کوم چې حضرت گنگوهی رحمه الله په کوکب الدری کې نقل کړی دی. ددې خلاصه داده چې د میدان جنګ مجاهد د امید او بیم په مینځ کې وي، کیدی شي چې هغه د دشمن د لاسه په میدان کې شهید شي او ممکن ده چې د مینځ نه په وتلو کې کامیاب شي خو د ظالم باچا په مخکې حق کلمه ویل یقیني مرګ له دعوت ورکول دي ځکه چې په صحیح معنو کې ده امر بالمعروف او نهی عن المنکر کړی دی، نو چونکه دا د ظالم په لاس او قابو کې دی لهذا ددې بچ وتل مشکل دی او کوم سړی چې پوهیږي چې ددې کلام په وجه به ماته مرګ ملاویږی او بیا به هم ددې جرأت کوي نو دا ډیر لوی اقدام دی په دې وجه دا افضل جهاد وګرځولی شو .دویم جواب هم د شیخ مظهر په حوالې سره ملاعلی قاری رحمه الله نقل کړی دی چې ددې خلاصه داده چې د ظالم باچا د ظلم دوچې نه په زرګونو لکونو خلقو ته نقصان رسیږی او ده لره په صحیح لار باندې راوستلو کې د لکونو مسلمانانو بښیګړه او فائده ده په دې وجه د عامې فائدې پیش نظر دا د هغه جهاد نه افضل دی چې د کوم جهاد نفع د هغه د نفعې پورې محدوده وي، لهذا څه خلق صرف زبانی جمع خرچ لره افضل جهاد ګرځوي دا ددې حدیث په مفهوم کې کو کم نظري ده او د جهاد مقدس نه د طبعی نفرت نتیجه ده. هم صرف مجاهدین دي چې د حکمرانانو په سر ناست وي دا د حق کلمې او د حق دعوت مهم نه دی نو آیا د څه سرمایې او تجارت جنګ دی؟( المرقات ۲۸۱،۲۸۲/۷)

*یہ مرتبہ بلند ملا جس کو مل گیا ہر مدعی کے واسطے دار و رسن کہاں*

## دحکمرانانو نیک مشیر دهغوی د کامیابۍ ذریعه وي

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وائی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کله الله تعالی د أمیر |

(۱) أخرجه النسائی فی السنن ۷/۱٦۱ رقم الحدیث ٤۲۰۹ وأحمد فی المسند٤/۳۱٤ .

أَرَادَ اللهُ بِالْأَمِيرِ خَيْرًا
(حکمران) (د دینی او دنیاوی) ښیګړې اراده کوي نو د هغه دپاره رښتنې (یعنی صحیح ګفتار
جَعَلَ لَهُ وَزِيرَ صِدْقٍ إِنْ نَسِيَ ذَكَّرَهُ
او صحیح کردار) وزیر او مشیر مقرروي چې کله هغه امیر (د الله تعالی حکمونه) هیروي نو هغه وزیر ئې هغه
وَإِنْ ذَكَرَ أَعَانَهُ. وَإِذَا أَرَادَ بِهِ غَيْرَ ذَلِكَ
ته وریادوی او که هغه یې یاد ساتي نو هغه وزیر هغې له (په یاد ساتلو کې) مدد ورکوي او کله چې الله تعالی د کوم
جَعَلَ لَهُ وَزِيرَ سُوءٍ إِنْ نَسِيَ لَمْ يُذَكِّرْهُ
امیر د ښیګړې اراده نه کوي نو په هغه باندې بد مشیر مسلط کوي. کچرې امیر د الله تعالی حکمونو له پریږدي
وَإِنْ ذَكَرَ لَمْ يُعِنْهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1]
نو هغه وزیر یې هغه ته نه یادوی او که هغه یې نه پریږدي نو هغه وزیر ده مدد نه کوي. (ابوداؤد، نسائی)

**توضیح**: د دې حدیث د تشریح ضرورت نشته دی صرف په دوه شعرونو باندې اکتفاء کوم.

اضاع الخلافة غش الوزیر
وفسق الامیر وجهل المشیر

**ترجمه**: خلافت اسلامیه لره د وزیر دوکه بازۍ د وزیراعظم فسق او فجور او د مشیر جهالت برباد کړو.
بس فخر امام وزیر قانون دی مشاهد حسین مشیر دی دواړه د وزیراعظم نواز شریف تباهی غواړي.

ففخر وزیر مشاهد مشیر
یریدان مافیه حتف الامیر

دپاکستانی حکومت د یو دور د حکومت وزیراعظم او یو وزیر او یو مشیر طرف ته اشاره ده.

## د حاکم بدګماني رعیت بربادوي

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:
او حضرت ابوامامه د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل حکمران چې
«إِنَّ الْأَمِيرَ إِذَا ابْتَغَى الرِّيبَةَ فِي النَّاسِ أَفْسَدَهُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[2]
کله په خلقو کې د شک او شبهې خبره لټوي نو خلق خرابوي. (ابوداؤد)

---

(1) أخرجه أبوداود فی السنن ۳/۳۴۵ رقم الحدیث ۲۹۳۳ والنسائی فی ۷/۱۵۹ رقم الحدیث ۴۲۰۱.

(2) أخرجه أبوداود فی السنن ۵/۲۰۰ رقم الحدیث ۴۸۸۹ وأحمد فی المسند ۴/۶.

**توضيح** : الريبة : په دې ارشاد مبارک سره يو بين الاقوامى قانون طرف ته اشاره شوې ده چې دملک اوملت سالميت او دقومونو کاميابى او د حاکم اومحکوم په مينځ کې دخوشګوار (بنائسته) تعلقات دپاره دا ضرورى ده چې دحاکم او رعايا په مينځ کې مکمل د اعتما فضا قائمه وي هرحاکم له پکاردي چې په غور سره دې خبره لره سوچ وکړي چې هغه ته دخپلې رعيت پوره په پوره د تائيد ضرورت دی کچيرې يو تنګ نظرى او کم ظرفه حکمران دخپل رعاياو په باره کې مسلسل په شک اوشبهه کې مبتلا وي او د رعاو په وفادارئ او نقل اوحرکت باندې بدګماني کوي اوپه دروغه الزاماتو باندې هغوى باربار تنګوي نو هغه په حقيقت کې پخپله خپلې خپې په تبر باندې وهي او خپلې جرړې اوباسي اوس چې څنګه حاکم د رعيت يوې طبقې لره بغير دځه وجې نه د بدګمانى. نبنه جوړولو سره په قيدخانو کې اچوي نو دعوامو دمخالفانه جذباتو او دشک اوشبهې رحجانات به زياتيږي اوهمدا دحکومت تباهي ده.( المرقات ۲۸۳/۷)

| |
|---|
| ﴿۴۸﴾ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| اوحضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوريدلو چې کله |
| «إِنَّكَ إِذَا اتَّبَعْتَ عَوْرَاتِ النَّاسِ أَفْسَدْتَهُمْ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[1] |
| ته دخلقو (پټ) عيبونو لره تلاش کړې نو هغوى لره په خرابى. کې مبتلا کړې.(بيهقى) |

## دحق تلفي کونکي حاکم خلاف توره اوچتولو نه صبر کول بهتر دی

| |
|---|
| ﴿۴۹﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| اوحضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (مونږلره مخاطب کولو سره) وفرمايل |
| «كَيْفَ أَنْتُمْ وَأَئِمَّةٌ مِنْ بَعْدِي |
| زمانه پس به تاسو دحاکمانو او سردارانو سره هغه وخت څه سلوک کوئ هرکله چې هغه فئ (مال غنيمت) |
| يَسْتَأْثِرُونَ بِهٰذَا الْفَيْءِ؟». قُلْتُ: |
| پخپله ځان سره ساتي (آيا دصبرنه به کاراخلئ يا دهغوى خلاف به توره راوچتوئ؟) ماعرض وکړو |
| أَمَا وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ أَضَعُ سَيْفِي عَلَى عَاتِقِي |
| واورئ قسم دی په هغه ذات چې هغه تاسو لره په حق سره راليږلې يې زه به خپله توره په اوګه ږدم |

---

(1) أخرجه أبوداود فى السنن ۵/۱۹۹ رقم الحديث ۴۸۸۸ والبيهقى فى شعب الايمان ۷/۱۰۷ رقم الحديث ۹۶۵۹.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | أَضْرِبُ | بِهِ | حَتّٰى | أَلْقَاكَ | قَالَ: | «أَوَلَا | أَدُلُّكَ | |

او (بیا به ددې په سبب) تاسو لره ملاو شم نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل چې زه تاته ستا دتورې نه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى | خَيْرٍ | مِنْ | ذٰلِكَ؟ | تَصْبِرُ | حَتّٰى | تَلْقَانِي». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] | |

بهتره خبره ونه ښايم؟(نو واوره) ته هغه وخت دصبر لار اختيار کړه تردې پورې چې ته ماسره ملاو شې!

**توضيح** : **اضع سيفي** : يعنی په غاړه کې توره زوړند ول يعنی دهغه د وژلو دپاره به راوځم او چې څوک هم ملاويږي دهغه څټ به الوزوم. (المرقات ۲۸۳/۷)

**دمسلمانانو په خپل مينځ کې په جنګونو کې د شريعت حکم**: کله چې مسلمانان په خپل مينځ کې جنګيږي او دا معلومه نه وي چې هغوی ولې جنګيږي نو د داسې موقعو دپاره ځانله احاديث راغلي دي، د بعضې رواياتونه معلوميږي چې ښه وجنګيږئ او د حق جماعت لره غالب کړئ چې دا اهل حقوويناا وچته شي دصحابو ديوې لوي طبقې همدا نظريه وه،دويم قسم هغه روايات دي چې په هغې کې راغلي دي چې ته په کور کې پټ شه دننه لاړشه او توره ماته کړه. د حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همدا رايه ده او دصحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ يوه طبقه هم دې طرفته ده.دريم قسم هغه روايات دي چې که چيرې فتنه کورته راشي نو دفاع کوئ په صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کې دحضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رايه همدا وه. نو درې قسمه روايات درې قسمه طبقو دخپل خپل مزاج مطابق قبول کړل، خودحق داوچتوالي دپاره ميدان ته راوتل دجمهورو صحابو عمل پاتې شوی. (المرقات ۲۸۵/۷)

## الفصل الثالث

## دعادل امام فضيلت

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۰﴾ عَنْ | عَائِشَةَ | عَنْ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: |

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ (صحابو ته) وفرمايل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| «أَتَدْرُوْنَ | مَنِ | السَّابِقُوْنَ | إِلٰى | ظِلِّ | اللهِ | عَزَّوَجَلَّ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ؟» |

تاسو ته پته ده چې دقيامت په ورځ به دالله تعالی (دعرش يا دهغه دلطف او کرم) سورې طرف ته وړاندې

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۱۱۹/۵ رقم الحديث ۱۷۵۹ وأحمد في المسند ۱۸۰/۵.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالُوا: | الله | وَرَسُولُهُ | أَعْلَمُ | قَالَ: |
| کیدونکي کوم خلق دي؟ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض او کړو الله او د هغه رسول ښه پوهیږي نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل | | | | |
| «الَّذِينَ | إِذَا | أُعْطُوا | الْحَقَّ | قَبِلُوهُ |
| وړاندې کیدونکي هغه خلق دي چې دچا مخې ته خبره کیخودی شي نو قبلوي یې، کله چې دهغوی نه | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | سُئِلُوهُ | بَذَلُوهُ | وَحَكَمُوا | لِلنَّاسِ | كحكمهم | لأنفسهم»(۱) |
| دحق مطالبه کولی شي نو هغوی یې کوي او د خلقو په حق کې هم هغه فیصله کوي چې د ذات په باره کې یې کوي. | | | | | | |

**توضیح : السابقون** : چونکه په دې حدیث کې چې مخکې کومې درې خبرې ذکر دي په هغې کې دبعضو تعلق بلا واسطه د حکمرانانو سره دی او دبعو تعلق بالواسطه د هغوی سره دی په دې وجه دې حدیث لره یې په باب الارمارة کې راوړو، اوعنوان یې د عادل امام فضیلت وتړلی شو ګني

د **السابقون** په جمله کې دعادل حکمران څه تخصیص نشته دی. دعادلانو حکمرانانو اول صفت خو دادې چې کله دهغوی مخې ته د رعایا ښېګړه او د بهترئ دپاره څه حق پیش کړی شي نو هغه د دې قبلولو سره په دې عمل کوي. دویم وصف دعادلانو حکمرانانو دا بیان کړی شوی دی چې کله رعایا د هغه نه خپل حق غواړي نو هغه یې ورکوي او دهغوی دښیګړې او د ژوند په ضروریاتو کې خرچ کوي او په دې کې بخل نه کوي. دریم صفت د عادلانو حکمرانانو دابیان کړی شوی دی چې هغوی دعدل او انصاف او مساوات په تله باندې پوره خیژي هغوی چې کومه فیصله دخلقو متعلق کې کوي هغه فیصله دخپل ځان متعلق هم کوي، چې دسکون او راحت او چې کوم سهولت دځان دپاره خوښوي هم هغه اصول دنورو دپاره هم خوښوي، دانه چې دخپل ځان دپاره ځانله امتیازات او قواعد وي او دخلقو دپاره ځانله وي بلکه د انصاف په تله کې دواړه برابر او پوره په پوره خیژي دا بهترین حکمران دی. (المرقات ۷/۲۸۵)

## د حکمرانانو دظلم نه دنبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یره

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۱﴾وَعَنْ | جَابِرِ | بْنِ | سَمُرَةَ | قَالَ: | سَمِعْتُ | رَسُولَ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسلم | يَقُولُ: |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوریدلو فرمایل یې چې زه د خپل امت | | | | | | | | | | | | |

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۶/۶۷.

| | | | |
|---|---|---|---|
| "ثلاثةٌ | أَخَافُ | عَلَى | أُمَّتِي: |
| په باره کې د دري خبرو نه ويريږم (چې چرته ددې په اختيارولو سره په ګمراهۍ کې مبتلا نه شي) يو خو د مياشت د منازلو | | | |
| اَلِاسْتِسْقَاءُ | بِالْأَنْوَاءِ | وَحَيْفُ | السُّلْطَانِ |
| په حساب سره باران غوښتل، دويم د باچا ظلم کول، او دريم تقدير لره نه منل (يعنی دا عقيده ساتل چې تقدير | | | |
| وَتَكْذِيب | الْقَدَرِ" | اخرجه | أَحمد.[1] |
| الهی هيڅ څيز نه دی بلکه انسان چې کوم کار هم کوي هغه پخپله ددې خالق وي ځکه چې ديوې ډلې قدريو مسلک دی. | | | |

**توضيح : الاستسقاء بالانواء :** دا دنوء جمع ده نچهتر ستورو ته ويلې شي چې د ربيع په موسم کې ښکاره کيږي چې دهغې په وجه سره دعربو د جاهليت دعقيدې مطابق باران زياتيږي.
ابو طيب متنبی ويلې دي: (المرقات ۲۸۷/۷)

**جهد القطار ولور ته کما تری** . **جست کما تکبجس الانواء**

په نهايه د ابن کثير کې ليکلې دي چې انواء د مياشت ۲۸ منازلو او دبرجونو نوم دی هره شپه مياشت په دې کې يو منزل ته کوزيږي او اته ويشت شپو کې خپل منازل پوره کوي، همدا وجه ده چې مياشت په دوه شپو کې غائبيږی، بهرحال په مغرب کې يو منزل او برج پټيږي نو په دغه وخت کې په مشرق کې يو منزل او برج راخيژي دعربو په جاهليت کې خيال وو چې ددې دسقوط او طلوع په زمانه کې سخت بارانونه کيږی، اسلام دې لره منع کړو دباران کيدل نه کيدل دالله تعالی په لاس کې دي ديو ستوري يا برج مثلاً سهيل ستوری يا سهيلی ستوری طرف ته نسبت کول دشرک ذريعه ده.
وحيف السلطان : حيف ظلم او جور ته وائی نو دباچاهانو ظلمونو ټولې دنيا لره پريشانه کړې ده.

عبدالرحمن باباؒ په خپل کلام کې د پيښور د ظالمو باچاهانو متعلق ويلې دي:

په سبب دظالمانو حاکمانو . اور او ګور او پيښور دريواړه يو دي

**وتكذيب بالقدر :** يعنی دتقدير نه انکار او ددې تفصيل په باب الايمان بالقدر کې کتل پکار دي. (المرقات ۲۸۷/۷)

## بلاوجه نه خو آمين جوړ شه او نه حاکم جوړ شه

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۲﴾ وَعَنْ | أَبِي | ذَرٍّ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «سِتَّةَ أَيَّامٍ |
| او حضرت ابو ذر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم شپږو ورځو پورې ماته فرمايل چې ابوذره! | | | | | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۵/۹۰

| |
|---|
| روستو |
| اعْقِلْ يَا أَبَا ذَرٍّ مَا يُقَالُ لَكَ بَعْدُ» |
| چې کومه خبره تاته ویلی کیدونکې ده دهغې دپاره تیار اوسه (یعنی نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ شپږ ورځو پورې زه خبرولم |
| فَلَمَّا كَانَ الْيَوْمُ السَّابِعُ قَالَ: «أُوصِيكَ بِتَقْوَى اللهِ فِي سِرِّ أَمْرِكَ وَعَلَانِيَتِهِ |
| چې زه به تاته یو هدایت درکوم چې په ظاهر او باطن کې د الله تعالی نه یریږه، کله چې په تاسو کې د چانه |
| وَإِذَا أَسَأْتَ فَأَحْسِنْ |
| بدي وشي نو ورسره نیکي هم کوئ ځکه چې هغه بدئ له ختموي یا دا مقصد دی چې کچیرې ته د چا سره څه بد سلوک وکړې نو |
| وَلَا تَسْأَلَنَّ أَحَدًا شَيْئًا |
| دهغه سره (د نیکئ سلوک هم کوه) د چا (مخلوق) په مخکې د سوال د پاره لاس مه غزوه اګرچه ستا کوړه ولې نه |
| وَإِنْ سَقَطَ سَوْطُكَ وَلَا تَقْبِضْ |
| وي غورزیدلې (یعنی که کچرې کوړه درنه وغورزیږی نو دهغې د اوچتولو د پاره هم چا ته مه وایه) |
| أَمَانَةً وَلَا تَقْضِ بَيْنَ اثْنَيْنِ»[1] |
| د چا امانت خپل ځان سره مه ږده او د دوو سړو په مینځ کې فیصله کونکی مه جوړیږه. |

**توضیح: ستة ايام**: دا ظرف واقع دی د قال د پاره یعنی چې شپږ ورځې مسلسل نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ماته فرمایل چې ای ابوذره! روستو چې به کومه خبره کولی شي دې له په غور سره واوره او بنه پوهه شه او په دې عمل وکړه. (المرقات ۲۸۷/۷) اعقل يا اباذر دا د دې قال مقوله ده په مینځ کې ظرف واقع وو. (المرقات ۲۸۷/۷)

**ولاتقبض امانة**: یعنی د چا امانت ځان سره مه ږده ځکه چې نفس باندې اعتماد نشته او د حالاتو اندازه نشته. (المرقات ۲۸۸/۷)

**ولاتقض بين اثنين**: یعنی د دو سړو په مینځ کې فیصله مه کوه، د دوو د فیصلې نه چې کله منع کړی شوه نو د زیاتو نه خو بې په طریقِ اولی منع کړې ده یعنی په دوو هم قاضی مه جوړیږه ممکنه ده د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دا حکم ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د خصوصي معروضی حالت په وجه سره وو چې ته دا کار مه کوه نور و ته یې پریږده.

**حضرت ابوذر** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا پنځه خبرې او خودلی شوې (۱) تقوی اختیار کړه (۲) د بدئ نه پس

---

(۱) اخرجه احمد فی المسند ۵/۱۷۲.

سمدست نيکي کوه (۳) د چا نه څه مه غواړه (۴) د چا امانت ځان سره مه ړده (۵) د دوو سړو په مينځ کې فيصله مه کوه يعني دعغوى قاضي او فيصله کونکى مه جوړيږه. (المرقات ۲۸۸/۷)

## د حکومت درې مرحلې

| |
|---|
| ﴿۵۳﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: |
| او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې |
| «مَا مِنْ رَجُلٍ يَلِي أَمْرَ عَشَرَةٍ فَمَا |
| کوم سړى د لسو کسانو (هم) يا ددې نه د زياتو خلقو حکمراني قبول کړه هغه لره به د قيامت په ورځ |
| فَوْقَ ذَلِكَ إِلَّا أَتَى اللهَ عزَّ وجلَّ مغلولاً يومَ القيامةِ |
| الله تعالى په څټ کې طوق اچولى را حاضر کړي (يعني په ميدان حشر کې به يې او چت کړي) |
| يَدُهُ إِلَى عُنُقِهِ فَكَّهُ بِرُّهُ أَوْ |
| چې دده لاس به د هغه څټ نيولى وي تردې پورې چې يا خو به دده نيکى ده لره خلاص کړي يا به د ده |
| أَوْبَقَهُ إِثْمُهُ أَوَّلُهَا مَلَامَةٌ وَأَوْسَطُهَا |
| ګناه ده لره په هلاکت کې واچوي (ياد ساتئ) د سردارۍ او حکمرانۍ ابتداء ملامتيا ده او مينځ کې |
| نَدَامَةٌ وَآخِرُهَا خِزْيٌ يومَ القيامةِ»[۱] |
| پښيماني او ندامت دى او ددې آخر د قيامت په ورځ ذلت او رسوائي ده. |

**توضيح**: **مغلولا**: يعني هرباچا به د الله تعالى په مخکې په زنځيرونو کې په لاسونو سره ترلى حاضريږي بيا که عدل او انصاف يې کړى وي نو دا عدالت به ده لره خلاص کړي ګنى په ترلو لاسونو سره به دوزخ ته وغورزولى شي. (المرقات ۲۸۹/۷)

**اولها ملامة**: يعني د حکومت اوله مرحله د خلقو د الزاماتو د اوريدلو ده دلته نه اعتراض هلته نه اعتراض، چه په ناجائزه طريقه باندې اقتدار ته راغى د غلا په دروازه باندې راغلو دوکې سره راغلو رشوت ورکولو سره راغلو، نااهل دى، هرکله چې د الزاماتو مرحله تېره شي نو اوس د حکومت د ذمه داريانو زمانه راغله ځکه چې؛

---

(۱) أخرجه أبوداود فى السنن ۲۹۶/۲ رقم الحديث ۱٦٤٦ والنسائى فى ۹۰/۵ رقم الحديث ۲۹۸۷.

خدائی اہتمام خشک وتر ہے خداوند خدائی درد سر ہے
مگر یہ بندگی استغفر اللہ یہ درد سر نہیں درد جگر ہے

حاكم بيچاره محنتونه اوچتوي خو د رعايا او د مسئلو حل نه را وځي نو زړه يې مات شي او سوچ كوي چې زه ولې با چا جوړ شوم. په آخر كې د خپل لاس نه په مصيبت كې ولې ډوب شو، دا مينځنى درجه د پښيمانتيا ده چې كوم طرفته په حديث كې واسطها ندامة سره اشاره شوې ده.

وآخرها خزي: يعني دريمه مرحله د رسوائي ده په دنيا كې هم او په آخرت كې هم رسوائي ده د آخرت د رسوائي منظر خو ددې حديث نه د مغلولاً په لفظ سره واضحه شوى دى او په دنيا كې هم كله معزوله كړى شي كله ووژلى شي كله پهانسى باندې وخيژولى شي. كله گرفتار كړى شي كله د ملک نه وشړلى شي او د سمندر نه هغه غاړه جزيرو كې ليونى سپلنى گرځي. (المرقات ۲۸۹/۷)

## د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حق كې د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پيشن گوئى

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۵۴﴾وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا مُعَاوِيَةُ | | | |
| امير معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائى چې (يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمايل: معاويه! ته كچرې د څه كار | | | |
| إِنْ | وُلِّيتَ | أَمْرًا | فَاتَّقِ اللهَ |
| (يا د څه ځاى) امير او حاكم جوړ شې نو د حكومتى امورو سرته په رسولو كې) د الله تعالى نه يريږه | | | |
| وَاعْدِلْ». | قَالَ: | فَمَا | زِلْتُ |
| او د عدل او انصاف لمن د لاس نه مه پريږده حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائى چې ما برابر خيال كولو چه د | | | |
| أَظُنُّ | أَنِّي | مُبْتَلًى | بِعَمَلٍ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د وينا مطابق به زه په څه (يعنى امارت او سردارى) كې مبتلا كيږم. تردې چې زه مبتلا كړى شوم | | | |
| لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم حَتَّى ابْتليت[1] | | | |
| (يعنى د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمان صحيح شو او امارت او سردارى ماته نصيب شوه. | | | |
| ﴿۵۵﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَعَوَّذُوا بِاللهِ مِنْ رَأْسِ | | | |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائى چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د اويايم كال د ابتداء نه او د | | | |

(۱) أخرجه البيهقى فى دلائل النبوة

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَحْمَدُ | السِّتَّةَ | الأَحَادِيثَ | رَوَى | الصِّبْيَانِ». | وَإِمَارَةِ | السَّبْعِينَ |

بچو (وړو كشرانو) د حكومت نه په الله تعالى سره پناه وغواړئ. پورتني حديثونو لره امام احمد رحمه الله

وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ حَدِيثَ مُعَاوِيَةَ فِي «دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ»[1]

او د امير معاويه رضي الله عنه روايت بيهقي هم په دلائل النبوة كې نقل كړى دى.

**توضيح** : **رأس السبعين** : د اويايم كال ابتداء د ۶۱ هجري نه كيږي د ۶۰ هجري په آخر كې د حضرت معاويه رضي الله عنه دورحكومت دهغه په وفات باندې ختم شو او د يزيد دحكومت ابتداء وشوه چې هغې سره دصحابو رضي الله عنهم د حكومت مبارك سورى د دنيانه اوچت شو او د افراتفرئ او انتشار او فساد دور شروع شو يزيد درې كاله اته مياشتې حكومت وكړو او ددنيا نه لاړلو دهغه په لويو لويو مكروه كارونو كې يوه بدنما واقعه كربلا هم پيش راغله چې په هغې كې سيدنا حضرت حسين رضي الله عنه شهيد كړى شو د يزيد نه پس داقتدار كمان د بنوسفيان د خاندان نه ووتلو او د مروان په لاس كې راغلو، په حديث كې هم ددې بنو مروان د حكومت نه د ماشومانو په حكومت سره تعبير شوى دى په روايت كې دي چې نبى عليه السلام په خوب كې وليدل چې د دوى په منبر باندې د بنومروان ماشومان لوبې كوې وائې د حجاج بن يوسف ټولو ظلمونو او د وليد فاسق حكومت آخر كوم يو ظلم وو چې ويې نه كړو، او د نه كولو كوم كار وو چې ويې نه كړو. د بنومروان په دورحكومت كې بيشك د دين اسلام ترقي هم شوې ده او جهادته هم ترقي ملاو شوې ده خو ځومره ظلمونه چې په هغې كې راغلې دي هغې ددنيا نقشه بدنه بنكاره كړه. افسوس په دې خبره چې د حسين رضي الله عنه په موجودګئ كې يزيد او د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه په موجودګئ كې حجاج بن يوسف د كرسئ دپاره دهغوى سره جنګيدلو. (المرقات ۲۸۹/۷)

## چې څنګه عمل كوئ هغسې باچاهان به مقرريږي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۶﴾وَعَنْ | يَحْيَى | بْنِ | هَاشِمٍ | عَنْ | يُونُسَ | بْنِ | أَبِي | إِسْحَاقَ | عَنْ | أَبِيهِ قَالَ: |

او حضرت يحيى بن هاشم رضي الله عنه د حضرت يونس بن اسحاق نه او هغه د خپل پلار نه نقل كوي وائې

قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَمَا تَكُونُونَ كَذَلِكَ يُؤمر عَلَيْكُم» أخرجه البيهقي[2]

چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چې څنګه تاسو يې هغسې به په تاسو باندې حكمران مقررولى شي.

**توضيح** : مطلب دا دى چې حكمران آخر ددې معاشرې پيدا او روي، كچيرې معاشره بده ده نو حكمران به بد راشي. كه معاشره ښه ده نو ښه حكمران به پيدا كيږي د اردو محاوره ده چې څنګه روح هغسې فرښتې،

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲/۳۲۶

(۲) أخرجه البيهقي في الشعب الايمان ۶/۲۳ رقم الحديث ۳۷۹۲

څنګه چې په بل حدیث کې راغلي دي اعمالکم عمالکم څنګه چې فارسی کې چا ویلي دي:

آدمیان گم شد نه ملک خدا خر گرفت — شامت اعمال ما صورت نادر گرفت

گندم از گندم بروید جو ز جو — از مکافات عمل غافل مشو

گل گئے پھولوں کے پتے رہ گئے — جو لوگ تھے وہ مر گئے الو کے پٹھے رہ گئے

## عادل باچا په مخ دزمکې دالله تعالی سوري وي

| |
|---|
| ﴿۵۷﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ السُّلْطَانَ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل باچا په مخ د زمکه باندې |
| ظِلُّ اللهِ فِي الْأَرْضِ يَأْوِي إِلَيْهِ كُلُّ مَظْلُومٍ مِنْ عِبَادِهِ |
| دالله تعالی سوری دی چه دهغې لاندې دالله تعالی په بندګانو کې مظلوم بندہ پناه حاصلوي |
| فَإِذَا عَدَلَ كَانَ لَهُ الْأَجْرُ وَعَلَى الرَّعِيَّةِ الشُّكْرُ |
| لهذا چې کله باچا عدل او انصاف کوي نو هغه ته ثواب ملاویږي او په رعایاو باندې دده شکر واجب کیږي |
| وَإِذَا جَارَ كَانَ عَلَيْهِ الْإِصْرُ وَعَلَى الرَّعِيةِ الصَّبْرُ» اخرجه البيهقي[1] |
| او کله چې ظلم زیاتی کوي نو هغه ګناهګار دی او په رعایاو باندې صبر لازم کیږي. |

**توضیح:** ظل الله: څنګه چې دیو څیز سیوری د نمر ګرمئ لره منع کوي او مخلوق خدا لره د تکلیف نه ساتي هم دغه شان باچا د خپل رعیت خلقو لره د مختلف قسم سختیانو او تکلیف رسولو نه ساتي د انما الامام جنة چې کوم مفهوم دی هم هغه مفهوم ددې حدیث هم دی ظل الله کې اضافت تشریفیه دی. (المرقات ۲۸۹/۷)

## دقیامت په ورځ به دټولو نه اوچته مرتبه دنرم خویه او د عادل حکمران وي

| |
|---|
| ﴿۵۸﴾وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: د قیامت په ورځ د |
| «إِنَّ أَفْضَلَ عِبَادِ اللهِ عِنْدَ اللهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِمَامٌ عَادِلٌ |
| الله تعالی په نزدې بندګانو کې به د اوچتې مرتبې په اعتبار سره د ټولو نه بهتر هغه سړی وي چې عادل او |

[1] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۵ رقم الحديث ۷۳۶۹.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَفِيقٌ | وَإِنَّ | شَرَّ | النَّاسِ | عِنْدَ | الله | مَنْزِلَةً | |

نرمي کونکی حاکم دی او د الله تعالی په نزد د مرتبې په اعتبار د خلکو نه بدتر هغه سړی به وي د

يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِمَامٌ جَائِرٌ خرق» اخرجه البيهقي[1]

قیامت په ورځ چې ظالم او سختي کونکی حاکم دی

## کوم مسلمان لره صرف يرول او دهمكي وركول هم منع دي

﴿۵۹﴾ وَعَنْ عَبْدِالله بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: «من نَظَرَ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې كوم سړی خپل يو مسلمان

إِلَى أَخِيهِ نَظْرَةً يُخِيفُهُ أَخَافَهُ الله يَوْمَ الْقِيَامَةِ».

ورور طرف ته په يرولو والا نظر سره او گوري نو د قيامت په ورځ به الله تعالی هغه لره ويروي.

رَوَى الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» وَقَالَ فِي حَدِيثِ يَحْيَى

ذکر شوي څلور واړه روایاتو نه بیهقی رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړی دي او د يحيى بن هاشم

هَذَا: مُنْقَطِع وَرِوَايَته ضَعِيف[2]

د روايت متعلق يې ويلي دي چې دا منقطع دی او د يحيى روايت ضعيف (کمزوری شي).

**توضيح: يخيفه اخافه الله:** دې حديث لره په دې باب کې د راوړلو مقصد دا دی چې کله د قتل نه بغير د کوم مسلمان صرف يرول او دهمکي ورکول دومره لويه گناه ده نو ددې نه مخکې تجاوز کولو سره د هغه د قتل کولو د جرم به څومره لويه گناه وي. (المرقات ۲۹۴/۷)

﴿۶۰﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللهَ تَعَالَى

او حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل الله تعالی (په حديث قدسي) کې

يَقُولُ: أَنَا الله لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا مَالِكُ الْمُلُوكِ

ارشاد فرمايي چې زه الله تعالى يم، زما نه سيوا بل څوک معبود نشته، زه د باچاهانو مالک او د

---

(1) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۶ رقم الحديث ۷۳۷۱۰.

(2) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۵۰ رقم الحديث ۷۴۶۸.

باچاهانو باچايم، او د باچاهانو زړونه زما په لاس (يعنی زما په قبضه او قدرت) کې دي لهذا کله

وَإِنَّ الْعِبَادَ إِذَا أَطَاعُونِي حَوَّلْتُ قُلُوبَ مُلُوكِهِمْ

چې زما (اکثر) بندګان زما اطاعت او فرمانبرداري کوي نو زه دهغوی په حق کې د (ظالم) باچاهانو

عَلَيْهِمْ بِالرَّحْمَةِ وَالرَّأْفَةِ وَإِنَّ الْعِبَادَ إِذَا عَصَوْنِي

زړونو لره د رحمت او شفقت طرف ته اړوم او کله چې زما بندګان زما نافرمانی کوي نو زه دهغوی

حَوَّلْتُ قُلُوبَهُمْ بِالسُّخْطَةِ وَالنِّقْمَةِ

په حق کې باچاهانو په زړونو کې غضب او سختي طرف ته اړوم چه دهغې نتيجه دا کيږي چې هغه

فَسَامُوهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ فَلَا

(باچا) هغوی لره په سختو قيدخانو کې مبتلا کوي، په دې وجه (په داسې صورت کې) تاسو خپل ځان

تَشْغَلُوا أَنْفُسَكُمْ بِالدُّعَاءِ عَلَى الْمُلُوكِ

دهغه باچاهانو دپاره په بددعاء کې مه مشغولوئ بلکه (زما په دربار کې عاجزی او زاري کولو سره)

وَلَكِنِ اشْغَلُوا أَنْفُسَكُمْ بِالذِّكْرِ وَالتَّضَرُّعِ كَيْ أَكْفِيَكُمْ ملوككم

خپل ځان لره (زما) په ذکر کې مشغول کړئ دې دپاره چې زه تاسو لره دهغه باچاهانو د شر نه بچ کړم.

«رَوَاهُ أَبُو نُعَيْمٍ فِي» الْحِلْيَةِ "بَابُ مَا عَلَى الْوُلَاةِ مِنَ التَّيْسِيرِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

دې روايت لره ابونعيم په خپل کتاب حلية الاولياء کې نقل کړی دی. (بخاری ومسلم)

**توضيح**: يعنی د باچاهانو زړونه زما په لاس کې دي کچيرې تاسو صحيح وئ نو زه به هغوی صحيح کړم او کچيرې تاسو صحيح نه وئ نو زه به دهغوی زړونه سخت کړم بيا به هغوی تاسو ته سختې سزاګانې درکړي، لهذا تاسو زما اطاعت کوئ او ذکر او فکر کې ولګئ زه به ستاسو د طرف نه دهغه دپاره کافی شم يعنی دهغه د شرارتونو نه به تاسو وساتم. (المرقات ۲۹۵/۷)

(۱) ابونعيم فی الحلية ۲/۳۸۹.

# باب ماعلى الولاة من التيسير

## په حاکمانو باندې د نرمۍ واجب کېدو بیان

د دین اسلام دا مزاج دی چې هغه د انسانانو په معاملاتو او حقوقو کې طرفین یو بل ته نزدې کوي اسلام دواړو طرف ته د خلقو د حقوقو اداکولو احساس ورکوي اسلام کچیرې مامور ته نصیحت کوي نو هلته امراو ته هم نصیحت کوي نو د دې نه مخکې په احادیثو کې زیات تر رعایاو ته نصیحت وو چې هغوی د خپلو حاکمانو اطاعت وکړي، اوس حاکمانو ته نصیحت کولی شي چې تاسو نرمي کوئ او په رعایاو باندې شفقت کوئ او هر قسمه آسانې ورته مهیا کړئ.

### اَلْفَصْلُ الأوَّل

### حاکمانو ته پکار دي چې د خپل رعاؤ سره نرمي وکړي

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَعَثَ أَحَدًا

حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چه به کله خپل کوم صحابی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

مِنْ أَصْحَابِهِ فِي بَعْضِ أَمْرِهِ قَالَ:

لره په خپل څه کار باندې مامور کولو (یعنی د کوم ځای حاکم جوړولو سره) لیږلو نو هغه ته به یې هدایت فرمایلو

«بَشِّرُوا وَلَا تُنَفِّرُوا

د اجرا وثواب زیری ورکول او هغه لره نه یرول (چې هغه د الله تعالی د رحمت نه مایوسه شي) دا رنګه

وَيَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

د خلقو سره) د آسانۍ سلوک کول او هغوی لره په سختۍ او تنګۍ کې نه مبتلا کول. (بخاری و مسلم)

﴿۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم:

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د (حاکمانو او عاملانو د پاره) وفرمایل (خلقو

«يسروا وَلَا تُعَسِّرُوا وَسَكِّنُوا وَلَا تُنَفِّرُوا» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2]

سره) د آسانۍ سلوک کوئ تسکین او تسلي ورکوئ، هغوی لره په نفرت وړه کې مه مبتلا کوئ (بخاری و مسلم)

---

(۱) أخرجه مسلم ۳/۱۳۵۸ رقم الحديث ۱۷۳۲/۶ ،أبوداود ۵/۱۷۰ رقم الحديث ۴۸۳۵ مسندأحمد ۴/۳۹۹ ،بخاری عن أنس ۱/۱۶۳ رقم الحديث ۶۹ بنحوه

(۲) أخرجه البخاری فی صحيحه ۱۰/۵۲۴ رقم الحديث ۶۱۲۵ ومسلم فی ۳/۱۳۵۹ رقم ا لحديث (۱۷۳۴-۸) وأحمد فی المسند ۳/۱۳۱.

## حضرت معاذ رضی الله عنه ته دنبی علیه السلام نصیحت

﴿۳﴾ وَعَن ابنِ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ: بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابوبرده رضی الله عنه روایت دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم دهغه نیکه یعنی حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه

جَدَّهُ أَبَا مُوسَى وَمُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ فَقَالَ: «يَسِّرَا

او حضرت معاذ رضی الله عنه لره یمن ته ولیږل او هغوی ته یې وفرمایل چې د آسانئ پسلوک کوئ، په

وَلَا تُعَسِّرَا وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا

مشکلاتو او سختو کې یې مه مبتلا کوئ زیری ورکوئ، پېره او مایوسی کې یې مه مبتلا کوئ،

وَتَطَاوَعَا وَلَا تَخْتَلِفَا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

په خپل مینځ کې په اتفاق واتحاد سره کار کوئ او په خپل مینځ کې اختلاف مه کوئ (بخاری و مسلم)

**توضیح : جده:** ابوبرده د حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه ځوی دی نمسي یې نه دی نو هغه څنګه وایې چې زما نیکه نبی علیه السلام لیږلی وو د مشکوة په ټولو نسخو کې ابوبرده لیکلی شوی دی کیدی شي دا د کاتب غلطي وي بهرحال لوستونکو ته ابن ابی برده ویل پکار دي. (المرقات ۷/۲۹۷)

## د قیامت په ورځ دوعده ماتونکی رسوائی

﴿۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابن عمر رضی الله عنه وائی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایل "د قیامت په ورځ د وعده

"إِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهُ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ: هَذِهِ

ماتونکي (د سپکاوي او رسوائي دپاره) به یوه نښنه ودرولی شي چې دا د فلان ابن فلان د وعدې

غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ" (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

ماتولو علامت دی. (بخاری و مسلم)

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۰/۵۲۴ رقم الحدیث ۶۱۲۴ ومسلم فی ۳/۱۳۵۸ رقم الحدیث ۱۷۳۳ وأحمد فی المسند ۴/۴۱۲.

(۲) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۰/۵۶۳ رقم الحدیث ۶۱۷۸ ومسلم فی ۳/۱۳۶۰ رقم الحدیث (۱۷۳۵-۱۰) وأبوداود فی السنن ۳/۱۸۸ رقم الحدیث ۲۷۵۶ والترمذی فی ۴/۱۲۲ رقم الحدیث ۱۵۸۱ وابن ماجه ۲/۹۵۹ رقم الحدیث ۲۸۷۲ والدارمی فی ۲/۳۲۳ رقم الحدیث ۲۵۴۲.

﴿۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل د قیامت په ورځ

«لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يومَ القيامةِ يُعرَفُ بِهِ» (صَحِيح)[1]

به د هر وعده ماتونکي دپاره یوه نښه (مقرره) وي چې دهغې په ذریعې سره به پېژندلی شي. (بخاری و مسلم)

## په حشر کې دغدار سزا

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل" د قیامت

«لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ عِنْدَ اسْتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ».

په ورځ به د هر وعده ماتونکي دپاره (د رسوائي او سپکاوي د تشهیر) دپاره دهغه د مقعد سره نزدې یوه نښه

وَفِي رِوَايَةٍ: «لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

وي او په یو روایت کې داسې دي چې " د قیامت په ورځ به د هر وعده ماتونکي دپاره یوه نښه وي چه د ده د

يُرْفَعُ لَهُ بِقَدْرِ غَدْرِهِ

وعدې ماتولو په قدر به اوچتولی شي (یعنی دده چې څومره عهد شکني وي هغومره به هغه نښه او دهغې تشهیر

أَلَا وَلَا غَادر أعظم

زیات وي) خبردار! هیڅ یو عهد ماتونکی، د عهد ماتونې په اعتبار سره د امام عام (یعنی دوخت د حاکم) نه لوی نشته

مِنْ أَمِيرِ عَامَّةٍ». رَوَاهُ مُسلم[2]

(یعنی د حکمران عهد شکني د ټولو نه لویه عهد شکني ده.) (مسلم)

**توضیح : ولا غادر اعظم** : ددې جملې دوه مطلبه دي: اول مطلب دادی چې یو امیر د بغاوت په کولو سره دخلیفة المسلمین خلاف عوام راوچت کړي او دبغاوت کولو سره په حکومت باندې ناجائز قبضه وکړي نه د اهل رایې والا سره مشوره وي نه دخیر بښیګړې فکر وي صرف په زبردستئ او غلبې سره په ملک باندې قابض شوی وي نو په دې صورت کې به **من امیر عامة** پخپله همدا قابض باچا وي چې دده نه لوی غدار څوک نشته، دحدیث دویم مطلب دادی چې په رعایا کې

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ٦/٢٥٣ رقم الحدیث ٣١٨٦ ومسلم فی ٣/١٣٦٢ رقم الحدیث (١٣٧٣٧-١٤) وأحمد فی المسند ٣/٢٧٠.

(۲) أخرجه مسلم فی صحیحه ٣/١٣٦١ رقم الحدیث (١٧٣٨-١٥)

يو سړی د مسلمانانو د متفقه امام او خليفه خلاف د بغاوت جنډه اوچته کړه او د سابقه عهد او پيمان او د خليفه بيعت ماتوي دا لوی غدار دی په دې صورت کې د **من اميرعامة** نه به په رعايا او عوامو کې څوک باغي مراد اخستلی شي. علامه نووی رحمه الله دې حديث لره په څه آسان انداز سره داسې فهم کې راوستی دی فرمائی چې مشهوره داده چې په دې حديث کې يې هرقسمه خيانت او غدارئ لره غلط ګرځولی دی خاصکر د هغه باچا او د وخت د خليفه غدارئ لره يې انتهائی نقصان ورکونکې ګرځولې ده، چې د مسلمانانو د امانتونو او ذمه دارو محافظ جوړکړی شوی وي هغه د دې عهد حفاظت کولو سره زمام اقتدار لره سنبال کړی وي، او بيا د خپلو عوامو سره غداري کوي خيانت کوي او په هغوی ترس نه کوي نه شفقت کوي دا ډير لوی غدار امام دی چې هغه خپلې ټولې ذمه داری شاته غورزولې دي. علامه نووی رحمه الله فرمائی چې د دې حديث يو مطلب دا هم کيدی شي چې په دې کې رعيت لره د غدارئ او خيانت او بغاوت نه منع کړی شوی وي چې تاسو د خپل خليفه خلاف بغاوت مه کوئ څه فتنه مه راپاڅوئ، علامه نووی رحمه الله فرمائی چې اول مطلب صحيح دی او دويم مطلب صرف يو احتمال دی. (المرقات ۳۰۰/۷)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د رعاياؤ ضروورياتو لره د نه پوره کونکي حکمران متعلق وعيد

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ | عَمْرِو | بْنِ | مُرَّةَ | أَنَّهُ | قَالَ | لِمُعَاوِيَةَ: |
| او حضرت عمرو بن مروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا نه روايت دی چې هغه حضرت امير معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې | | | | | | |
| سَمِعْتُ رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ يَقُولُ: | «مَنْ وَلَّاهُ | اللهُ شَيْئًا |
| چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان اوريدلی دی چې کوم سړي لره الله تعالی د مسلمانانو | | | | | | |
| مِنْ | أَمْرِ | الْمُسْلِمِينَ | فَاحْتَجَبَ | دُونَ | | |
| د څه کار ولي يا حاکم جوړ کړو او هغه (د مسلمانانو د حاجت، غرض، او محتاجۍ نه پرده وکړه، | | | | | | |
| حَاجَتِهِمْ | وَخَلَّتِهِمْ | وَفَقْرِهِمْ | احْتَجَبَ | | | |
| (يعنی د هغوی ضرورت او حاجت يې پوره نه کړو) نو الله تعالی به د دې (والي او حاکم د حاجت او | | | | | | |
| اللهُ | دُونَ | حَاجَتِهِ | وَخَلَّتِهِ | وَفَقْرِهِ». | | |
| غرض او محتاجئ نه پرده وکړي يعنی ده لره به د دې غوښتنې نه لري وساتي او د ده دعا به نه قبلوي. | | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَجَعَلَ | مُعَاوِيَةُ | رَجُلًا | عَلَى |

نو حضرت امیر معاویه رضي الله عنه (دې حدیث اوریدو سره ډیر متاثره شو او یو سړی ئې (په دې کار)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَوَائِجِ | النَّاسِ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ | وَالتِّرْمِذِيُّ |

باندې مقرر کړو چې هغه د خلقو ضرورياتو باندې نظر ساتي او د هغوی حاجتونو له پوره کوي (ابوداؤد، ترمذی)

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَفِي | رِوَايَةٍ | لَهُ | وَلِأَحْمَدَ: |

او ترمذی رحمه الله يو بل روايت کې او د احمد رحمه الله په روايت کې داسې دي چې "الله تعالى د دې

«أَغْلَقَ اللهُ لَهُ أَبْوَابَ السَّمَاءِ دُونَ خَلَّتِهِ وَحَاجَتِهِ وَمَسْكَنَتِهِ»[1]

(والي، حاكم) حاجت، غرض او محتاجئ باندې د آسمان دروازې بندوي.

**توضيح** : **فاحتجب**: يعنى په غريبانانو او بې وسيلې خلقو باندې دروازې بندول د چا خير خبر او خير خواهى نه کول د مظلوم خبره نه اوريدل کوتوال او سنترى، چوکيدار په دروازه باندې کينول چې چالره د ننه نه پريږدي د ضرورت مندو خلقو نه پټ او سيړى نو الله تعالى هم د دې والي او حاكم د حاجت او ضرورت او غرض نه پرده او حجاب کوي "خلة" ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى چې د دې ټولو کلماتو معنى هم يو ده صرف د تاكيد په طور باندې خلة او فقر او حاجت او مسكنت ځانله ځانله ذكر كړى شو. (المرقات ٣٠٠/٧)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په مصيبت زده رعيت باندې دروازې مه بندوه

﴿٨﴾ عَنْ أَبِي الشَّمَّاخِ الْأَزْدِيِّ عَنِ ابْنِ عَمٍّ لَهُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو شماخ ازدى رحمه الله نه روايت دى چې د هغه د تره ځوى چې د نبى كريم رضي الله عنه يو صحابى وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّهُ | أَتَى | مُعَاوِيَةَ | فَدَخَلَ | عَلَيْهِ | فَقَالَ: |

يو ورځ حضرت امير معاويه رضي الله عنه ته راغلو او كله چې د هغه په خدمت كې حاضر شو نو وې ويل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَمِعْتُ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَقُولُ: «مَنْ |

چې ما د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه دا فرمان اوريدلى دى چې فرمايل يې چې كوم سړى له د خلقو

---

[1] أخرجه أبوداود فى السنن ٣/٣٥٧ رقم الحديث ٢٩٤٨ والترمذى فى ٣/٦١٩ رقم الحديث ١٣٢٢ وأحمد فى المسند ٤/٢٣١.

وَلِيَ مِنْ أَمْرِ النَّاسِ شَيْئًا ثُمَّ أَغْلَقَ بَابَهُ

د كار ولي او والي جوړ كړى شو او په مسلمانانو باندې يا په چا مظلوم باندې يا د چا حاجت ته ئې خپلې

دُونَ الْمُسْلِمِينَ أَوِ الْمَظْلُومِ أَوْ ذِي الْحَاجَةِ

دروازې بندې كړې (او خپل ځان ته يې راپرې نخودلو يا يې د هغه حاجت پوره نه كړو) نو الله تعالى به په هغه باندې

أَغْلَقَ اللهُ دُونَهُ أَبْوَابَ رَحْمَتِهِ

د ضرورت او حاجت او محتاجۍ په وخت هر كله چې هغه طرف ته ډېر زيات محتاجه وي د خپل رحمت دروازې بندې كړې

عِنْدَ حَاجَتِهِ وَفَقْرِهِ

نو الله تعالى به د هغه حاجت او ضرورت نه پوره كوي يا كچرې هغه په دنيا كې د چا مخلوق نه د خپل

أَفْقَرَ مَا يَكُونُ إِلَيْهِ»[1]

څه حاجت اظهار كوي نو الله تعالى به د دۀ هغه حاجت او ضرورت هم نه پوره كوي.

**توضيح:** يعنى كچيرې هغه څه وخت هم د خپلې دنيا يا آخرت په باره كې څه حاجت د الله تعالى مخې ته كيږدي او د هغې اظهار وكړي نو الله تعالى به د دۀ حاجت او ضرورت نه پوره كوي هر كله چې دا بنده هغه وخت د ټولو نه زيات هغه ضرورت طرف ته محتاجه وي، يا كچرې هغه په دنيا كې د چا مخلوق نه د خپل څه حاجت اظهار كوي نو الله تعالى به د دۀ حاجت او ضرورت لره هم نه پوره كوي.

## د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خپل ګورنر په نوم باندې فرمان

﴿۹﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په باره كې نقل دي چې كله به هغه عمال او حكام او ګورنران څه كار

أَنَّهُ كَانَ إِذَا بَعَثَ عُمَّالَهُ شَرَطَ عَلَيْهِمْ:

د پاره ليږل نو هغوى سره به يې دا شرط كولو (يعنى هغوى ته به د اهدايات وركول) چې په تركي

أَنْ لَا تَرْكَبُوا بِرْذَوْنًا وَلَا تَأْكُلُوا نَقِيًّا وَلَا تَلْبَسُوا رَقِيقًا

اسونو باندې مه سوريږئ د ميدې او نرې اوړو ډوډۍ مه خورئ نرۍ جامې مه اغوندئ او د خلقو د

---

[1] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۲۱ رقم الحديث ۷۳۸۴.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | تُغْلِقُوا | أَبْوَابَكُمْ | دُونَ | حَوَائِجِ | النَّاسِ |

حاجت او ضرورت په وخت کې د هغوی دپاره خپلې دروازې مه بندوئ (یاد ساتئ!) چې کچیرې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنْ | فَعَلْتُمْ | شَيْئًا | مِنْ | ذَلِكَ | فَقَدْ | حَلَّتْ | بِكُمُ | الْعُقُوبَةُ |

تاسو په دې کې کوم یو څیز لره اختیار کړو نو تاسو به (په دنیا او آخرت) کې د سزا مستحق کیږئ د دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | يُشَيِّعُهُمْ. | رَوَاهُمَا | الْبَيْهَقِيُّ | فِي | شُعَبِ الْإِيمَانِ[۱] |

نه پس به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوی سره تللو دا دواړه حدیثونه بیهقی رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړي دي.

**توضیح: شرط علیهم:** یعنی کله چې به حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوم گورنر لره د کومې علاقې گورنر مقرر کولو سره لیږلو نو هغوی سره به یې دا شرط لګولو چې په برذون باندې به سورلي نه کوئ. برذون بنې نوعې د ترکي اس ته وایې. شارحین د حدیث مثلاً طیبي او ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چې د برذون په ممانعت سره په عربي اس باندې د سورلۍ ممانعت په طریق اولی سره معلومیږي ځکه چې د برذون په مقابله کې عراب یعنی عربي بنه عمده اسونه وي دا منع والی په دې وجه وکړې شو دې دپاره چې په گورنرانو کې تکبر پیدا نه شي ځکه متکبر حاکم د خادم په ځای ظالم وي.

**نقیاً:** دا هغه اوړو ته وائي چې دوباره چاڼ کړې شوې وي په نورو الفاظو کې د دې ترجمه د میدې او سپینو اوړو روټئ یا نرې د چاڼ کړې شوو اوړو روټئ، د دې ممانعت هم په دې وجه سره وکړې شو دې دپاره چې گورنر عیش پرست جوړ نه شي. (المرقات ۳۰۲/۷)

**رقیقًا:** نرۍ جامه مراد ده د حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه د فرمان خلاصه دا شوه چې تکبر مه کوئ د عیش او عشرت ژوند مه تیروئ او خلقو ته د انصاف ورکولو نه مخ مه اړوئ یعنی پخپله هم تیک اوسئ او نورو لره هم تیک ساتئ ګنې په خلاف ورزئ باندې به سزا درکړم.

**ثم یشیعه:** یعنی هغوی لره به یې رخصت کولو تشیع رخصتولو ته وائی. (المرقات ۳۰۳/۷)

---

(۱) أخرجه البیهقی فی شعب الایمان ۶/۲۱ رقم الحدیث ۷۳۹۴.

# بَابُ الْعَمَلِ فِي الْقَضَاءِ وَالْخَوْفِ مِنْهُ

## د قضاء منصب (وظيفه) سر ته رسول او دهغې نه ديريدو بيان

باب الامارة په ابتداء کې چونکه دالقضاء لفظ په عنوان کې راغلی وو په دې وجه دقضاء متعلق مختصر غوندې بحث هلته وليکلی شو هلته يې وګورئ.

ددې نه مخکې دامام او امير د مسائلو او فضائلو بيان وشو اوس په دې باب کې دوه خبرو لره په خاص طور باندې بيانولي شي: اول دا چې قاضي دې د خپلو ټولو فيصلو دپاره مأخذ او مبدأ صرف کتاب الله او سنت رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او اجتهاد جوړ کړي، دې درې ماخذو لره دې خپل رهنما جوړ کړي، دويم دا بيان به وي چې دقضاء منصب دومره اوچت مقام دی او ددې دومره ذمه دارياني دي چې هرسړي لره ددې منصب نه روستو کيدل پکار دي او حتى الامکان دې لره قبلول نه دي پکار.

## الْفَصْلُ الأَوَّلُ

## د غصې په حالت کې دې د چا فيصله ونه کړی شي

| |
|---|
| ﴿١﴾عَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ |
| حضرت ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوريدلو چې هر کله يو حاکم |
| «لَا يَقْضِيَنَّ حَكَمٌ بَيْنَ اثْنَيْنِ وَهُوَ غَضْبَانُ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| يا قاضي دغوسې په حالت کې وي نو هغه به هغه وخت پورې د دوو سړو (د جګړې معامله) کې فيصله نه کوي. (بخاري ومسلم) |

**توضيح**: وهو غضبان: دغوسې په حالت کې فيصله مه کوئ دغه شان د سخت غم په حالت کې يا سخته ګرمۍ يا يخنۍ په حالت کې يا دبيمارۍ په حالت کې يا دلوږې او تندې په حالت کې فيصله مه کوئ ځکه چې د داسې عوارضو په وخت کې فکر مغلوب کيږي او قوت اجتهاديه کار نه کوي نو په دې کې ډيره زياته خطره ده چې قاضي دغيض او غضب په وجه د صحيح فيصلې په ځای غلطه فيصله وکړي او د انصاف تقاضو لره پوره نه کړی شي لهذا په داسې هنګامي حالت کې فيصله نه ده کول پکار. (المرقات ۳۰۲،۳۰۳/۷)

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۳/۱۳۶ رقم الحدیث ۷۱۵۸ ومسلم فی ۳/۱۳۴۲ رقم الحدیث (۱۷۱۷-۱۶) والترمذی فی السنن ۳/۶۲۰ رقم الحدیث ۱۳۳٤ والنسائی فی ۸/۲٤۷ رقم الحدیث ٥٤۲۱.

## قاضي ته د اجتهاد اختيار دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ | عَبْدِ | اللهِ | بْنِ | عَمْرِو | وَأَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَا: |
| او حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه وائي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | |
| قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | |
| وفرمايل هر كله چې يو حاكم د فيصلې وركولو اراده وكړي او اجتهاد كوي (يعني د غور او فكر په ذريعې سره | | | | | | | |
| «إِذَا | حَكَمَ | الْحَاكِمُ | فَاجْتَهَدَ | فَأَصَابَ | فَلَهُ | أَجْرَانِ | |
| حكم او فيصله كوي او بيا دده هغه حكم او فيصله صحيح يعني د كتاب او سنت سره موافق وي نو ده ته به دوه اجرونه | | | | | | | |
| وَإِذَا | حَكَمَ | فَاجْتَهَدَ | فَأَخْطَأَ | | | | |
| ملاويږي او كچيرې ده داسې حكم او فيصله وكړه چې په هغې كې يې اجتهاد وكړو خو (د نتيجې اخذ كولو په | | | | | | | |
| فَلَهُ | أَجْرٌ | وَاحِدٌ» | متفقٌ عليه.[1] | | | | |
| صورت كې) خطا شو (يعني صحيح فيصلې ته ونه رسيدو خطا شو نو ده ته به يو اجر ملاويږي. (بخاري و مسلم) | | | | | | | |

**توضيح : فاجتهد فأصاب** : يعني كچيرې قاضي او حاكم څه فيصله كول غواړي خو كتاب او سنت كې او د غه اسلامي فقه كې څه واضح نص موجود نشته دی او دا قاضي اوس اجتهاد طرف ته مجبور دی اوس قاضي په اضطراري كيفيت كې دی چې په كتاب او سنت او اجماع امت او د اسلامي عدالتونو د فيصلو په رڼا كې څه فيصله وكړي اوس كه چيرې په دې حالاتو كې قاضي بنه په سوچ او فكر سره څه فيصله وا وروي او هغه فيصله صحيح را وځي نو هغه ته به دوه اجرونه ملاويږي يو خو د صحيح فيصلې ثواب دی او دويم د هغه د محنت او مشقت ثواب دی، كه د هغه نه په فيصله كولو كې غلطي وشوه نو د مسئلې او د حكم ثواب په وجه خو غلطي نه ملاويږي بيا هم د هغه د محنت او كوشش به هغه ته اجر ملاويږي خو دا هغه وخت دی چې كله حاكم او عالم او قاضي او مجتهد د اجتهاد اهليت لري كه د اجتهاد اهل نه وي او هغه نه په فيصله كولو كې غلطي وشوه نو د ثواب په ځای به ګناه وي د دې حديث نه يوه ضابطه را ووتله چې د لوی اجتهاد د پاره د لوی علم او لوی سوچ ضرورت دی، دا رنګه د اجتهاد حق په هغه اجتهادي او فروعي مسائلو كې دی چې په هغې كې د وجوهات مختلفه احتماليه ګنجائش وي په غير محتمل نص كې يا د شريعت په واضح

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ۳/۳۱۸ رقم الحديث ۷۳۵۲ ومسلم فی ۳/۱۳۴۲ رقم الحديث ۱۵/۱۷۱۶ والترمذی فی السنن ۳/۶۱۵.

ارکانو کې نه خو تقلید کیږي او نه د اجتهاد ضرورت او ګنجائش وي، بیا دا بحث دی چې آیا حق یو دی یا دهریو مجتهد په اجتهاد کې ځانله ځانله حق دی نو راجح او صحیح داده چې حق یو دی چې لا علی التعین د چا سره هم کیدی شي. (المرقات ۷/۳۰۴)

د ذکرشوي حدیث نه چرته چې دا مسئله ثابتیږي چې قاضي په فروعي مسائلو کې د اجتهاد حق لري او هغه کله صحیح فیصله کوي او کله غلطي کیږي هلته دا خبره واضحه شوه چې اسلام کې د اجتهاد او مجتهدینو یو لوی مقام دی کچیرې هغه په خپل اجتهاد کې صحیح خبرې ته ورسیدلو نو هغه ته به دوه ثوابونه ملاویږي ګنې یو ثواب خو د هغه د پاره مقرر دی، لهذا فقهاو او مجتهدینو ته بد ویل یا په هغوی تنقید کول بدبختي ده ددې حدیث نه معلومه شوه چې **المجتهد یخطئ ویصیب** یو فیصله شوې حقیقت دی.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### د قضاء منصب یو ابتلاء (ازمایش) دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ جُعِلَ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کوم سړی د خلقو په مینځ کې |
| قَاضِيًا بَيْنَ النَّاسِ فَقَدْ ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[1] |
| قاضي مقرر کړی شو (ګویا) چې ده لره بغیر د چړې نه ذبح کړی شو. (احمد، ترمذی، ابوداؤد، ابن ماجه) |

**توضیح : من جعل قاضیًا** : قاضي عیاض رحمه الله فرمائي چې نبي علیه السلام ددې کلام نه هغه قتل مراد اخستی دی کوم چې د چړې نه علاوه په بل څه شیز سره وي لکه مرې نه نیول، په اوبو کې ډوبیدل، یا په اور کې سوځیدل، یا د خوراک څښناک په بندولو سره قتل کول شو، ځکه چې په دې کې د قتل کولو دورانیه اوږده وي په دې وجه نبي علیه السلام وفرمایل چې قاضي جوړیدل داسې دی لکه څنګه چې چالره د چړې نه بغیر ذبح کړی شو. علامه طیبي رحمه الله فرمائي چې د جسماني قتل کولو متعارف طریقه خو چاړه چاقو سره کیږي نبي علیه السلام دې متعارف طریقې قتل لره پریخودلو سره چې د کوم قتل ذکر فرمایلی دی هغه د دین تباهي او روحاني هلاکت مراد کیدی شي د ظاهري بدن هلاکت مراد نه شي کیدلی. علامه مظهر رحمه الله فرمائي چې د عهدې او قضاء خطره ډیره زیاته ده او ددې ضرر ډیر لوی دی ځکه چې قاضي ډیر کم عدل او انصاف باقي ساتلی شي په دې وجه چې د نفس رجحانات ډیر زیات دي کله سړی د چا من پسند طرفته کله د خپل خادم طرفته او کله د صاحب

---

([1]) أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٥ رقم الحدیث ٣٥٧٢ والترمذی فی ٣/٦١٤ رقم الحدیث ١٣٢٥ وابن ماجه فی ٢/٧٧٤ رقم الحدیث ٢٣٠٨.

منصب طرف ته مائل کیږي او کله د رشوت قبولولو طرف ته مائل کیږي. او د رشوت معامله خو نه ټیک کیدونکي والا لاعلاجه بیماري ده. صدر الشریعه رحمه الله وائي چې څنګه بغیر د چړې نه د ذبحې په بدن باندې څه ظاهري اثر په نظر نه راځي خو دننه رګونه کټ کیږي دغه شان په قضاء کې تاسو ته ظاهري څه نقصان په نظر نه راځي بلکه مزې مزې دي خو په روحاني او باطني طورباندې خطرناک اثرکیږي. بعضې علماء ددې حدیث نه دا مسئله راوباسي چې کوم سړي ته په خپل نفس باندې کامل یقین او کامل اعتماد او بهروسه نه وي هغه دې د قاضي جوړیدو جرأت نه کوي، ځکه چې دا خطرناک صورت دی، او که هغه سړی پخپل ځان باندې مطمئن وي نو هغه دې قضاء قبوله کړي لویو لویو صحابو او لویو لویو تابعینو قضاء لره نه ده قبوله کړې، امام ابو حنیفه رحمه الله د قضاء نه قبلولو په وجه سره په جیل کې کوړې خوړلې دي خو د حکومت قضاء طرف ته تیټ نه شو. (المرقات ۳۰۵/۷، الکاشف: ۲۷۵/۷)

## د قاضي جوړیدو خواهش مه کوئ

﴿۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت انس رضي الله عنه وائي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کوم سړي (په خپل زړه کې)

«مَنِ ابْتَغَى الْقَضَاءَ

د قضاء منصب طلب او خواهش وکړي او یا ددې طلب هم کوي (تردې چې دهغه په خواست باندې هغه لره قاضي جوړ کړی شو)

وَسَأَلَ وُكِلَ إِلَى نَفْسِهِ

نو هغه منصب د هغه نفس ته حواله کولی شي (یعنی ده ته د خپل منصبي فرائضو سرته پېرسولو کې د الله تعالی مدد او توفیق

وَمَنْ أُكْرِهَ عَلَيْهِ أَنْزَلَ اللهُ

نه حاصلیږي او څوک چې (ددې طلب او خواهش نه بغیر) په زبردستئ سره په دې منصب باندې فائز کولی شي نو الله تعالی

عَلَيْهِ مَلَكًا يُسَدِّدُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه (صَحِيح)[1]

په هغه باندې یو فرښته مقرر کوي چې ده لره په ګفتار او کردار کې صحیح او درست ساتي. (ترمذی، ابوداؤد، ابن ماجه)

## جنتي او دوزخي قاضي

﴿۵﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ:

او حضرت بریده رضي الله عنه وائي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل قاضیان په درې قسمه دي یو

---

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۸ رقم الحدیث ۳۵۷۸ والترمذی فی ۳/۶۱۴ رقم الحدیث ۱۳۲۴ وابن ماجه فی ۲/۷۷۴ رقم الحدیث ۲۳۰۹.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاحِدٌ | فِي | الْجَنَّةِ | وَاثْنَانِ | فِي | النَّارِ | فَأَمَّا | الَّذِي | فِي الْجَنَّةِ |

قسم به خو جنت ته ځي او دوه قسمه دوزخ ته تلو والا دي! لهذا جنت ته تلو والا سړی هغه دی چې هغه

فَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَقَضَى بِهِ

حق وپیژنده (یعنی دایې وګڼه چې حق په دې خبره کې دی) او بیايې د حق فیصله وکړه او چاچې حق

وَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَجَارَ فِي الْحُكْمِ فَهُوَ فِي النَّارِ

لره وپیژنده خو (ددې باوجودیې) په خپل حکم او فیصله کې ظلم وکړو (یعنی ده په قصد سره برباد کړو نو هغه دوزخي دی،

وَرَجُلٌ قَضَى لِلنَّاسِ عَلَى جَهْلٍ فَهُوَ

دغه شان چاچې د خپل جهالت په وجه سره حق ونه پیژندلو او په دې حالت کې یې د خلقو د جګړو فیصله وکړه

فِي النَّارِ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[1]

نو هغه هم دوزخي دی (ځکه چې هغه په حق رسولو کې کوتاهي او تقصیر وکړو) (ابوداؤد، ابن ماجه)

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ طَلَبَ

حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کوم سړی د مسلمانانو

قَضَاءَ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى يَنَالَهُ ثُمَّ

د منصب قضاء طالب او غوښتونکی وي تردې چې هغه هغې لره حاصل هم کړلو او بیایې د خپل

غَلَبَ عَدْلُهُ جَوْرَهُ فَلَهُ الْجَنَّةُ

فرض منصبي په ادا کولو کې) د ده عدل او انصاف په ظلم باندې غالب راغی نو هغه د جنت مستحق به وي

وَمَنْ غَلَبَ جَوْرُهُ عَدْلَهُ فَلَهُ النَّارُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[2]

او د کوم سړي ظلم چې په عدل او انصاف باندې غالب راغی نو هغه به د دوزخ سزاوار وي. (ابوداؤد)

## قیاس او اجتهاد بر حق عمل دی

﴿۷﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله ده لره (معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۵ رقم الحدیث ۳۵۷۳ والترمذی فی ۳/۶۱۳ رقم الحدیث ۱۳۲۲ وابن ماجه فی ۲/۷۷۶ رقم الحدیث : ۲۳۱۵.

(۲) أخرجه أبوداود فی السنن ۴/۷ رقم الحدیث ۳۵۷۵

| |
|---|
| لَمَّا بَعَثَهُ إِلَى الْيَمِين قَالَ: |
| لږه قاضي او حاکم جوړولو سره) يمن ته ليږلو نو دده نه ئې (په طور د امتحان) تپوس او کړو چې کله |
| «كَيْفَ تَقْضِي إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ؟» قَالَ: |
| ستا مخې ته څه قضيه (مقدمه) پيش شي نو ته به څنګه فيصله کوې؟ هغه عرض وکړو چې زه به د |
| قَالَ: أَقْضِي بِكِتَابِ اللهِ قَالَ: «فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي كِتَابِ اللهِ؟» |
| کتاب الله د (قرآن کريم) موافق فيصله کوم. وې فرمايل چې کچرې تا ته هغه مسئله (صراحةً) په کتاب الله کې |
| قَالَ: فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ملاو نه شي؟ هغه عرض وکړو بيا د سنت رسول (د حديث نبوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) موافق به فيصله کوم |
| قَالَ: «فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللهِ؟» قَالَ: |
| وې فرمايل چې کچرې تا ته هغه مسئله په سنت رسول (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) کې هم ملاو نه شي؟ هغه عرض او کړو |
| أَجْتَهِدُ رَأْيِي وَلَا آلُو |
| نو بيا به زه په خپل عقل سره اجتهاد کوم او (په خپل اجتهاد او حقيقت رسئ کې) به کوتاهي نه کوم. |
| قَالَ: فَضَرَبَ رَسُولِ اللهِ . صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى صَدْرِهِ |
| معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دې اوريدو سره) خپل لاس مبارک د معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سينه باندې راخکلو |
| وَقَالَ: «الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي وَفَّقَ رَسُولَ رَسُولِ اللهِ |
| او وې فرمايل) ټول تعريفونه د الله تعالى دپاره دي چا چې د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) قاصد (يعنى معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) |
| لِمَا يَرْضَى بِهِ رَسُولُ اللهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد والدارمي[۱] |
| ته ددې څيز توفيق ورکړو، چې په هغې سره د (الله) رسول (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) راضي وي. (ترمذی، ابوداؤد، دارمی) |

**توضيح**: اجتهد برأيي: يعنى که چيرې د کتاب او سنت او اجماع امت واضحه فيصله مخې ته نه وي نو زه به دې قضيې دپاره قرآن او حديث کې ګورم چې ددې مسئلې نظير کومه مسئله ده او ددې مسئلې په شان بيان شوې مسئله کومه يوه ده او ددې حکم څه دی نو زه دا جزئيه په دې باندې قياس کوم ددې نوم اجتهاد دی، دلته د رائې نه مراد هغه رايه ده چې د قرآن او حديث نه مستنبط او ماخوذ وي او د هغې په رڼا کې وي ګني خالص د خپل ذاتي رايې اعتبار نشته دی. د فقهاء کرامو په نزد هغه قياس هم په اصول شرعيو کې يو اصل دی چې د شرعی نصوصو نه مستنبط وي څنګه چې ددې

(۱) أخرجه أبوداود ۴/۱۸ رقم الحديث ۳۵۹۲ والترمذى فى ۳/۶۱۶ رقم الحديث ۱۳۲۷ والدارمى فى ۱/۷۲ رقم الحديث ۱۶۸ وأحمد فى المسند ۵/۲۳۰.

حدیث نه واضح طور باندې ددې قسمه قیاس او ددې قسمه رائې او اجتهاد لره شرعی حجت ګرځولی شوی دی، د جمهور و همدا مسلک دی اهل ظواهر غیر مقلدین حضرات قیاس شرعی حجت نه مني هغوی وائی چې د تهولو نه مخکې قیاس ابلیس کړی وو چې مردود وګرځید وجمهور وائی چې د قرآن کریم لعلمه الذین یستنبطونه کې د اجتهاد استنباط او قیاس طرف ته اشاره ده او زیربحث حدیث واضح دلیل دی ځکه چې نبي اکرم ﷺ د معاذ رضی الله عنه تعریف او توثیق وفرمایلو باقی د ابلیس قیاس قیاس نه وو بلکه صریح د حکم په مقابله کې حجت بازی وه هغه د ټولو په نزد ناجائز دی.

## د خصمین بیان واوره او فیصله وکړه

﴿۸﴾عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: بَعَثَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ

او حضرت علی کرم الله وجهه وائی چې رسول الله ﷺ ما لره یمن ته د قاضي جوړولو او د

قَاضِيًا. فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ تُرْسِلُنِي

لیږلو اراده وکړه نو ما عرض او کړو چې تاسو ما ځوان لره (قاضي جوړوئ) او لیږئ مې (چه د خپل کم

وَأَنَا حَدِيثُ السِّنِّ وَلَا عِلْمَ لِي بِالْقَضَاءِ؟

عمرئ په وجه سره ناتجربه کار هم دی او) چا ته چې د منصب قضاء د ذمه داریانو پوره علم هم نشته دی؟

فَقَالَ: «إِنَّ اللهَ سَيَهْدِي قَلْبَكَ

نبی علیه السلام ورته وفرمایل (ته ددې متعلق فکر مه کوه) الله تعالی به ستا زړه ته د فهم او فراست هدایت ورکړي

وَيُثَبِّتُ لِسَانَكَ إِذَا تَقَاضَى

او ستا ژبې لره به (په صحیح او برحق حکم او فیصلې کولو باندې) ثابته وساتي. کله تاته دوه سړي

إِلَيْكَ رَجُلَانِ فَلَا تَقْضِ لِلْأَوَّلِ حَتَّى

خپله قضیه راوړي نو ته د اول سړي په حق کې فیصله مه کوه ترڅو پورې چې د دویم (مدعا علیه)

تَسْمَعَ كَلَامَ الْآخَرِ فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يَتَبَيَّنَ لَكَ الْقَضَاءُ».

بیان وانه وری ځکه چې دا (د مدعا علیه بیان) به تاته په صحیح فیصله ورکولو کې ښه مدد درکړي

قَالَ: فَمَا شَكَكْتُ فِي قَضَاءٍ

حضرت علی رضی الله عنه وائی چې (د نبی علیه السلام ددې مبارکې دعا په برکت سره او د نبی علیه السلام ددې هدایت

بَعْدُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[1]

او تعليم باندې عمل کولو نه) پس زه کله هم د قضيې په فيصله کولو کې مذبذب نه شوم. (ترمذی، ابوداؤد، ابن ماجه)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د قيامت په ورځ د ظالم حاکم انجام

﴿۹﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا

حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وائی چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم او فرمايل چې هر هغه حاکم

مِنْ حَاكِمٍ يَحْكُمُ بَيْنَ النَّاسِ

چې په خلقو باندې خپل حکم او فيصله جاري او نافذ کوي د قيامت په ورځ به د (احکم الحاکمين

إِلَّا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَلَكٌ آخِذٌ بِقَفَاهُ

په بارګاه کې دا رنګه پيش کولی شي چې يوې فرښتې به د ده څټ نيولی وي. بيا به هغه فرښتې خپل

ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ فَإِنْ قَالَ:

سر آسمان طرفته او چت نيولی ولاړه وي. تردې چې الله تعالی دا حکم ورکړي چې ده لره په (دوزخ

أَلْقِهْ أَلْقَاهُ فِي مَهْوَاةٍ أَرْبَعِينَ

کې) واچوئ هغه خو به (ده لره د دوزخ په کنده کې واچوي چې د څلويښت کالو د فاصلې) په قدر به

خَرِيفًا". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ[2]

(ژوره) وي. (احمد، ابن ماجه، بيهقی په شعب الايمان کې)

**توضيح : مهواة :** ژورې کندې ته وائی خريفًا د خزان موسم ته خريف وايې ددې نه مراد کال دی، يرفع راسه څنګه چې د محکمه عدالت قانون دی چې مجرم لره به په عدالت کې حاضرولی شي او بيا د فيصلې انتظار به کولی شي، دلته هم د الله تعالی په بارګاه کې فرښته پاس کتلو سره انتظار کوي چې د الله تعالی د دربار نه به څه حکم وي کچرې حکم وي چې ده لره په دوزخ کې واچوه نو فرښته ده لره په يوه ژوره کنده کې اچوي چې د څلويښت کالو په قدر باندې ژوره ده دا څه حد نه دی بلکه ددې

(۱) أخرجه أبوداود فی السنن ٤/١١ رقم الحديث ٣٥٨١ والترمذی فی ٣/٦١٨ رقم الحديث ١٣٣١ وابن ماجه فی ٢/٧٧٠ رقم الحديث ٢٣١٠

(۲) أخرجه ابن ماجه فی السنن ٢/٧٧٥ رقم الحديث ٢٣١١، وأحمد فی المسند ١/٤٣٠ وأخرجه البيهقی فی الشعب الايمان ٦/٧٤ رقم الحديث ٧٥٣٣.

کندې دزياتو نه زيات ژوروالی بيانول دي. (المرقات ۳۱۱/۷)

## دقيامت په ورځ دقاضی افسوسناکه آرزو

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دنبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ او فرمايل دقيامت

«لَيَأْتِيَنَّ عَلَى الْقَاضِي الْعَدْلِ يومُ القيامةِ

په ورځ (چې کله دحاکمانو، سردارانو، اودقانون او د انصاف د ذمه دارانو سخته مواخذه کيږي نو)

يَتَمَنَّى أَنَّهُ لَمْ يَقْضِ بَيْنَ

دعادل او منصف قاضی دپاره به هم يو داسې ساعت راشي چې په هغې کې به هغه دا تمنا وکړي چې کاش ده

اثْنَيْنِ فِي تَمْرَةٍ قطّ». رَوَاهُ أَحْمد[1]

د دوو سړو په مينځ کې ديوې کجورې (هم) دقضيې دفيصلې کولو ذمه داري نه وی سرته رسولې. (احمد)

## دعادل حاکم سره دالله تعالی توفيق وي

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدُ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت عبدالله ابن ابی اوفی رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وائی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل قاضی چې

«إِنَّ اللهَ مَعَ الْقَاضِي مَا لَمْ يَجُرْ

کومه پورې دظلم اوناانصافۍ لار نه اختياروي الله تعالی دهغه سره وي (يعنی دالله تعالی توفيق او تائيد هغه سره وي)

فَإِذَا جَارَ تَخَلَّى عَنْهُ

خو کله چې هغه د ظلم اوناانصافۍ لار اختياروي نو الله تعالی دهغه نه جدا شي (يعنی دده نه دالله تعالی دتائيد او توفيق

وَلَزِمَهُ الشَّيْطَانُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَفِي

سوری اوچت شي) او شيطان دده ملګری جوړ شي (ترمذی، ابن ماجه) او په يو بل دابن ماجه کې

رِوَايَةٍ: «فَإِذَا جَارَ وَكَله إِلَى نَفسه»[2]

دا الفاظ دي چې قاضی کله د ظلم اوناانصافۍ لار اختياروي نو (الله تعالی) دده کار لره دده ته حواله کولی شي

---

(۱) أخرجه أحمد فی المسند ۶/۵۷

(۲) أخرجه الترمذی فی ۳/۶۱۸ رقم الحديث ۱۲۳۰ وأخرجه ابن ماجه فی ۲/۷۷۵ رقم الحديث ۲۳۱۲.

﴿۱۲﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ: أَنَّ مُسْلِمًا وَيَهُودِيًّا

او حضرت سعید بن مسیب رحمه الله راوي دی چې (یوه ورځ) یو مسلمان او یو یهودي د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه

اخْتَصَمَا إِلَى عُمَرَ فَرَأَى

په خدمت کې جهګړا راوړله حضرت عمر فاروق رضي الله عنه چې کله (د قضیې د تحقیق نه پس) دا وکتل

الْحَقَّ لِلْيَهُودِيِّ فَقَضَى لَهُ

چې یهودي په حق باندې دی نو هغه دده (یهودي) په حق کې فیصله وکړه دې یهودي چې (په

عُمَرُ بِهِ فَقَالَ لَهُ الْيَهُودِيُّ: وَاللهِ لَقَدْ قَضَيْتَ بِالْحَقِّ

خپل حق کې فیصله واوریدله) نو وې ویل چې په الله قسم تاسو د حق مطابق فیصله وکړه حضرت عمر رضي الله عنه

فَضَرَبَهُ عُمَرُ بِالدِّرَّةِ وَقَالَ: وَمَا يُدْرِيكَ؟

چې (دا واوریدل) نو هغه یې یوه دره ووهلو او وې فرمایل تا ته څنګه پته ولګیده چې ما د حق مطابق

فَقَالَ الْيَهُودِيُّ: وَاللهِ إِنَّا نَجِدُ فِي التَّوْرَاةِ

فیصله وکړه؟ یهودي وویل چې په الله قسم! مونږ په تورات کې (دا لیکلي شوې) وموندل چې

أَنَّهُ لَيْسَ قَاضٍ يَقْضِي بِالْحَقِّ إِلَّا كَانَ عَنْ يَمِينِهِ مَلَكٌ

کوم یو قاضي هم د حق مطابق فیصله وکړي د هغه ښي طرف ته یو فرښته وي او ګس طرف ته یو

وَعَنْ شِمَالِهِ مَلَكٌ يُسَدِّدَانِهِ وَيُوَفِّقَانِهِ لِلْحَقِّ مَا

فرښته وي هغه دواړه فرښتې دې ته قوت ورکوي او د حق توفیق ورکوي تر کومه پورې چې هغه

دَامَ مَعَ الْحَقِّ فَإِذَا تَرَكَ الْحَقَّ عَرَجَا وَتَرَكَاهُ. رَوَاهُ مَالِكٌ(1)

په حق باندې وي او کله چې قاضي حق پریږدي نو هغه فرښتې آسمان ته لاړې شي او ده لره پریږدي. (مالک)

**توضيح**: **ان مسلما ویهودیا**: دا فیصله د اسلام د عادلانه نظام شاهکار دی او د شیعه ګانو په مخ باندې سپیړه ده چې د عمر په حق کې د غسې پاسباني فرمایې چې یهود د هغه احترام کوي خو رافضي وایي چې هغه په اهل بیتو باندې ظلم کړی وو. **فضربه عمر**: حضرت عمر رضي الله عنه دې

(۱) أخرجه مالک فی الموطأ ۲/۷۱۹ رقم الحديث ۲ من كتاب الاقضية.

یهودی لره دخوش طبعی دپاره په چوکې سره ووهلو او وې فرمایل چې تاته څنګه پته ولګیده چې دا فیصله په حق باندې وشوه یهودی وویل چې په تورات کې لیکلې دي چې دحق او انصاف کونکي حاکم نه ګیرچاپیره فرښتې وي چې په فیصله کولو کې دهغوی مدد کوي او چونکه تاسو په حق باندې فیصله وکړه چې دهغې نه معلومه شوه چې فرښتې تاسره دي او دچانه چې ګیرچاپیره فرښتې وي هغه په حق باندې وي، لهذا تاسو په حق باندې یې ستاسو فیصله په حق باندې مبني ده.

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ مَوْهَبٍ: أَنَّ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لِابْنِ عُمَرَ: |
| اوحضرت ابن موهب رحمه الله وائي چې حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د خلافت په زمانه کې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا |
| اقْضِ بَينَ النَّاس قَالَ: أَو تعاقبني يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ؟ |
| ته وویل چې دخلقو قاضي جوړ شه حضرت ابن عمر رضی الله عنه وویل چې امیر المؤمنین! مالره |
| قَالَ: وَمَا تَكْرَهُ مِنْ ذَلِك |
| خو ددې کار نه معاف کړه. حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې ته ولې دې کار لره نه خوښوې! حالانکه |
| وَقد كَانَ أَبوك قَاضِيا؟ |
| ستاسو والد خو (دخپل دور خلافت نه علاوه دنبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې هم) د قضاء کار کولو؟ |
| قَالَ: لِأَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ماد رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان اوریدلی دی چې کوم |
| «مَنْ كَانَ قَاضِيًا فَقَضَى بِالْعَدْلِ |
| سړی د قضاء په منصب باندې فائز وي او په انصاف باندې مبني فیصلې کوي نو هغه ددې لائق دی |
| فَبِالْحَرِيِّ أَنْ يَنْقَلِبَ مِنْهُ كَفَافًا». |
| چې هغه ددې منصب نه برابر سرابر جدا شي (یعنی نه نقصان ورسوي نه فائده، نه ثواب مومي نه عذاب.) |
| فَمَا راجعَه بعدَ ذَلِك. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| ددې نه پس حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سره ددې متعلق څه خبره ونه کړه (ترمذی) |

---

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ۳/۶۱۲ رقم الحدیث ۱۳۲۲.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَفِي | رِوَايَةِ | رَزِينٍ | عَنْ | نَافِعٍ | أَنَّ | ابْنَ | عُمَرَ | قَالَ | لِعُثْمَانَ: |

او رزين په روايت کې دي چې هغوی د حضرت نافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نقل کړی دی دا الفاظ دي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ لَا أَقْضِي بَيْنَ رَجُلَيْنِ:

وويل چې اې امير المؤمنين! زه (خو) بعد دوو سړو په مينځ کې (هم) څه فيصله ونه کړم (دا چې د ډيرو خلقو قاضي جوړ شم.)

قَالَ: فَإِنَّ أَبَاكَ كَانَ يَقْضِي فَقَالَ: إِنَّ أَبِي

حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل ستاسو والد (حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) خو د خلقو په مينځ کې فيصلې کولې؟ ابن عمرؓ وويل

لَوْ أُشْكِلَ عَلَيْهِ شَيْءٌ سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زما (د پلار خبره خو دا وه چې) هغه ته به څه سختي راپيښيده نو هغه به د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه تپوس کولو

وَلَوْ أُشْكِلَ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ سَأَلَ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ

او که رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به څه سخت کار راپيښيدو نو هغه د حضرت جبريل عَلَيْهِ السَّلَامُ نه تپوس کولو

وَإِنِّي لَا أَجِدُ مَنْ أَسْأَلُهُ وَسَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هر کله چې زه څوک داسې سړی نه مومم چې د هغه نه تپوس وکړم او ما د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي

يَقُولُ: «مَنْ عَاذَ بِاللهِ فَقَدْ عَاذَ بِعَظِيمٍ».

فرمايل يې چې کوم سړي د الله تعالى پناه وغوښته هغه د ډير لوی ذات پناه وغوښته. دارنګه ما د

وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: «مَنْ عَاذَ بِاللهِ فَأَعِيذُوهُ».

نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا اوريدلي دي چې کوم سړی د الله تعالى په ذريعې سره پناه وغواړي هغه ته پناه ورکړئ.

وَإِنِّي أَعُوذُ بِاللهِ أَنْ تجعلني قَاضِياً فَأَعْفَاهُ

لهذا زه د الله تعالى په ذريعې سره پناه غواړم چې تاسو ما له قاضي مقرر نه کړئ. نو حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه معاف کړو،

وَقَالَ: لَا تُخْبِرْ أَحداً [1]

خو هغه ته يې وفرمايل چې بل څوک مه خبروه او د حکومت نظام به معطل کيدو سره پاتې شي.

---

(۱) رواه رزين.

# باب رزق الولاة وهداياهم

## دقاضيانو دوظائفو او تحفو او تحائفو بيان

د وخت دحکومت عهده دارو ته به دبيت المال نه دهغه اهل او عيال ته د ګذارې مطابق تنخواه او وظيفه ورکولی شي چونکه حاکم او قاضي او دحکومت نور افسران خلق د عوام المسلمين ... او ملازمان وي او دعوامو د کارونو دپاره يې خپل وختونه وقف کړي وي، لهذا د ... چې کوم مال په بيت المال او سرکاري خزانه کې جمع کيږي ددې مال نه هغو قاضيانو ته ... قدر د کفايت تنخواه ورکولی شي. د رزق لفظ دهغه تنخواه دپاره استعمالولی شي ... هرې مياشتې په حساب سره ورکولی شي، او يو د عطيه او هديه لفظ دی ددې تعار... کال کې يو يا دوه ځله دحکومت دطرف نه فوج ته څه مال ورکولی شي هغې ته ... وظيفې مقررکولو او عطيه قبولولو سره متعلق دوه اهم بحثونه دي:

**اول بحث د قاضي او حاکم دتنخواه په جواز باندې دلائل:** په اصولی طور باندې په دې خبره پوهيدل پکاردي چې قاضي اوحاکم چونکه د مسلمانانو په کار کې ګير وي په دې وجه هغوی ته تنخواه ورکول جائز دي، خودا تنخواه نه دومره زياته وي چې دعيش اوعشرت ژوند جوړشي او نه دومره کمه وي چې دذلت او فقيرۍ نوبت راشي بلکه دکفايت په قدر کيدل پکاردي. قاضي او حاکم دپاره دتنخواه اخستلو جواز باندې څلور دلائل اوګورئ.

**اول دليل:** د حضرت بريده رضي الله عنه روايت دی چې دمشکوة فصل ثانی صفحه نمبر ۳۲۶ باندې دی حضوراکرم صلی الله عليه وسلم و فرمايل: **من استعملناه علی عمل فرزقناه رزقا فما اخذ بعده فهو غلول** (ابوداؤد)

ددې روايت سره بالکل يو ځای دحضرت عمر رضي الله عنه روايت دی چې په کې دا الفاظ دي **عملت علی عهد رسول الله صلی الله عليه وسلم فعملني** يعنی ماته تنخواه راکړی شوه ددې نه پس حديث نمبر ۷ د حضرت مستورد بن شداد رضي الله عنه روايت دی چې په کې دا الفاظ دي **من کان لنا عاملا فليکتسب زوجة فان لم يکن له خادم فليکتسب خادما الخ** (المرقات ۳۱۹/۷، ۳۲۰).

**دويم دليل:** دويم دليل دحضرت عائشې رضي الله عنها هغه روايت دی چې دابوبکرصديق رضي الله عنه دخليفه جوړيدو نه پس دهغوی خطبه ده چې په هغې کې دا الفاظ دي **وشغلت بامر المسلمين فسيأکل آل ابی بکر من هذا المال ويحترف للمسلمين فيه** (مشکوة ص ۳۲۵) (المرقات ۳۱۷/۷)

**دريم دليل** : دمستدرک حاکم روايت دی چې دهغې الفاظ دادي **انه عليه السلام استعمل عتاب بن اسيد على مكة فتوفي النبي صلى الله وهوعامل عليها وفرض النبي صلى الله عليه وسلم له اربعين اوقية في سنة.**

**څلورم دليل** : څلورم دليل دادی چې ټولو خلفاو او قضاتو او عساکرالمسلمينو تنخواګانې اخستې دي چې دسلف صالحينو د دور نه راروان دي او د فقهاؤ په دې باندې اتفاق دی چه**لابأس برزق القاضي** ها دبعضو فقهاؤ دا خيال دی چې په ابتداء کې به قاضی اوحاکم دتنخواه او معاوضې شرط نه لګوي بلکه رضاکارانه کار به شروع کړي بيابه حاکم دده دپاره وظيفه مقررکړي خو په دې رضاکارانه معامله باندې دا سوال راځي چې دا معامله يو معاهده او معاقده ده نو داسې مجهوله معاقده به څنګه جائز وي، دارنګه که قاضی پخپله فقير دی او دحکومت دطرف نه وظيفه هم نشته نو دقضاء ددې عهدې توهين او تذليل اوتحقير دی لهذا دپاسنو څلورو دلائلو پيش نظر متاخرينو فقهاؤ معاوضه اخستل د نه اخستلو نه افضل ګرځولې ده دې دپاره چې آينده په دې عهده باندې دويم راتلونکی پريشانه نه وي. ددې دلائلو په رڼا کې متاخرينو علماو او فقهاو **استيجار على الطاعات** لره جائز ګرځولی دی دارنګه د عقود رسم المفتي مؤلف يوه ضابطه بيان کړې ده چې دهغې خلاصه داده فرمائي چې د اسلام هره هغه عهده چې داجرت اخستلو نه بغير ختميږي او په مفتو کې دا هېڅوک هم نه سنبالوي يعنی په مناصب شرعيو کې يو منصب کچرې داجرت نه بغير ختميږی نو دشريعت ددې منصب دبچ کيدو دپاره اجرت اخستل او ورکول جائز دي. مثلاً امامت اوقضاء اواذان او تدريس اوتعليم کچرې بغير دمعاوضې نه پريخودلی شي نو ټول منصبونه به ختم شي په دې وجه متاخرينو علماؤ استيجار على الطاعة لره ددې مجبورئ په وجه سره جائز ګرځولی دی. اوس دې خبره باندې هم پوهيدل پکار دي چې که د شريعت يو منصب داسې دی چې داجرت ورکولو اخستلو نه بغير نه ختميږي نو په داسې اطاعت باندې اجرت اخستل جائز نه دي مثلاً په تراويحو کې ختم قرآن باندې اجرت اخستل ناجائز دی. **ختمات في المحافل** او ټيوشن وغيره داسې امور دي چې ددې په ختميدو سره څه منصب نه ختميږی نوپه داسې طاعاتو باندې اجرت اخستل جائز نه دی، تراويح خو دختم قرآن نه بغير په وړو سورتونو باندې هم کيدلی شي. بهرحال صديق اکبر رضي الله عنه د وفات نه مخکې مخکې ټوله معاوضه واپس کړه دا دتقوی مقام دی د فتوې نه دی په فتوی کې خو جائز دی.

اوس چې کوم نه پوهیدونکي خلق اعتراض کوي چې دا علماء په طاعاتو باندې اجرت اخلي چې ناجائز دی نو پښپله دا اعتراض غلط دی بلکه دا دهغه خلقو خیال او منصوبه ده چې د اسلام او دین چې لږ ډیر کار کیږی دا به هم بند شي په دې وجه مفتی محمد شفیع رحمه الله لیکلې دي چې کوم خلق اعتراض کوي هغه ملحد او بې دینه خلق دي. علامه شامی رحمه الله لیکلې دي چې ددین په کار باندې معاوضه اخستلو کې دوه ثوابه ملاویږي: یو ثواب په دې وجه چې هغه دخپلو بچو د کسب فریضه پوره کوي، او دویمه وجه داده چې دا سړی ددین داشاعت په خدمت کې لګیدلی دی.

**دویم بحث دقاضی تحفې تحائف**: دویم بحث دادی چې قاضی دخپلې مقررې وظیفې نه علاوه دچا څه تحفه یا هدیه قبلولی شي یا نه؟ نو صاحبِ هدایه رحمه الله لیکلې دي چې قاضی دخپلو رشته دارانو هدیه اخستلی شي ځکه چې دا صله رحمی ده چې هغې لره ماتولی نه شی، دویم قاضی دخپلو هغو دوستانو نه هدیه اخستی شي چې دقضاء منصب ته د راتلو نه مخکې به یې ده ته ورکولې ددې نه علاوه جائز نه دی دارنګه قاضی دهغه خلقو د خوراک دعوت قبلولی شي چې دهغه رشته داران وي یا دوستان وي او دمخکې نه عادت جاري وي. په دعوت طعام کې دا ضابطه ده چې ددعوت کونکو کچیرې دا خیال وي چې که قاضی نه راځی نو دعوت به نه کوو نو داسې دعوت ته تلل دقاضی دپاره صحیح نه دی او کچرې دې سړي عام دعوت کړی دی خواه قاضی راشي یا رانه شي، نو داسې دعوت ته تلی شی .خلاصه داچې دعوت خاصه نه وي دعوت عامه وي. دارنګه قاضی دداسې سړي دعوت پخپله هم نه شي کولی چې په عدالت کې په څه مقدمه کې پیش کیدلو والا وي داچې دواړه خصمینو لره په دعوت کې راغواړي، دارنګه قاضی دخصمینو په مینځ کې په خبرو کې کیناستو او راوستو او بوتللو کې هم برابری قائم کړي، بهرحال سرکاري حکمرانانو ته داحتیاط اشد ضرورت دی. ځکه چې په قومی دولت کې دخیانت کولو نه توبه کول هم آسان نه دی دچاچا حق یې کوم کوم ځای کې وهلی وو دا حساب ډیر مشکل دی.

## الفصل الاول

### نبی کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَسَلَّمَ مال تقسیموونکی وو

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا أُعْطِيكُمْ

حضرت ابوهریره رَضِیَ اللّٰہُ عَنۡہُ وائی چې رسول کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَسَلَّمَ وفرمایل زه نه خو تاسو ته درکوم او نه

وَلَا أَمْنَعُكُمْ أَنَا قَاسِمٌ أَضَعُ حَيْثُ أُمِرْتُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[1]

تاسو لره محروموم، زه خو صرف تقسيمونکی یم چې کوم ځای ماته دا ایخودلو حکم شوی دی هلته یې ږدم. (بخاری)

**توضيح** : **اعطيکم** : يعني زه په خپل اختيار سره نه چاته څه ورکوم او نه يې ترې منع کوم د مال تقسيمولو په باره کې زه چې څه کوم هغه د الله تعالى د حکم مطابق وي د الله تعالى چې کوم ځای حکم وي هلته ورکوم او چرته چې حکم نه وي هلته يې نه ورکوم زه خو صرف تقسمونکی يم ورکونکی دا تا الله تعالى دی.

﴿۲﴾ وَعَن خَوْلَةَ الْأَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت خوله انصاريه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمايل ډير خلق د الله تعالى

«إِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُونَ فِي مَالِ اللهِ بِغَيْرِ حَقٍّ

په مال کې ناحقه تصرف کوي (يعنی زکوة د غنيمت او د بيت المال په مال کې د امام او حکمران د اجازت نه بغير

فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (صَحِيح)[2]

تصرف کوي او خپل حق د خپل محنت نه زيات وصولوي هغه به د قيامت په ورځ د دوزخ د اُور سزاوار وي. (بخاری)

## د وخت خليفه د بيت المال نه وظيفه اخستی شي

﴿۳﴾ وَعَن عَائِشَةَ قَالَتْ: لَمَّا اسْتُخْلِفَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ:

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وائی چې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کله خليفه جوړ کړی شو نو وی وفرمايل

لَقَدْ عَلِمَ قَوْمِي أَنَّ حِرْفَتِي لم تكن تعجزُ عَن مَؤُونَةِ أَهْلِي

چې زما د قوم خلق (يعنی مسلمانان) پوهيږي چې زما کاروبار زما د اهل او عيال د اخراجاتو د پاره کافي وو، او س

وَشُغِلْتُ بِأَمْرِ الْمُسْلِمِينَ فَسَيَأْكُلُ آلُ أَبِي بَكْرٍ مِنْ هَذَا الْمَالِ

د مسلمانانو په کارونو کې مشغول شوی يم د مال نه خوري او ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د دې بيت المال په آمدنئ کې اضافه کولاو ددې

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ۶/۲۱۷ رقم الحديث ۳۱۱۷.

(۲) أخرجه البخاری فی صحيحه ۶/۲۱۷ رقم الحديث ۳۱۱۸.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَيَحْتَرِفُ | لِلْمُسْلِمِينَ | فِيهِ. | رَوَاهُ البُخَارِيُّ[1] |
| بې حفاظت کولو اودي لره بې دمسلمانانو په ضروریاتو او نورو مصارفو کې دخرچ کولو په ذریعه د مسلمانانو خدمت به کوي.(بخاری) | | | |

**توضیح** : حرفتي : یعنی زما کاروبار **تعجز** د عاجز راتلو په معنی سره دی یعنی د کاروبار عاجز نه وو زما داهل او عیال دخرچ نه کم نه وو **مؤنة** د اخراجاتو او ضروریاتو په معنی سره دی یعنی زما د اهل او عیال داخراجاتو دپاره کافی وو **فسیأکل** دا حق الخدمة طرف ته اشاره ده. **یحترف** ددې لفظ نه دلته خدمت مراد دی او د فیه ضمیر مال طرف ته راجع دی، ملاعلی قاری رحمه الله دې ضمیر لره د فسیأکل معنی او مضمون اومفهوم طرف ته راجع کړی دی. بهرحال حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ریښمو او دکپړې کاروبار کولو، او حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغلې سوداګري کوله، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دکجورو او غنمو تجارت کولو، او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د عطرو تجارت کولو.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ عَنْ | بُرَيْدَةَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: «مَنِ |
| او حضرت بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل چې کوم سړي | | | | | | | | |
| اسْتَعْمَلْنَاهُ | عَلَى | عَمَلٍ | فَرَزَقْنَاهُ | رِزْقًا | | | | |
| لره مونږ په څه کار باندې مامور کړو او هغه ته مو رزق ورکړو (یعنی دده ددې کار مو اجرت او تنخواه مقرر کړه | | | | | | | | |
| فَمَا | أَخَذَ | بَعْدَ | ذَلِكَ | فَهُوَ | غُلُولٌ». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد | (صَحِيح)[2] |
| ددې نه پس کچیرې هغه (دخپلې تنخواه نه زیاتې) څه وصول کړي نو دا مال غنیمت کې خیانت دی. (ابو داؤد) | | | | | | | | |
| ﴿۵﴾ وَعَنْ | عُمَرَ | رَضِيَ | الله | عَنْهُ | قَالَ: | عَمِلْتُ | عَلَى | عَهْدِ |
| او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی زه عامل جوړ کړې شوم چې د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې او | | | | | | | | |
| رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فعملني. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[3] | | | | | | | | |
| د هغې اجرت (تنخواه) ماته راکړی شوه. (روایت کړې دې ابوداؤد) | | | | | | | | |

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٣٠٣ رقم الحديث ٢٠٧٠.

(2) أخرجه أبوداود في السنن ٣/٣٥٣ رقم الحديث ٢٩٤٣.

(3) أخرجه أبوداود في السنن ٣/٣٥٣ رقم الحديث ٢٩٤٤ والنسائي في السنن ٥/١٠٢ رقم الحديث ٢٦٠٤ وأحمد في المسند ١/٥٢،

## حضرت معاذ رضی الله عنه ته هدایت

﴿۶﴾وَعَن مُعَاذٍ قَالَ: بَعَثَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ

او حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما لره (عامل) جوړولو سره یمن ته ولیږلم

فَلَمَّا سِرْتُ أَرْسَلَ فِي أَثَرِي فَرُدِدْتُ

(کله چې یمن ته روان شوم او څه لرې لاړم) نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ (ما ته د راغوښتلو د پاره یو سړی) ما پسې راولیږلو زه واپس راغلم

فَقَالَ: «أَتَدْرِي لِمَ بَعَثْتُ إِلَيْكَ؟

نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې ته پوهیږې ما تا ته د راغوښتلو د پاره (سړی) ولې ولیږلو؟ (ما درته دې خبرداري د رکولو د پاره

لَا تُصِيبَنَّ شَيْئًا بِغَيْرِ إِذْنِي فَإِنَّهُ غُلُولٌ

ته راوغوښتې چې) ته (خپل د ملازمت د مودې په دوران کې) زما د اجازت نه بغیر څه هم مه اخله ځکه چې دا خیانت دی

وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

او کوم سړی چې خیانت کوي هغه به د قیامت په ورځ د هغه څیز راولو سره راځي چې په کوم کې یې خیانت کړی وي

لِهَذَا دعوتك فَامْضِ لعملك». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ (صَحِيح)[1]

هم د دې ویلو د پاره ما ته راوغوښتلې اوس ته خپل کار پسې څه. (ترمذی)

## بغیر د تنخواه نه حاکم څو مره خرچه اخستلی شي

﴿۷﴾وَعَن الْمُسْتَوْرِدِ بنِ شَدَّادٍ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت مستور بن شداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوریدلو

يَقُولُ: «مَنْ كَانَ لَنَا عَامِلًا

چې کوم سړي لره مونږه عامل (د څه ځای حاکم یا کارنده) جوړ کړو (کچرې د هغه ښځه نه وي نو)

فَلْيَكْتَسِبْ زَوْجَةً فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ خَادِمٌ

هغه له پکار دي چې یوه ښځه په نکاح واخلي، کچیرې د هغه سره څوک خادم (غلام او وینځه) نه وي

فَلْيَكْتَسِبْ خَادِمًا فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَسْكَنٌ فَلْيَكْتَسِبْ

هغه له پکار دي چې یو خادم واخلي او کچیرې د هغه کور نه وي نو هغه له پکار دي چې یو کور جوړ

---

([1]) أخرجه الترمذی فی السنن ۳/۶۲۱ رقم الحدیث ۱۳۳۵.

| |
|---|
| مَسْكَنًا». وَفِي رِوَايَةٍ: «مَنِ اتَّخَذَ غَيْرَ ذَلِكَ فَهُوَ غَالٌّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (صَحِيح)[1] |
| کړي یا واخلي. او په یو روایت کې داهم دي چې ددې نه علاوه څه اخلي نو هغه به خیانت کونکی وي. (ابوداؤد) |

**توضیح : فلیکتسب زوجة** : مطلب دادی چې حاکم دخپل زیر تصرف بیت المال نه دښځې مهر او نان نفقې مقدار بقدر کفایت بغیر داسراف نه اخستلی شي خو دا په هغه صورت کې دی چې هر کله دحاکم تنخواه دبیت المال نه مقرر نه وي کچرې دهغه تنخواه مقرر وي نو بیا دا ضروریات دهغې نه به پوره کولی شي، دغه شان هغه حاکم دخپل رهائشی ضروریاتو مطابق یو کور او دخدمت دپاره یو غلام او که دغلامانو دور نه وي نو دهغې قیست دبیت المال نه اخستی شي که دضرورت نه زیات واخلي نو حرام به وي ځکه چې دضروریاتو یو اوږده سلسله ده په دې وجه دضابطې لاندې تنخواه مقررول دنن صبا د دور مطابق زیات بهتر دی، دمدارسو د مهتممینو حضراتو دپاره هم مقررشوې تنخواه باعث دعافیت ده. (المرقات ۳۲۰/۷)

## دبیت المال د خیانت نه بچ شئ

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَن عَدِيِّ بنِ عَمِيرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عدي بن عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (یوه ورځ مسلمانانو ته خطاب کولو) وې فرمایل |
| «يَا أَيُّهَا النَّاسُ مَنْ عُمِلَ مِنْكُمْ لَنَا عَلَى عَمَلٍ |
| خلقو! په تاسو کې چې کوم سړی زمونږ د طرف نه دڅه کار عامل جوړ کړی شو او هغه دخپل کار نه د |
| فَكَتَمَنَا مِنْهُ مِخْيَطًا فَمَا فَوْقَهُ |
| حاصل شوي (آمدنئ) نه دستنې برابر یا ددې نه زیات زمونږ نه پټ کړي نو هغه خیانت کونکی دی |
| فَهُوَ غَالٌّ يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ: |
| او دقیامت په ورځ به هغه راوړي. (دې اوریدو سره) یو انصاري ودریدو او عرض یې وکړو چې |
| يَا رَسُولَ اللهِ اقْبَلْ عَنِّي عَمَلَكَ. |
| ای دالله رسوله! تاسو خو (دوصول تحصیل) چې کوم کار زما حواله کړی دی هغه زمانه واپس واخله. نبي عليه السلام |
| قَالَ: «وَمَا ذَاكَ؟» قَالَ: سَمِعْتُكَ |
| وفرمایل داولې.؟ هغه عرض وکړو چې ما تاسو نه کو فرمان واوریدلو (یعنی نبي عليه السلام چې ددې په باره کې کوم وعید |

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۳/۳۵٤ رقم الحديث ۲۹٤۵ وأحمد في المسند ...

تَقُولُ: كَذَا وَكَذَا قَالَ:

بیان فرمایلی دی ددې وجې نه دیر ویریدم ځکه چې دا کار د لړزش نه خالي خو نه دی کچیرې زه په لړزش کې مبتلا شوم نو د قیامت په

قَالَ: «وَأَنَا أَقُولُ ذَلِكَ مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ عَلَى عَمَلٍ فَلْيَأْتِ

ورځ به څه جواب ورکوم نبی عَلَیۡهِ السَّلَامُ وفرمایل ها زه یې اوس هم دا وایم چې مونږ کوم کس لره عامل مقرر کړو هغه له پکار دي

بِقَلِيلِهِ وَكَثِيرِهِ فَمَا أُوتِيَ مِنْهُ أَخَذَهُ

چې کوم څه وصول کړي، هغه لږ وي یا زیات هغه دې مونږ له راوړي او دهغې نه چې څومره قدر دې ده ته ورکولی

وَمَا نُهِيَ عَنْهُ انْتَهَى». رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَأَبُو دَاوُد وَاللَّفْظ لَهُ (صَحِيح)[1]

شي هغه دې واخلي او کوم چې ورنه کړی شي دهغې نه دې منع شي (مسلم، ابوداؤد، الفاظ د ابوداؤد دی)

## درشوت په ورکونکي او اخستونکي باندې دنبي عَلَیۡهِ السَّلَامُ لعنت

﴿۹﴾ وَعَن عبد الله بن عَمْرو قَالَ: لَعَنَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم الرَّاشِيَ

او حضرت عبدالله بن عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنۡهُمَا وائی چې رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ لعنت فرمایلی دی په رشوت اخستو

وَالْمُرْتَشِيَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[2] (صَحِيح) وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيّ

والا او رشوت ورکولو والا په (دواړو) باندې. ابوداؤد، ابن ماجه. ترمذی رحمه الله دې روایت لره

عَنْهُ وَعَن أَبِي هُرَيْرَة (صَحِيح)[3] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي

د حضرت عبدالله بن عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنۡهُمَا او حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰهُ عَنۡهُ نه او بیهقی رحمه الله په شعب الایمان کې

«شُعَبِ الْإِيمَانِ» عَنْ ثَوْبَانَ وَزَادَ:

د حضرت ثوبان رَضِیَ اللّٰهُ عَنۡهُ نه نقل کړی دی دا رنګه بیهقی رحمه الله په روایت کې دا الفاظ هم دي چې

«وَالرَّائِشَ» يَعْنِي الَّذِي

نبی عَلَیۡهِ السَّلَامُ د رائش یعنی هغه سړی چې د رشوت ورکولو والا او رشوت اخستلو په مینځ کې واسطه

يَمْشِي بَيْنَهُمَا (صَحِيح)[4]

او ذریعه جوړه شی په هغه یې هم لعنت وفرمایلو.

---

([1]) أخرجه مسلم فی صحیحه ٣/١٤٦٥ رقم الحدیث (١٨٣٣-٣٠) وأبوداود فی السنن ٤/١٠ رقم الحدیت ٣٥٨١ وأحمدفی المسند ١٩٢ ٤.

([2]) أخرجه أبوداود فی السنن ٤/٩ رقم الحدیث ٣٥٨٠ والترمذی فی ٣/٦٢٣ رقم الحدیث ١٣٣٧ وابن ماجه ٢/٧٧٥ رقم الحدیث ٢٣١٣.

([3]) أخرجه الترمذی فی السنن ٣/٦٢٢ رقم الحدیث ١٣٣٦.

([4]) أخرجه أحمدفی المسند ٥/٢٧٩ والبیهقی فی شعب الایمان ٤/٣٩٠ رقم الحدیث ٥٥٠٣.

**توضیح** : **الراشي والمرتشي** : رشوت ورکولووالا ته راشي وائي او د اردو ژبې والا عوام راشي رشوت اخستونکي ته وایې داد عوامو غلطی ده ځکه چې رشوت اخستونکي ته په عربي ژبه کې مرتشي وایې او ورکونکي ته راشي وایې.

**الرشوة** : رشوت هغه مال ته وائي چې چاحاکم ته د ابطال حق او احقاق باطل دپاره ورکولی شي چې په هغې سره د نورو حق ووهلی شي او د رشوت په زور سره هغه بل چاته ورکړی شي. کچیرې رشوت دخپل حق د حاصلیدو او د اثبات دپاره ورکړی شي یا د ظلم دفع کولو دپاره ورکړی شي نو دا په حقیقت کې یو تاوان دی ددې په جواز کې کلام نشته دی ځکه چې دخپل ځان نه ظلم دفع کول دي.

## په حلالو ذرائعو سره گټلی شوی مال ښه مال دی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَن عَمرِو بن العاصِ قَالَ: أَرسَلَ إِلَيَّ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت عمروبن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ وائي چې یو ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د چا په ذریعه سره ماته دا راولیږل |
| «أَنِ اجْمَعْ عَلَيْكَ سِلَاحَكَ وَثِيَابَكَ ثُمَّ ائْتِنِي» قَالَ: |
| چې خپله وسله او جامو لره یو ځای کړه (یعنی د سفر تیاری وکړه) او بیا ماته راشه حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنهُ وائي |
| فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ يَتَوَضَّأُ |
| چې ما د (نبی عَلَيهِ السَّلَامُ د فرمان مطابق تیاری وکړو) د نبی عَلَيهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شوم او هغوی |
| فَقَالَ: «يَا عَمْرُو إِنِّي أَرْسَلْتُ إِلَيْكَ |
| هغه وخت اودس کولو (چې زه یې ولیدم نو وې فرمایل عمرو! ما تاپسې سړی در لیږلی وو ته مې دې دپاره |
| لِأَبْعَثَكَ فِي وُجْهٍ يُسَلِّمُكَ الله |
| راغوښتلی یې چې تا یو طرف ته یعنی د څه ځای حاکم یا عمل جوړ کړم او لیږم، الله تعالی دې تا په په |
| وَيُغْنِمُكَ وَأَرْغَبُ لَكَ رُغْبَةً مِنَ الْمَالِ». فَقُلْتُ: |
| عافیت او سلامتیا سره وساتی. تا ته مال غنیمت درکړی او زه هم تا ته څه مال درکړم. ما عرض وکړو |
| يَا رَسُولَ الله مَا كَانَتْ هِجْرَتِي لِلْمَالِ |
| ای د الله رسوله! زما هجرت کول (یعنی زما ایمان قبول او خپل وطن پریخودل نبی عَلَيهِ السَّلَامُ ته راتلل) د مال په |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا | كَانَتْ | إِلَّا | لله | ولرسوله |

خاطر نه وو (بلکه زما ایمان قبول خالص د الله تعالیٰ د پاره وو او) زما هجرت صرف د الله او د رسول الله ﷺ

قَالَ: «نِعِمَّا بِالْمَالِ الصَّالِحِ لِلرَّجُلِ الصَّالِحِ». رَوَاهُ فِي «شَرْحِ السُّنَّةِ»

د خوشالئ او رضا) د پاره وو. نبی علیه السلام وفرمایل د نیک بخت سړي د پاره ښه مال ښه څیز دی. (شرح السنة)

وَرَوَى أَحْمَدُ نَحْوَهُ وَفِي روايته: قَالَ: «نِعْمَ المالُ

امام احمد رحمه الله هم دې روایت لره نقل کړی دی او د هغه په روایت کښې دا الفاظ دي چې د

الصَّالِحُ لِلرَّجُلِ الصالح»[1]

نیک سړي د پاره ښه مال ښه څیز دی.

**توضيح: يسلمک الله**: يعنی زه تا د جهاد د پاره لیږم یا تا لره عامل جوړم او یو طرف ته دې لیږم الله تعالیٰ به تا سلامت هم ساتي او تا ته به مال غنیمت هم در کړي **وازعب** دا صیغه د باب فتح نه ده د لوبني وغیره د ډکولو په معنی سره راځي د لته د عطیه او مال ورکولو په معنی سره دی، حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه پنځمه هجرئ کښې مسلمان شوی وو او د حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه په ملګرتیا کښې یې مدینې منورې ته هجرت کړی وو. بعضو ویلي دي چې په اتمه هجرئ کښې مسلمان شوی وو. نبی علیه السلام ده لره د عمان ګورنر مقرر کړی وو شاید په دې حدیث کښې د دې تقرر قصه ده.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## سفارش کونکی دې څه هدیه نه قبلوي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ | أَبِي | أُمَامَةَ | أَنَّ | رَسُولَ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: «مَنْ |

حضرت ابو امامه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول کریم ﷺ وفرمایل چې کوم سړی (د کوم

| | | | |
|---|---|---|---|
| شَفَعَ | لِأَحَدٍ | شَفَاعَةً | فَأَهْدَى |

باچا یا حاکم ته) د کوم (سړي مثلاً د زید) سفارش وکړي هغه (زید) دې (سفارش کونکي) ته د سفارش

(۱) أخرجه البغوى فى شرح السنة ۱۰/۹۱ رقم الحديث ۲۴۹۵ وأحمد فى المسند ۴/۱۹۷.

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَهُ | هَدِيَّةً | عَلَيْهَا | فَقَبِلَهَا |
| په عوض كې څه څيز په طور تحفه او هديه ورنيږي او هغه سفارش كونكى ) دې تحفې لره قبوله كړي | | | |
| فَقَدْ أَتَى بَابًا عَظِيمًا مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[١] | | | |
| هغه د سود د دروازو نه په يوه دروازه باندې داخل شو. (ابوداؤد) | | | |

**توضيح** : **من ابواب الربا** : په دې حديث كې چې د سفارش كوم صورت بيان كړى شوى دى دهغې په معاوضه كې چې كوم څه واخستلى شي هغه د رشوت په زمره كې راځي خو ددې رشوت په ځاى دسود په نوم سره موسوم كړى شوى دى دا داسې نفع ده چې سفارش كونكي ته بلامعاوضه حاصل شوې ده او دسود تعريف ملاعلى قارى رحمه الله ددې حديث په ضمن كې داسې نقل كړى دى **وهوفى الشرع فضل خال من عوض شرط لاحدالعاقدين** سود دهغه اضافى نفعې نوم دى چې دمالي معاوضې نه بغير په معامله كونكو كې يو كس ته ملاو شي.

ددې حديث نه داخبره هم د رڼا ورځ په شان ښكاره كيږي او بيا ورسره دهغه حضراتو اكرام كوي دا دهغه رشوت او سود په زمره كې راځي، علماء كرامو لره د بيدارمغز او د چست اوسيدو ډير ضرورت دى. په باطنى حالتونو باندې الله تعالى پوهيږي. (المرقات ۳۲۴/۷)

---

(١) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۸۱۰ رقم الحديث ۳۵۴۱.

# باب الاقضية والشهادات

## دفيصلواو د شهادتونو بيان

قال الله تعالى : قَالُوْا لَا تَخَفْ ۚ خَصْمٰنِ بَغٰى بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَآ اِلٰى سَوَآءِ الصِّرَاطِ (ص: ٢٢) وقال الله تعالى : وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ ۚ فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى. وَلَا يَاْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا (البقرة : ٢٨٢)

**اقضية** او **قضايا** د قضية جمع ده او قضيه هغه نزاعي معاملې ته وائي چې د حاکم او قاضي ته په دې غرض سره لاړه شي دې د پاره چې فريقينو په مينځ د نزاع ختمولو د پاره څه حکم او فيصله وکړي.

**الشهادات:** د شهادة جمع ده گواهي ورکولو ته شهادت وائي، او په اصطلاح کې په فريقينو کې د يو فريق حق د بل فريق په مقابله کې ثابتولو نوم شهادت دی.

### الْفَصْلُ الْأَوَّل

### د مدعي دعوى د گواهانو نه بغير معتبر نده

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيهِ السَّلَام فرمايل کچيرې خلقو له صرف د |
| «لَوْ يُعْطَى النَّاسُ بِدَعْوَاهُمْ |
| هغوى په دعوى باندې (د هغوى مدعى) ورکړى شي (يعني نه مدعي نه گواه طلب کړى شي او نه مدعى عليه نه تصديق |
| لَا دَّعَى نَاسٌ دِمَاءَ رِجَالٍ |
| وکړى شي بلکه صرف د هغوى په دعوى باندې د هغه حق د مال او جان د قسم نه مدعي ته ورکړى شي) نو خلق به د سړو وينه |
| وَأَمْوَالَهُمْ وَلَكِنَّ الْيَمِينَ عَلَى الْمُدَّعَى [illegible]ـيهِ». |
| او د هغوى مال (د روغژن) ثابت کړي (لهذا صرف د مدعي ۔عوى بغير د گواهانو نه معتبره ۔ خو |
| رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِي «شَرْحِهِ لِلنَّوَوِيِّ» أَنَّهُ قَالَ: وَجَاءَ |
| قسم خوړل په مدعى عليه باندې ضروري دی (مسلم) او نووی رحمه الله په خپل کتاب د مسلم په شرح |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي | رِوَايَةِ | «الْبَيْهَقِيِّ» | بِإِسْنَادٍ | حَسَنٍ | أَوْ | صَحِيحٍ |
| کې لیکلي دي چې دبیهقي په روایت کې چې په حسن یا صحیح اسنادو سره نقل دی د حضرت ابن عباس رضي الله عنه | | | | | | |
| زِيَادَةٌ | عَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | مَرْفُوعًا: | «لَكِنَّ | الْبَيِّنَةَ |
| نه په ذکر شوې حدیث کې بطریق مرفوع د دې الفاظو اضافه هم نقل ده چې ګواه پیش کول د مدعي | | | | | | |
| على | المدَّعي | واليمينَ | على | مَنْ | أنكر» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| په ذمه دی او قسم خوړل په هغه سړي باندې دی چې انکار کوي یعنی مدعی علیه. | | | | | | |

**توضيح** : **لويعطى** : دا لو فرضيه دی او يعطى د مجهول صيغه ده يعنی فرض کړه کچيرې خلقو ته صرف دهغوی د دعوې په بنياد باندې مال ورکول شروع شي او دګواهانو ضرورت نه وي نو څه خلق به د نورو په ذاتی مالونو او ځانونو باندې لاس اوچتول شروع کړي، په دې وجه د اسلام دا قطعی ضابطه ده چې مخکې د مدعي نه ګواه وغوښتلی شي کچرې ګواه موجود نه وي نو بيا به مدعي ته قسم ورکولی شي،

**سوال** : دلته دا اشکال دی چې په دې حديث کې د قسم ذکر شوی دی خود ګواهانو ذکر نشته دی داسې ولې وشول؟

**جواب** :ددې اشکال جواب دادی چې دګواهانو مسئله چونکه ډيره زياته واضحه اومشهوره ده په دې وجه ذکر نه کړی شوه او دمنکر دپاره د قسم ذکر وکړی شو، صاحب دمشکوة دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما د يو روايت اضافه کولو سره دې مفهوم او ګواهانو او د قسم مضمون لره مکمل کړو، او دصاحب مشکوة طرزپه پوره کتاب کې عمومًا همدادی چې ديومجمل حديث تفسير په بل حديث سره کوي. (المرقات ۳۲۵/۷)

## په عدالت کې په دروغه قسم خوړلو باندې وعيد

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ | ابْنِ | مَسْعُودٍ | قَالَ: | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «مَنْ |
| او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وائی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمايل چې کوم سړی په څه څيز | | | | | | | | | | |
| حَلَفَ | عَلَى | يَمِينٍ | صَبْرٍ | وَهُوَ | فِيهَا | فَاجِرٌ | | | | |
| سره مقيد شي (يعنی د حاکم په مجلس کې ، قسم اوخوري او هغه په خپل قسم کې دروغژن وي | | | | | | | | | | |

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/٤٥٥٢ رقم الحديث ٤٥٥٢، ومسلم في ۳/۱۳۳٦ رقم الحديث ۱/۱۷۱۱.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَقْتَطِعُ | بِهَا | مَالَ | امْرِئٍ | مُسْلِمٍ | لَقِيَ | الله |
| دهغه مقصد قسم خوړلو سره دچا مسلمان مال حاصلول وي نو دقيامت په ورځ به الله تعالی سره | | | | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | وَهُوَ | عَلَيْهِ | غَضْبَانُ | فَأَنْزَلَ | الله | تَصْدِيقَ | ذَلِكَ: | |
| په داسې حال کې ملاقات کوي چې الله تعالی به په هغه باندې غصه وي د دې ارشاد په تصديق کې | | | | | | | | | |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (إِنَّ | الَّذِينَ | يشترون | بعهدِالله | وأيمانِهم | ثمنا | قَلِيلا) | إِلَى | آخرالآية | (صَحِيحٌ)[1] | |
| الله تعالی دا آيت نازل کړو . إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا تر آخري آيت پورې (بخاري) | | | | | | | | | | |

**توضيح** : **يمين صبر**: يمين د قسم په معنی سره دی او صبر خو مشهور دی چې صبر ته وائی خو دلته هغه معروفه معنی مراد نه ده بلکه دلته صبر حبس او د قيد په معنی سره مستعمل شوی دی، لهذا د حديث مطلب دا شو چې يو سړي لره حاکم په عدالت کې د څه مقدمې پيش نظر د قسم خوړلو دپاره نيولی شوی دی د عدالت کاروائی په دې قسم باندې موقوف ده دلته حاکم هغه ته د قسم خوړلو حکم ورکړو چې د هغې په وجه سره په هغه باندې قسم خوړل د امير د اطاعت په وجه لازم هم دی په داسې قسم کې چې کوم سړی دروغ وايې هغه به ډير زيات ګناهګار ږي.
د دې حديث دويم مطلب دا دی چې يو سړی نه د قسم مطالبه و کړې شي او دده په قسم سره بل سړی قيد کولی شي هغه په دروغه قسم و خوړلو چې د هغې په نتيجه کې دويم سړی محبوس شو . دا قسم خوړل ډيره ګناه ده.
دريم مطلب د دې حديث دا دی چې ديمين صبر نه مراد يمين کاذب دی چې يو سړی مثلاً د بل سړي د مال ضائع کيدو په نيت سره په دروغه قسم خوري دا يمين صبر دی دا مفهوم آسان هم دی او د حديث د آئنده جملو نه د دې تائيد هم کيږي، ملا علی قاري رحمه الله فرمايلي دي چې د حديث همدا مطلب دلته مراد دی په حديث کې د آيت تکميل داسې دی (اولئک لا خلاق لهم في الآخرة و لا يکلمهم الله و لا ينظر إليهم يوم القيامة و لا يزکيهم و لهم عذاب أليم). (المرقات ۳۲۷/۷)

## په دروغه قسم سره دچا حق دبارولو والا باندې جنت حرام دی

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ | أَبِي | أُمَامَةَ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | الله | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «مَنِ |
| د حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايلچې کوم سړی د خپل | | | | | | | | | | | |

(۱) أخرجه البخاری فی صحيحه ۸/۲۱۲ رقم الحديث ۴۵۴۹، ومسلم فی ۱/۱۲۲ رقم الحديث (۱۳۸-۲۲۰) والترمذی فی السنن ۵/۲۱۶ رقم الحديث ۳۰۱۲ وابن ماجه فی ۲/۷۷۸ رقم الحديث ۲۳۲۳.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اقْتَطَعَ | حَقَّ | امْرِئٍ | مُسْلِمٍ | بِيَمِينِهِ | فَقَدْ | أَوْجَبَ | اللهُ |

(په دروغه) قسم په ذریعې سره د کوم مسلمان سړي مال غصب کړو نو بېشکه الله تعالی دده دپاره

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَهُ | النَّارَ | وَحَرَّمَ | اللهُ | عَلَيْهِ | الْجَنَّةَ» | فَقَالَ | لَهُ | رَجُلٌ: |

اُور واجب کړو او په ده باندې یې جنت حرام کړو. یو سړي (دې اوریدو سره) نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته عرض وکړو

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ | كَانَ | شَيْئًا | يسيرًا | يَا | رَسُولَ | اللهِ؟ | قَالَ: | «وَإِنْ | كَانَ | قَضِيبًا |

اګرچې هغه معمولي غوندې څه څیز وي. نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل (ها) اګرچې د پلوسې د ونې یوه

مِن أَرَاكٍ». رَوَاهُ مُسلم (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

ټکړه (یعنی مسواک) ولې نه وي. (مسلم)

**توضیح**: اوجب الله له النار: ددې جملې دوه مطلبه دي: اول مطلب دادی چې ددې حدیث تعلق دهغه سړي سره دی چې دچا مسلمان حق دباوول حلال ګڼي نو دهغه سړي دپاره دوزخ واجب دی او جنت په هغه باندې حرام دی، دویم مطلب او تاویل دادی چې دداسې سړي سزا ددې بد عمل دوجې نه بې شکه همدا دوزخ دی خو په قیامت کې فیصله په معجون مرکب باندې کیږي د یو عمل په خاصیت باندې مجموعي فیصله نه کیږي او دا هم ممکن ده چې الله تعالی دهغه سړي مغفرت وکړي.

**وحرم علیه الجنة**: یعنی دا سړی به په اول ځل نجات موندونکو سره جنت ته نه ځي بلکه د سزا خوړلو نه پس به ځي ځکه چې د اهل السنت په نزد دلویې ګناه مرتکب به همیشه په اُور کې نه وي. (المرقات ۳۲۸/۷، الکاشف: ۲۹۶/۷)

## آیا دقاضي فیصله په ظاهر او باطن کې نافذ کیږي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ | أُمِّ | سَلَمَةَ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ: |

او حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وائي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل په دې کې هیڅ شک

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| «إِنَّمَا | أَنَا | بَشَرٌ | وَإِنَّكُمْ | تَخْتَصِمُونَ | إِلَيَّ |

نشته چې زه یو انسان یم او تاسو خپلې قضیې (جګړې) را وړئ ما ته راځئ، ممکنه ده چې په تاسو کې

---

[1] أخرجه مسلم فى صحيحه ۱/۱۲۲ رقم الحديث (۱۳۸-۲۱۸) والنسائى فى السنن ۸/۲٤٦ رقم الحديث ٥٤١٩ والدارمى فى ۲/۳٤٥ رقم الحديث ۲٦۰۳ ومالک فى الموطأ ۲/۷۲۷ من كتاب الاقضية وأحمد فى المسند ٥/۲٦۰.

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَعَلَّ | بَعْضَكُمْ | أَنْ | يَكُونَ | أَلْحَنَ | | | | | | |
| به یو کس د خپلو دلائلو په پیش کولو کې د بل نه زیات فصیح او بلیغ او د بیان حامل وي او زه د هغه | | | | | | | | | | |
| بِحُجَّتِهِ | مِنْ | بَعْضٍ | فَأَقْضِي | لَهُ | عَلَى | نَحْوِ | مَا | أَسْمَعُ | مِنْهُ | |
| (مدلل) بیان واورم هم د هغې مطابق فیصله وکړم لهذا هغه کس چې د چا په حق کې زه د څه داسې | | | | | | | | | | |
| فَمَنْ | قَضَيْتُ | لَهُ | بِشَيْءٍ | مِنْ | حَقِّ | أَخِيهِ | فَلَا | يَأْخُذَنَّهُ | | |
| څيز فيصله وکړم چې په حقيقت کې د هغه دورور مسلمان وي هغه څيز لره دې نه اخلي ځکه چې (زه | | | | | | | | | | |
| فَإِنَّمَا | أَقْطَعُ | لَهُ | قِطْعَةً | مِنَ | النَّارِ» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | |
| داسې صورت کې ګویا) چې زه د هغه په حق کې د اُور د یوې ټکړې فیصله کوم. (بخاری ومسلم) | | | | | | | | | | |

**توضيح** : **انما انا بشر**: یعنی زه یو انسان یم عالم الغیب نه یم زه ظاهر ته ګورم فیصله کوم لهذا سهوًا او نسیانًا بشري تقاضاده یو انسان عالم الغیب خو نه وي یو کس د ظاهری الفاظو په زوردار کلام سره خپله مدعا ثابتوي او په حقیقت کې هغه د بل چا وي خو هغه په خپل قوت بیان سره په حق باندې معلومیږي نو زه د هغه په حق کې فیصله کوم حالانکه حق د بل کس وي نو یاد ساتئ د غه د ژبې په چالاکۍ سره که زه هغه ته څه ورکړم نو هغه به د دوزخ ټکړه وي. اوس د لته د فقهاؤ اختلاف دی چې قضاء د قاضی صرف په ظاهر کې نافذ ده یا ظاهر او باطن دواړو کې نافذ ده. (المرقات ۳۲۹/۷)

**د فقهاؤ اختلاف** : د جمهورو او صاحبینو په نزد قضاء د قاضی ظاهرًا نافذ ده باطنًا نه ده، امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائی چې قضاء د قاضی ظاهرًا او باطنًا دواړه قسمه نافذ ده. په ظاهر او باطن کې د نافذ کیدو مطلب دادی چې په ظاهري شریعت کې په دنیا کې چې څنګه هغه فیصله نافذ کیږي په آخرت کې یعنی د الله تعالی په نزد هغه فیصله به صحیح شماروي.

**د اختلاف محل** : اوس د اختلاف د محل تعین ضروري دی چې د فقهاء کرامو په کوم ځای کې اختلاف دی او په کوم ځای کې یې اتفاق دی، نو پوهیدل پکاردي چې کچرې قضاء د قاضی په املاک مرسله کې وي نو بالاتفاق ظاهرًا به قضاء نافذ وي او باطنًا به نافذ نه وي. او که چرې قضاء د قاضی په املاک غیر مرسله یعنی املاک مقیده کې یا غیر اموال کې وي مثلاً په نکاح .طلاق یا غیره عقودو او فسوخو کې وي نو په دې صورت کې د فقهاء کرامو اختلاف دی. چې د ائمه ثلاثو او

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۱۲/۳۳۹ رقم الحدیث ۶۹۶۸ ومسلم فی ۳/۱۳۳۷ رقم الحدیث (۱۷۱۳-٤) وأبوداود فی السنن ۱۲/٤ رقم الحدیث ۳۵۸۲ والترمذی فی ۳/٦۲٤ رقم الحدیث ۱۳۳۹ والنسائی فی ۸/۲۳۳ رقم الحدیث ۵٤۰۱ وابن ماجه فی ۲/۷۷ رقم الحدیث ۲۳۱۸.

صاحبینو په نزد قضاء د قاضی به صرف ظاهرًا نافذوي باطنًا به نافذ نه وي. او د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد قضاء د قاضی ظاهرًا هم نافذ ده او باطنًا هم نافذده، دمثال په طور باندې یوې ښځې دعوی وکړه چې فلاني سړي ماسره واده کړی دی په دې باندې ښځې دوه په دروغه ګواهان هم پیش کړل او دا واده ئې ثابت هم کړو حالانکه په حقیقت کې څه واده ماده نه وو شوی، اوس آئمه ثلاثه فرمائی چې دا ښځه صرف په ظاهر کې به دهغه سړي ښځه وي خو په باطن کې به فیمابینه وبین الله دا دهغه ښځه نه وي، اوس دا سړی ددې ښځې سره جماع نه شي کولی که وې کړه نو ګناهګار به وي.

د امام ابو حنیفه په نزد ښځه به ظاهرًا او حقیقةً ددې سړي ښځه وي ددې سره جماع کول جائز دي، اوس دفریقینو د دلائلو نه مخکې په دې پوهیدل ضروري دي چې املاک مرسله او املاک مقیده څه ته وائی؟ نو یاد ساتئ املاک مرسله هغه اموال دي چې یو کس د څه څیز دملکیت دعوی وکړه خو د ملک سبب ئې بیان نه کړو چې په څه وجه سره دا مال دهغه ملکیت کې دی، دې ته املاک مرسله وائی. املاک غیر مرسله هغه دي چې دعوی یې دملک وکړه او ورسره سره یې دملکیت دسبب او علت هم بیان وکړو چې په میراث کې دا مال ملاؤ شوی دی یا اخستلی شوی دی یا چا هبه کړی دی، ګویا چې دا املاک مقیده دي، نو دفقهاؤ اختلاف صرف په املاک مقیده او غیر اموال یعنی عقودو او فسوخو کې دی اموال مرسلو کې اختلاف نه دی.

**دلائل** : (۱) ائمه ثلاثه د ام سلمه رضي الله عنها دزیربحث حدیث نه استدلال کوي ځکه چې نبی اکرم صلى الله عليه وسلم د خپلې فیصلې نه پس په صفا الفاظو کې وفرمایل چې په حقیقت کې کچرې څوک سړی ددې څیز حقدار نه دی نو هغه دې هیڅکله نه اخلي ځکه چې دا دده دپاره دجنهم نکړه ده ددې نه معلومه شوه چې فیصله صرف په ظاهر کې نافذ کیږي او په باطن کې نه نافذ کیږي. د امام ابو حنیفه رحمه الله سره څو دلائل دي: اول دلیل دا دی چې قاضی ته ولایت عامه حاصل دی نو که اول نکاح نه وه شوې نو اوس وشوه ځکه چې دګواهانو دپیش کولو نه پس قاضی دا فیصله واوروله نو په حقیقت کې عقد دی دنوې سر نه نکاح وشوه اوس باطنًا هم دا ښځه دده ښځه ده. (۲) امام ابو حنیفه رحمه الله دویم دلیل د لعان حکم دی نبی علیه السلام په واضحو الفاظو سره وفرمایل: **احدکما کاذب** ددې واضح اعلان باوجو به د نبی علیه السلام فیصله نافذ وي او فریقین یعنی ښځه او خاوند دیوبل نه جدا شو. (۳) د امام ابو حنیفه رحمه الله دریم دلیل دحضرت علی رضي الله عنه یو اثر دی کوم چې طحاوی نقل کړی دی هرکله چې حضرت علی رضي الله عنه دغه دیوې مقدمې فیصله واوروله نوښځې عرض وکړو چې ای امیرالمؤمنین! زما نکاح وکړئ دې دپاره چې زنا نه وي په دې سره حضرت علی رضي الله عنه وفرمایل شاهداک زوجاک یعنی ستادوه ګواهانو ستانکاح وکړه ګویا دا انشاء عقد شو نوې نکاح ده.

**جواب** : جمهورو چې دمذکوره حدیث نه استدلال کړی دی احناف دې لره په املاک مرسلو باندې

حمل کوي، دا رنګه په دې حدیث کې د شهادت تذکره هم نه ده دلته صرف دژبې چالاکۍ او د بیان د زور ذکر دی زیرنظر حدیث نو په دروغه د شهادت او ددې په نتیجه کې د فیصلې سره متعلق دی.

## په ناحقه دمقدمه بازي کونکي دپاره وعید

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها وائی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل د الله تعالی په نزد په خلقو |
| «إِنَّ أَبْغَضَ الرِّجَالِ إِلَى اللهِ الْأَلَدُّ الْخَصِمُ» متفق عليه (صَحِيحٌ)[1] |
| کې بدترین او مبغوض ترین هغه سړی دی چې ډیر زیات په ناحقه جګړه کونکی دی. (بخاري و مسلم) |

**توضیح**: الالد: داد لَدَّ يَلُدُّ نه دی سخت جګړه کونکو خلقو ته وايي. **الخصم** په صاد باندې کسره ده د جګړو عاشق ته (چې جګړه خوښوي) وائی لو **أَلَدّ**: سخت جهګړه مار او **خصم** هغه چې دهغه په طبیعت کې جګړه پرته وي په کثرت سره جګړې کوي، نو په دې دواړو لفظونو کې څه تکرار نشته دی دهر لفظ خپل مطلب دی. (المرقات ۳۳۱/۷)

## د یو ګواه سره قسم ملاوول

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قضى بِيَمِين |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وائی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم (په یوه قضیه کې) یو ګواه او یو |
| وَشَاهِد. رَوَاهُ مُسلم (صَحِيحٌ)[2] |
| قسم باندې فیصله وکړله. (مسلم) |

**توضیح**: **قضی بیمین وشاهد**: ددې حدیث نه معلومیږي چې کچرې مدعی دعوی وکړه او دهغه سره د دعوې دثبوت دپاره دوه ګواهان نه وي نو هغه دې یو ګواه پیش کړي او یو دې قسم وخوري نو دعوی به ثابته شي، او که مال حاصل شي په دې مسئله کې دفقهاؤ اختلاف دی چې آیا د مدعي نه به د یو ګواه سره ددویم ګواه په ځای قسم اخستی شي که نه.

**دفقهاؤ اختلاف**: د رېواړه امامان او جمهور فرمائی کچرې معامله د حدودو او د قصاص د قضیو نه علاوه اموالوکې وي او دمدعی سره صرف یو ګواه موجود وي نو مدعي به ددویم ګواه د

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۵/۱۰۶ رقم الحدیث ۲۴۵۷ ومسلم فی ۴/۲۰۵۱ رقم الحدیث ۵/۲۶۶۸ والترمذی فی ۵/۱۹۸ رقم : ۲۹۷۶،

(۲) أخرجه مسلم فی الصحیح ۳/۱۳۳۷ رقم الحدیث ۳/۱۷۱۲ وأبوداود فی السنن ۴/۳۳ رقم الحدیث ۳۶۰۸ وابن ماجه ۲/۷۹۳ رقم : ۲۳۷۰.

تکمیل د پاره پخپله یو قسم خوري دې د پاره چې ګواهي مکمل شي او د مدعي مدعا ثابته شي. آئمه احناف فرمائی چې د یو ګواه په وجه سره مدعا نه شی ثابتیدلی او په مدعي باندې په هیڅ قسم صورت کې قسم نه راځي د فیصلې د پاره ضروري ده چې د مدعي سره دوه ګواهان وي ګني مدعا علیه نه به قسم اخستی شي.

**دلائل** : د ذکر شوې زیربحث حدیث نه د جمهورو دلیل دی اګر چې دې حدیث کې تصریح نشته دی. چې قسم به د مدعي نه اخستی شي خو دې په بعضو طرقو کې داسې لفظ موجود دی لهذا جمهورو په دې باندې فیصله وکړه. (المرقات ۳۳۱/۷) د احنافو امامانو اولنی دلیل خو د قرآن عظیم آیت دی: ﴿وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ ۚ فَإِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ﴾ (البقرة : ۲۸۲)

دویم آیت: ﴿وَّاَشْهِدُوْا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ﴾ (الطلاق : ۲)

د احنافو دویم دلیل هغه مشهور حدیث دی چې د هغې الفاظ دا دي : **البینة علی المدعي والیمین علی من أنکر** په دې حدیث کې بطور ضابطه تقسیم کاربیان کړی شوی دی نو د مدعي کار ګواه پیش کول دي او د مدعی علیه کار قسم خوړل دي په دې کې اشتراک نشته دی. (المرقات ۳۳۲/۷)

**جواب** : احنافو د مذکوره حدیث او د جمهورو د ددې دلیل نه یو څو جوابونه کړې دي. **اول جواب** : دا مذکوره حدیث خبر واحد دی دا د قرآن د آیت مقابله نه شي کولی. **دویم جواب** : دا چې په دې حدیث کې احتمال دی چې ددې مطلب دا وي چې کله مدعي سره ګواه نه وي نو مدعا علیه نه به قسم اخستی شي او د احتمال راتلو سره به استدلال باقی نه پاتې کیږي. **دریم جواب** : دا دی چې په دې حدیث کې د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د مختلفو فیصلو ذکر دی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ کله د ګواهانو په بنیاد باندې فیصله فرمایلې ده او کله د قسم په بنیاد باندې یې فیصله فرمایلې ده ګویا چې په حدیث کې د یوې فیصلې خبره نه ده بلکه په مختلفو وختونو کې د مختلفو فیصلو دوه صورتونه خودلی شوې دي.

**څلورم جواب** :دا دی چې د زیر بحث حدیث تعلق د حفظ دماء سره دی دا ضابطه نه ده بلکه یوه معروضی فیصله وه چې د هغې پیش نظر دا حکم راغلی دی، واقعه داسې وشوه چې د بنو عنبر څه کافران د جهاد په میدان کې نیولی شوې وو کله چې هغوی مدینې ته راوستلی شو نو هغه دعوی وکړه چې مونږ کوم وخت نیولی شوې وو هغه وخت مونږ مسلمانان وو په دې باندې هغوی سره یو ګواه وو او د دویم ګواه د پاره د هغوی نه قسم واخستلی شو، نو شبهه راغله چې په هغې سره د هغوی وینه محفوظه شوه دا حدیث د صلح په صورت باندې محمول دی ضابطه هم هغه ده چې په مشهورو احادیثو کې ده او احنافو اخستې ده. (المرقات ۳۳۲/۷)

## منکر به قسم خوري خواه فاسق ولې نه وي

﴿۷﴾ وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ

او حضرت علقمه بن وائل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپل پلار نه نقل کوي چې هغه وويل (يوه ورځ) د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مِنْ حَضْرَمَوْتَ وَرَجُلٌ مِنْ كِنْدَةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ:

په خدمت کې يو سړی د حضرموت او سيدونکی او يو سړی د کنده، دواړه حاضر شول حضرمي عرض وکړو

يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ هٰذَا غَلَبَنِي عَلَى أَرْضٍ لِي فَقَالَ الْكِنْدِيُّ:

چې ای دالله رسوله! دې سړي زما زمکې لره (غصب کړه په) دې باندې يې قبضه کړې ده. کندي وويل هغه

هِيَ أَرْضِي وَفِي يَدِي لَيْسَ لَهُ فِيهَا حَقٌّ

زما زمکه ده او زما په لاس (يعنی زما په قبضه کې ده) د دې سړي په دې زمکه کې څه حق نشته دی،

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْحَضْرَمِيِّ: «أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟»

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دواړو فريقينو بيان واريدلو حضرمی ته يې وفرمايل چې آيا تاسره ګواه شته هغه

قَالَ: لَا قَالَ: «فَلَكَ يَمِينُهُ»

وويل چې نه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې او س ستا د دعوې دارومدار د دې مدعا عليه په قسم باندې دی

قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ الرَّجُلَ فَاجِرٌ لَا يُبَالِي

(حضرمی) وويل ای دالله رسوله! دا سړی خو فاجر (فاسق) دی ده ته د دې خبرې څه پرواه نشته دی

عَلَى مَا حَلَفَ عَلَيْهِ وَلَيْسَ يَتَوَرَّعُ مِنْ شَيْءٍ قَالَ:

چې دا د کوم څيز قسم خوري هغه رښتيا دی که دروغ، او دا د څه څيز نه پرهيز نه کوي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

«لَيْسَ لَكَ مِنْهُ إِلَّا ذٰلِكَ».

(بهر حال) ستا د پاره د ده د طرف نه سيوا د دې (قسم) نه نور څه نشته دی. (د دې اوريدو سره) هغه (کندی)

فَانْطَلَقَ لِيَحْلِفَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَدْبَرَ:

سړی د قسم خوړلو د پاره روان شو او کله چې هغه شا کړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل کچرې دا سړی د

«لَئِنْ حَلَفَ عَلَى مَالِهِ لِيَأْكُلَهُ ظُلْمًا

دې حضرمي په مال باندې قسم وخوري د دې د پاره چې د ده مال په زبردستئ سره هضم کړي نو الله تعالی

| |
|---|
| لَيَلْقَيَنَّ اللهَ وَهُوَ عَنهُ معرض». رَوَاهُ مُسلم (صَحِيح)[1] |
| سره به په داسې حال کې ملاویږي چې هغه (الله) به دده نه بیزاره وي. (مسلم) |

**توضیح**: ان الرجل فاجر: یعنی فاسق فاجر سړی دی په قسم خوړلو کې څه پرواه نه کوي او زما مال به هړپ کړي نه دا سړی په قول کې صحیح دی او نه په فعل کې، نبی علیه السلام وفرمایل چې څه هم وي کله چې تا سره ګواه نشته دی نو ته به دده نه قسم اخلې. (المرقات ۳۳۳/۷)

**فانطلق**: ممکن ده دا سړی د اودس جوړولو دپاره راوان شوی وو چې په اودس کې قسم وخوري او دا هم ممکن ده چې په کولا و میدان کې مخې ته راغلو دې دپاره چې قسم وخوري، شوافع د قسم دپاره په اودس کې د کولو حکم ورکوي، د اکثری اګرچه د قسم دپاره تیارشوی وو خو نبی عَلَيْهِ السَّلَام چې کله وعید واورولو نو هغه وویل چې دا زمکه زما نه ده، زما دده ورور ده څنګه چې په حدیث نمبر۹ کې راځي. علامه نووی رحمه الله فرمائی چې په دې حدیث کې د څو فائدو بیان دی: یوه فائده داده چې صاحب ید او دقبضې والا دده اجنبي نه بهتر دی چې کوم صاحب ید نه وي، دویمه فائده داده چې کله مدعي سره ګواه نه وي نو په مدعاعلیه باندې قسم کول لازم دي، دریمه داچه دفاسق قسم هم داسې مقبول دی څنګه چې دیو عادل قسم مقبول وي. (المرقات ۳۳۳/۷)

## په چاباندې په دروغه دعوې کولو والا دوزخي دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغوی دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمان واوریدلو |
| يَقُولُ: «مَنِ ادَّعَى مَا لَيْسَ لَهُ فَلَيْسَ مِنَّا |
| فرمائیلي ئې چې کوم سړی د څه داسې څیز دعوی وکړي چې دهغه نه وي هغه زمونږ نه نه دی او |
| وَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (صَحِيحٌ)[2] |
| هغه له پکار دي چې خپله ټیکانه په دوزخ کې ولټوي. (مسلم) |

**توضیح**: **مالیس له**: شیخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات کې لیکلي دي چې دا لفظ په ظاهره داملاکو او اموالو دپاره ویلی شي خو ددې په عموم کې دحسب اونسب دعوی او دظاهر او باطن

---

(۱) أخرجه مسلم فی صحيحه ۱/۱۲۳ رقم الحديث (۱۳۹-۲۲۳) والترمذي في ۳/۶۲۵ رقم الحديث ۱۳۴۰.

(۲) أخرجه مسلم فی صحيحه ۱/۷۹ رقم الحديث (۶۱-۱۱۲) وابن ماجه فی ۲/۷۷۷ رقم الحديث ۲۳۱۹.

تولي دعوې هم راځي. يعنې يو سړې د بزرګۍ دعوې كوي دعلم په دروغه دعوي كوي، د احوالو او اعمالو عاليو دعوي كوي د فتوحاتو او كرامتونو او كشفونو او د الهاماتو دعوې كوي، او په حقيقت كې هغه په دې مقام باندې نه دى دحديث داوعيد تولو ته شامل دى (اشعة اللمعات ۳۴۲/۳)

## بهترين ګواه څوک دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت زيد بن خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې آيا زه تاسو ته د |
| «أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ الشُّهَدَاءِ؟ الَّذِي يَأْتِي |
| بهترينو ګواهانو په باره كې و نه وايم؟ (نو واورئ چې) په ګواهانو كې بهترين ګواه هغه دى چې د |
| بِشَهَادَتِهِ قَبْلَ أَنْ يُسْأَلَهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| ګواهئ طلب كولو نه مخكې ګواهي وركړي. (مسلم) |

**توضيح : خيرالشهداء** : ددې حديث دوه مفهومه دي: اول مفهوم دا چې ديو كس حق چرته ګير شوى دى د هغه سره ګواه نشته نه هغه ته دكوم ګواه علم شته دى په دې موقع باندې دوه ګواهان راځي او ګواهي وركول حقدار ته حق رسول دي دا بهترين ګواه دى. دويم مفهوم دادى چې مثلاً دحقوق الله معامله ده زكوة دى درمضان دمياشت معامله ده دكفارې مسئله ده دوقف او وصاياو او د صدقاتو معامله ده دوخت باچاته معلومه نه ده او دبيت المال داحق ضائع كيږي په دې موقع باندې يو سړى راغى او هغه ګواهي وركړه او حاكم لره يې خبر كړو نو هغه قومي فريضه اداكړه په دې وجه بهترين ګواه دى.

**سوال** : دلته دا سوال دى چې ددې حديث نه پس دحضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث راروان دى په هغې كې پخپله دګواهي وركونكي سخت مذمت راغلى دى حالانكه په زيربحث حديث كې دهغه مدحه شوې ده. دا په ظاهره تعارض دى.

**جواب** : ددې سوال جواب دادى چې مذمت په دروغه ګواهئ كې په دلچسپئ اخستلو سره راغلى دى او مدحه په رشتني شهادت كې راغله ده، يا دمذمت تعلق دانا اهل شهادت سره دى او دمدح تعلق د اهليت لرلو والا دشهادت سره دى، امام شافعي رحمه الله فرمايي چې دفاسق شهادت په مطلق طور باندې قابل قبول نه دى، احناف وائي چې قاضي لره دفاسق ګواهي رد كول پكار دي خو

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۱۳۴۴/۳ رقم الحديث (۱۷۱۹-۱۹) وأخرجه أبوداود في السنن ۲۱/۴ رقم الحديث ۳۵۹۶ والترمذي في ۴/۴۷۲ رقم الحديث ۲۲۹۵، وابن مالک في ۷۲۰/۲ رقم الحديث ۳ من كتاب الاقضية وأحمد في المسند ۱۹۳/۵.

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَنَّهَا | دَابَّتُهُ | نَتَجَهَا | فَقَضَى |
| هغې په تیجه کې دا پیدا شوا و دغه رنګه ددې د پیدا کیدو هم زه سبب جوړ شوی یم ګویا په دې دواړو کې هریو دا دعوی وکړه) | | | |
| بِهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلَّذِي فِي يَدِهِ. رَوَاهُ فِي «شرح السنة»[1] | | | |
| نو نبی عَلَیْهِ السَّلَام هغه څاروی د هغه سړي حق وګرځولو د چا په قبضه کې چې وو. (شرح السنة) | | | |

**توضیح**: **نتجها**: د باب ضرب نه مطلب دا چې هغه سړي وویل چې ما ددې بچي په پیدا کیدو کې (د نر) څاروي نه کا راخستی وو چې نر مې په مادي باندې پریخودلو بیا مې پرورش کولو بیا بچی وشو او په کور کې مې دې لره ویاللو. **فقضی للذی في یده**: ددې حدیث نه په ظاهري طور باندې دا خبره واضحه کیږي چې د دوو سړو په څه څیز کې که چرې تنازع شي او دواړه ګواهان پیش کړي نو دصاحب الید (قابض) بینه (ګواه) به راجح وي، ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چې ویلی شوې دي چې دا حدیث په دې باندې دلالت کوي چې د صاحب ید قابض بینه به په هر حال کې د غیر قابض په مقابله کې راجح وي. ملاعلی قاری وائی چې دظاهري حدیث نه داسې معلومیږي چې دا حکم په څاروو کې دی. احناف امامان وائی چې ددې حدیث د حکم تعلق د څاروو سره دی او په څاروو کې مسئله هم داسې وي چې دصاحب ید او قابض بینه د غیر قابض په مقابله کې راحج ده، او که دعوی په غیر حیوان کې وي نو بیا به دواړه مدعیان قسم خوري او څیز به په خپل مینځ کې تقسیموي څنګه چې په نورو حدیثونو کې ددې ذکر دی. امام شافعي وائی چې که هر قسم صورت وي او څه څیز هم وي په هر حالت کې د قابض بینه د غیر قابض په مقابله کې راجح ده، هغه حضرات شاید د مذکور حدیث نه خپله دعوی باندې دلیل پیش کوي خو حقیقت دا دی چې دا حدیث د احنافو دلیل دی ځکه چې په دې کې د حیوان او ددې د زیږیدلو (پیدا کولو) په واضح طور باندې بیان دی. (المرقات ۳۳۷/۷)

## د دوو مدعیانو په مینځ کې دمتنازع مال تقسیم

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ | أَبِي | مُوسَى | الْأَشْعَرِيِّ: | أَنَّ | رَجُلَيْنِ | ادَّعَيَا | بَعِيرًا |
| او حضرت ابو موسی اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې دوو سړو د یو اوښ په باره کې دعوی وکړه د | | | | | | | |
| عَلَى | عَهْدِ | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ فَبَعَثَ |
| رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې (یعنی هریو وویل چې دا اوښ زما دی او بیا په دې دواړو | | | | | | | |

(1) أخرجه البغوی فی شرح السنة ۱۰/۱۰۱ رقم الحديث ۲۵۰٤ والدارقطنی فی السنن ۲۰۹/٤ رقم الحديث ۲۱.

كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا شَاهِدَيْنِ فَقَسَّمَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

كې هر يو د خپلې (خپلې دعوې په ثبوت كې) دوه دوه گواهان پيش كړل. نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ

دې اوښ لره په هغه دواړو كې تقسيم كړو (ابو داؤ) او ابو داؤد رحمه الله يو روايت دا رنګه او د

وَلِلنَّسَائِيِّ وَابْنِ مَاجَهُ: أَنَّ رَجُلَيْنِ ادَّعَيَا بَعِيرًا

نسائي او ابن ماجه يو روايت كې دا سې دي چې دوو سړو ديو اوښ په باره كې دعوى وكړه خو په دې دواړو كې

لَيْسَتْ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةٌ فَجَعَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا[1]

ديو سره هم ګواه نه وو. نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې اوښ لره د دې دواړو مشتركه حق وګرځولو. (ابوداؤد)

**توضيح** : **فبعث** : يعني دواړو خپله خپله بينه اودروله او قائم يې كړه يعني بينه ئې پيش كړه. (المرقات ۳۳۸/۷)

**فقسمه** : يعني نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې متنازع اوښ لره په دواړو مدعيانو كې تقسيم كړو. علامه خطابي رحمه الله فرمائي چې شايد هغه اوښ د دواړو په قبضه كې به وو، نو په دواړو كې يې تقسيم كړو، ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چې شايد اوښ د كوم دريم سړي په قبضه كې وو چې د اوښ دعويدار نه وو نو كله چې دواړو ګواهان پيش كړل او چاته هم ترجيح حاصله نه وه نو اوښ يې د دوى په مينځ كې تقسيم كړو ځكه چې د احنافو دا مسلک دى چې كچرې دوه سړي ديو څيز دعوى وكړي او چا ته هم يد او قبضه حاصله نه وي او دواړه په خپله دعوى باندې بينه قائم كړي نو هغه څيز به په دواړو كې تقسيمولو سره نيم نيم وركړى شي، جمهور فرمائي چې په دواړو كې د قسم خوړلو دپاره به قرعه اندازي وكړى شي او د چاچې قرعه راووتله هغه به قسم خوري او مال به اخلي زيربحث حديث د احنافو دليل دى. بعضې علماء وايي چې د قسم دپاره چې د چا قرعه راووتله د هغه بينه به راجح وي. **ليست لواحد منهما بينة** په دې روايت كې دا وخودلى شو چې ديو سره هم بينه نه وه او د دې نه مخكې روايت كې او خودلى شو چې دواړو سره بينه موجود وه؟ دې تعارض لره د لرې كولو دپاره علماو ليكلي دي چې شايد دا دواړه ځانله ځانله قضيې وې، او ممكن ده چې يو قضيه وي خو كله چې د دواړو ګواهي په وجه د تعارض كالعدم وګرځولى شو، نو دواړه بغير د ګواهئ نه پاتې شو يعني مقبوله ګواهي د چا دپاره نه وه. (المرقات ۳۳۸/۷)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۳۷ رقم الحديث ۳۶۱۵ والنسائي في ۸/۲۴۸ رقم الحديث ۵۴۲۴، وابن ماجه في ۲/۷۸۰ رقم الحديث ۲۳۳۰.

خوري او مال به اخلي.(المرقات ۷/ ۳۳۶، الكاشف ۷/ ۳۰۴)

اوس په دې روايت كې په فقهي نقطه نظر سره اختلاف دى، امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله فرمائي چې مال به ددې دريم سړي په لاس كې پريخودلى شي ځكه چې په دې دوو كې تعارض راغلى، نو د دواړو دليل ساقط شو، امام ابو حنيفه رحمه الله فرمائي چې دې مال لره به د مدعيانو په مينځ كې برابر تقسيمولى شي څنګه چې په آئنده د حضرت ام سلمه رضي الله عنها په روايت كې ددې تصريح موجود ده چې مال تقسيم كړئ او د انصاف خيال وساتئ او بيا قرعه اندازي وكړئ او بيا د يو بل دپاره معافي تلافي وكړئ.

يادساتئ چې نيم نيم تقسيم كول په هغو څيزونو كې به وي چې كوم څيزونه تقسيم قبلوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۲﴾عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه روايت كوي چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل |
| قَالَ: «الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينُ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ (حَسَنٌ)[1] |
| ګواه د مدعى په ذمه دى او قسم د مدعى عليه په ذمه. (روايت كړې دې ترمذى) |

## د ايثار او صلحې يو صورت

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت ام سلمه رضي الله عنها د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د دو سړو د قضيې په باره كې نقل كوي چې خپله يوه |
| فِي رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَيْهِ فِي مَوَارِيثَ لَمْ تَكُنْ لَهُمَا |
| د ميراث مسئله يې راوړې وه د نبى عليه السلام په خدمت كې راغلي وو او په دې دواړو كې د يو سره |
| بَيِّنَةٌ إِلَّا دَعْوَاهُمَا فَقَالَ: |
| هم ګواه نه وو صرف دعوې دعوې وې نبى عليه السلام (ددې دواړو جواب اوريدو سره) وفرمايل (يادساتئ) |
| «مَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِشَيْءٍ مِنْ حَقِّ أَخِيهِ فَإِنَّمَا |
| زه چې د كوم سړي دپاره د څه څيز فيصله وكړم چې كوم څيز دده د ورور حق وي، نو هغه څيز به دده |
| أَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِنَ النَّارِ». فَقَالَ الرَّجُلَانِ: كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا: |
| دپاره د اور د ټكړې نه علاوه هيڅ نه وي په دې دواړو كې هريو (دا واوريدل) عرض يې وكړو |

[1] أخرجه الترمذى فى السنن ۳/ ۶۲۶ رقم الحديث ۱۳۴۱

يَا رَسُولَ اللهِ حَقِّي هَذَا لِصَاحِبِي

اى دالله رسوله! زما حق زما د ملګري (يعنى دفريق مخالف) دپاره دى (زه خپله دعوى پريږدم)

فَقَالَ: «لَا وَلَكِنِ اذْهَبَا فَاقْتَسِمَا

نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل نه! بلکه تاسو دواړه لاړشئ او دې څيز لره (نيم نيم) تقسيم کړئ او خپل خپل حق واخلئ

وَتَوَخَّيَا الْحَقَّ ثُمَّ اسْتَهِمَا

او (دا طريقه اختيار کړئ چې) اول دا څيز دوه کړئ په دې دواړو حصو باندې خسنې واچوئ دغه شان په تاسو دواړو کې

ثُمَّ لِيُحَلِّلْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْكُمَا صَاحِبَهُ».

هريو هغه حصې لره واخلئ په کومه چې دده خسنې راوتلې وي او په تاسو کې هريو تېکار دې چې هغه خپل (هغه) حق خپل

وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: «إِنَّمَا أَقْضِي بَيْنَكُمَا

ملګرى ته معاف کړي، او په يو روايت کې دا الفاظ هم دي چې نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل زه ستاسو د دواړو

برأيي فِيمَا لم يُنْزَلْ عَلَيَّ فِيهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

په مينځ کې دا فيصله په خپله رائې او اجتهاد سره کوم. په دې معامله کې په ما وحى نه ده نازله شوې. (ابوداؤد)

**توضيح : فاقتسما:** يعنى د شراکت په بنياد باندې يې برابر تقسيم کړئ (المرقات ۳۳۷/۷) **توخيا الحق أي اطلبا الحق** يعنى د عدل او انصاف بنه خيال وساتئ دحق نه مراد عدل او انصاف دى (المرقات ۳۳۷/۷) **ثم ليحلل** دا دباب تفعيل نه دى دحلالولو په معنى سره دى يعنى خپل مينځ کې دتقسيم نه پس معافى تلافى وکړئ سبحان الله د ايثار او همدردى، او د محبت دې ملګرو څنګه نمونه قائمه کړه.

## دقابض په حق کې فيصله

﴿۱۴﴾ وَعَنْ جَابِرِ بن عبدِ اللهِ: أَنَّ رَجُلَيْنِ تَدَاعَيَا دَابَّةً

او حضرت جابر ابن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وائي چې دوو سړو (په دربار رسالت کې) د يو څاروي په باره کې دعوى وکړه

فَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ

او په دې دواړو کې هريو خپل خپل ګواه پيش کړل چې دا څاروى دده دى (يعنى ما دده په مور باندې نر پريخودلې وو چې د

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٤/١٤ رقم الحديث ٣٥٨٤ وأحمد في المسند ٦/٢٣٠.

که هغه قبوله کړه نو د فیصلې دپاره دا ګواهی جائز ده، فقهاؤ لیکلې دي چې ګواهی ورکول فرض دي ددې پټول په هیڅ قسم باندې جائزنه دي په شرط ددې چې مدعي ګواه وغواړي هاپه حدودو کې د ګواهۍ نه ورکولو ګنجائش شته دی. (المرقات ۳۳۴/۷)

## په دروغه د ګواهۍ ورکولو والا په باره کې پیشن ګوئی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خَيْرُ النَّاسِ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل د ټولو نه بهتر هغه خلق دي |
| قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ |
| چې زما په زمانه کې یعنی د صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او بیا هغه چې دوی سره متصل دي یعنی تابعین او بیا هغه چې دوی سره |
| ثُمَّ يَجِيءُ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَةُ أَحَدِهِمْ يَمِينَه |
| متصل دي یعنی تبع تابعین او بیا په آخر کې به داسې خلق پیدا شي چې په دوی کې د یو ګواهي د |
| وَيَمِينُه شَهَادَتَه» متفق عليه (صَحِيحٌ)[1] |
| قسم نه مخکې کیږي او د هغه قسم به د ده د ګواهۍ نه مخکې وي. (بخاری و مسلم) |

**توضیح : قرني** : د قرن د لفظ څو معانې دي د دې نه صحابه کرام هم مراد کیدی شي **قرني اي صحابي** بعضو ویلي دي چې هر سړی د خپلې زمانې خلقو ته قرن وائی ځکه چې دا د قِران نه دی د نزدې کیدو په معنی سره د نبی علیه السلام په زمانه کې موجود خلق د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په قرن کې وو کومه پورې چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ موجود وو (**كذافي النهاية**) بعضو ویلې دي دیرش کاله قرن دی، بعضو څلویښت کاله او بعضو شپیته کاله او بعضو اویا کاله بعضو اتیا کاله او بعضو مکمل سل کالو لره قرن ګرځولی دی (المرقات ۳۳۴/۷)

**تسبق شهادة احدهم** : دا د لاپرواهۍ، غفلت او د دین د بیزارۍ یو کیفیت طرف ته یې اشاره کړې ده چې د یو بل نه زیات په دروغه ګواهو دپاره رامنډې وهي، نو نن صبا دا نقشه په مکمل طور باندې موجود ده په عدالتونو کې دروغژن ګواهان په کرایه ملاویږي چاته چې ضرورت پیښیږي نو دوی فورًا ګواهی ورکوي او پیسې اخلي د خپل غیرت او عزت او د خپل دیانت او امانت او د دین سودا کوي. (المرقات ۳۳۵/۷)

---

(۱) أخرجه البخاری فی صحیحه ۷/۳ رقم الحدیث ۳۶۵۱ ومسلم فی ۱۹۶٤/٤ رقم الحدیث (۲۵۳۳-۲۱۲) والترمذی فی السنن ٤/٦ رقم الحدیث ۲۳۰۳ وابن ماجه فی ۷۹۱/۲ رقم الحدیث ۲۳٦۲ وأحمد فی المسند ٤٤۲/۱.

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَن أَبِي هريرةَ أَنَّ رجُلَينِ اختصما |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د دوو سړو د يو څاروي په باره کې تنازع شوه (چه په دواړو |
| فِي دَابَّة وَلَيْسَ لَهما بَيِّنَةٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| کې هريو ددې څاروي د ملکيت وويل) او ددې دواړو سره ګواه نه وو نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې |
| استهِمَا عَلَى اليَمِينِ. متفق عليه[1] |
| په قسم خوړلو باندې خسنې واچوئ (ابوداؤد، ابن ماجه) |

**توضيح**: استهما على اليمين: يعنى تاسو دواړه قسم خوړلو سره خسنې واچوئ چې دچا خسنې راوتلو هغه به قسم خوري او مال به اوچتوي ددې روايت په شان يو ... ... ې نه مخکې تيرشوى دى چې دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى او په يوولسم نمبر ... ...رشوى دى هلته ددې مسئلې تفصيل دى، دارنګه په حديث نمبر ۱۵ کې هم دد... ... موجود دى. (المرقات ۳۳۸،۳۳۹/۷)

## د مدعاعليه قسم

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې (په يوه قضيه کې) د کوم سړي (يعنى مدعى عليه) |
| قَالَ لِرَجُلٍ حَلَّفَهُ: «احْلِفْ بِالله الَّذِي |
| نه قسم اخستلى شو هغه ته نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چه په دې خبره باندې په الله قسم وخوره چې |
| لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ مَاله عِنْدَكَ شَيْءٌ» يَعنِي لِلْمُدَّعِي. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[2] |
| دهغه نه سيوا بل معبود نشته چې ددې سړي (يعنى مدعي) په تا باندې هيڅ حق نشته دى. (ابوداؤد) |

**توضيح**: احلف بالله : دا خو واضحه ده چې کله د مدعي سره ګواه نه وي نو د مدعاعليه نه به قسم اخستلى شي، نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ دلته ددې اصولو مطابق فيصله وفرمايله چې احلف ته قسم وخوره. د قسم په باره کې دا خبره ياد ساتل ضروري دي چې قسم پرې خوړل په عدالت کې د قاضي حق دى د مسلمان نه

---

(۱) أخرجه أبوداود فى السنن ۴/۴۰ رقم الحديث ۳۶۱۸ وابن ماجه فى ۲/۷۸۶ رقم الحديث ۲۳۴۶ وأحمد فى المسند ۲/۴۸۹

(۲) أخرجه أبوداود فى السنن ۴/۴۱ رقم الحديث ۳۶۲۰

به دهغه دتوحید دعقیدې مطابق قسم اخستلی شي او عیسائی ته به وویلی شي چې د انجیل د نازلونکي د الله تعالی قسم وخوره، او یهودي ته به وویلی شي چې دتورات نازل کونکی والا ذات باندې قسم وخوره او مجوسی وغیره باندې به په الله تعالی قسم وخوړلی شي داخبره د یاد ساتلو ده چې دمدعا علیه قسم ته به په هرصورت کې اعتبار وي خواه عادل وي یا په کې عدل نه وي.

## مدعاعلیه ته په هر حال کې دقسم حق حاصل دی

﴿۱۸﴾ وَعَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ: كَانَ بَيْنِي

د حضرت اشعث بن قیس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغوی وویل چې یوه زمکه زما او دیو یهودي په

وَبَيْنَ رَجُلٍ مِنَ الْيَهُودِ أَرْضٌ فَجَحَدَنِي

مینځ کې مشترکه وه خو یهودي (په دې زمکه کې) زما د حصې (نه دتسلیمولو) نه انکار وکړو. نو

فَقَدَّمْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:

ما دنبی عَلَیْهِ السَّلَام په خدمت کې بوتللو (او خپله معامله مې ورته پیش کړه) نبی عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل

«أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟» قُلْتُ: لَا قَالَ لِلْيَهُودِيِّ: «احْلِفْ»

چې آیا تاسره ګواه شته؟ ما عرض وکړو نشته، نبی عَلَیْهِ السَّلَام یهودي ته وفرمایل چې ته قسم وخوره، ماچه دا

قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِذَنْ يَحْلِفَ

(واوریدل) عرض مې وکړو ای دالله رسوله! دا خو به اوس قسم وخوري او زما به مال هرپ کړي. نو الله تعالی

وَيَذْهَبَ بِمَالِي فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى:

(دغه ددې قضیې په باره کې چې دهغې ذکر دابن مسعود رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې تیر شوی دی) دا آیت نازل کړو

(إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللهِ

یقینًا کوم خلق چې سپکه معاوضه اخلي په مقابله دهغه عهد کې چې الله تعالی کړی دیاو (په مقابله

وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا) الْآيَةَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْنُ مَاجَه[1]

د خپلو قسمونو کې الخ. دې روایت لره ابوداؤد، ابن ماجه رحمهما الله نقل کړی دی.

---

(1) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٤١ رقم الحديث ٣٦٢١ والترمذى فى ٥/٢٠٨ رقم الحديث ٢٩٩٦ وابن ماجه فى ٢/٧٧٨ رقم الحديث ٢٣٢٢ وأحمد فى المسند ٥/٢١١

«عُدِلَتْ شَهَادَةُ الزُّوْرِ بِالْإِشْرَاكِ بِاللهِ» ثَلَاثَ مَرَّاتٍ.
وفرمايل چې په دروغه ګواهي د شرک بالله سره برابره کړې شوې ده . ددې نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (بطور

ثُمَّ قَرَأَ: ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا
دليل) دا آيت تلاوت وفرمايلو فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ د پليتۍ (بت پرستۍ نه) بچ شئ د دروغو نه ځان ساتئ

قَوْلَ الزُّوْرِ حُنَفَاءَ لِلهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ﴾
ځکه چې تاسو د باطل نه حق طرفته رجوع کونکي يئ نه دا چې د الله تعالى سره شرک کونکي يئ، دې روايت لره

رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْنُ مَاجَه[1] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيّ
ابوداؤد او ابن ماجه رحمهما الله نقل کړی دی دارنګه دې روايت لره احمد او ترمذي رحمهما الله هم

عَنْ أَيْمَنَ بْنِ خُرَيْمٍ إِلَّا أَنَّ ابْنَ مَاجَهْ لَمْ يَذْكُرِ الْقِرَاءَةَ[2]
د ايمن بن خريم نه نقل کړی دی او د ابن ماجه نقل شوې روايت کې د آيت شريفه تلاوت کول ذکر نه دي.

## د کومو خلقو ګواهي معتبر نه ده

﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وائي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د هغه خلقو ګواهي جائز او

«لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ خَائِنٍ وَلَا خَائِنَةٍ
معتبر نه ده (۱) د خيانت کونکي سړي او د خيانت کونکې ښځې (۲) په کوم کس باندې چې د تهمت حد

وَلَا مَجْلُودٍ حَدًّا وَلَا ذِي غِمْرٍ عَلَى أَخِيهِ
جاري کړی شوی وي (۳) دښمن چې د خپل (مسلمان) ورور خلاف وي. (۴) هغه سړی چې د ولاء په باره

وَلَا ظَنِينٍ فِي وَلَاءٍ وَلَا قَرَابَةٍ
کې متهم وي (۵) هغه سړی چې د قرابت په باره کې تهمتي وي (۶) هغه سړی چې په يو کور باندې قانع

---

(۱) أخرجه أبوداود فى السنن ۴/۲۳ رقم الحديث ۳۵۹۹ وابن ماجه ۲/۷۹۴ رقم الحديث ۲۳۷۲.

(۲) أخرجه الترمذى فى السنن ۴/۴۷۵ رقم الحديث ۲۳۰۰ وأحمد فى المسند ۴/۳۲۱.

| |
|---|
| وَلَا الْقَانِعِ مَعَ أَهْلِ الْبَيْتِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حديثٌ غريبٌ |
| وي. امام ترمذي رحمه الله دي روايت لره نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی دا رنګه |
| ويزيدُ بن زيادٍ الدِّمَشْقِي الرَّاوِي مُنكر الحَدِيث[1] |
| ددې حديث يو راوي يزيد بن زياد دمشقي منکر الحديث دی. |

**توضيح: خائن ولا خائنة** : په دې حديث کې او ددې نه پس راتلونکي دوه حديثونو کې دداسې خلقو بيان دی چې دهغوی شهادت نه قبليږي. داسلام په نظر کې چې څومره دحاکم عادل کيدل ضروري دي هم دومره دګواهانو عادل کيدل ضروري دي دې دپاره چې صحيح فيصلې ته رسيدلو واسطه او وسيله هم صحيح وي. په دې حديث کې دداسې خلقو ګواهي غيرمعتبر ګرځولی شوې ده چې دعدل او انصاف معيار باندې پوره نه راوځي ځنګه چې خائن سړی او خائنه ښځه ده د خيانت مفهوم عام هم کيدلی شي چې څوک په دين او دنيا دواړو کې خيانت کولو والا دی چونکه دخيانت د وجې نه دا خلق فاسقان شول او دشهادت دپاره عادل کيدل ضروري دي په دې وجه دهغوی ګواهي معتبر نه ده.

په عام عرف کې خائن هغه دی چې دخلقو په مالونو او امانت کې خيانت کوي ددې حديث پيش نظر همدا مفهوم واضح دی، بعضو مطلق فاسق مراد اخستی دی. (المرقات ۳۴۴/۷)

**ولا مجلودٍ حدًّا** : مجلود دجلد نه دی او جلد کوړې ته وائي يعنی چاته چې دحد قذف کوړې لګيدلې وي، هغه قاذف باندې چې کله دحد نافذ کيدو سره کوړې ولګي نو ددې نه پس دهغه شهادت معتبر نه وي. د شوافعو په نزد کچرې دا محدود توبه وکړي نو بيا دده ګواهي معتبر ده ځکه د **الا الذين تابوا من بعد ذلک** استثناء **ولاتقبلوا لهم شهادةً ابداً** نه ده، نوکله چې قاذف توبه وکړي نودده ګواهي به معتبره شي اګرچې حد دقذف لګيدلی وي، بلکه په ټولو حدودو کې همدا حکم دی، احناف فرمائي چې د نورو حدودو حکم همداسې دی خو د قذف حد لګيدو سره سړی هميشه دپاره مردود الشهادة جوړ شي، په دې وجه په توبې کولو سره دده ګواهي معتبر کيدی نه شي او دالا **الذين تابوا** استثناء **اولئک هم الفاسقون** نه ده، ځکه چې دا نزدې هم ده او **شهادةً** نکره راوړلو سره عموم طرفته اشاره هم ده چې دڅه قسمه ګواهي معتبر نه ده، او د ابدًا لفظ سره يې نور تاکيد هم پيدا کړو او زير نظر واضح حديث هم دی، لهذا محدود فی القذف چې کله خپلې ژبې لره په کومې پاکدامنې ښځې باندې په بهتان کې ګنده کړه نو دهغه دا سزا ده چې هميشه هميشه دپاره دهغه د ژبې اعتبار ونه کړی شي. (المرقات ۳۴۴/۷)

---

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ٤/٤٧٣ رقم الحديث ٢٢٩٨.

| |
|---|
| وَمَا حَلَفَ حَالِفٌ بِاللهِ يَمِينَ صَبْرٍ |
| خوړل (یادساتئ) کوم قسم خورونکی چې د مجبورئ او قید په حالت کې دالله تعالی قسم وخوړلو |
| فَأَدْخَلَ فِيهَا مِثْلَ جَنَاحِ بَعُوضَةٍ |
| او په دې قسم خوړلو کې یې دماشی د وزر برابر (یعنی لږغوندې) هم دورغ شامل کړل نو دهغه په |
| إِلَّا جُعِلَتْ نُكْتَةٌ فِي قَلْبِهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ». |
| زړه کې به دقیامت پورې یوه توره نقطه (داغ) پیدا شي (چې دهغې وبال به په آخرت کې ښکاره وي) |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (صَحِيح)[1] |
| دې روایت لره ترمذی رحمه الله نقل کړی دی او ویلې یې دي چې دا حدیث غریب دی. |

**توضیح**: اکبر الکبائر: یعنی په ټولو لویو ګناهونو کې د ټولو نه لویه ګناه داده (۱) شرک کول، (۲) یمین غموس (۳) یمین صبر. ددې قسمه یو حدیث په باب الکبائر کې تیرشوی دی دتوضیحات په اول جلد کې هلته پوره تفصیل شوی دی خو دلته د یمین صبر لفظ دی چې هلته نشته دی د یمین صبر تفصیل هم ددې باب په ابتداء کې شوی دی دلته دیمین صبر نه دعدالت په کمره کې دننه قسم خوړل مراد دی. یعنی د عدالت په کمره کې سړی که په خپل قسم کې لږغوندې هم دروغ ووائی نو ددې سړي په زړه باندې به دګناه یو تور داغ پریوځي دا داغ د رین اثر دی، ګویا چې دا د مهرجباریت یوه حصه ده دا اثر دهغه سړي د زړه نه به دقیامت پورې نه ختمیږي. (المرقات ۳۴۱/۷)

## د قسم حیثیت د مکان اوزمان په وجه سره زیاتیږي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَحْلِفُ |
| او حضرت جابر رضي الله عنه وائی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل. چې کوم سړی هم ددې منبر سره |
| أَحَدٌ عِنْدَ مِنْبَرِي هَذَا عَلَى يَمِينٍ آثِمَةٍ وَلَوْ عَلَى سِوَاكٍ أَخْضَرَ |
| نزدې قسم وخوري او دهغه دا قسم دروغ وي اګرچې هغه دیو شین مسواک دپاره ولې نه وي نو هغه |
| إِلَّا تَبَوَّأَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ أَوْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ». |
| د (دوزخ) اور کې خپل ځای تیاروي یایې دا وفرمایل چې دده دپاره د (دوزخ) اور واجب کیږي. |

(۱) أخرجه الترمذی فی السنن ۵/۲۲۰ رقم الحدیث ۳۰۲۰ وأحمدفی المسند ۳/۴۹۵.

| |
|---|
| رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[1] |
| (روایت کړی دی مالک، ابوداؤد، ابن ماجه) |

**توضیح**: **عند منبري**: په مسجد کې د منبر او محراب هسې هم یو مقدس مقام وي او بیا د مسجد نبوی د منبر شان څه نور دی، او بیا د منبر نسبت د نبی ﷺ طرفته کولو سره نو ددې منبر شان اوچت شو.

اوس په دروغه قسم خوړل خو هسې هم لوېه ګناه ده خو اه چرته هم وي خو که څوک سړی د داسې مقدس مقام سره په دروغه قسم وخوري نو د الله تعالی غضب ته دعوت ورکول دي داشان د مقدس مقام د وجې نه د قسم حیثیت او عظمت زیاتیږي دغه شان د جمعې په ورځ د ماز یګر نه پس قسم خوړل د زمانې د عظمت په وجې سره د قسم حیثیت زیاتیږي، او په دې کې تغلیظ راځي، د څه مقام او مکان د وجې نه د تغلیظ مثال علماؤ لیکلی دی چې کچرې څوک سړی په مکه کې وي نو د حجر اسود او د مقام ابراهیم په مینځ کې ځای د تولو نه معظم دی په دې کې د قسم حیثیت زیاتیږي. او که څوک سړی په مدینه کې وي نو د نبی ﷺ د قبر مبارک سره خو اکې ځای ډیر معظم دی او په عامه دنیا کې جامع مسجد او بیا عام مسجد د عظمت والا مقامات دي، شوافع حضرات د قسم تغلیظ د مکان او زمان په ذریعې سره جائز مني، خو احناف وائی چې قسم صرف قسم دی د کوم زمان او مکان په وجه سره د هغه په حیثیت باندې اثر نه پریوځي ظاهری نصوص د شوافعو سره دي.

**ولو علی سواک اخضر**: د شین مسواک نه لږ څیز مراد دی که هغه شین مسواک وچ وي او یا تروي، د مسلم شریف په یو روایت کې **قضیباً من أراک** الفاظ راغلي دي یعنی د پلوسې او کیکر ښاخ ددې نه هم لږ څیز مراد دی. (المرقات ۳۴۲/۷)

## په دروغه ګواهی د شرک برابر ده

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾وَعَنْ خُرَيْمِ بْنِ فَاتِكٍ قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الصُّبْحِ |
| او حضرت خریم بن فاتک رضی الله عنه وائی چې (یوه ورځ) رسول کریم صلی الله علیه وسلم کله چې د سحر |
| فَلَمَّا انْصَرَفَ قَامَ قَائِمًا: فَقَالَ: |
| مونځ کولو نه فارغ شو نو (صحابو رضی الله عنهم ته د خطاب کولو د پاره ودریدلو او درې ځله یې دا الفاظ |

(1) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۵۹۷ رقم الحديث ۳۲۴۶ وابن ماجه في ۲/۷۷۹ رقم الحديث ۲۳۲۵ ومالک في المؤطأ ۲/۷۲۷ رقم: ۱۰

**توضیح : فانزل الله** : دې روایت باندې سوال راځي چې کله یهودي باندې دې صحابي اعتراض وکړو نو الله تعالی یو آیت نازل کړو، اوس سوال دادی چې په دې آیت کې د صحابي د اعتراض جواب څنګه راغلو.؟ ددې جواب دادی چې کله صحابي وویل چې دا یهودي دی قسم به وخوري نو د قرآن کریم آیت بطور وعید نازل شو چې په هغې کې الله تبارک وتعالی په دروغه قسمونو او د بدعهدئ په وعدو باندې سخت نکیر وفرمایلو چې هغې سره یهودي ګویا خبردار شو چې ته که چیرې غلط قسم خورې نو ددې سزا ډېره خطرناکه ده، دارنګه د دې آیت مضمون او په تورات باندې په دورغه قسم باندې سخت وعید یو قسم احکام دی نو په دې آیت کې یهودي ته یاد کړی شو چې اوګوره په دروغه قسم به وخورې نو ته به دخپل کتاب تورات مطابق سزا مومې څه چې ددې سوال په جواب کې لیکلی شوي دي یو حده پورې علامه طیبي رحمه الله لیکلي دي او ددې سوال حل صرف هم دا دی.( المرقات ۳۴۰/۷، الکاشف ۳۰۷/۷، ۳۰۶)

## قسم خوړونکي ته د الله تعالی ویره ورکړئ

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِنْدَةَ وَرَجُلًا مِنْ حَضْرَمَوْتَ اخْتَصَمَا |
| او حضرت اشعث بن قیس رضي الله عنه نه روایت دی چې د قبیله کنده یو سړی او د حضرت موت یو سړی |
| إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَرْضٍ مِنَ الْيَمَنِ |
| دواړه د یمن د یوې زمکې په باره کې خپله قضیه راوړله د نبي علیه السلام په خدمت کې حاضر شول. |
| فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ أَرْضِي اغْتَصَبَنِيهَا |
| حضرمي عرض وکړو چې ای د الله رسوله! ددې سړي پلار زما زمکه زما نه (په زور) اخستې ده او |
| أَبُو هَذَا وَهِيَ فِي يَدِهِ |
| اوس هغه دده په قبضه کې ده (زه تاته درخواست کوم چې هغه زما زمکه ماته واپس کړي) نبي علیه السلام |
| قَالَ: «هَلْ لَكَ بَيِّنَةٌ؟» |
| حضرمي ته وفرمایل چې آیا تاسره ګواه شته (چې ګواهي ورکړي چې هغه زمکه واقعًا ستاده؟) هغه |
| قَالَ: لَا وَلَكِنْ أُحَلِّفُهُ وَاللهِ مَا يَعْلَمُ |
| عرض وکړو نه! خو زه هغه ته د الله تعالی قسم ورکوم چې دا اقرار کوم چې هغه ته پته نشته چې هغه |
| أَنَّهَا أَرْضِي اغْتَصَبَنِيهَا أَبُوهُ؟ |
| زمکه زما (د حضرمي) ده کومه چې دده پلار زما نه (په زور) اخستې ده نو هغه (کندی) د قسم خوړلو |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَتَهَيَّأَ | الْكِنْدِيُّ | لِلْيَمِينِ | فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |
| د پاره تیار شو (کله چې هغه قسم خوړلو دپاره روان شو) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې (يادساتئ) | | | | | | | | | |
| «لَا | يَقْطَعُ | أَحَدٌ | مَالًا | بِيَمِينٍ | إِلَّا | | | | |
| چې کوم سړی هم (په دروغه) قسم خوړلو سره دچا مال هضم کړي نو هغه به الله تعالی سره په داسې | | | | | | | | | |
| لَقِيَ | اللهَ | وَهُوَ | أَجْذَمُ» | فَقَالَ | الْكِنْدِيُّ: | | | | |
| حال کې ملاقات کوي چې دهغه لاس به کټ وي. کندي دې (اوریدلو) سره وویل زه اقرار کوم چې) | | | | | | | | | |
| هِيَ أَرْضُهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | | | | | | | | | |
| هغه زمکه ددې سړي ده. (ابوداؤد) | | | | | | | | | |

**توضیح**: اعتصبنيها ابوهذا: يعنی ددې کندي سړي پلار زمانه هغه زمکه (په زور) اخستې ده او هغه زمکه ددې کندي سړي په قبضه کې ده چونکه دهغه سره ګواه نه وو په دې وجه ئې وویل زه به هغه ته قسم ورکړم خو قسم به داسې وي چې هغه سړی پخپله ووايي چې په الله قسم ماته بالکل معلومه نه ده چې دا زمکه ددې حضرمي سړي ده دچانه چې زما پلار (په زوره) اخستې ده کندی سړي ددې قسم دپاره تيار شو

خو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کله ورته وعيد واورولو نو هغه اقرار وکړو چې ذا زمکه واقعی دحضرمي ده. **اجذم**، جذام د یوې مشهورې او خطرناکې بيمارئ نوم دی چې په هغې سره دبدن اندامونه دحد نه زيات غټيدو سره وپړسيږي او بيا کټ کټ کيدو سره تکړې تکړې شي. (المرقات ۳۴۰/۷)

په لغت کې هم **جذم** دضرب يضرب نه په جلتئ سره د کټ کيدو په معنی سره دی او د پوره لاس د کټ کيدو دپاره استعماليږي. (المرقات ۳۴۰/۷)

## په دروغه قسم خوړل لويه ګناه ده

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبدِاللهِ بنِ أُنَيْسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ | | | | | | |
| او حضرت عبدالله بن انيس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په لويو ګناهونو | | | | | | |
| الْكَبَائِرِ | الشِّرْكَ | بِاللهِ | وَعُقُوقَ | الْوَالِدَيْنِ | وَالْيَمِينَ | الْغَمُوسَ |
| کې دټولو نه لويه ګناه داده (۱) دالله تعالی سره څوک شريکول، (۲) د مور پلار نافرماني کول (۳) او په دروغه قسم | | | | | | |

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۴۲/۴ رقم الحديث ۳۶۲۲ وأحمد في المسند ۲۱۲/۵.

ولاذي غمر : غمردشمنی اوبغض اوحسد او عداوت ته وائی نو دغه شان کینه گر حاسداو د دشمنی جذبه ساتلو والا سړي گواهي په خپل يو مسلمان ورور باندې جائز نه ده خواه هغه دده سکه ورور وي يا عام مسلمان وي ځکه چې ددشمنۍ او عداوت دا جذبه ده لره په عدالت باندې قائم اوسيدونکی نه پرېږدي. ولاظنين ظنين تهمتی ته وائی لکه چې وما هو على الغيب بظنين آيت هم پدې معنی سره دی(المرقات ۳۴۴/۷)

ولاء ميراث ته وائی يعنی يوغلام چې کله آزاد شي او بيا مړ شي نو د آزاد کړی شوي غلام ميراث ددې آزادونکي آقادی، اوس کچرې يو غلام خپل نسبت کې دروغ ووائی چې زه حارث آزاد کړی يم حالانکه په واضح طورباندې پوهيږي چې ده لره حارث نه بلکه زيد آزاد کړی دی نوغلام په دې نسبت کې متهم في الولاء دی دا داصل مالک حق وهل غواړي په دې سره دا فاسق شو اودفاسق گواهی معتبر نه ده، لهذا د ظنين في الولاء گواهی مردود ده، همدغه شان معامله دظنين فی القرابة ده چې يوسړی وايې چې زه دعمرو ځوی يم حالانکه خلقو ته پته ده چې دا دروغ وائی دا دعمرو ځوی نه دی بلکه دبکر ځوی دی نوپه دروغو نسبت سره دا سړی مردودالشهادة شو، لهذا ددې گواهی معتبرنه ده . (المرقات ۳۴۵/۷)

ولا القانع مع اهل البيت: القانع نه مراد هرهغه سړی دی چې دچا په نان نفقه گذاره کوي لکه خادم دی نوکر وغيره دی يا شاگرداو مريد دی دده گواهی په دې وجه معتبر نه ده چې ددې دواړو په مفاداتو کې اشتراک دی نوشايد دا سړی ددې مفاداتو پيش نظر په گواهۍ کې دجانب دارائي نه کار واخلي او غلطه گواهي ورکړي. احناف فرمائی چې ددې مفاداتو پيش نظر دښځې گواهي دخاوند په حق کې او دخاوند گواهي د ښځې په حق کې صحيح نه ده، شوافع حضرات يې صحيح مني. (المرقات ۳۴۵/۷)

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| اوحضرت عمرو بن شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه او هغه د خپل دادا نه او هغه د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي |
| قَالَ: «لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ خَائِنٍ وَلَا خَائِنَةٍ |
| چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل نه خو د خيانت کونکي سړي او نه د خيانت کونکې ښځې گواهي صحيح ده او نه |
| وَلَا زَانٍ وَلَا زَانِيَةٍ وَلَا ذِي غِمْرٍ عَلَى |
| د زنا کونکي سړي او نه د زنا کونکې ښځې گواهي صحيح ده، دغه شان د دشمن گواهی (دخپل) دشمن |
| أَخِيهِ» وَرَدَّ شَهَادَةَ الْقَانِعِ |
| خلاف مقبوله نه ده. دارنگه نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ (په يو مقدمه) کې دهغه سړي گواهی رد کړه چې د يو کور پرورش |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِأَهْلِ | الْبَيْتِ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] |

او كفالت كې وي او هغه ګواهي د دې كوروالو په حق كې وركړې وه. (ابو داؤد)

## د كم عقل كليوال ګواهي په ښاري باندې معتبر نه ده

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چه په

«لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ بَدَوِيٍّ عَلَى صَاحِبِ قَرْيَةٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه[2]

كلي كې د او سيدونكي په حق كې يا د دې خلاف په ځنګل كې د او سيدونكي ګواهي صحيح نه ده.

**توضيح**: ولا شهادة بدوي: بدوي د بداوه طرف ته منسوب دى او بداوه كلو او صحراته وايي دا د حضاره په مقابله كې راځي ابو طيب متنبي ويلي دي:

حسن الحضارة مجلوب بتطرية وفي البداوة حسن غير مجلوب

د بدوي نه مراد هغه كليوال دى چې جټ ځنګلي او جاهل وي كله چې په كلو كې داسې وي نو د هغوى سره علم هم نه وي. د بره خكته نه واقف نه وي د ګواهئ وركولو شرائطو نه واقف نه وي د غفلت او نسيان په ده باندې غلبه وي، ملاعلي قاري رحمه الله يوه وجه بيان كړې ده چې عمومًا د كلو او ښارونو په مينځ كې دشمني وي نو د عداوت په وجه د هغوى ګواهي به غير مقبول وي.
بهر حال كچرې بدوي كې سليقه وي پوهه وي تميز پكې وي نو د جمهورو په نزد د ده ګواهي د عامو انسانانو په شان به مقبول وي، ها امام مالک رحمه الله فرمايي چې په مطلق طور باندې د كوم كليوال ګواهي په كوم ښاري باندې قبوله نه ده، جمهور د دې زير بحث حديث لره په غالبي او اكثري احوالو باندې محمول كړي دى. (المرقات ۷/۳۴۶)

## صفا او واضح بيان تيار كړه او عدالت ته لاړ شه

﴿۲۶﴾ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې (يو ځل) رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوو سړو په

| | | |
|---|---|---|
| قَضَى | بَيْنَ | رَجُلَيْنِ فَقَالَ |

مينځ كې د يوې مقدمې فيصله وكړه (چې ديو سړي خلاف او د بل په حق كې وه نو د مقدمې فيصله چې د كوم

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٤/٢٤ رقم الحديث ٣٦٠٠ وابن ماجه في ٢/٧٩٢ رقم الحديث ٢٣٦٦ وأحمد في المسند ٢/١٨١.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ٤/٢٦ رقم الحديث ٣٦٠٢ وابن ماجه في ٢/٧٩٣ رقم الحديث ٢٣٦٧.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْمَقْضِيُّ | عَلَيْهِ | لَمَّا | أَدْبَرَ: | حَسْبِيَ | اللهُ | وَنِعْمَ |

سړي خلاف وشوه دا د مجلس نبوي نه پاسيدو سره) واپس تللو سره يې وويل يعنى مالره زما الله كافي دى

الْوَكِيلُ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَلُومُ عَلَى الْعَجْزِ

او بهترين كارساز دى. نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ دې (اوريدو سره) وفرمايل چې الله تعالى په نادانئ او لاپرواهئ باندې

لَكِنْ عَلَيْكَ بِالْكَيْسِ فَإِذَا غَلَبَكَ أَمْرٌ فَقُلْ: حَسْبِيَ اللهُ

ملامتول كوي تا ته چالاكي او هوښياري ضروري ده بيا كچرې تا ته مصيبت راورسي نو وايه حسبي الله

وَنِعْمَ الْوَكِيلُ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (حسن)[1]

ونعم الوكيل (مالره زما الله كافي او بهترين كارساز دي). (ابو داؤد)

**توضيح: حسبي الله:** د ملا على قاري رحمه الله بيان نه معلوميږي چې دې سړي غالبًا دچا نه قرض اخستى وو او رسيد يې ليكلى وو بيا يې هغه قرض واپس كړو خو دا غفلت يې وكړو چې په واپسى باندې يې څه رسيد او ثبوت جوړ نه كړو يا قرض غوښتونكي په ده باندې واپس دعوى وكړه چې زما قرض ادا كړه په تا باندې مې دومره قرض دى او دا رسيد دى، دې بيچاره په جواب كې وويل چې ما خو ادا كړى دى هغه وويل چې تا سره څه ثبوت شته چې تا واپس كړى دى په دې باندې مدعي مقدمه وګټله او دې بيچاره دغم او حسرت او افسوس اظهار وكړو او وې ويل **حسبي الله ونعم الوكيل**.

**ان الله يلوم على العجز:** كله چې دې سړي **حسبي الله ونعم الوكيل** وويله نو ګويا په ضمنى طور باندې هغه دنبى عَلَيْهِ السَّلَامُ په فيصله باندې مطمئن نه شو اګرچې هغه په الفاظو كې ددې اظهار ونه كړو خو معامله يې په الله تعالى باندې پريخوده په اشاره يې دخپلو جذباتو اظهار وكړو په دې باندې نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ ناراضه شو، او بيا نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ دضابطې په طور باندې كلام وفرمايلو.

علامه طيبى رحمه الله فرمائى چې نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ په دې باره كې واضح وفرمايل چې په تا باندې لازم خو دا وو چې ته په خپله مقدمه كې او ددې په دلائلو كې هوښيار اوسيدې، ستا دعوى صفا وه، ستا ګواهان وى، يا بل ثبوت وى، اوس چې كله نه تا بيان صفا وكړو نه دې ثبوت برابر كړو او د مدعي په مخكې عاجزه شوې نو اوس **حسبي الله ونعم الوكيل** وايې؟.

دا آيت خو هغه وخت ويل پكار وو چې كله انسان خپل ټول تدبير ونه او ټول احتياط په كار راولي او بيا عاجزه شي، او په هغې باندې دبچ كيدو ټولې لارې بندې شي نو بيا به **حسبي الله ونعم الوكيل**

---

(1) أخرجه أبوداود فى السنن ٤/٤٤ رقم الحديث ٣٦٢٧ وأحمد فى المسند ٦/٢٥.

وایي الله تعالی انسان لره دانسان په نادانۍ او عجز او لاپرواهۍ باندې ملامته کوي. لهذا دملامتیا ذمه دار ته پخپله یې. الکیس هوښیارتوب، بیدارۍ، او زیرکتیا او طرارۍ ته وایي.

## ملزم لره قید کول شرعی سزاده

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت بهز بن حکیم رحمه الله دخپل پلار نه او هغه دهغه دنیکه نه نقل کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حَبَسَ رَجُلًا فِي تُهْمَةٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وزادَ التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ: ثُمَّ خَلَّى عَنْهُ[1] |
| یو سړي لره دتهمت په بنیاد باندې قید کړی وو. (ابوداؤد) او ترمذی په روایت کې دي چې بیایې پرېښودلو. |

**توضیح**: فی تهمة: یعنی دتهمت په بنیاد باندې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دې سړي لره قید کړی وو. داسې معلومیده چې یو سړي په ده باندې دقرض دعوی کړې وه یا په دې سړي باندې څه بل الزام وو په دې وجه نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دې سړي لره په حوالات (جیل) کې ساتلی وو چې مدعي خپلې دعوې لره د صحیح ثابتولو دپاره څه ثبوت پېش کړي خو کله چې مدعي خپلې دعوې لره ثابته نه کړه نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه سړي لره په هغه ورځ روستو د الزام نه بري کولو سره پرېښودلو، ددې حدیث نه معلومه شوه چې ملزم په قید کې ساتل به دشرعی حکم مطابق وي هسې خو علماؤ لیکلي دي چې د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په دور کې د مجرمانو دپاره باقاعده جیل نه وو ځکه چې په مسلمانانو کې جرائم نه وو البته کافرانو لره نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په قید کې ساتلي دي خو دهغوی دپاره هم څه باقاعده جیل نه وو هغوی به دجنګي قیدیانو په حیثیت سره په صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې تقسمولی شول، او صحابو به ددوی نګراني کوله، علامه خطابی رحمه الله فرمائي چې ددې حدیث نه معلومه شوه چې قید کول په دوه قسمه دي: یو حبس عقوبت دی او دویم حبس تهمت دی، حبس عقوبت خو دڅه واجب حکم په وجه سره وي، او حبس تهمت صرف دحقیقت ښکاره کیدو پورې وي، په دې وجه دې سړي لره نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ څه وخت پس پرېښودلو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## دواړه خصمین دې دقاضي په مخکې کینولی شي

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عبدالله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فرمان (عدالتي ضابطه) جاري |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٤/٤٦ رقم الحديث ٣٦٣٠ والترمذي في ٤/٢٠ رقم الحديث ١٤١٧، والنسائي في ٧/٦٧ رقم الحديث ٤٨٧٦.

أَنَّ الْخَصْمَيْنِ يُقْعُدَانِ بَيْنَ يَدَيِ الْحَاكِمِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ(۱)

وفرمایله چې مدعي او مدعاعلیه دې دواړه د قاضي مخې ته کیني. (احمد، ابوداؤد)

**توضیح**: **قضی**: دلته دا قضی د حکم او فیصلې کولو په معنی سره نه دی بلکه د اوجب په معنی سره دی چې داحکم واجب دی.

**یقعدان**: یعنی عدل او انصاف او مساوات د اصولو پیش نظر قاضی او حاکم باندې واجب دي چې هغه د عدالت په کمره کې مدعي او مدعاعلیه لره برابر کینوي اګر چې د دواړو په مینځ کې د مرتبو په اعتبار سره څومره فرق ولې نه وي، دیو غریب سره کچرې د وخت د باچا تنازع هم وي نو قاضی له پکار دي چې هغه حاکم او غریب دواړه برابرئ سره کینوي، همدا هغه مشکله مرحله ده چې د هغه په باره کې علامه طیبی رحمه الله داسې فرمایي: **ولیس علی القاضي امر اشق ولا اخوف من التسویة بین الخصمین**. یعنې د قاضي دپاره ددې نه زیات ګران او خطرناکه مرحله هیڅ یوه نه ده چې کله د عدالت په کمره کې مدعي او مدعی علیه پیش وي نو چې هغه په دې دواړو کې برابري وکړي. واقعي علامه طبي د رښتیا او حقیقت طرف ته اشاره کړې ده نن صبا خو په عدالتونو کې د انصاف د تقاضو نام او نشان نشته صرف د پیسو سودا ګرئ په بنیاد اصول جوړیږي او ماتیږي، دانګریزانو عدالتونو ته د عدالت نوم ورکول د عدالت توهین دی. د اسلام د تقرې په وختونو کې په اسلامي عدالتونو کې په حاکم او محکوم کې د مساوات د ښکلي واقعاتو هیڅ کمې نشته چې د پوره دنیا د پاره معیار او قابل تقلید نمونه ده، په دې تیر هیر وخت کې هم کوم وخت د اسلام د ښکلي اصولو په بنیاد په افغانستان کې د طالبانو اسلامي عدالتونه قائم شو نو د انصاف او مساوات نهرونه روان شو چې هر انصاف خوښونکي او شرافت غوښتونکي انسان د پاره قابل تقلید نمونه وه لیکن دهشت خوښونکي تخریبي عناصر او د انسانیت دشمن قوتونو دا برداشت نه کړې شو لیکن په دنیا باندې دا خبره واضحه شوه که اسلام یو نیم زر کاله وړاندې یو ژوندې او کلک مذهب ؤ نو هغه نن هم هغه شان مؤثر او ژوندی دی او راتلونکي وخت کې به هم تر کومې چې دنیا قائمه وي ان شاء الله ژوندې او آباد وي، الله تعالی دې د خپل دین حفاظت وکړي **آمین یارب العالمین**.

الحمد لله د توضیحات پنځم جلد د الله تعالی په فضل او کرم سره ختم شو.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٤/١٦ رقم الحديث ٣٥٨٨.